لَا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ۝

# قرآن مجید

سره د پښتو ترجمې

په هدایت د

امام جماعت احمدیّه

حضرت مرزا طاهر احمد خلیفة المسیح الرابع ایّده الله

# سریزه

دَمارچ په دیرلشتم تاریخ ۱۹۸۹ء باندَ جماعت احمدیه پورا یَوه صدی تیرَشوه په دی مبارکه موقع په مناسبت سره دَخدائے تعالیٰ په حضورکښ دَ تشکر په طور دَ دنیا په نیځوس ژبوکښ دَقرآن شریف دَ ترجمو شائع کولوعزم کړی دی۔ دَسرکو وړاند ترجمه هُم دَدی پروګرام لاندِ شائع کیدی شي۔

دَدی ترجمے په اشاعت باند تول خرڅ آنجناب محترم ډاکټرانواراحمد خان چه هغوی دَخان شمس الدین خان دَپښاورځوی دے دَطرف ادا شوی دی۔ جزاهُم الله تعالیٰ احسن الجزآء۔



ترجمه : پروفیسرمحمد اقبال ایم۔ اے

مرسته کوُونکے : سعید احمد خان سهیل مربّي سلسله احمدیه

# انڈکس

# سُوْرَةُ الْفَاتِحَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سَبْعُ اٰيَاتٍ

سورة فاتحه - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اوۀ آیتونه دی

---

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | ع (شروکوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔ |
| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ② | دَ هر (قسم) ستائینې (هُم) الله وړ دے۔ |
| الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ③ | بے حده کرم کوُونکے او بیا بیا رحم کوُونکے دے۔ |
| مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ④ | (او) دَ جزا سزا دَ وخت مالک دے۔ |
| اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ⑤ | (یه خدایه) مونږ هُم ستا عبادت کوُو او هُم تا نه مدد غواړو۔ |
| اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ⑥ | مونږ په نیغه لاړ روان کړے۔ |
| صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۙ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ⑦ | دَ هغے خلقو په لاړ په چا چه تا انعام کړے دے نۀ په هغوئ (روستو بیا) غضب نازل شوے (دے) او نۀ هغوئ (لېسته) بے لارے (شوی) دی۔ ع |

---




سورۃ بقرہ - دا سورۃ مدنی دے او بسم اللہ سرہ دے دوہ سوہ اووہ اتیا ۲۸۷ آیتونہ دی او څلویښت ۴۰ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ﴿٢﴾

زۀ الله دَ ټولو نه زیات علم لرونکے یم۔

ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ ۛ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٣﴾

دا کامل کتاب دے په دے (وینا) کښے هیڅ شک نشته، متقیانو ته لار ښوودونکے دے۔

الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿٤﴾

هغه څوک چه په غیب ایمان راوړی او نمونځ قائموی۔ او چه (څه) مونږ هغوته ورکړی دی دَ هغے نه لګښت کوی۔

وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿٥﴾

او څه چه په تا نازل کړے شوی دی یا څه چه لتا نه مخکښے نازل شوی وُو په هغے ایمان راوړی او بیا کیدُونکی (موعود خبرو) باندے (هُم) یقین لری۔

اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ ۖ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٦﴾

دا خلق (په رښتیا) په هغه هدایت (کلک ولاړ) دی چه دَ هغوئ دَ رب له طرف نه (راغلے) دے او هُم دغه خلق کامیابیدُونکی دی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٧﴾

دا سے خلق چه هغوی کفر کړے دے (او) ستا یرول یا نۀ یرول دَ هغوی دَ پاره یو شان (اثر پیدا کوونکے) دی (څو چه هغوئ دغه حالت بدل نۀ کړی) ایمان به نۀ راوړی۔

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ۖ وَعَلٰٓى

الله دَ هغوی په زړونو او په غوږونو مهرونه وهلے

أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۸﴾ ع

دی او دَ هغوی په سترګو پرده (پرته) ده او دَ هغوی دَ پاره یو لوئے عذاب (لیکلے شوے) دے۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ ﴿۹﴾

او ځنې خلق داسے هُم شته دے چه وائی مونږه په الله او په راتلونکے ورځ ایمان لرو وے حال دا دے چه هغوی هیڅکله ایمان نهٔ لری۔

يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۰﴾

هغوی الله ته او هغه خلقو ته چا چه ایمان راوړے دے دهوکا ورکول غواړی وے (په حقیقت کښے) هغوی دَ خپل ځان نه سوا هیچا ته دهوکا نهٔ ورکوی او هغوی پو هیږی نه۔

فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ ﴿۱۱﴾

دَ هغوی په زړونو کښے یوه بیماری وه بیا الله هغه بیماری دَ هغوی (نوره هُم) زیاته کړه او هغوی ته یو دردناک عذاب ورسیږی، وے چه هغوی به دروغ وئیل۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ ﴿۱۲﴾

او هرکله چه هغوی ته او وئیلے شی (چه) په زمکه کښے فساد مهٔ کوی نو وائی چه مونږ خو بس اصلاح کوونکی یُو۔

أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِنْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۳﴾

(دَ زړه په غوږو) واورئ! بے شکه هُم دغه خلق فساد کوونکی دی وے هغوی (په دے حقیقت) نهٔ پوهیږی۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ ۗ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِنْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۱۴﴾

او هرکله چه هغوی ته او وئیلے شی چه (داسے) ایمان راوړئ لکه چه (نورو) خلقو ایمان راوړے دے نو وائی چه وے مونږه هُم (داسے) ایمان راوړو لکه څنګه چه بے وقوفو (خلقو) ایمان راوړے دے۔ یاد ساتئ (دوئی دروغ وائی) هغوی په خپله بے وقوف دی خو (په دے خبره) نه پوهیږی۔

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ ﴿١٤﴾

او هرکله چه هغوی هغه خلقو سره لیو ځائے شی چه ایمان ئے راوړے دے نو وائی چه مونږه خو (دا رسول) منو او هرکله چه هغوی خپلو مشرانو سره یو ازے په یو ځائے شی نو وائی چه مونږه په رښتیا تاسو سره یُو۔ مونږه خو هسے (دے مومنانو لوړے) خندا کوله۔

اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١٥﴾

الله به هغوی ته (د هغوی) دَخندا سزا ورکوی او هغوی به په خپلو سرکشو کښے سرگردانه پریږدی۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٦﴾

دا هغه خلق دی چا چه نیغه لاره پریخوه او خطا لاره ئے اونیوه۔ دَ دے نتیجه دا شوه چه نهٔ ئے دُنیا په ښه راغه او نهٔ هغوئ هدایت بیاموند۔

مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهُ ذَهَبَ اللَّهُ بِنُورِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِي ظُلُمَاتٍ لَّا يُبْصِرُونَ ﴿١٧﴾

دَ هغوی حال دَ هغه چا په شان دے چه اور ئے بل کړو بیا هرکله چه هغے (اور) خپل گیرچاپیره (ځائے) رنړا کړو نو الله دَ هغوئ رنړه یوړه او هغهٔ هغوئ په (قسِم قسِم) تیرو کښے (په داسے حال) پریخول چه هغوی (هیڅ دَ خلاصی لار) نهٔ لیده له۔

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿١٨﴾

هغوی کانړه دی گونگیان دی ړانده دی بیا هغوی به رجوع نهٔ کوی۔

أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَاءِ فِيهِ ظُلُمَاتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِم مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ۚ وَاللَّهُ مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ ﴿١٩﴾

یا (دَ هغوئ حال) دَ هغه باران په شان دے چه دَ (تورو گړو) وریځو نه (رووریږی) (داسے بلران) چه دَ هغے سره (رنګارنګ) تیرے او گړزهار برېښنا وی۔ هغوی خپلے گوتے دَ گړز هار له کبله او دَ مرګ دَ ویرے نه خپلو غوږونو کښے اچوی وے حال دا چه

الله خوتول کافران تباه کوونکے دے ۔

يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ ۖ كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُم مَّشَوْا فِيهِ وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۲۱﴾ ع ۱۳

نزدے ده چه برېښنا دَ هغوی بینائی یوسی. کله هُم چه هغه په دوی پرکیږی نو هغوی دَ دے (په رڼا) کښے روان شی او چه کله هُم په هغوی تیاره کړے شی نو هغوی اودریږی۔ او کچرے الله غوښتے نو په رڼښتیا دَ هغوی اوریدلو او کتلو (طاقت) به ئے ضائع کړے وے ۔ الله په هر (هغه) (امر چه دَ څه هغه اراده اوکړی) په رښتیا په پوره پوره ډول قادر دے ۔

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۲۲﴾

یه خلقو ! دَ خپل (هغه) رب عبادت اوکړئ چا چه تاسو (هُم) او هغوی (هُم) چه دَ تاسو نه وړاندے تیر شوی دی پیدا کړی وُو۔ دَ پاره دَ دے چه تاسو (دَ هر قسمه مصیبتونو نه) په امان شئ۔

الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۖ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۳﴾

(هُم هغه دے) چا چه زمکه ستاسو دَ پاره غوړه وِلے ده او آسمان ئے دَ چهت په حیث جوړ کړے دے او دَ وریځو نه ئے اوبهٔ را ورولی دی، بیا دَ دے او بو په سوب دَ میوو دَ قسم رزق تاسو دَ پاره را اوخکے دے ۔ بیا نو تاسو په غرید لو ستر گو الله لره شریک مهٔ نیسئ ۔

وَإِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ وَادْعُوا شُهَدَاءَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۲۴﴾

او کچرے دَ دے (کلام) له کبله کوم چه مونږ په خپل بنده نازل کړے دے، تاسو څه (قسم له) شک کښے (پریوتی) یئ نو بیا که چرے تاسو په حقه یئ نو دا شان یو سورت را وړئ او غیر الله خپل ملګری (هُم خپل مدد له) را وبلئ۔

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا وَلَن تَفْعَلُوا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا

بیا کچرے تاسو او نهٔ کړه او تاسو به هیڅکله (دا سے)

النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٤﴾

اونکړے شئ نو د دا سے اور نه ځان او ساتئ چه د هغے خشاک سړي او کانړي دي هغه د کافرانو د پاره جوړ شوے دے۔

وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۖ كُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوْا هٰذَا الَّذِيْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ وَاُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا ۖ وَلَهُمْ فِيْهَا اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۙ وَّهُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٥﴾

او ته هغے خلقو ته چه ایمان ئے راوړے دے او ښه عمل کوی زیرے ورکړه چه د هغوی د پاره (دا سے) باغونه دی چه هغے کښے ولے بهیږی۔ کله به چه د هغه (باغونو) د میوو څه رزق هغوی ته ورکړے شی هغوئ به وائی چه دا خو هُم هغه (رزق) دے کوم چه مونږ ته روسے نه راکړے شوے وُو او هغوی ته به هغه (رزق) هُم د هغے غوندے راوړے کیږی۔ او د هغوی د پاره به دغه (باغونو) کښے پاکے بیبیانے وی او هغوئ به هُم په دغه (باغونو) کښے (تل) اسنوګنه کوی۔

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۖ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَيَقُوْلُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا ۙ وَّيَهْدِيْ بِهٖ كَثِيْرًا ۖ وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ﴿٢٦﴾

الله هیڅکله نهٔ آوړی د څه خبرے د بیانولو نه هرڅوکه هغه د ماشی همره وی یا د دے نه هُم زیاته۔ بیا کوم خلق چه ایمان لری هغوئ (خو) رسی چه هغه د هغوئ د رب د لوره سکوته حقه (خبره) ده او چا چه انکار اوکړو هغوی وائی چه (آخر) د الله د دے خبرے کولو منشا څه ده۔ (اصل خبره دا ده چه) هغه ډیرو (خلقولره) د دے (قرآن) په سوب بے لارے ګرزوی او ډیرو (خلقو) ته د دے (قرآن) په سوب سمه لار ښائی او هغه د دے په سوب د نامنونکو نه سوا هیڅوک بے لارے نهٔ ګرزوی۔

الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ ۪ وَ
يَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ
فِي الْاَرْضِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۲۷﴾

هغه څوک چه دَ الله سره کړے پوخ لوظ ماتوی او دَ هغه څیز چه دَکوم دَ جوړښت الله حُکم کړے دے پریکوی او په زمکه کښے فساد کوی هُم هغه خلق نقصان موندُونکے دی۔

كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ۚ ثُمَّ
يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۸﴾

(یه خلقو!) تاسو څنګه دَ الله (دَ خبرو) نه انکار کوئ؟ ولے حال دا چه په تاسو کښے سا نهٔ وه بیا هغه تاسو ژوندی کړئ بیا به (یو ورځ راشی چه) هغه به تاسو مړه کړی او بیا به تاسو ژوندی کړی دَ دے نه پس دَ هغه طرف ته واپس څئ۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۗ ثُمَّ
اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ۭ وَهُوَ ع
بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۹﴾

هغه (خدائے) هُم هغه (ذو) دے چا چه هغه واړه څیزونه چه په زمکه کښے دی ستاسو (دَ فائدے) دَ پاره پیدا کړل۔ بیا هغه آسمانونو طرف ته متوجه شو او هغه ئے مکمل جوړ کړهٔ اووهٔ آسمانونه او هغه دَ هرے خبرے (حقیقت) ښهٔ پیژنی۔

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً ؕ
قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ
وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ قَالَ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ
مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾

(او اے انسانه! تهٔ هغه وخت (را یاد کړه) چه ستا رب ملائیکو ته اُووے چه زهٔ دَ زمکے په مخ یو خلیفه پیدا کوُونکے یم۔ (په دے خبره) هغوی اووئیل چه آیا تهٔ په دے کښے (دا سے سړی) پیدا کوے چه په دے کښے به فساد کوی او وینے به تویوی او مونږه (خو هغه یُو چه) ستا حمد سره (سره) ستا تسبیح (هُم) کوُو او تا کښے چه څومره لوئی دی دَ هغے اقرار کوُو (په دے باندے (الله) اوفرمائیل زهٔ په رښتیا په هغه پوهیږم چه تاسو پرے نهٔ پوهیګئ۔

وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ ۙ فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٣١﴾

او (الله) آدم ته ټول نومونه اوښودل بیا (چه د هغوکوم نومونه وُو) هغه ئے ملائیکو ته مخکښے کړل او وے فرمائیل کچرے تاسو رښتنے خبره کوئ نو تاسو د هغوئ نومونه ما ته اوښائ۔

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿٣٢﴾

هغوی اووئیل ته بے عیبَ ئے چه (څه) تا مونږ ته ښودلی دی د هغے نه سوا مونږ ته هیڅ قسم علم نشته دے په رښتیا هُم ته کامل عِلم لرونکے یے (او هره خبره او کار کښے) حِکمت کتُونکے یے۔

قَالَ يٰٓاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿٣٣﴾

(په دے الله) اوفرمائیل۔ اے آدم! دے فرښتو ته د هغو نومونه اوښایه۔ بیا چه هر کله هغه (یعنی آدم) هغوی ته د هغو نومونه اوښودل (نو) وے فرمائیل وے ما تاسو ته نهٔ ووئیلے چه زهٔ په رښتیا د آسمانونو او د زمکے په پټوخبرو پوهیږم او زهٔ (په هغے هُم) پوهیږم چه تاسو ئے ښکاره کوئ او (هغه هُم) چه تاسو ئے پټوئ۔

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ ۫ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٣٤﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هر کله چه مونږه فرښتو ته اووے چه د آدم حُکم اومنئ په دے خبره هغوی ټولو حُکم اومنلو وے ابلیس (او نهٔ منلو هغه) انکار اوکړو او تکبر ئے اوکړو او هغه (د آګاهونه هُم) د نا منُونکو نه وُو۔

وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا ۪ وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٣٥﴾

او مونږه (آدم ته) اُووے (چه) اے آدم! ته او ستا ښځه په جنت کښے اوسئ او دغلته چه د کوم ځائے نه مو خوښه وی په خلاص مټ خورئ وے دغے (یعنی فلانکے) وَنے ته نزدے نشئ کنی نو تاسو به ظالمانو نه شئ۔

فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ ۪ وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّ مَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿٣٦﴾

او (دَ دے نه پس دا اوشوه چه) شیطان دَ هغے (ونے) په سوب هغه (دواړه) لره (دَ هغو دَ مقام نه) لرے کړل او (دغے) هغهٔ هغوی دَ هغه (حال) نه چه هغوی پکښے وُو را اوخکل او مونږه (هغوی) ته اووے (چه دَ دے ځائے نه) اُوځئ تاسو نه بعض دَ بعضو دښمنان دی او (زیادسائی چه) ستاسو دَ پاره یو (تاکلی) وخته پورے په دے زمکه کښے ځائے دَ استوګنے او سامان دَ ژوندانه (مقدر) دے۔

فَتَلَقّٰۤى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿٣٧﴾

دَ دے نه پس آدم دَ خپل رب نه څه (دُعائیه) کلمات زده کړل (او دَ هغے سره سمه ئے دُعا اوکړه) نو هغه دَ هغهٔ طرف ته (بیا دَ فضل سره) متوجه شو۔ په رښتیا هُم هغه دَ بندیانو دَ سختے وخت دیر خیال ساتونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا ۚ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّىْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَاىَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٣٨﴾

(بیا نو) مونږه اووئیل (څئ) واړه دے نه اوځئ (او یاد ساتئ چه) کچرے بیا کله تاسو ته ځما له طرف نه څه هدایت راشی نو چه کوم خلق په ځما ښوُونے پسے ځی۔ هغوی ته به نهٔ څه (دَ بیا) یره وی او نهٔ به هغوئ (دَ تیر وخت په کمزورو) غمژن شی۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰۤئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٣٩﴾ ع

او کوم (خلق) به چه انکار کوی او ځمونږ آیاتونه به دروغ گنړی هغه (خلقا) دوزخ (کښے پریوتونکی) دی هغوی به دے کښے اوسیګی۔

يٰبَنِىْۤ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِىَ الَّتِىْۤ اَنْعَمْتُ

اے بنی اسرائیل! ځما هغه احسان یاد کړئ چه ما به

عَلَيْكُمْ وَاَوْفُوْا بِعَهْدِيْٓ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ ۚ وَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ﴿٤١﴾

تاسو کړے دے او تاسو (چه) ما (سره کوم) لوظ (کړے وُو) هغه پوره کړئ پسته چه ما کوم لوظ تاسو سره کړے وه زه به هغه پوره کړم او (هُم) څما نه (رویریږئ) بیا (زه وایم چه) (هُم) څما نه ویریږئ۔

وَاٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا اَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهٖ ۠ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۡ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ﴿٤٢﴾

او په دے کلام ایمان راوړئ چه ما راوس) نازل کړے دے راو) چه دَ هغه (کلام) کوم چه تاسو سره دے تصدیق کُوونکے دے او تاسو دَ (تهولونه) آ کاهو دَ دے کافرمهٔ جوړیږئ او څما دَ آیتونو په بدل کښے لږ قیمت مهٔ اخلئ او (هُم) څمانه (رویریږئ) بیا (زه وایم چه) هُم څما نه ویریږئ۔

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٤٣﴾

او په غړیدلوسترګو حق دَ ناحقو سره مهٔ ګهډوئ او مهٔ حق (په غړیدلو سترګو) پټوئ۔

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿٤٤﴾

او نمونځ قائم ساتئ او زکوٰة ورکوئ او خالص دَ خدائے پرستش کُوونکو سره یو ځائے خالص دَ خدائے پرستش کوئ۔

اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٤٥﴾

وے تاسو (نورو) خلقوته (خودَ) نیکی (کولو) دَپاره وائی او خپل ځانونه هیروئ وے حال دا چه تاسو کتاب (یعنی تورات) لولئ بیا (هُم) کورے تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۭ وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَي الْخٰشِعِيْنَ ﴿٤٦﴾ ۙ

او دَ صبر او دَ دُعا په سوب دَ (الله نه) مدد غواړئ او بے شک دَ یریدُونکونه سوا (نورو دَپاره) دا (کار) ګران دے۔

الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ

(هغه خلق) چه (په دے خبره) یقین لری چه هغه

رٰجِعُوْنَ ﴿۴۶﴾ ع

دَ خپل ربّ سره یو ځائے کیدُونکی دی او په دے خبره هُم چه هغوئ هغه طرف ته واپس تلُونکی دی۔

يٰبَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۷﴾

اے بنی اسرائیل! ځما هغه احسان کوم چه مِ په تاسو کړے وُو یاد کړئ او (هغه احسان هُم) چه ما تاسو لره په ټولو جهانونو فضیلت درکړے وُو۔

وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۸﴾

او دَ هغې ورځے نه اُوویریږئ چه (کله به) هیڅ یو سړے دَ بل سړی په ځائے نشي ځائیدے او نهٔ به دَ هغه له طرف نه څه سفارش منلے شي او نهٔ به دَهغه نه (څه قِسم) معاوضه قبلیدے شي او نهٔ به دَ هغو مدد کیدے شي۔

وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۴۹﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) چه مونږه تاسو دَ فرعون دَ قام نه په داسے حال کښے خلاص کړئ چه هغه تاسو لره بد ترین عذاب درکولو۔ ستاسو هلکان به ئے وژل او ستاسو ښځے به ئے ژوندے ساتلے او ستاسو دَ رب له طرف نه په دے (خبره) کښے (ستاسو دَ پاره) لوئے آزمیښت وو۔

وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۰﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هر کله چه مونږه ستاسو دَ پاره سمندر اوشلولو بیا مونږ تاسو خلاص کړئ او ستاسو دَ وړاندے مِ دَ فرعون قام غرق کړو۔

وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰٓى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۵۱﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هر کله چه مونږه دَ موسیٰ سره دَ څلویښتو شپو وعده اوکړه بیا تاسو دَ هغه (دَ تلو نه) پس ظالمان شوئ او سخئ مو (دَ عبادت لائق) اوګرځولو۔

ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۲﴾

بیا مونږه هغے نه پس (هُم) تاسو معاف کړئ ځکه

چه تاسو شکر گزار جوړ شئ۔

وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿٥٤﴾

او (هغه وخت هم یاد کړئ) هرکله چه مونږ موسٰیؑ ته کتاب (یعنی تورات) او فرقان یعنی معجزات ورکړل ځکه چه تاسو سمه لار بیا مومئ۔

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوْبُوْٓا اِلٰى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿٥٥﴾

او (هغه وخت هم یاد کړئ) هرکله چه موسٰیؑ خپل قام ته اووے چه اے زما د قام (خلقو!) تاسو د سخي نه (معبود) جوړولو په سوب په ریښتیا په خپلو ځانونو زیاتي کړے دے نو ځکه تاسو خپل پیدا کوونکي ته سرتیټ کړئ او هر سړے دِ خپله خپل ځان قتل کړي۔ دا خبره ستاسو د پیدا کوونکي په نزد تاسو له ډیره ښه ده (هرکله چه تاسو دا سے اوکړل) نو هغه ستاسو طرف ته د فضل سره بیا پام اوکړو هغه په ریښتیا (د خپلو بنده ګانو طرف ته) ډیر توجه کوونکے او بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿٥٦﴾

او (هغه وخت هم یاد کړئ) هرکله چه تاسو وئیلي وُو چه اے موسٰیؑ! مونږ به هیڅکله ستا خبره اونهٔ منُو ترڅو چه مونږ الله مخامخ اونهٔ وینو. په دے تاسو هلاکوونکي عذاب اونیولئ او تاسو په خپلو سترګو د خپلو کړو (انجام) لیدو۔

ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٥٧﴾

بیا مونږه تاسو د هلاکت نه پس تاسو د دے د پاره اوچت کړئ چه تاسو شکر گزار جوړ شئ۔

وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٥٨﴾

او مونږ په تاسو د وریځو سیورے جوړ کړو او ستاسو د پاره مو مَن او سلوٰی راواولیږله (او مو وئیل چه) د دے پاکو څیزونو نه چه مونږ تاسو ته درکړي خورئ او هغوئ (په نهٔ منلو)

څمونږ نقصان او نکړو بلکه هغوی هُم ځپل نقصان کولو۔

وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ ۚ وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٩﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه مونږ وئیلے وُو چه هغه کلی کښے ورننوزئ او هلته چه کوم ځائے نه خوښوئ په خلاص مټ خورئ او (دَدے) په ور کښے پوره فرمانبرداری سره داخل شئ او وائی (چه مونږ) دَ پیټی کمولو خواست کوُو (بیا به) مونږه ستاسو خطاګانے دَ سره معاف کړو او مونږه محسنانو له ځامخا ډیره وُو۔

فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَنزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٦٠﴾

(بیا دَهغوی شرارت اوګورئ چه) ظالمانو دَ هغے خبرے خلاف چه کومه هغوئ ته وئیلے شوے وه یوه بله خبره په بل ډول (وئیل شروع) کړه په دے سوب مونږ په هغه خلقو کوموچه ظُلم کړے وُو دَ نافرمانئ په سوب دَ آسمان نه یو عذاب نازل کړو۔

وَإِذِ اسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ فَقُلْنَا اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۖ فَانفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۖ كُلُوا وَاشْرَبُوا مِن رِّزْقِ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٦١﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه موسیٰ دَخپل قام دَ پاره اُوبه اوغوښتے نو مونږه (هغه ته) اووئیل چه خپله همسا په فلانکی کانړی اووهه بیا نو دَهغے نه دولس ١٢ چینے راوختکیدے او هریو تولی خپل ګدر اوپیژندو او پسته دَ الله ورکړی رزق نه خورئ او څکئ او دَ فسادیانو په شان زمکه کښے خرابی مهٔ پیدا کوئ۔

وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَىٰ لَن نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنبِتُ الْأَرْضُ مِن بَقْلِهَا وَقِثَّائِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ۚ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَىٰ بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ ۚ اهْبِطُوا مِصْرًا فَإِنَّ

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه تاسو اووئیلے چه اے موسیٰ! مونږ هُم په یو خوراک به صبر ونکړے شُو دَ دے دَپاره ته څمونږ دَ پاره دَ خپل رب نه دُعا اوغواړه چه هغه څمونږ دَپاره

لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ ۭ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ
وَبَاۗءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ
بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ ذٰلِكَ بِمَا
عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾ ع

بعض دا سے څیزونه چه زمکه کښے کیږی، را پیدا کړی یعنی سبزیانے، ښتکی، غنم، مسور او پیاز۔ (په دے خبره الله) او وئیل وے تاسو د هغه څیز په ځائے کوم چه اعلیٰ دے هغه اخستل غواړئ چه ادنیٰ دے۔ ځئ ته ښارے ته لاړ شئ (رملته) چه څه تاسو غواړئ تاسو ته به خامخا په لاس درشی۔ (بیانو) هغوئ تول عمر رسوا او بے وسه کړے شو او هغوئ د الله په غضب واوړیدل۔ (دا ځکه راوشول) چه هغوی د الله د آیاتو نه انکار کولو او د نبیانو ناحق قتلول ئے غوښتل (راو) دا (زګناه) د هغوی د نافرمانئ او د حد نه د زیاتی په سوب (رهغوی کښے پیدا شوے) وه۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰى وَ
الصّٰبِـــِٕيْنَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ
صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُھُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ښ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ
وَلَا ھُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٦٢﴾

کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او کوم چه یهودیان دی هُم نصاریٰ او صابیان (د هغوئ نه) چه چا هُم په الله او ورځ د آخرت (کامل ایمان) راوړے وی او هغوی نیک عمل کوی نو هغوی د پاره د هغوی د رب سره د هغو (مناسب) اجر دے هغوئ ته به نهٔ خو څه د راتلونکی وخت په حقله څه قسم ویره وی او نهٔ به په تیر وخت غمژن شی۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ۭ خُذُوْا
مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿٦٣﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) مونږ چه تاسو نه پخه وعده اخستے وه او طور مو ستاسو د پاسه اوچت کړے وُو (او وئیلے مو وُو چه) (هر څه) چه مونږ تاسو ته درکړی دی د غه ټینګ اونیسی او هر څه چه دے کښے دی هغه یاد کړئ وے چه تاسو متقیان جوړ شئ۔

ثُمَّ تَوَلَّيْتُم مِّن بَعْدِ ذَٰلِكَ ۖ فَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَكُنتُم مِّنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٦٤﴾

بیا دَ دے (واضح هدایت په لاس راتلو) نه پس (هُم) تاسو مخ اوګرزولو او کچرے په تاسو دَ الله فضل او دَ هغه رحمت نهٔ وے شوے نو تاسو به خامخا نقصان موندُونکو نه شوے وئ.

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿٦٥﴾

او تاسو دَ هغه خلقو (دَ انجام) نه څوک چه له تاسو (نه وُو) او دَ سبت په حقله ئے زیاتے کړے وُو، خبر شوی یئ. په دغه سوب مونږ هغوی ته ووئیلی وُو چه (رخئ) ذلیل بیزوګان شئ.

فَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٦٦﴾

بیا نو مونږ دا (واقعه) دَ هغه (خلقو) دَ پاره هُم چه (هغه وخت) موجود وُو او دَ دے (وقوعے) نه پس راتلونکے خلقو دَ پاره هُم (موجب دَ) عبرت او دَ متقیانو دَ پاره (موجب دَ) نصیحت اوګرزوله.

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا بَقَرَةً ۖ قَالُوا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۖ قَالَ أَعُوذُ بِاللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ ﴿٦٧﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) چه هرکله موسیٰ خپل قام ته اووے چه الله تاسو ته دَ غوا دَ حلالولو حکم درکوی، هغوئ اووئیل ولے تا مونږ دَ خندا (ټوکی) کړی یُو؟ موسیٰ اووے زهٔ (دَ دے نه) دَ الله پناه غواړم چه په (دا سے کار کولو) جاهلانو سره شم.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِيَ ۚ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ عَوَانٌ بَيْنَ ذَٰلِكَ ۖ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ ﴿٦٨﴾

هغوی اووئیل څمونږ دَ پاره خپل رب نه دُعا اوغواړه چه مونږ ته ښکاره او ښائی چه هغه (غوا) څنګه ده؟ هغه (یعنی موسیٰ) اووے چه هغه فرمائی هغه دا سے غوا ده چه نهٔ زَړه ده او نهٔ سختئ بلکه دَ دے په منځ کښے پوره ځوانه ده. نو څکه چه کوم حُکم تاسو ته درکیګی هغه په ځائے راوړئ.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا لَوْنُهَا

هغوی اووے څمونږ دَ پاره دَ خپل رب نه (بیا)

قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿۶۹﴾

دُعا اوغواړه چه مونږ ته ښکاره اوښائي چه دَ هغې رنګ څنګه دے؟ (موسیٰ) اووے هغه فرمائي چه هغه يو زيړ رنګے غوا ده ـ دَ هغې رنګ ډير شوخ دے (او) هغه دَ ليدُنکو ډيره خوښيږي ـ

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۙ اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ۗ وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿۷۰﴾

هغوی اووے څه مونږ دَ پاره خپل رب نه (بيا) دُعا اوغواړه ـ چه هغه مونږ ته ښکاره اوښائي چه هغه (غوا) څنګه ده؟ مونږ ته خو دَ داسے قِسم (رتهوے) غوا ګانے يوشان ليدے شي او (يقين اوکړئ چه) کچرے الله اوغواړي نو مونږ به خامخا هدايت قبول کړو ـ

قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيْهَا ۗ قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۱﴾ ع ۸

(موسیٰ) اووے هغه فرمائي چه هغه داسے غوا ده چه نهٔ خو جغ ته اچولے شوے ده چه يوے کوی او نهٔ پيتي اولوی ـ بالکل تندرسته ده په هغې کښے بل رنګ نهٔ موندے کيږي ـ هغوی اووے اوس تا (مونږ ته) حقيقت اوښودو دغه شان هغوی هغه (غوا) حلاله کړه هرڅو که هغوئ داسے کولو ته تيار نهٔ وُو ـ

وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا ۗ وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۷۲﴾ ج

او (هغه وخت هُم ياد کړئ) چه (په قول دَ ستاسو) تاسو يو سړے قتل کړو بيا تاسو دَ هغهٔ په قتله اختلاف اوکړو (وے حال دا چه څه چه) تاسو پټول الله دَ هغې ښکاره کوونکے وُو ـ

فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ۗ كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى ۙ وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۳﴾

په دے مونږ اووے چه دا (واقعه) دَ دے (نفس) سره شوُ څخے نورو واقعاتو سره اوکورئ (بيا به تاسو ته حقيقت معلوم شي) الله دغسے مړی ژوندی کوی او تاسو ته خپلے نښے ښائي څکه چه تاسو پوهه شئ ـ

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ
اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً ؕ وَاِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ
الْاَنْهٰرُ ؕ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ ؕ
وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ؕ وَمَا اللّٰهُ
بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝۷۴

دَ دے نه پس بیا ستاسو زړونه سخت شول لکه چه هغه دَ کا نړو په شان سخت بلکه دَ هغے نه هُم زیات سخت دی او په کا نړوکښے په رښتیا ځنے داسے هُم دی چه دَ هغے نه دریابونه بهیګی او دَ هغے نه بعض داسے هُم شته دے چه اوچوی نو هُم بهٔ ترے راووزی او په دے (زړونو) کښے (هُم) بعضے داسے دی چه دَ الله دَ ویرے نه (معافی غواړی) پرېوزی (او هر څه) چه تاسو کوئ الله دَ هغے نه هیڅکله ناخبره نهٔ دے۔

اَفَتَطْمَعُوْنَ اَنْ يُّؤْمِنُوْا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ
يَسْمَعُوْنَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ يُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ
وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝۷۵

(اے مسلمانانو!) ولے تاسو اُمید لرئ چه هغه (یهودیان به) ستاسو خبره اومنی ولے حال دا چه په هغوکښے څه خلق داسے دی چه دَ الله کلام اوری بیا په هغے دَ ځان پوهولو نه پسته ورانه وی، او هغه (دَ دے) دَ عمل بدے نتیجے ښهٔ پیژنی۔

وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚۖ وَاِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ
اِلٰى بَعْضٍ قَالُوْٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ
لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝۷۶

او هرکله چه دا خلق مومنانو سره پیښی شی نو وائی چه مونږه مومنان یُو او هرکله چه یو بل سره ځان له یوځائے شی نو (په یو بل الزام لګوی) ولے تاسو هغوئ ته هغه خبرے ښائی کوے چه الله تاسو ته ښائیلی دی۔ دَ دے نتیجه به دا شی چه هغوی به دَ دے (معلوماتو) په ذریعه دَ الله مخکښے په تاسو حجت قائموی ولے تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۝۷۷

ولے دوئ (په دے خبره) نهٔ پوهیږی چه څه هغوی پټوی او څه ښکاره کوی الله هغه پیژنی۔

وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ
اِلَّا يَظُنُّوْنَ ۝۷۸

او په هغوئ کښے ځنے نالوستی دی چه څه دَ دروغو خبرو نه سوا دَ خپل کتاب هیڅ علم نهٔ لری او هغوی

هسې په ټک لګیادي۔

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ ﴿۷۹﴾

بیانو څوک چه په خپلو لاسونو کتاب لیکي او بیا دَ دې په ذریعه (څخه) لږ شان قیمت حاصلولو دَ پاره وائي چه دا (کتاب) دَ الله دَ طرف نه دے، ددې دَ پاره (لویسخت) عذاب (مقدر) دے بیا (مونږ وایو چه) دَ دوی دَ پاره دَ دوی دَ لاسونو دَ لیک په سوب (هُم) عذاب (مقدر) دے چه هغوی ئې ګټي۔

وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً قُلْ اَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗٓ اَمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۰﴾

او هغوئ وائي چه څو دَ شمیرو ورځو نه سوا به مونږ (دَ دوزخ) اور هیڅکله نۀ سیزي نو (هغوی ته) او وایه ولے تاسو دَ الله دَ درګاه نه لوظ اخستے دے څه؟ (کچرے دا سے وي) نو هغه به هیڅکله دَ خپلې وعدے نه خلاف نۀ کوي یا تاسو دَ الله پحقله دا سے خبرے کوئ چه دَ هغې تاسو ته (هُم) علم نشته دے۔

بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۱﴾

ولے نا، چه کوم خلق هُم څه قسم بدي ګټي او دَ هغوی ګناه به دَ (هغوی) (څلورو طرفونه) ګیر کړي هغوی په دوزخ کښې (پریوتونکي) دي هغوی به دے کښې (تل) او سیزي۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۲﴾ ع ۹ ۱۱ ۹

او کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوی نیک عمل کوي هغوی جنت (ته تلونکي) دي هغوی به دے کښې (تل) او سیزي۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هرکله چه مونږ دَ بني اسرائیلو نه پوخ لوظ اخستے وُو چه تاسو به دَ الله نه سوا دَ هیچا عبادت نۀ کوئ او مور پلار سره

وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ ؕ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْكُمْ وَاَنْتُمْ
مُّعْرِضُوْنَ ۸۴

به دَ احسان (سلوک) کوئ او (دغه شان) خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو سره هُم، او دا (وعده هُم) اخستے وه) چه دَ خلقو سره به په نرمئ خبرے کوئ او نمونځ به قائم ساتئ او زکوٰة به ادا کوئ وے (دے نه پسته) تاسو کښے یو نیم نه سوا (باقی) ټول (په جمع) په شا شوئ۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُوْنَ دِمَآءَكُمْ وَلَا
تُخْرِجُوْنَ اَنْفُسَكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ وَاَنْتُمْ
تَشْهَدُوْنَ ۸۵

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هر کله چه مونږه ستاسو نه لوظ اخستے وه چه تاسو به (خپلو کښے) خپلے وینے نهٔ تو یوئ او خپل ځانونه (یعنی دَ خپل قام خلق به) دَ خپلو کورونو نه نهٔ اوباسئ او تاسو (دَدے لوظ پچقله مدام) گواهی ورکړے ده او تلیا دے ورکوئ۔

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا
مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ
وَالْعُدْوَانِ وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ
مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ
الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ
ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ
يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا
تَعْمَلُوْنَ ۸۶

بیا تاسو خلق یئ چه (سره دَ دے وعدے) په خپلو کښے یو بل قتلوئ او په خپلو کښے دَ یو ټولی لره په گناه او ظلم سره (دَ هغوئ دَ دښمنانو) دَ مدت په طور دَ هغوئ دَ کورونو نه اوباسئ او کچرے هغوئ تاسو له دَ قیدیانو په حیث (مدت غوښتو له) راشی نو تاسو په فدیه هغوئ را خلاص کړئ وے په حقیقت کښے دَ هغوی دَ (کورونو نه) ایستل (هُم) په تاسو حرام کړزیدلی دُو۔ نو وے تاسو دَ کتاب په یوه برخه ایمان راوړئ او دَ یوے برخے نه انکار کوئ بیا نو تاسو کښے چه څوک داسے کوی دَ هغوی سزا دَ دے (دُنیا) په ژوند کښے (هُم) رسوائی (اخستو نه) سوا نور څهٔ دی (چه هغوی ته به رسیږی) او هغوئ ته به دَ قیامت په ورځ دَ دے نه هُم سخت عذاب ورکولے شی

اوهرڅه چه تاسو کوئ الله دَ هغې نه هیڅکله بے خبره نهٔ دے۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ ﴿٨٦﴾ ع

او دا هغه خلق دی چا چه دَ دے (دُنیا) ژوند پسته راتلُونکی (ژوند) غوره کړزولے دے نوځکه نهٔ خو به دَ هغوئ نه عذاب کمولے شی او نهٔ به دَ هغوی (څه په بل رنګ کښے) مدت کیګی۔

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهِ بِالرُّسُلِ ۖ وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ ۗ أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ ﴿٨٧﴾

او مونږ (یقیناً) موسیٰؑ ته کتاب ورکړے وُو او دَ هغهٔ نه پس مونږه (هغه) رسُولانو ته چه (هغوئ تاسو پیژنئ هغهٔ) پسے اولیږل او عیسیٰؑ ابن مریم ته (هُم) مونږ ښکاره نښے ورکړے او دَ روح القدس په ذریعه مو هغوی ته طاقت او بخښلو روے تاسو دَ تهولو مقابله اوکړه (نو بیا (هُم تاسو اووائی) چه وے (دا خبره نا خوښه نهٔ ده چه) هرکله هُم تاسو ته کوم رسُول دے (تعلیم) سره راغلو چه کوم ستا سو نفس نهٔ قبلولو نو تاسو دَ تکبر (مظاهره) اوکړه نو اوشوه دا چه ځنے تاسو دروغژن اوګنړل او ځنے مو قتل کړل۔

وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَلْ لَعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او (مونږ ته معلومه ده چه) هغوی (دا هُم) وییلی دی (چه) ځمونږ زړونه خو په پردو کښے دی (خو دا خبره) نهٔ ده بلکه دَ هغوئ دَ انکار په سوب په هغوئ لعنت کړے دے بیا نو هغوئ ډیر کم ایمان راوړی۔

وَلَمَّا جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ ۚ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى

او هرکله چه هغوئ ته دَ الله دَ طرف نه یو کتاب راغے چه دَ هغے (کتاب پیشګویانے) چه هغوئ سره دے (ریښتیا کوُونکی دی نو سره دَ دے چه

الْكٰفِرِيْنَ ﴿٨٩﴾

روښنے دے (خلقو دَ الله دَ طرف نه) په کافرانو دَ برے
(موندلو دُعا کانے) غوښتے۔ هرکله چه هغوئ لره
هغه څیز راغے کوم چه هغوی اوپیژندو نو دَ هغے
نه ئے انکار اوکړو۔ بیا په دا سے کافرانو دَ الله
لعنت دے۔

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ
بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ
عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ۭ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ
مُّهِيْنٌ ﴿٩٠﴾

هغه امر ډیر زیات خراب دے چه دَ هغے په ځائے
هغوی خپل ځانونه خرڅ کړی دی او هغوئ دَ هغوی
دَ الله دَ راستولی کلام په دے خبره په وران کارئ
انکار کوی چه الله په خپلو بندګانو کښے په چا غواړی
(وے) خپل فضل کوی۔ بیا نو دا خلق په پرله پسے
غضب آوختی دی۔ او دَ کافرانو دَ پاره رسوا کوونکے
عذاب (مقدر) دے۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَآ
اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ ۤ وَهُوَ الْحَقُّ
مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ۭ قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ
مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٩١﴾

او هرکله چه دوئ ته اووئیلے شی چه څه الله راستولی
دی په هغے ایمان راوړی نو هغوی وائی چه مونږ (خو)
په هغے ایمان راوړو څه چه مونږ ته رالیږلی شوی
دی او (دے وینا سره) دے نه پسته راتلونکی (کلام)
نه هغوئ انکار کوی وے حال دا دے چه هغه دغه
(کلام) چه هغوئ سره دے رښتونے کړے او په
پوره دول رښتونے (ثابت شوے) دے۔ ته
(هغوئ) ته اووایه کچرے تاسو (په رښتیا) مومنان
یئ نو بیا تاسو ولے دَ دے نه روښے دَ الله دَ نبیانو
قتل نه لیوا له پاتے شوی یئ۔

وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ
مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿٩٢﴾

او موسیٰ په رښتیا تاسو ته ښکاره ښکاره نښنو سره
راغلے وه۔ بیا (هم) تاسو دَ هغهٔ (غر ته تلو نه) پس
په ظُلم (خدائے تعالیٰ پریخوئ سخے مو (معبود) جوړ کړو۔

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ ۖ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا ۖ قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ۚ قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُمْ بِهِ إِيمَانُكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿۹۳﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هرکله چه تاسو نه مونږ پوخ لوظ اخستے وه او طور مو په تاسو اوچت کړے وُو (دے وینا سره چه) هرڅه چه مونږ تاسو ته درکړی دی هغه کلک اونیسئ او دَ هغهٔ (یعنی دَ الله) اطاعت کوئ په دے (تا سو نه چه کوم خلق هغه وخت مونږ ته مخاطب وُو) هغوی وئیلی وو چه (دیره ښه) مونږه واوریدهٔ او (مونږ دا هُم وائُوچه) مونږه (دَ دے حکم) دَ منلو فیصله کړے ده او دَ دوئ دَ کفر له کبله دَ دوئ په زړونو کښے دَ سخی (یعنی دَ هغه دَ محبت جذبے) کور ځائے اونیوُو (نو هغوی ته) او وایه کچرے تاسو (څنګه چه دعویٰ کوی) مومنان یئ نو هغه کار چه دَ کوم تاسو ته ستاسو ایمان حُکم درکوی ډیر خراب دے۔

قُلْ إِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِنْدَ اللَّهِ خَالِصَةً مِنْ دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۹۴﴾

تهٔ (هغوی ته) او وایه کچرے دَ الله په نزد دَ آخرت کور دَ (باقی) خلقو په ځائے یوازے هُم تاسو لره دے نو کچرے تاسو (په دے دعویٰ کښے) رښتنے یئ نو دَ مرګ خواهش اوکړئ۔

وَلَنْ يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿۹۵﴾

او (اے مسلمانانو! یاد ساتئ چه) هرڅه چه دَ هغوی لاسونو وړاندے استولی دی دَ هغے له کبله به هغوی هیڅکله هُم دَ دا (قسم مرګ) ارمان نهٔ کوی او الله ظالمان ډیر ښهٔ پیژنی۔

معانقة ۲ عند المتأخرين

وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَاةٍ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا ۚ يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَنْ يُعَمَّرَ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿۹۶﴾

ع ۱۱

او تهٔ به اوګورے چه په ریښتیا هغوی (هُم) او ځنے هغه خلق (هُم) چه مشرکان دی دَ ټولو خلقو نه زیات دَ ژوند حرص کوی هغوئ کښے (هر) یو (دا غواړی) چه هغهٔ ته زر کاله عمر ورکړے

شی وے حال دا دے چه دا (امر یعنی) دَ هغهٔ
(ډیر) عمر موندل هغه دَ عذاب نهٔ نشی خلاصولے
او هر څه چه هغوی کوی الله هغه وینی۔

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ
بِاِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى
لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٩٨﴾

ته (هغوی ته) او وایه چه کوم سړے په دے سوب
دَ جبرائیل دښمن وُو چه هغه ستا په زړه دَ الله
په حُکم دا (کتاب) نازل کړے دے چه هغه (کلام)
چه دَ دے نه وړومبے موجود دے. رښتنے کُوونکے
دے او مومنانو دَ پاره هدایت او زیرے دے۔

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ
وَمِيْكٰىلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٩٩﴾

(نو هغه ډیادلری) چه کوم سړے (هُم) او دَ هغه
فرښتو او دَ هغه دَ رسُولانو او دَ جبرئیل او میکائیل
دښمن وی نو دَ (داسے) کافرانو الله هُم په
(ښتیا دښمن دے۔

وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا
الْفٰسِقُوْنَ ﴿١٠٠﴾

او مونږ په تا باندے یقیناً ښکاره ښکاره نشانات
نازل کړی دی او دَ نامنُونکو نه سوا دَ هغو نه
څوک انکار نهٔ کوی۔

اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ ۭ بَلْ
اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠١﴾

او ولے (دا بده خبره نهٔ ده چه) کله هُم هغے
خلقو څه لوظ اوکړو نو دَ هغوی نه یو ډلے هغه
مات کړو (دا نهٔ ده) بلکه دَ هغوی نه څو کسانو
ایمان ته جوخت هُم نهٔ دی۔

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا
مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ
اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٢﴾

او هر کله چه هغوی ته دَ الله دَ طرف نه یو داسے
رسُول راغے چه دَ دے (کتاب) چه هغوی سره دے
رښتیا کُوونکے دے نو دَ هغه خلقو نه چا ته چه
(هغه) کتاب ورکړے شوے وُو یو فریق دَ الله (تازه)
کتاب خپلے شاته اوغورزولو لکه چه هغوی (هغے
نه) دَ سره بے خبره دی۔

وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ وَ
مَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ
النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ
هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ۗ وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى
يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۗ فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا
مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ۗ وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ
بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ
وَلَا يَنْفَعُهُمْ ۗ وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِى
الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۗ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ۗ
لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٢﴾

او بیا (یهودیان) هغې (طریق عمل) پسې سرشول چه کومې پسې دَ سلیمانؑ دَ حکومت په زمانه کښې (دَ هغه دَ حکومت) باغیان گرځیدل او سلیمانؑ کافر نه وو بلکه دَ (هغهٔ) باغیان کافر وُو هغوی خلقو ته دهوکه ورکوونکی خبرې ښودلې او (په خپل خیال) دَ دې خبره (هُم نقل کوی) چه په بابل کښې په دوُو فرښتو هاروت او ماروت نازله شوې وه حال دا چه هغه دواړو (خو) به چه ترڅو دا نهٔ وُو وئیلی چه مونږ ه (دَ خدائے دَ طرف نه) دَ آزمیښت په طور (مقرر شوې) یُو. دَ دې دَ پاره (اې مخاطب! ځمونږ دَ حُکمونو نه) انکار مهٔ کوه هیچا ته (ځه) نهٔ ښودل چه په هغې به هغه (خلقو) دَ هغه دواړو نه هغه خبرې زده کولې چه دَ هغې په ذریعه دَ سړی او دَ ښځې په منځ کښې فرق راوستو او هغوی دَ الله دَ حُکم نه سوا هیچا ته هُم دَ دې (خبرې) له کبله ضرر نه رسولو او (دَ دې په مقابله کښې) دا (یعنی دَ رسُول الله صلی الله علیه وسلم دښمنان) خو هغه خبرې زده کوی چه هغوی ته به ضرر ورکوی او نفع به نهٔ ورکوی او دا خلق په (یقینتیا) په دې پوهه شوی دی چه څوک هغه (لار) اونیسی په آخرت کښې دَ هغه څه هُم برخه نشته او هغه څیز چه دَ هغې په بدل کښې هغوی خپل ځانونه خرڅ کړی دی ډیر خراب دې کاش چه دوی پوهیدې۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ۗ
لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٣﴾ ع

او کچرې دې خلقو ایمان راوړې او تقویٰ ئې خپلولې نو هغوی ته به معلومه وې چه (هُم) دَ

ع ۱۲

الله دَ طرف نه په لاس را تلونکے بدله دَ ټولو نه ښه (بدله) ده کشکے چه دوئ پوهیدے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۰۴﴾

اے ایماندارو! (رسول سره چه مخاطب شئ) راعنا مهٔ وائی۔ او اُنظرنا وائی او (په توجه دَ هغه خبرهٔ) آورئ او (یاد لرئ) چه دَ منکرو دَ پاره سخت عذاب (مقدر) دے۔

مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۰۵﴾

اهل کتابو نه او دَ مشرکانو نه هُم چه کوم خلقو (زمونږ دَ رسولانو نه) انکار کړے دے هغوئ نهٔ خوښوی چه تاسو ته دَ ستاسو دَ رب دَ طرف نه څه قسم خیر (او برکت) اورسی او (هیروی چه) الله څوک اوغواړی دَ خپل رحمت دَ پاره ئے مخصوصوی۔ او الله ډیر لوئے فضل کوونکے دے۔

مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ؕ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۰۶﴾

هر هغه پیغام چه مونږ منسوخ کړو یا هیر کړو نو دَ هغے نه ښهٔ یا هغه شان (پیغام) مونږه (بیا دنیا ته) راوړو وے تا ته معلومه نهٔ ده چه الله په هر یو امر (چه دَ هغے هغه اراده اوکړی) پوره پوره قادر دے۔

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۰۷﴾

وے تا ته معلومه نهٔ ده چه دَ آسمانونو او مزکو بادشاهت هُم دَ الله دے او دَ الله نه سوا ستاسو څوک دوست شته او نهٔ څوک مددگار۔

اَمْ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَسْـَٔلُوْا رَسُوْلَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوْسٰى مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ يَّتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۱۰۸﴾

وے تاسو دَ خپل رسول نه داسے سوال کول غواړئ چه څنګه (دَ دے نه) مخکښے موسیٰ نه سوالونه شوے وُو۔ او (هیره وئ چه) کوم سړے کفر په ایمان بدل کړی نو پوه شئ چه هغه دَ نیغے لارے نه ولو ږیدو۔

وَدَّ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ اِيْمَانِكُمْ كُفَّارًا ۚۖ حَسَدًا مِّنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۚ فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٠٩﴾

د اهل کتابو نه ډیر خلق پس د دے نه چه په هغو حق ښکاره شوے دے د هغه حسد له کبله چه هُم د هغوی د خپلو ځانونو نه (پیدا شوے) دے، غواړی چه ستاسو د ایمان راوړو نه پس تاسو بیا کافران کړی بیا نو تاسو هغه وخت پورے چه الله خپل حُکم نازل کړی هغوی معاف کړئ او (هغوی) پریږدئ۔ الله په رښتیا په هرلو امر پوره (پوره) قادر دے۔

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۭ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿١١٠﴾

او لمونځ د (شرطونو سره) قائم ساتئ او زکوٰة ورکوئ او (یاد ساتئ چه) کومه نیکی تاسو د خپل ځان د پاره مخکښے اولیږئ تاسو به هغه د الله سره مومئ۔ الله ستاسو عملونو ته یقیناً گوری۔

وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۭ تِلْكَ اَمَانِيُّهُمْ ۭ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١١١﴾

او هغوی (یعنی یهود او مسیحی دا هُم) وائی چه جنت ته به سوا د هغه (خلقو) نه چه یهودی وی یا مسیحی وی هیڅکله څوک نهٔ ځی۔ دا (رتش په توره) د هغوی غوښتنے دی ته (هغوی) ته اووایه کچرے رښتنی یئ نو خپل دلیل پیش کړئ۔

بَلٰى ۚ مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗٓ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۠ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١١٢﴾

(او اوښائ چه نور خلق به) ولے نهٔ (داخلیږی) هرڅوک چه خپل ځان الله ته اوسپاری او هغه ښه کار کوونکے (هُم) وی نو د هغوی د پاره د الله د طرف نه بدله (مقرر) ده او هغه (خلقو سره) به نهٔ (د بیا د پاره) څه قسم ویره وی او نهٔ به هغوی (په تیر نقصان) غمژن وی۔

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ ۠ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ

او یهود (وائی چه مسیحی څه (رښتنے) خبرہ باندے قائم نهٔ دی او مسیحی وائی چه یهود څه په (رښتنے)

كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿١١٣﴾

خبره باندے قائم نهٔ دی وے حال دا چه هغوی دواړه (هُم یو) کتاب (یعنی تورات) لولی۔ هُم دغه شان هغه (نور) چه علم نهٔ لری هُم دَ هغوی غوندے خبره ئے کوله۔ بیا چه کومه (خبره) کښے دوی اختلاف کولو دَ هغے پخقله به الله دَ قیامت په ورځ دَ هغوی په منځ کښے فیصله اوکړی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى فِيْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ ۬ؕ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿١١٤﴾

او دَ هغه (سړی) نه زیات څوک ظالم (کیدے) شی چا چه دَ الله دَ جماتونو نه (خلق) راوګرزول چه په هغے کښے دَ هغه نوم واخستے شی او دَ هغو ورانی پسے شو۔ دغه (خلقو) لره پکار نهٔ وُو چه هغه (جماتونو ته) ورننوے وے (دَ خدائے نهٔ) په ویره۔ دَ هغوی دَ پاره دنیا کښے (هُم) رسوائی ده او په آخرت کښے (هُم) دَ هغوی دَ پاره لوئے عذاب (مقدر) دے۔

وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿١١٥﴾

او نمرخاته او نمرپرېوانه هُم دَ الله دی۔ دَ دے دَ پاره کوم طرف ته چه تاسو مخ اړوئ هُم هغه پلو به دَ الله پام وی۔ الله په (بښنتیا وسعت ورکوونکے راو) ډیر زیات پوهیدونکے دے۔

وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ لَّهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿١١٦﴾

او هغوی وائی چه الله (ځان لره) یو ځوئے جوړ کړے دے (دَ هغوی خبره صحی نهٔ ده) هغه (خو دَ هرے کمزورئے نه) پاک دے بلکه هرڅه چه په آسمانونو او مزکه کښے دی دَ هغهٔ دی۔ ټول دَ هغه حُکم منونکی دی۔

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿١١٧﴾

هغهٔ دَ آسمانونو او زمکے نه (بے دَ څه روښے نمونے) پیدا کوونکے دے۔ او هرکله چه هغه دَ څه امر (عالم وجود ته دَ راوړلو) فیصله اوکړی

نو دَ هغې پحقله بس دا فرمائي چه ته اوشه نو هغه
اوشي۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوْ تَاْتِيْنَآ
اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ؕ
تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ؕ قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۹﴾

او هغه خلق چه دَ خدائے دَ حکمتونو ) علم نهٔ لری
وائي چه الله ولے مونږ سره مخ په مخ خبرے نهٔ
کوی ؟ یا ( ولے ) مونږ ته څه نشان ( نهٔ ) رازی ؟
دغه شان ( بالکل ) دَ هغوی غوندے خبره ( هغوی
هُم ) کوله به۔ چه دَ دوئ نه دَ مخکښے ( زمانے خلق )
وُو دَ هغوی تولو زړونه یو رنګ شوے دی۔ مونږ خو
دا سے خلقو دَ پاره چه یقین کوی هر قسم نشانات
ښکاره بیان کړی دی ( ولے دا خلق نهٔ منی )۔

اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ۙ وَّلَا تُسْئَلُ عَنْ
اَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ﴿۱۲۰﴾

مونږ ته په ریښتیا زیرے ورکوونکے او ویروونکے
( جوړ کړے ) دَ حق ( او راستئ ) سره مولیږلے ئے
او دَ دوزخیانو پحقله به لتا نه څه پوښتنه نهٔ
کیږی او ( یاد ساتئ چه ) هرکله چه تهٔ دَ هغه

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ
مِلَّتَهُمْ ؕ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَلَئِنِ
اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِيْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ
مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۲۱﴾

دین پسے لاړ نشے۔ یهودیان به لتا نه هیڅکله خوشحاله
نشی او نهٔ به عیسائیان ( خوشحاله شی ) ته ( هغوئ
ته ) اووایه چه دَ الله هدایت هُم په ریښتیا
اصل هدایت دے او کچرے ( اے مخاطبَ ! )
تهٔ دَ دے علم نه پس ( هُم ) چه تا ته راغلے دے
دَ هغوی غوښتنو پسے لاړے نو دَ الله ( دَ طرف )
نه به ستا څوک دوست وی او نهٔ مددګار۔

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ
يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ ع ۱۴

( هغه خلق ) چا ته چه مونږ کتاب ورکړے دے
هغوی دے پسے ( دا سے ) څنګه چه دے پسے تلل
پکار دی۔ هغه خلق په دے ( پوخ ) ایمان لری
او کوم خلق چه دَ دے نه انکار اوکړی هغه نقصان

مونږ ونکی دی۔

يٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿۱۲۲﴾

اے بنی اسرائیل! زما هغه احسان چه ما په تاسو کړے دے یادکړئ او (دغه خبره هم) چه ما تاسو ته په ټولو جهانونو فضلیت درکړے وُو۔

وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا لَّا تَجۡزِي نَفۡسٌ عَن نَّفۡسٖ شَيۡـٔٗا وَلَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا عَدۡلٞ وَلَا تَنفَعُهَا شَفَٰعَةٞ وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ ﴿۱۲۳﴾

او د هغه ورځے نه اوویریږئ چه کله به یو سړے هم د بل سړی په ځائے نشی اودریدے او نه به د هغه نه د څه قسم معاوضه قبلیدے شی او نهٔ به څه سفارش فائده ورکوی او نهٔ به د هغه امداد کیګی۔

وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٖ فَأَتَمَّهُنَّۖ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامٗاۖ قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِيۖ قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِي ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿۱۲۴﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه ابراهیمؑ د هغه ربّ د بعضو خبرو په سوب اُزماشیلو او هغهٔ هغه سرته اورسولے (په دے الله) او فرمائیل چه زهٔ تا لره یقیناً د خلقو امام کرزُونکے یم۔ (ابراهیمؑ) اووئیل او څما د اولاد نه هُم (امام جوړ کړه) (الله) او فرمائیل (صحی ده وے) څما وعده د ظالمانو د پاره نهٔ ده۔

وَإِذۡ جَعَلۡنَا ٱلۡبَيۡتَ مَثَابَةٗ لِّلنَّاسِ وَأَمۡنٗا وَٱتَّخِذُواْ مِن مَّقَامِ إِبۡرَٰهِـۧمَ مُصَلّٗىۖ وَعَهِدۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيۡتِيَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلۡعَٰكِفِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴿۱۲۵﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه مونږ هغه کور (یعنی کعبه) د خلقو د بیا بیا د غونډیدو ځائے او د امن (ځائے) جوړ کړے وُو او (حکم مو ورکړے وُوچه) د ابراهیمؑ د اودریدلو د ځائے نه د نمونځ مقام جوړ کړئ۔ او مونږ ابراهیمؑ او اسمٰعیلؑ ته په کلکه حُکم ورکړے ووچه څما د کور د طواف کوُونکو او اعتکاف کوُونکو او رکوع کوُونکو او سجده کوُونکو د پاره پاک (او صفا) ساتئ۔

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗۤ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۲۶﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) کوم وخت چه ابراهیمؑ وئیلے وُوچه اے څمارب! دَ دے (ځائے نه) یو دَ امن ښار جوړکړه او دَ دے اوسیدُونکو کښے چه څوک هُم په الله او په راتلُونکی ورځ ایمان راوړی هغوئ ته (دَ هرقسم) میوے ورکړه - (ځواب کښے الله) اوفرمائیل چه کوم سړی کفر اوکړو هغه ته به (هُم) ږهٔ لږ وخت دَ پاره فائده وررَسوم بیا به هغه په زور دَ دوزخ عذاب له بوځم او دا ډیرخراب انجام دے۔

وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ ؕ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۲۷﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه ابراهیمؑ دَ هغے کور بنیادونه اوچتول او (ورسره) اسمٰعیلؑ هُم (او هغوی دواړو به دا وئیل چه) اے څمونږه ربّ! څمونږ له طرفه (دا خدمت) قبول کړه هُم ته ځئے چه) ډیراوریدُونکے (او) ډیرپوهیدُونکے یئے۔

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَاۤ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ ۪ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۲۸﴾

اے څمونږه رب! او (مونږ دا هُم خواست کوو چه) مونږ دواړه (خپل حُکم منُونکی (بندګان) جوړکړه او څمونږ اولاد کښے هُم خپل یوحُکم منُونکے جماعت (جوړکړه) او مونږ ته څمونږ (مناسب دَحال) دَعبادت طریقه اوښایه او مونږ ته (خپل) فضل سره پام اوکړه یقیناً ته دَ (خپلو بندګانو طرف ته) ډیرپام کوُونکے (او) بیابیارحم کوُونکے ئے۔

رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۲۹﴾ ع

او اے څمونږه رب (څمونږ دا هُم خواست دے چه ته هُم دَ دوئ نه یو داسے رسُول راولیږه
ع ۱۵ ۹ ۱۵ چه هغوئ ته ستا آیاتونه لولی او اوروی او هغوی ته کتاب او حِکمت ښائی او هغوی پاک کړی یقیناً هُم

ته غالب (او) د حکمتونو څاوند يې۔

وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٣٠﴾

او د هغه سړي نه سوا چا چه خپل ځان پخپله هلاک کړے وي د ابراهيمؑ د دين نه څوک مخ اړولے شي۔ او مونږ يقيناً هغه (دے) دُنيا کښے هُم غوره کړے وو او هغه په آخرت کښے به هُم يقيناً نيکانو کښے (شميرلے) وي۔

اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗۤ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٣١﴾

هر کله چه د هغه رب هغه ته اووے چه (څمونږ) فرمان برداري اختيار کړه هغه په (ځواب کښے) اووے چه زهٔ (ځو د آګاهونه) د ټولو جهانونو د رب فرمان منونکے يم۔

وَوَصّٰى بِهَاۤ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِىَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿١٣٢﴾

او ابراهيمؑ خپلو ځامنو ته او (د هغه شان) يعقوبؑ هُم (خپلو ځامنو ته) د دے خبرے په کلکه اووے (او وے وئيل چه) اے ځما ځامنو! الله يقيناً دا دين ستاسو د پاره غوره کړے دے بيا نو هيڅکله مهٔ مرئ ولے دا سے حال کښے چه تاسو (د الله) پوره حکم منونکي يئ۔

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ ۙ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِىْ ؕ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚۖ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿١٣٣﴾

تاسو هغه وخت وئ هر کله چه يعقوب له (وخت د) مرګ راغے (او) هر کله چه هغه خپلو ځامنو ته اووے چه تاسو به ځما نه پس د چا عبادت کوئ؟ هغوی (ځواب کښے) اووئيل چه مونږ به ستا د معبود او ستا د پلار نيکونو ابراهيمؑ او اسمٰعيلؑ او اسحٰقؑ د معبود چه هُم يو معبود دے عبادت کوُو او مونږ هُم د هغه حکم منونکي يُو۔

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٣٤﴾

دا هغه ډله ده چه (خپل وخت يې تير کړو لاړه) مړه شوے ده څه چه هغوی (اوګټل (د هغے نفع نقصان) هغے له دے او هر څه چه تاسو کول د هغے نفع او

وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۳۵﴾

نقصان ) تاسو دَ پاره دے اوڅه چه هغوی کول دَهغے پحقله به تاسو نه (هيڅ ) پوښتنه نهٔ کيږی-
او ( آيا ستاسو ترغوږه شوه چه ) هغوی دا هُم وائی چه يهوديان يا عيسائيان شئ ( دا سے به ) تاسو هدايت بيا مومئ ( ورهغوی ته ) او وايه ( چه داسے ) نهٔ ده بلکه دَ ابراهيم دَدين ( چه خدائے ته يَهيتهمدُونکے وو ( اختيار کړئ ) او ( زيادسائ چه ) هغه دَ مشرکانو نه نهٔ وُو-

قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِىَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ اُوْتِىَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۖ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾

تاسو اووے چه مونږ به په الله اوهرڅه چه په مونږ نازل شوی دی اوڅه چه په ابراهيمؑ، اسمٰعيلؑ ، اسحٰاقؑ ، يعقوبؑ او ( دَهغه ) په اولادبانديے نازل شوی وو- اوڅه چه موسٰیؑ اوعيسٰیؑ ته ورکړے شوی وُو- او هُم ( دغه شان ) چه څه ( باقی ) نبيانو ته دَ هغوی دَرب دَ لوره ورکړے شوے وو ( په دغه تهوله وحی ) ايمان لرو مونږ هغوی کښے دَيو ( نبی او دَبل نبی ) ترمنځه ( هيڅ ) فرق نهٔ کوُو او مونږ دَهغه حُکم منُونکی يو-

فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِىْ شِقَاقٍ ۚ فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳۷﴾

بيا کچرے هغه خلق ( دا سے ) ايمان راوړی چه څنګه تاسو په دے ( تعليم ) ايمان راوړے دے نو ( بس ) بيا هغوی هدايت اوموندو او کچرے هغوی مخ واړولو نو ( پوهے شئ چه ) هغوی تش په توره اختلاف کولو پسے ( سر ) دی- په دغه صورت کښے به الله تاسو خامخا دَهغوی ( دَ شر ) نه ساتی هغه ډير زيات اوريدُونکے ( او ) ډير زيات پوهيدُونکے دے-

صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ؗ وَّنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

(اے مسلمانانو! مغوی ته او وائی چه مونږ خو به) دَ الله دین (اخیستلو) او دَ دین (دَ ښودلو په کار کښے) دَ الله نه بل څوک ښه کیدے شی او مونږ دَ هغهٔ عبادت کوونکی یو۔

قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ﴿۱۳۹﴾

تهٔ (هغوی ته) او وایه ولے تاسو مونږ سره دَ الله په حقله جنګیګئ ولے حال دا چه هغه څمونږ (هُم) رب دے او ستاسو (هُم) رب دے او څمونږ اعمال څمونږ دَ غاړے دی او ستاسو اعمال ستاسو دَ غاړے او مونږ خو هغه سره دَ اخلاص (تعلّق) لرو۔

اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰی ؕ قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۰﴾

(اے اهل کتابو!) ولے تاسو دا وائی چه ابراهیمؑ او اسمٰعیلؑ او اسحٰقؑ او یعقوبؑ او (دَ هغهٔ) اولاد یهودیان یا عیسائیان وُو۔ تهٔ (هغوی ته) او وایه چه ولے تاسو ښه پوهیږی یا الله؟ او دَ هغه نه زیات ظالم څوک کیدے شی چه هغهٔ ګواهی لره چه هغهٔ سره دَ الله (تعالیٰ) دَ طرف نه ده پټوی او الله دَ هغے نه هیڅکله بے خبره نهٔ دے څه چه تاسو کوئ۔

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۱﴾ ع

دا هغه ډله ده چه (دَ خپلے زمانے پوره کیدو سره) (خپل وخت ئے تیر کړو لاړه) مړه شوے ده۔ څه چه هغے او ګټل دَ هغے (نفع نقصان) دَ هغے په غاړه دے او څه چه تاسو اوګټل دَ هغے (نفع نقصان) ستاسو په غاړه دے او څه چه هغوی کول دَ هغے په حقله به لتاسو نه تپوس نهٔ کیږی۔

سَيَقُوْلُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا ؕ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ؕ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٤٢﴾

کم عقله خلق به خامخا وائی چه دوئی (مسلمانانو) لره (دَ دوئ) دے قبلے نه چه دوی پرے (آگاهُو) وُو کوم څیز اړولی دی۔ ږهرکله چه هغوئ داسے اووائی) نو ږهغوئ ته او وایه چه نمرخاته او نمرپریوا ته دَ الله دی۔ هغه چه چا لره اوغواړی یوه نیغه لار وروښائی۔

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ؕ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٤٣﴾

(ای مسلمانانو ! لکه څنګه چه مونږ تاسو ته نیغه لاره ښودلے ده) دغه شان مو تاسو نه دَ یوے اعلیٰ درجے اُمت جوړ کړے دے چه تاسو په (نورو خلقو) نګران شئ۔ او دا رسول په تاسو نګران وی۔ او مونږه دا قبله چه پرے ته (دے نه آګاهو وے) بس دے دَ پاره مقرر کړے وه چه مونږ هغه چا لره چه دَ دے رسول حُکم منی دَ هغه سړی په مقابله کښے چه په کیتهو واپس کیګی (په ممتاز حیثیت) اوپیژنو او دا (خبره) دَ هغه خلقو نه سِوا چا ته چه الله هدایت ورکړے دے (نورو دَ پاره) واقعی ګرانه ده۔ او الله (داسے) نهٔ دے چه ستاسو ایمانُونه ضائع کړی په تحقیق سره الله په ټولو انسانانو مهربانه او بیابیا رحم کوُونکے دے۔

قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ۖ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ؕ

مونږ وینُو چه تهٔ بیابیا آسمان ته ګورے۔ مونږ به تا خامخا هغه قبلے ته واړوُو چه ته ئے خوښوے (نهٔ رهُم) چه هر چیرته ئے دے طرف ته خپل مخ ګرزوه۔ او کومو (خلقو) ته چه کتاب (یعنی تورات) ورکړے شوے دے۔ هغوئ ته په تحقیق سره

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۴﴾

معلومه ده چه دا دَ (قبلې دَ بدلولو حُکم) ستا دَ رب دَ طرف نه (رالېږلې شوې دی) صداقت دے او څه چه دا (خلق) لګیا دی کوی الله دے نه هیڅکله ناخبره نهٔ دے۔

وَلَىِٕنْ اَتَيْتَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ ۚ وَمَآ اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ۗ وَلَىِٕنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

او که مونږ خلقو ته چه (تا نه آګاهو) کتاب ورکړے شوے دے کچرے ته هغوئ له هر یو (قسم) نشان (هُم) راوړے (نو بیا به هُم) هغوی ستا قبلے ته نهٔ مخ کوی او نهٔ به هغوی کښې څوک (فریق) دَبل (فریق) قبلے ته مخ کوی او کچرے دے نه پس هُم چه تا ته (دَ الله دَ طرف نه) علم ورکړے شوے دے ته دَ هغوئ غوښتنو پسے لاړے نو په تحقیق سره ته به په ظالمانو کښې (شمیر) شے۔

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ۗ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

هغه خلق چا له چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوئ دا (رښتیا داسے) پیژنی لکه چه خپل ځامن پیژنی او په تحقیق سره په دوئ کښې څنے خلق سره دَ پوهے حق پټوی۔

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾ ع

دا (پورته ذکر شوے) صداقت ستا دَ رب دَ طرف نه دے۔ بیا نو ته هیڅکله شک کوؤنکو سره نشے۔

وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ۗ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۴۸﴾

او دَ هر انسان تر مخه څهٔ مقصد وی چه هغه ئے (په خپل ځان) باړ وی۔ بیا نو (باید چه ستا سو تر مخه دا مقصد وی چه) تاسو (دَ) نیکئ (دَ کارونو په حصُول) کښې دَ یو بل نه دَ وړاندے تللو کوشش کوئ۔ تاسو به چه هر

چرته (هُم) یئ الله به تاسو را یوځائے کړی - په تحقیق سره الله په هر اَمر پوره (پوره) قادر دے۔

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾

اوتهٔ چه هرځائے نه هُم اُوزے خپل مخ (راپام) مسجد حرام ته کړزوه او په تحقیق سره دا (حُکم) ستا دَ رب دَ طرف نه (راغلے) صداقت دے او هرڅه (هُم) چه تاسو کوئ الله دے نه هیڅکله ناخبره نهٔ دے۔

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٠﴾

اوتهٔ چه هرځائے ته هُم اوزے خپل مخ (راپام) مسجد حرام ته کړزوه اوتهٔ (هُم) چه هرچرته ئے خپل مخ دے طرف ته کوه - دغو خلقو نه سوا چه دغو (مخالفینو) کښے (دَچا) دَلاسه ظلم شوے دے (رابايد چه دَنورو) خلقو دَ طرف نه په تا څهٔ الزام پاتے نشی - بیا نوتهٔ دغه ظالمانو نه مهٔ ویریږه (دا حکم ما ځکه درکړے دے چه په تا دَ خلقو الزام نهٔ وی) او دا چه زهٔ خپل انعام په تا پوره کړم اوچه تهٔ هدایت اوموے۔

كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴿١٥١﴾ معانقة عند المتاخرين

(دغه شان) لکه چه مونږ په تاسو کښے هُم له تاسو نه یو رسُول استولے دے چه تاسو ته زمونږ آیتُونه اوروی او تاسو پاکوی او تاسو ته کتاب او حِکمت ښائی چه تاسو نه ئے دَ (آګاهو) پته نهٔ وه۔

فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ﴿١٥٢﴾ ع

بیا نو (هر کله چه زهٔ دومره فضل کوُونکے یم نو) تاسو ما یادوئ - زهٔ به (هُم) تاسو یادوم اوځما

تُشکر کوئ اونا شکری م مۀ کوئ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۳﴾

يه هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے صبر او دُعا سره (دَ الله نه) مدد غواړئ په تحقيق سره الله (تعالیٰ) صبر کوونکو سره دے۔

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ۭ بَلْ اَحْيَاۗءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

اوکوم خلق چه دَ الله په لاره کښے اووژلے شی دَ هغوی په حقله (دا) مۀ وائی چه هغوئ مړۀ دی (هغوئ مړۀ) نا بلکه ژوندی دی ولے تاسو نه پوهیږئ۔

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ۭ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾

او مونږ به ستاسو ازميښت څه قدرے په ويره او لوږه او دَ مالُونو، او ځانونو او دَ ميوو دَ کمئ (په ذريعه) څامخا کوؤ۔ او (اے رسوله!) ته (دغو) صبر کوُونکو ته زيرئ واوروه۔

الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿۱۵۶﴾

چه په هغوئ هرکله (هُم) څه مصيبت راشی (نو زړه نه بائيلی بلکه دا) وائی چه مونږ (خو) هُم دَ الله يُو۔ او هغهٔ ته به ځُو۔

اُولٰۗىِٕكَ عَلَيْهِمْ صَلَوٰتٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۣ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُهْتَدُوْنَ ﴿۱۵۷﴾

دا هغه خلق دی چه وربانديے دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه برکتُونه (نازل) دی او رحمت (هُم) او هُم دا خلق هدايت موندونکی دی۔

اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَاۗىِٕرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ۭ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۵۸﴾

په تحقيق سره صفا او مروا دَ الله نښانانو کښے دی۔ بيا نو هرڅوک چه دَ دے کور (يعنے کعبے) حج يا عمره اوکړی په هغهٔ دَ دغو ترمنځهٔ په تيز تللو هيڅ ګناه نشته۔ او هرڅوک چه په خوشحالئ څه نيک کار اوکړی (هغه دِ پوهه شی چه) الله (دَ نيکو کارُولو) قدردان دے او (هغه) ډير باخبره دے۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى
مِنْۢ بَعْدِ مَا بَيَّنّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتٰبِ ۙ أُولٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ
اللّٰهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللّٰعِنُوْنَ ﴿۱۵۹﴾

کوم خلق چه دے (کلام) له کوم چه مونږه ښکاره نښانانو او هدایت سره نازل کړے دے پس له دے نه چه مونږه دا په دے کتاب کښے په ډاګه بیان کړے دے پښتو دا داسے خلق دی چه په چا باندے الله لعنت استوی او (نور) لعنت اچوونکی (هم پرے) لعنت استوی۔

إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَأَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا فَأُولٰٓئِكَ أَتُوْبُ
عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۰﴾

ولے هغه څوک چا چه توبه اوکړه او اصلاح ئے اوکړه او (د خدائے حکمونه ئے) په ډاګه بیان کړل نو په داسے خلقو باندے به زهٔ فضل سره خیال (ریام) کوم او زهٔ (د خپلو بندهٔ ګانو طرف ته) ډیر خیال کوونکے او بیا بیا رحم کوونکے یم۔

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولٰٓئِكَ
عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ۙ ﴿۱۶۱﴾

کوم خلقو چه انکار اوکړو او په حال د کفر مړهٔ شول۔ په تحقیق سره په داسے خلقو باندے د الله او فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دے۔

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا
هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۱۶۲﴾

هغوئ به دے کښے (پراتهٔ) وی۔ نهٔ (خو) به په هغوئ (باندے) عذاب کمیګی او نهٔ به هغوئ ته د ساه اخستو مولت ورکیدے شی۔

وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۳﴾ ع ۱۹ ۴

او ستاسو معبود (په خپل ذات کښے) واحد معبود دے۔ د هغهٔ نه سوا بل هیڅ یو معبود نشته۔ ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَ
النَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِيْ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ
النَّاسَ وَمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ فَأَحْيَا
بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ

د آسمانونو او د زمکے په پیدا اوښت کښے، د شپے او ورځے په وړاندے روسنو راتلو او په هغه کشتو کښے چه انسانانو له د کټے څیزونو سره په سیند کښے روانے وی او هغه اوبهٔ چه الله د ورېځے نه اووَروے۔ بیا د دے په ذریعه

وَتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

زمکه د هغې د مرګ نه پس ژوندۍ کړه او په هغې کښې ئې هر لو قسم ځناور خوارهٔ کړل او د هواګانو اخوا دیخوا خورولو کښې او په هغه وریځو کښې چه د آسمان او زمکې تر منځهٔ راګیرې دی په تحقیق سره هغې تمام د پاره چه د عقل نه کار آخلی (ځو قسمه) نښانات دی۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ﴿۱۶۵﴾

او ځنې خلق داسې دی چه د الله نه سوا نورو کښې (د الله) همسر جوړوی۔ هغوئ هغې سره د الله د محبت په شان مینه کوی۔ او کوم خلق چه مومنان دی هغوئ د ټولو نه زیات الله سره محبت کوی چا چه (د دې) ظُلم ارتکاب کړې دے کچرې هغوئ (هغه وخت) کله به چه هغوئ عذاب (مخامخ) وینی (حیرته اوس) لیدلے (نو ورته به معلومه وه) چه ټول قوّت هُم الله لره دے او دا چه الله سخت عذاب ورکوونکے دے۔

اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا وَرَاَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ ﴿۱۶۶﴾

(او کاش چه هغه خلقو هغه وخت لیدلے) کله چه هغه خلق چه د چا حُکم به منودلے شو به د هغه خلقو نه چه حُکم منُونکی وُو بیل شی او عذاب به په خپلو سترګو اووینی او د هغوی (د شرک له کبله به د خلاصی) ټولې لارې ختمې شی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ؕ كَذٰلِكَ يُرِيْهِمُ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ حَسَرٰتٍ عَلَيْهِمْ ؕ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ﴿۱۶۷﴾ ع ۲۰

او کوم خلق (چه د کفر د اماملو) حُکم منُونکی وُو، وائی به چه کاش یو ځلے (بیا دُنیا ته) واپس تلل ځمونږ (نصیب) وے۔ نو مونږ به (هُم) د دے (آئمة الکفر) نه بیل شوے وے څنګه چه (دوئ) ځمونږ نه بیل شول۔ داسې به الله هغوئ ته

اوښائي چه دَ دوئ دَعملونو (نتیجه څو) حسرتُونه دي (چه) هُم په هغوئ به (ورګزارشي) او هغوئ به (دَ دوزخ) دَ اورنه هیڅکله اونهٔ زي۔

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ كُلُوْا مِمَّا فِی الْاَرْضِ حَلٰلًا طَیِّبًا ﲹ وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّیْطٰنِؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِیْنٌ ﴿۱۶۸﴾

یَه خلقه! څه چه په زمکه کښې دي په هغې کښې چه څه حلال او پاکیزه دي (هغه) خورئ او دَ شیطان په پل پل مهٔ ځئ۔ په تحقیق سره هغه ستاسو ښکاره (اوڅرګنده) دښمن دے۔

اِنَّمَا یَاْمُرُكُمْ بِالسُّوْٓءِ وَ الْفَحْشَآءِ وَ اَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

هغه تاسو ته بس دَ بدئ او بے حیائي او دَ دے (خبرے) چه تاسو دَ الله (تعالیٰ) پحقله په دروغه هغه خبرے اوکړئ۔ چه تاسو ته معلومه نهٔ (وي) تلقین کوي۔

وَ اِذَا قِیْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَاۤ اَلْفَیْنَا عَلَیْهِ اٰبَآءَنَاؕ اَوَ لَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ شَیْــٴًـا وَّ لَا یَهْتَدُوْنَ ﴿۱۷۰﴾

او هرکله چه هغوئ ته اوویلے شي چه دا (کلام) چه کوم الله نازل کړے دے اومنئ نو هغوئ وائي چه (نا) مونږ به خو به هغې (طریقې) پسے ځو په کومه باندے چه څومونږه پلارنیکونه وو اوکه چرے دَ هغوئ پلارنیکونو هم څه عقل نهٔ لرلے او نهٔ په سمه لاره تللے (نو بیا به هُم هغوئ دا سے کولے)

وَ مَثَلُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِیْ یَنْعِقُ بِمَا لَا یَسْمَعُ اِلَّا دُعَآءً وَّ نِدَآءًؕ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْیٌ فَهُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ ﴿۱۷۱﴾

او دَ هغو خلقو حال چا چه کفر کړے دے په شان دَحال دَ هغه چا دے۔ چه هغه څیزته نارہ کوی کوم چه دَ نارے او آوازنه بل څه نهٔ آوري دا خلق کا نړهٔ ګونګیان او ړاندہ دي څکه نۀ پوهیږي۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَیِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَ اشْكُرُوْا لِلّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِیَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۷۲﴾

یَه هغه خلقو چه ایمان مو را وړے دے! دَ هغهٔ پاکیزه څیزونو نه کوم چه مونږه تاسو له دَرکړي دي خورئ او شکر ے تاسو (په رښتیا) هُم دَ الله

عبادت کوئ نو دَ هغهٔ شکر رهُم ادا) کوئ۔

إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ ۖ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٧٣﴾

هغه په تاسو لبس مردار، وینه او دَ سُوُرغوښه (وهغه څیزونه په چا چه دَ الله نه سوا دَ بل چا نوم اخستے شوے وی۔ حرام کړی دی ولے چه څوک په (دَ دغه څیزونو په استعمال باندے) مجبوره شی او هغه نهٔ خو دَ قانون مقابله کوُونکے وی او نهٔ دَ حد نه بهرته وتوُنکے په هغهٔ څه گناه نشته۔ په تحقیق سره الله ډیر بخښوُنکے (او) بیابیا رحم کوُونکے دے۔

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾

کوم خلق چه دا (تعلیم) کوم چه الله دَ (الٰهی) کتاب څخه نازل کړے دے پټوی او دَ دے په بدل کښے څه لږ غوندے قیمت اخلی۔ په تحقیق سره هغوئ خپلو خیټو کښے اور اچوی او دَ قیامت په ورځ به الله هغوئ سره خبرے نهٔ کوی او نهٔ به هغوئ پاکوی۔ او دَ هغوئ دَپاره سخت عذاب دے۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾

دا هغه خلق دی چا چه دَ هدایت (رسے لار) پځائے گمراهی او دَ مغفرت پځائے عذاب اخستے دے۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِي الْكِتَابِ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ﴿١٧٦﴾ ع ٢١

دا عذاب به په دے سوب وی چه الله دا کتاب برحق نازل کړے دے۔ او کومو خلقو چه دَ دے کتاب په حقله اختلاف کړے دے په تحقیق سره هغوئ په سخت عداوت کښے (اخته) دی۔

لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ

ستاسو نمر ختانه او نمر پریواتهٔ ته مخ کړزول څه غټه نیکی نهٔ ده ولے کامل نیک هغه سړے دے چه په الله، دَ آخرت په ورځ، په فرښتو، په (الٰهی) کتاب او په ټولو نبیانو ئے ایمان راوړو۔ او دَ هغهٔ

وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ۗ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

(یعنی الله) دَ محبت له کبله ئے خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو او مسافرانو او سوال کرو او دَ غلا مانو (دَ آزادی) دَ پاره (خپل) مال ورکړو. او نمونځ ئے قائم کړو او زکوٰة ئے ورکړو او دَ خپلو لوظونو هرکله چه (څه) لوظ اوکړی، سرته دَ رسولو او (بیا په تیره تیره) تنګئ او بیمارئ کښې او دَ جنګ په وخت برداشت کوونکی (کامل نیکان دی.)

هُم دغه خلق دی چه په خپل قول کښې رښتنی دی او هُم دغه خلق کامل متقیان دی۔

یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ۖ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ۖ فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ ۢبِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ۗ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ۗ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۸﴾

یَه (هغه) خلقو چه ایمان مو راوړے دے په تاسو باندے دَ مقتولانو په مقابله (کښې) برابر بدله اخستل فرض شوی دی. کچرے قاتل آزاد سړے وی نو هغه آزاد قاتل به په بدل کښې وژلے شی او کچرے قاتل غلام وی نو هغه غلام قاتل به په بدل کښې قتلولے شی او کچرے ښځه قاتله وی نو هغه ښځه به په بدل کښې قتلولے شی. چا (قاتل) ته چه دَ هغه دَ رور دَ طرف نه څه معاف شی نو (دَ مقتول وارث به صرف باقی تاوان) په مناسب ډول اخستلے شی او په (قاتل باندے) په ښه طریقه (باقی تاوان هغه ته ورکول واجب) دی. دا ستاسو دَ رب دَ طرف نه کمئ او رحمت دے. بیا څوک چه دَ دے حُکم نه پس هُم زیاتی اوکړی هغه دَ پاره دردناک عذاب (مقدر) دے۔

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

او یَه عقل مندو! تاسو دَ پاره (دے) بدل اخستو کښې (دَ) ژوند (سامان) دے (او دا حُکم دے دَ پاره دے) چه تاسو بچ شئ۔

كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ

هرکله چه په تاسو کښې په چا (دَ) مرګ (وخت) را شی۔

خَيْرًا ۚۖ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿١٨٠﴾

نو په دے شرط چه (مرګونے) ډیر مال پریدی په تاسو باندے د مورو پلار او نزدے خپلوانو ته په ښه طریقه (امر معروف) وصیت کول فرض شوی دی۔ (دا خبره) په تقوی دارو واجب ده۔

فَمَنْ بَدَّلَهُ بَعْدَ مَا سَمِعَهُ فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٨١﴾

ولے څوک چه د دے (وصیت) د اوریدو نه پس (دا) بدل کړی نو د دے ګناه به هُم په هغهٔ وی څوک چه دا بدل کړی۔ په تحقیق سره الله ښه اوریدُونکے (او) ډیر خبردار دے۔

فَمَنْ خَافَ مِنْ مُوصٍ جَنَفًا أَوْ إِثْمًا فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٨٢﴾ ع ٢٢

بیا څوک چه د وصیت کوُونکی پره یا د ګناه (کیدلو) ویره اوکړی او د هغوئ ترمنځهٔ اوکړی نو په هغهٔ هیڅ ګناه نشته۔ په تحقیق سره الله ډیر بخښوُنکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾

اے هغه خلقو چه ایمان مو را وړے دے په تاسو باندے (هُم) د روژے ساتل (هغه شان) فرض شوی دی۔ لکه چه په هغه خلقو باندے فرض شوے وے چه تاسو نه وړاندے تیر شوی دی۔ ځکه چه تاسو (د رُوحانی او اخلاقی کمزورونه) بچ شئ۔

أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ ۚ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ۚ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ ۖ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ ۚ وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ ۖ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٤﴾

(بیا نو تاسو روژے اوساتئ) د شمیر څو ورځے او په تاسو کښے چه څوک مریض وی یا په سفر وی نو (هغه به) نورو ورځو کښے شمیر (پوره) کوی۔ او په هغه خلقو باندے چه د دے (یعنی د رمضان د فدیے) وس لری یو مسکین ته خوراک ورکول (په طور د رمضان د فدیے) واجب دی او څوک چه په پوره فرمان بردارئ څه نیک کار اوکړی نو دا به هغهٔ له ښه وی۔ او کچرے تاسو علم لرئ (پوهیدے شئ نو) ستاسو روژے ساتل تاسو د پاره ښهٔ دی۔

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۭ وَمَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰي سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ۭ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ ۡ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰي مَا ھَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۸۵﴾

دَ روژے میاشت هغه (میاشت) ده چه دَ هغے په حقله قرآن (کریم) نازل شوے دے۔ (هغه قرآن) چه دَ ټولو انسانانو دَ پاره هدایت دے او چه ځان ځخه ځرګند دلیلونه لری۔ (دا سے دلیلونه) چه هدایت پیدا کوی او دے سره (قرآن کښے) الٰهی نشانات هُم دی۔ بیا نو چه تاسو کښے څوک دا میاشت ربیه (داسے حال) او وینی (چه نه مریض وی او نه مسافر نو) هغه له پکار دی چه هغه دَ دے روژے اونیسی۔ او څوک چه مریض وی یا په سفروی نو په هغهٔ به په نورو ورځو کښے شمیر (پوره کول واجب) وی۔ الله (تعالیٰ) تاسو دَ پاره آسانی غواړی او تاسو دَ پاره تنګی نهٔ غواړی (او دا حکم هغهٔ دے دَ پاره درکړے دے چه تاسو په تنګئ کښے نهٔ شئ او) ځکه چه تاسو شمیر پوره کړئ او په دے (خبره) باندے دَ الله لوي بیانوئ چه هغهٔ تاسو ته هدایت درکړے دے او ځکه چه تاسو (دَ هغهٔ) شکرګذار شئ۔

وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِيْ عَنِّىْ فَاِنِّىْ قَرِيْبٌ ۭ اُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ ۙ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِيْ وَلْيُؤْمِنُوْا بِيْ لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ ﴿۱۸۶﴾

او (به رسوله) هرکله چه ځما بندیان تا نه ځما په حقله تپوس اوکړی نو (نهٔ ورله جواب ورکړه چه) زهٔ (هُم هغوی) سره یم۔ هرکله چه دُعاغوښتونکے مانه دعا اوغواړی نو زهٔ دَ هغه دُعا قبلوم۔ بیا پکار دی چه هغوئ (یعنے دعاغوښتونکی هُم) ځما حُکم او منی او په ما ایمان راوړی چه هغوی په هدایت رسمه لار) شی۔

اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَاۗىِٕكُمْ ۭ ھُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَاَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۭ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ

دَ روژو په شپو کښے تاسو ته اجازه دَه چه خپلو ښځو ته ورشئ ـ هغوی تاسو دَ پاره یو (قسم) لباس

كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا
عَنْكُمْ ۚ فَالْـٰٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ۠
وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ
مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۠ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ
اِلَى الَّيْلِ ۚ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ ۙ فِي الْمَسٰجِدِ ۗ
تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا ۗ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ
اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

دی او تاسو دَ هغوئ دَ پاره یو (قسم) لباس یئ - الله ته معلومه ده چه تاسو دَ خپلو نفسونو حق تلفی کوله - ځکه هغهٔ په تاسو خپل فضل اوکړو او ستاسو دَ دے حال اصلاح ئے اوکړه - بیالو اوس تاسو (بے غمه) هغوئ ته ورزئ او څه چه الله تاسو له مقدر کړی دی دَ هغوئ لټون کوئ - او خورئ او څکئ تر هغه پورے چه تاسو ته دَ سحر سپینه رڼړا دَ تیرے نه بیله په نظر را شی - دے نه پس (دَ سحر نه) دَ شپے پورے روژے پوره کوئ - او هر کله چه تاسو جماعتونو کښے په اعتکاف یئ نو هغوئ (ښځو ته) مهٔ ورزئ - دا دَ الله (مقرر کړی) حدونه دی نو ځکه تاسو هغوئ ته مهٔ ورنزدے کیګئ - الله دَا شان دَ خلقو دَ پاره خپل نښانات بیانوی ځکه چه هغوی (دَ تباهئ) نه بچ شی -

وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ
اِلَى الْحُكَّامِ لِتَاْكُلُوْا فَرِيْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ
وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۸﴾ ع

او تاسو خپلو کښے (په ملګرتیا) دَ خپلو (رونړو) مال په دروغه (او فریب) مهٔ خورئ - او نهٔ دا (مالونه) په (دے خیال) حاکمانو ته اوړئ چه تاسو دَ خلقو دَ مالونو یوه برخه سره دَ پوهے په ناجائزه هضم کړئ -

يَسْــَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ۭ قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ
وَالْحَجِّ ۭ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا
وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا ۠
وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۸۹﴾

تاسونه دَ سپوږمو په حقله تپوس کوی - ته ورته اووایه (چه) دا دَ خلقو (دَ عامو کارونو او دَ حج دَ پاره دَ وخت دَ معلومولو آله وی - او اعلیٰ نیکی دانهٔ ده چه تاسو کورونو کښے دَ هغو دَ شا نه داخل شئ بلکه کامل نیک هغه دے چه تقویٰ کوی او (تاسو) کورونو کښے دَ هغو (دَ مخے) دروازو نه داخلیګئ او دَ الله تقویٰ اختیار کړئ ځکه چه تاسو کامیاب شئ -

وَ قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَ لَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۹۰﴾

او دَ الله په لاره کښے هغه خلقو سره جنګ کوئ چه تاسو سره جنګ کوی او (په هیڅ) زیاتی مهٔ کوئ (او یاد ساتئ چه) الله زیاتی کوونکو سره هیڅ کله مینه نهٔ کوی۔

وَ اقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَ اَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ وَ الْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَ لَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ ؕ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾

او چرته هُم چه دغه (ناحق جنګ کوونکی) مومئ هغوئ قتلوئ او تاسو (هُم) هغوی دَ هغه ځائے نه اوباسئ چرته نه چه هغوی تاسو اوباسلی وي او (دا) فتنه دَ قتل نه (هُم) زیاته سخته (نقصان رسوونکے) ده۔ او تاسو هغوی سره دَ مسجد حرام خوا (وشاء) کښے (تر هغه وخته) جنګ (کولو) ابتداء اونکړئ او کچرے هغوی تاسو سره (هلته هُم) جنګ کوی۔ نو تاسو هُم هغوئ قتلوی۔ دَ دغه کافرانو سزا هُم دا ده۔

فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾

بیا که هغوئ (جنګ) پریږدی نو په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے او بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَ قٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّ يَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ ؕ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹۳﴾

او تاسو هغوی سره تر هغے جنګ کوئ چه هیڅ قسم فتنه پاتے نشی او دین لس دَ الله شی بیا که هغوئ پریږدی (منی شی) نو دَ ظالمانو نه سوا په هیچا ګرفت نشته دے۔

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَ الْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ؕ فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ ۪ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾

دَ حرمت میاشت دَ حرمت دَ میاشتے په بدل کښے ده او دَ ټولو عزت دارو څیزونو (دَ سپکاوی) بدله اخستے شی۔ دے دَ پاره څوک چه په تاسو زیاتی اوکړی تاسو هُم دَ هغهٔ نه (دَ هغهٔ) زیاتی څومره ئے چه په تاسو کړے وی بدله واخلئ او دَ الله تقوی کوئ او په تحقیق سره هغه الله دَ متقیانو ملګرے

(وی) دے۔

وَاَنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَیْدِیْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۛۚ وَاَحْسِنُوْا ۛۚ اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۹۵﴾

اودَ اللّٰه په لاره کښے (مال وځان) لګوئ اودَخپله لاسه (خپل ځانونه) هلاکت ته مۀ غورزوئ۔ اودَ احسان نه کار اخلئ۔ په تحقیق سره اللّٰه احسان کوونکو سره مینه کوی۔

وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَیْسَرَ مِنَ الْهَدْیِ ۚ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى یَبْلُغَ الْهَدْیُ مَحِلَّهٗ ؕ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِیْضًا اَوْ بِهٖۤ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْیَةٌ مِّنْ صِیَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ فَاِذَاۤ اَمِنْتُمْ ٚ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَیْسَرَ مِنَ الْهَدْیِ ۚ فَمَنْ لَّمْ یَجِدْ فَصِیَامُ ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ فِی الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ؕ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ یَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِی الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ شَدِیْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۹۶﴾

اوحج اوعمره دَ اللّٰه (دَ رضا) دَپاره پوره کوئ۔ بیا که چرے تاسو (په څه سوب دَ حج اوعمرے نه منے کړے شئ) نوچه څه قربانی موکَوسه شی (حلاله ئے اوکړئ) اوترڅوپورے چه قربانی خپل مقام ته اونۀ رسی سرونه مۀ خرایئ۔ اوڅوک چه تاسو کښے ناجوړه وی یادَخپل سر (دَبیمارئ له کبله) ورته تکلیف وی (او هغه سر اوخرائ) په هغۀ باندے به (د په دے سوب) دَ روژو یا صدقے یاقربانئ دَقسم څه فدیه (واجب) وی۔ بیاچه هرکله تاسو په امن کښے شئ نو (هغه وخت) چه څوک دَ عمرے فائده (دَ حج سره) (سره) اوچته کړی نوچه څه قربانی په آسانه بیا مومی (او دِکړی) اوڅوک چه (هغه دَڅه قربانئ څَم وس) اونه لرئ (په هغۀ) باندے به درے ورځو روژے نَو دَحج (په ورځو) کښے (واجب) وی او (اوه روژے) هرکله چه (دَ مسلمانانو) تاسو (خپلو کورونو ته) واپس شئ۔ دا پوره لس شوے۔ دا (حکم) دَ هغه سړی دَپاره دے دَچا دَکورخلق چه مسجد حرام سره استوګن نۀ وی او تاسو دَ اللّٰه تقوی کوئ او پوهـ شئ چه په تحقیق سره دَ اللّٰه سزا سخته وی۔

اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ فِیْهِنَّ الْحَجَّ

دَحج (میاشتے، تهولوته) معلومے میاشتے دی۔ بیاڅوک

فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ۭ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۡ وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ١٩٧

چه دغو کښے دَ حج (اراده) پخه کړی (هغه دِ یاد لری چه) دَ حج (په ورځو) کښے نهٔ خوځه دَ شهوت خبره نهٔ څه نافرمانی او نهٔ څه قسم جهګړه کول به (جائز) وی- او دَ نیکیٔ څه (کار به چه) هُم تاسو کوئ الله به (ځامخا) هغه (په قدر) پیژنی او دَ لارے سامان (ځان سره) اخلئ او (یاد لرئ چه) دَ لارے ښه سامان تقویٰ ده- او یَه عقلمندو اِځما تقویٰ اختیار کړئ-

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ۭ فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۠ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا ھَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّاۗلِّيْنَ ١٩٨

تاسو دَ پاره (دا) څه دَ ګناه (خبره) نهٔ ده چه (دَ حج په ورځو کښے) تاسو دَ خپل رب دَ څه فضل تلاش اوکړئ- بیا هرکله چه تاسو دَ عرفات نه واپس شئ نو مشعر الحرام سره دَ الله ذِکر کوئ او څنګه چه هغهٔ تاسو ته هدایت کړے دے- (دَ هغے مطابق) هغه یادوئ او په تحقیق سره دے نه آګاهو تاسو بے لارے (ګمراهانو کښے) وئ-

ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ١٩٩

او چه دَ کوم ځائے نه خلق (واپس) کیګی هغه ځائے نه تاسو هُم (واپس) راځئ- او دَ الله نه مغفرت غواړئ. په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے-

فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَاۗءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ۭ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ٢٠٠

بیا هرکله چه تاسو خپل عبادتونه پوره کړئ نو (لکه دَ پخوا) دَ خپل پلارنیکونو دَ یادولو په شان الله یادوئ- (او څه خلق داسے دی چه (هُم دا) وائی چه یَه ځمونږه ربّ اِمونږ له په دے دنیا کښے (آرام) راکړه او دَ هغوئ به آخرت کښے هیڅ هُم برخه نهٔ وی-

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ

او هغوی کښے څه (داسے هُم) وی چه وائی یَه ځمونږه

فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۲۰۱﴾

رب! مونږ له (دَ دې) دنيا (په ژوند) کښې (هم) کاميابي راکړه او آخرت کښې (هم) کاميابي (راکړه) او مونږه دَ اور دَ عذاب نه اوساته ـ

أُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ وَاللّٰهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿۲۰۲﴾

دا (هغه خلق) دي چه دَ چا دَ پاره دَ هغوی (دَ نيکې کتې) له کبله يوه ډيره غټه برخه (مقدر) ده ـ او الله (ډير) زر حساب خلاصئ ـ

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودٰتٍ ۚ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوٓا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿۲۰۳﴾

او دغه شمېرلو ورځو کښې الله ياد وئ بيا څوک چه تلوار اوکړي (او) دوه ورځو کښې (واپس لاړ شي) نو دَ هغهٔ څه گناه نشته او څوک چه روستو پاتې شي دَ هغهٔ (هم) څه گناه نشته ـ (دا وعده) دَ هغه سړي دَ پاره دَه چه تقوىٰ کوي او تاسو دَ الله تقوىٰ اختيار کړئ او پوهه شئ چه (يوه ورځ) تاسو به ټول يو ځائې هغهٔ ته وړاندې کولې شئ ـ

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِي قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ أَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾

او څښې خلق داسې (هم) وي چه دَ چا خبرې (دَ دې) دُنيا دَ ژوند په حقله تا ته (ډيرې) خوندوره ورسې معلوميږي او هغوی (کله چه خبرې کوي) الله په هغې (اخلاص) باندې چه دَ هغوئ په زړونو کښې دے گواه کوي ولې (په حقيقت کښې) هغوئ دَ ټولو جهگړمارو نه زيات جهگړمار دي ـ

وَإِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿۲۰۵﴾

او هر کله چه حاکمان شي نو دَ فساد (پيدا کولو) او دَ کر (کيلے) او دَ مخلوق دَ هلاکولو په غرض (ټول) ملک کښې زغلي رازغلي ـ حال دا چه الله فساد نهٔ خوښوي ـ

وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ۚ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾

او هر کله چه هغوئ ته او وئيلې شي چه دَ الله تقوىٰ اختيار کړئ نو (دَ خپل) عزت (خيال) هغوئ گناه ته جوړوي ـ بيا دے (قسم خلقو) دَ پاره جهنّم کافي دے

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ
وَ اللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠٨﴾

او په تحقیق سره هغه ډېر خراب ځائے د آستوګنے دے. او ځنې خلق داسے (هُم) وی چه د الله د رضا د حاصلولو د پاره خپل ځان (هم و) خرڅوی. او الله (خپل داسے مخلصانو) بندیانو باندے ډېر شفقت کوونکے دے.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً ۪ وَ لَا
تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٢٠٩﴾

یه خلقو چه ایمان مو راوړے دے تاسو ټول د حُکم منلو (په کرښئ) کښے راشئ او د شیطان په پل پل مه ځئ. په تحقیق سره هغه ستاسو ښکاره دښمن دے.

فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْۤا
اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٢١٠﴾

او کچرے تاسو سره د دے چه تاسو له ښکاره نښانات راغلی دی (بیا هُم) اولوېدئ نو پوهه شئ چه په تحقیق سره الله (خو) غالب (او) د حِکمتونو خاوند دے.

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّاۤ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ
الْغَمَامِ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ وَ قُضِيَ الْاَمْرُ ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ
الْاُمُوْرُ ﴿٢١١﴾ ع

هغه (خلق) د دے نه سوا د څه (خبرے) انتظار کوی چه الله هغوئ له د وریځو په سیورو کښے راشی او فرښتے (هُم راشی) او د خبرے فیصله اوشی. او ټول امور هُم الله ته سپارلے شی.

سَلْ بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍۭ بَيِّنَةٍ ؕ
وَ مَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَاِنَّ
اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٢١٢﴾

(لږ) بنی اسرائیلو نه (خو) پتوس او کړئ چه مونږ هغوی له څومره ښکاره نښانات ورکړی وُو او څوک چه د الله (څه) نعمت پس د دے د حاصلیدو (او هغه په دے حقیقت پوهه شوے وی) بدل کړی نو (هغه دِ یاد اولری چه) الله (هُم) سخت سزا ورکوونکے دے.

زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَ يَسْخَرُوْنَ مِنَ
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۘ وَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ
وَ اللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٣﴾

چا چه کُفر کړے دے هغوی ته د دُنیا ژوند خائسته ښودلے شوے دے. او هغوئ هغه خلقو سره چه ایمان ئے راوړے دے. ټوقے کوی او (د دے په مقابله کښے) کوم خلقو چه تقویٰ اختیار کړے ده هغوی

به په هغو (کافرانو) دَ قیامت په ورځ غالب وی۔ او الله چه چاله خوښه کړی بے حسابه رزق ورکوی۔

كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَ مُنْذِرِيْنَ وَ اَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ وَ مَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ وَ اللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۲۱۳﴾

ټول خلق (دَ) یو (خیال) وُو۔ بیا الله نبیان، زیری ورکوونکی او یره ورکوونکی (را) اولیږل او هغوی سره ئے دَ حقو (خبرو بیانوونکے) کتاب نازل کړو چه هغه (یعنی الله) دَ خلقو ترمنځه دَ هغه خبرو پخقله چه په کښے هغوئ اختلاف کړے وه فیصله اوکړی۔ او (راوشوه دا ے چه) هُم هغه خلقو چاته چه هغه کتاب ورکړے شوے وه پس دَ دے چه هغوی ته ښکاره (راوښکاره) نښانات (راغلی وو۔ خپلو کښے دَ سرکشئ (او فساد) له کبله دَ دے (یعنی کتاب) پخقله اختلاف اوکړو۔ بیا الله (تعالیٰ) مومنان په خپل حُکم تر هغه صداقت او رسول دَ کوم پخقله چه نورو خلقو دَ اختلاف نه کار اخستے وه۔ او الله چه چاله اوغواړی په نیغه لاره ئے سموی۔

اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَ لَمَّا يَاْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَاْسَآءُ وَ الضَّرَّآءُ وَ زُلْزِلُوْا حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ اَلَاۤ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ ﴿۲۱۵﴾

آیا تاسو ګنړلے ده چه سره دَ دے چه په تاسو لا پورے دَ هغو خلقو (په شان دَ تکلیف) حالت نهٔ دے راغلے چه تاسو نه وړاندے تیر شوی دی۔ تاسو به جنت ته لاړشئ؟ په هغوی تنګی (هُم) راغله او تکلیف (هُم) او هغوی ښهٔ اویرولے شول چه (دَ هغه وخت) رُسول او دَ هغهٔ سره ایمان دارو نارے کړے چه دَ الله مدد به کله رازی؟ یادلرئ! په تحقیق سره دَ الله مدد نزدے دے۔

يَسْــَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ قُلْ مَاۤ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَ الْاَقْرَبِيْنَ وَ الْيَتٰمٰى وَ الْمَسٰكِيْنِ

هغوی تا نه تپوس کوی چه څهٔ خرچ کړو؟ تهٔ ورته اووایه (چه) څه ښه مال هُم تاسو ورکړئ هغه

وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۲۱۵﴾

(ستاسو) دَ مور پلار، نزدے خپلوانو، یتیمانو، مسکینانو او مسافرانو (ټولو) حق دے۔ او څه نیک کار هُم چه تاسو اوکړئ په تحقیق سره الله هغے نه ښه خبر دے۔

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰٓى اَنْ تُحِبُّوْا شَيْئًا وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۱۶﴾ ع ۱۰

جنګ کول په تاسو فرضیګی (او) په دا سے حال کښے (فرضیګی) چه هغه ستاسو ناخوښه دے او بالکل دا کیدے شی چه تاسو څه څیز ناخوښوئ ولے هغه ستاسو دَپاره ښه وی۔ او (دا هُم) ممکنه ده چه تاسو څه څیز خوښوئ ولے هغه تاسو دَپاره دَ بل څیز په نسبت بد وی۔ او الله پوهیګی او تاسو نهٔ پوهیګئ۔

يَسْــَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ؕ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ؕ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۗ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ؕ وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا ؕ وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۱۷﴾

دَ اخلق تا نه دَ حرمت لرُونکے میاشت پخقله یعنی دے کښے دَ جنګ کولو پخقله تپوس کوی۔ تهٔ ورته او وایه (چه) دے کښے جنګ کول غټه (دَخرابئ) خبره ده۔ او دَ الله دَ لارے (اړول او دَ هغه (یعنی دَ الله) او دَ عزت لرُونکی جماعت انکار کول او دَ هغے اوسیدُونکی دَ هغے نه ویستل دَ الله په نزد دَدے نه (هُم) غټه خبره ده۔ او فتنه (فساد) دَ قتل نه هُم غټه ګناه ده او دا خلق کچرے دَ دوی وس اورسی۔ نو تاسو سره به تکیاوی جنګ کوی چه تاسو لره ستاسو دَ دین نه وا اړوی۔ او په تاسو کښے چه څوک (هُم) دَخپل دین نه اوګرزی (او) بیا دَ کُفر په حال مړ (هُم) شی نو (هغه دِ یاد لری چه) دا سے خلق دَ دوزخ (په اور کښے پریوتونکی) دی۔ هغوی به دے کښے (تر ډیرے مودے) اوسی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِىْ

کوم خلقو چه ایمان را وړے دے او چا چه هجرت

سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۱۹﴾

کړے دے۔ او دَ الله په لاره کښے جهاد کړے دے۔ په تحقیق سره دا سے خلق دَ الله دَ رحمت اُمیدواردی او الله ډیر بخښُونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَ الْمَيْسِرِ ؕ قُلْ فِيْهِمَآ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ ۫ وَ اِثْمُهُمَآ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا ؕ وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ قُلِ الْعَفْوَ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ۙ﴿۲۲۰﴾

او هغوی تا نه دَ شرابو او جوارئی پخقله تپوس کوی۔ تهٔ ورته او وایه (چه) دے کارونو کښے غټه گناه (او نقصان) دے او خلقو دَ پاره دے کښے (ډیرغټه) فائدے (هُم) دی۔ او دَ دے گناه (او نقصان) دَ دے دَ نفع نه ډیره غټه ده۔ او هغوئ (خلق) تانه (دا هُم) تپوس کوی چه هغه (یعنی سائل) څهٔ خرچ کړی؟ تهٔ ورته او وایه چه څومره (حاجت نه) زور ورنکړی۔ دا شان الله خپل احکام ستاسو دَ پاره بیانوی چه تاسو سوچ نه کار واخلئ۔

فِى الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ؕ وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ؕ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ؕ وَ اِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ؕ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۱﴾

دَ دے جهان پخقله (هُم) او دَ آخرت پخقله هُم۔ او دا (خلق) تا نه دَ یتیمانو پخقله (هُم) تپوس کوی تهٔ ورته او وایه (چه) دَ هغوئ اصلاح ډیر ښه کار دے، او که چرے تاسو هغوئ سره گډ وډ اوسی نو (دے کښے څه حرج نشته)۔ هغوئ ستاسو رونړه دی۔ او الله فساد کوُونکے دَ اصلاح کوُونکی په مقابله کښے ښه پیژنی او که چرے الله غوښتے نو تاسو به ئے په مشقت کښے اچولے وے په تحقیق سره الله غالب (او) حکمت لرُونکے دے۔

وَ لَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ؕ وَ لَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكَةٍ وَّ لَوْ اَعْجَبَتْكُمْ ۚ وَ لَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ؕ وَ لَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّ لَوْ

او تاسو مشرکانو ښځو سره ترڅو چه هغوی ایمان (راونهٔ ړی) نکاح مهٔ کوئ او یوه مومنه وینځه دَ یوے مشرکے ښځے نه که هغه (هرڅومره) ستاسو خوښه وی یقیناً چه ښه ده او په مشرکانو ترڅو چه هغوئ

أَيُعۡجِبُكُمۡ أُوْلَٰٓئِكَ يَدۡعُونَ إِلَى ٱلنَّارِۖ وَٱللَّهُ يَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱلۡجَنَّةِ وَٱلۡمَغۡفِرَةِ بِإِذۡنِهِۦۖ وَيُبَيِّنُ ءَايَٰتِهِۦ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٢١﴾ ع

ایمان راوړنه ړی (مسلمانانې) ښځې مهٔ ورکوئ او یو مومن غلام دَ یو مشرک (آزاد) نه (هُم) که هغه ستاسو (هرڅومره) خوښ وی په رښتیا بهتر دے د اخلق (څو) او رته رابلی او الله دَ خپل حکم په سوب جنت او مغفرت ته (خلق) غواړی او دَ خلقو دَ پاره دَ خپل (معرفت) علامات څرګند بیانوی چه هغوی نصیحت حاصل کړی۔

وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡمَحِيضِۖ قُلۡ هُوَ أَذٗى فَٱعۡتَزِلُواْ ٱلنِّسَآءَ فِي ٱلۡمَحِيضِ وَلَا تَقۡرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطۡهُرۡنَۖ فَإِذَا تَطَهَّرۡنَ فَأۡتُوهُنَّ مِنۡ حَيۡثُ أَمَرَكُمُ ٱللَّهُۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلتَّوَّٰبِينَ وَيُحِبُّ ٱلۡمُتَطَهِّرِينَ ﴿٢٢٢﴾

او دا (خلق) تا نه دَ حیض (په ورځو کښے ښځو نه دَ ورتلو) پحقله (هُم) تپوس کوی۔ ته ورته او وایه (چه) هغه یو ضرر رسان (امر) دے۔ دے دَ پاره تاسو (دَ) حیض (په ورځو) کښے دَ ښځو نه بیل او سئ او تر څو پورے چه هغوئ پاکے (او صفا) نهٔ شی هغوی ته مهٔ نزدے کیګئ۔ بیا هر کله چه هغوی او لامبی (او) پاکے شی نو دَ کوم ځوا نه چه الله تاسو ته حکم کړے دے هغوی له راذئ۔ الله هغه چا سره چه دَ هغه طرف ته بیا بیا رجوع کوی۔ په رښتیا مینه کوی۔ او (ظاهری و باطنی) صفائی ساتونکو سره (هُم په رښتیا) مینه کوی۔

نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٞ لَّكُمۡ فَأۡتُواْ حَرۡثَكُمۡ أَنَّىٰ شِئۡتُمۡۖ وَقَدِّمُواْ لِأَنفُسِكُمۡۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّكُم مُّلَٰقُوهُۗ وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٢٢٣﴾

ستاسو ښځے ستاسو دَ پاره یو قسم پټی دی دے دَ پاره تاسو چه څنګه غواړئ خپل پټی ته راذئ او ځان دَ پاره (څه) وړاندے آستوئ او دَ الله تقوی اختیاروئ۔ او پوه شئ چه تاسو هغه ته مخامخ کیدُونکی یئ۔ او تهٔ مومنانو ته (دَ هغے ورځے پحقله) زیرئ ورکړه۔

وَلَا تَجۡعَلُواْ ٱللَّهَ عُرۡضَةٗ لِّأَيۡمَٰنِكُمۡ أَن تَبَرُّواْ وَتَتَّقُواْ وَتُصۡلِحُواْ بَيۡنَ ٱلنَّاسِۚ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴿٢٢٤﴾

او تاسو دَ نیک سلوک کولو، دَ تقوی کولو او دَ خلقو ترمینځه روغه کار دو لو کښے) الله لره دَ خپلو قسمونو

نښانه مه جوړوئ۔ او الله ښه اوریدونکے (او) ډیر
خبرداره دے۔

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾

الله به ستاسو په قسمونو کښے په لغو (قسمونو) باندے
تاسو نه تپوس نهٔ کوی۔ (او چه کومه ګناه) ستاسو زړونو
(په اراده) اوکړه په هغے باندے به تاسو نه تپوس کوی
او الله ډیر بخښونکے (او) بُردبار دے۔

لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۲۶﴾

کوم خلق چه د خپلو ښځو په مقابله (د هغوئ نه جُدائی
د پاره) قسم خوری۔ هغوئ د پاره (د بس) څلورو
میاشتو پورے انتظار کول (جائز) دی۔ بیا کچرے (د
مُوره کښے د صلح په خیال) واپس شی نو په تحقیق سره
الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۲۷﴾

او کچرے هغوئ د طلاق فیصله اوکړی نو په تحقیق
سره الله ډیر اوریدونکے (او) ډیر خبرداره دے۔

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ۗ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۗ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا ۗ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۪ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾

او کومو ښځوته چه طلاق اوشی هغوی دے درے (څله)
حیض (راتلو) پورے ځان له نه حصار اوساتی او کچرے د هغوی
په الله (باندے) او ورځ د آخرت باندے ایمان لری نو (هغوی
ته معلومه وی چه) څه الله د هغوی په رحمونو کښے پیدا کړی
دی هغوئ د پاره (د) هغے پټول جائز نهٔ دی او کچرے د هغوئ
ع ۲۹ ۱۲ خاوندان خپلو کښے د اصلاح اراده اوکړی نو هغوئ
دے (مُوده) کښے (د دنه) هغوئ له (خپله ښځولئ
کښے) د واپس اخستو زیات حقدار دی او لکه چه
څنګه په هغوئ باندے (یعنی ښځو باندے) څه
ذمه دادی وی (د غه شان) هغوئ ته هُم د دستور
مطابق (څه حقوق) حاصل دی۔
او سړو ته په هغوی باندے یو شان فوقیت حاصل

اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا اِلَّآ اَنْ يَّخَافَآ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۲۹﴾

دے۔ او الله غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

دا ے طلاق (چه پکښے رجوع کیدے شي) دوه ځلے دے بیا به (یاخو) په مناسب ډول حصاروَل وي یا ښه سلوک سره پریخوول وي۔ او تاسو دَ پاره دَ هغے (مال) چه کوم تاسو هغوئ له آکا څو ورکړے وي هیڅ برخه هُم (واپس) اخستل جائز نهٔ دی۔ سوا دَ دے چه هغو (دواړو) ته ویره وي چه هغوئ به دَ الله (مقررکړی) حدُونه قائم اونشی ساتلے۔ بیا نو کچرے تاسو (یعنې ملّت اسلامیه یا په اسلام باندے ایمان لرونکی حکومت ته دا) ویره وي چه هغوئ (دواړه) به دَ الله (مقررکړی) حدونه قائم اونشی ساتلے نو هغه (یعنے ښځهٔ) چه څه په طور دَ فدیے ورکړی په دے حقله په هغوی (دواړو کښے په چا) څه گناه نهٔ وی دا دَ الله (مقررکړی) حدونه دی۔ دے دَ پاره تاسو دَ هغو نه بهرمهٔ اوزئ او کوم خلق چه دَ الله (مقررکړی) حدُونو نه بهر اوزی نو (پوهه شه چه) هُم هغه خلق (اصل) ظالمان دی۔

فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يَّتَرَاجَعَآ اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۰﴾

بیا کچرے (دَ پورته بیان شوی دوو طلاقونو دَ تیریدو نه پس هُم خاوند هغے له (دریم) طلاق ورکړی نو هغه ښځه به هغهٔ دَ پاره جائز نهٔ وی ترڅو پورے چه هغهٔ نه سوا (چرته) بل خاوند څخه لاړه نشی۔ وے کچرے هغه (هُم) هغے له طلاق ورکړی نو په دَغو دواړو په دے شرط چه دَ هغوئ یقین وی چه هغوئ به دَ الله (مقررکړی) حدُونه قائم اوساتلے شي بیا خپلو کښے پخلا کیدلو باندے څه گناه به نهٔ وی او دا دَ الله (مقررکړی) حدُونه دی کوم چه هغه دَعلم

لرونکو خلقو د پاره په ډاګه بیانوی ۔

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ
بِمَعْرُوْفٍ اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّ لَا تُمْسِكُوْهُنَّ
ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوْا وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ
وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ
وَمَآ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ
بِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۳۱﴾ ع

اوهرکله چه تاسو ښځوله طلاق ورکړئ او هغوئ (د)
خپل مقرر شوی وخت (آخری حد) ته اورسی نو
یا خو هغوئ په مناسب ډول حصارے کړئ (او) یا
هغوئ له په مناسب ډول رخصت ورکړئ او هغوئ
له د تکلیف ورکولو د پاره (په دے نیت) چه زروستو
بیا) په هغوئ باندے زیاتی اوکړئ مهٔ حصاروئ ۔
او څوک چه داسے اوکړی نو (پوهه شئ چه) هغه هُم
په خپل ځان ظلم کړے دے ۔ او تاسو د الله حُکمونو
پورے تهو ټے مهٔ کوئ او تاسو باندے چه د الله انعام
(شوے) دے (هغهٔ) (بیا رسائی) او هغه (هُم یادسائی) چه
هغهٔ په تاسو نازل کړی دی ۔ یعنی کتاب او حکمت ځکه
چه هغه په دے ذریعه تاسو ته نصیحت کوی او د الله
تقوی کوئ ۔ او پوهه شئ چه الله د هرے یوے خبرے نه ښه خبر دے

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ
اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ
ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ
الْاٰخِرِ ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ
لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۲﴾

او هرکله چه تاسو ښځوله طلاق ورکړئ او هغوی خپله
موده پوره کړی نو تاسو هغوئ له هرکله چه هغوی
په نیکه طریقه باندے خپلو کښے راضی شی خپلو خاوندانو
سره د نکاح کولو نه مهٔ حصاروئ ۔ دا (هغه خبره) ده
چه د هغے تاسو کښے هر هغه چا ته چه په الله باندے او
په ورځ د آخرت باندے ایمان لری نصیحت کیږی (او
پوهه شئ چه) دا خبره ستاسو په حق کښے د ټولو نه زیاته
د برکت او د ټولو نه زیاته پاکیزه ده ۔ او الله پوهیږی
او تاسو نهٔ پوهیږئ ۔

وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ
لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ

او میاندے د خپلو بچو ته پوره دوه کاله پورے شودهٔ
ورکوی ۔ دا (ښودنه) هغو د پاره (ده) چه د شودو

رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ
اِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ ۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ
لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ۚ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا
فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ؕ
وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ
عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَاتَّقُوا
اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٣٣﴾

څکاوَلو (کار) له (دَ هغې مقرر مودې پورې) پوره کول غواړی - او چه دَ چا بچئی دے - دَ هغهٔ په ذمه دَ دستور مطابق دَ هغو (شودهٔ څکاوُونکو ښځو) خوراک او دَ هغوئ پوشاک دے - په چا نفس باندے دَ هغهٔ دَ وَس نه زیاته ذمه داری نشی اچولے - چا مور ته دَ هغې دَ بچی په ذریعه تکلیف دِ ورنکړے شی او نهٔ دِ پلار ته دَ هغهٔ دَ بچی په وجه څه (تکلیف ورکړے شی) او په وارث باندے (هُم) داسے (کول لازم) دی - او کچرے هغوی دواړو خپلو کښې په خوښه او دَ یو بل په صلاح شودهٔ بندول غواړی نو (دے کښې) په هغوی باندے څه گناه نشته - او کچرے تاسو خپلو بچوله (دَ چا بلې ښځې) شودهٔ ورکول غواړئ نو په تاسو هیڅ گناه نشته هرکله چه تاسو هغه (اجر) کوم چه تاسو ورکول کړی دی په مناسب ډول باندے ادا کړئ - او دَ الله تقوی کوئ او پوهه شئ چه څه تاسو کوئ په تحقیق سره الله هغه وینی -

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ
بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ
فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ
وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٢٣٤﴾

او تاسو کښې چه دَ کومو (خلقو) رُوح اخستلے شی او هغوئ (ځان نه روستو) ښځې پریږدی (باید چه هغوی یعنې ښځې) خپل ځان څلور میاشتے (او) لس (ورځو) پورے حصار کړی - بیا هرکله چه هغوئ خپل مقرر وخت پوره کړی هغوئ چه په خپله حقله په مناسب ډول هرڅه (هم) اوکړی دَ هغې په تاسو باندے څه گناه نشته او څه چه تاسو کوئ الله (تعالىٰ) هغې نه واقف دے -

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ
اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ

ښځو سره دَ نکاح کولو دَ درخواست په حقله چه کومه خبره تاسو په اشاره (هغوئ نه) اوکړئ یا خپلو زړونو

وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ؕ وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۳۵﴾

کښې ئے اوساتئ په دے باندے تاسو ته څه گناه نشته - الله (تعالٰی) پوهیګی چه تاسو به خامخا دَ هغوی خیال رازی ولے تاسو هغوی سره په پټه (ژمنه) لوظ نامه مهٔ کوئ - هن دا (اجازه ده) چه تاسو هغوئ ته څه مناسب خبره اوکړئ - او تر څو پورے چه (دَعِدّت) حُکم خپل میعاد ته او (نهٔ) رسی (تر هغه وخته پورے) تاسو دَ نکاح تړلو پخه اراده مهٔ کوئ - او پوهه شئ چه ستاسو په زړونو کښې چه څه (هُم) دی، الله (تعالٰی) ته دَ هغے پته ده - بیا نو تاسو دے (خبرے) نه اوویریګئ او پوهه شئ چه الله ډیر بخښونکے (او) بُردبار دے -

ع

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚۖ وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًا ۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۲۳۶﴾

تاسو باندے هیڅ گناه نشته که چرے تاسو ښځو ته هغه وخت هُم طلاق ورکړئ کله چه تاسو هغوئ ته نزدے شوے نهٔ یئ یا مهر مو نهٔ وی مقرر کړے او (بکار دی چه دغه حال کښے) تاسو هغوئ له په مناسب ډول څه سامان ورکړئ (دا امر) دولت مند باندے دَ هغهٔ دَ وس مطابق (لازم دے) او نادار باندے دَ هغه دَ وس مطابق - (مونږ ه دا سے کول) په نیکا نو باندے واجب (کړی) دی -

وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ اِلَّآ اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِيْ بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ؕ وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ؕ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۷﴾

او کچرے تاسو هغوئ له لاس اَچولو دَ مخه ورته طلاق ورکړئ - ... او کچرے تاسو هغوئ له آ کا هو دَ دے نه چه تاسو هغوئ ته نزدے شوی یئ ولے مهر مو مقرر کړے (وی طلاق ورکړئ نو (په دغه حال) چه کوم (مهر) تاسو مقرر کړے وی - دَ هغے نیم (هغوئ ته ورکول) به وی - سوا دَ دے نه چه هغوئ (یعنے ښځے) معاف کړی یا هغه (سړے) ئے معاف کړی چه دَ چا په لاس کښے چه نکاح تړل وی - او ستا سو معاف کول تقوی ته ډیر نزدے

دی او تاسو خپلو کښے (د لین دین په وخت) احسان مه پریږدئ (او یاد ساتئ چه) څه تاسو کوئ په تحقیق سره الله (هغه) وینی۔

حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى ۗ وَ قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴿۲۳۸﴾

تاسو د (ټولو) نمونځونو او (بیا په تیره تیره) منځنی نمونځ پوره خیال ساتئ۔ او د الله د پاره په (پوره) فرمانبرداری اودریږئ۔

فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۹﴾

او کچرے تاسو ویریږئ نو پیاده یا سورلئی باندے (نمونځ او کړئ نو) بیا هرکله چه تاسو په امن شئ نو الله یادوئ ولے چه هغهٔ تاسو ته (هغه څه) ښودلی دی چه (آګاهو) ئے تاسو ته پته نهٔ وه۔

وَ الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۖۚ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ۗ وَ اللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۴۰﴾

او تاسو کښے چه کوم خلق مړهٔ شی او ښځے روستو پریږدی هغوئ دِ د خپلو ښځو په حق کښے د یو کال پورے فائدے رسولو یعنی هغوئ له (د کورونو نه) د نهٔ ایستلو وصیت اوکړی۔ ولے کچرے هغوی (خپله) لاړے شی نو هغوی له د ځان په حقله څه ښه خبرهٔ اوکړی د هغے په تاسو څه ګناه نشته۔

وَ لِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۴۱﴾

او کومو ښځو له چه طلاق ورکړے شی هغوئ له هم د (خپلو) حالاتو سره سمه څهٔ سامان ورکول ضروری دی۔ دا خبره (مونږه) په متقیانو باندے واجب (کړے) ده۔

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲۴۲﴾ ع ۱۵

دا شان الله (تعالیٰ) خپل حکمونه ستاسو (فائدے) د پاره په ښکاره بیانوی ځکه چه تاسو پوهه شئ۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَ هُمْ اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ ۪ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۫ ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ

آیا تا ته د هغه خلقو خبر نهٔ دے رسیدلے چه د مرګ نه د خلاصی د پاره هرکله چه هغوئ د زرګونو په شمیر کښے وو د خپلو کورونو نه وتلی وُو۔ دے باندے الله هغوئ ته اووئیل چه تاسو مړهٔ شئ۔ دے نه پس

النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۲۴۳﴾

هغه هغوئ ژوندی کړل ـ په تحقیق سره الله په خلقو باندے (ډیر) فضل کوونکے دے ولے کثر خلق شکر نهٔ کوی ـ

وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۴۴﴾

او تاسو دَ الله په لاره کښے جنګ کوئ او پوهه شئ چه الله ډیر اوریدونکے (او) ډیر پوهه دے ـ

مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗٓ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً ؕ وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ ۪ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۴۵﴾

آیا څوک شته چه الله له (دَ خپل مال) ښه برخه بیله کړی چه هغه هغے له دَ هغهٔ دَ پاره ډیر زیاته کړی او (دَ) الله (دا هُم سنت دے چه هغه دَ بنده مال) اخلی او زیاتوی او (آخر به) تاسو هُم هغه ته ورزئ ـ

اَلَمْ تَرَ اِلَى الْمَلَاِ مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى ۘ اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا ؕ قَالُوْا وَمَا لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا وَاَبْنَآئِنَا ؕ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۴۶﴾

آیا تا ته دَ بنی اسرائیلو دَ هغه دَ سر سرو حال معلوم نشو چه دَ موسیٰؑ نه پس تیر شوی دی ـ هرکله چه هغوئ خپل یو نبیؑ ته اووئیل چه څمونږ دَ پاره څوک (سړے) بادشاه (جوړ کړه او) او دروه ځکه چه مونږ (دَ هغهٔ دَ مشرئ لاندے) دَ الله په لاره کښے جنګ اوکړو هغهٔ اووئیل (رښے نه) داسے خو به نهٔ وی چه کچرے په تاسو جنګ فرض شی نو تاسو جنګ اونکړئ ـ هغوی اووئیل (داسے به نهٔ وی) او دا یه مونږ څهٔ شوی دی چه مونږ به دَ الله په لاره کښے جنګ نهٔ کوو ـ سره دَ دے چه مونږه دَ خپلو کورونو نه شړلی شوی یُو او دَ خپلو بچونه رجُدا کړے شوی یُو) ولے هرکله چه په هغوئ جنګ فرض شو نو هغوئ کښے یو وړوکی رغوندے) جماعت نه سوا (باقی) ټول روستو شول او الله ته دَ ظالمانو ښه پته ده ـ

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوْتَ مَلِكًا ؕ قَالُوْٓا اَنّٰى يَكُوْنُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ؕ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِي

او دَ هغوی نبي هغوئ ته اووئیل چه الله تاسو دَپاره طالوت (یعنی جدعُون) دَ بادشاه په طور (دے کار دَ پاره) او دروَلے دے ـ هغوی اووئیل هغهٔ ته په مونږ باندے حکومت څنګه حاصلیدے شی هرکله چه دَ هغهٔ په نسبت مونږه دَ حکومت

الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ وَاللّٰهُ يُؤْتِيْ مُلْكَهٗ مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۴۷﴾

زیات حق لرُو او هغهٔ ته مالی فراخی هُم رَخه دا سے زیاته ) حاصله نهٔ دهٔ - هغهٔ او وئیل - په تحقیق سره الله هغهٔ له په تاسو فضیلت درکړے دے او هغهٔ له ئے په علمی او بدنی لحاظ رتاسو نه زیاته ) فراخی ورکړے دهٔ - او الله چه چالره خوښهٔ هغهٔ ته خپل ملک ورکوی او الله فراخی ورکوونکے راو ) ډیر خبردار ه دے -

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اٰيَةَ مُلْكِهٖٓ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ تَحْمِلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۴۸﴾

اودَ هغوی نبی هغوئ ته اووئیل چه دَ هغهٔ دَحکومت دلیل دا رهُم ) دے چه تاسو ته به رلیو) تالوت ترلاسه شی چه هغے کښے به ستاسو دَ رب دَ طرف نه تسکین روی ) او دَ هغه څیز پاتے شونے ربقیه ) به وی - چه دَ موسیٰ ع ۳۲ ۱۹ متعلقینو او دَ هارُون متعلقینو رروستو ) پریخول فرښتو به هغه اوچت کړی وی - کیچرے تاسو مومنان یئ نو دے رخبره ) کښے تاسو دَ پاره په تحقیق ) سره یو رلوئے ) نښان دے -

فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّيْ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهٖ فَشَرِبُوْا مِنْهُ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَلَمَّا جَاوَزَهٗ هُوَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ قَالُوْا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةً بِاِذْنِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۲۴۹﴾

بیا هرکله چه طالوت خپلو فوځونو سره اووتو نو هغه اووئیل چه الله دَ یو ے ولے رنهر ) په ذریعه خامخا ستاسو امتحان اخستونکے دے - بیا چه چا دَ دے روے ) نه رپه مړه خیټه ) اوبهٔ اوڅښلے دَ هغهٔ به ما سره رتړون ) نهٔ رپاتے کیګی ) او چا چه دے نه او نهٔ څښلے په تحقیق سره دَ هغهٔ به ما سره رتړون ) وی - سوا دَ دے چا چه دے نه رفقط ) په خپلو لاسونو یو ځپک رڅښلوله ) واخستے رنو په هغهٔ به څهٔ الزام نهٔ وی ) بیا راوشوه دا سے چه ) هغوی کښے سوا دَ یو څو کسانو رلورونهولو ) دے نه را وبهٔ ) اوڅښلے - بیا هرکله چه هغه خپله او رورسره ) هغه خلق چا چه هغهٔ سره ایمان

(اوریے وہ دَ هغه ولے نه پورے وتل (نو) هغوئ اووئيل چه نن مونږ کښے دَ جالوت او دَ هغهٔ دَ لښکرو دَ مقابلے دَ سرہ هڅه و طاقت نشته (ولے) چه دَ کومو خلقو يقين وہ چه هغوئ (لوہ ورځ ) الله ته تلونکی دی هغوئ اووئيل ډير واړه ټولی دَ الله په حُکم په غټو ټولو بَرشوی دی۔ او الله دَ صبرکوونکو سرہ وی (بيا دَ ويرے څه وجه نشته)۔

وَلَمَّا بَرَزُوْا لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ قَالُوْا رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۵۰﴾

او هرکله چه هغوئ دَ جالُوت او دَ هغه دَ فوځونو (دَ مقابلے) دَ پاره اووتل نو هغوئ اووئيل۔ يَه ځمونږه ربّ! مونږه باندے دَ زور اخستلو قوت نازل کړه او (دَ جنګ په ميدان کښے ځمونږ قدمونه (پښے) ټينګے کړه او دَ دغو کافرانو خلاف ځمونږ مدد اوکړه۔

فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۙ وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ ۭ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ ۙ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۵۱﴾

بيا (هغوئ په جنګ کښے وړيرلوا ته او) هغوی دَ الله دَ ارادے مطابق هغوی له ماتے ورکړو او داؤد جالوت قتل کړو او الله هغهٔ له حکومت او حِکمت ورکړو۔ او څه چه هغهٔ ته (يعنی الله ته) منظورہ وہ دَ هغے علم ئے هغهٔ ته (يعنے داؤد ته) ورکړو او کچرے الله انسانان (دَ شرارت نه) اخوا کړے نهٔ وے يعنے ځنے (انسانان ئے) دَ ځنو په ذريعه (نهٔ وے حصار کړے) نو زمکه به لاندے باندے شوے وه۔ ولے الله په ټولو جهانونو باندے ډير فضل کوونکے دے (ځکه دغه فساد حصار وی)

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۭ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

دا دَ الله آيتُونه دی کوم چه مونږه تا ته په لوستلو اورَوُو۔ دے حال کښے چه تهٔ په حق باندے (قائم) يئے۔ او په تحقيق سره تهٔ په رسُولانو کښے يئے۔

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ
مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ وَ رَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَ اٰتَيْنَا
عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَ اَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ
وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ مِّنْ
بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَ لٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ
اٰمَنَ وَ مِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۫
وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿٢٥٣﴾

دا (پورته ذکر شوي) رسولان هغه دي چې کښې چه مونږ بعضو له په بعضو باندې فضلیت ورکړې وه - هغو سره الله خبرې اوکړې او هغوی کښې ئې د ځنو (فقط) درجې اوچتې کړې او عیسیٰ ابن مریم ته مونږه ښکاره دلیلونه ورکړي وُو - او د روح القدس په ذریعه (مونږ ته) طاقت ورکړې وه - او که چرې الله غوښتې نو کوم خلق (چه) د هغوئ نه روستو (راغلی) وُو هغوئ به د ښکاره (ښکاره) نښانانو د راتلو نه پس خپلو کښې نه جنګیدل - ولې (عجیبه دا چه) هغوی (سره د دې) اختلاف اوکړو نو ځکه په هغوی کښې بعضو خو ایمان راوړو او بعضو انکار اوکړو - او که چرې الله غوښتې نو دا خلق به خپلو کښې نه جنګیدل ولې الله چه څه غواړي هغه کوي -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ
اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ وَّ لَا شَفَاعَةٌ ؕ
وَ الْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٢٥٤﴾

یه ایمان دارو! هر څه چه مونږه تاسو ته درکړي دي د هغې نه د هغې ورځې د راتلو نه آګاهو چه په کښې به نه څه قسم (اخستل) خرڅول نه دوستي نه شفاعت (سودمن) وي (د خدائے په لاره کښې چه هر څه کیدې شي) ورکوئ او (د دې حکم) انکار کوونکي (په خپلو ځانونو) ظلم کوونکي دي -

اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۚ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ
وَّلَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ؕ مَنْ
ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ
اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ
عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ
وَلَا يَئُوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ﴿٢٥٥﴾

الله هغه (ذات) دې چه د هغهٔ نه سوا د پرستش (رب) څوک حق نهٔ لري ژوندې (تل تر تله ژوندې) قائم او هر چاله قائم ساتونکې - نهٔ هغه ته پرکالې ورزي او نهٔ خوب (نه حاجت لري)
څهٔ چه په آسمانونو کښې دي او څه چه په زمکه کښې دي (ټول) د هغهٔ دي - څوک دې چه د هغه د

اجازت نه سوا هغهٔ ته سفارش اوکړی۔ څه چه دَ هغوئ وړاندے دی او څه چه دَ هغوئ روستو دی هغهٔ ته (ټول) معلوم دی۔ او هغوئ دَ هغه دَ رضا نهٔ سوا دَ هغه دَ علم نه هيڅ برخه (هُم) نشی حاصلولے۔ دَ هغهٔ علم په آسمانونو باندے (هُم) او په زمکه باندے (هُم) خوَر دے۔ او دَ هغو حفاظت هغه نهٔ ستړےکوی او هغه دا وچت شان خاوند او عظمت لرونکے دے۔

لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۙ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ۤ لَا انْفِصَامَ لَهَا ۭ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٥٦﴾

دَ دين په کار کښے هيڅ قسم جبر نشته (ولے چه) دَ هدايت او ګمراهئ (ښيلو کښے) فرق ښهٔ څرګند شوے دے۔ بيا نو (لوهٔ شئ چه) کوم سړے (په خپله رضا) دَ نيکئ نه دَ راګرزوونکی (دَ خبرے دَ منلو) نه انکار اوکړی او په الله باندے ايمان اولری نو هغهٔ (لو) ډير مضبوط او اعتباری څيز چه (هيڅکله) دَ ماتيدو نهٔ دے کلک اونيوه او الله ډير اوريدونکے (او) ډير پوهه دے۔

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۙ يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ڛ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰۗـــُٔــهُمُ الطَّاغُوْتُ ۙ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٥٧﴾ ع

الله دَ هغو خلقو دوست دے چه ايمان راوړی۔ هغه هغوی لره دَ تيارو نه رڼا ته اُوباسی۔ او څوک چه کافران دی دَ هغوی دوستان دَ نيکئ نه راګرزوونکی (خلق) دی۔ هغوی هغو لره دَ رڼا نه دَ تيارو طرف ته بوزی هغه اور (کښے پريوتونکی) خلق دی۔ هغوی به هغے کښے اوسی۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْ حَاۗجَّ اِبْرٰهٖمَ فِيْ رَبِّهٖٓ اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ ۘ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُـحْيٖ وَيُمِيْتُ ۙ قَالَ اَنَا اُحْيٖ وَاُمِيْتُ ۭ قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِيْ

آيا تا نهٔ دَ هغه سړی خبر نهٔ دے رسيدلے چه دَ دے (غرور) په سوَب چه الله هغهٔ ته حکومت ورکړے وه۔ ابراهيمؑ سره ئے دَ هغهٔ دَ ربّ په حقله بحث آنخلولے

بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ
فَبُهِتَ الَّذِىْ كَفَرَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝٢٥٨

وه ردا هغه وخت اوشول ) کوم وخت چه ابراهیم رهغه ته ) اووئیل چه زمارب هغه دے چه ژوندی کول او مړول کوی - ردے باندے ) هغه اووئیل رچه ) زه رهم ) ژوندی کول او مړول کوم - ابراهیم اووئیل رکه چرے دا خبره ده ) نو الله رخو ) نمر د نمرخا ته رطرف ) نه راولی راوس ) ته هغه د نمر پریواته نه راوله په دے باندے هغه کافر لاجوابه رپاتے ) شو او ردا سے کیدل وو ځکه چه الله ، ظالمانو خلقو ته رد کامیابئ ) لاره نه ښائی -

اَوْ كَالَّذِىْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ وَّهِىَ خَاوِيَةٌ عَلٰى
عُرُوْشِهَا ۚ قَالَ اَنّٰى يُحْىٖ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ
فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ ؕ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ؕ
قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ قَالَ بَلْ لَّبِثْتَ
مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ اِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۚ
وَانْظُرْ اِلٰى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ
وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا
لَحْمًا ؕ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗ ۙ قَالَ اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ
قَدِيْرٌ ۝٢٥٩

او ر آیا تا ) د هغه سړی غوندے رڅوک سړے لیدلے دے ) چه د یو داسے ښار سره تیر شو چه حال ئے دا وه چه د هغے چتونه راغورزیدلی وو رد هغے په لیدو ) هغه اووئیل چه الله رتعالیٰ ) به د دے د ورانئ نه پس هغه کله آباد وی - په دے باندے الله رتعالیٰ ) هغه سل کاله ربه خوب کښے ) مړ او ساتلو بیا ئے هغه اوچت کړو راو ورته ئے ) او فرمائیل ربه ځما بنده ) ته څو مره موده ردے حال کښے ) پاتے شوے - هغه اووئیل - زه ردے حال کښے ) یوه ورځ یا د ورځے څه برخه پاتے شوے یم ربیا الله تعالیٰ ) او فرمائیل ردا هم صحی ده ) او ته ردے حال کښے ) سل کاله هم پاتے ئے - او س ته د خپل خوراک څښاک رسامان ) ته اوګوره ، او د دغو دواړو سلامت پاتے کیدلو نه جاج واخله چه ستا خیال هم په خپل ځائے صحی دے او څمونږه خیال هم او داسے مونږه دے د پاره کړی دی چه تا خلقو د پاره یو نښان

جوړکړو او هغه وکو طرف ته اوګوره چه مغوله مونږ څنګه په خپل ځپل ځائے وروَلو بیا مونږ ۀ په هغو باندے غوښه خیژوُو۔ بیا هرکله چه هغهٔ باندے (حقیقت) ښه ښکاره شونو هغهٔ اووئیل چه زه پوهیګم چه هُم الله هر یو څیز باندے قادر دے۔

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِیْ كَیْفَ تُحْیِ الْمَوْتٰى ؕ قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ ؕ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّیَطْمَىٕنَّ قَلْبِیْ ؕ قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّیْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَیْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ یَاْتِیْنَكَ سَعْیًا ؕ وَاعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَزِیْزٌ حَكِیْمٌ ﴿٢٦٠﴾

او (هغه واقعه هُم را یاده کړئ) هرکله چه ابراهیمؑ وئیلی وُوچه یه څما ربّ! ما ته اوښایه چه ته مړی څنګه ژوندی کوے۔ وے فرمائیل چه آیا تا ایمان نهٔ دے راوړے؟ ابراهیمؑ اووئیل۔ ولے نا۔ (ایمان خو راته بے شکه چه حاصل دے) خو دَ خپل زړهٔ دَتسلیٔ دَپاره (مَا دا سوال کړے دے) وے فرمائیل ښه ده لو څلور مارغان واخله او خپل ځان سره ئے آموخته کړه بیا په هر لو غر باندے دَ هغوئ نه یو ه (یوه) برخه کیده بیا ورته نارے کړه هغوئ به تاله په تلوار رازغلی او پوهه شه چه الله غالب (او) دَحِکمت خاوند دے۔ ع ٣٥ ٣

مَثَلُ الَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِیْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَاللّٰهُ یُضٰعِفُ لِمَنْ یَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِیْمٌ ﴿٢٦١﴾

کوم خلق چه خپل مالونه دَ الله په لاره کښے لګوی دَ هغوئ (دَ دے فعل) حالت دَ هغے دانے په شان دے چه اوَه وږی او باسی (او) هر وږی کښے سَل دانے وی او الله چه چا دَپاره غواړی دَ دے نه هُم زیات (زیات) ورکوی۔

اَلَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا یُتْبِعُوْنَ مَآ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًى ۙ لَّهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ ﴿٢٦٢﴾

کوم خلق چه خپل مالونه دَ الله په لاره کښے لګوی۔ بیا دَ لګولو نه پس نهٔ په چا څه قسم احسان خیژوی او نهٔ څه قسم تکلیف ورکوی۔ دَ هغوئ دَ ربّ سره دَ هغوئ (دَ اعمالو) بدله (محفوظه) ده۔ او نهٔ به هغوی ته څه قسم ویره وی او نهٔ به هغوئ غمژن وی۔

قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَّمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ
اَذًى ؕ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ ۝٢٦٣

ښه خبره (کول) او (قصور) معاف کول دَ هغې صدقې نه ښه دی چه ورپسے تکلیف رسول (شروع) شی او الله بےنیازه (او) بُرد بار دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ
وَالْاَذٰى ۙ كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا
يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ
عَلَيْهِ تُرَابٌ فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلْدًا ؕ لَا
يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوْا ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي
الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝٢٦٤

يه ايمان دارو! تاسو خپلے صدقے دَ احسان ژباتولو او دَ تکلیف ورکولو (دَکار) نه کبله دَ هغه سړی په شان مهٔ ختنموئ چه خلقوته دَ ښکاره کولو دَپاره مال لګوی او په الله او په ورځ دَ آخرت باندے ایمان نهٔ لری ځکه چه دَ هغه حال په مثل دَ هغه کانړی دَ حال دے چه پرے څه قدرے خاوره (پرته) وی او په هغے باندے تیز باران اُوشی او هغه هغے (خاورے) له اوونیځی بیائے صفا کانړیٔ کړی۔ دوئ (دا سے خلق دی چه) څه کمٹی دَ هغے هیڅ برخه هُم (دغوی) ترلاسه نهٔ رازی۔ او الله دا قسم کافرانوته (دَکامیابئ) لاره نهٔ ښائی۔

وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ
اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ
اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا
وَابِلٌ فَطَلٌّ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝٢٦٥

اوکوم خلق چه خپل مال دَ الله دَ رضا حاصلولودَپاره او خپلو ځانونو له دَ مضبوطولو دَپاره لګوی دَ (دغوی نېکبخت) حال په مثل دَ هغه باغ دَ حال دے چه په اوچت ځائے وی (او) په هغے باندے تیز باران شوے وی چه دَ هغے (له کبله) هغے یو په دوه میوه کړی وی او (دَ هغے کیفیت داوی چه) کچرے په هغے تیز باران او نهٔ شی نو لږ غوندے باران هُم (ورله کافی شی) او څه چه تاسو کوئ الله هغه وینی۔

اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ
تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۙ
وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ ۖ فَاَصَابَهَآ

آیا تاسو کښے څوک سړے غواړی چه دَ هغهٔ دَ کھجورو او انګورانو یو باغ وی چه ورلاندے ترے نهرونه بهیګی (او) هغهٔ ته دَ هغے نه هرقسم میوے (په لاس)

إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ
الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢٦٦﴾ ع

ورزی۔ او هغه بوډا هُم وی او دَ هغهٔ وارهٔ (وارهٔ) بچی وی۔ بیا په هغه باغ د اسے سیلئ راشی چه په کښے اور (غوندے تاؤ) وی او هغه (باغ) او سوزی (او کوره) الله ستاسو دَ (فائدے) دَ پاره دا شان خپل حُکمونه بیانوی چه تاسو فکر اوکړئ۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ
وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ
مِنْهُ تُنْفِقُونَ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلَّا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ ۚ
وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٢٦٧﴾

یَه ایمان دارو! څه چه تاسو ګټلی دی په هغو کښے دَ پاکو څیزونو نه او (ورسره) دَ هغے نه چه مونږ تاسو له دَ زمکے نه پیدا کړی دی (دَ الله په لاره کښے دَ خپل وس مطابق) نکوئ او بے کاره څیز او څه نه چه تاسو نکول (نخو) کوئ ولے تاسو خپله سوا دَ دے نه (چه) په دَ دے په آخستو هسے سرکے پټے کړئ دا هیڅ کله نهٔ قبلوئ (دَ صدقے دَ ورکولو دَ پاره) په اراده مهٔ خوښوی او پوهه شئ چه الله (هـد ودَ سره) بے نیازه (او) دَ ډیر تعریف مستحق دے۔

الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ ۖ وَاللَّهُ
يَعِدُكُمْ مَغْفِرَةً مِنْهُ وَفَضْلًا ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦٨﴾

شیطان تاسو دَ محتاجئ نه ویروی او تاسو ته دَ بےحیائی تلقین کوی۔ او الله دَ خپل طرف نه دَ لیولوئے بخښنے او دَ لوئے فضل تاسو سره وعده کوی او الله ډیر وسعت ورکوونکے (او) ډیر پوهه دے۔

يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ
أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾

هغه چه چاله غواړی حِکمت ورکوی او چا ته چه حِکمت ورکړے۔ شی نو (پوهه شه چه) هغهٔ ته (یو) ډیر نفع رسان څیز حاصل شو (او یاد دِ وی چه) دَ عقل مندونه سوا څوک هُم نصیحت نهٔ حاصلوی۔

وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُمْ مِنْ نَذْرٍ فَإِنَّ
اللَّهَ يَعْلَمُهُ ۗ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ ﴿٢٧٠﴾

او هرڅه چه تاسو (دَ خدائے دَ پاره) او نکوئ یا هرڅه چه تاسو صدقه او منئ په تحقیق سره الله ته دَ هغے پته ده (هغه به دَ هغے ښه بدله ورکوی) او دَ ظالمانو به

هیڅوک هُم مددګارنهُ وی۔

إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۚ وَإِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَاۤءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٢٧١﴾

که تاسو په ښکاره صدقے ورکړئ نو دا (هُم) ډیره ښه (طریقه) ده۔ اوکه چرے تاسو هغهٔ (یعنی صدقات) په پټه غریبانانوله ورکړئ نو دا دَستاسو (دَ نفس) دَپاره ډیره ښه ده او هغهٔ (یعنی الله به په دے سوب) ستاسو ډیرے بدئ دَ تاسونه لرے کړی اوڅه چه تاسو کوئ الله هغےنه واقف دے۔

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۤءُ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَاۤءَ وَجْهِ اللّٰهِ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿٢٧٢﴾

هغوی لره په لاره سمول ستا په ذمه نهٔ دی هَن الله چه چالره غواړی هغهٔ په سمه لاره سموی اوڅه ښه مال هُم چه تاسو (دَ خدائے په لاره کښے) اونکوئ اوحقیقت دا دے چه تاسو دا نګبخت لس دَ الله رضا غوښتلو دَ پاره کوئ بیانو دَ دے ګټه به هُم ستاسو دَ خپلو ځانُونو وی۔ اوڅه ښه مال هُم چه تاسو اونکوئ هغه به تاسوته پوره پوره (واپس) درکیدے شی او په تاسو به ظُلم نهٔ کیګی۔

لِلْفُقَرَاۤءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِى الْاَرْضِ ۖ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَاۤءَ مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢٧٣﴾ ع

(داپورتنی ذکرشوی صدقات) دَ هغوحاجت مندو دَ پاره دی چه دَ الله په لاره کښے (دَ نوروکارنونه) منے کړے شوے دی۔ هغوئ په ملک کښے په آزادئ تلے راتلے نشی۔ (یو) بے خبره (سړے هغوئ) دَ سوال نهٔ کولو په سوب مالداره ګنړی۔ تاسو هغوئ دَ شکل نه پیژندئ شئ۔ هغوئ خلقو پورے دَغوښتنے په غرض نهٔ لیویګی۔ اوتاسو چه څه ښه مال هُم (دَ الله په لاره کښے) اولګوی په تحقیق سره الله هغے نه ښه واقف دے۔

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّ

کوم خلق چه خپل مال شپه ورځ په پټه اوښکاره

عَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ
وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۲۷۴﴾

دَ الله په لاره کښې لګوي دَ هغوئ دَ پاره دَ هغوئ دَ رب سره دَ هغوئ (اجر) محفوظ) دے۔ اونهٔ (څو) به هغوئ ته څه ويره وي اونهٔ به هغوئ غمژن وي۔

اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ
يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا
الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ۭ
فَمَنْ جَاۗءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ۭ
وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ۭ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ
هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۷۵﴾

کوم خلق چه سُود خوري هغوئ دا شان اودريګي لکه څنګه چه هغه سړے اودريګي په چا بانديے چه دَ شيطان (يعني دَ جنون دَ مرض) سخته حمله وي۔ دَا (حالت) له دے کبله دے چه هغوي وائي چه (اخستل او) خرڅول لکه دَ سُود په رنګ دی۔ حالانکه الله خو (اخستل او) خرڅول جائز کړی دی او سود ئے حرام کړے دے بيا نو (ياد لرئ چه) چا ته چه دَ هغه دَ رب دَ طرف نه څه دَ نصيحت خبر راشي او هغه (دَ هغے په اوريدو دَ خلاف ورزئ) نه واوړي نو چه څه (ليکن ورکړی) هغه آګاهو کړے دے دَ هغے کتبه دَ هغهٔ ده۔ او دَ هغه معامله الله ته سپارلے ده او کوم خلق چه بيا (هُم هغه کار) اوکړی نو هغوئ (زخا مخا) اُور کښې پريوتونکی) دی هغوئ به په دے کښې پراتهٔ وي۔

يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ۭ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ
كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ﴿۲۷۶﴾

الله به سود ختموي او صدقے به زياتوي او الله هر غټ کافر (او) غټ ګنهګار له نهٔ خوښوي۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ
وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ
عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۲۷۷﴾

کوم خلق چه ايمان راوړي او نيک مناسب دَ حال عمل کوي او نمو نځونه قائموي او زکوٰة ورکوی دَ هغوی دَ پاره دَ هغوئ دَ رب سره به تحقيق سره اجر (محفوظ) دے او نهٔ خو به هغوی ته څه قسم ويره وی او نهٔ به هغوی غمژن وی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ

په ايمان دارو ! دَ الله تقوئ اوکړئ او پريږدئ تا سو

الرِّبٰوٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۷۸﴾

مومنان يئ نوچه دَ سود (دَ حساب) نه څه پاتے وی هغه پريږدئ۔

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ وَاِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۲۷۹﴾

او کچرے تاسو دا سے او نکړل نو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول دَ طرف نه (دَ کيدونکی) جنګ يقين اوکړئ۔ او کچرے تاسو دَ سود نه توبه اوکړئ نو (څه دومره نقصان نهٔ دے وے چه) ستاسو اصل رقم تاسو دَ پاره اخستل جائز دی (دغه رنګ به) نهٔ تاسو (په چا) ظلم کوئ اونهٔ به په تاسو ظلم کيګی (وی)۔

وَاِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى مَيْسَرَةٍ ۚ وَاَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸۰﴾

او کچرے (څوک) قرضدارے تنګ حالئ کښے راشی نو دَ حالت دَ ښه کيدلو پورے (هغهٔ ته) مولت ورکول به وی او کچرے تاسو پوهه لرئ نو پوهه شئ چه تاسو له هغه سړی له اصل رقم (هُم) دَ صدقے په (طور باندے) ورکول دَ تهولو نه ښه (خبره) ده۔

وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ۗ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۸۱﴾

ع ۳۸ ۶ او اوديريګئ هغے ورځے نه چه به په کښے تاسو دَ الله په طرف بوتلے شئ۔ بيا هرچا له به چه څه هغه ګټلی وی پوره (پوره) ورکيدلے شی او په هغوی باندے به رڅه قسم) ظلم نهٔ کيګی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ ۗ وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ ۠ وَلَا يَاْبَ كَاتِبٌ اَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ ۚ وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۗ فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا اَوْ ضَعِيْفًا اَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ ۚ وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ

يه ايمان دارو! هرکله چه تاسو دَ يو بل نه دَ يو مقرر مُودے دَ پاره قرض واخلئ نو هغه ليکئ او پکار دی چه څوک ليکونکے ستاسو تر منځهٔ (فيصله شوے لوظ نامه) په انصاف سره اوليکی۔ او هيڅ يو ليکونکے دِ دَ ليکلو نه انکار نهٔ کوی ځکه چه الله هغه ته (ليکل) ښودلی دی۔ بيا پکار دی چه هغه (ځانځا) اوليکی او ليکوانه به هغه کوی چه دَ چا په ذمه حق دے او پکار دی چه هغه (دَ ليکوانے په وخت) دَ الله چه دَ هغهٔ

فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ
مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا
الْاُخْرٰى ؕ وَلَا يَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا ؕ وَلَا تَسْـَٔمُوْٓا
اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ ؕ ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ
عِنْدَ اللّٰهِ وَاَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَاَدْنٰٓى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ
تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ
جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْهَا ؕ وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ ص وَلَا
يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ۬ ؕ وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌ
بِكُمْ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ
عَلِيْمٌ ﴿٢٨٢﴾

رب دے تقویٰ ترنظره لری او په هغے کښے هيڅ (هُم) کم نهٔ کړی - او کچرے هغه چه دَ چا په ذمه حق دے نادان وی يا ناتوان وی يا خپله دَ ليکوانے قدرت نهٔ لری نو پکار دی چه (دَ هغهٔ په ځائے) دَ هغهٔ کارپرداز انصاف سره (تحرير) په چا اوليکی - او تاسو دَ خپلو سړونه (په دغه موقعه) دوه گواهان جوړ وئ هَن کچرے دواړه گواهان سړی نهٔ وی نو (دَ موقع) دَ گواهانو نه کوم خلق چه (په طور دَ گواه) تاسو خوښوئ هغوی نه يو سړے او دوه ښځے (گواه جوړه وئ) (دَ دوه ښځو شرط دے دَ پاره دے) که هغوی کښے دَ يوے هير شی نو چه دواړو کښے يوه بله ته (خبره) ورياده کړی - او هرکله چه گواهان (راوغوښتے شی نو هغوی دِ انکار نهٔ کوی او که وړوکے (لين دين) وی يا لوئے تاسو ئے سره دَ موده دَ هغے په ليکلو کښے سُستی مهٔ کوئ - دا خبره دَ الله په نزد ډيره دَ انصاف ده او شهادت لره صحی ساتونکے ده - ورسره (تاسوله دا خبره) ډيره نزدے (کوونکے) ده چه تاسو شک کښے پرے نه وُزئ - (بيا نو دَ لين دين ليکل ضروری دی) سوا دَ هغے (صورت) نه چه لاس په لاس تجارت وی کوم چه تاسو خپلو کښے (مال او رقم) اخلئ (را اخلئ) (او په هغه وخت قصه ختموئ) دغه صورت کښے دَ دے (لين دين) په نهٔ ليکلو په تاسو باندے څه گناه نشته - او هرکله چه خپلو کښے اخستل خرڅول کوئ نو گواه جوړ وئ او (دا خبره ياده لرئ چه) نهٔ ليکونکی ته تکليف ورکړئ او نهٔ

گواه ته- او کچیرے تاسو (دا سے) اوکړئ نو دا (خبره) به تاسو کښے دَ نافرمانئ (نښه) وی او پکار دی چه تاسو دَ الله تعالیٰ تقویٰ اختیار کړئ- او (کچیرے تاسو دا سے کوئ نو) الله به تاسو ته علم درکړی او الله دَ هر څیز علم لری-

وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ؕ فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗۤ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ۲۸۳

او کچیرے تاسو په سفر یئ او تاسو چا لیکونکی سره څخ نهٔ شئ نو (د هغهٔ په ځائے) رهن سره دَ قبضے دے- بیا نو کچیرے تاسو کښے څوک سړے چا (بل چا له) امین اوګنړی (او هغهٔ ته څه رقم ورکړی) نو چه چالره امین ګنړلے شوے وی هغهٔ ته پکار دی چه دَ هغهٔ (یعنی دَ امانت لرونکی) امانت (کله چه او غوښتے شی) وا لیس کړی او دَ خپل ربوبیت کوونکی الله تقویٰ دِ اوکړی- او تاسو چرے هُم ګواهی مهٔ پټوئ او څوک چه دا پټه کړی په تحقیق سره هغه دا سے (سړے) دے چه زړهٔ ئے ګنهګار دے (او یاد لرئ چه) څه تاسو کوئ الله هغے نه خبر دے- ع ۳۹

لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْۤ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ؕ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ۲۸۴

او هرڅه چه آسمانونو کښے او زمکه کښے دی هُم دَ الله دی او هرڅه چه ستاسو زړونو کښے دی کچیرے تاسو هغه ښکاره کړئ یائے پټ اوساتئ الله به تاسو نه دَ هغے حساب اخلی- بیا چه چالره اوغواړی او به ئے بخښی او چه چالره اوغواړی عذاب به ورکړی او الله په هر یو څیز ښهٔ قادر دے-

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۟ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ

هرڅه چه په دے رسول دَ هغهٔ دَ رب دَ طرف نه نازل شوی دی په هغے باندے هغه (خپله هُم) ایمان (راوړی او (نور) هُم (ایمان راوړی) دا ټول الله او

رُسُلِهٖ ۚ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۫ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾

دَ هغه په فرښتو او دَ هغهٔ په کتابونو او دَ هغه په رسُولانو ایمان راوړی۔ (او وائی چه) مونږه دَ هغهٔ په رسُولانو کښے دَ یو (بل) ترمنځهٔ (څه) فرق نهٔ کوو او دا (هُم) وائی چه مونږه (دَ الله حُکم) اوریدلے دے او مونږه (دَ زړهٔ نه) هغے (حُکم) ته سر ایښے دے۔ (دا خلق دعا کانے کوی چه) یَه څمونږه ربّ! مونږه ستا بخښنه غواړو او هُم ستا په طرف (څمونږ) درتلل دی۔

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۭ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۭ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَي الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۫ وَاغْفِرْ لَنَا ۫ وَارْحَمْنَا ۫ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَي الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۸۶﴾ ع

الله په چا باندے علاوه دَ هغے (ذمه دارئ) نه چه دَ هغهٔ په وس کښے وی نوره ذمه داری نهٔ اچوی۔ څه چه هغهٔ (ښه) کار کړے وی (هغه به هُم) هغه لره (نفع مند) وی او چه (بد) هغهٔ کړی وی (هغه به هُم) دَ هغهٔ (په غاړه) وی (او هغوئ دا هُم وائی چه) یَه څمونږه ربه! کچرے زمونږ هیر شی یا غلطی او کړو نو مونږ ته سزا مهٔ راکوه۔ یَه زمونږه ربه! او نهٔ په مونږه (هغه شان) ذمه داری مهٔ اچوه څنګه چه تا په هغه خلقو باندے چه مونږه نه آګاهو (تیر شوی) دی اچولے وه۔ یَه څمونږه ربّ! او دا شان په مونږه (هغه پیتے) مهٔ اوچتوه چه دَ هغے دَ راوچتولو (څمونږه طاقت نشته او مونږه معاف کړه۔ او مونږه او بخښه او په مونږه رحم او کړه (ولے چه) ته څمونږ آقا ئے۔ بیا نو دَ کافرانو دَ ټولی خلاف څمونږ مدد او کړو۔




**سورة اٰل عمران - دا سورة مدنی دے او بسم الله سره دَدے یو دَپاسه دوه ۲۰۱ سوه آیتونه او شل ۲۰ رکوع دی۔**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(زهٔ) دَ الله تعالیٰ په نوم چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے (لولم)

الٓمّٓ ②

زه الله دَ ټولو نه زیات علم لرونکے یم۔

اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَيُّوْمُ ③

الله (رداسے ذات دے چه دَ هغه) نه سوا بل دَ پرستش لائق نشته۔ کامل حیات لری (او) ازلی دے (په خپل ذات کښے) قائم او ټولو له قائم ساتونکے دے۔

نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ④

مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۬ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ⑤

هغهٔ په تا باندے دا (کتاب) په حقو مشتمل نازل کړے دے چه هغے (وحی) له چه د دے (کتاب) نه آګا هو (راغلے) وه پوره کوُونکے دے او هغهٔ خلقو ته هدایت ورکولو دَ پاره دے نه وړاندے تورات او انجیل نازل کړے دے۔ کوم خلقو چه دَ الله دَ نښانالو انکار کړے دے هغوئ دَ پاره په تحقیق سره سخت عذاب دے او الله غالب (او) سزا ورکوُونکے دے۔

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَیْءٌ فِى الْاَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ؕ ⑥

الله (تعالیٰ) نه هیڅکله یو څیز پټ نهٔ دے (نهٔ) زمکه کښے او نهٔ آسمان کښے۔

هُوَ الَّذِىْ يُصَوِّرُكُمْ فِى الْاَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ⑦

هُم هغه دے چه څنګه اوغواړی (دَ میندو) په خیټو کښے تاسو ته شکل درکوی۔ دَ هغهٔ نه سوا دَ پرستش هیڅوک لائق نشته۔ هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

هُوَ الَّذِىْ اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ

هُم هغه (رخو) دے چا چه په تا باندے دا کتاب نازل کړے دے چه دَ هغے بعضے آیتونه خو محکم آیتونه دی چه دَ دے کتاب جرړے دی او نور

الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَأْوِيلِهِ ۗ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ
إِلَّا اللّٰهُ ۘ وَالرّٰسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ اٰمَنَّا بِهِ ۙ كُلٌّ
مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿٨﴾

رهغه دی چه) متشابه دی. بیا دکوموخلقو په زړونو کښے چه کګی ده هغوئ خو دَ فتنے په غرض او دے رکتاب) له ردَ دے دَحقیقت نه) اخوا کولو دَ پاره هغو رآیتونو) پسے را اخلی چه دے رکتاب) کښے متشابه دی. کنی تو دَ دے په تفسیر خو دَ خُدائے او پوره علم لرونکو نه سوا رچه) وائی رچه) مونږ په دے رکلام) رایمان) راوړو راوچه وائی چه دا) ټول هم زمونږ درب دَ طرف نه دے بل هیڅوک نهٔ پوهیګی او دَعقل مندو نه سوا هیڅوک نصیحت نهٔ اخلی.

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ
لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ﴿٩﴾

یَه څمونږه ربّ! تهٔ پس دَ هدایت راکولو څمونږه زړونه کاږهٔ مهٔ کړے او تل مونږه ته دَخپله دره دَ رحمت رسامان) راکړه. په تحقیق سره هُم تهٔ ډیر ورکوونکے ئے.

رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ
لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ﴿١٠﴾

یَه زمونږه ربّ! په تحقیق سره تهٔ به ټولو خلقو لره هغهٔ ورځ چه هغے کښے څه شک رشبه) نشته راغونډ وے الله هیڅکله دَ وعدے خلاف نهٔ کوی.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ
مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا ۖ وَأُولٰٓئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ﴿١١﴾

هغه خلق چه کافران دی دَ هغوی مالونه او اولاد به د خدائے په مقابله کښے هیڅ په ښه را نشی او هُم دغه خلق د دوزخ خشاک دے.

كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوا
بِاٰيٰتِنَا ۚ فَأَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ وَاللّٰهُ شَدِيدُ
الْعِقَابِ ﴿١٢﴾

د هغوئ رطریقه) دَ فرعون دَمنونکو او دَ هغو خلقو دَ طریقے غوندے ر ده) چه هغوئ نه آګاهُو وو. هغوی څمونږ دَ نشانانو انکار کړے وو. بیا څکه الله دَ هغوی دَ قصورونو په بدله کښے هغوی اونیول او دا الله عذاب سخت وی.

قُلْ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ إِلٰى جَهَنَّمَ ۚ

کوم خلق چه کافران دی هغوئ ته او وایه چه تاسو

وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٢﴾

په ځامخا پاتې راوستلې شئ اوجهنّم په طرف به په
یوځائې وروستلې شئ اوهغه دا ستوګنې (د پاره ۲
ډیرخراب (ځائې) دے۔

قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِیْ فِئَتَیْنِ الْتَقَتَا ؕ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِیْ
سَبِیْلِ اللّٰهِ وَاُخْرٰی كَافِرَةٌ یَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَیْهِمْ رَاْیَ
الْعَیْنِ ؕ وَاللّٰهُ یُؤَیِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ یَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ
لَعِبْرَةً لِّاُولِی الْاَبْصَارِ ﴿١٣﴾

دغو دواړو ټولوکښې چه یو بل سره په جنګ وُو
په تحقیق سره تاسو د پاره یو نښان وه (هغوی کښې)
یو ټولی خو د الله په لاره کښې جنګ کولو او دوئم
منکروه۔ هغه (یعنی مسلمان) هغوی (کافرانو) لره
(په خپلو) سترګو د ځان نه یو په دوه لیدل او الله
چه چا له غواړی په خپل مدد قوت ورکوی په
تحقیق سره دے (خبره) کښې سترګے لرونکو د
پاره یو نصیحت دے۔

زُیِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِیْنَ
وَالْقَنَاطِیْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَیْلِ
الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ؕ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَیٰوةِ
الدُّنْیَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿١٤﴾

خلقو ته (په عام ډول) خوند ورکونکی څیزونه یعنی
ښځے او ځامن او د سرو او سپینو زرو محفوظے خزانے
او خائستو اسونو او څارُوو او پټو سره محبت په
ښه شکل کښې ښودلے شوے دے۔ دا د دُنیا د
ژوند سامان دے او الله (خو) هغه (ذات) دے چا
سره چه ډیر ښه ځائے د استوګنے دے۔

قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَیْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ لِلَّذِیْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ
رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا
وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِیْرٌۢ
بِالْعِبَادِ ﴿١٥﴾

ته او وایه (چه) زه تاسو ته د دے نه (هم) ښه
څیز اوښائم؟ کوم خلق چه تقویٰ کوی د هغوی
د پاره د هغوی رب سره دا سے باغونه دی چه
ورلاندے نهرونه بهیګی (هغوئ به) هغو کښې
اوسی او ورسره هغوی د پاره) پاکے بیبیانے او
د الله رضا (مقدر) ده او الله خپلو بندیانو ته ګوری۔

اَلَّذِیْنَ یَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا
عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾

څوک چه وائی (چه) یَه زمونږه ربّ! په تحقیق سره
مونږ ایمان راوړے دے۔ دے د پاره ته زمونږه

غلطۍ مونږ ته معاف کړه او مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساته۔

اَلصّٰبِرِیْنَ وَالصّٰدِقِیْنَ وَالْقٰنِتِیْنَ وَالْمُنْفِقِیْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِیْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿۱۷﴾

څوک چه صبر کوونکی او رښتیا ویونکی او حکم منونکی او (د خدا ئے د پاره خپل مالونه) لګوونکی او د شپې په آخری وختونو کښې استغفار کوونکی دی۔

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ قَآئِمًۢا بِالْقِسْطِ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۱۸﴾ نصف

الله انصاف سره داګواهی ورکوی چه حقیقت هُم دا دے چه د هغه نه سوا (رب) څوک معبود نشته او فرښتې هُم او علم لرونکی هُم (داګواهی ورکوی) چه د هغهٔ نه سوا د پرستش هیڅوک (هُم) لائق نشته (هغه غالب او) د حکمت خاوند دے۔

اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۟ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْیًۢا بَیْنَهُمْ ؕ وَمَنْ یَّكْفُرْ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِیْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹﴾

په تحقیق سره د الله په نزد اصل دین پوره حکم منل دی۔ او صرف هغو خلقو چاله چه کتاب ورکړے شوے وُو د دے نه پس چه هغوی ته معلومه شوے وه خپلو کښې د فساد له کبله اختلاف اوکړو او څوک چه د الله د نښانانو انکار اوکړی (هغه دِ یاد لری چه) په تحقیق سره الله زر حساب کوونکے دے۔

فَاِنْ حَآجُّوْكَ فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِیَ لِلّٰهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ؕ وَقُلْ لِّلَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّیّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ؕ فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَیْكَ الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ بَصِیْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰﴾ ع ۲ ۱۱ ۱۰

اُس کچرے (د خلق) تا سره بحث کوی نوته (هغوئ) ته اووایه چه ما او هغه خلقو چه ما پسے دی خپل ځانونه د الله د حکم تابع کړی دی او کومو خلقو ته چه کتاب ورکړے شوے دے (هغوی) او (ور سره) امیانو ته اووایه چه آیا تاسو (هُم) حکم منئ۔ بیا که چرے هغوی حکم اومنی (نو پوهه شه چه) هغوی هدایت اوموندو او کچرے هغوی مخ واړوی نوستا کار بس رسول دی او الله بندیان وینی۔

اِنَّ الَّذِیْنَ یَكْفُرُوْنَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَیَقْتُلُوْنَ النَّبِیّٖنَ

کوم خلق چه د الله د آیتونو نه انکار کوی او ناحقه

بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّيَقْتُلُوْنَ الَّذِيْنَ يَأْمُرُوْنَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ ۙ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٢١﴾

نبیان قتلوی او ردا هُم چه) خلقونه هغه چه دَ انصاف هدایت ورکوی هغوی (هُم) قتلول غواړی نو هغوئ ته دَ دردناک عذاب خبرورکړه۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۫ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٢٢﴾

دا هغه خلق دی چه دَ چا عملونه به دے دنیا کښے (هُم) او آخرت کښے (هُم) تو ئے شی او دَ هغوئ به هیڅوک مددګار نهٔ وی۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ اِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ وَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٢٣﴾

آیا تا ته دَ هغه خلقو علم نشته چا ته چه دَ شریعت یوه برخه ورکړے شوے ده (چه هرکله) هغوئ دَ الله دَ کتاب په طرف را بللے شی۔ دے دپاره چه هغه دَ هغوئ ترمنځه فیصله اوکړی نو هغوی کښے څه خلق (ردےنه) اِعراض کولو سره مخ اړوی۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ۪ وَغَرَّهُمْ فِىْ دِيْنِهِمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿٢٤﴾

دا (اعراض) په دے سوب دے چه هغوئ وائی چه دَ شمیر دَ یوڅو ورځو نه سوا به مونږ ته هیڅکله اور نه راجوختګی او چه هغوی څه دروغ تړی هغے هغوی له (دهغوی دَ دین رپه کار) کښے دهوکه ورکړے ده۔

فَكَيْفَ اِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۣ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿٢٥﴾

هرکله به چه مونږ هغه ورځ چه هغے کښے څه شک وشبه) نشته هغوی راغونډوُو نو د هغوئ به څه حال وی او هر سړی به چه څه کټلی وی (په هغه ورځ به) هغهٔ ته پوره پوره ورکړے شی او په هغوئ باندے به (هیڅ) ظلم نشی کیدے۔

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِى الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ ۫ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ ۭ بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۭ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٦﴾

تهٔ او وایه چه یه الله چه دَ سلطنت مالک ئے تهٔ چه چا له غواړے سلطنت ورکوے او چه دَ چا نه غواړے سلطنت آخلے۔ چا له چه غواړے غلبه ورکوے او چا له چه غواړے ذلیل کوے ئے۔ تهوله ښیګړه هُم ستا لاس کښے ده او په تحقیق سره تهٔ په هر څیز قادر ئے۔

تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۡ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢٨﴾

ته شپه په ورځ کښې داخلوې او ورځ په شپه کښې داخلوې او د بې سا (څيز) نه د ساه (څيز) راوباسې او د ساه لرونکي نه بې ساه راوباسې او چه چاله غواړې بې حسابه ورکوې۔

لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿٢٩﴾

مومن دَ مومنانو په ځائے کافرانوله دوستان نهٔ جوړوی صرف دَ هغوی نه بنهٔ ځان ساتل تاسو دَ پاره جائز دی۔ او تاسو کښې چه څوک داسے اوکړی دَ هغه به هيڅ يوه خبره کښې الله سره (څه تعلق) نهٔ وی۔ او الله تاسو دَ عذاب نه ويروی او هُم الله ته به (ستاسو) ورتلل وی۔

قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۗ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٣٠﴾

تهٔ (هغوی ته) او وايه (چه) هر (څه) ستاسو سينو (زړونو) کښې دی هغه که چرے پټ کړئ يا هغه څرګند کړئ (په هرحال) الله به پرے خبريګی او هر څه په آسمانونو کښې دی هغے نه (هُم) او هر څه چه زمکه کښې دی (هُم) (الله) ته معلومه دی او الله په هر يو څيز بنهٔ قادر دے۔

يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۚ وَّمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ اَمَدًا بَعِيْدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ ﴿٣١﴾

(دَ هغه ورځے نه او ويريګئ) کومه ورځ به چه هر سړئ هره نيکی چه به هغهٔ کړی وی خپل وړاندے اووينی۔ او څه بدی به چه هغه کړی وی هغه هُم۔ هغه به غواړی چه دَ دے (بدئ) او دَ هغه ترمنځه ډيره فاصله وے۔ او الله تاسو دَ خپل عذاب نه ويروی او الله په بنديانو ډير شفقت کوونکے دے۔

قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٢﴾

تهٔ او وايه چه (ئے خلقو) که چرے تاسو الله سره مينه کوئ نو څما منئ۔ (دغه رنګ به) هغه (هُم) تاسو سره مينه کوی او ستاسو قصور به تاسو ته بخښی او الله ډير بخښونکے (او) ډير ډير رحم کوونکے دے۔

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

تهٔ او وايه رچه) تاسو دَ الله او دَ دے رسول اطاعت کوئ رپه دے) که چرے هغوئ مخ واړوی نو رياد لرئ چه) الله کافرانو سره هيڅکله مينه نهٔ کوی۔

اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰۤى اٰدَمَ وَنُوْحًا وَّاٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَاٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۳﴾

الله آدمؑ او نوحؑ رته) او دَ ابراهيمؑ خاندان او دَ عمرَان خاندان ته په تحقيق سره په ټولو جهانونو فضيلت ورکړے وه۔

ذُرِّيَّةًۢ بَعْضُهَا مِنْۢ بَعْضٍ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾

رهغهٔ) يو داسے نسل ته رفضيلت ورکړو) چه يو بل سره ئے پوره سمون لرلو او الله ډير اوريدونکے او ډير پوهه دے۔

اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّىْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِىْ بَطْنِىْ مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّىْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۵﴾

ريادکړئ) هرکله چه دَ رآلِ) عمران ښځے اووئيل چه يه ځما ربّ! څه چه ځما خيټه کښے دی رهغه) ما آزاد کړو او ستا نذر مِ کړے دے بيا نو رهغه) چه څنګه وی نهٔ ئے ځما دَ طرف نه قبول کړه۔ په تحقيق سره تهٔ ډير اوريدونکے راو) ډير پوه ئے۔

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّىْ وَضَعْتُهَاۤ اُنْثٰى ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ؕ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى ۚ وَاِنِّىْ سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَاِنِّىْۤ اُعِيْذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿۳۶﴾

بيا هرکله چه هغه د هغے دَ رزاوړو) نه اوزګاره شوه۔ هغے اووئيل چه يه ځما ربّ! ما خو دَا دَ جينئ په شکل کښے راوړے ده۔ او څه چه دَ هغے شوی وو د هغے پته الله ته دَ ټولو نه زيات وه۔ او ردَ هغے په خيال) هلک دَ رهغے) جينئ په شان نشوکيدے او ردے وئيل چه) ما دَ دے نوم مريم ايښے دے۔ او زهٔ دے لره او دَ دے اولاد لره دَ سړی او شيطان ردَ حملے) نه ستا په پناه کښے ورکوم۔

فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُوْلٍ حَسَنٍ وَّاَنْۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَّكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ۙ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ؕ

بيا دَ هغے ربّ هغے له ډير په ښه شان قبوله کړه او هغه ئے په ښه ډول لويه کړه او زکريا ئے دَ هغے مربّی جوړ کړو۔ هرکله به چه زکريا دَ کور دَ ټولو نه ښه حصّه

قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَاۗءُ
بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝٣٨

کښې هغې ته ورتلو (نو) هغې سره به ئې څه نه څه (خوراک) بیدو. بیا نو لیوه ورځ ئې چه د (اسے اولیده) هغه اووئیل چه یه مریم! دا تا دَ پاره کوم ځائے نه راغلی دے هغې اووئیل چه دَ الله دَ درنه. الله چه چاله غواړی په تحقیق سره بے حسابهٔ ورکوی.

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ مِنْ
لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۚ اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَاۗءِ ۝٣٩

بیا نو ذکریا خپل رب نه دُعا اوغوښته (او) وے وئیل چه یه ځما ربّ ته ماله خپله دره پاک اولاد راکړه. په تحقیق سره ته دعا کانے ډیرے قبلوے.

فَنَادَتْهُ الْمَلٰۗىِٕكَةُ وَھُوَ قَاۗىِٕمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ
اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًۢا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ
وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝٤٠

په دے فرښتو هغهٔ ته کله چه هغه دَکور دَتهولو نه ښه حصه کښې نموځ کولو آواز ورکړو چه الله تا ته دیحیٰی زیری درکوی چه دَ الله لوه خبره به پوره کوونکے وی. (ورسره به) سردار او (دَ کنا هونونه) منے کوونکے په نیکانو کښې به (په ترتیٔ) نبی وی.

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِىَ الْكِبَرُ
وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ۭ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاۗءُ ۝٤١

هغهٔ اووئیل چه یه ځما ربّ. ځما به زځما په ژوند (تر ډیره ژوندے) هلک څنګه کیګی. هرکله چه په ما زړښتوب (دَ زوړ عمر حالت) راغلے دے او ځما ښځه شنډه ده. وے فرمائیل الله هُم په دا (سے زکولو) قادر دے. هغه چه څه غواړی کوی.

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً ۭ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ
ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ۭ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ
وَالْاِبْكَارِ ۝٤٢ ع ۴ / ۱۲

(بیا) هغهٔ اووئیل یه ځما ربّ! ځما دَ پاره څه حکم راکړه. وے فرمائیل چه تا ته دا حکم دے چه تهٔ خلقو سره درے ورځو پورے دَ اشارے نه سوا خبره اونکړے او خپل رب ډیر یادوے او سحر ماښام دَ هغه ثناء صفت کوے.

وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰۗىِٕكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَ
طَهَّرَكِ وَاصْطَفٰىكِ عَلٰي نِسَاۗءِ الْعٰلَمِيْنَ ۝٤٣

(او هغه وقت یاد کړه) هرکله چه ملائیکو اووئیل چه اے مریم! په تحقیق سره الله تهٔ نازولے ئے او پاکه کړے ئے او دَ ټولو جهانونو ښځو په مقابله ئے تهٔ غوره کړے ئے.

يٰمَرۡيَمُ اقۡنُتِيۡ لِرَبِّكِ وَاسۡجُدِيۡ وَارۡكَعِيۡ مَعَ الرّٰكِعِيۡنَ ﴿۴۳﴾

یه مریم! ته د خپل رب حکم منه او سجده کوه او بس د ایکی یوخه اے پرستش کوونکو سره د ایکی یوخه اے پرستش کوه۔

ذٰلِكَ مِنۡ اَنۡۢبَآءِ الۡغَيۡبِ نُوۡحِيۡهِ اِلَيۡكَ‌ؕ وَمَا كُنۡتَ لَدَيۡهِمۡ اِذۡ يُلۡقُوۡنَ اَقۡلَامَهُمۡ اَيُّهُمۡ يَكۡفُلُ مَرۡيَمَ وَمَا كُنۡتَ لَدَيۡهِمۡ اِذۡ يَخۡتَصِمُوۡنَ ﴿۴۴﴾

دا د غیب په خبرونو کښے (یو خبر) دے چه مونږ ئے په تا (د) وحی (په ذریعه ښکاره) کوو۔ او هرکله چه هغوی غشی د دے د پاره ویشتل چه هغوی کښے به څوک د مریم خیال ساتی نو ته هغوی سره نه وے او نه خو ته (هغه وخت) هغوی سره وے هرکله چه هغوی جهګړه کوله۔

اِذۡ قَالَتِ الۡمَلٰٓـئِكَةُ يٰمَرۡيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنۡهُ ۖ اسۡمُهُ الۡمَسِيۡحُ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ وَجِيۡهًا فِى الدُّنۡيَا وَالۡاٰخِرَةِ وَمِنَ الۡمُقَرَّبِيۡنَ ﴿۴۵﴾

(بیا هغه وخت را یاد کړه) هرکله چه فرښتو ووئیل ورته چه یه مریم! الله تا ته د خپل یو کلام په ذریعه (د یو ملک) زیرئ درکوی۔ د هغه (مبشر) نوم به مسیح عیسیٰ ابن مریم وی چه په دے دنیا او آخرت کښے به د عزت (او رتبے) خاوند وی او (خدائے ته) نزدو (خلقو) کښے به وی۔

وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِى الۡمَهۡدِ وَكَهۡلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۴۶﴾

او په ځانګو (یعنی وړوکی عمر) کښے به هم خلقو سره خبرے کوی او په زوړ عمر کښے (هم) او نیکانو خلقو کښے به دی۔

قَالَتۡ رَبِّ اَنّٰى يَكُوۡنُ لِىۡ وَلَدٌ وَّلَمۡ يَمۡسَسۡنِىۡ بَشَرٌ‌ؕ قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ‌ؕ اِذَا قَضٰٓى اَمۡرًا فَاِنَّمَا يَقُوۡلُ لَهٗ كُنۡ فَيَكُوۡنُ ﴿۴۷﴾

هغے (ووئیل (چه) یه ځما ربّه! ځما به ماشوم څنګه کیګی هرکله چه څوک بشر ما ته را نزدے شوے نه دے۔ وے فرمائیل د الله (کار) هم داسے (وی) دے هغه چه څه اوغواړی پیدا کوی (او) هرکله چه هغه د څه خبرے فیصله اوکړی نو د هغے په حقله بس دا فرمائی چه ته پیدا شه نو هغه پیدا شی۔

وَيُعَلِّمُهُ الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ وَالتَّوۡرٰٮةَ وَالۡاِنۡجِيۡلَ‌ۚ ﴿۴۸﴾

او (د) زیرے ئے هم ورکړو چه الله به) هغه ته کتاب

او دَ حِکمت (خبرے) ښائی او تورات او انجیل (به ورته ښائی۔)

وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ اَنِّيْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ اَنِّيْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًا ۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ وَاُحْيِ الْمَوْتٰى بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَاْكُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِيْ بُيُوْتِكُمْ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝۵۰

او بنی اسرائیلو ته به ئے (دے پیغام سره) رسُول (رلیګی) چه زۀ تاسو له ستاسو دَ رب نه یو نښان سره راغلے یم (او هغه دا دے) چه زۀ ستاسو دَ (فائدے) دَ پاره دَ خٹو طینی (خاورین) خصلت لرُونکی نه دَ مارغه (دَ پیدا کولو) په رنګ (مخلوق) پیدا کوم بیا به زۀ هغوئ کښے رُوح پُوکم چه په هغے به هغوی دَ الله دَ حکم ماتحت الوتُونکی شی۔ او زۀ به دَ الله په حکم رانده او برص وهلی ښۀ کوم او مړی به ژوندی کوم۔ او څه چه تاسو خورئ او څه چه تاسو خپلو کورونو کښے جمع کوئ دَ هغے به تاسو ته خبردر کوم (او) که چرے تاسو مومنان یئ نو دے کښے به تاسو دَ پاره یو نښان وی۔

وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَلِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ وَجِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۣ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۝۵۱

او (زۀ هغه وحی) چه څما نه آګاهو (راغلے) ده یعنی تورات ته هغے له دَ پوره کوُونکی (په حیث) راغلے یم او دے دَ پاره (راغلے یم) چه څنے داسے څیزونه چه تاسو دَ پاره حرام کړے شوی وو تاسو دَ پاره ئے حلال کړم او زۀ تاسو دَ پاره ستاسو دَ رب دَ طرف نه یو نښان سره راغلے یم۔ څکه نو تاسو دَ الله تقویٰ اوکړئ او څما اطاعت اوکړئ۔

اِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝۵۲

په تحقیق سره الله څما (هُم) رب (دے) او ستاسو (هُم) رب دے بیا نو تاسو دَ هغهٔ عبادت کوئ دا نیغه لار ده۔

فَلَمَّآ اَحَسَّ عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۭ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا

بیا هرکله چه عیسیٰؑ دَ هغوئ دَ طرف نه انکار اولیدو نو وے وئیل چه دَ الله دَ پاره څوک څما مدد ګار رجوړیګی۔

بِاللّٰهِ ۚ وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۵۲﴾

حواريانو اووئيل چه مونږه دَ الله (دَدين) مددګاريُو مونږه په الله باندے ايمان لرو او ته ګواه اوسه چه مونږه حُکم منُونکي يُو۔

رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۳﴾

يه خُمونږه ربّه څه چه تا نازل کړي (را ستولي) دي په دے باندے مونږه ايمان راوړے دے او مونږه دَ دے رسُول مُنونکي شوي يُو۔ دے دَپاره ته مونږه په ګواهانو کښے اوليکه۔

وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿۵۴﴾ ع

او هغوئ (يعني دَ مسيح دښمنانو) هُم تدبيرُونه اوکړل او الله هُم تدبيرونه اوکړل او الله دَ ټولو تدبير کوُونکو نه ښه تدبير کوُونکے دے۔

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰٓى اِنِّىْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ اِلَىَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ اِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَاَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۵۵﴾

(هغه وخت يادکړه) هرکله چه الله اووئيل۔ اے عيسیٰؑ! زه به تا له (په طبعي ډول) وفات درکوم او تا له به دَخپله دره عزت درکوم او دَ کافرانو (دَ الزامونو) نه به تا پاکوم او څوک چه ستا مُنونکي دي هغوي به په هغه خلقو چه مُنکر دي دَ قيامت ترورځے پورے غالب ساتم۔ بيا به ماته ستاسو را تلل دي۔ هغه وخت به دَ دے خبرو په حقله چه په کښے تاسو اِختلاف کوئ ستاسو ترمنځه فيصله کوم۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَاُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۡ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۵۶﴾

بيا نو کوم خلق چه کافران دي هغوي له به زه (دے دُنيا (کښے هُم) او آخرت کښے (هُم) سخت عذاب ورکوم او دَ هغوي به هيڅوک مددګار نهٔ وي۔

وَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ۭ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۷﴾

او کوم خلق چه مومنان دي او هغوئ نيک (او مناسب دَ حال) عمل کړے دے هغه به هغوئ له (دَ عملونو) پوره (پوره) اجرورکوي۔ او الله ظالمانو سره مينه نهٔ کوي

ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ الْاٰيٰتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ﴿۵۸﴾

دا يعني آيتونه او دَ حکمت نه ډک تعليم مونږ تا ته

لو ستنے سره او روُو۔

اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ ؕ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٥٩﴾

ریاد لرئ ) دَعیسیٰ حال دَ الله په نزد په تحقیق سره دَ آدم دَ حال په رنګ دے هغه (یعنی آدم لره) هغهٔ دَ اوچے خاورے نه پیدا کړو بیا ئے دَ هغهٔ په حقله اووئیل چه ته وجود اُو نیسه نو هغه په وجود نیوُو شو۔

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿٦٠﴾

دا ستا دَ رب دَ طرف نه حق دے دے دَ پاره ته دَ شک کوُونکو نه نهٔ شے۔

فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ ۟ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ﴿٦١﴾

اوس څوک (سړے) چه پس دَ (الٰهی) علم دَ راتلو نه تا سره په دے حقله بحث اوکړی نو ته (هغه ته) اووایه (چه) راځه چه مونږه خپل ځامن او غواړو او تاسو خپل ځامن را او بلئ او مونږه به خپلے ښځے او تاسو به خپلے ښځے او مونږه به خپل نفوس او تاسو خپل نفوس بیا به په زارئ دعا اوکړو او په دروغژنو به دَ الله لعنت واستوُو۔

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٦٢﴾

په تحقیق سره هُم دا رښتونئ بیان دے او دَ الله نه سوا هیڅوک (هُم) دَ عبادت لائق نشته۔ او په تحقیق سره هُم الله غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِالْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٣﴾ ع

بیا که چرے هغوئ روستوشی نو (یاد لرئ چه) په تحقیق سره الله ته دَ فساد یانو ښه پته ده۔

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿٦٤﴾

ته او وایه (چه) اے دَ کتاب منوُنکو (کم نه کم) یوے داسے خبرے ته خو را شئ چه څمونږ او ستاسو ترمنځه یو شان ده۔ (او هغه دا ده) چه مونږ دَ الله نه سوا دَ چا عبادت او نکړوُ او هیڅ څیز لره دَ هغهٔ شریک نهٔ

کړو اونهٔ دِ مونږ الله پرېږدُو (او) خپلو کښې دِ يو بل لره رب جوړ کړو بيا که هغوئ روستو شی نو هغوی ته او وايه چه تاسو گواه اوسئ چه مونږ (دَ خدائے) منونکی يو۔

يٰۤاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوۡنَ فِىۡۤ اِبۡرٰهِيۡمَ وَمَاۤ اُنۡزِلَتِ التَّوۡرٰىةُ وَالۡاِنۡجِيۡلُ اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِهٖؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ‏ ﴿۶۵﴾

اے دَ کتاب منونکو! تاسو دَ ابراهيم په حقله بحث ولے کوئ۔ هر کله چه تورات او انجيل په تحقيق سره دَ هغهٔ نه پس نازل شوی دی۔ بيا تاسو نهٔ پوهيږئ۔

هٰۤاَنۡتُمۡ هٰٓؤُلَاۤءِ حَاجَجۡتُمۡ فِيۡمَا لَـكُمۡ بِهٖ عِلۡمٌ فَلِمَ تُحَآجُّوۡنَ فِيۡمَا لَـيۡسَ لَـكُمۡ بِهٖ عِلۡمٌؕ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ وَاَنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ‏ ﴿۶۶﴾

واورئ! تاسو هغه خلق يئ چه دَ هغه خبرو په حقله بحث کوئ (راکوئ) چه دَ کومو (په حقله) تاسو ته علم وُه بيا (اوس) تاسو ولے دَ هغو خبرو په حقله بحث کوئ چه دَ هغو تاسو ته څه (هُم) علم نشته۔ حال دا دے چه الله پوهيږی او تاسو نهٔ پوهيږئ۔

مَا كَانَ اِبۡرٰهِيۡمُ يَهُوۡدِيًّا وَّلَا نَصۡرَانِيًّا وَّلٰكِنۡ كَانَ حَنِيۡفًا مُّسۡلِمًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ‏ ﴿۶۷﴾

نهٔ خو ابراهيمؑ يهودی وه او نهٔ نصرانی بلکه هغه (دَ خدائے) حُکم منونکے او فرمانبردار وه او مشرکانو نه نهٔ وه۔

اِنَّ اَوۡلَى النَّاسِ بِاِبۡرٰهِيۡمَ لَـلَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡهُ وَ هٰذَا النَّبِىُّ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ؕ وَاللّٰهُ وَلِىُّ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ‏ ﴿۶۸﴾

ابراهيمؑ سره په خلقو کښې زيات تعلق لرونکی په تحقيق سره هغه خلق دی چه دَ هغه منونکی دی او (ورسره) دا نبی او کوم خلق چه ربه دهٔ باندے) ايمان راوړو او الله دَ مومنانو دوست دے۔

وَدَّتۡ طَّآئِفَةٌ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ لَوۡ يُضِلُّوۡنَكُمۡؕ وَمَا يُضِلُّوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَهُمۡ وَمَا يَشۡعُرُوۡنَ‏ ﴿۶۹﴾

دَ کتاب منونکو کښې يو ټولئ غواړی۔ چه کاش چه هغوئ تاسو بے لارے کړی او هغوئ (دا سے) هُم خپل ځانونه بے لارے کوی (او) نهٔ پوهيږی۔

يٰۤاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لِمَ تَكۡفُرُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَاَنۡتُمۡ تَشۡهَدُوۡنَ‏ ﴿۷۰﴾

اے دَ کتاب منونکو! تاسو سره دَ بيد لو ولے دَ الله دَ آيتونو انکار کوئ حال دا دے چه تاسو گواهی ورکړے دهٔ

يٰۤاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لِمَ تَلۡبِسُوۡنَ الۡحَـقَّ بِالۡبَاطِلِ وَتَكۡتُمُوۡنَ

اے دَ کتاب منونکو! ولے تاسو سره دَ يو ځے حق او باطل

الْحَقَّ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٧١﴾

ع ٨ ١٥ سره کړه وئ او حق پټوئ۔

وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اٰمِنُوْا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٧٢﴾

او دَ کتاب منونکو نه یو ټولئ وائی چه په مومنانو باندے چه څه نازل شوی دی په هغئ باندے دَ ورځے په شروکښے خو ایمان راوړئ او دَ هغے په روستو حصه کښے (دے نه) اِنکار اوکړئ۔ کیدے شی (چه دا شان) هغوی واوړی۔

وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ؕ قُلْ اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ ۙ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ ۚ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾

او (وائی چه) دَ هغه سړی نه سوا چه ستاسو دین منی دَ بل چا مهٔ منئ۔ تهٔ اووایه (چه) اصل هدایت یعنی دَ الله هدایت خو دا دے چه چا ته هُم هغه شان (څه) حاصل شی څنګه چه تاسو ته حاصل وُو یا بیا هغوئ دِستاسو دَ رب په حضور کښے تاسو سره اوجنګیګی۔ (او دا هُم) او وایه چه په تحقیق سره فضل خو دَ الله په لاس کښے دے هغه چه چاله غواړی فضل ورکوی او الله وسعت ورکوونکے او ډیر پوهه دے۔

يَّخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٧٤﴾

هغه چه چاله غواړی (هغه) خپل رحمت دَپاره ځے غوره کوی او الله ډیر فضل کوونکے دے۔

وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ اِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا فِى الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾

او دَ کتاب منونکو کښے (څوک خو) داسے دے چه که چرے تهٔ هغهٔ ته (دَ مال) یو ډیرئ دَ امانت په طور ورکړے نو هغه به هغهٔ تا ته واپس کړی او (څوک) هغوئ کښے (داسے) دی که چرے تهٔ هغهٔ ته یو دینار دَ امانت په طور ورکړے نو هغه به هغهٔ (هُم) تا ته واپس ورنکړی ترڅو چه تهٔ دَ هغهٔ (په سر) ولاړ نهٔ ځے۔ دا (خبره) په دے سوب ده چه هغوی وائی چه په مونږه دَ امیانو بخقله څه ګرفت (نیسل) نشته او هغوی الله باندے سره دَ پوهے دروغ تړی۔

بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝٧٦

داسے نهٔ ده بلکه چه کوم سړے خپل لوظ پوره کړی او تقوی اوکړی (او هغه متقی دے) په تحقیق سره الله تقوی دارو سره مینه کوی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ۠ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝٧٧

کوم خلق چه الله سره د خپلو لوظونو او قسمونو په بدل کښے لږ قیمت اخلی د هغه خلقو به آخرت کښے هیڅ برخه نهٔ وی او د قیامت په ورځ الله هغوی سره خبره نهٔ کوی او نهٔ به هغوی ته گوری او نهٔ به هغوی پاک گرزوی او هغوی د پاره دردناک عذاب (مقدر) دے۔

وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝٧٨

او په تحقیق سره هغوی کښے یو ټولی (داسے) دے چه خپلے ژبے د کتاب (یعنی تورات) په ذریعه اړوی دے د پاره چه تاسو (هغوی چه څه وائی) د کتاب نه اوگنړئ (روے) په حقیقت کښے هغه د کتاب نه نهٔ وی او هغوی وائی چه هغه د الله د طرف نه دی (روے) حقیقت کښے هغه د الله د طرف نه نهٔ وی او هغوی سره د پوهے په الله باندے دروغ تړی۔

مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ۝٧٩

چا (ربښتونی) انسان سره نهٔ ښائی چه الله خو هغهٔ له کتاب او حکومت او نبوت ورکړی او هغه (دا) اووائی (چه) تاسو د الله په ځائے ځما بندیان جوړ شئ بلکه (داسے انسان خو دا وائی چه) تاسو هُم د خدائے شئ ولے چه تاسو د (الٰهی) کتاب تعلیم ورکوئ او دے د پاره چه تاسو (دا) یاد وئ۔

وَلَا يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا ۭ اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝٨٠ ع ١٦

او نهٔ (خو هغهٔ د پاره) دا (ممکنه ده) چه تاسو ته دا هدایت درکړی چه تاسو فرښتو او نبیانو له رب جوړ کړئ۔ آیا ستاسو د مسلمانیدو نه پس به هغه تاسو ته د کفر (کولو) تعلیم درکوی۔

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ
كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا
مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ؕ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ
وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ ؕ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ؕ قَالَ
فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨١﴾

(او هغه وخت هُم یاد کړئ) هرکله چه الله (د کتاب منونکو نه) د ټولو نبیانو نه هغه پوخ لوظ آخستے وه چه څه هُم کتاب او حکمت زهٔ تاسو له درکړم بیا تاسو له څوک (د داسے) رسول راشي چه دا کلام پوره کوونکے وی چه تاسو سره دے نو تاسو به په هغهٔ خامخا ایمان راوړئ او خامخا د هغه مدد کوئ (او) فرمائیلی ئے وُو چه آیا تاسو اقرار کوئ او په دے باندے څما (د طرف نه) ذمه داری قبلوئ (او) هغوی وئیلی وُو۔ (مونږه اقرار کوُو۔ وے فرمائیل او س تاسو گواه او سئ او زهٔ هُم تاسو سره د گواهانو نه (یو گواه) یم۔

فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٨٢﴾

او س هر څوک (سرے) چه د دے لوظ نه واوړی نو داسے خلق به فاسقان وی۔

اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗٓ اَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ
وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿٨٣﴾

بیا آیا هغوئ د الله د دین نه سوا (بل یو دین) غواړی حقیقت دا دے چه په آسمانُونو او زمکه کښے چه (څوک هُم) دے په خوښئ یا په ناخوښئ (هُم) د هغهٔ حُکم منُونکے دے او هُم هغهٔ ته به ورزی۔

قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ
وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ
اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۪ لَا نُفَرِّقُ
بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۫ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿٨٤﴾

تهٔ او وایه (چه) مونږه په الله (باندے) او څه چه مونږه باندے نازل کړے شوی دی۔ (په هغے باندے) او چه څه په ابراهیمؑ او اسماعیلؑ او اسحاقؑ او یعقوبؑ او (د هغهٔ په) اولاد باندے نازل کړے شوی دی او څه چه موسیٰؑ او عیسیٰؑ ته او (باقی) ټولو نبیانو ته د هغوی د رب د طرف نه ورکړے شوی وُو په هغے باندے ایمان راوړُو او هغوئ کښے چا یو له د بل نه بیل نهٔ گنړُو او مونږه د هغه فرمان منُونکی یُو۔

وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ

او څوک چه د اسلام نه سوا څه (بل) دین باندے تلل

وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۸۵﴾

او غواړي نو (هغه دِ يا دلري چه) هغه به د هغهٔ نه هيڅکله نهٔ قبليګی۔ او په آخرت کښے به هغه نقصان اوچتوونکو نه وی۔

كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْٓا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّجَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۶﴾

کوم خلق د ايمان راوړو نه پس (بيا) منکر شوی وی او شهادت ئے ورکړے وی چه (دا) رسول په حقه دے او (ورسره) هغوئ له دليلونه هم راغلی وی ۔ هغوی لره الله څنګه سمے لارے (هدايت) ته راولی او الله (زحو) ظالمانو (خلقو) ته هدايت نهٔ ورکوی۔

اُولٰۗىِٕكَ جَزَاۗؤُهُمْ اَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَالْمَلٰۗىِٕكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۸۷﴾

دا خلق داسے دی چه د هغوئ سزا دا ده چه په هغوی باندے د الله او د فرښتو او (سره) د خلقو د ټولـــو لعنت وی۔

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۸۸﴾

هغوی به دے (لعنت) کښے اوسی۔ نهٔ (زحو) به په هغوئ (باندے) عذاب کمولے شی او نهٔ به هغوی ته ډيل ورکيدے شی۔

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۣ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۸۹﴾

سوا د هغو خلقو چه د دے نه پس توبه اوکړی او اصلاح اوکړی۔ او په تحقيق سره الله ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ ۚ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الضَّاۗلُّوْنَ ﴿۹۰﴾

څوک چه د ايمان راوړو نه پس منکر شوی وی بيا هغوی په کفر کښے نور هم وړاندے شوی وی د هغوی توبه به هيڅکله نهٔ قبليګی او هم دغه خلق بے لارے دی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْ اَحَدِهِمْ مِّلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا وَّلَوِ افْتَدٰى بِهٖ ۭ اُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَّمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۹۱﴾ ع

څوک چه منکر شوی وی او (هم) د کفر په حال مړهٔ شوی وی هغوئ کښے به د چا نه د زمکے هومره سرهٔ زر (هم) کوم چه هغوئ د فديے په طور پيش کړی هيڅکله قبول نشی دغو خلقو د پاره دردناک عذاب (مقدر) دے او د هغوی به څوک هم مددګار نهٔ وی۔

لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۚ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٩٢﴾

تاسو پوره نیکي هیڅکله نشئ حاصلولے ترڅو پورے چه دَ خپلے خوښے څیزونو کښے (دَ خدا ئے دَپاره) ورنکړئ او څه هُم چه تاسو ورکړئ په تحقیق سره الله ته دَ هغے ښه پته ده۔

كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِلَّا مَا حَرَّمَ اِسْرَآءِيْلُ عَلٰى نَفْسِهٖ مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ۗ قُلْ فَاْتُوْا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٩٣﴾

ټول طعامونه سوا دَ هغے برخے چه اسرائیلو (یعني حضرت یعقوبؑ) دَ تورات دَ راتلونه آګاهو خپل ځانونو له مکروه کړ زوے وُو دَ بني اسرائیلو دَ پاره حلال وُو ته او وایه که چرے تاسو ښتُوني يئ نو تورات راوړئ او هغهٔ اولولئ۔

فَمَنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٩٤﴾

اوس څوک چه دے نه پس (هُم) په الله باندے دروغ اوتړي نو هُم هغه خلق ظالمان دي۔

قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ۗ فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۗ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٩٥﴾

ته او وایه چه الله ریښتیا وئیلی دی۔ دے دَپاره تاسو ابراهیمؑ دَ دین چه (دَ خدائے) حُکم منونکے وه پیروي کوئ او هغهٔ دَ مشرکانو نهٔ وه۔

اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِيْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٦﴾

دَ ټولونه اولنئ کور چه دَ ټولو خلقو (دَ فائدے) دَ پاره جوړ شوے وُه هغهٔ دے چه مکه کښے دے هغهٔ دَ ټولو جهانونو دَ پاره دَ برکت (مقام) او (موجب) دَ هدایت دے۔

فِيْهِ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِيْمَ ۚ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ۗ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ۗ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٧﴾

دے کښے ډیر ښځے ښکاره نښانات دي (هغه) دَ ابراهیمؑ دَ دے ځائے دے او څوک چه دے کښے داخل شي هغه په امن کښے شي او الله په خلقو باندے فرض کړی دی چه هغوئ دَ دے کور حج اوکړي۔ یعني دَ هرچا (هُم) چه دے پورے دَ تلو وس اولري۔ او څوک چه انکار اوکړي نو (هغه دِ یاد اولري چه) الله دَ ټولو جهانونو نه بے پرواه دے

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ

ته او وایه (چه) اے دَ کتاب منونکو! تاسو دَ الله دَ

شَهِيْدٌ عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۹﴾

آیتونو نه انکار وے کوئ کنی حقیقت دا دے چه الله ستاسو په عملونو نگران دے۔

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ
مَنْ اٰمَنَ تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا وَّ اَنْتُمْ شُهَدَآءُ ۭ وَمَا اللّٰهُ
بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

(دا هُم ته) او وایه (رچه) اے دَ کتاب منُونکو اِخوک چه ایمان راوړی هغه تاسو دَ الله دَ لارے نه ولے منع کوئ۔ تاسو دا (لاره) په کږه طریقه غواړئ کنی حقیقت دا دے چه (ددے باندے) تاسو گواه یئ۔ اوځه چه تاسو کوئ الله دے نه هیڅکله غافل نهٔ دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ
اُوْتُوا الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۱﴾

یَه دَ ایمان خاوندانو! که چرے تاسو دے خلقو کښے چه چاته کتاب ورکړے شوے وُو دَ چا یوے ډلے اطاعت کوئ نو هغوئ به ستاسو دَ ایمان راوړونه پس بیا تاسو کافر کړی۔

وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ وَ
فِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ ۭ وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ فَقَدْ هُدِيَ
اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۰۲﴾ ع

او تاسو به څنګه کُفر کوئ هرکله چه تاسو هغه خلق یئ چاته چه دَ الله آیتونه په لوستنے اوروے شی او تاسو کښے دَ هغهٔ رُسول (موجود) دے۔ اوڅوک چه دَ الله پناه واخلی نو (پوهه شه چه) هغه په نیغهٔ لاره سم کړے شو۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا
تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

یَه ایمان دارو! دَ الله تقویٰ سره دَ دے دَ ټولو شرطونو کوئ او (یکاردی) چه په تاسو دا سے حال کښے مرګ راشی چه تاسو پُوره حُکم منُونکی یئ۔

وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا ۠
وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ اَعْدَآءً
فَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖٓ اِخْوَانًا ۚ
وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَاَنْقَذَكُمْ
مِّنْهَا ۭ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ
تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

او تاسو ټول دَ الله رسئ کلکه اونیسئ اوتفرقه مه اچوئ او دَ الله احسان (چه هغهٔ) په تاسو باندے (کړے) دے یاد کړئ چه هرکله تاسو (دَ یو بل) دښمنان وئ هغهٔ ستاسو په زړُونو کښے مینه پیدا کړه چه دَ هغے په نتیجه کښے تاسو دَ هغهٔ دَ احسان له کبله رونړه شوئ او تاسو دَ اور دَ یو کندے په غاړه

وی ولې هغهٔ تاسو دَ دے نه بچ کړئ دا شان الله ستاسو دَ پاره خپل آیتُونه بیانوی ځکه چه تاسو هدایت اومومئ.

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

او تاسو کښې یوه داسې ډله پکار ده چه دَ هغې کار بس دومره وی چه هغه ر خلق ) دَ نیکئ طرف ته راغواړی او دَ ښو خبرو تعلیم ورکړی او دَ بدو نه ئې راٹنے کړی او هُم دا خلق به کامیا بیږی.

وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۙ﴿۱۰۵﴾

او تاسو دَ هغهٔ خلقو په شان مهٔ کیږئ چه دَ ښکاره نښانو دَ راتلو نه پس ئې تفرقه واچوله او هغوئ رخپلو کښې) اختلاف پیدا کړو او هُم دغو خلقو دَ پاره رهغه ورځ ) لوئے عذاب رمقدر ) دے.

يَّوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ وَّ تَسْوَدُّ وُجُوْهٌ ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ ۣ اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۱۰۶﴾

کومه ورځ چه به ځنے مخونه سپین وی او ځنے مخونه به تور وی او دَ کومو خلقو مخونه به چه تور شی رهغوئ ته به او وئیلے شی چه ) آیا ر دا رښتیا نهٔ دی چه) تاسو دَ خپل ایمان راوړو نه پس کافر شوی وئ. دے دَ پاره دَ خپلو کافر کیدلو له کبله دا عذاب اوڅکئ.

وَاَمَّا الَّذِيْنَ ابْيَضَّتْ وُجُوْهُهُمْ فَفِيْ رَحْمَةِ اللّٰهِ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۷﴾

او دَ کومو خلقو مخونه به چه سپین شی هغوی به دَ الله په رحمت کښې وی هغوئ به دے کښې اوسی.

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ؕ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۸﴾

دا دَ الله آیتُونه دی چه په حقو باندے مشتمل دی راو ) کوم چه مونږ تا ته په لوستنه اوروُو او الله په ټولو جهانُونو باندے څه قسم ظلم کول نهٔ غواړی.

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۱۰۹﴾ ع

او څهٔ چه په آسمانُونو کښې دی او څه په زمکه کښې دی ر ټول ) هُم دَ الله دی او هُم دَ الله په طرف به ټول امور لوټلے شی.

كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ؕ وَلَوْ اٰمَنَ

تاسو ر دَ ټولو نه ) ښهٔ جماعت یئ تاسو نیکئ ته بلنه ورکوئ او دَ بدئ نه منع کوئ. او په الله باندے ایمان

اَهۡلُ الۡكِتٰبِ لَكَانَ خَيۡرًا لَّهُمۡ ؕ مِنۡهُمُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَ
اَكۡثَرُهُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ ﴿۱۱۰﴾

لرئ او که چرے دَکتاب منُونکو هُم ایمان راوړے وے نو
هغوی دَپاره به ښه وه. هغوئ کښے ځنے مومنان هُم
دی او ډیر پکښے نافرمان دی.

لَنۡ يَّضُرُّوۡكُمۡ اِلَّاۤ اَذًى ؕ وَاِنۡ يُّقَاتِلُوۡكُمۡ يُوَلُّوۡكُمُ
الۡاَدۡبَارَ ۚ ثُمَّ لَا يُنۡصَرُوۡنَ ﴿۱۱۱﴾

دا (خلق) دلږغوندے تکلیف رسولونه سوا تاسو ته
هیڅ نقصان نشی رسولے او که چرے هغوئ تاسو سره
جنګ کوی نو تاسو نه به په شا ز غلی. بیا به هغوئ ته دَ یو
طرف نه هُم مدد نشی حاصلیدے.

ضُرِبَتۡ عَلَيۡهِمُ الذِّلَّةُ اَيۡنَ مَا ثُقِفُوۡۤا اِلَّا بِحَبۡلٍ مِّنَ اللّٰهِ
وَحَبۡلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوۡ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتۡ
عَلَيۡهِمُ الۡمَسۡكَنَةُ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقۡتُلُوۡنَ
الۡاَنۡۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقٍّ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوۡا وَّكَانُوۡا يَعۡتَدُوۡنَ ﴿۱۱۲﴾

په هغوئ باندے ذلت نازل شوے دے. سوا دَ دے
نه چه هغوئ دَ الله دَخه نوط یا دَخلقو دَخه لوظ په
پناه کښے راشی (دے ذلت نه نشی بچ کیدے) او هغوئ
دَ الله دَ غضب لاندے راغلی دی. او بے وسی دَ هغوئ
ترغاړے کړے شوے ده. دا په دے سوب (شوی)
دی چه هغوئ به دَ الله دَ آیتونو انکار کولو او ناحقه
به ئے نبیان قتلول غو ښتل (او) دا خبره دَ هغوئ
دَ نافرمانئ کولو او دَ حده وتلو په سوب (هغوئ
کښے موجوده) وه.

لَيۡسُوۡا سَوَآءً ؕ مِنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتۡلُوۡنَ
اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيۡلِ وَهُمۡ يَسۡجُدُوۡنَ ﴿۱۱۳﴾

هغه ټول (خلق) برابر نهٔ دی. کتاب منُونکے یو داسے
جماعت هُم شته (چه په خپل لوظ باندے) ټینګ دے
هغوی دَ شپے په وختونو کښے دَ الله آیتونه لُولی او
سجدے (هُم) کوی.

يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَيَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمَعۡرُوۡفِ
وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ وَيُسَارِعُوۡنَ فِى الۡخَيۡرٰتِ ؕ
وَاُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۱۱۴﴾

هغوئ په الله (باندے) او په راتلُونکے ورځ باندے
ایمان لری او نیکئ ته (خلق) غواړی او دَ بدئ نه منے
کوی او دَ نیکئ په کارُونو کښے دَ یو بل نه وړاندے ځی
او دا خلق نیکانو کښے دی.

وَمَا يَفۡعَلُوۡا مِنۡ خَيۡرٍ فَلَنۡ يُّكۡفَرُوۡهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌۢ

او هره نیکی چه هغوئ اوکړی دَ هغے ناقدری به نهٔ کیګی

بِالْمُتَّقِيْنَ﴿۱۱۵﴾

او الله متقیان ښه پیژني۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ
اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ
هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴿۱۱۶﴾

کوم خلق چه کافر دی۔ نهٔ دَ هغوئ مالونه اونهٔ دَ هغوئ اولادونه به هغوی دَ خدائے دَ عذاب نه بچ کړي۔ او دغه (خلق) اُور (کښې پریوتونکی دی۔ او په دے کښې به اوسی۔

مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ
رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ
فَاَهْلَكَتْهُ ۭ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ
يَظْلِمُوْنَ﴿۱۱۷﴾

هرڅه چه دا (خلق) دَ دے نړدے ژوند په حقله لګوی دَ هغے حال په مثل دَ هغے هوا دے چه پکښې ډیره یخنی وی (او) هغه دَ داسے قام په پټی ورشی چا چه په خپل ځان ظُلم کړے وی بیا هغه هغے له تباه کړه او الله په دغو (خلقو) ظلم اونکړو۔
هن! دوئ په خپلو ځانُونو خپله ظُلم کوی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ
لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا ۭ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ بَدَتِ
الْبَغْضَاۗءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ښ وَمَا تُخْفِيْ صُدُوْرُھُمْ
اَكْبَرُ ۭ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ
تَعْقِلُوْنَ﴿۱۱۸﴾

یَه ایمان دارو! دَ خپلو خلقو په ځائے (نور خلق) راز دار دوستان مهٔ جوړه وئ۔ هغوئ تاسو سره په بدسلوکئ کښې هیڅ کمئ نهٔ کوی (او) ستاسو په تکلیف کښې پریوتل خوښوی (دَ دوئ) دښمنی دَ دوئ دَ خُلونه ښکاره شوے ده اوڅه چه دَ دوئ په سینو (زړونو) کښې پټ دی هغه (دَ دے نه هُم) زیات دی۔ که چرے تاسو دَ عقل نه کار اخستونکی یئ نو مونږ ه تاسو دَ پاره خپل آیتُونه په ډاګه بیان کړی دی۔

هٰٓاَنْتُمْ اُولَاۗءِ تُحِبُّوْنَھُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ وَتُؤْمِنُوْنَ
بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا ښ وَاِذَا خَلَوْا
عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ۭ قُلْ مُوْتُوْا
بِغَيْظِكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ﴿۱۱۹﴾

وا وریځ! تاسو هغه خلق یئ چه هغوئ سره مینه کوئ وے حقیقت کښې هغوئ تاسو سره مینه نهٔ کوی (ځکه) تاسو ټول په کتاب ایمان راوړئ او هرکله چه هغوئ تاسو مخ شی نو وائی چه مونږه (هُم) ایمان لرُو او هرکله چه هغوئ ځان له شی نو ستاسو خلاف دَ قهر نه ګوتے پریکوی (په ګوتو چک لګوی) ته هغوئ ته اووایه تاسو دَ خپل

تهرنه مره شئ ۔

اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا بِهَا ؕ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ؑ﴿۱۲۰﴾

ع

که چرې تاسو ته څه کامیابي حاصله شي نو په هغوی بدلګي او کچرې تاسو ته څه تکلیف او رسي نو هغوئ په دے خوشحالیګي او کچرې تاسو صبر اوکړئ او تقوی اوکړئ نو دَ هغوئ ردا دَ مخالفت) کرتوت تاسو ته څه (هُم) نقصان نشي رسولے او هرڅه چه هغوئ کوی په تحقیق سره الله هغے له ریزه ریزه کوونکے دے۔

وَاِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۙ﴿۱۲۱﴾

او رهغه وخت یادکړئ ) هرکله چه ته دَ خپل کور دَ خلقو نه اووتے (او) سحرصبا دے دَ پاره تلے وے چه مومنان دَ هغوئ په مقرره ځایونو کینوے او الله (تعالٰی ستا دُعاګانے) ډیر اوریدونکے (او ستاسو دَ حالاتو) نه ښهٔ خبردار دے۔

اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتٰنِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا ۙ وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

ربیا هغه وخت هُم یادکړئ ) هرکله رچه دَ دے حالاتو په لیدو ) تاسو کښے دوه ډلے زړه باښیلو نه تیارے شوے وے ۔ کنی په حقیقت کښے الله دَ هغوی دوست وهٔ او مومنانو له خو هُم په الله باور کار دے ۔

وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

او ردَ دے نه آګاهو دَ بدر (په جنګ) کښے هرکله چه تاسو لږ (حقیر) وئ په تحقیق سره الله تاسو ته مدد درکړے دے بیا نو تاسو دَ الله تقوی اوکړئ چه تاسو شکرګزار شئ۔

اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ ؕ﴿۱۲۴﴾

رهغه وخت هُم یادکړئ ) هرکله چه تامومنانو ته و ئیلے چه آیا تاسو دَ پاره به دا (خبره ) کافی نهٔ وی چه ستاسو رب (دَ آسمان نه ) نازل کړی درے زره ۳۰۰۰ فرښتو سره ستاسو مدد اوکړی۔

بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ

ولے به (کافی ) نهٔ وی ! که چرې تاسو صبر اوکړئ او

هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ۝۱۲۵

تقویٰ اوکړئ ۔ او هغوئ (کافر کړے) په تاسو باندے په دے دم راوخیژی نو ستاسو رب به پنځه زره سخت حمله کوونکو فرښتو سره ستاسو مدد اوکړی ۔

وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ۚ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝۱۲۶
لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنْقَلِبُوْا خَآئِبِيْنَ ۝۱۲۷

او الله دا (خبره) لیس ستاسو د پاره د خوشخبرئ په طور باندے او دے د پاره چه ستاسو زړونه د دے په ذریعه تسلی اوموی مقرر کړے ده ۔ چه هغه (یعنی الله) د کافرانو حصه پریکړی یا هغوئ ذلیل کړی چه هغوئ نامراده واپس لاړ شی ۔ کنی نو مدد خو (لس هم) د الله د طرف نه (راځی) دے ۔ چه غالب (او) د حکمتونو خاوند دے ۔

لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ ۝۱۲۸

ستا په دے معامله کښے هیڅ (دخل) نشته (دا ټول کار د خدائے په لاس کښے دے) که اوغواړی نو په هغوئ باندے به فضل اوکړی او که غواړی نو هغوئ له به عذاب ورکړی (او هغوی هم د عذاب لائق دی) ولے چه هغوئ ظالمان دی ۔

وَلِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۱۲۹

او څه چه آسمانونو کښے دی او څه چه زمکه کښے دی (ټول) هم د الله دی هغه چه چاله غواړی عذاب ورکوی او الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝۱۳۰

یه ایمان دارو ! تاسو (په خپلو مالونو باندے) سود (چه مال) بے حسابه زیاتوی مه خورئ او د الله تقویٰ اوکړئ چه تاسو کامیاب شئ ۔

وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِىْٓ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ۝۱۳۱

او د هغه اور نه او وېرېږئ چه د منکرانو د پاره تیار شوے دے ۔

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝۱۳۲

او د الله او د دے رسول اطاعت کوئ چه تاسو باندے رحم اوکړے شی ۔

وَ سَارِعُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَ الْاَرْضُ اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۳﴾

او دَ خپل رب نه دَ نازلیدونکی بخښنے (په طرف) او دَ هغے جنت په طرف چه دَ هغے قیمت زمکه او آسمان (آسمانونه) دی او چه متقیانو دَ پاره تیار شوے دے وړاندے شئ۔

الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِى السَّرَّآءِ وَ الضَّرَّآءِ وَ الْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَ الْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۴﴾

کوم (متقیان) چه په خوشحالئ (کښے هُم) او تنګدستئ کښے (هُم) (دَ خدائے په لاره کښے) خرچ کوی او غصه خوړونکی او خلقو له معاف کوونکی دی۔ او الله محسنانو سره مینه کوی۔

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۪ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۪۟ وَ لَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾

هُن (دَ هغه خلقو دَ پاره) چه دَ څه بدکار دَ کولو په صورت کښے یا په ځپلو ځانونو دَ ظلم کولو په صورت کښے الله یادوی۔ او دَ ځپلو غلطو معافی غواړی او دَ الله نه سوا څوک قصور معاف کولے شی او څه چه هغوی کړی وی په هغے باندے سره دَ پوهے ضد نهٔ کوی۔

اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَجَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۱۳۶﴾

دا خلق دا سے دی چه دَ هغوئ اجر به هغوئ دَ رب دَ طرف نه (نازلیدونکے) مغفرت (بخښنه) او داسے باغونه وی چه دَ هغے لاندے به نهرونه بهیګی او هغوی به هغے کښے اوسی او دَ کارکوونکو (دا) بدله څومره ښه ده۔

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ فَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۳۷﴾

تاسو نه آګاهو ډیر دستورونه تیر شوی دی (دَ هغے نښے که ګورئ) نو په مزکه (دنیا کښے) او ګرزئ او او ګورئ چه (دَ دروغژنو) دَ نهٔ منونکو انجام څنګه (خراب) وُه۔

هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَ هُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾

دا (ذکر) دَ خلقو دَ پاره ډیر وضاحت کوونکے دے او متقیانو دَ پاره هدایت او نصیحت دے۔

وَ لَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَ اَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۹﴾

او تاسو کمزوری مهٔ ښکاروئ او مهٔ غم کوئ او که چرے تاسو مومنان یئ نو هُم تاسو به برلاسئ۔

إِنْ يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ ۚ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿۱۴۰﴾

که چیرے تاسو ته څه زخم (تکلیف) اورسي نو دغو خلقو ته هم خو هم دغه رنګ زخم رسیدلے دے او دا (د غلبے) ورځے دا سے دي چه هغے له مونږ د خلقو ترمنځه ګرځوو کله یو کښي کله بل (چه هغوی نصیحت واخلي) او دے د پاره چه الله دغه خلق ښکاره کړي چه ایمان ئې راوړے دے او تاسو کښے (ځنې) شهیدان کړي او الله ظالمان نهٔ خوښوي۔

وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ ﴿۱۴۱﴾

او دے د پاره چه ځوک مومنان دي هغوئ له الله پاک او صفا کړي او کافران هلاک کړي۔

أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ﴿۱۴۲﴾

آیا تاسو (دا) ګنړلي دي چه تاسو به جنت کښے داخل شئ کنی حقیقت دا دے چه تر اوسه الله تاسو کښے هغه خلق چه مجاهدین دي ښکاره کړي نهٔ دي او نهٔ هغوی چه صبر کوي هغهٔ تر اوسه ښکاره کړي دي۔

وَلَقَدْ كُنتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِن قَبْلِ أَن تَلْقَوْهُ ص فَقَدْ رَأَيْتُمُوهُ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴿۱۴۳﴾ ع ۱۴ ۱۴ ۵

او تاسو (خلقو) د دے مرګ غوښتنه د هغے د وخت د راتلو نه آګاهو هم کوله۔ بیا نو (اوس) تاسو هغه په دے حال کښے لیدلے دے چه د هغے تهوله ښکلا او بد رنګي په تاسو ښکاره شوے ده (بیا اوس ولے تښتئ)۔

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ انقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ۚ وَمَن يَنقَلِبْ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا ۗ وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ ﴿۱۴۴﴾

او محمد بس یو رسول دے۔ دهٔ نه وړاندے ډیر رسولان تیر شوي دي۔ بیا که چیرے هغه وفات شي یا قتل کړے شي نو آیا کنی تاسو به په ځپلو کیڼو واپس کیږئ۔ او کوم سړے چه په ځپلو کیڼو واپس شي هغه به د الله هیڅکله څهٔ نقصان نشی کولے۔ او الله به شکر کوونکو ته خامخا بدله ورکوي۔

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ كِتَابًا

او د الله د اذن نه سوا هیڅ یو نفس نشي مړکیدے روے

مُّؤَجَّلًاؕ وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْیَا نُؤْتِهٖ مِنْهَاۚ وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَاؕ وَسَنَجْزِی الشّٰكِرِیْنَ ﴿۱۴۵﴾

چه الله) دَ یو مقرر وخت فیصله (کړې ده) او کوم سړې چه دَ دنیا دَ بدلے غوښتونکے وی مونږ ه به هغهٔ له دَ دے نه ورکوُو۔ او څوک سړے چه دَ آخرت بدله غواړی مونږه به هغهٔ له دَ هغے نه ورکوُو او شکر کوُونکو له به خامخا بدله ورکوُو۔

وَكَاَیِّنْ مِّنْ نَّبِیٍّ قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّیُّوْنَ كَثِیْرٌۚ فَمَا وَهَنُوْا لِمَاۤ اَصَابَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْاؕ وَاللّٰهُ یُحِبُّ الصّٰبِرِیْنَ ﴿۱۴۶﴾

او ډیرځنے نبیان دا سے (تیر) دی چه هغوئ سره یوځائے (دَ هغوئ) دَ جماعت ډیرځنے خلقو جنګ اوکړو بیا نهٔ رخو) هغوئ دَ (تکلیف) له کبله چه هغوئ ته دَ الله په لاره کښے رسیدلے وه سُست شول او نهٔ ئے کمزوری اوښودله او نهٔ هغوئ (دَ ښمنانو وړاندے) کمزوری اوښودله۔ او الله دَ صبر کوُونکو سره مینه کوی۔

وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِیْۤ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَی الْقَوْمِ الْكٰفِرِیْنَ ﴿۱۴۷﴾

او سوا دَ دے خبرے هغوئ هیڅ (هُم) او نهٔ وئیل چه (یه) څمونږه رب! څمونږه غلطئ (یعني یا تے راتلل) او څمونږه عَملُونو کښے څمونږه زیاتئ مونږ ته معاف کړه او څمونږه قدمُونه مضبوط کړه او دَ کافرانو خلقو خلاف څمونږه مدد اوکړه۔

فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْیَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِؕ وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۴۸﴾ ع ۵

په دے باندے الله هغوئ له دَ دُنیا بدله (هُم) او دَ آخرت دَ ټولو نه ښه بدله (هُم) ورکړه او الله محسنانو سره مینه کوی۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تُطِیْعُوا الَّذِیْنَ كَفَرُوْا یَرُدُّوْكُمْ عَلٰۤی اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِیْنَ ﴿۱۴۹﴾

یه ایمان دارو! که چرے تاسو دَ هغه خلقو فرمانبرداری کوئ چه کافران دی نو هغوئ به تاسو په کیتهو واپس کړی (یعني دَ حقُونه به مو واړوی) چه دَ هغے له کبله به تاسو نقصان اوچتوُونکی شئ۔

بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْۚ وَهُوَ خَیْرُ النّٰصِرِیْنَ ﴿۱۵۰﴾

(تاسو نقصان اوچتوُونکی نهٔ یئ) بلکه الله ستاسو مددګار دے۔ او هغه دَ ټولو مدد ورکوُونکو نه ښهٔ دے۔

سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَآ اَشْرَكُوْا
بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۚ
وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۵۱﴾

کوم خلق چه مُنکر دی مونږ به دَ هغوی په زړونو کښے په دے سوب چه هغوئ هغه څیزلره دَ الله شریک ګرزولے دے چه دَ هغے هغهٔ څه دلیل نهٔ دے راستولے۔ په تحقیق سره رُعب واچوؤ او دَ هغوئ دَ اوسیدو ځائے اُور دے او دَ ظالمانو دَ استوګنے ځائے لره څومره خراب دے

وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ
حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِى الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ
بَعْدِ مَآ اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ۭ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا
وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ
لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۭ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ
عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵۲﴾

او الله (رهغه وخت) هرکله چه تاسو دَ هغهٔ په حُکم هغوئ په وهلو وهلو فنا کول په تحقیق سره تاسو سره خپله وعده پُوره کړه تردے پورے چه هرکله تاسو سُستی اوکړه او (دَ رسُول الله) دَحکم په حقله موخپلو کښے جهګړه اوکړه او دَ هغے نه پس چه څه تاسو خوښول هغه ئے تاسو ته ښودلی وُو (تاسو) نافرمانی اوکړه (نو هغهٔ درنه خپل مدد وغوے کړو) ځنے تاسو کښے دَ دُنیا غوښتونکی وُو۔ او ځنے تاسو کښے دَ آخرت غوښتونکی وُو۔ بیا هغهٔ ستاسو دَ آزمیښت کولو دَپاره تاسو دَ هغوئ (یعنی دَ دُښمانو) دَحملے نه اوساتلئ او په تحقیق سره هغهٔ تاسو معاف کړی یئ۔ او الله په مومنانو باندے لوئے فضل کوُونکے دے۔

اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوٗنَ عَلٰٓي اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ
يَدْعُوْكُمْ فِيْٓ اُخْرٰىكُمْ فَاَثَابَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا
تَحْزَنُوْا عَلٰي مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَآ اَصَابَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ
بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵۳﴾

هرکله چه تاسو په منډه زغلیدئ او چرته مو په شانهٔ کتل (او) حقیقت کښے رسُول ستاسو دَ ټولونه روستو جماعت کښے (ولاړ وُه او) تاسوئے غوښتئ' دے باندے هغهٔ تاسو له دَ یو غم په بدل کښے یو بل غم درکړو دا ځکه چه څه تاسونه زی روان دی او چه کوم (تکلیف) تاسو ته رسیدلے دے په دے باندے تاسو غمژن نشئ (ونځهٔ چه تاسو کوئ الله ته هغه معلومه ده۔

ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى

بیا هغهٔ دَ دے غم نه پس په تاسو باندے دَ زړهٔ

طَآئِفَةً مِّنكُمْ ۖ وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ
يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ۖ يَقُولُونَ
هَل لَّنَا مِنَ الْأَمْرِ مِن شَيْءٍ ۗ قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ ۗ
يُخْفُونَ فِي أَنفُسِهِم مَّا لَا يُبْدُونَ لَكَ ۖ يَقُولُونَ لَوْ
كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هَاهُنَا ۗ قُل لَّوْ
كُنتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ
إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمْ ۖ وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ
وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ
الصُّدُورِ ﴿١٥٤﴾

تسلی یعنی خوب نازل کړو چه په تاسو کښې په یو ټولی باندې راتلو او یو ټولۍ داسې وه چه هغوی لره دَهغوئ ځانونو هغوی فکر کښې اچولی وو، هغوی دَ الله بحقله دَجاهلیت دَ گمانونو په شان دَ دروغو گمانونه کول. هغوئ وئیل چه آیا حکومت کښې ځمونږه څه هُم (دخل) شته. ته او وایه (چه) حکومت ټول هُم دَ الله دے. هغه (یعنی منافق) په ځپلو زړونو کښې هغه څه پټوی چه هغه هغوئ په تا نهٔ ښکاره کوی. هغوئ وائی چه کچرې ځمونږه (هُم) په حکومت کښې لاس وې نو مونږه به دلته نهٔ قتلیدے. ته او وایه (چه) کچرې تاسو ځپلو کورونو کښې (هُم) اوسیدے نو (بیا به) هُم په کومو خلقو باندې جنگ فرض شوے دے هغوئ به دَ (قتلیدو نه پس) دَخپل ملاستی ځایونو په طرف ځامخا په وتلی (دے دَپاره چه الله خپل حُکم پُوره کړی) او دے دَپاره چه څه ستاسو په سینو (زړونو) کښې دی الله دَ هغې امتحان واخلی او چه څه ستاسو په زړونو کښې دی هغه (پاک او) صاف کړی او الله دَسینو (زړونو) په خبرو (هُم) ښه پوهیږی۔

إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا
اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا ۖ وَلَقَدْ عَفَا
اللَّهُ عَنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٥٥﴾ ع

کومه ورځ چه دوه ډلې لښکرې یو بل ته مخامخ شوې وې هغه ورځ تاسو کښې چه څوک په شا شوی وُو هغوئ ته بس دَ هغوی دَ څنو عملونو له کبله شیطان غورزول غوښتلی وُو او په تحقیق سره اوس الله هغوئ معاف کړی دی. په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بُردبار دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا وَقَالُوا

یه ایمان دارو! تاسو دَ هغه خلقو په شان مهٔ کیګی چه

لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا ضَرَبُوا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا عِندَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿۱۵۶﴾

کافران شوی دی او دَ خپلو رونړو په حقله هرکله چه هغوئ په مُلک کښے (دَ جهاد په غرض) سفرکوی یا جنګ دَپاره راووزی وائی چه کچرے هغوی مونږ سره وے نو نهٔ به مړهٔ کیدے او نهٔ به قتلیدے ځکه چه الله (تعالیٰ) (دَ هغوئ) دا (قول) دَ هغوئ په زړونو کښے دَ حسرت موجب کړی او (هُم) الله ژوندی کوی او وژنی او څه چه تاسو کوئ الله هغه وینی۔

وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿۱۵۷﴾

او کچرے تاسو دَ الله په لاره کښے او وژلے شئ یا مړهٔ شئ نو په تحقیق سره دَ الله (دَ طرف نه ستاسو په طرف راتلونکے) بخښنه او رحمت به دَ دے نه چه هغوئ ئے جمع کوی ډیر ښه دی۔

وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴿۱۵۸﴾

او کچرے تاسو مړهٔ شی یا او وژلے شئ نو تاسو به خامخا (هُم) دَ الله په طرف غونډ (یوځائے) بوتللے شئ۔

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ ۖ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ۖ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴿۱۵۹﴾

او تهٔ (هُم) دَ هغه عظیم الشان رحمت له کبله چه دَ الله دَ طرف نه (تا ته درکړے شوے) دے دَ هغوئ دَپاره نرم یُے او کچرے تهٔ بد اخلاقه او په زړه سخت وے نو دا خلق به ستا نه اخوا دیخوا شوی وے بیا نو تهٔ هغوئ معاف کړه او هغوئ دَپاره (دَ خدائے نه) بخښنه اوغواړه۔ او دَ حکومت (په کاروبار) کښے هغوئ نه صلاح آخله۔ بیا هرکله چه تهٔ (دَ څه خبرے) پخه اراده اوکړے نو په الله باندے توکل کوه۔ په تحقیق سره الله توکل کوونکو سره مینه کوی۔

إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿۱۶۰﴾

او کچرے الله ستاسو مدد اوکړی نو په تاسو باندے څوک غالب نشی (راتلے) او کچرے هغه ستاسو مدد پریږدی نو دَ هغه نه سوا څوک دے چه ستاسو مدد

به کوی۔ او مومنانو له (هُم) په الله باندے توکل
یکار دے۔

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ۚ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۱﴾

او هیڅ یو نبی سره نهٔ بنائی چه هغه خیانت اوکړی او چه څوک خیانت اوکړی هغه به خپل خیانت سره حاصل کړے (مال) خپله د قیامت په ورځ څرګند کړی بیا به هرچا چه څهٔ هغه ګټلی وی پوره پوره ورکړے شی او په هغوئ باندے به ظُلم نهٔ کیګی۔

اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۶۲﴾

آیا هغه سړے چه د الله رضا پسے زی د هغه سړی په شان کیدے شی چه د الله د طرف نه (نازلیدُونکی) غضب سره والپس شی او د هغهٔ ځائے جهنم وی او هغهٔ ځائے (د استوګنے په لحاظ) ډیر خراب دے۔

هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۳﴾

هغه (خلق) د الله په نزد مختلف درجے لری او څه چه هغوئ کوی الله هغه وینی۔

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۶۴﴾

النصف

الله مومنانو کښے د یو داسے رسُول په راستولو چه هغوئ ته د هغه نشانات اوروی او هغوی پاکوی او هغوئ ته کتاب او حکمت ښائی په تحقیق سره په هغوئ باندے احسان کړے دے او هغوئ (د دے نه) آګاهو په یقین سره په ښکاره (او څرګنده) ګمراهئ کښے (پراته) وُو۔

اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ۙ قُلْتُمْ اَنّٰى هٰذَا ۖ قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ۖ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۶۵﴾

او آیا (د دا ریښتیا نهٔ دی چه) هرکله (هُم) تاسو ته څه داسے تکلیف او رسیدو چه د هغے په دوه هومره تاسو (خپله) رسولے وُو نو تاسو اووئیل چه دا د کوم ځائے نه (را غلے) دے۔ (نهٔ (هغوئ ته) او وایه چه هغه (خپله) ستاسو د خپل طرف نه راغلے دے۔ په تحقیق سره الله په هر اَمر پوره قادر دے۔

وَمَآ اَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۶۶﴾

اوکومه ورځ چه دواړه ټولی یو بل سره مخامخ شوی وُو (هغهٔ ورځ) چه کوم (تکلیف) تاسو ته رسیدے وه (هغه) (هُم) دَ الله په حُکم (رسیدلے) وه او ځکه (رسیدلے وه) چه هغه منافقان او مومنا ن

وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ نَافَقُوْا ۚ وَقِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوِ ادْفَعُوْا ؕ قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّا اتَّبَعْنٰكُمْ ؕ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ اَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْاِيْمَانِ ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُوْنَ ۚ ﴿۱۶۷﴾

ښکاره کړی او هغو (منافقانو) ته وئیلی شوی وو چه راشئ دَ الله په لار کښے جنګ اوکړئ او (دَ دښمن حمله) ایساره کړئ (په دے باندے) هغوئ اووئیل که چرے مونږ ته جنګیدل راتلے نو خامخا به تاسو سره تلے - هغوی هغه ورځ دَ ایمان په نسبت کُفر ته زیات نږدے وُو هغوئ په خپلو خلو هغه څه وئیل چه دَ هغوی په زړونو کښے نشته (نهٔ وُو) او څه چه هغوی پټوی الله هغه دَ ټولو نه زیات پیژنی -

اَلَّذِيْنَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوْا لَوْ اَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا ؕ قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۶۸﴾

(دا هغه خلق دی) چا چه دَ خپلو (ورونړو) بحقله په داسے حال کښے چه هغوئ خپله (روستو) ناست (پاتے) وُو وئیلی وُو چه که چرے هغوئ څمونږ خبره منودلے وے نو قتل شوے به نهٔ وے - (تهٔ هغوئ ته) اووایه چه که چرے تاسو (رښتونی یئ نو (اوس) دَ خپل ځانه مرګ اخوا کئ -

وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ۙ ﴿۱۶۹﴾

کوم خلق چه دَ الله په لار کښے وژلی شوی دی تاسو هغوئ هیڅکله مړهٔ مهٔ ګنړئ هغوئ خو دَ خپل ربّ سره ژوندی دی (او) هغوئ ته رزق ورکیدے شی -

فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۙ وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ ۙ اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۷۰﴾

ربع

هغوئ په دے باندے چه (الله هغوئ ته په خپل فضل ورکړی دی خوشحاله دی او دَ هغو خلقو بحقله (هُم) چه لا پورے هغوئ پسے (په راتګ) هغوئ سره یو ځائے شوی نهٔ دی خوشحاله دی - (وائے چه) هغوئ ته (او دَ هغوئ دَ مذهب منکرو ته) به هیڅ ویره نهٔ وی

اونهٔ به هغوئ غمژن وي۔

يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷۱﴾

(هن) هغوئ په دے لوئے نعمت باندے چه د الله د طرف نه (هغوئ ته ورکړے) شوے دے او (د هغهٔ) په فضل باندے او په دے خبره باندے چه الله د مومنانو اجر نهٔ ضائع کوي خوشحاليږي۔

ع ۱۷ / ۸

معانقة ۳ عند المتقدمين

اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ۛؕ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۲﴾

کومو خلقو چه د الله او د رسُول حُکم د خپلو زخمي کيدلو نه پس (هُم) او منلو هغوئ کښے د هغو د پاره چا چه په ښهٔ شان خپل فرض ادا کړے دے او تقویٰ ئے اختيار کړے ده لوئے اجر دے۔

اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖۗ وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ﴿۱۷۳﴾

(دا) هغه (خلق دي) چا ته چه دښمنانو وئيلي وُو چه خلقو ستاسو خلاف (لښکر) جمع کړے دے۔ د دے د پاره تاسو هغوئ نه اووېرېږئ نو دے (خبرے) د هغوئ ايمان نُور هم زيات کړو او هغوئ اووئيل چه څمونږ د پاره (ذات د) الله کافي دے او هغه څنګه ښهٔ کارساز دے۔

فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۷۴﴾

بيا نو هغوئ د الله د طرف نه بے د څهٔ نقصانه ډېر لوئے نعمت او لوئے فضل سره ستانه (وا پس) شول او هغوئ د الله رضا پسے روان شول او الله ډېر لوئے فضل کوُونکے دے۔

اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ ۪ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷۵﴾

دا (ېره ورکوُونکے) لس (لو) شيطان دے هغه خپل دوستان يرَه وي۔ که چرے تاسو مومنان يئ نو د دغو (شيطانانو) نه مهٔ ويرېږئ او ما نه ويرېږئ۔

وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۶﴾

او کوم خلق چه په کفر کښے زر زر (ر) وړاندے کيږي هغوئ دِ تا غمژن نهٔ کړي! هغوئ هيڅکله الله ته څهٔ ضرر نه شي رسولے۔ الله غواړي چه آخرت کښے هغوئ د پاره هيڅ

برخه پرے نهٔ بزدی او هغوئ دَپاره لوئے عذاب (مقدر) دے۔

إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٧﴾

کوم خلق چه دَ ایمان په ځائے کفر اختیار کړے دے هغوئ الله ته هیڅکله څهٔ ضرر نشی رسولے او هغوئ له به دردناک عذاب وی۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِأَنْفُسِهِمْ ۚ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ ﴿١٧٨﴾

او کُوم خلق چه کافران دی هغوئ دِ هیڅ کله دا خیال اونکړی چه ځمونږ هغوئ ته مولت ورکول دَ هغوئ دَ ذات دَپاره ښهٔ دی۔ مونږ چه هغوئ ته مولت ورکوُو (نو) دَ دے نتیجه به بس (دَ هغوئ) ګناهونو کښے زیاتیدل وی۔ او هغوئ دَپاره رُسوا کوونکے عذاب (مقدر) دے۔

مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِنْ رُسُلِهِ مَنْ يَشَاءُ ۖ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٩﴾

دا (هیڅ و) ممکنه نهٔ وه چه په کوم حال باندے تاسو (خلق) یئ الله په هغے باندے ترڅو پورے چه هغهٔ (یعنی الله) ناپاک لره دَ پاک نه بیل کړی نهٔ وے (تاسو په رنګ) مومنان سَتے پریخوے وے۔ او الله تاسو په غیب باندے هیڅکله نشوے خبرَ وَلے۔ هن! الله خپلو رسُولانو کښے چه چاله غواړی۔ غوره کوی بیانو تاسو په الله (رباندے) او دَ هغهٔ په رُسولانو باندے ایمان راوړئ۔ او که چرے تاسو ایمان راوړئ او تقوی اختیار کړئ نو تاسو ته به لوئے اجر درکړے شی۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَهُمْ ۖ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَهُمْ ۖ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٨٠﴾ ع

او کوم خلق چه دَ دے (مال په ورکولو) کښے چه الله هغوئ ته په خپل فضل ورکړے دے بُخل کوی هغوئ دِ خپل ځان دَپاره (دا) هیڅ کله ښهٔ اونهٔ ګنړی (ښه نهٔ ده) بلکه هغه دَ هغوئ دَپاره خرابه ده په کومو مالونو کښے چه هغوئ دَ بُخل نه کار آخلی په تحقیق سره

دَ قیامت په ورځ به دَ دوئ نه طوق جوړولے شي را او دَ دوئ په مروګینے به اچولے شي) او دَ آسمانونو او مزکو میراث هُم دَ الله دَ پاره دے او څه چه تاسو کوئ الله ځنے نه خبر دے۔

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّ نَحْنُ اَغْنِيَآءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَ قَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّ نَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ (۱۸۱)

کومو خلقو چه وئیلی دی چه الله (رخو) محتاج دے او مونږه غنیان یُو۔ په تحقیق سره الله دَ دوئ (دا) خبره اوریدلے ده۔ مونږه به دَ دوئ دا خبره او دَ دوئ دَ نبیانو وژلو لیسے په ناحقه راخستل په تحقیق سره لیکلے ساتُو او مونږه به (دوئ) ته وایُو چه سوزُونکے عذاب اوڅکئ۔

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ (۱۸۲)

دا (عذاب) چه څه ستاسو لاسُونو وړاندے استولی دی دَ ځنے په سوب به وی۔ او حق دا دے چه الله په خپلو بندیانو ظُلم نهٔ کوی۔

اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ؕ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَ بِالَّذِيْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۱۸۳)

کومو خلقو چه وئیلی دی چه په یقین سره الله مونږ ته تاکیدی حُکم راکړے دے چه مونږه (ترهغه وخته پورے) دَ چا رسُول خبره او نهٔ منُو ترڅو پورے چه هغهٔ دَ داسے قربانئ (حُکم) را نهٔ وړی چه هغه اورخوری۔ تهٔ (دوئ ته) او وایه چه ډیر ځنے رسُولانو تاسو له ځما نه آګاهو ښکاره نښانات راوړی دی او هغه (څیز) هُم چه تاسو بیان کړے دے۔ بیا کچرے تاسو رښتونی یئ نو دَ هغوئ وژلو لیسے مو ولے راخستے وه۔

فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ وَ الزُّبُرِ وَ الْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ (۱۸۴)

بیا کچرے هغوئ ستا انکار اوکړی نو (ریا څه اوشول) تا نه آګاهو دَ ډیرو ځنو رسُولانو (هُم) چه ښکاره نښانات، نوښتے او څرګند شریعتونه ئے راوړی وُو انکار شوے دے۔

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۗ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ
يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ
فَقَدْ فَازَ ۗ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿۱۸۵﴾

هر یو به دَ مرګ څوند اخلی او تاسو ته به بس دَقیامت په ورځ ستاسو (دَ عملونو) پوره بدلے درکولے شی بیا چه څوک دَ اور نه لرے او ساتلے شی او جنت کښے داخل کړے شی هغهٔ کامیاب شو او دا دَ دُنیا ژوند (سامان) خولس فریب ورکوُونکے عارضی سامان دے۔

نَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ ۗ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ
اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى
كَثِيْرًا ۗ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ
الْاُمُوْرِ ﴿۱۸۶﴾

ستاسو به ستاسو دَ مالُونو او ستاسو ځانُونو پخقله خامخا ازمېښت کیګی او تاسو به خامخا دَ هغهٔ خلقو نه چا ته چه تاسو نه آګاهو کتاب ورکړے شوے وُه او دَ هغوئ نه (هُم) چه مشرکان دی ډیر تکلیف (ورکوُونکے کلام) اورئ او کچرے تاسو صبر اوکړئ او تقویٰ اختیار کړئ نو په تحقیق سره دا دَ همت کارونو کښے ده۔

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ
لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ ۡ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ
وَاشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۗ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

او (هغهٔ وخت یاد کړئ) هر کله چه دَ الله دَ هغه خلقو نه چاله چه کتاب ورکړے شوے دے لوظ آخستے وه چه تاسو به خامخا خلقو ته دا (کتاب) ښکاره کوئ او دا به نهٔ پټوئ ولے سره دَ دے هغوئ دا په شا اوغورزولو او دَ دے په ځائے ئے لږ قیمت واخستو۔ څه چه هغوئ آخلی هغه څومره خراب دی۔

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ
يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ
الْعَذَابِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸۸﴾

تهٔ هغهٔ خلقو ته چه په خپلو کړونازیګی او (څه رکار) چه هغوئ نهٔ دے کړے دَ هغے پخقله (هُم) غواړی چه دَ هغوئ تعریف اوشی هیڅکله خیال اونکړے چه هغوی دَ عذاب نه امان کښے دی (هغوئ به نیولے شی) او هغوئ دَ پاره دردناک عذاب (مقدر) دے۔

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ
ع ۱۹ ۱۰ قَدِيْرٌ ﴿۱۸۹﴾

او دَ آسمانُونو او زمکے حکومت هُم دَ الله دے او الله په هره خبره پُوره (پُوره) قادر دے

اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ

(هغه عقلمند) چه په ولاړه او ناسته او په خپلو

وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۰﴾
الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ
وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا
خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾

ارخونو باندے الله یادوائی - (او وائی چه) یه څمونږه
ربّ! تا دا (عالم) بے فائدے نۀ دے جوړ کړے - ته
(د داسے بے مقصده کار کولونه) پاک ئے - بیا نو ته مونږ
د اور د عذاب نه اوساته (او څمونږه ژوند د بے مقصد
جوړیدو نه اوساته).

رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ۭ وَمَا
لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۱۹۲﴾

یَه څمونږه ربّ! چاله به چه ته اور کښے اچوے هغه
خو تا یقینی ده چه ذلیل کړو - او د ظالمانو به هیڅوک
(هُم) مددگار نۀ وی.

رَبَّنَآ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا
بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ڰ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا
سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾

یَه حمونږه ربّ! مونږه د یو داسے داعی (آواز
ورکوونکی) آواز واوریدو چه د ایمان (ورکولو) د
پاره بلنه کوی - (او وائی) چه په خپل رب باندے ایمان
راوړئ - بیا نو مونږه ایمان راوړو - دے د پاره یه څمونږه
رب! ته څمونږه قصورونه معاف کړه او څمونږه بدئ
څمونږ نه لرے کړه او مونږ له نیکانو سره (شامل) وفات راکړه.

رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ
الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾

(او) یَه څمونږه رب! مونږه له هغه (څه) راکړه چه د
هغے تا د خپلو رسولانو (په ژبه) مونږ سره وعده کړے
ده او د قیامت په ورځ مونږه ذلیل مه کړے - ته د
خپلے وعدے نه خلاف هیڅ کله نۀ کوے.

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّيْ لَآ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ
مِّنْكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِيْنَ
هَاجَرُوْا وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِيْ سَبِيْلِيْ
وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ
جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ
اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾

بیا نو د هغوئ رب (په داسے وئیلو) د هغوئ (دُعا)
واوریده چه زۀ به تاسو کښے د چا عمل کوونکی عمل
که هغه سړے وی یا ښځه نۀ تولوم - تاسو یو بل
سره (تعلق ساتونکی) یئ - بیا نو چه چا هجرت اوکړو او
هغوئ د خپلو کورونو نه اوویستئ شول او څما په
لاره کښے ورته تکلیف ورکړے شو او هغوئ جنګ
اوکړو او اووژلے شول - زۀ به د هغوئ د بدئ (اثر)

دَ هغوئ (دَ جسم) نه په يقين سره لرے کوم او يقيني دهٔ چه زهٔ به هغوئ له داسے باغُونو کښے داخلوم چه دَ هغے لاندے به نهرُونه بهيګي (دَ انعام) دَ الله دَ طرف نه دَ بدلے په طور به ورکيدے شي. او الله خو هغه دے چه ورسره دَ ټولونه ښهٔ جزا ده.

لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ ﴿١٩٦﴾

څوک چه کافران دي دَ هغوئ په ملک کښے په آزادئ ګرزيدل تا هيڅکله دهوکه کښے وا نهٔ چوي.

مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٩٧﴾

دا عارضي ګټه ده هغے نه پس دَ هغوئ ځائے به جهنّم (کښے) دي. هغه ډير خراب ځائے (دَ استوګنے) دے.

لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِّنْ عِندِ اللَّهِ ۗ وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ لِّلْأَبْرَارِ ﴿١٩٨﴾ نصف

وے کومو خلقو چه دَ خپل رب تقوئ اختيار کړے ده. دَ هغوی دَ پاره داسے باغُونه دي چه هغے لاندے نهرونه بهيګي. هغوئ به هغو کښے اوسي (دا به) دَ الله دَ طرف نه دَ ميلمستيا په طور دي او چه څه الله سره دي هغه دَ نيکانو خلقو دَ پاره نُور (هُم) ښهٔ دي.

وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَمَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُمْ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِمْ خَاشِعِينَ لِلَّهِ لَا يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۗ أُولَٰئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩٩﴾

او دَ کتاب منُونکو کښے څنے خلق په تحقيق سره داسے (هُم) دي چه په الله (باندے) او څه چه په تا (باندے) نازل شوي دي (هغے باندے) او څه چه په هغوئ باندے نازل شوي دي (په هغے باندے) ايمان لري او ورسره (هغوئ) دَ الله وړاندے عاجزي (هُم) کُوونکي دي (او) دَ الله دَ آيتونُو په بدل لږ قيمت نهٔ اخلي. دا داسے خلق دي چه دَ هغوئ دَ عملُونو بدله دَ هغوئ رب سره هغوی دَ پاره (محفوظه) ده. يقيني ده چه الله زر حساب کُوونکے دے.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٢٠٠﴾ ع

يه ايماندارو! صبر نه کار اخلئ او (دَ دښمن نه زيات) صبر ښائي او دَ سرحدُونو نګراني کوئ او دَ الله تقوئ اختيار کړئ چه تا سو کامياب شئ.




سورة نساء - دا سورة مدني دے او لبسم الله سره دَ دے یوسل اوه اویا[۷۷] آیتونه او څلور ویشت[۲۴] رکوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه دَ خدائے چه بے کچا مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ②

یه خلقو! دَ خپل رب تقوی اختیار کړئ چا چه تاسو دَ یو ځان نه پیدا کړئ او دَ هغے (دَ جنس) نه ئے دَ هغے جوړه پیدا کړه او دَ دغو دوارو نه ئے ډیر سړی او ښځے (پیدا کړے او دنیا کښے ئے) خورے کړے او دَ الله تقوی (دے دَ پاره هُم) اختیاره کړئ چه دَ هغهٔ په ذریعه تاسو خپلو کښے سوال کوئ او بیا په تیره تیره دَ خپلوُو (په معامله) کښے (تقوی نه کار اخلئ) په تحقیق سره الله په تاسو نګران دے۔

وَاٰتُوا الْيَتٰمٰۤى اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ ۪ وَلَا تَاْكُلُوْۤا اَمْوَالَهُمْ اِلٰۤى اَمْوَالِكُمْ ؕ اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا ③

او یتیمانو له دَ هغوئ مال ورکړئ (او) دَ پاک (مال) په ځائے ناپاک (مال) مهٔ اخلئ او دَ هغوئ مالونه خپلو مالونو سره (په ګډون) مهٔ خورئ۔ په تحقیق سره دا غټه ګناه ده۔

وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ ذٰلِكَ اَدْنٰۤى اَلَّا تَعُوْلُوْا ④

او که چرے ستاسو (دا) ویره وی چه تاسو به دَ یتیمانو (په حقله) انصاف او نکړے شئ نو چه څه ستاسو خوښه وی (او کړئ یعنی غیر یتیم) ښځونه دوه دوه (سره) او دریو (سره) او څلورو څلورو سره نکاح او کړئ و لے که چرے ستاسو (دا) ویره وی چه تاسو به انصاف او نکړے شئ نو هُم یوے (ښځے) سره یا هغو وینځو (سره چه ستاسو لاسونو کښے دی نکاح او کړئ (دا) طریقه دَ دے خبرے (ویره) نزدے

دا چه تاسو ظالمان نهٔ شئ۔

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ؕ فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَیْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِیْٓـًٔا مَّرِیْٓـًٔا ۝٥

او ښځوله دَ هغوئ مهر دَ زړهٔ په خوشئ ورکوئ ــ بیا که چرے هغوئ دَ زړهٔ نه دے کښے څه درکړی نو په دے خیال چه هغه تاسو دَ یاره دَ خوند او انجام په لحاظ ښهٔ دی تاسو هغهٔ بے شکه اوخورئ۔

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِیٰمًا وَّارْزُقُوْهُمْ فِیْهَا وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝٦

او هغو ته چه ناپوهه دی او اللّٰه ستاسو مددګار جوړ کړی دی خپل مالُونه مهٔ ورکوئ او هغے نه په هغوئ خوروئ او هغوئ ته آغوندوئ او هغوئ ته مناسب او ښئے خبرے کوئ۔

وَابْتَلُوا الْیَتٰمٰی حَتّٰۤی اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْۤا اِلَیْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَاْكُلُوْهَاۤ اِسْرَافًا وَّبِدَارًا اَنْ یَّكْبَرُوْا ؕ وَمَنْ كَانَ غَنِیًّا فَلْیَسْتَعْفِفْ ۚ وَمَنْ كَانَ فَقِیْرًا فَلْیَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَیْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَیْهِمْ ؕ وَكَفٰی بِاللّٰهِ حَسِیْبًا ۝٧

او دَ یتیمانُو آزمیښت تر هغه وخته پورے چه هغوئ دَ وادهٔ (عمر) ته اورسی کوئ۔ بیا که چرے تاسو هغوئ کښے دَ پوهے (آثار) اووینئ نو دَ هغوئ مالُونه هغوئ ته واپس کړئ۔ او دَ هغوئ ځوانئ ته دَ رسیدو (له ویرے) نه دَ هغوئ (مالُونهٔ) په ناجائز ډول او په تلوار (تلوار) مهٔ خورئ۔ او څوک چه مالدار وی هغه له پکار دی چه هغه (دَ دے مال دَ استعمال نه) دَ سره ځان اوساتی ولے چه څوک نادار دی هغوئ دِ په مناسب ډول (دَ دے مال نه) خوری بیا هرکله چه تاسو هغوئ له دَ هغوئ مالُونه واپس ورکړئ نو دَ هغوئ (یتیمانو) مخامخ ګواهان مقرر کړئ او اللّٰه دَ حساب آخستو په لحاظ (لوازمے) کافی دے۔

لِلرِّجَالِ نَصِیْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ۪ وَلِلنِّسَآءِ نَصِیْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ ؕ نَصِیْبًا مَّفْرُوْضًا ۝٨

او دَ سړو (هُم) او دَ ښځو هُم په هغے (مال) کښے چه دَ هغوئ مور پلار او نزدے رشته دارانو نه پاتے شی یوه برخه ده۔ هر څوک ه دغه (ترکه) کښے لږه پاتے وی یا ډیره (دا) یوه مقرره برخه ده چه

(دَ خدائے تعالیٰ دَ طرف نه) مقرر شوے دہ۔

وَ اِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَ الْيَتٰمٰى وَ الْمَسٰكِيْنُ
فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ وَ قُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿٩﴾

او هر کله چه دَ (پاتے میراث) دَ تقسیم په وخت (نور) اقرباء او یتیمان او مسکینان (هُم) راشی نو دغے نه څه هغوئ له (هُم) ورکړئ او هغوئ ته مناسب (او ښے) خبرے کوئ۔

وَ لْيَخْشَ الَّذِيْنَ لَوْ تَرَكُوْا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا
خَافُوْا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ وَ لْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ﴿١٠﴾

او کوم خلق چه ویریږی کچرے هغوئ ځان نه پس کمزورئ اولاد پریخونو دَ دے به څهٔ چل کیګی - هغوئ ته (دَ نورو) یتیمانو په حقله (هُم) دَ الله نه ویریدل پکار دی او باید چه هغوی صفا او پاکیزه (نیغه) خبره اوکړی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَاْكُلُوْنَ
فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا ۭ وَ سَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا ﴿١١﴾ ع

کوم خلق چه په ظُلم دَ یتیمانو مال خوری هغوئ په تحقیق سره په خپلو خیټو کښے بس اُور اچوی او هغوئ به یقینی دہ چه په شعله وهُونکی اور کښے داخلیګی۔

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ ۤ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ۚ
فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۚ
وَ اِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ۭ وَ لِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ
وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ ۚ
فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ وَّ وَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ
فَاِنْ كَانَ لَهٗٓ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ
يُّوْصِيْ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۭ اٰبَاۗؤُكُمْ وَ اَبْنَاۗؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ
اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ۭ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ
عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١٢﴾

الله تعالیٰ ستاسو دَ اولاد په حقله تاسو ته حُکم درکوی چه (دَ یو) سړی (برخه) دَ دوو ښځو دَ برخے هومره ده که چرے (اولاد) (هُم) ښځے وی چه دوونه زیاتے وی نو هغوئ دَ پاره (هُم) چه څهٔ هغهٔ (مړی) پریخي وی (دَ هغے) دریؤ کښے دوه برخے مقرر ده۔ او کچرے (هُم) یوه ښځه) وی نو دَ هغے دَ پاره (دَ میراث) نیمه ده او کچرے دَ هغهٔ (مړی) اولاد وی نو دَ هغه دَ مور پلار (دَ پاره (یعنی) هغوئ کښے دَ هر یو دَ پاره دَ هغهٔ په میراث کښے شپږمه برخه (مقرر) ده او کچرے دَ هغهٔ اولاد نهٔ وی او دَ هغهٔ (هُم) مور پلار وارثان وی نو دَ هغهٔ دَ مور دریمه برخه (مقرر) ده

ولے کچرے دَ هغهٔ (خوېندے) رونړه وي نو دَ هغهٔ دَ مور شپږمه برخه (مقرر) ده- (دا ټولے برخے به) دَ هغهٔ دَ وصيت او (دَ هغهٔ) دَ قرض (دَ خلاصي) نه پس (ادا کيږي) تاسو ته معلومه نهٔ ده چه ستاسو پلار (نيکونو) او ستاسو ځامنو کښے څوک تاسو دَ پاره زيات نفع رسان (ښه) دي- (دا) دَ الله دَ طرف نه فرض شوي دي په تحقيق سره الله ډير خبر داره او دَ حِکمتُونو خاوند دے۔

وَ لَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ
وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ
مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْنَ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۭ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ
مِمَّا تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ
فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ
بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۭ وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ
وَّلَهٗٓ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَاِنْ
كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِي الثُّلُثِ مِنْۢ
بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً
مِّنَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۲﴾

او ستاسو ښځے چه څهٔ پريږدي کچرے دَ هغوئ اولاد نهٔ وي نو دَ هغوئ (دَ ميراث) نيمه (برخه) ستاسو ده او کچرے دَ هغوئ اولاد (موجُود) وي نوخه چه هغوي پريښي وي دَ هغے څلورمه (برخه) ستاسو ده- (دا برخے) دَ وصيت او (د هغوئ) دَ قرض (دَ خلاصي) نه پس (باقي پاتے مال کښے به وي) او کچرے ستاسو اولاد نهٔ وي نوځهٔ چه تاسو پريږدئ دے کښے څلورمه (برخه) دَ هغوي (يعني دَ ښځو) ده او کچرے ستاسو اولاد وي نوځهٔ چه تاسو پريږدئ هغے کښے آتمه (برخه) دَ هغوئ ده (دا برخے به) دَ وصيّت او ستاسو دَ قرض (دَ خلاصي) نه پس وي او چه دَ کوم سړي يا ښځے ميراث ويشلے شي کچرے دَ هغے نهٔ پلار وي نهٔ اولاد او دَ هغے څوک رور يا خور وي نو هغوئ کښے به دَ هر يو شپږمه (برخه) وي او کچرے هغوئ دَ دے نه زيات وي نو هغوئ (ټول) به دريمه (برخه) کښے شريک وي (دا برخے به) دَ وصيّت او (دَ مړي) دَ قرض (دَ خلاصي) نه

پس او (دَ باقي پاتې مال په لحاظ وي) (دے تقسيم کېښے به) مقصود چا ته ضرر رسول بايد چه نهٔ وي (او دا) دَ الله دَ طرف نه (تاسو ته) حُکم دے او الله ښهٔ باخبره (او) بُرد باره دے۔

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑭

دا دَ الله (مقرر کړي) حدُونه دي او څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول اطاعت اوکړي هغوئ هغه باغُونو کښے چه ښکښے د نهه به نهرونه بهيږي (داخلوي) (او) هغوئ به هغو کښے اوسي او هُم دا غټه کاميابي ده۔

وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ
نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۠ وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ⑮ ع ۲ ۱۳

اوڅوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول نافرماني اوکړي او دَ هغه دَ (مقرر کړي) حدونو نه وړاندے اوزي هغهٔ له به هغهٔ اور کښے داخلوي چه ښکښے به هغه ترموده اوسيږي او دَ هغهٔ دَ پاره رسوا کوونکے عذاب (مقدر) دے۔

وَالّٰتِيْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَاۗىِٕكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰىهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ⑯

او ستاسو ښځو کښے چه څوک څه دَ ناخوښے معروف کار ته نزدے شي۔ دَ هغئ مقابله په هغوئ باندے دَ خپلو (يعني خپلوانو يا گواند يانو) نه څلور گواهان (را) راوغواړئ۔ بيا کچرے هغه (څلور گواهان) گواهي ورکړي نو تاسو هغئ په (خپلو) کورونو کښے تر هغه وخته پورے حصارے اوساتئ چه هغئ مړے شي يا الله هغئ له څه (ربله) لار راوباسي۔

وَالَّذٰنِ يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ⑰

او تاسو کښے چه څوک دوه سړي څه دَ ناخوښے کار ته نزدے شي نو تاسو هغوئ ته تکليف ورکړي بيا کچرے هغوئ دواړه توبه اوکړي او اصلاح اوکړي نو په هغوئ ناغرضه شئ۔ په تحقيق سره الله ډير زيات توبه قبلوونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ
ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ فَأُولَٰئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ۗ
وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۸﴾

په الله باندے توبه (قبول) بس دَ هغو (خلقو) دَ پاره (واجب) ده چه دَ ناپوهئ په سوب بدی اوکړی - بیا زر توبه اوباسی - او داخلق داسے دی چه الله په هغوئ باندے مهربانی کوی او الله ډیر خبرداره (او) دَ حکمتونو خاوند دے -

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا
حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ وَلَا
الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۚ أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا
لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿۱۹﴾

او دَ توبے (دَ قبلولو حق) دَ هغو خلقو دَ پاره نهٔ دے چه بدی (لو مخیز) کوی - تر دے پورے چه هرکله په هغوئ کښے دَ چا دَ مرګ (روخت) راشی نو وائی چه په تحقیق سره ما اوس توبه کړے ده او نهٔ (دَ توبے قبلیدو حق) دَ هغه خلقو دَ پاره دے چه (هُم) دَ کفر په حال مړهٔ شی داخلق داسے دی چه مونږه هغوئ دَ پاره دردناک عذاب تیار کړے دے -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا ۖ
وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ
إِلَّا أَن يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ
فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ
فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴿۲۰﴾

یَه دَ ایمان خاوندانو! ستاسو دَ پاره (دا) جائز نهٔ دی چه تاسو په زُور دَ ښځو وارثان شئ او تاسو هغوئ په دے غرض مهٔ تنګوئ چه (څهٔ) تاسو هغوئ ته ورکړی دی هغے نه څهٔ اوشوکوئ - هن کچرے هغوئ په ښکاره څهٔ بدی اوکړی (نو دَ دے حُکم چه پورته بیان شوے دے) او هغوئ سره ښهٔ سلوک کوئ او کچرے تاسو هغوئ نهٔ خوښوئ نو (یاد ساتئ چه دا) دَ سره کیدے شی چه تاسو یو څیز نهٔ خوښوئ او الله هغے کښے ډیره ښیګړه پیدا کړی -

وَإِنْ أَرَدتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَ
آتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا ۚ
أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿۲۱﴾

او که چرے تاسو دَ (یوے) ښځے په ځائے (بله) ښځه بدلول اوغواړی او تاسو هغوئ کښے یو له (دَ مال) ډیرئ (ریندو) ورکړے وی نو (بیا هُم) دغے (مال) نه هیڅ (واپس) مهٔ اخلئ - آیا تاسو به هغه دَ تومت

اوښکاره ګناه په ذریعه آخلئ ؟

وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿۲۱﴾

او تاسو به دا (مال) څنګه اخستئ شئ هر کله چه تاسو څپلو ښځو ته يو ځائے شوي يئ او هغوئ (يعني ښځو) تاسو نه يو مضبوط لوظ اخستے دے۔

وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم مِّنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۚ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿۲۲﴾ ع

او دغو ښځو کښے کوم چه ستاسو پلار نيکونو نکاح کښے راوستي وي هغوئ کښے چا سره نکاح مهٔ کوئ ولے چه څهٔ وړاندے تير شول (هغه تير شول) دا (کار) په تحقيق سره ګنده او غصّه کوونکے وُ او (دا) ډير خراب رسم وُه۔

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُم مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَائِكُمُ اللَّاتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُوا دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۲۳﴾

ستاسو ميانديے او ستاسو لُونړه او ستاسو خويندے او ستاسو د پلار (او مور د طرفه) ترور ديلنے او (ستاسو) وديرے او (ستاسو) خورزے او ستاسو (رضائي) ميانديے چا چه تاسو ته يئ ددکړي وي او ستاسو ميرنئ خويندے او ستاسو خواخيانے او ستاسو هغهٔ ناسکه لونړه چه ستاسو د هغو ښځو نه وي چا سره چه تاسو خلوت کړے وي او هغوئ ستاسو په کورونو کښے پالے شي په تاسو حرام شوي دي ولے که چرے تاسو هغو (ميندو) سره خلوت نهٔ وي کړے نو (د هغوئ د لُونړو سره په نکاح کولو کښے) په تاسو څه ګناه نشته او (دا شان) ستاسو د هغه ځامنو ښځے چه ستاسو پُښت نه وي (په تاسو باندے حرامے دي) او دا (هُم) چه تاسو دوه خويندے (ځپل نکاح کښے) روالی هن څه چه اوشول (هغه اوشول) په تحقيق سره الله ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ
كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ
تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ۭ فَمَا
اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ۭ
وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ۭ
اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۵﴾

او (دَ ورانده نه) نکاح شوی ښځے (هُم په تاسو باندے حرامے دی) په استثناء دَ هغو ښځو چه ستاسو واک اختیار کښے راشی. دا الله په تاسو باندے فرض کړی دی اوکومے چه (دَ پاس بیان شوو ښځو) نه سوا دی هغوئ تاسو دَ پاره (پس دَ نکاح) حلالے دی (یعني دا شان) چه تاسو دَ خپلو مالُونو په ذریعه (هغوئ) اوغواړی په دے شرط چه تاسو وادهٔ غواړئ نه چه زناکُونکی یئ. بیا (دا شرط هُم دے چه) کچرے تاسو دَ هغوئ نه فائده واخسته نو هغوئ ته دَ هغوی مهر دَ مقرر شوی مقدار (هومره) ورکړئ او (دَ مهر) دَ مقررکیدو نه پس (په کمی زیاتی) په تاسو په خپلو کښے رضا شوی یئ په دے حقله ستاسو څهٔ گناه نهٔ وی په تحقیق سره الله ډیر پوهه (او) دَ حکمت خاوند دے.

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ
الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ
الْمُؤْمِنٰتِ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ۭ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ
بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ
اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ
وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ
بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ
الْعَذَابِ ۭ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ۭ وَاَنْ
تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۶﴾ ع ۴

او څوک چه تاسو کښے آزادو مومنانو ښځو سره دَ وادهٔ هڅه وس نهٔ لری (هغوئ) ستاسو په واک کښے (ښځو) یعنی ستاسو مومنانو وینځو کښے چا سره دِ نکاح اوکړی او الله ستاسو ایمان دَ هرچا نه زیات پیژنی. تاسو یو بل سره (تعلق) لرئ. بیا نو هغوئ سره دَ هغوی دَ ما لکانو په اجازت نکاح کوئ او دَ هغوئ مهر کله چه هغوئ پاکبازے وی نهٔ چه زنا کارے او نهٔ یارباشنے هغوئ ته دَ دستُور مطابق ادا کوئ. بیا هر کله چه هغوئ نکاح کښے راشی نو کچرے هغوئ دَ څه قسم بے حیائی ارتکاب اوکړی نو دَ هغوئ سزا به دَ آزادو ښځو په نسبت نیمه وی. دا (اجازت) دَ هغهٔ دَ پاره دے چه تاسو کښے دَ گناه نه ویریګی او ستاسو صبر کول ستاسو

دَ پاره ډیرښهٔ دی او الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦﴾

الله غواړی چه کوم خلق تاسو نه وړاندے تیر شوی دی دَ هغوئ طریقے تاسو دَ پاره بیان کړی او (دَ هغو طرف ته) ستاسو راهنمائی اوکړی او په تاسو شفقت اوکړی او الله ډیر خبردار (او) حِکمت لرُونکے دے۔

وَاللّٰهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ﴿٢٧﴾

او الله خو دا غواړی چه په تاسو شفقت اوکړی او کوم خلق چه غلطو خواهشاتو پسے زی هغوی غواړی چه تاسو (ربدئ ته) ښهٔ ورتېښت شئ۔

يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا ﴿٢٨﴾

الله غواړی چه تاسو نه (پیټهٔ) سپک کړی او انسان کمزورئ پیدا کړے شوے دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ ۚ وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ ۚ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٢٩﴾

یَه ایمان دارو! تاسو خپلو کښے په ناجائزه خپل مالونه مهٔ خورئ۔ هن دا جائز دی چه (دَ مال حاصلول) خپلو کښے په رضا دَ تجارت په ذریعه وی او تاسو خپل ځانونه مهٔ قتلوئ۔ په تحقیق سره الله په تاسو باندے بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾

او څوک (سرے هُم) چه دا (یعنی دَ نورو مال خوړل) دَ زیاتی او ظلم دَ عادت په وجه اوکړی هغه به مونږ ژر په اورکښے اچوو۔ او دا (امر) الله دَ پاره آسان دے۔

إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾

دَ کومو (خبرو) نه چه تاسو منع کولے شئ کچرے هغو کښے دَ غټو (غټو خبرو) نه تاسو لرے اوسئ نو مونږ به تاسو نه ستاسو عیبُونه لرے کړو او تاسو به دَ عزت په ځائے کښے داخل کړو۔

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ

او چه څهٔ (څیز) سره الله تاسو کښے څنوله په

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوا ۖ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا
اكْتَسَبْنَ ۚ وَسْأَلُوا اللَّهَ مِن فَضْلِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ
بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٣٢﴾

ځنو (نورو) فضيلت ورکړے دے د هغے نو بنتنه مهٔ کوئ۔ څهٔ چه سړو ګټلی دی هغې کښے د هغو برخه ده او تاسو (هُم) د الله نه د هغهٔ د فضل برخه غواړئ په تحقيق سره الله د هر څيز ښهٔ علم لري۔

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ۚ
وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ
اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿٣٣﴾ ٥ ع ٨ ٢

او هر يو (سړي) د پاره مونږ د هغهٔ نه د پاتے مال (ترکه) يحقله وارثان مقرر کړی دی۔ (هغه وارثان) مور پلار او نزدے خپلوان (دی) او هغوئ (هُم) چا سره چه تاسو پاخهٔ لوظونه کړی دی (يعنی ښځے يا خاوندان) بيا نو هغوئ له هُم د هغوئ مقرر شوے برخه ورکړئ۔ او په تحقيق سره الله په هر يو امر نګران دے۔

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ
عَلَىٰ بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ۚ فَالصَّالِحَاتُ
قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللَّهُ ۚ وَاللَّاتِي تَخَافُونَ
نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ
وَاضْرِبُوهُنَّ ۖ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ
سَبِيلًا ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا ﴿٣٤﴾

سړو له ښځو باندے د دے فضيلت په سوب چه الله هغوئ کښے ځنو له په (ځنو) نورو ورکړے دے او په دے سوب چه هغوئ خپلو مالونو (په ښځو باندے) خرڅ کړے دے نګران ګرزولی شوی دی۔ بيا نو نيکے ښځے حکم منونکی او د الله په مدد د پټو امورو حفاظت کوونکی وی او د چا د نافرمانئ چه ستاسو ويره وی (نو تاسو) هغوئ ته نصيحت اوکړئ او هغوئ د اوده کيدو ځايونو کښے يوازے پريږدئ او هغوئ وهئ۔ بيا کچرے هغوئ ستاسو اطاعت اوکړی نو د هغوئ خلاف هيڅ بانه مهٔ لټوئ په تحقيق سره الله ډير اعلیٰ (او) لوئے دے۔

وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ
أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا إِن يُرِيدَا إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ
اللَّهُ بَيْنَهُمَا ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا ﴿٣٥﴾

او کچرے تاسو ته د دے دواړو (يعنی ښځے او خاوند) خپلو (تعلقاتو) کښے د تفرقے ويره وی نو يو پنچ د هغهٔ (يعنی د سړی) د خپلوانو او يو پنچ د هغے (يعنی د ښځے) د خپلوانو نه مقرر کړئ (بيا) کچرے هغه دواړه (جرګے)

صلح کول اوغواړی نو الله به دَ هغو دواړو د رنځے او خاوند ) ترمنځهٔ موافقت پیدا کړی ۔ په تحقیق سره الله ډیر پوه (او) خبردارہ دے ۔

وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرَا ۝۳۶

اوتاسو دَ الله عبادت کوئ او هیڅ یو څیز دَ هغهٔ شریک مهٔ جوړوئ او دَ مور پلار سره (ډیر) احسان (کوئ) او (ورسره) خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو سره او (دا شان) خپلوانو گوانډیانو او بے تعلقه گوانډیانو اونخوا کښے زناست پاست ) خلقو او مسافرانو او چه دَ چا تاسو مالکان یئ (هغوئ سره هُم ) ۔ (او) چه څوک کبرجن اوغاوره وی هغوئ لره الله هیڅکله نهٔ خوښوئ ۔

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۭ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ۝۳۷

څوک چه (خپله هُم ) بُخل کوی او (نورو ) خلقو ته (هُم ) دَ بُخل تلقین کوی اوڅهٔ چه الله په خپل فضل هغوئ ته ورکړی دی هغه پټوی او مونږ دَ کافرانو دَ پاره رسُوا کوُونکے عذاب تیار کړے دے ۔

وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَاۗءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطٰنُ لَهٗ قَرِيْنًا فَسَاۗءَ قَرِيْنًا ۝۳۸

اوکوم خلق چه خپل مالونه خلقو دَ ښو لو دَ پاره لگوی او نهٔ په الله باندے ایمان لری او نهٔ په روستوراتلُونکے ورځ باندے (دَ هغوئ انجام به خراب وی) او چه دَ چا (سړی) شیطان ملگرے وی (هغه دِیادا ولری چه) هغه ډیرخراب ملگرے دے ۔

وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ۝۳۹

او په هغوئ باندے څهٔ (تهرنا زلیدو ) کچرے هغوئ په الله باندے او په روستو راتلُونکے ورځ باندے ایمان راوړے وے ۔ اوڅهٔ چه الله هغوئ له ورکړی دی دَ هغے نه ئے (دَ هغهٔ په لاره کښے) لگولے او الله دَ هغوئ پحقله ښهٔ علم لری ۔

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَإِنْ تَكُ حَسَنَةً يُضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿۴۰﴾

الله به هیڅکله یو پوټۍ هومره هُم ظلم نهٔ کوی او کچرے (دَ چا) څه نیکی وی نو هغه به زیاتوی او دَخپل طرف نه به (هُم) ډیر لوئے اجر ورکوی۔

فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيدًا ﴿۴۱﴾

وقف النبی علیه السلام

او دَ هغوئ به څهٔ حال وی هرکله به چه مونږ دَ هر یو جماعت نه یو گواه راولو او تا به دَ دغو خلقو په حقله (په طور دَ) گواه راولو۔

يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْأَرْضُ ۖ وَلَا يَكْتُمُونَ اللّٰهَ حَدِيثًا ﴿۴۲﴾

ع ۶ / ۲

هغه ورځ به چه چا کفر کړے دے او (دَ دے) رسول نافرمانی ئے کړے ده غواړی چه (کشکے) هغوئ زمکه کښے ښخ کړے شوے وے۔ او هغوئ به دَ الله نه هیڅ خبره پټه نشی ساتلے۔

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى أَوْ عَلٰى سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَآءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿۴۳﴾

ﺍﮮ ایمان دارو! تر څو پورے چه تاسو هوش کښے نهٔ یئ نمونځ ته مهٔ نزدے کیږئ تر هغه وخته پورے چه تاسو څه وائی په هغے پوهه (نهٔ شئ) او نهٔ دَ ناپاکئ په حال کښے (نمونځ ته نزدے ورځئ) تر څو پورے چه (ونهٔ لامبئ سوا دَ دے چه تاسو په لاره روان یئ۔ او کچرے تاسو مریضان یئ یا په سفر باندے یئ (او تاسو ناپاک یئ نو تیمم کوئ) یا تاسو کښے څوک دَ ضرورت دَ ځائے نه راغلے وی (او تاسو اوبهٔ اونهٔ مومئ) او تاسو ښځو سره صحبت هُم کړے وی او تاسو اوبهٔ اونهٔ مومئ نو دَ پاکے خاورے قصد کوئ (یعنی تیمم کوئ) بیا (دغه خاورو سره مخلی لاسُونه) خپلو مخُونو او لاسُونو باندے اومکئ۔ په تحقیق سره الله ډیر معاف کوُونکے او ډیر بخښوُنکے دے۔

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُونَ الضَّلٰلَةَ وَيُرِيدُونَ أَنْ تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿۴۴﴾

آیا تا ته دَ هغو خلقو حال معلوم نهٔ دے چا ته چه دَ (الله دَ) کتاب نه څهٔ برخه ورکړے شوے وه چه هغوی

ګمراهي (بدله لاره) نيسي او غواړي چه تاسو (هُم اصل) لاره نه واوړئ۔

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّاۗ٘ وَّكَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا ﴿٤٥﴾

او الله ستاسو دښمنان (تاسونه) زيات پيژنى او الله په دوستئ کښے کافي دے او الله دَ مدد ورکوُنکي په لحاظ هُم کافي دے۔

مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّ رَاعِنَا لَيًّۢا بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِى الدِّيْنِؕ وَلَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَقْوَمَۙ وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٤٦﴾

کوم خلق چه يهوديان دى هغوئ کښے څنے دَ (خدائے) خبرے دَ خپلو ځايونونه ادلئ بدلئ او وائ چه مونږ واوريدُه او سره دَ دے مونږ اونهُ منورُه او (وائ چه) تهٔ څمونږ خبرے واوره (دَ خدائے کلام) تا نه دِ کله هُم وانهٔ وروے شي او په دين کښے طعنه کولو (سره وائ) او کږے هغوئ داوئيلے چه مونږ واوريدهٔ او مونږ اومنودهٔ او رونيلے چه) واوره او مونږ باندے (دَ رحمت) نظر اوکړه نو هغوئ دَ پاره ډيره ښه او زيا ته دَ درستئ موجب وه (وے هغوئ دے نهٔ لوا څے محروم شول) بلکه الله دَ هغوئ دَ کفر په وجه په هغوئ لعنت اوکړو دے دَ پاره هغوى ايمان نهٔ راوړى۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا فَنَرُدَّهَا عَلٰٓى اَدْبَارِهَاۤ اَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّاۤ اَصْحٰبَ السَّبْتِؕ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿٤٧﴾

یه خلقو! چا ته چه (دَ الله) کتاب ورکړے شوے وُو دے (کتاب) باندے کوم چه مونږه (اوس) نازل کړے دے چه هغه (دَ الله کلام) پوره کوُونکے دے کوم چه تاسو سره (دَ آګاهونه موجود) دے آګاهو دَ دے نه ايمان راوړئ چه مونږه تاسو کښے لوئے سړی هلاک کړو او هغوئ دَ هغوئ په شا اوګرزؤو يا لکه څنګه چه مونږه دَ سبت په خلقو باندے لعنت کړے وه هغهٔ شان په هغوئ باندے (هُم) لعنت اوکړو

او دَ الله خبره (خامخا پوره) کیګی.

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰى إِثْمًا عَظِيْمًا ﴿۴۹﴾

الله به (دا خبره) هیڅکله معاف نکړی چه (چالره) دَ هغهٔ شریک اوګرزولے شی او چه کومه (ګناه) دَ دے نه وړه وی هغه به چه دَ چا په حق کښے اوغواړی معاف کړی او چا چه الله سره (چالره) شریک ګرزولے وی نو (پوهه شه چه) هغهٔ (ډیره) غټه (خبره دَ) بد ئ سازه کړه.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ أَنْفُسَهُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿۵۰﴾

آیا تا نه دَ هغه خلقو حال معلوم نهٔ دے چه خپل ځانونه پاک کنړی (دَ هغوئ دا حق نهٔ دے) بلکه الله چه چا له خوښوی هغهٔ له پاک ګرزوی او (په هغوئ باندے به) دَ کهجورے په کټکی کښے دَ ټیکے هومره ظلم هُم نهٔ کیګی.

اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ۚ وَكَفٰى بِهٖٓ إِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۵۱﴾ ع

اوګوره! هغوئ څنګه په الله باندے دروغ تړی او دا (خبره) ډیره ډاګیزه (ښکاره) ګناه ده.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ أُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ وَيَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰٓؤُلَآءِ أَهْدٰى مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَبِيْلًا ﴿۵۲﴾

آیا تا نه دَ هغه خلقو حال معلوم نهٔ دے چا ته چه (دَ الله) کتاب نه څهٔ برخه ورکړے شوے وه (چه) هغوی دَ بے فائدے (خبرو) او دَ حد نه وتونکو باندے ایمان لری او دَ کافرانو په خفله وائی چه دا خلق دَ مومنانو په نسبت زیات په سمه لار (هدایت موندونکی) دی.

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۖ وَمَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا ﴿۵۳﴾

دا هغه خلق دی چه په چا باندے چه الله لعنت کړے دے او چه په چا باندے الله لعنت اوکړی نو ته به هیڅکله څوک دَ هغهٔ مددګار اونهٔ مومے.

أَمْ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُوْنَ النَّاسَ نَقِيْرًا ﴿۵۴﴾

آیا دَ هغوئ په حکومت کښے څه برخه ده؟ بیا خو به هغوئ خلقو ته دَ کهجورے کټکی دَ سوری هومره هُم

ورنکړی۔

اَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰى مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ
فَقَدْ اٰتَيْنَآ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَاٰتَيْنٰهُمْ
مُّلْكًا عَظِيْمًا ﴿٥٤﴾

یا څهٔ چه الله په خپل فضل خلقوته ورکړی دی (آیا) هغوئ دَ هغے په بُنیاد هغوئ سره حسد کوی؟ (کچرے) داخبره ده) نوموږ دَ ابراهیم اولادته (هُم) کتاب اوحِکمت ورکړے وه او (ورسره) موږ هغوی ته حکومت هُم ورکړے وه۔

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ۚ وَ
كَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيْرًا ﴿٥٥﴾

بیا هغوئ کښے څوځنو په دے (نوی کتاب) باندے ایمان راوړو او هغوی کښے څنے دے نه حصارشول اوجهنم تو دوالی کښے ډیر زیات دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِيْهِمْ نَارًا ؕ كُلَّمَا
نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا
الْعَذَابَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿٥٦﴾ ع

کوموخلقو چه څموږ دَ آیتونونه انکارکړے دے موږبه زرهغوئ اورکښے اَچوُو۔ هرکله به چه دَهغوئ څرمنے ورستے شی موږبه هغوئ ته دَ هغونه سوانورے څرمنے وربدلے کړوُ (اوموږه به دا) دے دَ پاره (کوُ) چه هغوی دَ عذاب خوند اوڅکی (او دَهغوئ څرمنے په سوزیدو سختے نهٔ شی) په تحقیق سره الله غالب (او) دَ حکمتوُنو خاوند دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ
تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ لَهُمْ
فِيْهَآ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۫ وَّنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيْلًا ﴿٥٧﴾

اوکوموخلقوچه ایمان راوړے دے او هغوئ نیک عملونه کړی دی موږبه هغوئ خامخا داسے باغُونوکښے داخله وُو چه هغوئ ندے نهرونه بهیګی۔ هغوی به تَل ترتله هغوکښے اوسی۔ دَ هغوئ دَپاره به هغو کښے پاکے بیبیانے وی۔ او موږه به هغوئ ګنړ سُوری کښے اوسیدو دَ پاره داخله وُو۔

اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا ۙ وَ
اِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿٥٨﴾

په تحقیق سره الله تاسوته (دَ دے خبرے) حکم درکوی چه تاسو امانتوُنه دَ هغوئ حقدارو ته ورکړئ او (دا چه) هرکله تاسو دَ خلقو ترمنځهٔ فیصله کوئ نو

په انصاف فيصله کوئ - الله چه دَ کومے خبرے تاسو ته نصيحت
کوی هغه په تحقيق سره ډيره ښه ده - په تحقيق سره الله
ډير اوريدُونکے (او) کتونکے دے -

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ
اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ
اِلَى اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ
الْاٰخِرِ ۭ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا ۧ ﴿۶۰﴾ ۸ ع ۹ ۵

يَه ايمان دارو ! دَ الله او دَ رسُول اطاعت کوئ او دَ خپلو
حاکمانو هُم اطاعت کوئ - بيا کچرے تاسو (حاکمانو سره)
څهٔ خبره کښے اختلاف کوئ نو کچرے تاسو په الله او
په آخره کښے (راتلونکے ورځ باندے) ايمان لرئ نو هغه
الله او رسُول ته پريږدئ (او دَ هغوئ دا حُکم په رښتيا
خبره فيصله کړئ) دا (خبره) ډيره دَ ښيګړے او دَ
انجام په لحاظ ډيره ښه ده -

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا بِمَآ اُنْزِلَ
اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا
اِلَى الطَّاغُوْتِ وَقَدْ اُمِرُوْٓا اَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ۭ وَيُرِيْدُ
الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿۶۱﴾

آيا تاسو دَ غو خلقو حال اونهٔ ليدو چه دعویٰ کوی
چه (څه) په تاسو نازل شوی دی او (ورسره) چه
څه تا نه آګا هو نازل شوی وُو هغوئ هغے باندے
ايمان راوړے دے او سره دَ دے چه هغوی ته حُکم
ورکړے شوے وه چه په سرکشانو فيصله اونکړی او
دَ هغوئ وينا پسے لاړنهٔ شی - هغوی غواړی چه په
هغوئ فيصله اوکړی حکه چه شيطان غواړی چه هغوئ
په خطرناکه ګمراهئ کښے واچوی -

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ
رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ۚ ﴿۶۲﴾

او هرکله چه هغوئ ته اوويلے شی چه څه الله (تعالےٰ)
نازل کړی دی دَ هغے طرف ته او دَ رسُول طرف ته راشئ
نو تهٔ منافقان وينی چه هغوی تا نه دَ سره روستو کيګی -

فَكَيْفَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ
ثُمَّ جَاۗءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ ڰ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّآ اِحْسَانًا
وَّتَوْفِيْقًا ﴿۶۳﴾

بيا دا ولے (کيګی چه) هرکله چه په هغوئ باندے مصيبت
راشی نو هغوئ (به ويره) تا ته دَ الله قسمونه خوړلو
سره رازی چه مونږه نخوالس دَ نيک سلوک او صلح کولو
اراده کړے وه -

أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ
عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴿٦٤﴾

دا هغه خلق دي چه څه چه د هغوئ په زړونو کښے
دي الله په هغے (ښه) پوهیګی. بیانو ته هغوئ نه مخ
واړوه او هغوئ ته نصیحت کوه او هغوئ ته د هغوئ
د نفسونو په حقله اثر کوونکے خبره کوه.

وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَلَوْ
أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ
وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٥﴾

او مونږ هیڅ یو رسول (هُم) سوا د دے غرض نه
چه د الله په حُکم د هغهٔ اطاعت اوکړے شي نهٔ دے
استولے او هرکله چه هغوئ په خپلو ځانونو ظلم کړے
وه کچرے (هغه وخت) هغوئ تاله راتلے او د الله نه
ئے بخښنه غوښتے او رسول (هُم) د هغوئ په حق
کښے بخښنه غوښتلے نو هغوئ به الله ډیر مینه کوونکے
او بیا بیا رحم کوونکے موندلے.

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ
بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِيٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ
وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٦﴾

بیانو ستا د رب قسم دے چه ترڅو پورے هغوئ
(هره) هغه خبره کښے چه د هغے په حقله هغوئ کښے
جهګړه اوشی تا حَکَم جوړ نکړی (او) بیا چه کومه فیصله
تهٔ اوکړے د هغے له کبله خپلو نفسونو کښے څه قسم تنګی
اونهٔ مومی او پوره (پوره) حُکم منونکی نهٔ شی هیڅکله
به ایمان داره نهٔ وی.

وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوٓا أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا
مِن دِيَارِكُم مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ ۖ وَلَوْ أَنَّهُمْ
فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَشَدَّ
تَثْبِيتًا ﴿٦٧﴾

او کچرے مونږه هغوئ ته (دا) حُکم ورکولے چه تاسو
خپل ځانونه قتل کړئ یا دا چه خپلو کورونو نه اوزئ
نو هغوی کښے به د یو څو نه سوا (باقی چا) دا (کار) نه
وے کړے او کچرے هغوئ هغه چه د کوم (کار) هغوئ
ته نصیحت کیدے هغوی کړے وے نو د هغوئ د پاره
ډیره ښه او د زیاتے مضبوطئ سوب وه.

وَإِذًا لَّأٰتَيْنَٰهُم مِّن لَّدُنَّآ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٦٨﴾

او په دغه حال کښے به مونږ هغوئ ته په تحقیق سره د
خپل طرف نه (ډیره) لویه بدله ورکولے.

وَّلَهَدَيْنٰهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٦٩﴾

او (بله دا چه) مونږ هغوئ ته خا مخا نيغه لاره ښودلے.

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿٧٠﴾

او څوک به چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول اطاعت کوی هغوئ به په هغو خلقو کښے شامل وی په چا باندے چه الله انعام کړے دے يعنی په نبيانو ، صديقانو ، شهيدانو او صالحانو (کښے) او دا خلق (ډير) ښهٔ ملګری دی.

ع ٩ ١١ ٦ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿٧١﴾

دا فضل دَ الله دَ طرف نه دے او الله ډير علم لرونکے دے.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ﴿٧٢﴾

يه ايمان دارو! دَ ځان ساتلو (سامان هر وخت) تيار ساتئ او (که چرے) لږ کسان (دَ کورونو نه) اوزئ يا ډيرا وزئ (ټول دَ حفاظت سامان ساتئ).

وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ﴿٧٣﴾

او تاسو کښے څنے (کسان) په تحقيق سره داسے (هم) دی چه (دَ هر کار په موقعه) خا مخا روستو پاتے کيګی او که تاسو ته څهٔ مصيبت اورسی نو وائ چه الله په ما باندے احسان کړے دے چه هغوی سره نهٔ وُم.

وَلَئِنْ اَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوْلَنَّ كَاَنْ لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهٗ مَوَدَّةٌ يّٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ مَعَهُمْ فَاَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿٧٤﴾

او که چرے دَ الله دَ طرف نه تاسو ته څهٔ دَ فضل (خبره) اورسی نو هغوئ خا مخا وائ چه کشکے مونږه (هم) هغوئ سره وے چه (ډيره) لويه کاميابي مو موندلے وے. لکه چه دَ هغوئ او ستاسو تر منځه څه دوستانه تعلق هيڅ (دَ سره) نهٔ وه.

فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ۭ وَمَنْ يُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ اَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٧٥﴾

بيا نو کوم خلق چه دَ دُنيا په ځائے آخرت غواړی هغوئ له دَ الله په لاره کښے جنګ کول پکار دی. او څوک چه دَ الله په لاره کښے جنګ اوکړی بيا مړشی يا غالب نو هغه ته به ډير زر مونږه (ډير) لوئے اجر ورکوؤ.

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ
مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ
رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ۚ
وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۚ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ
لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ﴿٧٥﴾

اود ایه تاسو ته (شوی) دی چه تاسو دَ الله په (لاره کښې) او دَ هغو کمزورو سړو او ښځو او ماشومانو په لاره کښې جنګ نهٔ کوئ چه وائی چه یَه زمونږ ربّ! مونږه دَدې نرئ (علاقې) نه چه اوسیدُونکی ئې ظالمان دی اوباسئ او دَ خپله لوره څمونږه څوک دوست راوسئو او دَ خپله دره (څوک) څمونږه مددګار کړه (اودروه)

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا
يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ فَقَاتِلُوْآ اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ
اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ﴿٧٦﴾ ع

کوم خلق چه مومنان دی هغوئ دَ الله په لاره کښې جنګ کوی او څوک چه کافران دی هغوئ دَ شیطان په لاره کښې جنګ کوی۔ دَدې دَپاره تاسو دَ شیطان دَدوستانو سره جنګ کوئ په تحقیق دَ شیطان تدبیر کمزورئ (وی) دې۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْآ اَيْدِيَكُمْ وَاَقِيْمُوا
الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ
اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ
اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا
الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۗ قُلْ مَتَاعُ
الدُّنْيَا قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۫ وَلَا
تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿٧٧﴾

آیا تا ته دَ هغو خلقو حال معلومه نهٔ دې چا ته چه وئیلی شوی وُو چه تاسو خپل لاسُونه منع کوئ او مونځونه قائم کړئ او زکوٰة ورکوئ (وروسته) کله چه په هغوی جنګ فرض کړې شول نو سمدستی هغوی کښې څنې کسان دَ خلقو نه داسې په ویره شول څنګه چه خدائې نه ویره پکار ده بلکه دَ هغې نه هُم زیات او وینائې شروع کړه چه یَه څمونږه ربّ! تا په مونږه جنګ کول ولې فرض کړی دی۔ ولې تا مونږ له څه وخت نه پورې (نور) مهلت رانکړو ــ ته او وایه (چه) دَ دُنیا فائده هیڅ نهٔ ده او څوک چه تقویٰ اوکړی دَ هغهٔ دَپاره وروسته راتلُونکې (ژوند) ډیر ښهٔ دې۔ او په تاسو باندې به د کهجورې دَ کټکې دننه دَ کرښې هومره (هُم) ظلم نهٔ کیګی۔

اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ

تاسو چه هرچرته یئ مرګ به تاسو را نیسی هرڅوکه

مُّشَيَّدَةٍ ۗ وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هٰذِهٖ مِنْ
عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هٰذِهٖ مِنْ
عِنْدِكَ ۗ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۗ فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ
لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا ﴿۷۹﴾

تاسو په مضبوط قلعه کانو کښے روے نهٔ) ئې او که چرے
هغوئ ته (یعنی پورته ذکر شوؤ خلقو ته) څه ښیګړه
رسی نو وائي چه دا دَ الله دَ طرف نه ده او که څه بدی
ورته رسی نو وائی چه دا ستا دَ طرف نه ده. ته ورته
اووایه (چه) هر څه دَ الله دَ طرف نه دی. بیا په دغو
خلقو څهٔ شوی دی چه څه خبرے باندے ځان نه
پوهوی.

مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ۫ وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ
سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ۗ وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ۗ
وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿۸۰﴾

څه ښیګړه چه تا ته رسی هغه خو دَ الله دَ طرف نه
ده او څهٔ بدی چه تا ته رسی هغه ستا دَ خپل طرف نه ده
او مونږ ه تهٔ خلقو ته دَ رسول په حیثیت استولے ئې
او الله دیر ښهٔ ګواه دے.

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ
اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴿۸۱﴾

څوک چه دَ رسول اطاعت اوکړی (نو پوهه شه چه)
هغهٔ دَ الله اطاعت اوکړو او کوم خلقو چه شاګړه نو
(یاد دِ وی چه) مونږ تهٔ په هغوئ باندے نګهبان نهٔ ئے
استولے.

وَيَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ ۫ فَاِذَا بَرَزُوْا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَآئِفَةٌ
مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ ۗ وَاللّٰهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُوْنَ ۚ
فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ
وَكِيْلًا ﴿۸۲﴾

او هغوئ وائی (چه څمونږ ه کار خو) حکم منو دل (دی)
بیا هر کله چه ستا نه واته لاړ شی نو په هغوئ کښے یو
ټولئ چه څهٔ ته وایے دَ هغے مخالف تدبیرونه کوی
او څهٔ تدبیرونه چه هغوی کوی الله هغو لره محفوظوی
دے دَ پاره ته په هغوی ځان ناجانړه کړه او په الله
توکل کوه او دَ الله نه پس دَ بل کارساز ضرورت نشته.

اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۗ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ
لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿۸۳﴾

بیا نو آیا هغوئ په قرآن غور نهٔ کوی او (نهٔ پوهیګی چه)
که چرے هغه دَ الله نه سوا (دَ بل چا) دَ طرف نه وے نو
خامخا به هغوئ په کښے اختلاف موندے.

وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا

او هر کله (هُم) چه هغوئ ته دَ امن یا دَ ویرے څهٔ خبره

بِهٖ ؕ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝۸۳

رسی نو هغوئ هغه خورَوی۔ اوکچرے هغوئ هغه دَرسُول په طرف یا دَ خپلو حاکمانو په طرف اورے نو هغوئ کښے چه څوک دَ دے (یعنی دَ مقرره خبرے اصلیت) معلوموی هغه (یعنی دَ هغے حقیقت) به ئے بیا موندے او کچرے په تا باندے دَ الله فضل او دَ هغهٔ رحمت نهٔ وے نو سوا دَ یو څو کسانو نه (ربانی خلق) به شیطان پسے تللے۔

فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ۝۸۴

بیا نو ته دَ الله په لاره کښے جنګ کوه۔ تا له ستا دَ نفس نه سوا (دَ چا) ذمه وارئ نشي ګرزولے۔ او ستا کار بس دا دے چه ته مومنانو ته ترغیب ورکړے دَ سره ممکنه ده چه الله دَ کافرانو جنګ منع کړي او دَ الله جنګ (دَ تهولونه) زیات سخت (وی) دے۔

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ۝۸۵

څوک سړے (چه ښهٔ سفارش اوکړی دَ هغهٔ دَ پاره به هغے کښے یوه برخه وی۔ او څوک سړے چه بد سفارش اوکړی هغے کښے به دَ هغه دَ پاره (هُم هغسے) برخه وی۔ او الله په هر یو امر کامل قدرت لری۔

النصف

وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيْبًا ۝۸۶

او هر کله چه تاسو ته څهٔ دُعا درکړے شي نو ته دَ هغے نه ښه دُعا ورکوه۔ یا (کم نه کم) هغه واپس کړه۔ په تحقیق سره الله دَ هرے خبرے (کار) حساب اخستونکے دے۔

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ۝۸۷ ع

الله (هغه ذات دے چه) هغهٔ نه سوا بل معبود نشته۔ بے شکه چه هغه به تاسو له دَ قیامت تر ورځے پورے جمع کوی چه دَ هغے په راتلو کښے هیڅ شک نشته او دَ الله نه زیاته دَ چا خبره رښتونے ده (کیدے شي)

فَمَا لَكُمْ فِى الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا ؕ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ۝۸۸

او دا په تاسو څهٔ (شوی) دی چه (تاسو) دَ منافقانو په مقله دوه تهولی (ګیګی) ئي حال دا دے چه څهٔ هغوئ کتلی دی دَ هغے په سوب الله هغوئ پر مخی کړی دی

(یعنی دَ هغوئ عقل ئے وهلے دے)
آیا څوک چه الله هلاک کړے دے تهٔ به هغه په لار ره کړے؟ او چا له چه الله هلاک کړی تهٔ به دَ هغهٔ دَ پاره هیڅکله څهٔ لاره اونهٔ مومے.

وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا فَتَكُونُونَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۚ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوهُمْ ۖ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيرًا ﴿٨٩﴾

هغوئ غواړی چه لکه څنګه چه هغه (خپله) کافر شوی دی کشکے چه تاسو (هُم دا شان) کافر شئ او (هغوئ او تاسو) برابر شئ. دے دَ پاره ترڅو پورے چه هغوئ دَ الله په لاره کښے هجرت او (نهٔ) کړی تاسو هغوی کښے (څوک) دوست مهٔ جوړه وئ. بیا کچرے هغوئ روستو شی نو تاسو هغوئ اونیسئ او هرچرته ئے چه مومئ هغوئ قتل کړئ او نهٔ هغوئ کښے (چا له) دوست جوړ کړئ او نهٔ مددګار.

إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلٰى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيثَاقٌ أَوْ جَآءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَنْ يُّقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقٰتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ ۙ فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴿٩٠﴾

وے هغه خلق نا چه (ریاخو) دَ چا دا سے قام سره تعلق لری چه دَ هغوئ او ستاسو ترمنځه (څهٔ) معاهده وی (او) هغوئ تاسو ته دا سے حال کښے راشی چه تاسو سره په جنګ کولو یا خپل قام سره جنګ کولو نه دَ هغوئ سینے انقباض لری (یعنی نهٔ غواړی چه جنګ اوکړی) او کچرے الله غوښتے نو هغوئ ته به ئے خامخا په تاسو باندے غلبه ورکړے وه. بیا به هغوئ خامخا تاسو سره جنګیدے. بیا کچرے هغوئ تاسو نه په ډډه شی او تاسو سره جنګ اونکړی او ستاسو طرف ته په صلح رضا شی نو الله ستاسو دَ پاره دَ هغوئ خلاف (دَ زیاتئ څه لاره زیاتی) نهٔ ده پریخوے.

سَتَجِدُونَ اٰخَرِينَ يُرِيدُونَ أَنْ يَّأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ ۚ كُلَّمَا رُدُّوا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا ۚ فَإِنْ لَّمْ

او تهٔ به خامخا (څه) نور خلق دا سے مومے چه هغوئ غواړی چه تاسو نه (هُم) په امان کښے وی او دَ خپل

يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوٓا اَيْدِيَهُمْ
فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ وَاُولٰٓئِكُمْ
جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ۝٩١
ع

تام نه رهُم) په امان وی هرکله چه هغوئ دَ فتنے رفساد) په طرف بوتللے شی نو هغوئ په هغے کښے پرمخی غورزولے شی۔ بیا نو که هغوئ تاسو نه په ډډه نهٔ شی او ستاسو طرف ته په صلح رضا نشی او خپل لاسونه ایسار نکری نو بیا تاسو هغوئ نیسئ او چرته هُم چه وینئ هغوئ قتلوئ او دا خلق دا سے دی چه دَ هغوئ خلاف مونږ تاسو له روښانه حجّت درکړے دے۔

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَمَنْ
قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ
مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ۚ فَاِنْ كَانَ مِنْ
قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ
وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ
مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ فَمَنْ
لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ۡ تَوْبَةً مِّنَ
اللّٰهِ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝٩٢

او دَ چا مومن دا شان نهٔ دے چه هغه څوک مومن قتل کړی سوا رَدَ دے چه) په خطا (دا سے اوشی) او چه څوک (مومن) بل مومن دَ قصده قتل کړی نو په (دهٔ به) دَ یو مومن (غلام) ښت آزادول وی او خون بها ورکول به (واجب) وی چه هغه به دَ هغه وارثانو ته ورکولے شی سوا دَ دے چه هغوی (یعنی وارثان) هغه په طور دَ صدقے پریږدی او کچرے هغه (مقتول) ستاسو دَ دښمن دَ قام نه وی او هغه خپله (ځانی) مومن وی نو (په دے قتل به بس دَ یو مومن (غلام) دَ ښت آزادول (کافی) دی۔ او کچرے هغه (مقتول) چرته دا سے قام نه وی چه دَ هغه او ستاسو تر منځه معاهده وی نو (قاتل باندے به) خون بها واجب وی چه دَ هغهٔ (مقتول) وارثانو ته به ورکیږی دا شان دَ یو مومن (غلام) ښت به آزادول هُم ضروری وی او چه څوک (دَ دے طاقت) او نهٔ مومی نو په (هغهٔ باندے به) دوه میاشتے یو مخیزر روژے ساتل (واجب) وی دا (نرمی) دَ الله دَ طرف نه دَ شفقت په طور ده او الله ډیر پوهیګی (او) دَ حکمت خاوند دے۔

وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا
فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَاَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا
عَظِيْمًا ﴿٩٣﴾

او څوک (سړے) چه یو مؤمن لره په قصد قتل کړي نو دَ هغه
سزا دوزخ دے هغه به تر ډیره وخته پورے دے کښے او سیګي او
الله به دَ هغه نه خفه وي او هغه به (دَ خپل ځان نه) لرے کوي او
دَ هغه دپاره به (ډیر) لوئے عذاب تیار کړي۔

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا
وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ۚ
تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۫ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ
كَثِيْرَةٌ ۭ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ
فَتَبَيَّنُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿٩٤﴾

یه ایمان دارو! هر کله چه تاسو دَ الله په لاره کښے سفر
کوئ نو ښه پته لګوئ او څوک چه تاسو ته سلام اوکړي
هغهٔ ته (دا) مهٔ وائي چه ته مومن نهٔ یې۔ تاسو دَ دُنیا
دَ ژوند سامان غواړئ۔ بیا نو دَ الله سره ډیر غنیمتونه
دی۔ آګاهُو تاسو (هُم) دا سے وئ بیا الله په تاسو باندے
احسان اوکړو بیا نو په تاسو لازم دی (چه) تاسو معلومې
څهٔ چه تاسو کوئ هغے نه په تحقیق سره الله خبر دے۔

لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ
وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۭ
فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى
الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ۭ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ۭ وَفَضَّلَ
اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٩٥﴾

په مومنانو کښے هغه (نَش په تور ره) ناست چه ورته ضرر
نهٔ دے رسیدلے او په خپلو مالونو او په خپلو ځانونو سره
دَ الله په لاره کښے جهاد کوونکي برابر نهٔ دي (نشي کیدے)
الله دَ خپلو مالونو او خپلو ځانونو په ذریعه جهاد کوونکوله
په (روستو) ناستو خلقو په درجه کښے فضیلت ورکړے
دے۔ ټولو سره الله دَ ښیګړے وعده کړے ده۔ او الله
جهاد کوونکو ته په (روستو) ناستو خلقو باندے دَ (ډیر)
لوئے اجر وعده کولو سره (ځانګړے) فضیلت ورکړے دے۔

دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا
ع ١٣ ١٠ رَّحِيْمًا ﴿٩٦﴾

(دَ دے فضیلت مطلب) دَ هغهٔ (یعني دَ خدائے) دَ
طرف نه درجات او دَ معرفت ورکړه ده۔ دا شان
دَ رحمت حصول دے او الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا
رحم کوونکے دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَالُوْا
فِيْمَ كُنْتُمْ ۭ قَالُوْا كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۭ قَالُوْٓا

کوم خلقوله چه ملائیکو دا سے حال کښے وفات ورکړو
چه هغوئ په خپلو ځانونو ظلم کولو هغوئ به (هغوئ ته)

اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا ۚ فَاُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۹۷﴾

وائي چه تاسو په څهٔ (خيال) کښې وئ ؟ هغوئ (يعنی دَ هجرت نه پاتې کسان جواب کښې) به وائي مونږ به ملک کښې کمزوري ګڼلی شو (دے دَ پاره مو هجرت اونکړو) هغوئ (يعنی فرښتې) به جواب ورکړي آيا دَ الله زمکه فراخه نهٔ وه ؟ چه تاسو دے کښې هجرت کړے وے بيا نو دَ داسے خلقو ځائے به جهنم وي او هغه دَ استوګنې په لحاظ ډير خراب ځائے دے۔

اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا ﴿۹۸﴾

من هغه خلق چه سړو، ښځو او ماشومانو کښې په حقيقت کمزوري وُو (او) هغوئ دَ څهٔ تدبير طاقت نه درلو اونهٔ څه لاره هغوئ ته په نظر راتله۔

فَاُولٰٓئِكَ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿۹۹﴾

دَ دَغه خلقو پخقله دَ خدائے (تعالیٰ) بخښنه نزدے ده ولے چه هُم الله معاف کوُونکے او بخښوُنکے دے۔

وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً ۚ وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۰۰﴾ ع

او څوک (هُم) چه دَ الله په لاره کښې هجرت اوکړي – هغوئ به په ملک کښې دَ حفاظت دَ ټولونه ښهٔ ځايونه او دَ فراخئ (رسامان) مومي۔ او څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول په طرف دَ خپل کورنه په هجرت اووزي بيا هغهٔ له مرګ راشي نو (پوهه شه چه) دَ هغه اجر دَ الله په ذمه شو او الله ډير بخښوُنکے او بيا بيا رحم کوُونکے دے۔

وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ اِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴿۱۰۱﴾

او کچرے تاسو ويريږئ چه کافران به تاسو تکليف کښې واچوي نو هر کله چه تاسو ملک کښې سفر کوئ نو تاسو ته هيڅ ګناه نشته که نمونځ لنډ کړئ۔ په تحقيق سره کافران ستاسو (ښکاره) ښکاره دښمنان دی۔

وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ وَلْيَاْخُذُوْٓا اَسْلِحَتَهُمْ ۚ فَاِذَا سَجَدُوْا فَلْيَكُوْنُوْا مِنْ وَّرَآئِكُمْ ۖ وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ

او هر کله چه ته (نبي) هغوئ کښې يې او تهٔ هغوئ ته نمونځ ورکوے نو هغوئ کښې دَ جماعت يوه برخه له (يکار دی چه) تاسره اودريږي او خپله وسله دِ واخلي

يُصَلُّوْا فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ وَلْيَاْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ ۚ
وَدَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ تَغْفُلُوْنَ عَنْ اَسْلِحَتِكُمْ وَاَمْتِعَتِكُمْ
فَيَمِيْلُوْنَ عَلَيْكُمْ مَّيْلَةً وَّاحِدَةً ؕ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ
اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ اَوْ كُنْتُمْ مَّرْضٰۤى اَنْ تَضَعُوْۤا
اَسْلِحَتَكُمْ ۚ وَخُذُوْا حِذْرَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ
عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۱۰۲﴾

بیا هرکله چه هغوئ سجده اوکړی نو لاړه یله برخه دَ جماعت چاچه نمونځ نهٔ وی کړے دِ راوړاندے) راشی او تا سره دِ نمونځ اوکړی او هغوئ دِ هُم دَ خپل حفاظت سامان او خپله وسله رځان سره) ساتی ـ کوم خلق چه کافران دی هغوی غواړی چه څنګه به شئ وے چه تاسو دَ خپلو وسلو او خپلو سامانونو نه غافل شئ چه هغوئ یو دم په تاسو راپریوزی او که دَ باران په وجه تاسو ته تکلیف وی یا تاسو مریضان یئ نو دَ خپلو وسلو کوزولو باندے به په تاسو څهٔ ګناه نهٔ وی ـ وے بیا هُم تهول احتیاطونه اوکړئ په تحقیق سره الله کافرانو دَ پاره رسوا کوونکے عذاب تیار کړے دے۔

فَاِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى
جُنُوْبِكُمْ ۚ فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۚ اِنَّ
الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا ﴿۱۰۳﴾

او هرکله چه تاسو نمونځ اوکړئ نو په ناسته او ولاړه او په اړخونو الله یادوئ ـ بیا هرکله چه ستاسو تسلی اوشی نو نمونځ په قلارے اوکړئ ـ په تحقیق سره نمونځ په مومنانو مؤقت (یعنی په وخت کول) فرض دی۔

وَلَا تَهِنُوْا فِى ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ
فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ ۚ وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا
ع ۱۲ لَا يَرْجُوْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۰۴﴾

او تاسو دَ هغه قام (یعنی دَ دښمنانو) په لټون کښے سُستی مهٔ کوئ او که چرے تاسو ته تکلیف کیګی نو څنګه چه تاسو ته تکلیف کیګی هغوئ ته هُم کیګی او تاسو خو دَ الله نه دَ هغهٔ (دَ فضل و کرم) اُمید لرئ چه دَ کوم هغوئ نهٔ لری او الله ډیر خبردار او دَ حکمتونو خاوند دے۔

اِنَّاۤ اَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ
بِمَاۤ اَرٰىكَ اللّٰهُ ؕ وَلَا تَكُنْ لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا ﴿۱۰۵﴾

په تحقیق سره مونږه ستاسو طرف ته (دا) کتاب صداقت سره دے دَ پاره نازل کړے دے چه ته دَ خلقو ترمنځه دَ دے (خلقو) په ذریعه چه کوم الله تا ته ښودلی دی فیصله اوکړے او ته دَ خیانت کوونکو دَ طرف نه جهګړه کوونکے مهٔ شه۔

وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۱۰۷

او د الله نه (د هغهٔ) بخښنه غواړه- په تحقيق سره الله ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے.

وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ۱۰۸

او نهٔ د هغه خلقو د طرف نه چه د خپلو نفسونو خيانت کوی جنګ مهٔ کوه- څوک چه خيانت کښے وړاندے شوی او ډير ګناه ګار دی الله هغوئ نهٔ خوښوی.

يَّسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ۱۰۹

هغوی د خلقو نه پرده کوی او د الله نه پرده نهٔ کوی کنی حال دا چه هرکله هغوی د شپے د داسے خبرو مشورے کوی چه کوم الله نهٔ خوښوی (نو) هغه هغوئ سره وی او څهٔ چه هغوئ کوی الله د هغه ختموُونکے دے.

هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَاۗءِ جٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۣ فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ۱۱۰

واورئ! تاسو هغه خلق يئ چه د هغوئ د طرف نه د دُنيا په ژوند کښے به موجهګړے کولے دے د قيامت په ورځ به د هغوئ د طرف نه الله سره څوک جنګيږي يا څوک به د هغوی محافظ وی.

وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْۗءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۱۱۱

اوڅوک (هُم) چه څهٔ بدی اوکړی يا په خپل نفس باندے ظُلم اوکړی هغے نه پس د الله نه (د خپلو ګناهونو) معافی اوغواړی (نو) هغه به الله لره ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوُونکے اومومی.

وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰي نَفْسِهٖ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۱۱۲

اوڅوک چه څهٔ بدی اوکړی - د هغهٔ فعل به په هغه (پستنه) پربوزی او الله ډير پوهه (او) د حکمتونو خاوند دے.

وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْۗـــــَٔةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْۗــــــًٔـا فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ۱۱۳ ع

اوڅوک چه څهٔ قصور يا ګناه اوکړی بيا په يو بے قصوره باندے د هغے الزام اوتپی نو (پوهه شئ چه) هغهٔ لوی دروغ او ښکاره (ښکاره) د ګناه پيټهٔ اوچت کړو.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّاۗىِٕفَةٌ

کهٔ چرے په تاسو باندے د الله فضل او د هغهٔ رحمت

مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ۭ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَھُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ ۭ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ۭ وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا ﴿۱۱۳﴾

نهٔ وے نو هغه (یعنی دښمن به په خپله بده اراده کښې کامیاب وے نو ځکه) هغوئ کښې یو ټولی (ډله) خبرے (پخه اراده کړے وه چه تا هلاک کړی او هغوی د ځان نه سوا بل چا لره نهٔ هلاکوی او تا ته هیڅ هُم نقصان نشی رَسولے او الله په تا باندے کتاب او حکمت نازل کړے دے او څهٔ چه تا ته معلوم نهٔ وُو تا ته ئے ښودلی او په تا باندے دَ الله (ډیر) لوئے فضل دے.

لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىھُمْ اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍۢ بَيْنَ النَّاسِ ۭ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَاۗءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۱۴﴾

دَ هغه خلقو (مشورو) نه سوا چه صدقه یا نیکه خبره یا دَ خلقو ترمنځه دَ اصلاح کولو حُکم کوی دَ هغوئ په ډیرو مشورو کښې څه ښیګړه نشته (نهٔ وی) او څوک چه دَ الله دَ رضا حاصلولو دَ پاره داسے اوکړی (یعنی نیکے مشورے اوکړی) مونږه به هغهٔ له ډیر زر (ډیر) لوئے اجر ورکړو.

وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۭ وَسَاۗءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾

او څوک (هُم) به چه دَ دے هدایت په پُوره شان ښکاره کیدو نه پس (دے) رسُول سره ګیادی اختلاف کوی او دَ مومنانو دَ طریقے نه سوا (په بله یوه طریقه) روان وی مونږ به هغه هغے څیز پسے روان کړو چه کوم پسے هغه تګیدے دے او هغه به جهنّم کښے واچوو او هغه ډیر خراب ځائے دَ استوګنے دے.

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿۱۱۶﴾

الله به دا (ګناه) هیڅکله او نهٔ بخښی چه هغهٔ سره (چا لره) شریک جوړ کړے شی او چه کومه (ګناه) دَ دے نه وړه وی (هغه به) چه دَ چا په حقله او غواړی معاف کړی او کوم سړے چه (چا لره) دَ الله شریک جوړ کړی نو (پوهه شه چه) هغه (دَ نیغے لارے نه) ډیر لرے اووَتو.

إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ إِنَٰثًا وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَٰنًا مَّرِيدًا ﴿١١٨﴾

هغوئ الله پځائے پریږدی او دَ بے ساه څیزونو نه سوا (دَچا) مدد نهٔ غواړی بلکه هغوئ دَ سرکش شیطان نه سوا (بل څوک) نهٔ بلی۔

لَّعَنَهُ ٱللَّهُ ۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿١١٩﴾

(هغه شیطان له) کوم چه الله (دَ خپل درنه) لرے کړے دے او (چا چه دا) وئیلی وُو چه زهٔ به ستا دَ بندیانو نه خامخا یوه مقرره برخه اخلم۔

وَلَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَءَامُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ ءَاذَانَ ٱلْأَنْعَٰمِ وَلَءَامُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ ٱللَّهِ ۚ وَمَن يَتَّخِذِ ٱلشَّيْطَٰنَ وَلِيًّا مِّن دُونِ ٱللَّهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِينًا ﴿١٢٠﴾

او هغوئ به خامخا بے لاره کوم او په تحقیق سره (غټ غټ) اُمیدونه به هُم ورکوم او ترے نه بیا به دا غوښتنه کوم چه هغوئ دَ څاروُو غوږونه پریکړی دا شان به ترے غواړم چه دَ خدائے په مخلوق کښے تبدیلی اوکړی او څوک چه دَ الله په ځائے شیطان په دوستئ اونیسی نو (پوهه شه چه) هغه ښکاره (ښکاره) نقصان کښے پریوتو۔

يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ۖ وَمَا يَعِدُهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴿١٢١﴾

هغه (یعنی شیطان) هغوئ ته وعدے ورکوی او شیطان هغوی سره سوا دَ ښکاره فریب دَ خبرونه (دَ بلے خبرے) وعده نهٔ کوی۔

أُو۟لَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ﴿١٢٢﴾

دَ هغو خلقو دَ استوګنے ځائے خو جهنم دے او هغوئ به دَ دے نه دَ تیښتے ځائے چرته نهٔ مومی۔

وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۖ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقًّا ۚ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ ٱللَّهِ قِيلًا ﴿١٢٣﴾

او کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوئ نیک کارونه کړی دی مونږ به هغوئ له خامخا داسے باغونو کښے داخله وُرکړو دَ هغو لاندے به نهرونه بهیګی (او هغوئ به) هغو کښے تل ترتله اوسی (دا) دَ الله رښتونے وعده (ده) او الله نه زیاته دَچا خبره رښتونے کیدے شی۔

لَّيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَآ أَمَانِىِّ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ ۗ مَن يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهِۦ وَلَا يَجِدْ لَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيًّا

نهٔ ستاسو دَ غوښتنو مطابق (کیدُونکے) ده او نهٔ دَ اهلِ کتاب دَ غوښتنو مطابق (بلکه) څوک سړے چه څهٔ بدی

وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾

او کړی هغهٔ ته به دَ هغې مطابق بدله ورکیدے شی او هغوئ به دَ الله نه سوا نهٔ چالره خپل دوست پیدا کړی او نهٔ مددګار۔

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾

او کم خلق که سړی وی یا ښځې دَ ایمان په حال کښې نیک کارونه او کړی نو هغوئ به جنّت کښې داخلیګی او په هغوئ باندے به دَ کهجورے دَ کټکی دَ سوری هومره (هُم) ظُلم نهٔ کیګی۔

وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾

او دَ هغه سړی نه زیات دَ چا دین ښهٔ زکیدے شی (دے) چا چه په ښهٔ شان عمل کولو سره خپل ځان الله ته سپارلے وی او دَ ابراهیمؑ دَ دین چه زیات حُکم منُونکے او پیروی کوُونکے وه او الله ابراهیم لره (خپل) خاص دوست جوړ کړے وُه۔

وَلِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ مُّحِيْطًا ﴿۱۲۶﴾ ع ۱۸/۱۵

او څهٔ چه په آسمانونو کښې او څهٔ چه په زمکه کښې دی (ټول) هُم دَ الله دی او (الله دَ هر څیز) هر څیز لوره علم لری۔

وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِی النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِی الْكِتٰبِ فِیْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِیْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿۱۲۷﴾

او خلق تا نه دَ لوے نه دَ زیاتو (ښځو سره دَ نکاح) پهقله تپوس کوی۔ ته (هغوئ ته) او وایه چه الله تاسو له دَ هغوئ پهقله اجازه درکړے ده او کوم (حُکم) چه (دے) کتاب کښې (ربل ځائے) تاسو نه اوروُلے شوے دے هغه دَ هغو یتیمانو ښځو پهقله دے چاله چه تاسو دَ هغوئ مقرر کړے حق نهٔ ورکوئ ولے هغوئ سره نکاح کول غواړئ او (ورسره) دَ کمزورو بچیانو پهقله دے او (تاسو ته دا حکم درکړے شوے وه) چه یتیمانو سره دَ انصاف معامله کوئ او هر (ربلو) نیک کار هُم چه تاسو او کړئ (نو یاد لرئ چه) په تحقیق سره الله هغې نه خبر دے۔

وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ؕ وَالصُّلْحُ

او کچرے چا ښځې ته دَ خپل خاوند دَ طرف نه دَ خراب تعلق یا دَ پام نهٔ کولو ویره دی نو په هغو دواړو باندے څهٔ

خَيْرٌ ۗ وَأُحْضِرَتِ الْأَنفُسُ الشُّحَّ ۚ وَإِن تُحْسِنُوا
وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٢٨﴾

گناه نشته کچرے هغوئ په څه طریقه باندے خپلو کښے صلح اوکړي او روغه (د تېلونه) ښه ده او (د خلقو) په نفسونو کښے د بُخل (خیال) پیدا کړے شوے دے او کچرے تاسو نیک کار اوکړئ او تقویٰ اوکړئ نو (یاد لرئ چه) څه تاسو کوئ په تحقیق سره الله هغے نه خبر دے۔

وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ ۖ
فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ۚ وَإِن
تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٢٩﴾

او کچرے تاسو (د عدل کولو هر څومره هُم) غوښتنه اوکړئ (نو بیا هُم) تاسو د ښځو ترمنځه عدل کولے نشئ بیا نو تاسو یو میخ (هُم د یو طرف ته) مه تیتمیکئ (چه د هغے نتیجه داوی) چه هغے (بله) لره (ترمنځه) آویزانه (ځړیز) غونډے پریږدئ او کچرے تاسو (خپلو کښے) موافقت پیدا کړئ او تقویٰ اوکړئ نو (یاد ساتئ چه) الله په تحقیق سره ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ
وَاسِعًا حَكِيمًا ﴿١٣٠﴾

او کچرے هغوئ (دواړه) بیل شی نو الله (هغوئ کښے به) هر یو له د خپل طرف نه فراخی ورکولو سره غنی کړی۔ او الله وسعت ورکوونکے او د حکمتونو خاوند دے۔

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا
الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ وَإِيَّاكُمْ أَنِ اتَّقُوا اللَّهَ ۚ
وَإِن تَكْفُرُوا فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ
وَكَانَ اللَّهُ غَنِيًّا حَمِيدًا ﴿١٣١﴾

او هر څه چه آسمانونو کښے وی او څهٔ چه په زمکه کښے دی (ټول) هُم د الله دی او کومو خلقو له چه تا سو نه آګاهو کتاب ورکړے شوے وُه مونږ هغوئ له (هُم) او تا سو له (هُم) په تاکید (دا) حُکم ورکړے دے چه تاسو د الله تقویٰ اوکړئ او کچرے تاسو انکار اوکړئ نو (یاد لرئ چه) څه په آسمانونو کښے دی او څهٔ چه په زمکه کښے دی (ټول) هُم د الله دی او الله بے نیازه (او) د بے شمیره تعریفونو مستحق دے۔

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ
وَكِيلًا ﴿١٣٢﴾

او څهٔ چه په آسمانونو کښے دی او چه څهٔ په زمکه کښے دی (ټول) هُم د الله دی او الله هر ضروری حفاظت کوونکے دے۔

إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا النَّاسُ وَيَأْتِ بِآخَرِينَ ۚ

یه خلقو! کچرے هغه اوغواړی نو تاسو به او وځنی او نور

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾

زخلق) به راولی او الله په دے زخبره) پوره رلوره) قادر دے۔

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا
وَالْاٰخِرَةِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًاۢ بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾ ع

کوم سړے چه د دُنیا بدله غواړی نو رهغه دِ واوری چه) الله سره دنیوی او اخروی ردواړه قسمه) انعام شته او الله ډیر اوریدُونکے راو) لیدُونکے دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ
لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰۤى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ اِنْ
يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا ۫ فَلَا تَتَّبِعُوا
الْهَوٰۤى اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ وَاِنْ تَلْوٗۤا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ
كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۳۵﴾

یَه ایمان دارو ! تاسو په پُوره ډول په انصاف باندے قائم پاتے کیدُونکی راو) دَ الله دَ پاره گواهی ورکوُونکی شئ۔ هرڅوک که رستا سو گواهی) ستاسو دَ خپل ځان زخلاف) یا دَ مور و پلار او نزدو خپلوانو خلاف وی۔ کچرے هغه رچه دَ چا په حقله گواهی ورکړے شوے ده) غنی دے یا محتاجه دے نو ربه دواړو صورتونو کښے) الله دَ دے دواړو رستاسو نه) زیات خیرخواه دے۔ دے دَ پاره تاسو رخهٔ ذیل) خواهش پسے لاړ نشئ۔ دا ځکه چه عدل اوکړے شی او کچرے تاسو رخهٔ شهادت) پټ کړئ یا ردَ حقوو دَ وینا نه) اړخ اوکړئ نو ریاد لرئ چه) څهٔ تاسو کوئ په تحقیق سره الله هغے نه خبر دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ
نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْۤ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ
يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ
ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۱۳۶﴾

یَه ایمان دارو! په الله او دَ هغهٔ په رسُول رباندے) او په دے کتاب باندے چه مونږ ه په خپل رسُول باندے نازل کړے دے او په دے کتاب باندے چه هغهٔ ردے نه) آگاهو) نازل کړے دے ایمان راوړئ۔ او څوک سړے چه په الله او دَ هغهٔ په فرښتو او دَ هغهٔ په کتابُونو او دَ هغهٔ په رسُولانو او دَ روستو راتلُونکے ورځے انکار اوکړی نو رلوهٔ شه چه) هغه پوره گمراهی کښے پریوتے دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا
لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ؕ ﴿۱۳۷﴾

کوم خلق چه رړومبئ) ایمان راوړو بیا هغوی انکار اوکړو بیا ئے ایمان راوړو بیا ئے انکار اوکړو بیا په کفر کښے رنور هُم) زیات شول الله به هغوئ هیڅکله نهٔ معاف کوی او نهٔ به هغوئ ته ردَ نجات) لاره ښائی۔

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۳۸﴾

ته مُنافقانو ته (دا) خبره اوروه چه هغوئ دپاره دردناک عذاب دے۔

اَلَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴿۱۳۹﴾

چه دَ مومنانو په ځائے کافرانو له (خپل) دوستان جوړوی هغوئ دَ هغو په حضور کښے دَ عزت غوښتونکی دی (کړے داسے ده) نو (هغوئ دِ یاد لری چه) ټول عزت هُم دَ الله په لاس کښے دے۔

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِىْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ فِىْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ﴿۱۴۰﴾

او هغهٔ دے کتاب کښے تاسو باندے دا (حکم) نازل کړے دے چه هرکله تاسو دَ الله دَ آیتونو بچقله دَ انکار اظهار واورئ یا هغوئ پورے خندا کیدل واورئ نو دَ هغو (خنداکوونکو) سره (تر هغه وخته) مهٔ کینئ ترڅو پورے چه هغوئ دَ هغے نه سوا بله څه خبره کښے مشغول (نهٔ) شی په تحقیق سره تاسو به (دَ دغه خنداکوونکو سره دَ ناستے) په وخت هُم هغه شان (خیال کولے) شئ۔ په تحقیق سره الله به منافقانو او کافرانو (ټولو) له جهنم کښے ځائے کوی۔

اَلَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ﴿۱۴۱﴾ ع

(هغو منافقانو له) چه ستاسو بچقله دَ تباهئ په انتظار کښے اوسی او کچرے تاسو ته دَ الله دَ طرف نه څهٔ فتح حاصله شی نو (تاسو ته) وائی چه آیا مونږ تاسو سره نهٔ وُو او کچرے کافرانو ته (دَ فتح) څه برخه حاصله شی نو (هغوئ ته) وائی چه آیا مونږ په تاسو برشوی نهٔ وُو او (مونږه) تاسو دَ مومنانو نه بچ کړی (نهٔ) وئ۔ بیا به الله ستاسو ترمنځه دَ قیامت په ورځ فیصله کوی۔ او الله به کافرانو له په مومنانو باندے هیڅکله برئ نهٔ ورکوی۔

اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَاِذَا قَامُوْٓا اِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ۙ يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۴۲﴾

په تحقیق سره منافق الله ته دهوکه ورکول غواړی او هغه به هغوئ له دَ هغوئ دَ دهوکے سزا ورکوی او هرکله چه هغوئ نمونځ دَپاره اودریګی نو په زړه ماتی اودریګی

هغوئ خلقو ته بیائ او الله لرې یا دوی -

مُّذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ﴿۱۴۳﴾

دهغوی حال (د الله د یادونې او غفلت) ترمنځه دی نهٔ هغوئ دوئ (یعنی مومنانو) سره دی او نهٔ هغوئ هغو (یعنی) کافرانو سره دی او چه چاله الله هلاک کړی نهٔ به هغهٔ د پاره هیڅکله (د نجات) لاره او نهٔ مومے -

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۱۴۴﴾

یه ایمان دارو! د مومنانو په ځائے کافران خپل دوستان جوړوئ آیا تاسو غواړئ چه خدائے له دخپل ځان خلاف ښکاره (ښکاره) د الزام (ګلولو) موقعه ورکړئ -

اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِى الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيْرًا ﴿۱۴۵﴾

په تحقیق سره منافق به د جهنم د تل په ټولو نه لاندے حصه کښے وی او ته به هیڅکله (چاله) د هغوی مددګار او نهٔ مومے -

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ وَاَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۴۶﴾

سوا د هغه خلقو نه چا چه توبه او کړه او اصلاح او کړه او د الله په ذریعه ئے (خپل) حفاظت اوغوښتو او خپل عبادت ئے د الله د پاره خالص کړو - بیا نو دا خلق مومنانو کښے شامل دی او الله به ډیر زر مومنانو له اجر ورکوی -

مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۷﴾

کچرے تاسو شکر او کړئ او ایمان راوړئ نو الله تاسو له په عذاب ورکولو څه کوی، او الله (تعالیٰ خو) قدردان او ډیر علم لرونکے دے -

ربع لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا
مَنْ ظُلِمَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿١٤٨﴾

الله دَ بدے خبرے اظهار نهٔ خوښئ. هن چه په چا باندے ظلم شوے وی هغه دَ دے ظلم اظهار کولے شی او الله ډیر اوریدونکے (او) ښهٔ خبردار دے.

اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ
فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿١٤٩﴾

کچرے تاسو څهٔ نیکی ښکاره کړئ یا هغه پټه کړی یا (دَ چا) بدی معاف کړئ نو (ډیره ښهٔ چه) په تحقیق سره الله ډیر معاف کوونکے (او) ډیر دَ قدرتونو خاوند دے.

اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ
يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ
وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّيُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ
ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴿١٥٠﴾
اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ۚ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ
عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿١٥١﴾
وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ
اَحَدٍ مِّنْهُمْ اُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ۭ وَ
ع كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٥٢﴾

کوم خلق چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسولانو انکار کوی او الله او دَ هغهٔ دَ رسولانو ترمنځه فرق کول غواړی او وائی چه مونږ ځنے (رسولان) منو او دَ ځنو نه انکار کوؤ او غواړی چه دَ دے ترمنځه څه لاره چپله کړی.
هغه خلق په یقین سره غټ کافران دی او دَ کافرانو دَ پاره مونږ رسوا کوونکے عذاب تیار کړے دے.
او کوم خلق چه په الله او دَ هغهٔ په (ټولو) رسولانو باندے ایمان لاوړی او هغوئ په دغو (رسولانو) کښے دَ چا ترمنځه (هُم) فرق اونکړو هغه خلق داسے دی چه هغه به هغوی له ډیر زر دَ هغوئ اجرونه ورکړی او الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ
السَّمَاۗءِ فَقَدْ سَاَلُوْا مُوْسٰٓى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالُوْٓا
اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ
ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَاۗءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ
فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ۚ وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى سُلْطٰنًا
مُّبِيْنًا ﴿١٥٣﴾

دَ کتاب منونکی تا نه سوال کوی چه تهٔ په هغوئ دَ آسمان نه یو کتاب راکوز کړه (په دے حیرانه نشے ځکه چه هغوئ موسیٰ نه دَ دے نه هُم غټ سوال کړے وه. هغوئ هغهٔ ته وئیلی وُو چه تهٔ مونږ ته الله په ښکاره اوښایه. بیا دَ هغوئ دَ ظلم په سوب هغوی هلاک کوونکی عذاب اونیول او هغوئ سخی لره هرکله چه هغوئ له ښکاره (ښکاره) نشانات راغلی وُو (خپل معبود) جوړ کړو. بیا مونږ هغه (قصور (هُم) معاف

کړو او مونږه موسیٰ له ښکاره غلبه ورکړه۔

وَ رَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ بِمِیْثَاقِهِمْ وَ قُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّ قُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِی السَّبْتِ وَ اَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّیْثَاقًا غَلِیْظًا ﴿١٥٤﴾

او مونږه د هغوئ نه (پوخ) لوظ اخستو سره په هغوئ باندے طُور (غر) اوچت کړو او هغوئ ته مونږه اووئیل چه دے دروازه کښے پوره اطاعت سره داخل شئ او مونږه هغوئ ته (دا هُم) اووئیل چه د سبت (په کارکښے) زیاتئ مهٔ کوئ او مونږه هغوی نه یو پوخ لوظ واخستو۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّیْثَاقَهُمْ وَ كُفْرِهِمْ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَ قَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِیَآءَ بِغَیْرِ حَقٍّ وَّ قَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَیْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا یُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِیْلًا ﴿١٥٥﴾

بیا د هغوئ د خپل لوظ د ماتولو (په سوب) او د الله د آیتونو نه د هغوئ د انکار او په سوب د هغوئ ناحقه نبیانوله د وژلو کوشش کولو او د دے (خبرے) د وئیلو په سوب چه څمونږ زړونه په پردو کښے دی (په پردو کښے) نا بلکه الله د هغوئ د کفر په سوب د هغوی (په زړونو) باندے مهر وهلے دے۔ دے د پاره هغوئ د سره ایمان نهٔ راوړی۔

وَّ بِكُفْرِهِمْ وَ قَوْلِهِمْ عَلٰی مَرْیَمَ بُهْتَانًا عَظِیْمًا ﴿١٥٦﴾

او د هغوئ د کفر (په سوب) او په مریم باندے د هغوئ (د ډیر ډیر) لوئے تومت لګولو په سوب۔

وَّ قَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِیْحَ عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۚ وَ مَا قَتَلُوْهُ وَ مَا صَلَبُوْهُ وَ لٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ؕ وَ اِنَّ الَّذِیْنَ اخْتَلَفُوْا فِیْهِ لَفِیْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَ مَا قَتَلُوْهُ یَقِیْنًا ۙ ﴿١٥٧﴾

او په سوب د هغوئ (د دے خبرے) د وئیلو چه په تحقیق سره د الله رسُول مسیح عیسیٰ ابن مریم لره مونږه قتل کړے دے (دا سزا هغوئ ته ورکړے شوے ده) کنی په حقیقت کښے نهٔ هغوئ هغه قتل کړو او نهٔ هغوئ هغه په صلیب اووژلو بلکه هغه د هغوئ د پاره (د صلیب شوی) په شان جوړ کړے شو او کوم خلق چه دے (یعنی د مسیح د صلیب نه ژوندی راکُوزولو) کښے اختلاف کړے دے هغوئ دے ژوندی راکُوزولو په وجه) شک کښے (پریوتی) دی۔ هغوی نه

دَ دے پمقله هیڅ هُم (یقینی) علم نشته دے. هن (لس یو) وهم پسے روان دی او هغوئ دَ دے (واقعه صلیب) باندے پوره پوهه نهٔ دی. (اوچه څه پوهه دی نو غلط پوهه دی).

بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۱۵۸﴾

واقعه دا ده چه الله هغهٔ ته په خپل حضور کښے عزت (او رفعت) ورکړے وه (او هغه په صلیب مړشوے نهٔ وه) ولے چه الله غالب (او) دَ حکمتونو خاوند دے.

وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴿۱۵۹﴾

دَ کتاب منونکونه یو هُم نشته چه په دے (واقعه) دَ خپل مرګ نه آګاهو ایمان (رانهٔ وړی او هغه به دَ قیامت په ورځ په هغوی ګواه وی.

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَثِيْرًا ﴿۱۶۰﴾

بیا دَ (دے) ظلم له کبله چه دَ یهودیانو دَلاسه اوشو مونږه هغه پاک څیزونه چه (آګاهو) هغوئ دَ پاره حلال کړی وُو په هغوئ حرام کړل او (دله داچه) دَ الله دَ لارے نه دَ ډیرو (خلقو) دَ منع کولو په سوب (هغوئ ته دا سزا ورکړے شوه).

وَّاَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ؕ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۶۱﴾

او دَ هغوئ دَ سُود دَ کاروبار کولو په وجه هُم کنی حقیقت کښے دے نه هغوئ منع کړے شوی وُو (او ورسره) په دے سوب چه دَ خلقو مالونه به هغوی ناحقه خوړل (هغوئ ته دا سزا ورکړے شوه) او مونږه هغوئ کښے کافرانو دَ پاره دردناک عذاب تیار کړے دے.

لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِى الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ اُولٰٓئِكَ سَنُؤْتِيْهِمْ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۶۲﴾ ع ۲۲

ولے په دغو (یهودیانو) کښے چه کوم خلق په علم کښے پاخهٔ دی هغوئ او (ورسره) مومن (مسلمانان) په دے (الٰهی کلام چه په تا نازل شوے دے او چه زَمَا نه وړاندے نازل شوی وُو ایمان (راوړی (په

تیرہ تیرہ ) نمونځ په صحي ډول کوونکي او زکوٰة ورکوونکي او الله باندے او روستو راتلونکې ورځ باندے ایمان راوړونکي (خلقو) له به مونږ ښځا ښما (ډیر) لوئے اجر ورکوو۔

إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّـۧنَ
مِنۢ بَعْدِهِۦ ۚ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَ
إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ
وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيْمَٰنَ ۚ وَءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ
زَبُورًا ﴿١٦٣﴾

څنګه چه مونږ په نوح او د هغهٔ نه روستو (نورو) ټولو نبیانو باندے وحی (نازله کړے وه)، په تحقیق سره په تا باندے (هم) مونږ وحی (نازله) کړے ده او مونږ په ابراهیم او اسماعیل، اسحاق او یعقوب او (د هغهٔ) په اولاد او عیسٰی او ایوب او یونس او هارون او سلیمان باندے (هم) کړے وه او مونږ داوٗد له (هم) یو کتاب ورکړے وه۔

وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَٰهُمْ عَلَيْكَ مِن قَبْلُ وَرُسُلًا
لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۚ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴿١٦٤﴾

او څه داسے رسولان چه د هغوئ خبر مونږ (د دے نه) آګاهو تا ته درکړے دے او څه داسے رسولان دی چه د هغوئ ذکر مونږ تا ته نهٔ دے کړے۔ او الله موسٰیؑ سره په ښهٔ شان کلام کړے وُو۔

رُّسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ
عَلَى ٱللَّهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ ٱلرُّسُلِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا
حَكِيمًا ﴿١٦٥﴾

مونږ هغوئ له یعنی موسیٰؑ سره ذکر شوو رسولانو له ځیری ورکوونکي او یره ورکوونکي رسولان استولی وُو دے د پاره چه د خلقو د دغو رسولانو (د راتلو) نه پس په الله څهٔ الزام پاتے نشی او الله غالب (او) د حکمتونو خاوند دے۔

لَّٰكِنِ ٱللَّهُ يَشْهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيْكَ ۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلْمِهِۦ ۖ
وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَشْهَدُونَ ۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا ﴿١٦٦﴾

و لے الله د دے (کلام) په ذریعه چه هغهٔ په تا نازل کړے دے ګواهي ورکوی چه هغهٔ دا خپل علم سره نازل کړے دے او ملائیکے (هم) ګواهي ورکوی او د الله ګواهي د ټولو د پاسه ده۔

إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ قَدْ ضَلُّوا۟

چا چه کُفر کړے دے او (خلق ئے) د الله د لارے نه منع

ضَلٰلًا بَعِيدًا ﴿١٦٧﴾

کړی دی هغوئ په تحقیق سره ډیر زیات بے لارے شوی دی۔

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا وَظَلَمُوْا لَمْ یَکُنِ اللّٰهُ لِیَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِیَهْدِیَهُمْ طَرِیْقًا ﴿١٦٨﴾

چاچه کفر کړے دے او ظُلم ئے کړے دے الله هغوئ هیڅکله معاف کولے نشی او نهٔ هغه هغوئ ته دَجهنم نه سوا بله لاره ښو دلے شی۔

اِلَّا طَرِیْقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِیْنَ فِیْهَآ اَبَدًا ؕ وَکَانَ ذٰلِكَ عَلَی اللّٰهِ یَسِیْرًا ﴿١٦٩﴾

هغوئ به دے (جهنّم) کښے (ډیرے) مودے پورے اوسی او دا (خبره) الله دَ پاره آسانه ده۔

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَاٰمِنُوْا خَیْرًا لَّكُمْ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِیْمًا حَكِیْمًا ﴿١٧٠﴾

یَه خلقو! دا رُسول تاسو له ستاسو دَ ربّ دَ طرف نه حق سره راغلے دے، دے دَ پاره تاسو ایمان راوړی (دا به) تاسو دَ پاره ښه وی۔ او کچرے تاسو انکار اوکړئ نو (یاد لرئ) څه آسمانونو او زمکه کښے دی په تحقیق سره هُم دَ الله دی او الله ډیر خبردار (او) دَ حِکمتونُو خاوند دے۔

یٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِیْ دِیْنِكُمْ وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَی اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ اِنَّمَا الْمَسِیْحُ عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَاۤ اِلٰی مَرْیَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ ۫ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ ؕ اِنْتَهُوْا خَیْرًا لَّكُمْ ؕ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ؕ سُبْحٰنَهٗۤ اَنْ یَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ ۘ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَكَفٰی بِاللّٰهِ وَكِیْلًا ﴿١٧١﴾

یَه دَ کتاب مُنونکو! تاسو دَ خپل دین (په حقله) دَ حَان نه خبره مهٔ کوئ او دَ الله په حقله دَ رښتونے خبرے نه سوا (هیڅ) مهٔ وائی۔ مسیح عیسیٰ ابن مریم بس دَ الله (یو) رُسول او دَ هغهٔ دَ طرف نه یو رحمت وُه۔ دے دَ پاره تاسو په الله (باندے) او دَ هغهٔ په ټولو رُسولانو باندے ایمان راوړئ او (دا ســے) مهٔ وائی چه (خدائے) درے دی (دے خبرے نه) منع شئ۔ دا به تاسو دَ پاره ښهٔ وی۔ هُم الله یو ازے معبود دے۔ هغه (دَ دے خبرے نه) پاک دے چه دَ هغهٔ اولاد وی۔ څه چه آسمانونو او زمکه کښے دی (ټول) دَ هغهٔ دی او دَ الله دَ حفاظت نه پس دَ بل چادَ حفاظت ضرورت نشته۔

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا ﴿۱۷۲﴾

مسیح به هیڅکله په دے رخبره) بد نهٔ منی چه هغه دَ الله یو بنده (اوګنړلے شی) اونهٔ به مقرب فرښتے رپه دے بد منی) اوکوم رخلق) چه دَ هغهٔ په عبادت بد اومنی اوکبر اوکړی هغهٔ یعنی رخدائے تعالیٰ) به خامخا هغوئ ټول خپل حضور کښے راغونډوی۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷۳﴾

بیا کوم خلق چه مومنان وُو او هغوئ نیک راو دَ ایمان سره مناسب) عمل کړے وُو هغوی له به هغه دَ هغوئ پوره پوره بدله ورکوی او په خپل فضل به هغوئ له رنورهُم) زیات ورکوی۔ او کوم خلق چه بد منلی وُو او کبرئے کړے وو هغوئ له به هغه دردناک عذاب ورکوی۔ او هغوئ به دَ الله نه سوا نهٔ رچا له) خپل دوست مومی نهٔ مدد ګار۔

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَاَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿۱۷۴﴾

یَه خلقو! تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه لوښکاره دلیل راغلے دے او مونږ ستاسو طرف ته (ډیر) روښنا نه نُور راګوزکړے دے۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۱۷۵﴾

بیا چه کوم خلقو په الله باندے ایمان راوړے دے او (هغوئ) دَ دے په ذریعه (خپل) ځان ساتلے دے هغوئ له به هغه خامخا خپل لوئے رحمت او لوئے فضل کښے داخلوی او هغوی ته به خپل طرف ته راتلونکی لوه نیغه لاره ښائی۔

يَسْتَفْتُوْنَكَ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِى الْكَلٰلَةِ ؕ اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗۤ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ۚ وَهُوَ يَرِثُهَاۤ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ ؕ فَاِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا تَرَكَ ؕ وَاِنْ كَانُوْۤا اِخْوَةً رِّجَالًا

هغوئ تا نه ردَ یو قسم کلالے بحقله) دَ فتوے تپوس کوی ۔نهٔ او وایه الله تاسو ته ردَ دا سے) کلالے بحقله حُکم درکوی۔ کچرے څوک دا سے سړے مړ شی چه دَ هغهٔ اولاد نهٔ وی او دَ هغه یوه خور وی نو چه څه هغهٔ پریښی وی دَ هغے نیمه به دَ دے رخور) وی

وَّنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ يُبَيِّنُ اللّٰهُ
لَكُمْ اَنْ تَضِلُّوْا ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۷۶﴾ ع ۲۴ / ۴

اوکه چرے رهغه خورئے مره شی او) دَ هغهٔ اولاد نهٔ وی نو هغه (یعنی دَ هغهٔ رور) به دَ هغه (دَ تهول وراثت) وارث وی اوکچرے دوه خویندے وی نوچه ثهٔ هغهٔ (رور) پریښی وی دَ هغے په درّیو کښے دوه برخے به دَ هغوئ وی اوکچرے هغه (وارث) رونړه خویندے وی ـ سری (هُم) او ښځے (هُم) نو (هغوئ کښے) دَ سړی (برخه) به دَ دوو ښځو دَ برخے هومره وی ـ الله ستاسو دَ پاره (داخبرے) ستاسو دَ بے لارے کیدلو (دَ ویرے) په ښا بیانوی او الله هرلو امرنه ښهٔ خبردے ـ




سورۃ مائدۃ۔ دا سورۃ مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے یوسل یو الیشت ۱۲۱ آیتونه او شپاړس ۱۶ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (١)

(زه) (شروکوم) په نوم دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ ؕ اُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ (٢)

یه ایمان دارو (ارخپل) لوظونه پوره کړئ ستاسو دَ پاره دَ څریدونکو (دَ قسم) څاروی سوا دَ هغونه چه تاسونه به (په قرآن کښے) په لوستنے آوروے شی حلال شوی دی په شرط دَ دے چه تاسو (دَ دے اجازت له کبله) دَ احرام په حال کښے ښکار کول جائز او نهٔ ګنړئ په تحقیق سره الله چه څه غواړی فیصله کوی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۪ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (٣)

یه ایمان دارو! دَ الله دَ (مقرر کړو) نشانو لو بے حرمتی مهٔ کوئ او نهٔ دَ حرمت لرونکے میاشتے او نهٔ (حرم ته دَ وړونکے) قربانئ او نهٔ (دَ دا سے قربانو) چه په غاړو کښے ئے دَ حرم دَ حلالے دښے په طور هارونه اچولی شوی وی او نهٔ دَ بیت الحرام په طرف تلونکو خلقو چه دَ خپل رب دَ فضل او دَ هغهٔ دَ رضا په تلاش کښے دی۔ او هر کله چه تاسو احرام پرانزئ نو (بے شکه) ښکار کوئ او دَ یو قام (تاسو سره دا) دښمنی چه هغوئ تاسو دَ مسجدِ حرام نه منع کړی وئ تاسو په دے خبره رضا نهٔ کړی چه تاسو زیاتئ اوکړئ او تاسو دَ نیکئ او تقویٰ (په کارونو) کښے یو تر بله (دَ یو بل) مدد

کوئ او دَ گناه او زیاتئ (په کارونو) کښے دَ یو بل مدد مهٔ کوئ او دَ الله تقوی کوئ- په تحقیق سره دَ الله سزا سخته (وی) ده-

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيْرِ وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوْذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيْحَةُ وَمَآ اَكَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَاَنْ تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ ذٰلِكُمْ فِسْقٌ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ③

په تاسو باندے مُردار او وینه او دَ سُور غوښه او هغه (څناور) چه ورباندے دَ الله نه سوا (دَ بل چا) نوم اخستے شوے وی او مرئ خپه کولو سره مړشوے وی یا په لښ اوزار ژوبل کیدو سره مړشوے وی او دَ اوچت ځائے نه په راغورزیدو مړشوے او دَ ښکر په لګیدو مړشوے (څناور) او چه کوم (لره چا) درنده خوړلے وی- سوا دَ دے نه چه هغے له (دَ مرکیدو نه آګاهو) تاسو حلال کړے وی - او کوم (څناور) چه دَ بُت په نُوم حلال کړے شوے وی حرام شوے دے او دَ غشو په ذریعه برخه معلومول (هُم) داسے کارکول نافرمانی ده کوم خلق چه کافران دی هغوی تن تاسو دین (نه نقصان رَسولو) نه نااُمیده شوی دی- دے دَ پاره تاسو دَ هغوئ نه مهٔ ویریږئ- تن ما ستاسو (دَ فائدے) دَ پاره ستاسو دین مکمل کړے دے او په تاسو باندے م خپل احسان پوره کړے دے او ستاسو دَ پاره م دَ دین په طور اسلام خوښ کړے دے- کوم سړے چه دَ لوږے (په حال) کښے مجبور شی او هغه دَ گناه په طرف تیښتیدُونکے نهٔ وی (او حرام څیزونو کښے څه اوخوری) نو (زیاد لړئ) چه الله په تحقیق سره (دَ مجبوری غلطو لره) ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے-

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَآ اُحِلَّ لَهُمْ ۭ قُلْ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۙ
وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا
عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ ۡ فَكُلُوْا مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ
اللّٰهِ عَلَيْهِ ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ④

(مسلمانان) تا نه تپوس کوی چه دَ هغوئ دَپاره (څه) حلال شوی دی۔ ته اووایه چه تاسو دَپاره (ټهول) پاکیزه څیزونه حلال شوی دی او (ورسره) دَ ښکاری ځناورو نه کوم چه تاسو دَ ښکار دَ تعلیم په ذریعه اموخته کړئ تاسو هغوئ ته دَ هغې (علم) په ذریعه ښائی چه کوم الله تاسو ته ښودلے دے نو څکه چه کوم (ښکار) هغوئ تاسو له راهنے کړی هغې نه خورئ او په هغې باندے دَ الله نوم آخلئ او دَ الله تقوٰی کوئ۔ په تحقیق سره الله ډیر زر حساب آخستونکے دے۔

اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۭ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ
حِلٌّ لَّكُمْ ۠ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۡ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ
الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ
مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ
غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ ۭ وَمَنْ يَّكْفُرْ
بِالْاِيْمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ۡ وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ
الْخٰسِرِيْنَ ⑤ ع

نن ستاسو دَپاره ټهول پاکیزه څیزونه حلال کړے شوی دی او ستاسو دَپاره دَ هغه خلقو (پخ شوے) خوراک چا ته چه کتاب ورکړے شوے وه حلال دے او ستاسو (پخ کړے) خوراک هغوئ دَپاره حلال دے۔ او پاک دامنه مومنے ښځے او کومو خلقو ته چه تاسو نه آګاهو کتاب ورکړے شوے وه هغوئ کښے پاک دامنے ښځے هرکله چه تاسو هغوئ په نکاح کړئ نه چه دَ بدکارئ دَپاره او په پټه په دوستئ ساتلو دَ هغوئ مهرچه هغوی له ورکړئ (ستا دَپاره جائز دی) او څوک سرے چه سره دَ ایمانه کفر کوی نو (پوهه شه چه) دَ هغهٔ عمل توئے شو او هغه به آخرت کښے نقصان اوچتوونکو نه وی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا
وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ
وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ ۭ وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا ۭ
وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰي سَفَرٍ اَوْ جَاۗءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ

یَه ایمان دارو! هرکله چه تاسو نمو ځ دَپاره پاسئ نو خپل مخونه (ومُم) او څنګلو پورے خپل لاسونه (ومُم) وینځئ او په خپلو سرونو مسح کوئ او ترګیټو پورے خپلے پښے (ومُم وینځئ) او کچرے تاسو غُسل کښے یئ نو

الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ مِّنْهُ ؕ مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ حَرَجٍ وَّلٰكِنْ يُّرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۞

اولاً مبتیٔ او کچرے تاسو بیماران (یئ) یا په سفر یئ (او تاسو غُسل کښے یئ) یا تاسو کښے څوک (سره ) د ضرورت ځائے نه راشی او تاسو ښځو ته نزدے شوی هُم یئ او تاسو له اوبه اونهٔ مومئ نو د پاکے خاورو قصد اوکړئ او د ے نه (لږه خاوره واخلئ) په خپلو مخونو او خپلو لاسونو اومښئ - الله تاسو له څهٔ قسم تکلیف درکول نهٔ غواړی - هن! هغه تاسو پاکول او په تاسو باندے خپل احسان پوره کول غواړی ځکه چه تاسو شکر اوکړئ -

وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ بِهٖۤ ۙ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ؗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞

اوکوم احسان چه د الله په تاسو باندے دے (هغه هُم) او هغه پوخ لوظ (هُم) چه هغهٔ تاسو نه (هغه وخت) آخستے وه هرکله چه تاسو وئیلی وُو - چه مونږ آوریدلی دی او مونږ حکم منُونکی شوی یُو یاد لرئ او د الله تقویٰ کوئ - الله د زړونو د خبرونه (هُم) ښهٔ خبردے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ ؗ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰۤى اَلَّا تَعْدِلُوْا ؕ اِعْدِلُوْا ۫ هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ؗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۞

یَه ایمان دارو! تاسو په انصاف کوا هی ورکولو سره الله د پاره اودریګئ او د هیڅ یو قام دښمنی تاسو په دے خبره رضا نهٔ کړی چه تاسو انصاف اونکړئ - تاسو انصاف کوئ هغه تقویٰ ته زیات نزدے دے او د الله تقویٰ کوئ - څه چه تاسو کوئ الله د هغے نه په تحقیق سره خبر دے -

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ۞

کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوی نیک عمل کړے دے هغوی سره الله وعده کړے ده چه د هغوئ د پاره بخښنه او (ډیر) لوئے اجر دے -

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۞

اوکوم خلقو چه کفر کړے دے او څمونږ د آیتونو انکار ئے کړے دے هغه خلق دوزخیان دی -

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ هَمَّ
قَوْمٌ اَنْ يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ
عَنْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۱۱ ع

يَه ایمان دارو! یادکړئ دَ الله نعمت په ځېلوځانونو باندے (چه هغه وخت ئے کړے وُه) هرکله چه یو قام اراده کړے وه چه تاسو باندے لاس اوچت کړی بیا هغهٔ دَ هغوی لاسونه تاسو نه منع کړل او دَ الله تقوی کوئ او مومنانو له (هم) په الله باندے توکل پکار دے۔

وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ
اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ۭ وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّىْ مَعَكُمْ ۭ لَىِٕنْ اَقَمْتُمُ
الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ
وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ
وَلَاُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ فَمَنْ
كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ۱۲

او الله فرمائی چه په تحقیق سره مونږ ﷲ دَ بنی اسرائیلو نه پوخ لوظ اخستے دے او مونږ هغوئ نه دولس[۱۲] سرداران اودرَولی وُو او (هغوئ ته مو) فرمائیلی وُو (چه) کچرے تاسو په ښهٔ شان نمونځ کوئ او زکوٰة ورکوئ او ځمونږ په رسُولانو باندے ایمان راوړئ او دَ هغوئ به هرقسم مددکوئ او هغهٔ (یعني الله) له به (دَ ځېل مال) یوه ښه برخه بېله وئ نوزهٔ په تحقیق سره تاسو سره یم۔ (او) زهٔ به خامخا تاسو نه ستاسو بدئ لرے کوم او زهٔ به په تحقیق سره تاسو باغونو کښے داخلوم چه هغو کښے دننه به نهرونه بهیګی۔ ولے تاسو کښے چه څوک (سره) دے نه پس هُم انکار نه کار واخلی نو (هغه دِ پوه شی چه) هغهٔ نیغه لار خطاکړے وه۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ
قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَنَسُوْا حَظًّا
مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰي خَاۗىِٕنَةٍ مِّنْهُمْ
اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ
الْمُحْسِنِيْنَ ۱۳

او دَ هغوی ځېل پوخ لوظ دَ ماتولو په سوب مونږه په هغوئ لعنت کړے وه او دَ هغوئ زړُونه مو سخت کړی وُو نوځکه هغوئ (دَ کتاب) ټکی دَ هغو دَ ځایُونو نه بدلئ را بدلئ او دَ کومے خبرے چه تاسو ته نصیحت شوے وُه دَ هغے یوه برخه ئے هیره کړے ده او تا ته به دَ هغوی دَ یو څو کسانو) نه سوا تل دَ هغوئ (دَ طرف) نه دَ څه (نه څه) خیانت اطلاع رازی بیالونهٔ

هغوئ معاف کړه او مخ ترې واړه وه- الله په تحقيق سره احسان کوونکو سره مينه کوی-

وَ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۪ فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَ الْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ وَ سَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿۱۵﴾

او چه کوم خلق وائی چه مونږ نصاری یو مونږ د هغوئ نه (هُم) لوظ آخستے وه- بيا هغوی (هُم) چه د کومے خبرے هغوئ ته نصيحت شوے وُه د هغے يوه برخه هيره کړه- بيا مونږ د هغوئ منځ کښے د تيا مت د ورځے پورے عداوت او سخته دُښمنی واچوله او څه چه هغوی کول الله به په هغے با ندے هغوئ زرخبر کړی-

يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَ يَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ؕ قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّ كِتٰبٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۶﴾

يه د کتاب منونکو! ځمونږ رسُول تاسو ته راغلے دے (او) څه چه تاسو کتاب کښے پټول هغه د هغے نه ډير (څه) تاسو ته بيانوی او ډير قصُورونه هُم معاف کوی (هن) ستاسو د پاره د الله د طرف نه يو نُور او يو روښانه کتاب راغلے دے-

يَّهْدِيْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَ يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِهٖ وَ يَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۷﴾

الله د دے په ذريعه هغو (خلقو) ته چه د هغهٔ د رضا (په لاره) زی د سلامتئ په لارو لوزی او په خپل حُکم هغوئ د تيرونه د نُور په طرف بوزی او نيغے لارے ته د هغوئ پام اړوی-

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَ اُمَّهٗ وَ مَنْ فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا ؕ وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۸﴾

کوم خلق چه وائی چه په تحقيق سره هُم الله مسيح ابن مريم دے- هغوی بے شکه کافر شوے دی- (ته هغوئ ته) او وايه- کچرے الله مسيح ابن مريم (له) او د هغهٔ مور (له) او (هغو) ټولو خلقوله چه په زمکه کښے دی هلاکول اوغواړی نو د هغهٔ په مقابله کښے څوک د څه خبرے نو ان لری او آسمانونه او زمکه او څهٔ چه د هغو تر منځه دی په هغو (ټولو)

باندے هُم دَ الله حکومت دے۔ هغه چه (څه) غواړی پیدا کوی او الله په هره خبره باندے پوره (پوره) قادر دے۔

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ؗ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ۱۹

او یهودیان او نصاریٰ وائي چه مونږ دَ الله ځامن یُو او په هغهٔ ګران یُو۔ ته ورته او وایه چه بیا هغه ستاسو دَ تصورونو په سوب تاسو له عذاب ولے درکوی (رادے نهٔ دا چه څه تاسو وائی) بلکه هغه (نور خلق) چه هغه پیدا کړی دی تاسو (هُم) دَ هغوئ غوندے سړی یئ۔ هغه چه چاله خوښه وی بخښی ئے او چه چاله خوښه وی عذاب ورکوی او دَ آسمانونو او زمکه او څه چه دَ دغو (دواړو) ترمنځه دی دغو (ټولو) باندے هُم دَ الله حکومت دے او دَ هغه په طرف (ټولو) له واپس تلل دی۔

يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا مِنْۢ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ ؗ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّنَذِيْرٌ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۲۰

یه دَ کتاب منونکو! تاسو له ځمونږ ه رسول راغلے دے هغه دَ رسولانو دَ انقطاع نه پس تاسو ته (ځمونږ خبرے) بیانوی دا ځکه چه تاسو (دا) اونهٔ وائي چه مونږ له نهٔ څوک زیری ورکوونکے راغلے دے او نهٔ یرونکے۔ بیانو تاسو له یو زیرے ورکوونکے او یرونکے راغلے دے او الله په هره یوه خبره پوره (پوره) قادر دے۔

ع ۳

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖ وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۲۱

او (تاسو هغه وخت یاد کړئ) هر کله چه موسیٰ خپل قام ته وئیلی وُو چه یه ځما قامه! تاسو دَ الله (هغه احسان یاد کړئ) کوم چه هغهٔ (هغه وخت) په تاسو باندے کړے وُو هر کله چه هغهٔ تاسو کښے نبیان مقرر کړی وُو او تاسو ئے بادشاهان جوړ کړی وُئ او تاسو له هغه څه درکړی وُو چه (دُنیا کښے) معلوم قامونو کښے چاله نهٔ وُو ورکړی۔

يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰۤى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿٢١﴾

يَه ځما قامه! (يعني دَموسیٰؑ قام) تاسو دے پاکه کړے شوے زمکه کښے داخل شئ چه الله تاسو له ليکلے ده او په شا مه ګرزئ ګنی نو تاسو به نقصان اوکړئ۔

قَالُوْا يٰمُوْسٰۤى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ۖ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ ﴿٢٢﴾

هغوئ په (ځواب کښے) اووئيل چه يَه موسیٰ! دے (ملک) کښے په تحقيق سره لو سرکش قام (اوسی) او چه ترڅو پورے هغه (خلق) دے نه اونۀ زی مونږ ه به دے کښے هيڅکله داخل نۀ شو۔ هن کچرے هغوئ نۀ اوزی نو مونږ به خامخا داخل شو۔

قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ غٰلِبُوْنَ ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْۤا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٢٣﴾

(بيا) چه کوم خلق (الله نه) ويريدل هغو کښے دوؤ سړو په چا باندے چه الله احسان کړے وُه (هغوئ نه) اووئيل چه تاسو په هغوئ باندے (حمله اوکړئ) او دَهغوئ خلاف چپاؤ سره په دغه دروازه کښے داخل شئ نو يقينی ده چه تاسو به غالب شئ او که چرے تاسو مومنان يئ نو هُم الله باندے (توکل اوکړئ) بيا (مونږه واليُو چه په هغهٔ باندے) توکل اوکړئ۔

قَالُوْا يٰمُوْسٰۤى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَاۤ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَاۤ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿٢٤﴾

هغوئ اووئيل (چه) يَه موسیٰؑ! ترڅو پورے چه هغه (خلق) دے کښے دی مونږ ه به کله هُم دے زمکه کښے نۀ داخليګو۔ دے دَپاره تۀ او ستا رب (دواړه) ورشئ او هغوئ سره جنګ اوکړئ مونږ ه خو په هرحال دے ځائے کښے ناست يو۔

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ لَاۤ اَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِيْ وَاَخِيْ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٢٥﴾

موسیٰؑ اووئيل چه يَه ځمارب! زۀ دَخپل ځان نه سوا او دَخپل روُر نه سوا په بل چا هيڅکله وس نۀ لرم۔ دے دَپاره تۀ ځمونږ ترمنځه او دَباغی خلقو ترمنځه امتياز اوکړه۔

قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۚ يَتِيْهُوْنَ فِي الْاَرْضِ ۗ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٢٦﴾

الله اوفرمائيل كه چرے ستا هغوئ دا زمكه پرې غوا پرې نو هغوئ دے ملك نه څلوېښت كالو پورے محرومه كوے شي او مزكه كښے به سرواني ريروالي) گرزي تهٔ په باغي خلقو افسوس مهٔ كوه۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ ابْنَيْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ؕ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿٢٧﴾

او تهٔ (يعني محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم) هغوئ ته دَ آدم دَ دوا پروڼا منو قصه په صحي پول واوروه (يعني دَ هغے وخت واقعه) هركله چه هغوئ دوا پرو يوه قرباني وړاندے كړه نو هغوئ كښے دَ يو قرباني خو قبوله كړے شوه او دَ بل قبوله نهٔ كړے شوه چه په هغے هغهٔ (خپل رورته) اووئيل چه زهٔ به خامخا تا قتلوم هغهٔ اووئيل الله لبس دَ متقيانو قرباني قبلوي۔

لَئِنْۢ بَسَطْتَّ اِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِيْ مَآ اَنَا بِبَاسِطٍ يَّدِيَ اِلَيْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٨﴾

كه چرے تا څما دَ قتلولو دَ پاره څما په طرف خپل لاس را تير كړو (رهُم) نو زهٔ به ستا دَ قتلو دَ پاره خپل لاس ستا طرف ته هيڅكله نهٔ دراوږدوم زه دَ الله نه چه دَ ټولو جهانونو رب دے په تحقيق سره ويريږم۔

اِنِّيْٓ اُرِيْدُ اَنْ تَبُوْٓاَ بِاِثْمِيْ وَاِثْمِكَ فَتَكُوْنَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٩﴾

په تحقيق سره زهٔ غوارم چه ته څما گناه (رهُم) اوخپله گناه (رهُم) ټول عمر دَ پاره (په سر) واخلے چه نتيجه ئے داشي چه ته دوزخيانو نه شے او دا دَ ظالمانو بدله ده۔

فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ قَتْلَ اَخِيْهِ فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٣٠﴾

بيا دَ هغه (رور) زړهٔ رد چا قرباني چه قبوله شوے نهٔ وه) دَ خپل رور په قتلولو رضا شو او هغهٔ هغه قتل كړو چه په هغے باندے هغه نقصان او چتوونكو كښے (شامل) شو۔

فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْاَرْضِ لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِيْ سَوْءَةَ اَخِيْهِ ؕ قَالَ يٰوَيْلَتٰٓى اَعَجَزْتُ اَنْ اَكُوْنَ

بيا الله يو كارغهٔ چه زمكه ئے كنستله دے دَ پاره را واستولو چه هغه ته اوښائي چه دَ خپل رور لاش به څنگه پټوي۔ هغهٔ اووئيل يَه څما مرگه رزررا شه) آيا ما

مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ أَخِيْ ۚ فَأَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ ﴿٣١﴾

معانقة ٥ عند المتأخرين

نه (د دومره هُم) اونهٔ شول چه زهٔ دَ دے کارغهٔ په رنګ شم او دَ خپل رور لاش پټ کړم- بیا هغه پښیمانه شو-

مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ أَنَّهُ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ۗ وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَآ أَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ۗ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ إِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿٣٢﴾

الربع

له دے له کبله مونږ ه په بنی اسرا ئیلو فرض کړے وو چه (هغوئ دِ خیال لری چه) هغوئ چا سړی له بےدَ دے چه هغهٔ قتل کړے وی یا ملک کښے ئے فساد خور کړے وی قتل کړی نو او کنړه چه هغه ټول خلق قتل کړل اوچه څوک ئے ژوندئ کړی نو پوهـ شه چه هغهٔ ټول خلق ژوندی کړل- او په تحقیق سره څمونږه رسُولا نو هغوئ له ښکاره نښانات را وړی وُو بیا هُم هغوئ کښے ګنړ (خلق) په ملک کښے زیاتیٔ کیادے کوی-

إِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُّقَتَّلُوْٓا أَوْ يُصَلَّبُوْٓا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيْهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ۚ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٣٣﴾

کوم خلق چه الله او دَ هغهٔ رسُول سره جنګ کوی او دَ فساد په غرض په ملک کښے (دَجنګ او رنازه کولو دَ پاره) منډے (ترړے) وهی- دَ هغوئ مناسب سزا هُم دا ده چه هغوئ کښے هر یو قتل کړے شی یا په صلیب اوېزانده مړ کړے شی یا دَ هغوئ لاسُونه او دَ هغوی پښے دَ مخالفت په وجه پرېکړے شی یا هغوئ دَ ملک نه اوویستے شی- (که چرے) دا (سزا ورکیدے نو) هغوئ دَ پاره دُنیا کښے دَ رسوائی (رسوب) په وے او آخرت کښے هُم دَ هغوئ دَ پاره (ډیر) لوئے عذاب دے-

إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٤﴾

ع

ولے هغه خلق چه آګاهو دَ دے نه چه تاسوئے رالاندے کړئ توبه او باسی نو پوهـ شئ چه په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے (دَ دے له کبله هغهٔ توبه کوُونکو لره دَ سزا نه بچ کړی دی)

يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْٓا إِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ

په ایمان دارو! دَ الله تقویٰ اوکړئ او دَ هغهٔ سره دَ

وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ٣٥

قُرب رحاصلولو لارے) لټوئ او دَ هغهٔ په لار کښې کوشش کوئ چه تا سو کامیاب شئ -

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ٣٦

کوم خلق چه کافران دی - که چرے هغه څه چه په زمکه کښې دی هغه ټول او هغه هومره هغې سره رنور مال هُم) هغوئ سره وے - دے دَ پاره چه هغهٔ ئے دَ قیامت دَ ورځې په بدل کښې ورکړے وے نو ربیا به) هُم هغه دَ هغوئ دَ طرف نه نهٔ قبلیدے او دَ هغوئ دَ پاره دردناک عذاب دے -

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنْهَا ۡ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ٣٧

هغوئ به دَ اور نه وتل غواړی ولے هیڅکله به دَ هغې نه او نهٔ شی وتلے او دَ هغوئ دَ پاره قائم پاتے کیدُونکے عذاب دے -

وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا اَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ٣٨

او چه کوم سړے غل وی او چه کومه ښځه غله وی دَ هغوئ دواړه لاسُونه دَ دے رجُرم) په بدل کښې چه هغوئ کړے دے پریکړئ - ردا) دَ الله دَ طرف نه دَ سزا په طور رده) او الله غالب راو) دَ حکمتونو خاوند دے -

فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ٣٩

او څوک سړے چه دَ خپل ظلم نه پس توبه اوکړی او اصلاح رهُم) اوکړی نو الله به په هغهٔ باندے په تحقیق سره فضل کوی - په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے راو) بیا بیا رحم کوُونکے دے -

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ٤٠

آیا تا ته معلومه نهٔ ده چه الله هغه رذات) دے چه دَ آسمانُونو او زمکے حکومت هُم دَ هغهٔ دے - هغه چه چا له رعذاب ورکول) خوښوی عذاب ورکوی او چه چا له رمعاف کول) غواړی رئو) وے بخښی او الله هره یوه خبره چه هغه کول اوغواړی دَ هغې په کولو پُوره رپوره) قادر دے -

يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي
الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْۤا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ
قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ
سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ لَمْ يَاْتُوْكَ ؕ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ
مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ
وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ؕ وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ
فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ
اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖۚ وَّ
لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٤١﴾

اے رسوله چه کوم خلق په خپلو خُلو وائی چه مونږه ایمان راوړے دے او دَ هغوئ زړونو ایمان نهٔ دے راوړے هغوئ کښے چه کوم خلق (دَ) کفر (خبرو قبلولو) کښے تلوارکوی هغوئ دِ تا غمجن نهٔ کړی او په یهودیانو کښے (داسے خلق دی چه) دروغے خبرے ښے آوری - (هغوئ دا خبرے) یو بل جماعت (ته اورولو) دَپاره چه تاله نهٔ دے راغلے ډیرے آوری هغوئ (دَخدائے) خبرے دَ هغو دَ (خپلو) ځائونو نه بدلئ - هغوئ وائی چه که چرے تا سوته دا (شان ځکم) اوشی نو قبول ئے کړئ او که چرے تا سوته دا شان (ځکم) او نهٔ شی نو (هغے نه) ځان ساتئ (او مهٔ ئے قبلوئ) او الله چه دَچا دَ آزمینبت اراده اوکړی نو هغے دَپاره دَ الله په مقابله کښے به هیڅ اونکړے شی - دا خلق (هُم داسے) دی چه الله دَ هغوئ دَ زړونو دَ صفا کولو اراده (هم و) نهٔ ده کړے ځکه چه دَ هغوئ دَپاره (دَ هغوئ دَعملونو په وجه) دے دُنیا کښے (هُم) رسوائی ده او آخرت کښے (هُم) دَ هغوئ دَپاره (ډیر) لوئے عذاب دے -

سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ فَاِنْ جَآءُوْكَ
فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ وَاِنْ تُعْرِضْ
عَنْهُمْ فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْـًٔا ؕ وَاِنْ حَكَمْتَ
فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ
الْمُقْسِطِيْنَ ﴿٤٢﴾

هغه (خلق) دروغے خبرے ښے آوری (او) حرام ډیر خوری - بیا نو که چرے هغوئ تاله (څه جهګړه) راوړی نو که چرے نهٔ دَ هغوئ ترمنځه فیصله کوے یا هغوی نه ډډه کوے (په دوا ړو حالتونو کښے) هغوی تا ته څه نقصان نهٔ شی رَسولے او که چرے نهٔ فیصله کوے نو (ځمونږه نصیحت یاد لره چه په هرحال) دَ هغوئ ترمنځهٔ په انصاف فیصله کوه - په تحقیق سره الله

انصاف کوونکو سره مینه کوی۔

وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ
اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ وَمَآ اُولٰٓئِكَ
بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٤٣﴾ ع

او هغوی تا څنګه فیصله کوونکے جوړولے شی هر کله چه د هغوئ په نزد هغوئ سره تورات نیله سره د الله د حکمونو شته دے بیا سره د دے هغوی مخ اړوی او هغوی هیڅکله مومنان نهٔ دی۔

اِنَّآ اَنْزَلْنَا التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ ۚ يَحْكُمُ
بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ
وَالْاَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوْا
عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَ
لَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۚ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ
اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٤٤﴾

په تحقیق سره مونږ ه تورات هدایت او نور نه ډک را استولے وه۔ د دے په ذریعه نبیان چه (حکمونه) حکم منونکی وو۔ او عارفان او عالمان په سوب د دے چه هغوئ ته د الله د کتاب حفاظت غوښتے شوے وه او هغوئ دے باندے نګران وو د یهودیانو د پاره به ئے فیصلے کولے۔ بیا تهٔ د خلقونه مهٔ ویریږه او ما نه ویریږه او ته څما د آیتونو په بدل کښے لږ قیمت مهٔ اخله او چه څوک د دے (کلام) سره سم چه الله را استولے دے فیصله اونکړی نو هغوی (صحی) کافران دی۔

وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ
بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَالْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ
بِالسِّنِّ ۙ وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ
كَفَّارَةٌ لَّهٗ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ
هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٥﴾

او مونږ ه دے (تورات) کښے په هغوئ باندے فرض کړی وُو چه د ځان په بدل کښے ځان، د سترګے په بدل کښے سترګه او د پوزے په بدل کښے پوزه او د غوږ په بدل کښے غوږ او د غاښ په بدل غاښ او ور سره (د زخمونو په بدل کښے) زخم یو برابر بدلے دی۔ ولے څوک سړے چه (خپل) دا (حق) پریږدی نو (د هغهٔ دا فعل به) د هغه د پاره د ګناه د معافئ ذریعه شی او چه څوک د دے (کلام) سره سم فیصله او نهٔ کړی کوم چه الله را استولے دے نو ئم هغوئ (صحی) ظالمان دی۔

وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ۪ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى وَّنُوْرٌ ۙ وَّمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ٤٦

مونږه عیسیٰ ابن مریم له هرکله چه هغه دَ دے (کلام) یعنی تورات پوره کوونکے وه هغو (پورته ذکر شوو نبیانو) پسے واستولو او مونږه هغهٔ له انجیل ورکړے وه چه په هغے کښے هدایت او نُور وه او هغه هغے (کلام) لره چه دے نه آګا هو (راغلے) وه پوره کوونکے وه او هغه دَ متقیانو دَ پاره هدایت او نصیحت وه۔

وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ؕ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ٤٧

او دَ انجیل منُونکوله پکار دی چه الله څه دے کښے راستولی دی دَ دے سره سم فیصله اوکړی او چه څوک دَ دے (کلام) سره سم فیصله اونهٔ کړی چه الله راستولے دے نو هغوئ (سخت) باغیان دی۔

وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ٤٨

او مونږه په تا باندے دا کتاب حقو سره نازل کړے دے۔ هغه دَ دے نه ړومبی کتاب له پوره کوونکے دے او په هغے باندے محافظ دے. بیا نو ته دَ هغے (کتاب) سره سم چه الله (په تا باندے) نازل کړے دے دَ هغو ترمنځه فیصله کوه او کوم حق چه تا له راغلے دے دَ هغے په ځائے دَ هغوئ غوښتنو پسے مهٔ زه۔ مونږ تاسو کښے هر یو دَ پاره دَ خپل خپل استعداد (سره سمه الهامی) الُوته دَ رسیدلو دَ پاره یوه وړه یا لویه لاره جوړه کړے ده۔ او که چرے الله غوښتے نو تاسو (ټول) به ئے هُم یو جماعت جوړ کړے وے (ولے دَ دے کلام پخپله) ستاسو دَ امتحان اخستو دَ پاره چه هغه په تاسو نازل کړے دے (راسے ئے اونکړهٔ) بیا نو تاسو ښو کارونو کښے دَ یو بل نه دَ وړاندے کیدو دَ پاره مقابله اوکړئ. ولے چه هُم دَ الله په طرف تاسو ټول به واپس ورزئ هرکله به چه هغه تاسو

دَ هغو تهولو خبرو نجقله چه پکښې تاسو اختلاف لرلو دَ حقیقت نه خبردارہ کړي۔

وَ اَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ۗ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوْنَ ۝

او اے رسوله! ته دَ هغوئ ترمنځه دَ دے کلام په ذریعه فیصله کوه چه الله (په تا باندے) نازل کړے دے۔ او ته دَ هغوئ خواهشاتو پسے مه زه او هغوی نه ځان ساته هسے نه چه هغوی تا په فتنه کښے واچوی (او) دَ الله دَ نازل کړی کلام نه دِ لرے نهٔ کړی۔ بیا که هغوئ روستوشی نو پوهه شه چه الله غواړی چه هغوئ له دَ هغوئ دَ بعضے ګناهونو له کبله سزا ورکړی او په خلقو کښے ګنړ شمیره خلق لوظ ماتوی۔

اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ۗ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝٥١ ع

آیا هغوئ دَ خدائے دَ کلام دَ نازلیدو نه روستو دَ جاهلیت فیصله خوښوی ولے دَ مومنانو په نزد خو الله نه زیات ښه فیصله کوونکے هیڅوک نشته۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰٓى اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۗ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝٥٢

یه دَ ایمان خاوندانو! یهودیانو او نصاری له خپل مددګار مه جوړوائی (ولے چه) هغوئ کښے بعضے دَ بعضو مددګاردی او په تاسو کښے به چه څوک هغوئ له مددګار جوړوی په تحقیق سره هغوئ به هم دَ هغوی نه وی۔ الله ظالمانو ته هیڅکله (دَ کامیابئ) لاره نهٔ ښائی۔

فَتَرَى الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يُّسَارِعُوْنَ فِيْهِمْ يَقُوْلُوْنَ نَخْشٰٓى اَنْ تُصِيْبَنَا دَآئِرَةٌ ۗ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِىَ بِالْفَتْحِ اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ فَيُصْبِحُوْا عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِىٓ اَنْفُسِهِمْ نٰدِمِيْنَ ۝٥٣

او ته به هغهٔ خلقو ته چه زړونو کښے ئے بیماری ده او وینے چه هغوئ دے وینا سره (دَ کافرانو) په طرف په منډو (منډو) زی (او وائی) چه مونږه (دے خبرے نه) ویریږو چه په مونږ څه مصیبت رانهٔ شی۔ بیا نزدے ده چه الله (رسنا سنو) دَ فتح (رسامان) یا دَ خپل طرف نه څه (بله) خبره را پیدا کړی چه هغے سره به

هغوئ په دے خبرہ باندے کومه چه هغوی خپلو زړونو کښے پټه کړے د ه شرمنده شی۔

وَ يَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيۡنَ اَقۡسَمُوۡا بِاللّٰهِ جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ ۙ اِنَّهُمۡ لَمَعَكُمۡ ؕ حَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ فَاَصۡبَحُوۡا خٰسِرِيۡنَ ﴿۵۳﴾

اوکوم خلق چه مومنان دی وائی به چه آیا دا هُم هغه خلق دی چا چه پاخهٔ قسمونه اُوچت کړی وُو چه مونږه بیخی تا سو سرہ یُو۔ دَ هغوئ عملونه بے ځایه لاړل بیا نو هغوئ نقصان اوچتونکی شول۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَنۡ يَّرۡتَدَّ مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ فَسَوۡفَ يَاۡتِى اللّٰهُ بِقَوۡمٍ يُّحِبُّهُمۡ وَيُحِبُّوۡنَهٗۤ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ يُجَاهِدُوۡنَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوۡنَ لَوۡمَةَ لَاۤٮِٕمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضۡلُ اللّٰهِ يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۵۴﴾

یَه ایمان دارو! تا سو کښے چه څوک خپل دین نه واوړی نو الله به رَد هغهٔ په ځائے) ډیر زر یو داسے قام راولی چه هغوئ سرہ به هغه مینه کوی او هغوئ به هغهٔ سرہ مینه کوی۔ چه په مومنانو به شفقت کوونکی وی او دَ کافرانو په مقابله کښے سخت هغوئ به دَ الله په لاره کښے جهاد کوی او دَ چا ملامت کوونکی دَملامتے نه به نهٔ ویریګی۔ دا دَ الله فضل دے۔ هغه چه چاله خوښ کړی (دا فضل هغهٔ ته) ورکوی او الله وسعت ورکوونکے او ډیر علم لرونکے دے

اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوۡلُهٗ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوا الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ وَهُمۡ رٰكِعُوۡنَ ﴿۵۵﴾

ستاسو مددګار بس الله او دَ هغهٔ رسُول او هغه مومنان دی چه نمونځ کوی او زکوٰة ورکوی او (دوره) هغوی په کلکه دَ لوئ خدائے منونکی دی۔

وَمَنۡ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا فَاِنَّ حِزۡبَ اللّٰهِ هُمُ الۡغٰلِبُوۡنَ ﴿۵۶﴾

اوکوم خلق چه الله او دَ هغهٔ رسُول او مومنانو له خپل مددګار جوړوی (هغوئ ته دِ معلومه وی چه) په تحقیق سرہ هُم دَ الله جماعت غالب (راتلونکے) دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا دِيۡنَكُمۡ هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَالۡكُفَّارَ اَوۡلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴿۵۷﴾

یَه ایمان دارو! چا له چه تاسو نه آګاهو کتاب ورکړے شوے وہ هغوئ کښے چه چا ستاسو دین دَ لوبو ټوکو (ټخیز) جوړ کړے وہ هغوئ له او دَ هغوئ

نه سوا (نور) کافران (زخپل) مددګار مهٔ جوړوئ
او که چرې تاسو مومنان يئ نو الله نه ويرېږئ۔

وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّ لَعِبًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ۵۹

او هر کله چه تاسو (خلق) نمونځ دَپاره راغواړئ نو
هغوئ هغې نه لوبه ټوکه جوړوی۔ داخبره هغوئ
کښې دے دَپاره ده چه هغوئ داسے خلق دی چه عقل
نه کارنهٔ آخلی۔

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّاۤ اِلَّاۤ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَاۤ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ۶۰

تهٔ (هغوئ ته) اووايه چه يَه دَکتاب منونکو! تاسو
په مونږ دَ دے نه سوا بل عيب نهٔ لګوئ چه
مونږ په الله او چه څه (کلام) په مونږ نازل شوے
دے (هغې باندے هُم) او چه څه (کلام دے نه) آګاهو
نازل شوے وه هغې باندے (هُم) ايمان راوړے دے
او (ورسره) دے دَپاره (نقصُونه لټوئ) چه تاسو کښې
ګنړځنے (دَ الله) باغيان دی۔

قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ ؕ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّ اَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ۶۱

تهٔ (هغوئ ته) اووايه چه آيا زهٔ تاسو ته دَهغو خلقو
حال اووائم چه دَچا بدله دَ الله په نزد دَ هغه (چا)
نه هُم (چه تاسو ئے نهٔ خوښوئ) بده ده۔ هغوی
(هغه) خلق دی په چاچه الله لعنت کړے دے او
چه په چا باندے هغه (زخپل) غضب نازل کړے دے
او چه هغوئ کښې (بعضوله) هغهٔ بيزوګان او سوران
جوړ کړی دی او چا چه دَ شيطان پرستش کړے دے
دَ هغو خلقو دَ استو ګنے ځائے خراب دے او هغوئ
دَ سمے لارے نه ډير لرے وتلی دی۔

وَاِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْۤا اٰمَنَّا وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ ۶۲

او هر کله چه هغوئ تاسو له راځی نو وائی چه مونږ
ايمان راوړے دے کنی حال دا چه هغوئ دَ کُفر
سره داخل شوی وُو او (بيا) هغوی دے (عقيدے

سره وتلی وُو او څه چه هغوئ پټوی هغه الله ته (دَ ټولونه) زيات معلوم دی۔

وترى كثيرا منهم يسارعون في الاثم والعدوان و
اكلهم السحت لبئس ما كانوا يعملون ﴿٦٢﴾

او ته به هغوی کښے ډیر څنے وینے چه هغوی دَ ګناه او دَ خپلو حرام خوړو په طرف ځغلی۔ څه چه هغوئ کوی په تحقیق سره هغه ډیر بد دی۔

لولا ينهاهم الربانيون والاحبار عن قولهم الاثم
واكلهم السحت لبئس ما كانوا يصنعون ﴿٦٣﴾

عارفان او عالمان هغوئ لره دَ هغوئ دَ دروغو وئیلو او دَ هغوئ دَ حرام خوړلو نه ولے نهٔ منع کوی؟ څه چه هغوی کوی په تحقیق سره هغه ډیر بد دی۔

وقالت اليهود يد الله مغلولة غلت ايديهم
ولعنوا بما قالوا بل يداه مبسوطتان ينفق كيف (ربع)
يشاء وليزيدن كثيرا منهم ما انزل اليك من
ربك طغيانا وكفرا والقينا بينهم العداوة
والبغضاء الى يوم القيامة كلما اوقدوا نارا
للحرب اطفاها الله ويسعون في الارض فسادا
والله لا يحب المفسدين ﴿٦٤﴾

او یهودیان وائی چه دَ الله لاسو لو ته زنجير پروت دے۔ څه چه هغوئ وئیلی دی دَ هغے په سوب به (خپله) دَ هغوئ لاسُونو کښے زنجیرونه اچولے شی او په هغوئ به لعنت کیګی (هغوئ دروغ وائی) حقیقت دا دے چه دَ هغهٔ لاسُونه پرانستے دی هغه چه څنګه غواړی خرڅ کوی او څهٔ چه ستا دَ رب نه په تا نازل شوی دی په تحقیق سره هغه به هغوئ کښے ډیرو له په سرکشئ او کُفر (نوُرهم) زيات کړی او مونږه تر قیامته پورے دَ هغوئ ترمنځه عداوات او بُغض پیدا کړے دے۔ هرکله چه هغوئ دَ جنګ دَ پاره څهٔ قسم اور لګولے دے نو الله هغه مړ کړے دے او هغوی ملک کښے فساد دَ پاره منډے تر ړے وهی او الله مفسدان نهٔ خوښوئ۔

ولو ان اهل الكتاب امنوا واتقوا لكفرنا عنهم
سيئاتهم ولادخلناهم جنات النعيم ﴿٦٥﴾

او که چرے دَ کتاب منُونکو ایمان راوړے وے او تقویٰ ئے کړے وے نو مونږ به خامخا دَ هغوئ بدی دَ هغوئ نه لرے کړے وے او هغوئ به مونږ خامخا دَ نعمتونو (نه ډک) باغونو کښے داخل کړے وے۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ
اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ
اَرْجُلِهِمْ ۭ مِنْهُمْ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ۭ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَاۗءَ
مَا يَعْمَلُوْنَ ع ٦٧

ع ۹ ۱۳

اوکه چرې هغوئ تورات او انجيل اوځه چه دَ هغوئ دَرب دَطرف نه راوس، په هغوئ نازل شوی دی ښکاره کولې نو هغوئ به ځامخا دَسردَ پاسه هُم خوړلے اودَ خپلو لپښو لاندے به ئے هُم رخوړلے) رېشکه) هغوئ کښې يو جماعت ميانه رو دے ولے ډيرځنے په هغوئ کښې داسے دی چه څه هغوئ کوی هغه ډير بد دی۔

يٰاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۭ وَاِنْ لَّمْ
تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ ۭ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ۭ
اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ٦٨

اے رسوله! ستا دَرب دَطرف نه چه کوم کلام په تا نازل شوے دے هغه خلقوته رسوه اوکه چرے تا ردا سے) اونکړه نو رکله چه) تا دَ هغه پيغام ردَسره) اونهٔ رَسولو او الله رتعالیٰ) به تا دَ خلقو ردَحملو) نه بچ ساتی۔ الله به کافرانوته هيڅکله ردَکاميابیٔ) لارنهٔ ښائی۔

قُلْ يٰاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰي شَيْءٍ حَتّٰي تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ
وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۭ وَلَيَزِيْدَنَّ
كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ
فَلَا تَاْسَ عَلَي الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ٦٩

تهٔ اووايه رچه) يَه دَکتاب منوُنکو! ترڅو پورے چه تاسو تورات او انجيل اوځهٔ چه په تا باندے ستا دَ رب نه نازل شوی دی هغه ظاهر نهٔ کړئ رتر هغے پورے) تاسو په څه رښه) خبره باندے رقائم) نهٔ يئ اوځه چه په تا باندے ستا دَرب نه نازل شوی دی هغه به هغوئ کښې ډيرځنو په سرکشئ اوکُفر کښې خامخا وړاندے کړی۔ بيانو تهٔ په دے کافرقام افسوس مهٔ کوه۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـُٔوْنَ وَالنَّصٰرٰى
مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ
عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ٧٠

څوک چه ايمان دار دی اوڅوک چه يهوديان دی او رورسره) صابيان اونصاریٰ رهغوی کښې چا رهم) په الله باندے اوروستو راتلونکے ورځے باندے په حقيقت کښې ايمان راوړے دے اوورسره هغوی نيک عمل کړے دے رنو) نه به هغوی ته ردَ راتلوُنکی وخت کښې)

څه ويره وى او نهٔ به هغوى (په نيروخت) غمژن وى ـ

لَقَدْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًا ۭ كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُهُمْ ۙ فَرِيْقًا كَذَّبُوْا وَفَرِيْقًا يَّقْتُلُوْنَ ﴿٧٠﴾

په تحقيق سره مونږ د بنى اسرائيل نه پوخ لوظ اخستے وه او هغوئ ته مو ډير رسولان آستولى وُو ـ کله به چه هغوئ له څوک رسول دے (تعليم) سره راغے چه هغه د هغوى زړونو نهٔ خوښولو نو د بعضو هغوئ انکار اوکړو او بعضے به هغوى قتلول غوښتل ـ

وَحَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا وَصَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَصَمُّوْا كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ ۭ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٧١﴾

او هغوئ (دا) اوګڼل (چه د دے سره) به څه فتنه نهٔ وى ـ ځکه هغوئ ړانده او کاڼهٔ شول بيا الله په هغوئ رحم اوکړو ولے هغوى کښے بيا ډيرځنے ړانده او کاڼهٔ شول او څه چه هغوى کوى الله هغه وينى ـ

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ۭ وَقَالَ الْمَسِيْحُ يٰبَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ۭ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰىهُ النَّارُ ۭ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٧٢﴾

او کوم خلقو چه دا وئيلى دى چه په تحقيق سره هم الله مسيح ابن مريم دے هغوى خامخا کافر شوى دى او مسيح (خو) وئيلى وُو چه يه بنى اسرائيلو! تاسو د الله عبادت کوئ چه څما (هم) رب (دے) او ستا (هم) رب دے ـ خبره دا ده چه څوک الله سره شريک جوړ کړى نو (پوهه شه چه) الله هغه باندے جنت حرام کړے دے او د هغهٔ ځائے دوزخ دے او د ظالمانو هيڅوک مدد کار نشته (نهٔ به وى)

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۭ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾

کوم خلقو چه دا وئيلى دى چه په تحقيق سره الله د دريو کښے يو دے هغوى يقين سره کافر شول او سوا د يو معبود بل د عبادت لائق نشته او څه چه هغوى وائى که چرے هغوئ دے نه منع نهٔ شول نو هغوى

کښې چه چا کفر کړے دے هغوئ ته به خامخا دردناک عذاب رسي ـ

اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝٧٤

بیا آیا هغوئ الله ته رجوع نهٔ کوئ او هغهٔ نه (د خپلو گناهونو) معافي (نهٔ) غواړي ـ حال دا دے چه الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے ـ

مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۭ وَاُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ۭ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ۭ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝٧٥

مسیح ابن مریم بس یو رسُول وُه ـ هغهٔ نه وړاندے ټول رسُولان وفات شوی دی او د هغهٔ مور ډیره رښتونے وه ـ هغوئ دواړو به خوراک خوړو ـ اوگوره مونږ ه څنګه د هغوئ (د فائدے) د پاره دلیلُونه بیانوُو ـ بیا گوره چه د هغوی خیال څنګه بدلولے شي ـ

قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ۭ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝٧٦

ته او وایه (چه) آیا تاسو د الله په ځائے د هغو (څیزونو) پرستش کوئ چه نهٔ تاسو له نقصان درکولے شي او نهٔ گټه او هُم الله دے چه ډیر آوریدُونکے او ډیر علم لرُونکے دے ـ

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَاۗءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَاۗءِ السَّبِيْلِ ۝٧٧ ع

ته او وایه (چه) په د کتاب منُونکو! د خپل دین په خقله په ناجائزه د حد نه زیات مبالغے نه کارمهٔ اخلئ او د هغه خلقو غوښتنو پسے مهٔ زئ چه د دے نه آگاهو (خپله هُم) بے لارے شوی دی او (نور) ډیر (هُم) هغوئ بے لارے کړی دی او د سمے لارے نه خطا شوی دی ـ

لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ عَلٰي لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۭ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝٧٨

بنی اسرائیلو کښے چه چا انکار کړے دے په هغوی باندے د داؤد او عیسیٰ ابن مریم په ژبه لعنت شوے وه او دا ځکه شوی وُو چه هغوئ نافرمانی کړے وه او حد نه تیل ـ هغوئ به یو بل د ناروا خبرے نه چه هغوئ به کولے نهٔ

كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ۭ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا

يَفْعَلُوْنَ ﴿٧٩﴾

منےکول - چه څه هغوئ کول په تحقیق سره هغه ډیربد وُو-

تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ اَنْفُسُهُمْ اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿٨٠﴾

تهٔ به هغوئ کښے ډیرځنے اووینے چه څوک کافران دی هغوئ له هغی (خپل) مددګار جوړوی - هغوی په خپله رضا چه ځان دپاره څه وړاندے استولی دی هغه ډیر بد دی چه (هغه) دا خبره ده چه الله هغوئ نه خفه شوے دے او هغوئ به عذاب کښے پراته وی -

وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٨١﴾

اوکه چرے هغوی په الله او (دے) نبی (باندے) او په هغے چه په دے (نبی) باندے نازل شوی دی ایمان لرلے نو هغی به هغوی خپل مددګار نهٔ جوړولے ولے هغوئ کښے ډیرځنے نافرمان دی -

لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٨٢﴾

دَ مومنانو په دښمنئ کښے به تهٔ په تحقیق سره یهودیانو (له) او هغو خلقو له چه مشرکان دی دَ ټولو نه سخت بیا مومے او مومنانو سره دَ مینے کولو په لړکښے به تهٔ هغوئ کښے یقین سره دَ ټولو نه نژدے هغو خلقو له بیا مومے چه دا وائی چه مونږ نصاریٰ یو دا ځکه ده چه هغوی کښے څهٔ (خلق) عالمان او عابدان دی او (بیا) له دے له کبله چه هغوئ کبر نهٔ کوی -

وَإِذَا سَمِعُوا مَآ أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰٓ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ۖ يَقُولُونَ رَبَّنَآ ءَامَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّٰهِدِينَ ﴿۸۳﴾

او هرکله چه هغوی دا (دَ خدائے کلام) اوری چه کوم په دے رُسول نازل شوے دے نو را ئے اوریدونکیه ته وینی چه څومره حق هغوی پیژندلے دے. دَ هغے په وجه دَ هغوی سترگے دَ اوښکو (له زوره) رابهیگی هغوی وائی چه اے ځمونږه ربه! مونږه ایمان راوړے دے. بیا نو ځمونږه نوم (هُم) دَ گواهانو سره اولیکه.

وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّٰلِحِينَ ﴿۸۴﴾

او (وائی چه) په مونږه څه (شوی) دی چه مونږ په الله (باندے) او په دے رښتنیاؤ چه مونږ له راغلے دی ایمان رؤنه ړو سره دَ دے چه مونږ دا غواړو چه ځمونږه رب مونږ په نیکانو خلقو کښے داخل کړی.

فَأَثَٰبَهُمُ اللَّهُ بِمَا قَالُوا جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِينَ ﴿۸۵﴾

نو بیا خدائے به دَ هغوی دَ (دے) خبرے په بدل کښے هغه جنّت ورکړی چه کوم کښے به نهرونه بهیگی (هغوی) به هغے کښے تل اوسی او هُم دا دَ نیکانو بدله دٔ.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِـَٔايَٰتِنَآ أُولَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ الْجَحِيمِ ﴿۸۶﴾ ع

او چه کوم خلقو کُفر کړے دے او ځمونږ دَ آیتونو نه ئے انکار کړے دے هغه خلق دوزخیان دی.

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿۸۷﴾

یَه ایمان دارو! څه چه الله تاسو له حلال کړی دی په هغے کښے پاک (څیزونه) حرام مهٔ کرزوئ او دَ (مقرر شوی) حدودو نه وړاندے مهٔ اوزئ. الله دَ (مقرر شوی) حدودو بهرو تونکی نهٔ خوښوی.

وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَٰلًا طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِىٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴿۸۸﴾

او چه څه تاسو له الله درکړی دی. هغے نه حلال (او) پاکیزه څیزونه خورئ. او دَ الله تقویٰ کوئ په چا باندے تاسو ایمان لرئ.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِىٓ أَيْمَٰنِكُمْ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ الْأَيْمَٰنَ ۖ فَكَفَّٰرَتُهُۥٓ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَٰكِينَ

ستاسو په قسمونو کښے په لغو (قسمونو) باندے الله تاسو له سزا نهٔ درکوئ. بلکه ستاسو په پخو قسمونو

مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ؕ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ؕ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ؕ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾

خوړو (او بيا په مانولو) باندے به تاسو له سزا ورکوی بيانو دَ دے (دَ ماتولو) کفاره لس مسکينانو ته دَ گذاره حال (درجے) خوراک ورکول دی۔ دا سے خوراک چه تاسو ئے دَ خپل کور خلقو باندے خوروئ۔ يا دَ هغوئ جامے يا دَ يو (مريي) آزادول دی۔ بيا چه چاته (دا هُم) حاصل نۀ وی نو بيا هغه باندے دَ درے ورځو روژے واجب دی۔ هرکله چه تاسو قسمونه اوخورئ (او بيا هغه مات کړئ) نو دا ستاسو دَ قسمونو کفاره ده۔ او تاسو دَ خپلو قسمونو حفاظت کوئ۔ الله خپل آيتونه تاسو له دا سے بيانئ دَ دے دَ پاره چه تاسو شکر کوونکی جوړ شئ۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۹۰﴾

يه دَ ايمان خاوندانو! شراب او جواری او بُتان او دَ پال وليستو غشی لس (ناپاک راو) شيطانی کارونه دی۔ دے دَ پاره تاسو په دے (کښے) دَ هر لونه ځان ساتئ۔ دا ځکه چه تاسو کامياب شئ۔

اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ﴿۹۱﴾

شيطان خولش دا غواړی چه ستاسو ترمينځه دَ شرابو او جوارئے په سوب دښمنی او کينه واچوی۔ او دَ الله دَ ذکر نه او دَ نمونځ نه مو منع کړی۔ آيا اوس تاسو دَ (دے خبرونه) منع کيدے شئ۔

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۹۲﴾

او تاسو دَ الله (هُم) اطاعت کوئ دَ هغه دَ رُسول (هُم) اطاعت کوئ او هوښيار اوسئ او که (دَ دے ويرولونه پس هُم) تاسو اوگرزيدے نو پوه شئ چه زمونږ دَ رسُول په ذمه خولس په دا کله دا که رَسول دی۔

لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْٓا اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

چه کوم خلقو ايمان راوړے دے او (ورسره) ئے نيک کارونه کړی دی۔ هرکله چه دوی تقویٰ اوکړی

ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۹۳﴾

او ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی بیا په تقوی رکښے نوره ترقی) اوکړی او احسان اوکړی نو ربیا) چه څهٔ رهُم) هغوئ اوکړی په هغے باندے به دَ هغوئ څه گناه نهٔ ردی) او الله احسان کوُونکو سره مینه کوی۔ ع

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗۤ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۹۴﴾

يه دَ ایمان خاوندانو! الله به دَ لو رنیمے) څیز یعنی دَ ښکار په ذریعه چه ورته به ستاسو لاسُونه او نیزے رسی۔ ستا ازمینښت کوی دا دَ دے دَ پاره چه الله هغه خلق ښکاره کړی چه څوک یوازے هغه نه ویریګی۔ بیا چه څوک رسرے) دَ دے رُحکم دَ اوریدو) نه پس رهُم) زیاتئ اوکړی نو هغه ته به دردناک عذاب رسی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًۢا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ۗ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ۗ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۹۵﴾

يه دَ ایمان خاوندانو! تاسو دَ احرام په حال کښے ښکار مهٔ وژنئ۔ اوکه تاسو کښے څوک رسرے) په قصد دا امر کړی نو چه کوم څاروے هغه قتل کړے وی هغه رنګ رڅنا وربه هغه) په بدل کښے ورکوی۔ چه دَ هغے فیصله به په تاسو کښے دوُه عادل انسانان کوی۔ اوڅه لره به کعبے ته دَ قربانئ دَ پاره رَسول ضروری دی اوکه چرے دَ هغے طاقت نهٔ وی رنو بیا) به کفاره ادا کول وی یعنی څو مسکینانو ته خوراک ورکول یا دَ دے برابر روژے سا تل۔ دا دَ دے دَ پاره چه دَ هغو رمجرمانو) خپل عمل وَلاړے مل شی۔ هن چه څه مخښکے تیر شوی دی هغه الله معاف کړی دی او چه څوک بیا ردا سے) اوکړی الله به هغهٔ له ردَ هغهٔ دَ جرم) سزا ورکوی او الله غالب راو دَ بدکار) سزا ورکوُنکے دے۔

اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَ لِلسَّيَّارَةِ ۚ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ۗ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۹۶﴾

او دَ اولو ښکار کول او دَ هغې خوراک ستاسو او دَ مسافرانو دَ فائدے دَ پاره جائز کړے شوے دے ولے ترڅو پورے چه تاسو دَ احرام په حال کښے يئ (تر هغه وخته پورے) دَ برّی (دَ زمکے) ښکار په تاسو حرام کړے شوے دے او تاسو دَ الله تقویٰ اوکړئ چه دَ چا په حضور (کښے) به تاسو يوځائے بوتلے شئ۔

جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَ الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ؕ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۹۷﴾

الله کعبه يعنی محفوظ کور (نه) دَ خلقو دَ ژوند عمری (ترقئ) ذريعه جوړه کړے ده او (ورسره) دَ حرمت مياشت او قربانئ او دَ کوموځناورو په غاړو کښے چه پټے اچولے شوی وی (هغه هُم) دا دَ دے پاره (کړی دی) چه تاسو پوهه شئ چه څه په آسمانونو کښے دی او چه څه په مزکه کښے دی الله هغه ټول پيژنی۔

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَ اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۹۸﴾

يادلرئ چه الله (تعالیٰ) په عذاب ورکولو کښے (هُم) سخت دے او الله (تعالیٰ) ډير بخښونکے (او) مهربانه (هُم) دے۔

مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَ مَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۹۹﴾

رسُول باندے بس (دَ خبرے) رسول واجب دی چه کومه (خبره عملاً) تاسو اوکړئ۔ او (هغه هُم) چه تاسو نه (تراوسه عملاً) نهٔ ده شوے الله ترے ښهٔ خبر دے۔

قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَ الطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ ع

تهٔ او وايه بيکاره (څيز) فائده مند (څيز) برابر نهٔ شی کيدے هرڅو مره که ستاسو دَ بيکاره څيز زياتئ خوښ وی بيانو اے عقلمندو اِدَ الله تقویٰ کوئ دَ پاره دَ دے چه مراد اومومئ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْئَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ وَاِنْ تَسْئَلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ

يه مومنانو! (دَ هغه) خبرو پحقله سوال مهٔ کوئ (چه) که په تاسو ښکاره کړے شی نو ستاسو دَ تکليف

تُبْدَ لَكُمْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۰۱﴾

باعث به شي اوكه تاسو دے پخقله په دے وخت كښے سوال اوكړئ چه قرآن نازليږي نو په تاسو به (هغه) ښكاره كړے شي الله (تعالىٰ) نخپله (سره دَ علمه) دَ دے دَ بيان نه اليسار دے او الله (تعالىٰ) ډير بخښونكے (او) دَ لوئے نه كار اخستونكے دے۔

قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

تاسو نه آګاهو يو قام دَ داسے خبرو پخقله سوال كړے دے روسته هركله چه ورته ځواب) وركړے شو نو هغو دَ دے (دَ منولو) نه انكار اوكړو۔

مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

نۀ خو الله (تعالىٰ) دَ بحيره (دَ جوړولو) حُكم وركړے دے نۀ دَ سائبه نه دَ وصيله ، نۀ دَ حام ولے چه كوم خلق كافر دی هغوی په الله باندے (په دروغه) خبرے تړی او په هغوی كښے كثر بے عقله دی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

او هركله چه هغوی ته او وئيلے شي چه دَ خدائے (تعالىٰ) نازل كړی كلام او دَ هغهٔ دَ رسُول په طرف راشئ نو وائي چه مونږ په كومه (خبره) خپل پلارنيكه ليدلی وُو هغه زمونږ دَ پاره كافی ده آيا كه څه هم (داسے خبره وی) چه دَ هغوی پلارنيكونه ناپوهه وی او صحی لاره نۀ پيژنی رنو بيا به هُم هغوی په خپل ضد ټينګ وی)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

يَه مومنانو ! تاسو دَ خپلو ځانونو (دَ حفاظت) فكر كوئ هركله چه تاسو هدايت اُوموندو نو ربيا به) دَ چا ګمراهي تاسو ته نقصان نۀ رسوی۔ تاسو ټولو له الله ته واپس تلل دی۔ بيا نو چه څه تاسو كوئ هغه به تاسو دَ هغے نه خبروی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنٰنِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ اَوْ

يَه مومنانو ! هركله چه په تاسو كښے دَ چا وخت (دَ مرګ) راشي نو دَ وصيت په وخت كښے ستاسو (دَ)

اٰخَرٰنِ مِنْ غَیْرِکُمْ اِنْ اَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِی الْاَرْضِ فَاَصَابَتْکُمْ مُّصِیْبَةُ الْمَوْتِ تَحْبِسُوْنَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ فَیُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ اِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِیْ بِهٖ ثَمَنًا وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللّٰهِ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِیْنَ ۝۱۰۶

گواهي داسے (طریقه) پکار ده چه په تاسو کښے دوه عدل گوونکي گواهان (مقرر) شي - یا دوه گواهان رچه د ستاسو مسلمانانو نه نه وي بلکه) د غیر خلقو نه وي - (دا طریقه به هله کیګي) چه کله په تاسو د مرګ مصیبت نازل شي (او تاسو خپل گواهان اونه مومئ) دغه حال کښے) ستاسو د مومنانو تهولئي دے هغه دواړه گواهان د نمونځ نه پس ایسار کړي او هغه دواړه دے ربه دے حال کښے چه) تاسو نه (د هغوئ د گواهئ په حقله) شک وي د الله تعالیٰ په قسم دے او وائي چه مونږه دے (شهادت) نه خپله هیڅ فائده نه غروسره د دے رچه د چا حق کښے مونږ گواهي ورکوو) هغه د ځمونږه خپل وے هُم نه وي او مونږه به د الله (مقرر کړے) گواهي (یعني د ربینښیا ولیولو فرض) نه پټهو و - که مونږ دا سے اوکړو لو ربه دغه صورت کښے) به مونږ گناه گار یُو۔

فَاِنْ عُثِرَ عَلٰٓى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ اِثْمًا فَاٰخَرٰنِ یَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِیْنَ اسْتَحَقَّ عَلَیْهِمُ الْاَوْلَیٰنِ فَیُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَیْنَآ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِیْنَ ۝۱۰۷

بیا که چرے (روستو) دا ښکاره شوه چه هغو دواړو په (خپله ذمه) گناه واجب کړے ده - نو دوه نور کسان (د دغو وارثانو یعني د مړي د خپلوانو نه دے) چه د چا خلاف پروړمبو دوؤ حق قائم کړے وه (د گواهئ د پاره د) او دریګي او هغوی د د الله قسم خوړلو نه پس او وائي چه ځمونږ گواهي (د دغو) وړاندینو گواهانو د گواهئ نه زیاته ربښتنے ده او مونږ ربه خپله گواهئ کښے) څه زیاتئ نه دے کړے که مونږ داسے کړي وي نو مونږ د په ظالمانو کښے باید چه شمیر شو۔

ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ یَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ یَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ اَیْمَانٌۢ بَعْدَ اَیْمَانِهِمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا

دا طریقه به هغوی (یعني وړاندینی گواهان) دے خبرے ته ډیر نزدے کړي چه هغوی گواهئ سم په نیغه

وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۱۰۹﴾

ع ۱۴

(دَ واقعے) په شان ورکړي۔ یا (دَ دے خبرے نه) اوویرېږي چه دَ قسمونو نه پس (رښته) نور قسمونه دَ دوی دَ قسمونو ردکولو دَ پاره به وړاندے کېږي۔ او دَ الله تقوىٰ اوکړئ او دَ هغه دَ (حکمونو) په ښه شان اطاعت کوئ او (یاد لرئ) الله سرکشانو ته هدایت نهٔ ورکوي۔

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿۱۱۰﴾

او (هغه ورځ یادلرئ) چه په کومه ورځ به الله تعالیٰ رسولان راغونډه کړي او اوبه وائی تاسو ته څه ځواب درکړے شوے وو هغوی به اووائی مونږ ته حقیقي علم نشته۔ دَ غیب دَ خبرو (اصل) علم (یوازے) تا ته دے۔

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۱۱﴾

ربع الحزب

هغه وخت الله تعالیٰ عیسیٰ ابن مریم ته به هُم اووائی چه یه عیسیٰ ابن مریم! چه کوم نعمت ما په تا او ستا په مور نازل کړے وُو هغه یاد کړه (یعنی) چه ما به پاکه وحی ستا مدد کړے وو تا به خلقو سره په وړوکوالی کښے او په بډاتوب کښے (دَ روحانیت) خبرے کولے او (هغه وخت هُم یادکړه) چه ما تا ته دَ کتاب او پوهے خبرے اوښودلے او تورات او انجیل (هم در اوښودلو) او کله چه تا څما حکم سره خاورین خصلت لرونکی (خلقو کښے) دَ مارغه دَ پیدائش په شان مخلوق پیدا کولو بیا به تا هغوی کښے پوک وهلو نو هغوی به څما په حکم دَ الوتو جوګه (قابل) کیدل۔ او تا به ړوند او برص والے (مریض) زما په حکم بري کول او کله به تا زما په حکم سره مړي ویستل او کله چه بنی اسرائیل رچا چه ستا دَ قتل اراده لرله) ما دَ تا نه منع اوساتل۔ (هغه وخت) کله چه تا هغوی له دلیلونه راوړي وو او هغوی کښے کافرانو اووئیل دا خو ښکاره ښکاره دَ دهوکے خبرے دي۔

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ﴿۱۱۱﴾

او (هغه وخت یادکړه) چه مارسنا) حواریانو (یعنی شاګردانو) ته وحی اوکړه چه په ما اوځما په رسول ایمان راوړئ هغوئ (دَ دے وحی په ځواب کښے) اووئیل چه مونږ ایمان راوړو او ته ګواه اوسه چه مونږ په حکم منونکو کښے (شامل شوی) یو۔

اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ۭ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴿۱۱۲﴾

او (هغه وخت هُم یادکړئ) چه حواریانو اووائیل چه یه عیسیٰ ابن مریم! آیا ستا رب کښے طاقت شته چه ځمونږ دَ پاره آسمان نه (خوراکونو نه ډک) یو خوانچه راکوزه کړی۔ (په دے) مسیح اووئیل که چرے تاسو (رښتونی) موصنان یئ نو دَ الله (تعالیٰ) تقویٰ اوکړئ۔

قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ اَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ﴿۱۱۳﴾

هغوی (یعنی حواریانو) اووئیل چه مونږه غواړو چه مونږه دَ دے (خوراک) نه اوخورو اوځمونږ زړونه مطمئن شی (چه ځمونږه خدائے قادر دے) اوځمونږه یقین اوشی چه تا مونږ ته (رښتیا وئیلی دی اومونږ دَ دے خلقه دَ ګواهی ورکولو قابل شو۔

قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴿۱۱۴﴾

(په دے باندے) عیسیٰ ابن مریم اووئیل یه الله! یه ځماربه! مونږه باندے دَ آسمانه دَ خوراک نه ډکه غوړئ) راکوزکړه چه کوم ځمونږه (دَ عیسایانو) کښے دَ ړومبی برخے دَ پاره هُم دَ اختر (موجب) وی اودَ آخری برخے دَ پاره هُم دَ اختر (موجب وی اوستا دَ طرفه یونښان وی) اوته مونږ له دَ خپله لوره رزق راکړے اوته دَ ټولو رزق ورکونکو نه ښهٔ رزق ورکونکے یے۔

قَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا

الله (تعالیٰ) اوفرمائیل زهٔ به دا ستے (مائده) په تاسو خامخا نازله وُمه۔ نو بیا چه څوک هُم په تاسو کښے دَ هغے (دَ نازلیدو نه

مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١١٥﴾ ع ١٥ ‏

پس) ناشکری اوکړی نو زۀ به هغه له داسے عذاب ورکومه چه په دُنیا کښے به بل قام له داسے عذاب نۀ ورکوم۔

وَاِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۖ قَالَ سُبْحٰنَكَ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اَقُوْلَ مَا لَيْسَ لِيْ بِحَقٍّ ۖ اِنْ كُنْتُ قُلْتُهٗ فَقَدْ عَلِمْتَهٗ ۖ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَآ اَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِكَ ۖ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿١١٦﴾

اوکله چه الله (تعالیٰ) اووئیل یَه عیسیٰ ابن مریم! آیا تا خلقوته وئیلی ووچه ما اوځما مور دَالله نه سوا معبودان جوړکړئ نو هغهٔ ځواب ورکړو چه مونږ تا دَ (ټولو عیبونو نه) پاک ګنړو۔ ځما دَ شان سره ښه نهٔ ښکاریده چه ما (هغه خبره) کولے چه دَکوم ماته حق نهٔ وُو اوکه ما داسے وئیلی وی نو تاته به خامخا دَ هغے علم وی څه چه ځما زړه کښے دی ته ئے پیژنے او چه څه ستا په زړه کښے دی ماته نهٔ دی معلوم۔ تهٔ په تحقیق سره دَ غیب (ټولو) خبرونه په ښه شان واقف ئے۔

مَا قُلْتُ لَهُمْ اِلَّا مَآ اَمَرْتَنِيْ بِهٖٓ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ ۚ وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿١١٧﴾

ما هغوی ته لس هغه خبره کړے وه چه دَکومے تاما ته حکم راکړے وو یعنی داچه دَ الله (تعالیٰ) عبادت کوئ چه ځما (هُم) رب دے او ستا سو هُم رب دے او ترسو چه زۀ هغوی کښے موجود وُم۔ زۀ دَ هغوئ نګران وُم ولے هرکله چه تا ځما ساه راخستله نو هُم تهٔ په هغوی نګران وے (زۀ نهٔ وُم) او (هُم) تهٔ په هرڅیز نګران ئے۔

اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١١٨﴾

که چرے تهٔ هغوئ له عذاب ورکول غواړے نو هغوئ ستا بندیان دی۔ اوکه تهٔ هغوئ بخښل غواړے نو تهٔ ډیرغالب (او ډیر) لوئے حکمت لرونکے (خدائے) ئے۔

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ۚ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۚ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۚ ذٰلِكَ

الله (تعالیٰ) اوفرمائیل دا ورځ (داسے) ده چه په دے کښے به صادقانو ته دَ هغوی رښتنی نفع ورکوی۔ هغوی ته به داسے باغونه حاصلیګی چه ورلاندے به نهرونه

الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲۰﴾

همیشه هغوی به هغے کښے تل تر تله او سیګی الله د هغوی نه راضی شو او هغوی د هغهٔ نه راضی شول او دا (یوه) ډیره لویه کامیابی ده۔

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۲۱﴾ ع

آسمانونه او مزکه او څه چه د هغوی دوارو ترمنځه دی د هغے بادشاهت هُم د الله د پاره دے۔ او هغه هرکار (پوره پوره) قادر دے۔




سورۃ انعام۔ د اسورۃ مکی دے او بسم الله سره دَ دے یوسل شپږ شپیته [١٦٦] آیتونه او شل [٢٠] رکوع دی

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

زه دَ الله په نوم (لولم) چه بے حده بریاله (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ؕ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ②

دَ هر قسم تعریف الله لائق دے چه چا آسمانونه او مزکه پیدا کړی دی۔ او تیرے او نورئے هُم جوړ کړے دے سره دَ دے چه کافران خپل رب سره شریک جوړوی۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ قَضٰۤى اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ③

هغه هُم دَ خدائے ذات دے چا چه تاسو دَ لمدے خټے نه پیدا کړی ئی بیائے (دَ ژوندی اوسیدو دَ پاره) یو وخت مقرر کړو۔ او یو بل وخت هُم شته چه علم ئے لس هُم هغهٔ ته دے۔ بیا هُم تاسو شک کوئ۔

وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ ؕ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُوْنَ ④

په آسمانونو او مزکه کښے هُم هغه خُدائے دے۔ چه کوم ستاسو رازونه هُم پیژنی او ستا سو ښکاره خبرے هُم۔ او څهٔ چه تاسو کټئی هغه هُم پیژنی۔

وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ⑤

او هغه خلقو ته دَ هغوی دَ رب دَ نښانو نه چرے هُم یو نښان نهٔ دے راغلے ولے (دَ هغوی معامله دا سے پاتے ده چه) هغوی دَ دے نه مخ اړولے دے۔

فَقَدْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؕ فَسَوْفَ يَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ⑥

پس کامل حق (یعنی قرآن) چه کله هغوی له راغلو نو دَ دے هُم هغوی انکار وکړو۔ او س به دَ دے نتیجه دا او زی چه دَ کوم خبرو پخقله هغوی خندا کوله زر به دَ هغے دَ کید وخبرونه هغوی ته رسیدل شروع شی۔

أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ۝۷

آیا هغوی ته نهٔ دَ معلومه چه دَ هغوی نه وړاندے دَ څومره زمانو (خلقو) نه چاله چه مونږ مزکه کښے دومره طاقت ورکړے وه چه څومره طاقت مو دَ دے زمانے خلقو ته نهٔ دے ورکړے هلاک کړل او مونږ په هغوی ورېځے دَ شړک باران سره استولے وے. او هغو نه مو داسے نهرونه روان کړي وُو چه دَ هغوی په قبضه او تصرف کښے به روان وو او بیا مونږ هغوی دَ هغوی دَ ګناهونو له کبله هلاک کړل او دَ هغوی نه پس مو یو بل نسل پیدا کړو.

وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝۸

او که چرے مونږ په تا باندے په کاغذ ولو لیکلے شوے کتاب نازل کړے وے چه ورته هغوی خپل لاسونه لګولے وے نو بیا به هُم کافرانو دَا وئیلے. دا خو یو ښکاره فریب دے.

وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۖ وَلَوْ أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنظَرُونَ ۝۹

او (مخالف) وائي چه په دهٔ یو فرښته ولے راکوزه نهٔ شوه او که مونږ چرته فرښته راکوزه کړے وے نو فیصله به شوے وه. بیا به دوی ته مولت نهٔ شو ورکیدے

وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ رَجُلًا وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا يَلْبِسُونَ ۝۱۰

او (دا هُم یاد ساتل پکار دي) که چرے مونږ دا (پیغمبر) دَ فرښتو نه غوره کړے وے نو بیا هُم به مونږ دهٔ ته دَ سړي شکل ورکولے او په هغوی به بیا هُم هغه خبره شک منه پاتے وے چه کومه اوس هغوی شک منه ګنړي.

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ۝۱۱ ع

او تا نه آګاهو چه کوم رُسولان تیر شوي دي هغوی سره هُم خندا کانے شوے وے. نتیجه ئے دا او شوه چه هغوی کښے چه چا خندا کړے وه هغوی هُم هغه عذاب راګیر کړل چه کوم پورے هغوی خندا کوله.

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

ته هغوی ته او وایه (لږ) زمکه کښے اوګرزئ. بیا

الْمُكَذِّبِيْنَ ⑪

او ګوری د انکار کوونکو څه انجام کیګی۔

قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ قُلْ لِّلّٰهِ ۭ كَتَبَ عَلٰي نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۭ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ۭ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑫

(هغوی نه) تپوس اوکړه چه مزکه کښې چه څه دی هغه د چا دی؟ (د دے ځواب به هغوی څهٔ درکوی د دے د پاره هُم تهٔ هغوئ) نه او وایه - د الله. هغهٔ په خپل ځان رحمت فرض کړے دے هغه به تاسو له د قیامت تر ورځے پورے غونډه وی - په دے خبره کښے هیڅ شک نشته چه هغه خلقو چا چه خپل ځانونه نقصان کښے وا چول هغوی ر د دے بد عملئ په سوب) ایمان نهٔ راوړی۔

وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۭ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ⑬

او څه چه د شپے (په تیارهٔ) او د ورځے (په رڼرا) کښے موجود دی هغه ټول د هغهٔ (یعنی د خدائے) دی۔ او هغه ډیر اوریدُونکے (او) ډیر خبر داره دے۔

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ۭ قُلْ اِنِّىْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ⑭

تهٔ او وایه! آیا زهٔ د الله نه سوا چه د آسمانونو او د مزکے پیدا کوُونکے دے څوک بل دوست جوړ کړم. په حقیقت کښے هغهٔ (ټولو انسانانو) ته بان دے خوروی او (د هیڅ یو طرف نه) هغه ته رزق نشی ورکیدے۔ او وایه ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ د ټولونه لوُمړے فرمانبردار جوړ شم او دا چه (اے رسوله!) تهٔ د مشرکانو نه نهٔ شے۔

قُلْ اِنِّىْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ⑮

تهٔ او وایه که چرے زهٔ د خپل رب نافرمانی اوکړم نو زهٔ د لوئے ورځے د عذاب نه ویریږم۔

مَنْ يُّصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَىِٕذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ۭ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ⑯

چه د چا نه هغه عذاب لرے کړے شو نو (لوهٔ شئ چه) په هغه ورځ هغهٔ باندے خدائے رحم اوکړو او دا ډیره لویه کامیابی ده۔

وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ۭ

او که چرے الله (تعالیٰ) تا ته څه ضرر اورسوی نو د

وَاِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۱۸

هغهٔ نه سوا هغه بل څوک نشي لرې کولے۔ او که هغه تاله څه ښیګړه درکړي۔ نو هغه په هرکار قادر دے۔

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ۚ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۱۹

او هغه په خپلو بندیانو غالب دے او دَ ډیرو حکمتونو خاوند دے (او) دَ ټولو حالاتو نه خبر دے۔

قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً ۖ قُلِ اللّٰهُ ۙ شَهِيْدٌۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۚ وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ ۭ اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى ۭ قُلْ لَّآ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِيْ بَرِيْۗءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۲۰

تهٔ اووایه دَ ټولو نه زیاته (رښتونے) ګواهي ورکونکے دَ چا ذات دے۔ بیا (په خپله ځواب کښے) اووایه چه الله۔ هغه ستاسو او ځما ترمینځه ګواه دے او زما طرف ته دا قرآن وحی کړے شوے دے دَ پاره دَ دے چه زهٔ تاسو دَ دے په سوب (دَ راتلونکي عذاب نه) اووېروم۔ هغوی (ټولو) له هُم چه چا ته دا اورسی۔ آیا تاسو دا ګواهي ورکوئ چه دَ الله نه سوا نور څوک دَ عبادت لائق هُم شته (او بیا دَ خپل طرف نه) اووایه چه تاسو ګرزئ ورکوئ دا سے دَ دروغو ګواهي) زهٔ خو دا ګواهي نهٔ ورکوم (بیا هغوی ته) اووایه چه هغه (خدائے) خو خپل ذات کښے بس یو ازے خدائے دے او زهٔ خو هغه څیزونو نه چه تاسو ئے دَ خدائے سره شریک جوړوئ ویزاره یم۔

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَاۗءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۲۱ ع

هغه خلق چه چا ته کامل کتاب حاصل دے دا دا سے پیژني څنګه چه هغوی خپل ځامن پیژني وے چه کوم خلق نقصان کښے پریوتل او خپل ځانونه ئے (هُم) نقصان کښے واچول هغوی ایمان نهٔ راوړی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۲۱

او دَ هغه نه زیات ظالم څوک کیدے شي چه څوک په الله باندے دروغ تړي یا دَ هغه نښانانو نه انکار کوي۔ رښتیا خبره دا ده چه ظالمان چرے نهٔ کامیابیږي.

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿۲۲﴾

اوچه کومه ورځ به مونږه هغوی ټول راغونډ کړو- بیا چه چا شریک جوړ کړی وی . هغوی ته به وایو چه ستاسو (جوړ کړی) هغه شریک چه دَ چا په حقله تاسو دعویٰ کوله (چه هغوی الله سره شریک دی) څهٔ شو؟

ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿۲۳﴾

بیا دَ دے په ځواب کښے به هغوی لس دا وائی . چه قسم په خدائے چه څمونږه (ربښتونے) رب دے. مونږه خو مشرکان هډو وُو نه.

انظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿۲۴﴾

اوګوره (په دے موقع) هغوی څه رنګه دَ خپلو ځانونو په حقله دروغ وائی او څه (چه) هغوی دَ دے نه مخکښے دروغ تړل (تهول) به هغوی نه هیر شی.

وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۖ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِن يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿۲۵﴾

او هغوی کښے بعضے (خلق) داسے دی چه ستا (خبرو) ته غوږ ګونه نیسی . کنی حقیقت دا دے چه مونږ دَ هغوی په زړونو پردے اچولے دی . دَ پاره دَ دے چه هغوی په دے پوئے (رنهٔ) شی او دَ هغوی به غوږنو کښے مو کونړوالی پیدا کړے دے. او که هر څو هغوی هر (یو قسم) نښان اوګوری. هغوی به په دے ایمان نهٔ راوړی (دَ هغوی حال) تر دے (را) رسیدلے دے) چه کله هغوی تا ته راشی نو تا سره جهګړا کوی کافران وائی دا (قرآن) دَ زړو مېنو قصئ دی.

وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ۖ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿۲۶﴾

هغوی (نور هُم) دَ دے نه منع کوی او (خپله هُم) دَ دے نه لرے اوسی . وے هغوی دَ خپل ځان نه سوا نور څوک نهٔ هلاکوی . وے هغوی نهٔ پوهیګی.

وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۲۷﴾

اوکه ته هغوی (هغه وخت) اوګورے هر کله به چه هغوی دَ دوزخ مخامخ اودرولے شی هر کله چه (هغوی) وائی (چه) څه به ښه وے چه مونږه دَ ایمان په

حال واپس کړے شوے - او مونږ ه به بیا دَ پاره چرے هُم دَ خپل رب دَ نښانانو نه انکار نهٔ کوُو (نوتاته به دَ هغوئ دَ انکارکولو حقیقت معلوم شی) -

بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوا يُخْفُونَ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٢٩﴾

حقیقت دا دے چه (نحهٔ) هغوی (دَ دے نه آگاهو) پټول - هغه په هغوی ښهٔ ښکاره شوی دی - اوکه هغوی (واپس) استنولے شوے وے نو هغوئ به خا مخا (هغه خبرے طرف ته) بیا ورتلے - چه کومے نه هغوئ منے کړے شوی وو او هغوئ په تحقیق سره (چپلے دے دعوئ کښے) دروغجن دی -

وَقَالُوا إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿٣٠﴾

او هغوی وائی چه ځمونږ ه دَ (دے) دینوی ژوند نه سوا بل ژوند نشته دے او نهٔ به مونږ لره اوچتولے شی -

وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ قَالَ أَلَيْسَ هَٰذَا بِالْحَقِّ ۚ قَالُوا بَلَىٰ وَرَبِّنَا ۚ قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣١﴾ ع

او که تهٔ هغوی (هغه وخت) اوګورے چه هغوی به خپل رب ته مخامخ اودرولے شی - او هغه به (هغوی ته) فرمائی - آیا دا (دوئم ځله ژوند) رښتونے نهٔ دے او هغوی به ځواب کښے وائی - مونږ ته دَ خپل رب قسم وے نا (خا مخا رښتونے دے) هغه به اوفرمائی نو بیا تاسو خپل انکار (باندے دَ ټینګ اودریدو) په سوب دَ عذاب (مزه) اوڅکئ -

قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوا يَا حَسْرَتَنَا عَلَىٰ مَا فَرَّطْنَا فِيهَا وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ عَلَىٰ ظُهُورِهِمْ ۚ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ ﴿٣٢﴾

چه کوم خلقو الله سره دَ ملاقات (مسئله) او نهٔ منوده هغوی په نقصان کښے پریوتی دی - تر دے پورے چه هرکله هغه وخت په هغوی ناسا په راشی نو هغوی به وائی - افسوس دے ځمونږ ه پښیمانتیا دَ هغے لاپروهئ په سوب چه دَ دے وخت په حقله مونږ ه اوکړه او هغوی به هغه وخت خپل پیټی په خپلو ملاګانو اوچت کړی

وی۔ واورئ! چه کوم ربيتی) به هغوی اوچتوی هغه به ډیریدوی۔

وَ مَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّ لَهْوٌ ۭ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝۳۲

او دا دنیوی ژوند دَ لوبو تو کونه سوا (هیڅ) نهٔ دے او چه کوم خلق تقوی کوی۔ دَ هغوئ دَپاره روستو راتلونکے کور په تحقیق سره بنه دے۔ بیا آیا تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

قَدْ نَعْلَمُ اِنَّهٗ لَيَحْزُنُكَ الَّذِيْ يَقُوْلُوْنَ فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ۝۳۳

مونږ ته یقین سره معلومه ده (او) هُم دا خبره ربښتیا ده۔ چه ته هغوی وائی هغه خامخا غمژن کوی ځکه چه هغوی ستا انکارنهٔ کوی بلکه ظالمان دَ الله دَ آیتو قصداً انکارکوی۔

وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰي مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰٓي اَتٰىهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَاۗءَكَ مِنْ نَّبَاِى الْمُرْسَلِيْنَ ۝۳۴

او تا نه دَ وړاندینو رُسولانو هُم انکار شوے دے بیا سره دَ دے چه دَ هغوی انکار اوشو او هغوی ته تکلیف ورکړے شو هغوی به صبر کولو تر دے چه هغوی له ځمامدد راغلو او دَ الله خبرو له بدلونکے هیڅوک نشته او تاله دَ رُسولانو ځنے خبرونه په یقین سره راغلی دی۔

وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاۗءِ فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ۭ وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَي الْهُدٰي فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝۳۵

اوکه دَ دوئ (کافرانو) مخ (ړول په تا بنه نهٔ لگی نو که په تا کښے طاقت وی۔ چه په مزکه کښے چرته سرنگ او دَ آسمان په طرف دَ پوړئ لټون کولے شے۔ او بیا هغوی له چرته نشان راوړے شے۔ (نو بے شکه دا ئے اوکړه) او که الله غوښتئ نو هغوی ته به ئے خامخا هدایت کړے وے بیا ته دَ ناواقفانو نه هیڅکله نهٔ شے۔

اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ۭ وَالْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ۝۳۶

چه کوم اوری هُم هغوئ (خبره) قبلوی۔ او چه (کوم) مړی (دی) الله به هغوی اوچتوی۔ بیا هغوی به هُم هغهٔ ته واپس کرزولے شی۔

وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓي اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝۳۸

او هغوی وائی چه دَ ده دَ رب له طرفه په دهٔ څه نښان ولے نهٔ دے راکوز شوے. تهٔ او وایه چه الله په دے (خبره) په تحقیق سره قادر دے چه یو نښان نازل کړی. هن ولے هغوی کښے ګنړ کسان (په دے خبره) نهٔ پوهیګی.

وَمَا مِنْ دَاۗبَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا طٰۗىِٕرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ۭ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ۝۳۹

او په مزکه تهول ګرزیدُونکی (ځناور) او درسره په خپلو دواړو وزرو الوتُونکی مارغان ستاسو په رنګ تهولی دی. مونږ په دے کتاب کښے هیڅ کمئ نهٔ دے کړے بیا هغوی (یعنی وړاندے بیان شوی تهولو کښے انسانان) به دَ خپل رب په طرف په یو ځائے بوتلے شی.

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ ۭ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ۭ وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰي صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝۴۰

او چه کومو خلقو ځما دَ آیتونو انکار کړے دے هغوی کا نړه او ګونګیان دی. (او) په تیرو کښے (پراته) دی چاله چه الله اوغواړی هلاک به ئے کړی. او چاله چه الله اوغواړی په نیغه لاره به ئے اودروی.

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ۚ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝۴۱

تهٔ اووایه چه تاسو (او) خو وائی که چرے په تاسو دَ الله عذاب راشی یا په تاسو هغه (مقرر شوے وخت) راشی نو که تاسو رښتونی یئ نو آیا تاسو به (هغه وخت) دَ الله نه سوا (بل) ته آواز کوئ.

بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَاۗءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ۝۴۲ ع

نا بلکه تاسو به هُم هغه رابلئ. بیا که هغه اوغواړی نو چه دَ کوم (تکلیف دَ لرے کولو) دَ پاره به تاسو (هغه) رابلئ هغه به هغهٔ ختما لرے کړی او تاسو به هغه چه کوم تاسو (دَ خدائے) شریک ګنړئ. هیر کړی.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَاۗءِ وَالضَّرَّاۗءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ۝۴۳

او مونږ تا نه وړاندے نو قامونو ته (رسُولان) استولی دی او (دَ هغه رسُولو دَ راتلو نه پس) مونږ هغوی (یعنی منکرانو ته) دَ دے دَ پاره په مالی او بدنی تکلیفونو کښے راګیر کړی وُو چه هغوی عاجزی اوکړی.

فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٤٣﴾

بیا داسے ولے اونهٔ شول چه کله په هغوی څمونږ عذاب راغلے وه نو هغوی عاجزی کړے وے بلکه دَ هغوی زړونه (خونورهُم) سخت شول او شیطان هغه څه چه هغوی کول هغوی ته ښکلی اوښودل۔

فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ؕ حَتّٰٓى اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ﴿٤٤﴾

او هرکله چه هغوی هغه (کار) هیرکړو چه هغوی ته به یاد ولے شو۔ نو مونږ په هغوی دَ هر څیز دروازے پرانستے۔ تر دے پورے چه هغوئ په هغے خوشحال شول چه هغوئ له ورکړے شوی وو۔ نو مونږ هغوی ناسا په عذاب کښے راګیر کړل په دے هغوی مخے سره نا اُمیده شو۔

فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ؕ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٥﴾

بیا نو چه چا ظلم کړے وُه ۔ دَ هغوی جرړے پریکړے شوے او (ثابته شوه چه) دَ ټولو تعریفونو هُم الله جوګه (مستحق) دے۔ چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴿٤٦﴾

ته اووایه چه اوخووائی (چه) کہ چرے الله ستاسو دَ اوریدنے او کتنے (قوت) ضائع کړی۔ او ستاسو په زړونو باندے مهر اولګوی نو دَ الله نه سوا څوک معبود دے چه هغه به (ضائع شوے څیز) تاسو ته (واپس) راوړی۔ او ګوره مونږه څه رنګه آیتونه بیا بیا (په بیل بیل ډول) بیانوو (روو) بیا هُم هغوی مخ اړوی۔

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٧﴾

ته اووایه چه اخووائی که دَ الله عذاب په تاسو ناسا په (بے خبره) یا په ظاهره راشی۔ نو آیا دَ ظالمانو خلقونه سوا (بل څوک سړے) هلاکولے شی۔

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

او مونږ رسُولان لِس دَ زیری ورکولو او دَ ویرولو دَ پاره استوو۔ بیا چه کوم (خلق) ایمان راوړی او اصلاح

يَحْزَنُوْنَ ﴿۴۸﴾

اوکړی نو هغوی ته به نهٔ دَ څه قسم (دَ بیا دَ یاره) ویره وی - اونهٔ به هغوئ (په مخکینو پاتے راتلو) غمژن وی -

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۴۹﴾

او چه چا ځمونږه دَ آیتونو نه انکار کړے دے هغوی ته به دَ هغوی دَ نافرمانو په سوب عذاب وی -

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۵۰﴾ ع

ته او وایه چه زهٔ تاسو ته دا نهٔ وایم چه ماسره دَ الله خزانے دی (اونهٔ (دا چه) زهٔ غیب نه خبریم او نهٔ زهٔ تاسو ته دا وایم چه زهٔ فرښته یم - زهٔ خو لس هغے پسے زم چه (زما ته) الهام شوی دی ته او وایه چه آیا روند او بینا برابر کیدے شی - بیا آیا تاسو سوچ نه کوئ ؟

وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۵۱﴾

او ته دَ دے (کلام) په ذریعه سره هغه خلقو ته چه کوم دَ دے خبرے نه ویریګی - چه هغوی به دَ هغوی رب ته غونډ لوئلے شی هرکله به چه دَ هغوی دَ هغه نه سوا نهٔ څوک مددګار وی اونهٔ سفارشی -

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۲﴾

او ته هغه خلق ته چه خپل رب سحر او ماښام دَ هغهٔ یاد راګرزولوله یادوی - مهٔ رټه - دَ هغوی دَ حساب هیڅ برخه ستا په ذمه نهٔ ده او ستا دَ حساب هیڅ برخه دَ هغوی په ذمه نهٔ ده بیا (که چرے) ته هغوی رټے نو ظالم به شے -

وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْ بَيْنِنَا اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ ﴿۵۳﴾

او مونږ هغوی کښے بعضے دَ بعضو له کبله داسے ازمائیلی دی چه هغه (تکلیف کښے اچولی شوی خلق) او وائی چه آیا الله په مونږه کښے په دے (ذلیلو) خلقو احسان کړے دے (صحی ده) آیا خدائے شکر کوونکی

دَ (تهولو نه زیات نهٔ پیژنی ؟)

وَ اِذَا جَآءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۙ اَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْٓءًۢا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَ اَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۵۵﴾

او هرکله چه تاله هغه خلق راشی - چه څمونږ په آیتونو ایمان راوړی نو ته (هغوئی ته او وایه) چه په تاسو دِ تل ترتله سلامتی وی - ستاسو رب په خپل ځان باندے (تاسو له) رحمت فرض کړے دے (داسے) چه که په تاسو کښے (څوک) په هیره څه بدی اوکړی - بیا هغه دَ هغے نه پس توبه اوکړی او اصلاح اوکړی نو دَ هغهٔ (یعنی دَ خدائے) صفت دا دے چه هغه ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے -

وَ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۵۶﴾ ع ۶ ۱۲

او مونږ نښانات په داسے شان ښکاره ښکاره بیانوو (ځکه چه حق څرګند شی) او ځکه چه دَ مجرمانو طریقه ښکاره شی -

قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قُلْ لَّآ اَتَّبِعُ اَهْوَآءَكُمْ ۙ قَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّ مَآ اَنَا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۵۷﴾

ته (هغوی ته) او وایه چه زه دَ سره منع کړے شوے یم - چه زهٔ دَ هغو (نا حقه معبودانو) عبادت اوکړم کوم چه تاسو دَ الله نه سوا رابلئ - ته (ردوئ ته) او وایه چه زه ستاسو پر لوتو غوښتنو پسے نهٔ ځم (که چرے زه داسے اوکړم نو) په دے صورت کښے (لوئے شئ چه) زه بے لارے شوم او زهٔ دَ هدایت موندونکو (خلقو) نه نهٔ یم -

قُلْ اِنِّيْ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَ كَذَّبْتُمْ بِهٖ ؕ مَا عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ ؕ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ يَقُصُّ الْحَقَّ وَ هُوَ خَيْرُ الْفٰصِلِيْنَ ﴿۵۸﴾

ته (ردوئ ته) او وایه چه زه دَ خپل رب دَ طرفه په دلیل یم - او تاسو دَ دے (دلیل) انکار کړے دے چه دَ کومے خبرے پخقله تاسو تلوار کوئ هغه ماسره نشته فیصله نخو دَ الله په واک کښے ده - هغه رښتیا بیانوی او په فیصله کولو کښے دَ ټولو نه ښهٔ دے -

قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ

ته (ردوئ ته) او وایه چه دَ کوم څیز پخقله تاسو تلوار ...

بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٩﴾

یعنې که چرې هغه ما سره وې نو زما او ستاسو ترمنځه (د اختلافي خبرې (دير وړاندې) فیصله شوې وه. او الله ظالمان د تولو نه ښهٔ پيژنی (چه کله او غواړی فیصله به اوکړی.

وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَ الْبَحْرِ وَ مَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّ لَا يَابِسٍ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿٦٠﴾

او هغهٔ سره د غيبو کُنجيانې دی. د هغه نه سوا دا (یعنې غیب) هيڅوک نهٔ پيژنی. او چه څه په اوچه او لمده کښې دی هغې نه هغهٔ خبر دے. او يوه پاڼړه نهٔ پرلوزی خو هغه ته معلومه شی او د مزکے په تيرو کښې يوه دانه نشته او نهٔ لوتر (څيز) دے او نهٔ يو اوچ (څيز) چه (د هغه) په ښکاره (ښکاره) حفاظت کښې نهٔ وی.

وَ هُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَ يَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٦١﴾ ع ٧ ١٣

او هُم هغهٔ دے چه د شپے په وخت ستاسو روحونه اخلی او د ورځے په وخت چه څهٔ تاسو کوئ هغه پيژنی بيا تاسو د ورځے په وخت پاسوی دے د پاره چه يو مياد چه مقرر کړے شوے دے پوره کړے شی. د هغې نه پس ستا سو واپس ګرزيدل هُم د هغهٔ طرف ته دی. او چه څه تاسو کوئ هغهٔ به تاسو له د هغې خبر درکوی.

وَ هُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَ يُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ۭ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿٦٢﴾

او هغه په خپلو بنديانو بَر دے. او په تاسو نګران ساتی تردے چه کله تاسو کښې چاله مرګ راشی نو څمارا ستولے شوے (فرښتے) د هغهٔ رُوح واخلی او هغوی (د حُکم په منولو کښے) کمئ نهٔ کوی.

ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۭ اَلَا لَهُ الْحُكْمُ وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ﴿٦٣﴾

بيا به هغوی د الله په طرف چه د هغوئ رښتونے مالک دے واپس کولے شی. واورئ! فيصله د هغهٔ په اختيار کښې ده او هغهٔ په حساب اخستونکو کښې د تولو نه زر حساب اخستونکے دے.

قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَ الْبَحْرِ تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً ۚ لَئِنْ اَنْجٰىنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۶۳﴾

تهٔ (هغوئ ته) اووايه چه تاسو دَ اوچې او لمدے مصيبتونو نه څوک ساتی هرکله چه تاسو هغهٔ په زارئ او په پټه (داسے) رابلئ چه که هغه مونږ دَ دے مصيبت نه بچ کړی نو مونږ به خامخا شکر کوونکی شو۔

قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَ مِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿۶۴﴾

تهٔ (هغوی ته) اووايه چه (هُم) الله تاسو دَدے نه (هُم) او دَ هر يو (بلے) يرے نه (هُم) بچکوی بيا (هُم) تاسو شرک کوئ۔

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰۤى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّ يُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَاْسَ بَعْضٍ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿۶۵﴾

ته (هغوی ته) اووايه هغه دے (خبرے) باندے هُم طاقت لری چه په تاسو دَ پاس نه عذاب نازل کړی ستاسو دَ پخو دَ لاندے دَ طرفه يا تاسو په خپلو کښے دَ مختلفو ټولو په شکل يوځاے کړی۔ او تاسو کښے دَ بعضو له طرفه بعضو ته تکليف اورسئ اوګوره مونږ دليلونه څه رنګه۔ بيا بيا بيانوُو۔ چه هغوی پوهٔ شی۔

وَ كَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَ هُوَ الْحَقُّ ؕ قُلْ لَّسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ؕ﴿۶۶﴾

اوستا قام دا (کار يعنی دَ محمد صلعم پيغام) دروغ ګرزولے دے۔ کنی هغهٔ خو رښتيا دے۔ تهٔ هغوئ ته اووايه چه زهٔ ستاسو ذمه دار نهٔ يم۔

لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ ؗ وَّ سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۷﴾

دَ هرے پيش خبرئ يو حد مقرر وی او تاسو به زر (په حقيقت) پوهٔ شی۔

وَ اِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ؕ وَ اِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۶۸﴾

او هرکله چه تهٔ هغهٔ خلق اووينے چه زما دَ آيتونو په حقله کږے وږے خبرے کوی نو تهٔ هغوی نه ترهغه وخته پورے بيل اوسه ترڅو چه هغوی دَ دے (کږو وږو خبرو) نه سوا څهٔ بله خبره کښے مشغول نهٔ شی۔ او که چرے شيطان تا نه هيره کړی نو دَ ياد راتلو نه پس تهٔ ظالم قام سره مهٔ کينه۔

وَ مَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ

او چه کوم خلق تقویٰ کوی۔ دَ هغوی په سر دَ هغوئ (يعنی

وَلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿٦٩﴾

دَ کړو وړو خبرو دَ ولونکو) دَ حساب هیڅ برخه نشته خو نصیحت کول (دَ هغوی په ذمه) دی. ځکه چه هغوی تقوٰی اوکړی.

وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ
الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ
لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ
تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ
اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ
اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٠﴾ ع

او نهٔ هغه خلقو ته چا چه خپل دین نه لوبه تهوکه جوړه کړے ده. او دَ دے دنیا ژوند هغوی په دهوکه کښے اچولی دی. پریږده او دَ دے (دَ خدائے کلام) په سوب ورته نصیحت کوه. هسے نه چه (رداسے اوشی) یو ځان نه دَ هغهٔ دَ کړنے په سوب دا شان هلاکت ته واچولے شی چه دَ خدائے نه سوا دَ هغهٔ نهٔ څوک ملاتړوی او نهٔ شفاعت کوونکے او کچرے هغوئ دَ هر یو (قسم) بدله هُم ورکړی نو هغوئ نه به نهٔ قبلیګی. دا هغه خلق دی چاله به چه دَ هغوئ دَ کړنے په سوب په هلاکت کښے اچولے شی. هغوی نه به دَ هغوی دَ کُفر په سوب دَ ښنبلو دَ پاره کړمے او به رورکیګی) او دردناک عذاب به وی.

قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا
وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِى
اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ ۖ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ
يَّدْعُوْنَهٗٓ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ
هُوَ الْهُدٰى ۗ وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧١﴾

تهٔ (هغوی ته) اووایه آیا مونږ دَ الله نه سوا هغه اوبلو څوک چه نهٔ خو مونږ ته (څه) نفع راکوی او نهٔ ضرر او آیا دَ الله دَ هدایت ورکولو نه پس مونږ دَ هغه (سری) په شان په خپلو کیتهو اوګرزولے شو چا لره چه نافرمانه خلقو په مزکه کښے په غلولو لوټلے وی (او هغه) حیرانه (او پریشانه) ګیګی. دَ هغهٔ (څه) ملګری خو داسے دی چه هغهٔ ته (رداسے) آوازکوی چه مونږ له راشه چه په سمه لار شے. تهٔ (هغو کافرانو ته) اووایه چه په تحقیق سره دَ الله هدایت لس اصل هدایت دے او مونږ ته حُکم شوے دے چه مونږ

دَ ټولو جهانونو دَ رب فرمان برداري اوکړو.

وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ۚ وَهُوَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۲﴾

او دا (هُم هدايت را ته شوے دے) چه نمونځونه سَم دَ شرطونو اوکړئ او هغه (يعنې خدائے پاک) خپل ډال جوړ کړئ او هُم هغه دے چه دَ چا په طرف به تاسو ټول څائے بوتلے شئ.

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ ڛ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۭ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ ۭ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۭ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۷۳﴾

او هُم هغه دے چه چا آسمانونه او مزکه دَ حق (او حکمت) سره پيدا کړي دي. او چه په کومه ورځ به هغه او وائي چه (زما په خوښه دے دا سے) اوشي (هُم هغه شان) به اوشي. دَ هغهٔ خبره به ځامخا کيږي او چه په کومه ورځ به شپيلئ پوک وهلے شي حکومت به (بس) دَ هغهٔ وي (هغه) دَ پټو او ښکاره خبرے نه خبر دے او هغه دَ حِکمتونو خاوند او خبردار دے.

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ اِنِّىْٓ اَرٰىكَ وَقَوْمَكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۴﴾

او ياد کړئ هر کله چه ابراهيمٴ خپل پلار آذر ته دا اووئيل چه آيا ته بعضو بُتانو له دَ عبادت لائق ګرزوے زهٔ تا او ستا قام په ډاګه بے لارے وينم.

وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ ﴿۷۵﴾

او مونږ ه ابراهيمٴ ته دا سے په آسمانونو او مزکو باندے (خپله) بادشاهي وربنودله (چه دَ هغهٔ علم مکمل شي) او ځکه چه هغه يقين کوونکو نه شي.

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ﴿۷۶﴾

(يوه ورځ دا سے اوشوه) چه کله شپے په هغهٔ پرده واچوله نو هغهٔ يو ستورے اوليدو (دَ هغے په ليدو) هغهٔ اووائيل چه آيا دا زما رب (کيدے شي) دے؟ بيا چه کله هغه پريوتو نو هغهٔ اووئيل چه زهٔ پريوتونکي نهٔ خوښوم.

فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَىِٕنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ

(دَ دے نه پس) هر کله هغهٔ سپوږمئ ځلنده اوليده نو هغهٔ اووئيل چه (آيا) دا زما رب (کيدے) شي؟

الضَّآلِّيْنَ ۝۷۸

بیا چه کله هغه هُم غیبه شوه نو هغه اووئیل که چرے زمارب ما ته هدایت نهٔ وے کړے نو زهٔ به خامخا دَ بے لارو دَ تهولی نه وے۔

فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّیْ هٰذَآ اَكْبَرُ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۝۷۹

بیا چه کله هغهٔ نمر ځلنده اولیدو نو هغهٔ اووئیل چه آیا دا زمارب (کیدے شی) دے؟ دا خو بے شکه دَ تهولو نه لوئے دے بیا چه هغه (هُم) غائب شو نو هغه اووئیل چه زهٔ دَ هغے نه چه کوم تاسو (دَ خدائے سره) شریک جوړوئ دَ سره ویزاره یم۔

اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝۸۰

ما دَ تهولو نګو لارو نه په ډډه لس خپل پام هغهٔ خدائے ته کړزولے دے چاچه آسمانونه او مزکه پیدا کړی دی او زهٔ دَ مشرکانو نه نهٔ یم۔

وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ۚ قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّیْ فِی اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ۚ وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّیْ شَيْـًٔا ۗ وَسِعَ رَبِّیْ كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ۗ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ۝۸۱

او دَ هغهٔ قام هغه سره بحث کښے کتهل غوښتل (نو) هغه اووئیل چه آیا تاسو ما سره دَ الله پخقله بحث کوئ۔ حال دا دے چه هغهٔ پخپله ما ته نیغه لاره ښودے ده او چاله چه تاسو الله سره شریک جوړوئ زه هغهٔ نه نهٔ ویریګم۔ هن اِکهٔ زمارب دَ څه خبرے اراده اوکړی (نو هغے نه به ویریګم زمارب دَ هر یو څیز علم لری بیا آیا تاسو نهٔ پوهیګئ۔

وَكَيْفَ اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ۗ فَاَیُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۸۲

او زه دَ هغے (څیز) نه چه کوم تاسو (خدائے سره) شریک جوړوئ څه رنګه ویرے دے شم څکه چه دَ هغه (څیز) پخقله هغهٔ څه دلیل نه دے راکوز کړے۔ تاسو دَ الله سره شریک جوړولو نه مهٔ ویریګئ بیا کچرے تاسو (څه) علم لرئ نو راو وائی چه) مونږ دوارو تهولو کښے څوک په امن (کښے دَ اوسیدو) زیات حق لری۔

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ

چه کومو خلقو ایمان راوړو او هغوئ خپل ایمان دَ

لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٨٢﴾ ع

ظلم سره ګډ نه کړو دَ هغو خلقو دَپاره امن دے۔ او هُم هغوی هدایت موندُونکی دی۔

وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ۭ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَاۗءُ ۭ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿٨٣﴾

او دا څمونږه دَ طرف نه (راو) دلیل وُه۔ (کوم چه) مونږ ابراهیمؑ ته دَ هغهٔ دَ قام خلاف ښودے وه۔ مونږ چه چا له اوغواړو درجے ئے زیاتوو۔ تحقیق سره ستا رب دَ حکمتونو خاوند (او) ډیر پوهه دے۔

وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٤﴾

او مونږ هغهٔ ته (یعنی ابراهیمؑ ته) اسحاقؑ او یعقوبؑ ورکړی وُو۔ مونږ هغوئ ټولو ته نیغه لار ښودلے وَه او دَ دے نه آګاهو مونږ نوحؑ ته هدایت کړے وه او دَ هغهٔ (یعنی دَ ابراهیمؑ) په اولاد کښې داوُدؑ او سلیمانؑ او ایوبؑ او یوسفؑ او موسیٰؑ او هارونؑ ته (هُم) او دا شان مونږه په ښهٔ شان کار کوونکو ته بدله ورکوو۔

وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ۭ كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٥﴾

او زکریاؑ او یحیٰؑ او عیسیٰؑ او الیاسؑ ته هُم نیغه لار ښودلے وه (دا) همه واړه نیکانونه وُو۔

وَاِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَيُوْنُسَ وَلُوْطًا ۭ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَي الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٦﴾

او اسماعیلؑ او الیسعؑ او یونسؑ او لوطؑ ته (هُم نیغه لار ښودے وه) او دغه ټولو نه مونږ په ټولو جهانونو باندے لوئی ورکړے وه۔

وَمِنْ اٰبَاۗىِٕهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٨٧﴾

او دَ هغوی پلارنیکونو او دَ هغوی اولاد او دَ هغوی رونړو ته (هُم مونږه نیغه لار ښودلے وه) او مونږ هغوی خوښ کړی وُو او په نیغه لار مو روان کړی وُو۔

ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَاۗءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۭ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٨٨﴾

دَ الله دَ هدایت ورکولو هُم دا لاره ده چه دَ کومے په سوب هغه خپلو بندګانو کښې چا له چه اوغواړی لاره ښائی او که چرے هغوی شرک کولے نو چه څهٔ عملونه هغوی کول دَ هغوی نه به ټوئے شوئے وے۔

اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ

هُم هغه خلق دی چه چا له مونږ کتاب او دَ فیصلے کولو

فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوْا
بِهَا بِكٰفِرِيْنَ ﴿٩٠﴾

پوهه او نبوت ورکړے وه بیا که دا خلق دَ دے (نبوت) نه انکار اوکړی نو مونږ هغه یو (بل) قام (یعنی مسلمانانو) ته حواله کړے دے۔ چه کوم دَ دے نه انکاری نهٔ دی۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ؕ قُلْ لَّآ
اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩١﴾ ع ١٠/١٢

دغو (پاسنی خلقو) ته الله هدایت اوکړو نو بیا تهٔ دَ هغوی هدایت پسے ځه تهٔ هغوی ته اووایه چه زهٔ په دے تاسو نه څه اجر نهٔ غواړم دا خولس دَ ټولو جهانونو دَ پاره نصیحت دے۔

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ
عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ ؕ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ
بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّهُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ
تُبْدُوْنَهَا وَتُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا
اَنْتُمْ وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ
يَلْعَبُوْنَ ﴿٩٢﴾

او چه کله هغوی دا خبره کړے وه چه الله په چا بنده څه نهٔ دی راکوز کړی نو هغه خلقو دَ الله (دَ صفتونو) حاج هغه شان اخستنهٔ وُه چه څنګه یکار دَه۔ تهٔ (هغوی ته) اووایه چه هغه کتاب چه موسیٰ راوړے وُه هغه دَ خلقو دَ پاره نور او هدایت وُه۔ هغه چا راکوز کړے وه تاسو هغه پانړے پانړے کوئ۔ هغه ښکاره کوئ (هُم) او ډیر هغے ښے (برخے) پټوئ (هُم)۔ سره دَ دے چه تاسو ته هغه (څه) ښودے شوی دی چه نهٔ تاسو پیژندل او نهٔ ستاسو پلار نیکونو (پیژندل)، نو (هغوی ته) اووایه چه (هُم) الله (هغه راکوز کړے وه) بیا تهٔ هغوی د روغو ښے لوبے کوونکی پریږده۔

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِيْ بَيْنَ
يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ وَالَّذِيْنَ
يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ
يُحَافِظُوْنَ ﴿٩٣﴾

او دا (قرآن) یو (دَ عظیم شان) کتاب دے چه مونږه نازل کړے دے (چه په کښے) برکتونه راغونډ دی۔ (او) چه کوم کلام دَ دے نه وړاندے وه هغے له پوره کوونکے دے (او مونږ دا دے دَ پاره نازل کړے دے چه تهٔ دَ دے په ذریعه خلقو ته هدایت ورکړے) او چه تهٔ اُم القریٰ (یعنی دَ مکے خلقو) ته او چه څوک دَ دے خوا وُشا (اوسی) او ویرے او چه کوم خلق په روستو کیدونکو (موعود خبرو) باندے ایمان راوړی۔

هغوی په دے (کتاب) (یعنی قرآن) باندے (هُم) ایمان راوړی۔ او هغوی دَ خپلو نمونځونو تل خیال ساتی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِیَ
اِلَیَّ وَلَمْ یُوْحَ اِلَیْهِ شَیْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ
مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۭ وَلَوْ تَرٰی اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِیْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ
وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَیْدِیْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اَلْیَوْمَ
تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَی
اللّٰهِ غَیْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰیٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۹۳

او دَ هغهٔ سړی نه زیات ظالم څوک کیدے شی چه څوک سره دَ پوهے په الله باندے دروغ اوتړی یا دا اووائی چه په ما وحی (نازله) شوے ده۔ په حقیقت کښے په هغهٔ وحی (نازله) شوے نهٔ وی او (هُم دغه شان) دَ هغه سړی نه (زیات ظالم څوک کیدے شی) چه وائی چه څه الله نازل کړی دی زهٔ به هُم په یقین سره دَ هغے په شان کلام نازل کړم او که چرے تهٔ (هغه وخت) اوګورے چه کله به ظالمان دَ مرګ په تکلیفونو کښے اخته دی او فرښتے (ددے ویناسره) خپل لاسونه خوروی چه خپلے ساکانے اوباسئ۔ څه چه تاسو دَ الله په حقله ناحق ویل او چه کوم تاسو دَ هغهٔ دَ آیتونو په حقله دَ کبر نه کار اخستلو دَ هغے په سوب به تاسو نن دَ بے عزتئ عذاب درکیګی (نو تا نه به یوه عبرت ناکه نظاره په نظر راشی)

وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰی كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ
وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَمَا نَرٰی مَعَكُمْ
شُفَعَآءَكُمُ الَّذِیْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِیْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ۭ
لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَیْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ۹۴ ع ۱۱

(او هغه وخت به مونږ او وائیو چه) څه رنګه مونږ تاسو په وړومبئ وار پیدا کړی وئ (هُم هغه شان اوس تاسو مونږ ته یوازے یوازے را رسیدلی یئ۔ او څه چه مونږ تاسو له دَ احسان په طور درکړی وُو هغه تاسو په شا روستو پریښول او (دا څه چل دے چه) مونږ تاسو سره ستاسو هغه شفاعت کوونکی (دَ چا په حقله به) تاسو دعویٰ کوله چه هغوی په تاسو (حکومت کولو) کښے (دَ خدائے سره) شریک دی (نن) تاسو سره نهٔ وینو (اوس) ستاسو خپلو لئ دَ سره ختمے شوی دی او چه څه به تاسو ویل هغه زنول) تاسو نه بے درکه شوی دی۔

اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰی ۭ یُخْرِجُ الْحَیَّ مِنَ
الْمَیِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَیِّتِ مِنَ الْحَیِّ ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰی

الله په تحقیق سره دانے او کهکی کښے چاوُد کوی۔ هغه ژوندی دَ مړی نه اوباسی او مړے دَ ژوندی نه وبیستونکے دے ستاسو

تُؤْفَكُوْنَ ﴿۹۵﴾
فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۹۶﴾

الله دا دے نو او وائی تاسو کوم ځائے نه واپس گرزولے شئ۔
هغهٔ سحر له ښکاره کوونکے دے او هغه شپه د آرام د پاره اونمر او سپوږمئ د حساب کولو د پاره جوړ کړی دی۔ دا جاج د هغهٔ دے چه غالب دے (او) ډیر علم لرونکے دے۔

وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ النُّجُوْمَ لِتَهْتَدُوْا بِهَا فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۹۷﴾

او هغه دے چه تاسو له ئے ستوری پیدا کړی دی۔ د پاره د دے چه تاسو د هغوی په مدد اوچے او لمدے په تیارو کښے لاره معلومه کړئ۔ مونږ د علم لرونکی قام د پاره نشانات ښکاره (ښکاره) بیان کړی دی۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ ﴿۹۸﴾

او هغه دے چه تاسو د یو ځان نه پیدا کړی یئ۔ بیا د هغے نه هغه (تاسو له) د لږ وخت د اوسیدو ځائے او د ډیر مودے د اوسیدو ځائے مقرر کړے دے۔ مونږ د پوهے لرونکی خلقو د پاره نشانات ښکاره (ښکاره) بیان کړی دی۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۗ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۹۹﴾

او هغه دے چه چا د آسمانه اوبه نازلے کړی دی۔ بیا (او گوره چه څه رنګه) هغے سره مونږ (یعنی خدائے) هر لوخیز زرغون کړے دے او هغے سره یے پتی پیدا کړی دی۔ چه ترے نه مونږ قط په قط دانے او باسو او د کجورے نه یعنی د هغے د وږی نه زوړند ۀ میوے دی (او باسو)۔ چه په هغو کښے بعضے خپلو کښے انخلی وی او بعضے بیلے بیلے دی۔ هر کله چه (په هغوی کښے هر قسم وخته) میوه اونکی نو د هغے میوے ته او د هغے د پخلی حال ته اوګورئ۔ دے کښے د ایمان راوړنکو خلقو د پاره په تحقیق سره (ډیر) نشانات دی۔

وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوْا لَهٗ بَنِيْنَ وَبَنٰتٍۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا

او هغوی الله سره د ځناتو نه شریک جوړ کړی دی خبره دا ده چه هغهٔ (یعنی الله) هغوی پیدا کړی دی۔ او

يَصِفُوْنَ ﴿١٠٠﴾ ع ١٢/ ١٨

هغوی هغهٔ له په دروغه (او) بے دَعلمه ځامن اولونړه جوړے کړے دی ۔ هغه پاک دے اوڅه چه هغوی وائی دَ هغے نه ډیر (بَرا و) اوچت دے۔

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اَنّٰى يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ وَّ لَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ ؕ وَ خَلَقَ كُلَّ شَیْءٍ ۚ وَ هُوَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ﴿١٠١﴾

هغه آسمان او مزکه بے نمونے پیدا کُوونکے دے۔ دَ هغه ځوئے څه رنګه کیدے شی وے چه دَ هغه هیڅ ښځه نه وه او هغهٔ (خو) هرڅیز پیدا کړے دے۔ او هغه دَ هرے خبرے علم لری۔

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ خَالِقُ كُلِّ شَیْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ۚ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿١٠٢﴾

دا دے ستاسو الله چه ستاسو رب دے دَ هغه نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته۔ هغه دَ هرڅیز پیدا کُوونکے دے۔ نو بیا دَ هغهٔ عبادت کوئ۔ او هغه په هرڅیز نګران دے۔

لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ ؗ وَ هُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ ۚ وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ﴿١٠٣﴾

نظرونه هغه ته نشی رسیدلے وے هغه نظرونو ته رسی او هغه مهربانی کُوونکے (او) حقیقت نه خبر دے

قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنْ اَبْصَرَ فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَ مَنْ عَمِیَ فَعَلَيْهَا ؕ وَ مَاۤ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ ﴿١٠٤﴾

ستاسو دَ رب له طرفه دلیلونه راغلی دی۔ بیا چه چا (هغه) اوپیژندل (دَ هغه دا کار) به دَ هغهٔ دَ (فائدے) دَ پاره وی۔ او چا چه ګله لاره اونیوه (دَ هغهٔ دا کار) به دَ هغهٔ په سروی۔ او زهٔ خو ستاسو محافظ نهٔ یم۔

وَ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ وَ لِيَقُوْلُوْا دَرَسْتَ وَ لِنُبَيِّنَهٗ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿١٠٥﴾

او داشان مونږ آیتونه په بیل بیل ډول راوړو (چه دَ هغوی عُذر پاتے نه شی) او چه هغوئ (دا) او وائی چه تا اوروَلی دی۔ (او لوده کړے دے ده) او ځکه چه مونږ هغه دَ علم لرُونکی قام (دَ فائدے) دَ پاره بیان کړو۔

اِتَّبِعْ مَاۤ اُوْحِیَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ وَ اَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٠٦﴾

او څه (چه) ستا دَ رب له اړخه په تا نازلیږی هغے پسے زه دَ هغهٔ نه سوا (بل) څوک دَ عبادت لائق نه دے او ته دَ شرک کُوونکو نه مخ واړوه۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشْرَكُوْا ؕ وَمَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ
حَفِيْظًا ۚ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۱۰۷﴾

اوکه چرے الله غوښتے نو هغوی به شرک نه کولے او مونږ ته په هغوی محافظ نه يئے جوړ کړے او نه ته په هغوی نګران يئے۔

وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَسُبُّوا
اللّٰهَ عَدْوًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ
عَمَلَهُمْ ۪ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا
كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾

او تاسو هغوی ته چه څوک هغوی دَ الله نه سوا (په دعا کالو کښے) رابلی کنزل مه کوه کنی نو هغوی به (په دښمنئ کښے) دَ ناپوهئ له کبله الله ته کنزل کوی۔ هُم دا شان مونږ هر قام دَپاره دَ هغهٔ عمل خائسته ښو دلے۔ بيا هغوی ته خپل رب له واپس تلل دی۔ بيا به هغوی ته دَ هغے خبر ورکړی چه څهٔ هغوی کول۔

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ
لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ
اَنَّهَآ اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۹﴾

او هغوی دَ الله پاخه قسمونه خوړلی دی۔ که چرے هغوی له يو نشان راشی نو هغوی به هغه خامخا منی (مومنان به) او وايه چه نشانات هُم او هغه څيز هُم چه کوم به تاسو ته اوښودلے شی په هر کله هغه نشانات راشی نو هغه (خلق) به ايمان (بيا هُم) نه راوړی الله سره دے۔

وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖۤ اَوَّلَ
مَرَّةٍ وَّنَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ ع ۱۳ ۱۹

او مونږ دَ هغوی زړونه او دَ هغوی سترګے په دے وجه چه هغوی په دے (وحی) په ړومبئ ځل ايمان نه وُو راوړے واړوُو۔ او هغوی به دَ هغوی به دَ هغوی په بے واکوکښه په ګډ وډ وسر پريږدو۔

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ﴿١١١﴾

او که چرے مونږ په هغوئ فرښتے نازلولے او مړه هغوی سره خبرے کولے او هر لو څیز مونږ هغوئ ته مخامخ اودرولے نو (بیا) به هم هغوی د الله د غوښتنے نه بغیر ایمان نه وے راوړے بلکه هغوی کښے ډیر څه جاهلان دی۔

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِيْ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا ۭ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿١١٢﴾

او مونږ انسانانو او جناتو کښے سرکشانو له دا شان د هر نبی دښمنان جوړ کړی وو۔ هغوئ کښے بعضے بعضو له دوکه ورکولو د پاره (د هغوئ زړونه کښے) بد خیالونه اچوی چه هسے لباسی خبرے وی او که چرے ستا رب غوښتے نو هغوی به داسے نه کولے۔ بیا نو ته هغوئ نه هم او د هغوئ دروغونه هم سترګے واړوه۔

وَلِتَصْغٰٓى اِلَيْهِ اَفْـِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ ﴿١١٣﴾

او (خدائے تعالیٰ دا دے د پاره غوښتلی دی) چه په قیامت باندے د ایمان نه راوړونکو زړونه (د خپلو عملونو په نتیجه کښے) داسے خبرونه تمیت شی او څکه چه هغوی دا (یعنی دروغ) خوښ کړی او دا شان هغوئ د خپلو عملونو نتیجه اووینی۔

اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ اِلَيْكُمُ الْكِتٰبَ مُفَصَّلًا ۭ وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿١١٤﴾

(ته ووایه چه) آیا د الله نه سوا زه بل څوک فیصله کوونکے اوګورم؟ حال دا چه هغه په تا باندے مفصل کتاب نازل کړے دے او چا له چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوئ ته معلومه دی چه هغه ستا د رب نه په حقو سره نازل کړے شوے دے۔ بیا نو ته د شک کوونکو (جهګړه مارو) نه نشے۔

وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ۭ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿١١٥﴾

او ستا د رب خبره (خوبه) حق او انصاف سره پوره کیګی روے چه) د هغه خبرو له څوک بدلولے نشی هغه ښه آوریدونکے (او) ښه علم لرونکے دے۔

وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِي الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ۝۱۱۶

اوکه چرې ته د زمکې په مخ اوسیدونکو کښې د ډېرو خلقو اومنې نو هغوئ به تا د الله د لارې نه بې لارې کړي هغوئ خو لش ګمان پسې ځي او په ټک خبرې کوي.

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ مَنْ يَّضِلُّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۚ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝۱۱۷

په تحقیق سره ستا رب هغه چاله چه د هغهٔ د لارې نه خطا شي ښهٔ پېژني او هُم هغه په سمه لاره روان خلق ښهٔ پېژني.

فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ۝۱۱۸

بیا که چرې تاسو د هغهٔ په نښانو باندې ایمان راوړئ نو چه په څهٔ د الله نُوم آخستې شوې دې هغې نه خوری.

وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ بِاَهْوَاۗىِٕهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِيْنَ ۝۱۱۹

او په تاسو څهٔ (شوی دی) چه تاسو د هغې نه چه ورباندې د الله نوم آخستې شوې دې سره د دې نهٔ خوری چه هغهٔ (الله) ستا وړاندې هغهٔ ټول په تفصیل بیان کړی دی چه هغهٔ تاسو د پاره حرام کړی دی سوا د دې چه تاسو مجبور شئ او ډیرې (خلق) بې د څهٔ حقیقی علمه په یقین سره د خپلو غوښتنو مطابق (خلقوله) بې لارې کوی. په تحقیق سره ستا رب د حد نه وتونکی خلق ښه پېژني.

وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوْا يَقْتَرِفُوْنَ ۝۱۲۰

او ځان ساتی د ګناه نه که څرګنده وی او (یا) په پټه څوک چه ګناه کښې په تحقیق سره هغوی ته به د هغې چه څهٔ هغوئ کتې بدله ورکیدې شي.

وَلَا تَاْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَاِنَّهٗ لَفِسْقٌ ۭ وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰٓى اَوْلِيٰۗـِٕهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ ۚ وَاِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ۝۱۲۱ ۱۴ ع

او تاسو مهٔ خورئ د هغې نه چه ورباندې د الله نوم نه دې آخستې شوې او دا (کار) په تحقیق سره (فسق) شیطان د خپلو دوستانو په زړونو کښې (داسې خیالات) اچوی دې د پاره چه هغوی تاسو سره په جنګ شی او که چرې تاسو د هغوئ منودل کوئ نو یقینی ده چه تاسو به مشرکان شئ.

اَوَ مَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

او آیا هغه سړے چه مړوی بیا هغه مونږ ژوندئ کړے دی او دَ هغهٔ دَ پاره مو داسے رنړا مقرر کړے دی چه دَ هغے په سوب هغه سړی خلقو کښے ګرزی راګرزی دَ هغهٔ سړی په شان رکیدے شی) دے چه دَ هغهٔ حال دا دے چه هغه په تیرو کښے رپروت) دے (او) هغو نه هیڅکله هُم نه اوزی دا شان کافرانو ته دَ هغوئ عملونه ښائسته ورښودلی شوی دی

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا ؕ وَمَا يَمْكُرُوْنَ اِلَّا بِاَنْفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

او مونږ ه په هره یوه نړئ (علاقه) کښے دَ هغے غټ غټ مجرمان هُم داسے جُوړ کړی دی (یعنی هغوئ خپل بد عملونه ښهٔ شکل کښے وینی) چه دَ هغے نتیجه دا وی چه هغوئ دے (نړئ) کښے (دَ نبیانو خلاف) تدبیرونه کوی دے حقیقت کښے هغوی دَ خپلو ځانونو خلاف تدبیرونه کوی او هغوی پو هیګی نه۔

وَاِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ رُسُلُ اللّٰهِ ؔؕ اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا كَانُوْا يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۲۴﴾

او هرکله چه هغوئ لره څهٔ نشان راشی نو وائی چه ترڅو پورے مونږ ته هم هغه شان کلام رانکړے شی۔ چه دَ الله رسولانو ته ورکړے شوے دے مونږ به هیڅکله ایمان نهٔ راوړو۔ الله (دَ هرچانه) ښهٔ پو هیګی چه هغه خپل رسالت کوم ځائے کیږدی۔ کوم خلقو چه ګناه کړے ده هغوئ ته به په دے سوب چه هغوی (دَ نبی خلاف) تدبیرونه کوی دالله دَ طرف نه خامخا رسوائی او سخت عذاب رسی۔

فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ ۚ وَمَنْ يُّرِدْ اَنْ يُّضِلَّهٗ يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا كَاَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ ؕ كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۵﴾

او چا ته چه الله دَ هدایت ورکولو اراده اوکړی دَ هغهٔ سینه دَ اسلام دَ پاره پرانزی او چاله چه دَ بے لارے کولو اراده اوکړی دَ هغهٔ سینه ډیره تنګه کړی لکه چه هغه په لوړه خیژی (او) دا شان الله په هغه خلقو

باندے چه ایمان نهٔ راوړی عذاب راولی۔

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ؕ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۲۶﴾

او دا ستا د رب نیغه لاره ده۔ مونږ د نصیحت آخستونکی خلقو د پاره نشانات په تفصیل سره بیان کړی دی۔

لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

هغوئ د پاره د هغوئ رب سره د سلامتئ کور (ښیار) دے او څهٔ چه هغوئ کوی د هغے په سوب هغه د هغوی مددگار دے۔

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ۚ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْاِنْسِ ۚ وَقَالَ اَوْلِيٰٓـؤُهُمْ مِّنَ الْاِنْسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَّبَلَغْنَآ اَجَلَنَا الَّذِيْٓ اَجَّلْتَ لَنَا ؕ قَالَ النَّارُ مَثْوٰىكُمْ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۲۸﴾

او هغه ورځ (را یاد ده کړئ) هرکله به چه هغه ټولو له را یوځائے کوئ (ربیا به وائی) اے د جناتو ټولیه! تاسو انسانانو کښے ګنړ کسان ځان سره آخستی وو او د هغوی مدګار انسانان به وائی چه یه ځمونږه ربّ مونږ کښے بعضو د بعضو نه فائده اوچته کړے ده او مونږ خپل هغه وخت ته رسیدلی یو چه تا مونږ د پاره مقرر کړے وه۔ هغه به او فرمائی۔ اُور ستا سو ځائے دے دے کښے به تاسو د ډیرے مودے پورے اوسئ سوا د دے چه د خدائے رضا څهٔ نور څه اوغواړی۔ په تحقیق سره ستا رب د حکمتونو خاوند (او) ډیر علم لرُونکے دے۔

وَكَذٰلِكَ نُوَلِّيْ بَعْضَ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضًا بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۲۹﴾ ع ۱۵

او داشان مونږ بعضے ظالمان د بعضو د دے کار په سوب چه هغوئ ئے کوی، دوستان جوړوو۔

يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

اے د جناتو او انسانانو ټولیه! آیا (هُم) تاسو کښے تاسو رسولان نهٔ دی راغلی چه تاسو ته به ئے ځما آیتونه آورول او تاسو به ئے د نن ورځے د ملاقات نه ویرولی۔ هغوی به او وائی چه مونږه د خپل ځانونو خلاف (ځپله) ګواهی ورکوو او د دُنیا ژوند هغوئ دوکه کښے واچول او هغوئ خپلو ځانونو خلاف (ځپله دا) ګواهی ورکړه چه هغوئ

کافران وُو۔

ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّ اَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ﴿١٣١﴾

دا (دَ رسولانو استول) په دے سوب ووچه ستارب بنارلوله دَ هغو دَ اوسیدُونکو دَ غفلت په حال په ظلم تباه کوونکے نشول۔

وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٣٢﴾

او دَ هر سړی (یا قام) دَ پاره دَ هغهٔ دَ عملونو مطابق درجے مقرر دی او ستا رب دے نه غافل نهٔ دے چه څهٔ هغوئ کوی۔

وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ؕ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنْ بَعْدِكُمْ مَّا يَشَآءُ كَمَآ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ﴿١٣٣﴾

او ستا ربّ دَ چا محتاج نهٔ دے (او) دَ رحمتونو خاوند دے۔که چرے هغه اوغواړی نو تاسو به هلاک کړی او څنګه چه ئے تاسو دَ یو بل قام دَ نسل نه اوډرولی یئ (دا شان به) چاله چه اوغواړی ستاسو (دَ هلاکت) نه روستو ستاسو په ځائے کینوی۔

اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿١٣٤﴾

دَ څهٔ (خبرے) چه تاسو سره وعده لګیا دے کیګی هغه به خامخا سرته رسی او تاسو په هیڅ شان مونږه پاتے نه شئ را وستے۔

قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿١٣٥﴾

ته او وایه چه یه خما قامه تاسو په خپله طریقه عمل کوئ زهٔ به هُم (په خپله طریقه باندے) عمل کوم بیا به زر تاسو ته معلومه شی چه دَ دے کور (یعنی دنیا) انجام چاله ښهٔ کیګی۔ خبره دا ده چه ظالمان (کله هُم) مراد ته نهٔ رسی۔

وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَمَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿١٣٦﴾

او هغوئ یوه برخه هغه پټی یا څناورو کښے دَ الله دَ پاره مقرر کړے ده چه (کوم پټی او څناور) هغهٔ (یعنی خدائے) پیدا کړی دی۔بیا خپل کمان نه وائی چه دومره خو الله دَ پاره ده او دومره څمونږ دَ شریکانو دَ پاره بیا دا هُم دعویٰ کوی چه کومه دَ هغوی دَ شریکانو برخه

وی۔ هغه خو الله ته نه رسی او چه کومه دَ الله (برخه) وی هغه دَ هغوئ شریکانو ته رسی۔ هغوی څومره بده فیصله کوی۔

وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ اَوْلَادِهِمْ شُرَكَآؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ۖ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوهُ ۖ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ (١٣٧)

او دا شان مشرکانو کښے ډیرو له دَ هغوی شریکانو دَ هغوئ دَ هلاکولو د پاره او دَ هغوئ دین په هغوی باندے شکی کولو دَ پاره دَ خپل اولاد قتلول ښائسته ورښودلی وُو او که چرے الله غوښتلے نو هغوئ (مشرکانو) به داسے نهٔ کولے۔ بیا نو ته هغوئ هُم او دَ هغوئ دروغ هُم په خپال کښے مهٔ راوله۔

وَقَالُوا هٰذِهٖٓ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ۖ لَّا يَطْعَمُهَآ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ۚ سَيَجْزِيهِمْ بِمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ (١٣٨)

او هغوئ دَ خپل گمان په بنیاد وائی چه فلانے فلانے څناور او پټی (داسے دی چه دَ هغوئ خوړل) منع دی۔ هغوله لس هُم هغه خوړے شی چه دَ چا پخقله مونږ اُووایو (چه هغوئ دِ اخوری) او (وائی چه) څهٔ څناور داسے دی چه دَ هغوئ شا کانے (دَ سوارلئ دَ پاره) حرامے کړے شوی دی او څهٔ څناور داسے دی چه په هغو باندے هغوئ دَ الله نوم نهٔ اخلی (دا دَ هغوی قول او فعل) په هغهٔ (الله) باندے دروغ تړل دی۔ هغه به هغوئ له دَ دے دروغو په سوب چه هغوئ ئے جوړوی خامخا سزا ورکوی۔

وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰٓى اَزْوَاجِنَا ۖ وَاِنْ يَّكُنْ مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَآءُ ۚ سَيَجْزِيهِمْ وَصْفَهُمْ ۚ اِنَّهٗ حَكِيمٌ عَلِيمٌ (١٣٩)

او هغوی وائی چه څهٔ دَ دغو څناورو په خیټو کښے دی هغه تش څمونږ دَ سړو دَ پاره دی او څمونږ په ښځو حرام شوی دی۔ هن که چرے هغه مړهٔ وی نو هغوئ (ټول) دے کښے شریک دی۔ هغه به خامخا دَ هغوئ دَ خبرے هغوی له سزا ورکوی۔ یادلرئ چه هغه دَ حِکمتُونو خاوند (او) ډیر علم لرُونکے دے۔

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًاۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّحَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ؕ قَدْ ضَلُّوْا وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۴۰﴾

هغه خلق چاچه خپل اولاد په بے وقوفئ بے دَ رتَهٔ) علمه قتل کړے دے اوڅهٔ چه الله هغوئ له ورکړی وُو هغه ئے
ع په الله باندے دروغ تړلو سره (ځان باندے) حرام کړے دی او هغوی نقصان اوچتوونکی شوی دی او بے لارے شوی دی او هغوئ هدایت موندُونکو نه نهٔ شول۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ وَّالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ وَالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ؕ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ۖ وَلَا تُسْرِفُوْا ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۱۴۱﴾

هم هغه (خدائے) دے چاچه دَ لرګو په اډانړو اودریدونکی باغونه اوبے دَڅهٔ اډانړے۔ اودریدونکی باغونه اوکجهورے او فصلونه چه دَ هغے بیلے (بیلے) مزے دی اوزیتون او انار په داسے شکل چه هغوئ (خپلو کښے) یو رنګ (هُم) دی اونهٔ هُم دی پیدا کړی دی۔ هرکله چه دغو وَنو ته میوه اوکی نو تاسو دَ هغو میوے خورئ او دَ هغے دَ پریکولو په ورځ دَ هغهٔ (خدائے) حق ادا کوئ او اسراف نه کارمهٔ اخلئ ولے چه هغه اسراف نه کار اخستونکی نهٔ خوښوی۔

وَمِنَ الْاَنْعَامِ حَمُوْلَةً وَّفَرْشًا ؕ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۙ﴿۱۴۲﴾

او په څاروُو کښے بار اوړونکی څنا ور هُم دی او واړهٔ هُم دی۔ الله چه څهٔ تاسو له درکړی دی تاسو هغے نه خورئ او دَ شيطان په پل پل مهٔ ځئ۔ په تحقیق سره هغه ستاسو ښکاره دُښمن دے۔

ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ نَبِّئُوْنِيْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۙ﴿۱۴۳﴾

(هغهٔ) آتهٔ جوړے (پیدا کړی دی) ګډ کښے دوه۔ اوچیلی کښے دوه۔ تهٔ هغوی ته اووایه چه آیا هغهٔ دوه نران حرام کړی دی یا دوه خزینے یا دَ ښځُنو په خیټو کښے چه کوم څیز هُم (دننه) پروت دے (هغه ئے حرام کړے دے) که چرے تاسو رښتونی یئ نو ما ته دَ څهٔ علم په بنیاد (دا خبره) اووایئ۔

وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ آلذَّكَرَيْنِ
حَرَّمَ أَمِ الْأُنثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ
الْأُنثَيَيْنِ ۖ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ وَصَّاكُمُ اللَّهُ بِهَٰذَا ۚ
فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ
بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٤٤﴾ ع

او (هغهٔ) اوښ کښے دوه او غوا کښے دوه (پیدا کړی
دی) تهٔ هغوئ ته او وایه چه آیا هغهٔ دواړه نران
حرام کړی دی یا دواړه ښځینے یا دَ ښځنو په خیټو کښے
چه څهٔ څیز هُم (دننه) پروت دے (او وایه) آیا
تاسو هغه وخت هر کله چه تاسوله الله دَ دے (خبرے)
حُکم درکړے وهٔ موجود وئ (که چرے تالو) بیا دَ هغهٔ
نه غټ ظالم څوک کیدے شی چه په غرړید لوستر کو
په الله باندے دے دَ پاره دروغ اوتړی چه بے دَ
علمه خلقوله بے لارے کړی په تحقیق سره الله ظالمانو ته
لاره نه ښائی۔

قُلْ لَّا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ
يَطْعَمُهُ إِلَّا أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا
أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ
اللَّهِ بِهِ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ
غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤٥﴾

تهٔ هغوئ ته او وایه چه څهٔ څما په طرف نازل شوی
دی زهٔ خو دے کښے په هغه سړی باندے چه څه څیز
خوړل اغواړی سوا دَ مړیا دَ روانے وینے یا دَ سؤر
دَ غوښے هیڅ څیز حرام نهٔ وینم (دَ سُؤر غوښه) دے
دَ پاره چه هغه ناپاکه ده یا فسق یعنی هغه څیز چه
ور باندے دَ خدائے نه سوا دَ څهٔ بل څیز نوم آخستے
شوے وی ولے څوک (چه دَ دے په خوراک باندے)
مجبوره شی بغیر دَ دے نه چه هغه (دَ شریعت)
مقابله کوونکے وی یا حد نه وتونکے وی نو (هغه دِ یا د
لری چه) په تحقیق سره ستا رب بخښونکے (او) بیا بیا
رحم کوونکے دے۔

وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ ۖ وَمِنَ
الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلَّا مَا
حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ۚ ذَٰلِكَ
جَزَيْنَاهُم بِبَغْيِهِمْ ۖ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿١٤٦﴾

او څوک چه یهودیان دی مونږ په هغوی باندے نوکونه
لرونکی څناور حرام کړی وُو او دَ غوا (غوښے) او کډه (چیلئ)
کښے مونږه په هغوئ باندے دَ رغو دواړو وازدے
سوا دَ هغے وازدے) چه دَ هغؤ ملا کانو یا کلمو یا

هغه کوسره ائخته وي حرام کړي وو دا مونږه هغوی له دَ هغوئ دَ نافرماني په سوب سزا ورکړے وه او په تحقيق سرا مونږ رښتوني يو۔

فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ ۚ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿۱۴۷﴾

بيا که چرے هغوئ ستا انکار اوکړي نو ته رهغوئ ته) اووايه چه ستا سو ربّ دَ بے انتها رَحمتونو خاوند دے او دَ هغه عذاب دَ مجرمانو نه نشي اخوا کيدے۔

سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ۗ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ۖ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴿۱۴۸﴾

چا چه شرک کړے دے هغوئ به خامخا وائي چه که چرے الله غوښتے نو نهٔ به مونږه راو) نه څمونږ پلار نيکونو رکله) شرک کولے اونهٔ به مُـ څه څيز حرام کړ زولے څوک چه هغوئ نه آگاهو رتيرشوی) دی هغوی رهُم) دا شان رڅمونږ دَ وحی) هغه وخت پورے چه هغوی څمونږ عذاب څکلے نهٔ وُه انکار کړے وُه ـ ته هغوئ ته اووايه چه آيا تاسو سره څهٔ داسے علم شته چه تاسو هغه څمونږ دَ خاموش کولو دَ پاره راوړاندے کړے شئ ـ تاسو دَ گمان نه سوا بل څيز پسے نهٔ زئ او تاسو هسے په ټک خبرے کوئ ـ

قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ۖ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۱۴۹﴾

تهٔ اووايه رستا سو دَ بے علمئ خبرے بنائي) چه اثر کوونکے دليل هُم دَ الله سره دے او که چرے هغهٔ غوښتے نو تاسو ټولو ته ئے به نيغه لار ښودلے ـ

قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا ۖ فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴿۱۵۰﴾ ع ۱۸ / ۵

ته رهغوی ته) اووايه چه خپل هغه گواهان را اوغواړئ چه گواهي ورکړي چه الله دا ريعني فلانئ فلانے) څيز حرام کړے دے ـ بيا که چرے هغوئ داسے گواهي ورکړي نو هغوئ سره رملگرتيا کښے) ته داسے گواهي ورنکړے او دَ هغه خلقو غوښتنو پسے مهٔ زه چه څمونږ دَ آيتونو انکار ئے کړے دے او کوم خلق

چه په روستو کیدونکو (خبرو) ایمان نهٔ راوړی او هغوی دَ خپل ربّ شریک (هُم) جوړوی۔

قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا
بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ
مِنْ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلَا تَقْرَبُوا
الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا تَقْتُلُوا
النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ
بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٥١﴾

تهٔ (هغوی ته) اووایه چه راشئ څهٔ چه ستاربّ په تاسو باندے حرام کړی دی زهٔ ئے تاسو ته واوروم (دَ هغهٔ حُکم دے) چه تاسو هغه سره هیڅ یوڅیز له شریک مهٔ جوړوئ او مورپلار سره احسان کوئ او دَ ناچارئ دَ ویرے خپل اولاد مهٔ قتلوئ۔ مونږه تاسوله هُم رزق درکوو او هغوئ له هُم۔ او بدو ته نږدے (دَ بدو سره) نږدے نهٔ شئ نهٔ هغو کښے ښکاره (بدو) ته او نهٔ پټو (بدو) ته۔ او دا چه هغه نفس چه (قتلول ئے) الله منع کړی دی بے (دَ شریعت یا قانون) دَ اجازت نه مهٔ قتلوئ الله تاسو ته دَ دے خبرے په کلکه حُکم درکوی ځکه چه تاسو (دَ بدو نه) منع شئ۔

وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ
أَشُدَّهُ وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ لَا نُكَلِّفُ
نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا
قُرْبَىٰ وَبِعَهْدِ اللَّهِ أَوْفُوا ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ
تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٢﴾

او دا حُکم درکوی چه) تاسو دَ یتیم مال ته دَ هغهٔ دَ ځوانئ پورے په بے احتیاطئ مهٔ نږدے کیګئ او په انصاف ناپ او تول پوره (پوره) ورکوئ۔ مونږ چا له دَ هغهٔ دَ طاقت نه زیات حُکم نهٔ ورکوو او دا چه) هرکله چه تاسو څهٔ (خبره کوئ) وائی نو که هغه سړے (چه دَ چا په حقله خبره شوے وی) مو (څوک) نږدے وی (هُم) دَ انصاف نه کار اخلئ او دَ الله لوظ (هُم) پوره کوئ۔ هغه تاسو باندے دَ دے (خبرے) ځکه تاکید کوی چه تاسو نصیحت واخلئ۔

وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا
السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ
لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٥٣﴾

او په تحقیق سره دا ځما نیغه لار ده بیا نو دا اونیسئ او بیلو بیلو لارو پسے مهٔ زئ کنی نو هغوئ به تاسو دَ هغهٔ (خدائے) دَ لارے نه اخوا دیخوا بوزی هغه

دَ دے (خبرے) تاسو ته ځکه تاکید کوی چه تاسو متقیان شئ۔

ثُمَّ اٰتَیۡنَا مُوۡسَی الۡکِتٰبَ تَمَامًا عَلَی الَّذِیۡۤ اَحۡسَنَ وَ تَفۡصِیۡلًا لِّکُلِّ شَیۡءٍ وَّ هُدًی وَّ رَحۡمَةً لَّعَلَّهُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّهِمۡ یُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۵۴﴾

او بیا چه نیکی نیولے ده په هغهٔ باندے (نعمت) پوره کولو او دَ هرے یوے خبرے دَ وضاحت کولو دَ پاره او دَ هدایت ورکولو او رحم کولو په غرض مونږ موسیٰؑ له کتاب ورکړے وه ځکه چه هغوی دَ خپل رب په ملاقات باندے ایمان راوړی۔

وَ هٰذَا کِتٰبٌ اَنۡزَلۡنٰهُ مُبٰرَکٌ فَاتَّبِعُوۡهُ وَ اتَّقُوۡا لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ ﴿۱۵۵﴾

او دا (قرآن) داسے کتاب دے چه مونږ نازل کړے دے (او دا) برکت ناک دے۔ بیا نو دے پسے زئ او تقویٰ اوکړئ چه په تاسو رحم اوکړے شی۔

اَنۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اُنۡزِلَ الۡکِتٰبُ عَلٰی طَآئِفَتَیۡنِ مِنۡ قَبۡلِنَا ۪ وَ اِنۡ کُنَّا عَنۡ دِرَاسَتِهِمۡ لَغٰفِلِیۡنَ ﴿۱۵۶﴾

(هسے نه) چه تاسو (لوه ورځ دا) او وائی چه ځمونږ نه آگاهو نش په دوو جماعتونو باندے کتاب نازل شوے وه او مونږ دَ هغو (کتابونو) دَ لوستونه دَ سره غافل وُو۔

اَوۡ تَقُوۡلُوۡا لَوۡ اَنَّاۤ اُنۡزِلَ عَلَیۡنَا الۡکِتٰبُ لَکُنَّاۤ اَهۡدٰی مِنۡهُمۡ ۚ فَقَدۡ جَآءَکُمۡ بَیِّنَةٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ وَ هُدًی وَّ رَحۡمَةٌ ۚ فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنۡ کَذَّبَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَ صَدَفَ عَنۡهَا ؕ سَنَجۡزِی الَّذِیۡنَ یَصۡدِفُوۡنَ عَنۡ اٰیٰتِنَا سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ بِمَا کَانُوۡا یَصۡدِفُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾

یا (هسے نه دا) او وائی چه که چرے مونږ باندے کتاب نازل شوے وے نو په تحقیق سره مونږ به هغوئ نه زیات هدایت موندلے۔ بیا نو ستاسو رب نه تاسو له ښکاره دلیل او هدایت او رحمت راغلے دے بیا نو ریادلړئ چه) چا چه دَ الله دَ آیتونو انکار اوکړو او هغو رباندے ایمان (راوړونه) ایسار شو دَ هغهٔ نه غټ ظالم به څوک وی مونږ به ژر هغوله چه ځمونږ آیتونو رباندے ایمان راوړو) نه پائے کیگی دَ هغوی دَ ایساریدو په سوب دَ تکلیف ورکوونکی عذاب سزا ورکوو۔

هَلۡ یَنۡظُرُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ تَاۡتِیَهُمُ الۡمَلٰٓئِکَةُ اَوۡ یَاۡتِیَ

هغوئ نش دَ دے خبرے انتظار کوی چه هغوی سره

رَبُّكَ اَوْ يَاْتِيَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ ۗ يَوْمَ يَاْتِيْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا ۗ قُلِ انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۵۹﴾

فرښتے راشي يا ستا رب راشي يا ستا دَ رب بعضے نښانات راشي کومه ورځ به چه ستا دَ رب بعضے نښانات ښکاره شي (هغه ورځ به) هيچا له چه دے نه ړومبئ ئے ايمان نهٔ وي راوړے يا دَ خپل ايمان په سوب ئے خير نهٔ وي حاصل کړے دَ هغهٔ ايمان راوړل نفع نهٔ ورکوي ته اووايه چه تاسو اِنتظار کوئ مونږ به هُم په تحقيق سره اِنتظار کوو۔

اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ ۗ اِنَّمَآ اَمْرُهُمْ اِلَى اللّٰهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۱۶۰﴾

کومو خلقو چه خپل دين برخے برخے کړو او ټولي ټولي شول ستا هغوئ سره هيڅ تعلق نشته دے۔ دَ هغوئ معامله بس دَ خدائے په لاس کښے ده بيا چه څهٔ به هغوي کول هغه به دَ هغے هغوئ له خبر ورکړي۔

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۱﴾

چا چه نيکي کړے ده دَ دے يو په لس به دَ هغوي حق وي او چه چا بدي کړے ده هغوي ته به هغه هومره سزا ورکولے شي او په هغوئ به ظلم نهٔ کيږي۔

قُلْ اِنَّنِيْ هَدٰىنِيْ رَبِّيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۶۲﴾

تهٔ (هغوئ ته) اووايه چه په تحقيق سره څما رب ما ته نيغه لاره ښودلے ده۔ دَ داسے دين په طرف چه په کښے هيڅ کوږوالئ نشته يعني دَ ابراهيمؑ دَ دين په طرف چه په صداقت ولاړ وُه او دَ مشرکانو نه نهٔ وُه۔

قُلْ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۙ ﴿۱۶۳﴾

تهٔ (هغوئ ته) اووايه چه څما مونځ او څما قرباني او څما ژوند او څما مرګ هُم دَ الله دَ پاره دي چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔

لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۶۴﴾

(او) دَ هغهٔ څوک شريک نشته او ما ته دَ دے (خبرے) حکم شوے دے او زهٔ دَ ټولو نه ړومبئ حکم منونکے يم۔

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْ رَبًّا وَّهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۗ وَلَا تَكْسِبُ

تهٔ او وايه آيا زهٔ دَ الله نه سوا (بل چالره) دَ رب په

كُلُّ نَفْسٍ اِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۚ
ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ
تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

حیث اوغوارم۔ حال دا چه هغه دَ هر یو څیز پالونکے دے او هر یو نفس چه څهٔ کټی دَ هغے (اثر) په هغه پر یو زی او هیڅ یو پیټیٔ اوچتونکے دَ بل پیټیٔ نشی اوچتولے۔ بیا دَ خپل رب ته ستاسو تلل دی۔ بیا به هغه چه کومه خبره کښے تاسو اختلاف کولو دَ هغے نه به مو خبر کړی۔

وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ
فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ ۭ اِنَّ رَبَّكَ
سَرِيْعُ الْعِقَابِ ۡ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۵﴾ ع

او هُم هغه دے چه چا تاسو په دُنیا کښے دَ (ړومبنو) په ځائے راوستی یئ او په تاسو کښے بعضو له ئے په بعضو باندے په درجه کښے فضیلت ځکه ورکړے دے چه څهٔ هغه تاسو له درکړی دی په هغے ستاسو آزمینبت اوکړی۔ ستاسو دَ رب سزا په تحقیق سره زر راتلونکے ده او هغه په تحقیق سره ډیر بخښونکے (او) ډیر رحم کوونکے دے۔




سورة اعراف - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے دوه سوه او اوه آیتونه او څلور ویشت رکوع دی.

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ⑴

(شروع کوم) د الله په نوم چه بے کچه مهربانه او بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

الٓمّٓصٓ ⑵

زهٔ خدائے دَ ټولونه زیات علم لرُونکے او صادق یم۔

كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ⑶

(دا قرآن) یو عظیم الشان کتاب (دے چه) ستا په طرف ئے نازل کړے دے (تا په خپله نهٔ دے جوړ کړے) ستا په سینه کښے دَ دے په سوب څه قسم له تنګی پیدا نشی (دَ دے دَ نازلولو غرض دا دے چه) تهٔ دَ دے په سوب مخاطب خلقو له دَ راتلوُنکے عذاب نه) هوښیار کړے او دا (کتاب) دَ مومنانو دَ پاره په زړول دَ یاد ستا نلو دے۔

اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ⑷

(مونږ دغه خلقو ته وایو چه) کوم (کلام) ستاسو دَ رب دَ طرف نه په تاسو نازل شوے دے هغه منئ۔ او دَ دے (خدائے) نه سوا چه کوم (ستاسو په خیال کښے) چه نور کارساز دی دَ هغوی مهٔ منئ۔ وے خبره دادہ چه تاسو هیڅ ونصیحت نهٔ اخلئ۔

وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا فَجَآءَهَا بَاْسُنَا بَيَاتًا اَوْ هُمْ قَآئِلُوْنَ ⑸

او ډیر داسے کلی (ښارونه) دی چه کوم له مونږ هلاک کړل (دَ هغو تفصیل دا دے چه) هغوی طرف ته ځمونږ عذاب دَ شپے په اوده کیدو په وخت یا (دَ غرمے) دَ پرکالۍ په وخت راغے۔

فَمَا كَانَ دَعْوٰىهُمْ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَآ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ⑹

بیا نو هغه وخت هر کله چه هغوئ له ځمونږ عذاب راغے - دَ هغوئ په ژبه لس دا فقره وه چه په تحقیق .

سره مونږ ظالمان وُو۔

فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ وَلَنَسْـَٔلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ ۝۶

بیا نو مونږ به د هغه خلقو نه (هُم) خامخا پوښتنه کووچا ته چه رسُولان استولی شوی وُو او مونږ به د رسُولانو نه هُم خامخا تپوس کوُو۔

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ وَّمَا كُنَّا غَآئِبِيْنَ ۝۷

بیا به مونږ خامخا د هغوئ وړاندے د خپل علم مطابق حقیقت بیانوو او مونږ کله هُم د هغه خلقو نه غائب شوی نهٔ یو (ئل به مو د هغوئ حالات کتل)

وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ الْحَقُّ ۚ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝۸

او هغه (یعنی د قیامت په) ورځ د ټولو عملونو وزن کول یو ثابت شوے حقیقت دے چه د چا وزنونه درانهٔ شو هغه خلق به مراد مونده وُنکی وی۔

وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَظْلِمُوْنَ ۝۹

او د چا وزنونه چه سپک شول نو (پوهه شه چه) دا ے خلق د خپلو ځانونو په خپله نقصان او چتوُونکی دی (او هغوئ خپل ځانُونه نقصان کښے اچولی دی) دا ځکه شوی دی چه هغوئ ځمونږ د آیتونو (په حقله) د ظلم نه کار اخستو۔

وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ فِى الْاَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ۝۱۰ ع ۸

او مونږ خامخا تاسو له په زمکه کښے طاقت درکړے وه او دے کښے مو تاسو د پاره د ژوند تیرولو (قسم قسم) سامان مقرر کړے وه وے تاسو هیڅ شکرنهٔ کوئ۔

وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ ۖ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ لَمْ يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ۝۱۱

او مونږ ره مبئ تاسو په مُبهم شکل کښے پیدا کړی وئ۔ د هغے نه پس مو تاسو له (ستاسو د حال مطابق) شکلونه درکړی وُو۔ بیا ملائیکو ته مو وئیلی وُو چه د آدم اطاعت اوکړئ په دے نو فرښتو د آدم اطاعت اوکړو وے ابلیس (اونکړو) هغه د اطاعت کوُونکو نه نشو۔

قَالَ مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ ۭ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ

(په دے باندے خدائے هغهٔ ته) اوئیل چه سرهٔ ځا

خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾

دَ حُکمه ته دَ سجدہ کولو نه چا منع کړے وے هغهٔ ځواب ورکړو چه زه خو دَ دهٔ (آدم) نه ښهٔ یم. تا ځما په فطرت کښے اُور ایښے دے او دَ ده په فطرت کښے دَ لمدے خاورے صفت ایښے دے۔

قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُوْنُ لَكَ اَنْ تَتَكَبَّرَ فِيْهَا فَاخْرُجْ اِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيْنَ ﴿۱۳﴾

(الله) او فرمائیل (که چرے داخبره ده نو) ته دَ دے (جنّت) نه لاړ شه ولے چه تا سره نهٔ ښائی چه دے کښے کِبر نه کار واخلے بیا نو (دے ځائے نه) اُوزه (ځکه چه) ته دَ ذلیل خلقو نه ئے۔

قَالَ اَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿۱۴﴾

هغهٔ اووئیل (اے ځما ربّ) ماله تر هغے ورځے مولت را کړه هرکله به چه هغوی اوچتولے شی۔

قَالَ اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ﴿۱۵﴾

(الله) ځواب ورکړو تا ته مولت درکړے شوے دے۔

قَالَ فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۶﴾

هغه اووئیل چه تا خو زهٔ هلاک کړم نو دے دَ پاره به زهٔ دَ هغوئ (انسانانو) دَ پاره ستا په نیغه لاره باندے ناست یم۔

ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمْ مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ اَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ ؕ وَلَا تَجِدُ اَكْثَرَهُمْ شٰكِرِيْنَ ﴿۱۷﴾

بیا به زهٔ هغوی لره راځم دَ هغوئ دَ وړاندے نه هُم او دَ هغوئ دَ روستو نه هُم دَ هغوئ دَ ښئ طرف نه هُم او د هغوئ دَ کس طرف نه هُم (چه هغوئ اوغلوم) او ته به هغوئ کښے ډیر ځنے شکر کوونکی او نهٔ وینے۔

قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا ؕ لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۸﴾

(الله) او فرمائیل۔ دے ځائے نه اُوزه۔ تل به ستا (غندنه کیگی) بدو ئیلے شی او ته به دَ خدائے دَ دره (رټلے شے۔ څوک به چه هغوئ (انسانانو) کښے ستا منی تا سو ټولو نه به زهٔ جهنّم ډکوم۔

وَيٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُوْنَا مِنَ

او یَه آدمه ! (زهٔ تا ته وایم چه) ته او ستا ملګرے دِ جنت کښے اوسی۔ بیا چه تا سو چرته نه غواړئ خوری

الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۰﴾

(او ځکئ) او دے ونے ته مۀ نزدے کیګئ ګنی تاسو به ظالمان شئ۔

فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطٰنُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وٗرِيَ عَنْهُمَا مِنْ سَوْاٰتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهٰىكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ﴿۲۱﴾

دے باندے شیطان دَ هغوئ دواړو (یعنی آدم او دَ هغه دَ ملګری په زړونو) کښے وسوسه واچوله ځکه چه څه دَ هغوئ په ننګ کښے هغوئ نه پټ ساتلی شوی وُو هغه ښکاره کړی او وے وئیل چه دَ دے ونے نه ستاسو ربّ تاسو بس دَ دے دپاره منع کړی ئی چه چرته تاسو دواړه فرښتے نشئ یا تاسو دواړه تل ژوند او نۀ موئ۔

وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۲﴾

او شیطان هغوئ ته په قسمونو خوړلو او وئیل چه زۀ ستاسو دَ دواړو خیرخواه یم۔

فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُوْرٍ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۳﴾

بیا هغوئ دواړو له ئے په دهوکه دَ خپل ځائے نه بے ځایه کړل۔ بیا هرکله چه هغوئ دواړو دَ هغے ونے نه (څه) اوڅکل نو دَ هغوئ ننګونه په هغوئ باندے ښکاره شول او هغوئ په ځانونو باندے دَ جنت دَ زینت سامانونو نه انخلولو باندے لګیا شول او هغوی دواړه دَ هغوئ رب اوغوښتل (او ورته ئے او وئیل) آیا ما تاسو دواړه دَ دے ونے نه منع کړی نۀ وئ۔ او دا مې درته نۀ وو وئیلی چه شیطان ستاسو دَ دواړو ښکاره ښکاره دښمن دے۔

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۴﴾

هغوئ دواړو او وئیل، یه خمونږ ربّ! مونږ په خپلو ځانونو ظلم اوکړو او که چرے ته مونږ او نۀ بخښے او په مونږ باندے رحم او نۀ کړے نو مونږ به دَ نقصان اوچتوونکو نه شُو۔

قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ

(بیا الله) او فرمائیل، تاسو ټول دے ځائے نه اوزئ

مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۲۵﴾

تاسو کښې به بعضې دَ بعضو دُښمنان يئ او تاسو دَ پاره به دے زمکه کښې ځائے وی او څه موده پورے به فائده اوچتول وی.

قَالَ فِيْهَا تَحْيَوْنَ وَفِيْهَا تَمُوْتُوْنَ وَمِنْهَا تُخْرَجُوْنَ ﴿۲۶﴾ ع

(ربِّ العزت) او فرمائيل. دے زمکه کښې به تاسو ژوندی يئ او دے کښې به تاسو مرئ او دَ دے نه به تاسو راويستلے شئ.

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ؕ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ۙ ذٰلِكَ خَيْرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾

يَه دَ آدم اولاده! مونږ تاسو دَ پاره يو داسے لباس پيدا کړے دے چه ستاسو دَ پټولو ځايونه پټوی او زينت (هُم) دے او دَ تقوىٰ لباس (رخو) تهولو نه ښهٔ دے دا (دَ لباس حُکم) دَ الله دَ حکمونو نه دے ځکه چه تاسو نصيحت واخلئ.

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا ؕ اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۲۸﴾

يَه دَ آدم ځامنو! شيطان تاسو (دَ الله دَ لارے نه) او نهٔ غلوی ځنګه چه هغه ستاسو مور پلار دَ جنت نه وليستلی وُو. دَ هغوئ دواړو نه دَ هغوئ جامے تختولے وے. دے دَ پاره چه په هغوئ دَ هغوئ پرده کښې پټ ساتونکی ځيزونه څرګند کړی هغه او دَ هغه قبيله تاسو ته دَ هغه ځائے نه ګوری کوم ځائے نه چه تاسو هغوئ نه وينئ مونږ شيطانانو له دَ کافرانو دوستان جوړ کړی دی.

وَاِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً قَالُوْا وَجَدْنَا عَلَيْهَآ اٰبَآءَنَا وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ ؕ اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۹﴾

او هر کله چه هغوئ (کافران) څه بد کارکوی نو وائی چه مونږ خپل پلار نيکونه په دے ليد لی وُو او الله دَ دے مونږ ته حُکم راکړے دے ته او وايه الله هيڅکله دَ بدو خبرو حُکم نهٔ ورکوی. آيا تاسو دَ الله په حقله هغه خبرے په دروغه وائئ چه تاسو ته ئے علم نشته.

قُلْ اَمَرَ رَبِّيْ بِالْقِسْطِ ۣ وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۬ كَمَا بَدَاَكُمْ

ته او وايه ځما ربّ ما ته دَ انصاف حُکم کړے دے او دا چه دَ هر جمات سره خپله توجه سمه کړئ او دَ

تَعُوْدُوْنَ ﴿۲۹﴾

الله عبادت خالص دَ هغهٔ حق گنړئ او هغه بلئ. څنګه چه هغهٔ تاسو شروکړی وئ بیا به یوه ورځ تاسو به دَ هغې حال شئ۔

فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلٰلَةُ ۭاِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَاۗءَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۳۰﴾

یو فریق ته هغهٔ هدایت اوکړو وے یو بل فریق دے چه په چا باندے ګمراهی واجب شوے ده (یعنی هغه دَ ګمراهئ مستحق شوے دے) هغوئ دَ الله په ځائے شیطانان خپل دوستان جوړکړی دی او هغوئ خیال کوی چه هغوئ هدایت موندلے دے۔

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّكُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾ ع

یه دَ آدم ځامنو! دَ هرجمات ځوا کښے دَښائیست سامان کوئ او خورئ څکئ او اسراف مهٔ کوئ ځکه چه هغه (الله) اسراف کوونکی نهٔ خوښوی۔

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ۭ قُلْ هِىَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۳۲﴾

تهٔ او وایه چه دَ الله هغه زینت کوم چه هغه خپلو بندیانو دَ پاره راوښکلے دے چا حرام کړے دے (هُم دغه شان رزق کښے پاک څیزونه هُم (چا حرام کړی دی) ته او وایه دا (اصل کښے) دے دُنیا کښے (هُم) دَمومنانو دَپاره دی او دَ قیامت په ورځے به بس دَ هغوی دَ پاره وی - دا شان مونږ خپل نشانات دَعلم لرونکو دَ پاره په تفصیل بیانوو۔

قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَي اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۳﴾

تهٔ او وایه (چه) ځما رب بس بدعملونه که هغهٔ ښکاره وی یا پټ او ګناه او ناحقه شرکشی حرام کړی دی او دا خبره چه تاسو الله سره څهٔ داسے وجود لره چه دَ هغے دَ پاره هغهٔ (الله) څهٔ دلیل نهٔ دے راستولے شریک اوګرزوئ۔

وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَاۗءَ اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۳۴﴾

او دَ هرقام دَ پاره (دَ ختمیدو) یو وخت مقرر دے بیا هرکله چه دَ هغوئ (دَ ختمیدو) وخت راشی نو

هغوئ نهٔ خو دَ دے نه یو ساعت روستو پاتے کیدے شی نهٔ (یو ساعت) وړاندے وتے شی۔

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ ۙ فَمَنِ اتَّقٰى وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٣٥﴾

یَهٔ دَ آدم ځامنو! که چرے تاسو ته ستاسو نه رسولان راوستولے شی دا شان چه هغوی ستاسو په وړاندے ځما آیتونه آوروی نو چه کوم خلق تقویٰ اوکړی او اصلاح اوکړی هغوی ته به (را تلونکی وخت کښے) هیڅ قسم ویره نهٔ وی او نهٔ به هغوی (دَ تیر وخت په څه خبره) غمژن وی۔

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٣٦﴾

او هغه خلق چه ځمونږ دَ آیتونو انکار کوی او هغونه کِبر سره مخ آړوی هغوی دوزخیان دی۔ هغوئ به دے (دوزخ) کښے تر ډیرے مودے پراته وی۔

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۭ اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ ۭ حَتّٰٓي اِذَا جَاۗءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓي اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿٣٧﴾

بیا (او وائی چه) دَ هغهٔ نه غټ ظالم څوک کیدے شی چه په الله باندے په دروغه افترا کوی یا چا چه دَ الله دَ آیتونو نه انکار کړے وُه هغه خلقو ته به دَ مقرر شوے سزا نه خپله برخه رسی تر هغے پورے چه هرکله هغوئ له ځمونږ فرښتے دَ هغوئ رُوحُونو اخستو له راشی نو هغوی به وائی چه هغه (شریکان) کوم ځائے دی څوک به چه تاسو دَ الله نه سوا بلل۔ هغه وخت به دا خلق ځواب ورکړی چه هغوئ خومونږ نه غائب شوی دی او هغوئ به په خپلو ځانونو باندے خپله گواهی ورکوی چه هغوئ انکار کوونکو کښے شامل وُو۔

قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ فِي النَّارِ ۭ كُلَّمَا دَخَلَتْ اُمَّةٌ لَّعَنَتْ اُخْتَهَا ۭ حَتّٰٓي اِذَا ادَّارَكُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا ۙ قَالَتْ اُخْرٰىهُمْ لِاُوْلٰىهُمْ رَبَّنَا هٰٓؤُلَاۗءِ اَضَلُّوْنَا فَاٰتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ

(بیا به الله هغوئ ته) اووائی زئ لاړ شئ او ور کښے هغهٔ اُمتُونو سره شئ چه تاسو نه آگاهو جِنّاتو او انسانانو کښے تیر شوی دی۔ هرکله به چه یو قام (اور کښے) داخل شی نو (دَ ځان نه پرومبئ) خور (یعنی قام) باندے

قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۸﴾

به لعنت کوی ترهغې چه هرکله تول هغه (اور) کښې داخل شی نو هغوی کښې آخری (ردا خلیدونکی تولی) به دَ خپل ځان نه رومبئ (تولی) په حقله وائی به څمونږه رب! دا خلقو مونږه بے لارے کړو بیا نو ته هغوی ته دوزخ کښې څوچنده زیات عذاب ورکړه (په دے باندے به هغه) او فرمائی - تولو ته لګیا دے زیات عذاب رسی ولے تاسو ته علم نشته -

وَقَالَتْ اُوْلٰىهُمْ لِاُخْرٰىهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿۳۹﴾

او (دے باندے به) دَ هغوئی نه رومبئ قام دَ ځان نه روستنی قام ته او وائی تاسوله په مونږ باندے څه فضیلت نهٔ وه (چه تاسو ته دِ لږ عذاب درکړے شی) بیا نو دَ خپلو عملونو له کبله عذاب اوڅکئ -

ع

اِنَّ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَلَا يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ فِيْ سَمِّ الْخِيَاطِ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۴۰﴾

هغه خلق چا چه څمونږ دَ آیتونو نه انکار کړے دے او دَ کبر نه ئے دَ هغو نه مخ اړولے دے هغوئ دَ پاره به دَ آسمان دروازے نشی پرانستے کیدے او هغوئ به جنّت کښے نهٔ داخلیګی ترهغې چه اوښ دَ ستنے به سُخم کښے ور داخل شی او مونږ مجرمانو ته داشان جزا ورکوو -

لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۱﴾

او دَ هغوی تولائی به جهنّم وی او دَ هغوی دَ پاسه به هُم اغوستونکی (څیزونه) دَ جهنّم نه وی او داشان مونږ ظالمانو له جزا ورکوو -

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ ۡ اُولٰٓىِٕكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۴۲﴾

او کوم خلقو چه ایمان راوړو او چا چه نیک عمل کړے دے (هغوئ دِ یاد لری چه) مونږ په چا دَ هغهٔ دَ طاقت نه زیات نه زمه داری نهٔ اچو - هغوی جنتیان دی (او) دے کښے به تل ترتله اوسی -

وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ ۚ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا لِهٰذَا ۣ وَمَا

او مونږ به دَ هغو جنتیانو په سینو کښے (دَ یو بل په حقله) تول خیرئ بهر (وغورزوو او نهرونه به دَ

كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَآ اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ ۚ لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۗ وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٤٣﴾

هغوئ په قبضه کښے بهيگی او هغوئ به وائی هر قسم تعريف هُم الله له دے چا چه مونږ ته دَ دے (جنت) لاره اوښودله اوکه چرے الله مونږ ته دَ دے لاره نهٔ وے ښودلے نو مونږ کله هُم (دَ دے) لاره نشوه موندلے. په تحقيق سره خمونږ دَ رب رسولان مونږ له حقو سره راغلی وُو او هغوئ ته به په اوچت آواز اووئيلے شی چه دا هغه جنت دے دَکوم چه تاسو دَ عملونو له کبله وارثان شوی يئ.

وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبَ النَّارِ اَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ۗ قَالُوْا نَعَمْ ۚ فَاَذَّنَ مُؤَذِّنٌۢ بَيْنَهُمْ اَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٤﴾

او جنتيان به دوزخيانو ته وائی چه مونږ سره خمونږ رب چه کومه وعده کړے وه هغه خو مونږ رښتونے اوليده. آيا تاسو هُم هغه وعده چه ستا رب کړے وه رښتونے ليدلے ده. دے باندے به (دوزخيان) وائی - او (راو) بيا به يو آواز ورکوونکے دَ هغوی ترمنځه په زوره نارهٔ کړی چه په دغو ظالمانو باندے دِ دَ خدائے لعنت وی.

الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ﴿٤٥﴾

چه دَ الله دَ لارے نه به ئے (خلق) منع کول او دے لاره کښے به کږی لټوله او هغوئ ورسره دَ روستو راتلونکی (ژوند) انکاريان وُو.

وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا بِسِيْمٰىهُمْ ۚ وَنَادَوْا اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۟ لَمْ يَدْخُلُوْهَا وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ﴿٤٦﴾

او دغو دواړو (يعنی دوزخيانو او جنتيانو) کښے به يوه پرده وی او په اعراف به څه خلق وی چه ټول دَ مخونو دَ نښونه پيژنی او هغوئ به دَ جنتيانو په (ليدو) نارهٔ کړی په تاسو باندے دِ سلام متی وی. هغوی (جنتيان به) لا پورے جنت کښے داخل شوی نهٔ وی ولے جنت ته دَ تلو طمع به لری.

وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ قَالُوْا رَبَّنَا

او هر کله به چه دَ هغوئ (جنتيانو) نظرونه دَ دوزخيانو

لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٧﴾ ع ۱۲

په طرف اړولے شی نو هغوئ به وائی. يه څمونږه ربه! مونږ دَ ظالم قام نه مهٔ کړے.

وَ نَادٰۤى اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ قَالُوْا مَاۤ اَغْنٰى عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَ مَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٤٨﴾

او دَ اعراف څه خلق به (دوزخی) خلقو ته چه چا له هغوئ دَ هغوی دَ مخونو دَ نښو نه پيژندل وائی چه نهٔ ستاسو شمير تاسو ته څهٔ فائده اورسوله او نهٔ (ستاسو هغو دعوو) چه دَ هغے له کبله تاسو کبر کولو.

اَهٰۤؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ ؕ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَ لَاۤ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ﴿٤٩﴾

(بيا به جنتيانو ته اشاره اوکړی او دوزخيانو ته به وائی چه) آيا دا هُم هغه خلق دی چه دَ چا په حقله به تاسو قسمونه خوارهٔ او وئيل به مو چه الله به کله هغوئ سره دَ رحمت سلوک نهٔ کوی (بيا به دغو جنتيانو ته چه جنت ته دَ ورتلو په انتظار کښے به ولاړ وی الله او وائی چه) زئ تاسو جنت کښے داخل شئ نهٔ به تاسو ته دَ راتلونکی وخت په حقله څه ويره وی او نهٔ به تاسو دَ تير وخت څهٔ واقعه خفه کوی.

وَ نَادٰۤى اَصْحٰبُ النَّارِ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ اَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ؕ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٥٠﴾

او دوزخيان به جنتيانو ته اووائی چه لږ غوندے اوبه څمونږ طرف ته هم راواړوئ يا څهٔ چه تاسو ته الله درکړی دی دَ هغے نه مونږ له هُم څه راکړئ (په دے به جنتيان) اووائی چه الله دا دواړه څيزونه په کافرانو باندے حرام کړی دی.

الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّ لَعِبًا وَّ غَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ نَنْسٰىهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَ مَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿٥١﴾

(دا هغه کافران) چا چه خپل دين نه ټوقه لوبه جوړه کړے وه او دَ دُنيا ژوند هغوئ په دهوکه کښے اچولی وُو. بيا ن (خدائے هغوئ ته وائی چه) مونږ به هُم هغوئ پريږدو څنګه چه هغوی دَ خپلے دے ورځے دَ ملاقات (خيال) هم و دَسره پريښے وُه - او په سوب دَ دے چه هغوی به ضد څمونږ دَ آيتونو انکار کولو.

وَ لَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّ

او مونږ هغوئ له يو عظيم الشان کتاب ورکړے دے

رَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾

چه هغه مونږ دَ علم په بنیاد ښهٔ په تفصیل بیان کړے دے (ددے حال کښے چه) هغه دَ مومنانو دَ پاره هدایت او رحمت دے۔

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ ۭ يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ۭ قَدْ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۵۳﴾ ع ۲ ۱۳

آیا (نن) دا خلق دَ دے کتاب (دَ ذکرشوو خبرو) دَ حقیقت دَ ښکارېدو انتظار کوی کومه ورځ به چه دَ دے حقیقت ښکاره شی۔ هغه خلق چا چه (ددے نه) آګاهو دا پریخے وُه، وائی به (چه) ځمونږ رسولانو به چه څه وئیل رښتیا به ئے وئیل بیا آیا ځمونږ څوک سفارش کوونکی شته چه ځمونږ سفارش اوکړی یا (آیا دا کیدے شی چه) مونږ بیا دُنیا ته پسته کړے شو، نو مونږ چه څهٔ (بد) عملونه کول دَ هغو په ځائے به نور (نیک) عملونه کول شروکړو۔ هغه خلق (چه پورته ئے ذکرشوے دے) په تحقیق سره نقصان کښے پریوتی دی (او خپل ځانونه ئے هُم هغوی نقصان کښے اچولی دی) او چه کومے خبرے هغوی جوړولو نو کښے ترے او بیانولے (نن) هغوئ نه ورکے شوے۔

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۣ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا ۙ وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۢ بِاَمْرِهٖ ۭ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ ۭ تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۵۴﴾

په تحقیق سره ستاسو رب الله دے چا چه آسمانونه او زمکه شپږ ورځنه کښے پیدا کړی دی۔ بیا (ددے نه پس) هغه (دَ حکومت) په تخت ښه قرارشو هغه شپه په ورځ آچوی چه هغهٔ زر نیسل غواړی او نمر او سپوږمئ او ستوری هغهٔ دا شان پیدا کړی دی چه هغه ټول دَ هغهٔ په حُکم کارکوی۔ واورئ! پیدا کول هُم دَ هغه کار دے او قانون جوړول هُم (دَ هغه کار دے) الله دَ برکتونو خاوند دے چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔

اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۵۵﴾

تاسو خپل رب په ښکاره هُم او په پټه هُم بلئ. په تحقیق سره هغه د حد نه وتونکی نه خوښوی.

وَلَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا وَادْعُوْهُ خَوْفًا وَّطَمَعًا ؕ اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۶﴾

او زمکه کښې د دے د اصلاح نه پس فساد مه کوئ او هغهٔ (خدائے) نه په ویره او په اُمید مدد غواړئ. په تحقیق سره د الله رحمت محسنانو ته نزدے دے.

وَهُوَ الَّذِیْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ بَيْنَ يَدَیْ رَحْمَتِهٖ ؕ حَتّٰۤى اِذَآ اَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۷﴾

او هُم هغه دے چه هوا گانے په خپل رحمت رومبئ د زیرئ ورکونو د پاره راستوی تر هغے پورے چه هرکله هغه درنے وریځے اوچتوی مونږ هغو لره د یو مړ ملک په طرف بوزو بیا مونږ دغو نه اوبه وروُ. بیا مونږ د دے اوبو په سوب د هر قسم میوے پیدا کوُ دغه شان مونږ مړی را او باسو چه تاسو نصیحت حاصل کړئ.

وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِیْ خَبُثَ لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ؕ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ ﴿۵۸﴾

او ښهٔ ملک (چه خاوره ئے ښه وی) د هغے بوټی د خپل رب په حکم زرغونیگی او هغه (ملک) چه خاوره ئے خرابه وی د هغے پیداوار بے کار اوزی دا شان مونږ د شکر
ع ۷ ۱۴ کوونکی قام د پاره (خپل) نښانات په تفصیل بیانوو.

لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۵۹﴾

مونږ نوح په تحقیق سره د هغهٔ د قام په طرف استولے دے بیا (هرکله چه هغه هغوئ له راغے نو) هغه اووئیل. اے ځما قامه! د الله عبادت کوئ. د هغهٔ نه سوا ستاسو بل معبود نشته. زهٔ په تاسو د یوئے ورځے د عذاب نازلیدو نه ویریگم.

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۶۰﴾

د هغهٔ د قام مشرانو (غټو خلقو) اووئیل. مونږ وینُو چه ته په ښکاره بے لارے ئے.

قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِیْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّیْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۱﴾

بیا هغهٔ (یعنی نوح) اووئیل اے ځما قامه! ما کښے څوڅهٔ گمراهی (خبره) نشته بلکه زهٔ خو د ټولو جهانونو د رب د طرف نه رسول یم.

أُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَأَنْصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٢﴾

(او) تاسو ته دَ خپل رب پیغام رَسوم او ستاسو ښیګړه غواړم او دَ الله دَ ورکړی شوی علم په مدد هغه څه په خبریم چه تاسو ترې خبر نهٔ یئ۔

أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٦٣﴾

آیا تاسو په دے خبره باندے حیرانیږئ چه تاسو له ستاسو دَ رب نه هُم تاسو کښے په یو سړی باندے دَ نصیحت نه ډک کلام نازل شوے دے۔ دے دَ پاره چه تاسو هوښیار کړی او څکه چه تاسو تقویٰ دارشئ او دَ دے په نتیجه کښے په تاسو باندے رحم اوشی۔

فَكَذَّبُوْهُ فَأَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ فِي الْفُلْكِ وَأَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۭ إِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا عَمِيْنَ ﴿٦٤﴾ ع ١٥

(ولے) بیا (هُم) هغوئ دَ هغهٔ انکار اوکړو۔ بیا مونږ هغه او دَ هغهٔ ملګری دَ لوے کشتئ په مدد بچ کړل او مونږه هغه خلقوله چا چه څمونږ دَ آیتونو نه انکار کړے وه غرق کړل۔ هغوئ یو ړوند قام وُه۔

وَإِلٰى عَادٍ أَخَاهُمْ هُوْدًا ۭ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ إِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۭ أَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٦٥﴾

او په تحقیق سره دَ عاد په طرف مونږ دَ هغوئ رور هُود (دَ رسُول په حیث) استولے وُه۔ (بیا) هغه او وئیل۔ اے څما قامه! دَ الله عبادت کوئ دَ هغه نه سوا ستاسو بل څوک معبُود نشته۔ نو آیا تاسو تقویٰ نهٔ کوئ۔

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖٓ إِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ سَفَاهَةٍ وَّإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٦٦﴾

(بیا) دَ هغهٔ دَ قام کافر سردارانو اووئیل (اے هود!) په تحقیق سره مونږ تا په ګمراهئ کښے (راخته) وینُو او په تحقیق سره مونږ تا په دروغژنو کښے ګنړو۔

قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٧﴾

هغهٔ (یعنی هُود) اووئیل۔ اے څما قامه! ما کښے دَ بے لارے کید وڅه خبره نشته ولے (داخامخا ده چه) زهٔ دَ ټولو جهانُو نو دَ رب دَ طرف نه رسُول یم۔

أُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِيْنٌ ﴿٦٨﴾

زهٔ دَ خپل رب پیغام رسَوم او زهٔ ستاسو (خیرغواړم او) امانت داریم۔

أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ

آیا تاسو په دے خبره تعجب کوئ چه هُم تاسو کښے

مِّنۡكُمۡ لِيُنۡذِرَكُمۡؕ وَاذۡكُرُوۡۤا اِذۡ جَعَلَكُمۡ خُلَفَآءَ مِنۡۢ بَعۡدِ قَوۡمِ نُوۡحٍ وَّزَادَكُمۡ فِى الۡخَلۡقِ بَصۜۡطَةً‌ ۚ فَاذۡكُرُوۡۤا اٰلَۤاءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ ﴿٦٩﴾

یو سړی نه ستاسو د رب د طرف نه د نصیحت خبره شوے ده ځکه چه هغه تاسو د را تلونکی ورځے د عذاب نه هوښیار کړی او یاد کړئ هر کله چه هغهٔ (خدائے) تاسو د نوحؑ د قام نه پس (د هغوی) ځائے کینولئ او ستاسو بدنونه ئے مضبوط جوړ کړل بیا نو د الله نعمتونه یادوی ځکه چه تاسو مراد ته اورسئ۔

قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا لِنَعۡبُدَ اللّٰهَ وَحۡدَهٗ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعۡبُدُ اٰبَآؤُنَا‌ ۚ فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ﴿٧٠﴾

هغوئ اووئیل (اے هود!) آیا ته مونږ له دے د پاره راغلے ئے چه مونږ د یو الله عبادت اوکړو او چه د چا څخو مونږ پلار نیکهٔ پرستش کولو هغوئ پریږدو بیا چه د کومے خبرے نه ته مونږ ویروے که چرے ته رښتونے ئے نو هغه راله۔

قَالَ قَدۡ وَقَعَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ رِجۡسٌ وَّغَضَبٌ‌ ؕ اَتُجَادِلُوۡنَنِىۡ فِىۡۤ اَسۡمَآءٍ سَمَّيۡتُمُوۡهَاۤ اَنۡتُمۡ وَاٰبَآؤُكُمۡ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا مِنۡ سُلۡطٰنٍ‌ ؕ فَانۡتَظِرُوۡۤا اِنِّىۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُنۡتَظِرِيۡنَ ﴿٧١﴾

هغهٔ اووئیل - ستاسو رب د طرف نه په تاسو باندے عذاب او غضب نازل شوے دے - آیا تاسو د هغه نومونو په حقله ما سره بحث کوئ چه تاسو او ستاسو پلار نیکونو تجویز کړی وُو - الله هغوئ د پاره څه دلیل نهٔ دے راستولے - بیا نو تاسو هُم (څما د پاره د عذاب) انتظار کوئ - زهٔ به هُم تاسو سره (ستاسو د پاره) د عذاب انتظار کوم (او گورم به چه د چا اُمیدونه ترسره کیگی)۔

فَاَنۡجَيۡنٰهُ وَالَّذِيۡنَ مَعَهٗ بِرَحۡمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعۡنَا دَابِرَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا‌ وَمَا كَانُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ﴿٧٢﴾ ع ۹ ۸ ۱۶

آخر مونږ هغه او د هغهٔ ملگری په خپل رحمت بچ کړل او کومو خلقو چه څمونږ د آیتونو انکار کړے وه او مومنانو کښے شامل شوی نهٔ وُو - د هغوئ موجرړے پریکړے۔

وَاِلٰى ثَمُوۡدَ اَخَاهُمۡ صٰلِحًا‌ ۘ قَالَ يٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمۡ مِّنۡ اِلٰهٍ غَيۡرُهٗ‌ ؕ قَدۡ جَآءَتۡكُمۡ بَيِّنَةٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ‌ ؕ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَـكُمۡ اٰيَةً‌ فَذَرُوۡهَا تَاۡكُلۡ فِىۡۤ اَرۡضِ اللّٰهِ‌ وَلَا تَمَسُّوۡهَا بِسُوۡٓءٍ فَيَاۡخُذَكُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿٧٣﴾ ربع

او مونږ د ثمود په طرف (هُم) د هغوی رور صالحؑ د رسول په حیث استولے وُه - هغهٔ (هغوئ ته) اووئیل - یه څما قامه د الله عبادت کوئ - د هغهٔ نه سوا ستاسو بل څوک معبود نشته - تاسو له ستاسو د رب د طرف نه یو څرگند دلیل راغلے دے (او هغه دا دے

چه ) دا دَ الله اونښه ده چه ستا دَ پاره دَ نښان په
طور ده. بیا دا پریږدئ چه دَ الله په زمکه کښې څري
او دے ته څه تکلیف مهٔ رسوئ (که دا سے مو اوکړهٔ
نو ) تا سو ته به دردناک عذاب رسی۔

وَاذْكُرُوٓا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِى الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا ۖ فَاذْكُرُوٓا ءَالَآءَ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٧٤﴾

او یاد کړئ هرکله چه هغه (خدائے) تاسو دَ عاد دَ قام
نه پس (دَ هغوئ) په ځائے راوستئ او په زمکه کښې ئے
ستاسو (دا شان) ځائے جوړ کړو چه تاسو به دَ دے
په میدانونو کښې قلعه گانے جوړوے او غرونو کښې
به مو په کنستلو کورونه جوړول. بیا نو دَ الله نعمتونه
یاد کړئ او زمکه کښې سره دَ پوهے فساد مهٔ کوئ۔

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِۦ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ ءَامَنَ مِنْهُمْ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۚ قَالُوٓا إِنَّا بِمَآ أُرْسِلَ بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴿٧٥﴾

(په دے باندے) دَ هغهٔ (یعني صالحؑ) دَ قام نه چه
کومو مشرانو کبر کړے وه هغو خلقو ته چه دَ صالحؑ
قام کښې ئے ایمان راوړے وه وے کمزوری دُو
اووئیل چه آیا تاسو (په حقیقت کښې) خیال کوئ چه
صالحؑ دَ خپل رب دَ طرف نه رسول دے۔ هغه مومنانو
اووئیل مونږ خو په دے تعلیم چه ورسره هغه راستولے
شوے دے ایمان راوړُو۔

قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوٓا إِنَّا بِالَّذِىٓ ءَامَنتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٧٦﴾

(په دے باندے) هغه خلقو چه دَ کبر نه ئے کار آخستے
وه اووئیل چه په څه تاسو ایمان راوړے دے دَ هغے
نه څمونږ انکار دے۔

فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا يَٰصَٰلِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾

بیا هغوئ (دَ غصے نه) دَ اوښے پښے پریکړے او دَ خپل
رب حُکم ئے اونهٔ منلو او وے وئیل۔ اے صالح دَ کوم
عذاب وعده چه ته مونږ سره کوے که چرے ته (په
رښتیا) رسول ئے نو هغه راوله۔

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِى دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٧٨﴾

په دے باندے هغوئ زلزلے راګیر کړل او هغوی په

خپلو کورونو کښې په ګوډو ناست پاتې شول۔

فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ
رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ۞۸۰

بیا صالح هغوئ (یعنې د خپل قام خلق) پرېښول بل ځائے ته لاړو او وے وئیل چه ای ځما قامه! ما تاسو ته د خپل رب پیغام رسولے وو او ستاسو د ښیګړے خبرے مې تاسو ته کړے وے ولے تاسو خلق خپل نیک خواه نهٔ خوښوئ۔

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ
بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۞۸۱

او (مونږه) لوط ته هُم (د هغهٔ د قام په طرف رسول لیږلے وو) هرکله چه هغهٔ خپل قام ته اووئیل آیا تاسو داسے بے حیائي کوئ چه تاسو نه آګاهُو تهولو قامُونو کښې چا نهٔ وه کړے۔

اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ۭ
بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ۞۸۲

آیا تاسو د ښځو په ځائے سړو له د شهوت په اراده رازئ بلکه (اصل خبره داده چه) تاسو د حد نه وتونکے قام یئ۔

وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْهُمْ
مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ۞۸۳

او د هغهٔ قام بس دا اووئیل (ربه خلقو!) لوط او د هغهٔ ملګرو له د ښار نه اوباسئ هغوئ داسے خلق دی چه په خپله پاکي باندے نازیګي۔

فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ڮ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ۞۸۴

بیا مونږه هغهٔ له او د هغهٔ اهل ته سوا د هغهٔ د ښځے نه بچ کړل هغه (ښځه) روستو پاتے کیدونکو نه شوه۔

وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۭ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ
الْمُجْرِمِيْنَ ۞۸۵ ع

او مونږ په هغوئ باندے (د کاڼو) یو باران (د زلزلے په سوب) اووَرولو بیا اوګوره چه د مجرمانو انجام څنګه شو۔

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۭ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ
مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۭ قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ
فَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ
وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا ۭ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ

او د مدین په طرف د هغوئ رور شعیب هُم (په تحقیق سره مونږ رسول آستولے وُه) هغوئ اووئیل په ځما قامه! د الله عبادت کوئ د هغهٔ نه سوا ستاسو بل څوک معبود نشته۔ ستاسو د رب د طرف نه

لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۸۵﴾

یو ښکاره نښان را غلے دے (یعني خپله شعیب علیه السلام) بیا پکار دی چه ناپ او تول دوا ړه پوره ورکوئ او خلقوله د هغوئ څیزونه د حق نه کم مه ورکوئ او په زمکه کښې د دے د اصلاح نه پس فساد مه کوئ که چرے تاسو مومنان یئ نو دا تاسو د پاره ډیر ښه دی۔

وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوْعِدُوْنَ وَتَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِهٖ وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْكُرُوْٓا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ ۖ وَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۸۶﴾

او په هره لاره باندے ریه دے نیت) مه کینئ چه څوک په (الله باندے ایمان راوړی هغه د الله د لارے او یروئ او منے کړئ او هغے (د خدائے لاره) کښې د غلطو پیدا کولو کوشش اوکړئ او یاد ساتئ هر کله چه تاسو لږ وئ نو خدائے تاسو زیات کړئ او تل په نظر کښے ساتئ چه د فساد کوونکو انجام څه شوے دے۔

وَاِنْ كَانَ طَآئِفَةٌ مِّنْكُمْ اٰمَنُوْا بِالَّذِيْٓ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوْا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸۷﴾

او که چرے تاسو کښے څا تولی هغے باندے ایمان راوړے دے چه څه سره زه رالیږلے شوے یم او څوک تولئ داسے دے چه ایمان ئے نه دے راوړے نو صبر نه کار اخله تر هغے پورے چه الله مونږ (مومنانو او کافرانو) کښے فیصله اوکړی او هغه د ټولو نه ښه فیصله کوونکے دے۔

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَنُخْرِجَنَّكَ یٰشُعَیْبُ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ مِنْ قَرْیَتِنَاۤ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِیْ مِلَّتِنَا ؕ قَالَ اَوَ لَوْ كُنَّا كٰرِهِیْنَ ﴿۸۸﴾

دَ هغهٔ قام کښې چه څوک کبرجن شوی وُو هغوئ کښې غټو خلقو اووئیل۔ مونږ به تا اوهغوی چه پهٔ تا ئې ایمان راوړے دے دَ خپل ملک نه اوباسو یا بیا تاسو به څمونږ مذهب ته راواپس شئ۔ په دے هغه اووئیل اوکه چرے مونږ (دا کار) ناخوښ کړو (نو آیا بیا به هُم مونږه اوباسئ)

قَدِ افْتَرَیْنَا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِیْ مِلَّتِكُمْ بَعْدَ اِذْ نَجّٰىنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ وَ مَا یَكُوْنُ لَنَاۤ اَنْ نَّعُوْدَ فِیْهَاۤ اِلَّاۤ اَنْ یَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ؕ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ رَبَّنَا افْتَحْ بَیْنَنَا وَ بَیْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَ اَنْتَ خَیْرُ الْفٰتِحِیْنَ ﴿۸۹﴾

حقیقت دا دے چه کچرے مونږ ستاسو مذهب ته والپس هُم شونُو (دَ دے مطلب به دا نهٔ وی چه تاسو رښتونی یئ بلکه دا به وی) چه په حقیقت کښې مونږ په الله دروغ تړلی وُو او دَ الله دَ رضا نه سوا هغے (روښې مذهب) ته ګرزیدل څمونږ دَ وس نه بهر دی۔ څمونږ رب دَ هرڅه پوره علم لری مونږ بس په الله توکل کوو (او وایو) اے څمونږه ربّ! څمونږه او څمونږ دَ قام ترمنځه په حقه فیصله اوکړے او تهٔ دَ ټولو فیصله کوُونکو نه ښهٔ یئے۔

وَ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَىِٕنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَیْبًا اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۹۰﴾

اوچه څوک دَ هغهٔ (یعنی دَ شعیبؑ) قام کښې کافران وُو دَ هغوئ سردارانو اووئیل که چرے تاسو شعیبؑ پسے لاړئ نو تاسو به نقصان اوچتوُونکو نه شئ۔

فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دَارِهِمْ جٰثِمِیْنَ ﴿۹۱﴾

نو بیا هغوی لوے زلزلے راګیر کړل او هغوئ خپلو کورونو کښې په کونډو پراتهٔ وو۔

معانقة عند المتقدمين

الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا شُعَیْبًا كَاَنْ لَّمْ یَغْنَوْا فِیْهَا ۛۚ اَلَّذِیْنَ كَذَّبُوْا شُعَیْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِیْنَ ﴿۹۲﴾

هغوئ چه چا دَ شعیبؑ انکار کړے وه (دا سے تباه شول چه) ګنی هډو هغوئ خپل ملک کښې اوسیدلی نهٔ وُو۔ هغوئ چه چا دَ شعیبؑ انکار کړے وُو هغوی دَ نقصان اوچتوُونکو نه شول۔

فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَ قَالَ یٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ

په دے هغهٔ (یعنی شعیبؑ) هغوئ نه مخ واړولو او

وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴿۹۳﴾ ع

روان شو او وئیل به ئے اے څما قامه! ما د خپل رب پیغامونه تاسو ته رسولی وُو او تاسو ته مې نصیحت کړے وه نو اوس زهٔ څنګه په منکر قام افسوس اوکړم۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ ﴿۹۴﴾

او مونږ یو ښار ته هُم یو رسُول نهٔ دے استولے روے هُم داسے اوشوله چه) مونږ په هغے کښے او سیدُونکی په سختئ او مصیبت کښے ګیر کړل چه هغوئ عاجزی او زاری اوکړی۔

ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۹۵﴾

بیا مونږ د تکلیف ځائے په آرام بدل کړو تر دے چه کله هغوئ ترقی اوکړه او وئیل ئے شروع کړل چه تکلیفونه او راحت خو څمونږ پلار نیکونو له هُم راتلل راوکه مونږ له راشی نو څهٔ نوے خبره نهٔ ده) بیا نو مونږ هغوی ناسا په (عذاب کښے) راګیر کړل۔ او هغوئ نهٔ پوهیدل (چه داسے ولے اوشول)۔

وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۶﴾

او که چرے د هغه علاقو او سیدُنکو ایمان راوړے وے او تقویٰ ئے کړے وے نو مونږ به د آسمانونو او مزکے نه د هغوئ د پاره د برکتونو ورونه پرانستی وے خو هغوئ (د نبیانو) انکار اوکړو نو ځکه مونږ هغوئ د هغوئ د عملونو له کبله په عذاب کښے راګیر کړل۔

اَفَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰٓى اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا بَيَاتًا وَّهُمْ نَآئِمُوْنَ ﴿۹۷﴾

آیا د دے ښارونو او سیدُونکی (یعنی د مکے او د دے د خوا وُ شا خلق) د دے خبرے نه په امن کښے راغلی دی چه څمونږ عذاب په هغوئ باندے د شپے چه هغوئ اوده وی راشی۔

اَوَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰٓى اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا ضُحًى وَّهُمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿۹۸﴾

یا د دے ښارُونو او سیدُونکی د دے خبرے نه امن کښے راغلی دی چه څمونږ عذاب په هغوئ د غرمے په وخت راشی او هغوئ لوبے کوی۔

اَفَاَمِنُوْا مَكْرَ اللّٰهِ ۚ فَلَا يَاْمَنُ مَكْرَ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ ع

آيا هغوئ دَ الله (تعالیٰ) دَ تدبير نه محفوظ شوي دي (که چرے داسے ده) نو ياد دِ لري چه په نقصان کښے دَ پريوتُونکی قام نه سوا بل قام دَ الله (تعالیٰ) دَ تدبير نه غافل نهٔ وي۔

ع ۱۳ ۲

اَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ اَهْلِهَاۤ اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

آيا هغه خلقو ته چه ځوک دَ دے دَ اصل اوسيدُونکو نه پس دَ مزکے وارثان شول۔ دے خبرے عقل نهٔ دے ورکړے چه که چرے مونږ اوغواړو نو دَ هغوئ دَ ګناهونو له کبله په هغوي عذاب نازلولے شو او دَ هغوئ په زړونو مهر لګولے شُو چه دَ هغے په سوب به هغوي دَ هدايت خبر نه شي اوريدلے۔

تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا ۚ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ۚ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

دا داسے علاقے دي چه دَ کومو خبرو نه مونږ تا ته اورَوُو او هغوي له دَ هغوئ رسُولانو نښانونه راوړي وُو خو هغوئ ريه هغهٔ باندے هُم) ايمان راوړونهٔ ړو۔ دے چه هغوئ په سر کښے انکار کړے وُو۔ الله (تعالیٰ) دا شان دَ کافرانو په زړونو مهر لګوي۔

وَمَا وَجَدْنَا لِاَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍ ۚ وَاِنْ وَّجَدْنَاۤ اَكْثَرَهُمْ لَفٰسِقِيْنَ ﴿۱۰۳﴾

او مونږ هغوئ کښے ډير په (خپل) لوظ ټينګ او نهٔ ليدل بلکه مونږ په تحقيق سره ليدلي دي چه هغوي کښے ډير لوظ ماتوُونکی دي۔

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَاۤ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَظَلَمُوْا بِهَا ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۱۰۴﴾

بيا مونږ دَ هغو رنبيانو) نه پس موسیٰؑ دَ خپلو آيتونو سره فرعون او دَ هغهٔ سردارانو ته واستولو هغوي هغو رنښانانو) سره دَ ظلم سلوک اوکړوبيا ته اوګوره چه دَ فساد کوُونکو انجام څهٔ اوشو۔

وَقَالَ مُوْسٰى يٰفِرْعَوْنُ اِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۵﴾

او موسیٰؑ فرعون ته اووئيل چه زهٔ دَ ټولو جهانُونو دَ رب له طرفه رسُول يم۔

حَقِيْقٌ عَلٰۤى اَنْ لَّاۤ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ۚ قَدْ جِئْتُكُمْ

او دَ دے خبرے حق لرم چه دَ الله (تعالیٰ) په خقله

بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿١٠٥﴾

يوازے د ربنتيا خبرے نه سوا نور څۀ اونۀ وائيم. زۀ تاسو له ستاسو د رب د طرف نه يو ښکاره نښان سره راغلے يم بيا نو ما سره بنی اسرائيل واستوه.

قَالَ إِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَآ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿١٠٦﴾

هغۀ (يعنې فرعون) اووئيل که چرے تا څۀ نښان راوړے وی. او تۀ په حقيقت کښے رښتونے يے نو هغه ښکاره کړه.

فَأَلْقٰى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿١٠٧﴾

په دے هغۀ (يعنې موسیٰ) خپله آمسا (په مزکه) اوغورزوله او ناساپه هغه يو ښکاره ښکاره مار په نظر راتلل شروشول.

ع ۱۳

وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿١٠٨﴾

بيا هغۀ خپل لاس اوويستونو هغه د کتونکو په نظر کښے ښۀ سپين وو.

قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿١٠٩﴾

په دے د فرعون د قام سردارانو اووئيل دا چرته ډير علم لرونکے جادوګر دے.

يُّرِيْدُ أَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ أَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَأْمُرُوْنَ ﴿١١٠﴾

چه تاسو ستاسو د ملک نه بهر وليستل غواړی نو بيا تاسو (د دۀ په حقله) څۀ مشوره ورکوئ.

قَالُوْٓا أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَأَرْسِلْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿١١١﴾

(په دے سردارانو) اووئيل موسیٰ او د دۀ ورور له (لږ) وخت ورکړه او ښهرونو ښارونو ته نقارچيان واستوئ.

يَأْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ﴿١١٢﴾

(د پاره د دے چه) هغوئ تاسو له هر يو واقف کار جادوګر راولی.

وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا إِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿١١٣﴾

او (د دے کوشش په سوب) ټول جادوګر فرعون سره راغونډ شول او هغوی اووئيل که مونږ برشو نو آيا مونږ ته به څۀ انعام حاصليګی.

قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿١١٤﴾

په دے هغه (يعنې فرعون) اووئيل ولے نه او د دے نه سوا تاسو به زما زړۀ ته نزدے کسان شئ.

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى إِمَّآ أَنْ تُلْقِيَ وَإِمَّآ أَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ﴿١١٥﴾

هغوئ اووئيل يه موسیٰ آيا تۀ به وړاندے غورزوے (او) که مونږ د (وړاندے) غورزولو زړۀ اوکړو.

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿١١٦﴾

موسیٰ اووئیل تاسو (وړاندے) اوغورزوئ. بیا چه هغوی (خپلے آسا گانے اورسئ) اوغورزولے نو دَخلقو په سترگو چل اوکړو او هغوئ یے اوویرول اولوه لویه دهوکه (خلقو ته) هغوی وړاندے کړه.

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ ۚ ﴿١١٧﴾

اومونږ په موسیٰ باندے وحی اوکړه چه ته خپله آسا واچوه (چه هغه دا ے اوکړل نو زناسا په دا ے معلومه شوه چه) هغه دَ جادوگرانو دهوکے نگیا دے لو اړے تیروی.

فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۚ ﴿١١٨﴾

بیا نوحق ښکاره شو او چه څه هغه جادوگرانو کول هغه ختم شول.

فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ ۚ ﴿١١٩﴾

نو بیا هغه (یعنی جادوگران) مغلوب شول اوذلیل شول.

وَاُلْقِىَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ۚ ﴿١٢٠﴾

اوهغوئ (یعنی جادوگران) حکم مئلوسره په سجده پرلوتل.

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۙ ﴿١٢١﴾

او وے وئیل مونږ دَ ټولو جهانونو رب باندے ایمان راوړو.

رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿١٢٢﴾

(چه کوم) دَ موسیٰ اودَهارونّ رب (دے).

قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِى الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿١٢٣﴾

فرعون اووئیل آیا تاسو په دهٔ ایمان راوړو دَ دے نه وړاندے چه ما تاسو له اجازه درکړے وے (معلومیگی) دا لوتدبیر دے. چه تاسو ټولو په شریکه ښار کښے جوړ کړے دے چه دَ دے نه دَ دے اوسیدونکی اوباسی نو زر به تاسو ته (دَ دے انجام) معلوم شی.

لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٢٤﴾

زهٔ به ستاسو لاسونه اوستاسو ښپے دَ خپلے نافرمانئ په سوب پریکړم بیا به تاسو ټول په صلیب زوړند کړم.

قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ ۚ ﴿١٢٥﴾

هغوئ اووئیل (نو څهٔ به اوشی) مونږ خو خپل رب ته والپس تلونکی یو.

وَمَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ۚ رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ ﴿١٢٦﴾ ع

اوته مونږ سره په دے وران شوے ئے چه مونږ دَ خپل رب په نښانانو هرکله چه هغه مونږ له راغلل ایمان راوړے دے (اومونږ دُعا کوو چه) یه څمونږه رب !

مونږ له صبر راکړه - او مونږ له د مسلمانئ په حال مرګ راکړه -

وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اَتَذَرُ مُوْسٰى وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

او د فرعون قام کښې (بعضې) سردارانو او وئيل چه آيا تا موسىٰ او د دهٔ قام (آزاد) پرېښو دے دے چه څمونږ ملک کښې فساد اوکړی او تا او ستا معبودان پرېږدی - هغهٔ (يعنې فرعون) اووئيل مونږ به خامخا د دوئ ځامن وژنو او د دوئ ښځې به ژوندئ ساتو او مونږ په دوئ برلو -

قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا ۚ اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ ۙ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾

(په دے) موسىٰ خپل قام ته اووئيل الله نه مدد غواړئ او صبر نه کار واخلئ ملک خو د الله دے ځپلو کښې چه چاله اوغواړی د دے وارث ئے کړی او (رښتيا) انجام د متقيانو په لاس کښے وی -

قَالُوْٓا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ؕ قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۹﴾

ع ۵ هغوئ (يعنې د موسىٰ د قام خلقو) اووئيل ستا د راتلو نه وړاندے هُم مونږ ته تکليف راکيدے شو او چه کله نه دهٔ مونږ ته راغلے ئې د هغه وخت نه هُم مونږ له تکليف راکيدے شي - هغهٔ (يعنې موسىٰ) ځواب ورکړو چه نږدے ده چه ستا رب ستا سو دښمن تباه کړی او په ملک کښے تاسو نه خپل خلافت درکړی او بيا اوګوری چه تاسو څنګه کار رونه کوئ -

وَلَقَدْ اَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۳۰﴾

او مونږ آلِ فرعون له د (مصيبت د) کلونو او د ميوو د پيداوار د کمئ (او د اولاد د مرګ په سوب) اونيسل ځکه چه هغوی نصيحت حاصل کړی -

فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ ؕ اَلَآ اِنَّمَا طٰٓئِرُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۱﴾

بيا نو هرکله به چه په هغوئ د خوشحالئ وخت راتلو نو هغوی به وئيل دا خو څمونږه حق دے او کچرے په هغوی به د مصيبت وخت راغے نو د موسىٰ او د هغهٔ د ملګرو د سپيرهٔ توب نتيجه به ئے ګڼړله - خبردار د

هغوئ دَ هغوئ دَ سپيره توب (سامان) الله سره سنبال دے ولے هغوی کښے اکثر علم نهٔ لری۔

وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ۝۱۳۲

او هغه خلقو اووئيل۔ هرکله چه ته يو نښان مونږ له راوړے۔ دے دَ پاره چه ته دَ هغے په سوب مونږ له دهوکه را کړے نو مونږ به هيڅرے په تا ايمان نهٔ راوړو۔

فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُفَصَّلَاتٍ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُجْرِمِينَ ۝۱۳۳

بيا مونږ په هغوئ طوفان او مُلخان او سپږے او چينداخان او وينه راوا ستولے۔ دا بيل بيل نښانات وُو بيا هُم هغوئ کبر اوکړو او هغوئ مجرم قام شول۔

وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوا يَا مُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ۝۱۳۴

او هرکله به چه په هغوئ عذاب نازل شو نو هغوی به چغے کړے چه يه موسیٰ! خپل رب اوبله او هغه ټولے وعدے ورياد دے کړه چه کومے هغهٔ تاسره کړے دی۔ که چرے تا مونږ نه عذاب لرے کړو نو مونږ په تا ايمان راوړو او بنی اسرائيل به تاسره واستوو۔

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَى أَجَلٍ هُمْ بَالِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ ۝۱۳۵

خو چه کله مونږ دَ هغوئ نه تر هغه وخته پورے عذاب لرے کړو چه دَ هغوئ دَ پاره مقدر وُه نو هغوی وعده خلافی کول شروکړل۔

فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ فِي الْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ۝۱۳۶

نو بيا مونږ دَ هغوئ نه (دَ هغوئ دَ ورانو) بدل واخستو او هغوئ مو سمندر کښے غرق کړل ځکه چه هغوئ زمونږ دَ آيتونو نه انکار کولو او دَ هغے پروا ئے نهٔ کوله۔

وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ ۝۱۳۷

او مونږ هغه قام ته چه کوم به کمزورئ ګڼړے شو دَ هغه ملک دَ نمرخاته دَ برخو هُم او دَ نمر پريواته دَ برخو هُم وارثان جوړ کړل چه ورله مونږ برکت ورکړے وه او ستا دَ رب دَ بنی اسرائيلو سره شوے کلام (يعنی دَ ښهٔ نه ښهٔ وعده) ترسره شوه ځکه چه هغوئ (دَ هغوئ په ظلمونو) صبر اوکړو او فرعون او دَ هغهٔ قام چه څهٔ

ع

جوړول او چه کوم دنګې ماڼۍ ئې اودرولې هغه ټولې مونږ تباه کړې.

وَجٰوَزْنَا بِبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ الْبَحْرَ فَاَتَوْا عَلٰی قَوْمٍ یَّعْکُفُوْنَ عَلٰٓی اَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوْا یٰمُوْسَی اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ ۗ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

او مونږ بنی اسرائیل د سمندر نه پورې وایستل تردې چه هغوئ (په تلو تلو کښې) یو داسې قام ته اورسیدل چه د خپلو بتانو عبادت ئې کولو (نو بیا) هغوئ اووئیل یه موسیٰ! مونږ ته یاره هُم څۀ داسې معبودان جوړ کړه څنګه چه د دوئ معبودان دی (موسیٰ) اووئیل تاسو یو جاهل قام یئ.

اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِیْهِ وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۹﴾

چه په کوم کار کښې هغې لګیادی هغه په تحقیق سره تباه کیدُونکې دے او چه څۀ هغوئ کوی ټول به ناکاره شی.

قَالَ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَبْغِیْكُمْ اِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَی الْعٰلَمِیْنَ ﴿۱۴۰﴾

(بیا ئې) اووئیل! آیا زۀ د الله نه سوا تاسو له څوک بل معبود اولټوم سره د دے چه هغۀ تاسو له په ټولو جهانونو فضیلت درکړے دے.

وَاِذْ اَنْجَیْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ یَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ۚ یُقَتِّلُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَیَسْتَحْیُوْنَ نِسَآءَكُمْ ۗ وَفِیْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِیْمٌ ﴿۱۴۱﴾ ع ۱۶/۱۲/۶

او (یاد کړئ) هر کله چه مونږ تاسو د آلِ فرعون نه خلاص کړئ چا به چه تاسو له د تکلیف نه ډک عذاب درکولو ستاسو ځامن به ئې وژل او ستاسو ښځې به ئې ژوندئ ساتلې او په دے کښې ستاسو د رب د طرف نه غټ آزمینښت وُه.

وَوٰعَدْنَا مُوْسٰی ثَلٰثِیْنَ لَیْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِیْقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِیْنَ لَیْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰی لِاَخِیْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِیْ فِیْ قَوْمِیْ وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِیْلَ الْمُفْسِدِیْنَ ﴿۱۴۲﴾

او مونږ موسیٰ سره د دیرشو ۳۰ شپو وعده اوکړه. بیا هغه (دیرش شپې) مو د لسو نورو په یوځائے کولو پوره کړې. دا شان د هغۀ د رب وعده د څلویښتو ۴۰ شپو په شکل پوره شوه. او موسیٰ خپل رور هارونؑ ته اووئیل (ځما نه پس) زما په قام کښې زما په ځائے اودریږه او د دوئ د اصلاح خیال ساته او د فساد کوونکو لاره باندے لاړ نۀ شے.

وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ؕ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۴۳﴾

اوکله چه موسیٰ څمونږ د ورکړی وخت بانده پسې ورتلی شوی څائے ته راغلو او د هغهٔ رب هغهٔ سره کلام اوکړو نو (موسیٰ) اووئیل اے څما ربه! (خپل ځان) ماته اوښایه چه زهٔ تا اووینم هغهٔ ځواب ورکړو. تهٔ به هیڅرے ما او نهٔ لیدے خو دَ غر په طرف اوګوره که هغه په خپل ځائے پاتے شو نو تهٔ به ما اوګورے بیا چه دَ هغهٔ (یعنی موسیٰ) رب په غرخپله جلوه ښکاره کړه نو هغه ئے ټوټے ټوټے کړو او موسیٰ بے هوشه پریوتو. بیا چه کله هغه ښهٔ شو نو هغهٔ اووئیل (ربه ربه!) تهٔ دَ هر عیب نه پاک ئے. زهٔ هُم تاته سرتیتوم او زهٔ ربه دے زمانه کښے) دَ ټولو ایمان راوړونکو نه په رومبئ درجه یم.

قَالَ يٰمُوسٰٓى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِىْ وَبِكَلَامِىْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

(خدائے ورته ځواب کښے) اووئیل. یه موسیٰ! ما تاله ربه دے زمانه کښے) په ټولو انسانانو بانده خپل رسالت او خپل کلام سره اوچتوالئ درکړے دے بیا نو چه څه ما تاله درکړی دی هغه ټینګ اونیسه او په شکر کوونکو بندګانو کښے شامل شه.

وَكَتَبْنَا لَهٗ فِى الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَىْءٍ مَّوْعِظَةً وَّتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ ۚ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّاْمُرْ قَوْمَكَ يَاْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا ۚ سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

او مونږ هغهٔ له په څو تختو خپل داسے حکمونه اولیکل چه دَ هر قسم نصیحت پکښے وُو. (او چه کوموکښے ردَ هغه زمانے دَ پاره) دَ هر ضروری څیز تفصیل موجود وُو. (او بیا مونږ هغهٔ نه اووئیل چه) دا حکمونه ټینګ اونیسه. او خپل قام ته هُم اووایه چه دَ دے اوچت ارخونه کلک اونیسی زهٔ به زر تاسو ته دَ بد عملو کور اوښایم.

سَاُصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِىَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِى الْاَرْضِ

زهٔ به زر هغه خلقو نه چا چه ناحقه په دُنیا کښے کبر

بِغَيْرِ الْحَقِّ ۚ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ﴿۱۴۶﴾

کړے دے زخپلو) نښا نونو نه لرے کړم او که چرے هغوی هر ممکن نښان اوګوری نو په دے آیتونو به ایمان نهٔ راوړی او که چرے هغوی نیغه لار هُم اوګوری نو هغه به چرے خپله نهٔ کړی او که چرے هغوی ګمه لاره اوګوری نو هغه به خپله کړی دا ځکه ده چه هغوئ ځمونږ دَ آیتونو انکار اوکړو او هغوئ نه لاپرواهی کوی۔

ع وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۴۷﴾

او هغه چا چه ځمونږ دَ آیتونو نه او دَ مرګ نه پس دَ ملاقات نه انکار کړے دے دَ هغوی ټول عملونه ټوټے شوے دی۔ هغوی به لس دَ خپل رسنهٔ )

وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِنْ بَعْدِهِ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَهُ خُوَارٌ ۚ أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا ۘ اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ﴿۱۴۸﴾

او دَ موسیٰ قام دَ هغهٔ (په سفر) دَ تلو نه پس دَ خپلو کالو (زیور) نه یو سخے جوړ کړو هغه لس یو بے ساه جسم وُه چه دَ هغے نه به هیله یو بے مطلبه آواز وتلو۔ آیا هغوئ دومره سوچ اونهٔ کړو چه هغه خونهٔ هغوئ سره څه خبره کوی اونهٔ هغوئ ته دَ هدایت څهٔ لاره ښائی۔ هغوئ هغه بے ښے بے بدے معبود جوړ کړو او مشرکان شول۔

وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا قَالُوا لَئِنْ لَمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿۱۴۹﴾

او هر کله چه هغوئ اوشرمیدهٔ او هغوئ اوکتل چه هغوئ بے لارے شوی وو نو هغوی اووئیل که چرے ځمونږ رب په مونږ رحم اونکړی او مونږ اونهٔ بخښی نو مونږ به نقصان اوچتوُونکو نه شو۔

وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِي مِنْ بَعْدِي ۖ أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ ۖ وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُ إِلَيْهِ ۚ قَالَ ابْنَ أُمَّ إِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا

او هر کله چه موسیٰ خپل قام ته په غصه او افسوس نه ډک واپس شو نو هغهٔ اووئیل زمانه پس چه تاسو کومه نمائندګی اوکړه هغه ډیره بده وه آیا تاسو دَ خپل رب دَ حکم پخفله تلوار اوکړو او وارخطا شوئ چه موسیٰ

يَقْتُلُوْنَنِيْ ۖ فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْاَعْدَآءَ وَلَا تَجْعَلْنِيْ مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۵۰﴾

وے رانغلو) هغه وخت موسیٰ دَ وحی تختے په مزکه کیخودے او دَخپل رور دَ سر ویښتهٔ ئے اونیول۔ ځان ته ئے راخکل شروکړل (په دے باندے) هغه اووئیل یه زما دَ مور ځویه قام زهٔ کمزورے اوګڼلم او نزدے وه چه زهٔ ئے قتل کړے وے۔ بیا نو دښمنانو ته په ما دَ خندا موقع مهٔ ورکوه او ما ظالمانو خلقو کښے مهٔ شمیره۔

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِاَخِيْ وَاَدْخِلْنَا فِيْ رَحْمَتِكَ ۖ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۵۱﴾

(دَ دے په اوریدو موسیٰؑ) اووئیل یه زما ربه! ما او
ع ۱۸ زما رُور اوبخښے او مونږ دواړه په خپل رحمت کښے داخل کړے او تهٔ رحم کوونکو کښے دَ ټولونه لوئے یے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِيْنَ ﴿۱۵۲﴾

(په دے الله تعالیٰ اوفرمائیل چه) هغه خلق چا چه سخے (دَ عبادت دَ پاره) غوره کړے دے په هغوئ به دَ هغوئ دَ رب نه غضب نازلیګی او دا شان دنیا دی بے عزتی هُم او مونږ دروغ تړونکو ته هُم دا سے سزا ورکوؤ۔

وَالَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِهَا وَاٰمَنُوْٓا ۡ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۵۳﴾

او هغه خلقو چا چه بد کارونه اوکړل بیا ئے هغه پریخول او (خدائے تعالیٰ) ته واپس راغلل او په هغهٔ ئے ایمان راوړو ستا رب به په تحقیق سره دَ دے (تو به نه پس ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے ثابتیګی۔

وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوْسَى الْغَضَبُ اَخَذَ الْاَلْوَاحَ ښ وَفِيْ نُسْخَتِهَا هُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

اوچه دَ موسیٰؑ غصه لږه سړه شوه نو هغهٔ (هغه) تختے (په کوم چه دَ خدائے حکمونه لیکلی وُو بیا) اوچتے کړے او دَ هغوئ دَ پاره چه دَ خپل رب نه ویریګی دَ هغو تختو) په لیک رحمت او هدایت موجود وُه۔

وَاخْتَارَ مُوْسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ۚ فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَاِيَّايَ ۭ اَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ۚ

او موسیٰؑ خپل قام کښے اویا کسان ځمونږ دَ وعدے ځائے ته راستولو دَ پاره خوښ کړل بیا هرکله چه په هغوئ زلزله راغله نو هغهٔ (یعنی موسیٰؑ) اووئیل۔ یه زما ربه

إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَاءُ وَتَهْدِي مَنْ تَشَاءُ ۖ أَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا ۖ وَأَنْتَ خَيْرُ الْغَافِرِينَ ﴿١٥٥﴾

که چرے تا غوښتے نو دوئ او زۀ هُم به دے وړاندے وژلے وے۔ آیا تۀ مونږ دَ بے وقوفو دَ بے وقوفئ دَ کار په سزا کښے وژل غواړے؟ دا (چه څۀ اوشول) لس ستا لو آزمیښت وُه۔ تۀ دے (آزمیښتونو) سره چاله چه اوغواړے بے لارے کوے او چاله چه اوغواړے هدایت ورکړے۔ تۀ څمونږ ساتونکے او دوست ئے۔ بیا نو مونږ اوبخښه او په مونږ رحم اوکړه او تۀ په بخښونکو کښے دَ ټولو نه ښۀ ئے۔

وَاكْتُبْ لَنَا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ إِنَّا هُدْنَا إِلَيْكَ ۚ قَالَ عَذَابِي أُصِيبُ بِهِ مَنْ أَشَاءُ ۖ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ۚ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٥٦﴾

او تۀ مونږ دَ پاره دے دُنیا کښے هُم نیکی اولیکه او په آخری ژوند کښے هُم (نیکی اولیکه) مونږ خو ستا طرف ته راغلی یُو (په دے الله تعالیٰ) او وئیل۔ زۀ چه چاله اوغواړم خپل عذاب (رسوم (یعنی چه څوک ئے مستحق دی) او زما رحمت په هر څیز خور دے۔ بیا نو زۀ به خامخا دَ هغه خلقو دَ پاره (رحمت) لیکم چه څوک تقوىٰ کوی او زکوٰة ورکوی او چه څوک زما په آیتونو باندے ایمان راوړی۔

الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ ۚ فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ ۙ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٥٧﴾

هغه (خلق) چه څوک څما دے رسول پسے زی چه نبي دے او اُمّی دے چه دَ چا ذکر په تورات او انجیل کښے هغوی سره لیکلے موجود دے هغه هغوی ته دَ نیکو خبرو حُکم ورکوی او دَ بدو خبرونه ئے منع کوی او ټول پاک څیزونه په هغوئ حلالوی او ټول خراب څیزونه په هغوئ حراموی او دَ هغوی پیټی (چه په هغوئ پراته وو) او طوقونه کوم چه دَ هغوئ په
ع ۱۹ ۲
غاړو کښے اچولی شوی وُو۔ هغه هغوئ نه لرے کوی۔ بیا نو هغه خلق چا چه دۀ باندے ایمان راوړو او دۀ له ئے طاقت ورکړو او دۀ له ئے مدد ورکړو او هغے

نور پسے روان شول چه کوم دۀ سره راغلے وُه هُم هغه خلق به مراد ته رسی۔

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا ِۨالَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۠ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿١٥٨﴾

او وایه (رچه) یه خلقه! زۀ تاسو ټولو دپاره د الله رسُول یم چه چا ته د آسمانونو او مزکے بادشاهی حاصله ده د هغهٔ نه سِوا بل معبود نشته دے۔ هغه ژوندی کول هُم کوی او وژنی هُم۔ بیا نو په الله باندے او د هغهٔ په رسُول باندے ایمان راوړئ۔ چه څوک نبی هُم دے او اُمّی هُم دے (او) څوک چه ایمان راوړی الله باندے د هغهٔ په خبرو باندے او د هغهٔ منئ چه تاسو هدایت اومومئ۔

وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿١٥٩﴾

او د موسیٰ په قام کښے یو ټولے داسے هُم شته چه د حقو په سوب هدایت مومی او د دے په مدد (دنیا کښے) انصاف کوی۔

وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا ۭ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اِذِ اسْتَسْقٰىهُ قَوْمُهٗٓ اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۚ فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۭ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۭ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ۭ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ۭ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿١٦٠﴾

او مونږ هغوئ په دولسو[12] قبیلو کښے تقسیم کړل (چه اُوس بیا رورو قامونه جوړ شوی دی) او مونږ د موسیٰ په طرف هرکله چه هغه نه د هغهٔ قام اوبهٔ اوغوښتے وحی اوکړه چه ورشه او خپله امسا (رنلاٸی) کاڼړی له رولغوه (رچه کله هغهٔ داسے اوکړل) نو هغے نه دولس[12] چینے راووتے۔ هر قام خپل خپل گودر اوپیژندو او مونږ په هغوئ د وریځو سیورے اوکړو او مونږ هغوئ د پاره ترنجبین او مرزان پیدا کړل راو وژنه مو اوویل چه څه مونږ درکړی دی (په هغے کښے) پاک څیزونه خورئ او هغوئ په مونږ ظلم اونکړو وے هغوی په خپلو ځانونو ظلم کولو۔

وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوْا مِنْهَا

او ریاد کړئ) هرکله چه هغوی (یعنی بنی اسرائیلو ته

حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ؕ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٦١﴾

او وئیلے شول په دے علاقه کښے اوسئ او په دے کښے چه د چرته نه غواړئ خورئ او ربه بخښه) وائی (چه مونږ) د بیښی د سپکولو زاری (وکړو) او هغه (د مخامخ بنار په) دروازه کښے په فرمانبرداری ورداخل شئ بیا به مونږ ستا سو غلطئ تاسو ته او بخښو او په بنهٔ شان مونکو ته به نورا نعامونه هم ورکوو۔

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿١٦٢﴾ ع

په دے بنی اسرائیلو کښے ظلم کوونکو خلقو دا خبره بدله کړه څه چه هغوئ ته شوے وه او لوه بله خبره ئے کول شروکړل۔ بیا مونږ په هغوئ باندے د هغوی د ظلمونو په سوب د آسمان نه عذاب راکوز کړو۔

وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ اِذْ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ ۙ لَا تَاْتِيْهِمْ ۛ كَذٰلِكَ ۛ نَبْلُوْهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿١٦٣﴾

او (ربه رسوله) هغوئ (بنی اسرائیلو) نه د هغے علاقے پحقله تپوس اوکړه چه د سمندر په غاړه وه کله چه به هغوئ (یعنی یهودیانو) د سبت په حکم کښے زیاتئ کولو چه کله به د هغوئ مهیان د هغوئ د سبت په ورځ په ډلو ډلو کښے را تلل او چه په کومه ورځ به هغوئ سبت نهٔ کولو، نهٔ به را تلل۔ دا شان به مونږ د هغوئ د نافرمانو په سوب د هغوئ امتحان اخستو۔

وَاِذْ قَالَتْ اُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُوْنَ قَوْمَا ۙ اللّٰهُ مُهْلِكُهُمْ اَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ قَالُوْا مَعْذِرَةً اِلٰى رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿١٦٤﴾

او کله چه په هغوئ کښے یو ټولی (ربل ټولی نه) او وئیل تاسو ولے هغه قام ته نصیحت کوئ چاله چه خدائے هلاکوونکے دے۔ یا سخت عذاب ورکوونکے دے۔ هغوئ ځواب ورکړو ستاسو رب ته د عُذر وړاندے کولو د پاره (چه مونږ هغهٔ خلقو ته نصیحت کړے وُو) او چه هغوئ تقویٰ اوکړی۔

فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖٓ اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوْٓءِ وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا بِعَذَابٍۭ بَـِٔيْسٍۭ بِمَا

بیا نو چه کله هغه خلقو دا نصیحت هیر کړو چه هغوئ ته شوے وُو نو مونږ هغه خلقو ته چه بد و نه ئے منع

كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿١٦٥﴾

كول نجات ورکړو او چه څوک ظالمان وُو هغوی مو يو تکليف ورکوونکی عذاب کښے آخته کړل ولے چه هغوئ اطاعت نه وتل۔

فَلَمَّا عَتَوْا عَن مَّا نُهُوا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً
خَاسِئِينَ ﴿١٦٦﴾

بيا چه کله هغوئ هغه خبرو نه چه دَ کومو نه هغوئ منع کړے شوی وُو دَ منع کيدو په ځائے په هغو کښے نوره ترقی شروع کړه نو مونږ هغوئ ته اووئيل چه ذليل بيزوګان شئ۔

وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ
مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ۗ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ
الْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٦٧﴾

او (ياد کړه) چه ستا رب اعلان اوکړو چه هغه به په هغوئ (يعنی يهوديانو) باندے دَ قيامت دَ ورځے پورے داسے خلق اودروی چه دوئ ته به تکليف ورکوونکے عذاب ورکوی (نو آيا داسے اوشوه که نه) ستا رب په تحقيق سره سزا ورکولو کښے تادی کوی او هغه په تحقيق سره ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے (رحيم) دے۔

وَقَطَّعْنَاهُمْ فِي الْأَرْضِ أُمَمًا ۖ مِّنْهُمُ الصَّالِحُونَ وَمِنْهُمْ
دُونَ ذَٰلِكَ ۖ وَبَلَوْنَاهُم بِالْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ لَعَلَّهُمْ
يَرْجِعُونَ ﴿١٦٨﴾

او مونږ هغوئ په مزکه کښے ډلے ډلے خوارۀ کړل (څو اوس هُم) هغوئ کښے بعضے نيکان دی او بعضے بدان او مونږ دَ هغوئ ښو حالاتو او بدو حالاتو سره آزميښت کوؤ چه (هغوئ دَ خپلو غلطو نه) منع شی۔

فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا الْكِتَابَ يَأْخُذُونَ
عَرَضَ هَٰذَا الْأَدْنَىٰ وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا وَإِن
يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهُ يَأْخُذُوهُ ۚ أَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِم مِّيثَاقُ
الْكِتَابِ أَن لَّا يَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوا مَا
فِيهِ ۗ وَالدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ ۗ أَفَلَا
تَعْقِلُونَ ﴿١٦٩﴾

خو دَ هغوی بنی اسرائيلو نه پس څه نور (بنی اسرائيل) اودريدلی دی چه څوک ښکاره دَ موسیٰ دَ کتاب وارثان دی ولے (اصل کښے) دَ دے دُنيا مالونه راغونډوی (او) (خلقو ته) وائی (الله تعالیٰ) به مونږ خامخا بخښی او که چرے دوئ سره داسے لږ نور مال راشی نو دَ هغے دَ آخستو تکل کوی آيا دوئ نه (دَ موسیٰ) کتاب کښے دا وعده نۀ وه اخستے شوے چه دَ الله (تعالیٰ) په حقله به

بس ربښتيا وائي او چه څه دے کتاب کښے دی هغه هغوئ لوستلی دی او په دے پوهيږی چه دَ آخرت کور دَ متقيانو دَپاره ښهٔ دے آيا تاسو ربه دے خبره) نهٔ پوهيږئ؟

وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ۝١٧٠

او چه کومو خلقو ردَ موسیٰ) کتاب) مضبوط نيولے دے او هغوئ نمونځ قائم کړے دے مونږ دَ داسے اصلاح کوونکو اجر نهٔ ضائع کوو۔

وَاِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۝١٧١ ع

او چه کله مونږ غر په هغوئ اوچت کړو لکه چه هغه يو سيوری وُو او هغوی اوګڼړل چه هغه په هغوی راغورزيدُنکے دے را او مونږ اوويل) چه څه مونږ تاسوله درکړی دی هغه کلک اونيسئ او چه څه دے کښے دی دغه يادلرئ چه تاسو متقيان شئ۔

وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِيْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ ۚ اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ؕ قَالُوْا بَلٰى ۛۚ شَهِدْنَا ۛۚ اَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غٰفِلِيْنَ ۝١٧٢

او کله چه ستا سو رب دَ بنی آدم اولاد دَ هغوی ملاګانو نه واخستلو او هغوئ ئے په خپلو ځانونو ګواهان جوړ کړل او رتپوس ئے اوکړو) آيا زهٔ ستا سو رب نهٔ يم؟ هغوی اوويل او او! مونږ دَ دے خبرے شهادت درکوو را مونږ دا ځکه اوکړل) چه رداسے نه وی چه) تاسو دَ قيامت په ورځ اووائي چه مونږ خو دَ دے رتعليم) نه دَ سره نا خبره وُو۔

اَوْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اَشْرَكَ اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ ۚ اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ۝١٧٣

يا دا اووائي چه رزمونږ نه وړاندے) لس ځمونږ پلارنيکونو شرک کړے وُه او مونږ دَ هغوی نه پس يو نالوانه نسل وُو آيا تهٔ به مونږ دَ هغه خلقو دَ عمل په بدل کښے غرقه وے چه څوک دروغژن وو۔

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۝١٧٤

او داسے مونږ خپل آيتونه په تفصيل بيانوُو او اُميد لرو چه هغوئ به دَ خپلو غلطونه واپس اوګرزی۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِيٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا
فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ﴿١٧٥﴾

اوهغوئ ته دَ هغه سړی حالات اولوله چا ته چه مونږ خپل نښانات ورکړی وُو- بیا هغه دَ هغو په خویه لرے شو- بیا شیطان هغهٔ پسے شو او هغه لاړوګمراهانوکښے شامل شو-

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ
وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ اِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ
يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ۗ ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ
كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿١٧٦﴾

اوکه مونږ غوښتے نو هغه به موږ دَ هغو (نښانانو) په سوب اوچت کړے وے خو هغه په مزکه پړیوتو او خپلو غوښتنو پسے روان شو- دَ هغه حال دَ هغه سپی په شان دے چه دَ هغهٔ (روهلو دَ پاره) ته رخه څیز) اوچت کړے نو هُم هغه ځیپکی او که ته ے پریګدے نو بیا هُم هغه ځیپکی- هُم دا حال دَ هغه قام دے چه کوم څمونږ دَ نښانانو نه انکارکوی نو بیا ته دا حالات هغوئ ته واوروه چه هغوئ لږ سوچ اوکړی-

سَآءَ مَثَلَا ۨ الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا
يَظْلِمُوْنَ ﴿١٧٧﴾

دَ هغه قام حال ډیر بد دے چه چا څمونږ دَ آیتونو نه انکار اوکړو او هغوئ (دَ دے کار سره) لبس په خپلو ځانونو ظلم کولو-

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِيْ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ
هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٧٨﴾

چا له چه خدائے هدایت ورکړی هُم هغه هدایت موندُونکی دی او چه څوک هغه بے لارے کړی هُم هغه نقصان او چتوُونکی دی-

وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۖ
لَهُمْ قُلُوْبٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ بِهَا ۫ وَلَهُمْ اَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُوْنَ
بِهَا ۫ وَلَهُمْ اٰذَانٌ لَّا يَسْمَعُوْنَ بِهَا ۭ اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ
بَلْ هُمْ اَضَلُّ ۭ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿١٧٩﴾

اومونږ ځنات او انسانان دَ رحمت دَ پاره پیدا کړی دی وَلے نتیجه ئے داوی چه په هغوئ کښے ډیر دَ جهنم مستحق شی دَ دوی زړونه خوښته ولے دَ دے په سوب دوی نهٔ پوهیګی او دَ دوئ سترګے خو شته خو دَ دے په سوب دوئ نهٔ ګوری او دَ دوئ غوګونه خوښته خو د دے په سوب دوئ نهٔ اوری- هغه خلق دَ څارو په شان دی لا دَ دے نه هُم په بدحال (اصل خبره دا ده چه) هغوئ دَ سره جاهل دی -

وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ۖ وَذَرُوا الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ ۭ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٨٠﴾

اود الله (تعالیٰ) ډیرښے صفتونه دی - بیا نو ته د هغو په سوب دعا کانے کوه او هغه خلق پریګده چه څوک د هغه صفاتو په حقله غلطے (اوخیالی) خبرے کوی - هغوئ ته به د هغوئ د عملونو بدله ورکیږی -

وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿١٨١﴾

ع ٢٢ / ١٢

او چه کوم مخلوق مونږ پیدا کړے دے په هغو کښے یو ټولے داسے دے چه د حقو په سوب (خلقوته) هدایت ورکوی او حقو سره (دنیا کښے) انصاف کوی -

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٢﴾

او هغه خلق چه زما د آیتونو نه انکار کوی هغوی مونږ رورو به داسے لارو چه هغوئ تے نۀ پیژنی (هلاکت ته) راکاګو -

وَاُمْلِيْ لَهُمْ ۭ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ ﴿١٨٣﴾

او زۀ هغوئ ته (د اوخت) ډیل ورکومه زما تدبیر ډیر مضبوط دے -

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا ۫ مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ۭ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١٨٤﴾

آیا هغوئ دا سوچ نۀ کوی چه د هغوئ صیب (یعنی رسول کریمؐ) ته جُنون نۀ دے هغۀ خو یو ښکاره ښکاره خبروونکے دے -

اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ ۙ وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ ۚ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٨٥﴾

غور نۀ کوی او په هر هغه څیز چه خدائے پیدا کړے دے (او په دے خبره هُم چه) د دے څرګندے خبرے نه پس به په کومه خبره ایمان راوړی -

مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ۭ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١٨٦﴾

څوک چه الله (تعالیٰ) بے لارے اوګرزوی هغه ته هدایت ورکوونکے هیڅوک نشته - او هغه به دوئ په خپله سرکشئ کښے آخته پریږدی -

يَسْـَٔـلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ۭ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ۘ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ۭ يَسْـَٔـلُوْنَكَ

(اے رسوله) ستا مخالف تا نه د قیامت په حقله سوال کوی چه کله به رازی - تۀ ورته اووایه چه د دے علم لس یوازے زما رب ته دے - هغه به په خپل وخت باندے لس هُم هغه څرګندوی (هغه) هغه به

كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۸﴾

دروند وی په آسمانونو کښے هُم او مزکه کښے هُم را وُ تاسوله به ناساپه رازی۔ هغوی تا نه دَ قیامت دَ ورځے په حقله داسے سوال کوی لکه چه تهٔ هُم هغے وخت معلومولو ته لیواله ئے۔ تهٔ او وایه رماله دومره بس دهٔ) چه دَ هغے علم بس یوازے الله ته دے۔ ولے ډیر خلق په دے نهٔ پوهیګی۔

قُلْ لَّاۤ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۖۚ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ۚ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ع ﴿۱۸۹﴾

ع ۲۳ ۱۳

ربیا) تهٔ او وایه چه زهٔ په خپل ځان نهٔ دَ څهٔ ګټے مالک یم او نهٔ دَ څه نقصان۔ هن ! رماته به هغه رارسی) چه څه الله اوغواړی او که زهٔ دَ غیبونو واقف وے نو په ښېګړو کښے به م ډیرے رښېګړے) ځان ته غونډے کړے وے او ما ته به چرے څه تکلیف نهٔ وے رسیدلے۔ ولے زهٔ خو لبس دَ مومنانو دَپاره خبرداری ورکوونکے او زیرے ورکوونکے یم۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ فَلَمَّاۤ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۹۰﴾

هُم هغه دے چا چه تاسو دَ یو ځان نه پیدا کړی یئ او دَ هغے دَ جنس نه یئے دَ هغهٔ جوړه رغ کړے دهٔ چه هغه هغے ته په قربت سکون اُمومی۔ بیا نو چه کله دَ هغے هغهٔ نه ځیته شی نو هغه یو سپک شان پیټئ اوچت کړی او هغه ځان سره ګرزوی۔ بیا چه کله هغه رلږه) نوره درنه شی نو دواړه رښځه او سړے) خپل الله ته چه دَ هغوئ رب دے دُعا کوی چه که تهٔ مونږ له یو صحت مند ماشوم را کړے نو مونږ به شُکر کوُونکی بندیګان شُو۔

فَلَمَّاۤ اٰتٰىهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَاۤ اٰتٰىهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۱۹۱﴾

ولے چه کله هغه هغوئ له صحت مند ماشوم ورکړی نو هغوی دواړه په هغه اولاد کښے چه خدائے هغوئ له ورکړے وی دَ هغهٔ شریکان جوړول شرو کړی او الله دَ هغوئ دَ شرک نه ډیر اوچت دے۔

أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾

آیا هغوئ هغه چاله (دَخدائے) شریک گرزوی چه څهٔ
هُم نهٔ پیدا کوی بلکه په خپله زیږیږی۔

وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا وَلَا أَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُونَ ﴿١٩٢﴾

او دَ هغوی (شرک کوونکو) دَ هیڅ مدد طاقت هُم نهٔ
لری او نهٔ دَخپلوځانونو مدد کولے شی۔

وَإِنْ تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۚ سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ
أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنْتُمْ صَامِتُونَ ﴿١٩٣﴾

او که تهٔ هغه ناحقه معبودان نیغے لارے ته اوغوارے
نو هغوی به تا پسے نهٔ زی۔ ستا هغوی له را بلل یا چپ
اوسیدل هغوله یو برابر دی۔

إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ ۖ
فَادْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٩٤﴾

څوک چه تاسو دَ الله نه سوا رابلی هغوئ ستاسو په
شان بندیګان دی بیا تاسو هغوئ رابلئ (راو) که تاسو
رښتونی یئ نو هغوی دِ اوښائ چه تاسو له ستاسو نارو
جواب څنګه ورکوی۔

أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَا ۖ أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَا ۖ
أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَا ۖ أَمْ لَهُمْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ
بِهَا ۗ قُلِ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنْظِرُونِ ﴿١٩٥﴾

آیا دَ هغوی پښے شته چه کوموسره هغوئ ګرزی ؟
یا دَ هغوئ لاسونه شته چه کوموسره هغوئ نیسی ؟
یا دَ هغوئ سترګے شته چه کوموسره هغوئ وینی ؟
یا دَ هغوی غوا ږونه شته چه کوموسره هغوی آوری؟
تهٔ هغوی ته اووایه چه خپل ټول شریکان راوبلئ بیا
ټول په شریکه څما خلاف منصوبه اوکړئ او ماله
هیڅ ډیل رانکړئ۔

إِنَّ وَلِيِّيَ اللَّهُ الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَابَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى
الصَّالِحِينَ ﴿١٩٦﴾

په تحقیق سره زما دوست هغه خدائے دے چا چه
دا مکمل کتاب راستولے دے او هغه دَ نیکانو ملګرتیا
کوی۔

وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ
وَلَا أَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُونَ ﴿١٩٧﴾

او هغه خلق چه څوک تاسو دَ هغهٔ نه سوا رابلئ هغه نهٔ
خو ستاسو دَ مدد وس لری او نهٔ دَخپلوځانونو مدد کوی۔

وَإِنْ تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَسْمَعُوا ۖ وَتَرَاهُمْ
يَنْظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿١٩٨﴾

او که چرے تاسو هغوئ هدایت ته راوبلئ نو هغوی
اوریدے نشی او تهٔ هغوئ وینے کنی هغوئ تا ته

ګوري. په حقیقت کښې هغوی ړانده ) نۀ ګوري.

خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ۱۹۹

(اے نبي! ته ) د معافئ نه کار اخله او د فطرت سره د سمو خبرو حُکم ورکوه او د جاهلو خلقو نه مخ واړوه.

وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ إِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۲۰۰

او که چرے د شیطان د اړخه تا ته څۀ تکلیف او رسی نو ته د الله (تعالیٰ) نه پناه اوغواړه څوک چه ډیر اوریدُونکے (او) ډیر علم لرُونکے دے.

إِنَّ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطٰنِ تَذَكَّرُوْا فَإِذَا هُمْ مُّبْصِرُوْنَ ۲۰۱

په تحقیق سره هغه خلق چاچه هغه وخت تقویٰ وکړه چه کله هغوی ته د شیطان د اړخه خیال راغے او هغوی هوښیار شول او د هغوئ سترګے اوغړیدے (هغوی هدایت اوموندو)

وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّوْنَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُوْنَ ۲۰۲

او د دوی (کافرانو) رونړه خو هغوی ګمرهئ لارے ته راکاګی بیا هیڅ قِسم کمئ نۀ پریږدی.

وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِمْ بِاٰيَةٍ قَالُوْا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا قُلْ إِنَّمَآ أَتَّبِعُ مَا يُوْحٰٓى إِلَيَّ مِنْ رَّبِّيْ هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۲۰۳

او کله چه ته هغوئ له څۀ ښکاره نښان را اونړے نو وائی چه تا هغه (نښان) ولے نۀ دے راښکلے ته او وایه چه زۀ خو لس د خپل رب له اړخه په ځان د نازلیدو وحی لیپے زم. دا (وحی) ستاسو د رب له اړخه د دلیلونو ډکه ده او مومنانو له هدایت هُم ده او رحمت هُم ده.

وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۲۰۴

او (ربه خلقه) کله چه قرآن ویلے شی نو هغه اورئ او چپ او سئ چه په تاسو رحم اوکړے شی.

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ۲۰۵

او (اے نبی!) ته په خپل نفس کښې خپل رب په عاجزئ او ویره یادوه او په ټیټ آواز هُم سحر هُم او ماښام هُم (رډاسے کوه) او چرے په غافلانو کښې شامل نۀ شے.

إِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ۲۰۶

کوم خلق چه ستا رب سره دی په تحقیق سره د خپل رب په عبادت خپل ځانونه لوئے نۀ ګنړی او د هغۀ ثناء صفت بیانوی او هغۀ ته سجدے کوی.

## سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتٌّ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّعَشْرُ رُكُوْعَاتٍ

سورة انفال - دا سورة مدنی دے او بسم الله سره ﺩ دے څلور کم ۷۶ اتیه آیتونه او لس ۱۰ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (۱)

(شروع کوم) دَ الله په نوم چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۪ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۲)

(یه رسوله) خلق تا نه دَ غنیمت دَ مالونو په حقله تپوس کوی - ته (هغوئی ته) اووایه چه دَ غنیمت مالونه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول دی۔ بیا نو دَ الله تقویٰ اوکړئ او خپلو کښے دَ اصلاح کوشش کوئ۔ او که تاسو مومنان یئ نو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول منئ۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَاِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۚۖ (۳)

مومنان خو بس هغه دی چه کله (دَ هغوئ وړاندے) دَ الله ذکر اوشی نو دَ هغوی زړونه اوویریګی او چه کله دَ هغوی وړاندے دَ هغهٔ آیتونه اولوستے شی نو هغه دَ هغوئ ایمان زیات کړی- ورسره (مومنان هغه دی) چه په خپل رب باندے توکل کوی.

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ؕ (۴)

(دا شان رښتونی مومنان هغه دی) چه څوک نمونځونه (دَ شرطونو سره) ادا کوی او چه (څهٔ) مونږ هغوئ له ورکړی دی هغے نه لګوی۔

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۚ (۵)

(دا ذکر شوی صفتونه لرونکی) بس رښتونی مومنان دی- دَ هغوئ رب سره هغوئ دَ پاره (او چتے) اوچتے درجے او دَ بخښنے سامان او دَ عزت رزق دے۔

كَمَاۤ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۪ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ۙ (۶)

دا (انعام به په هغوئ) په دے سوب (کیګی) چه ته خپل رب دَ یو خاص مقصد دَ پاره دَ خپل کور نه وویستلے ئے او په مومنانو کښے یو ټولی دا

ډيره ناخوښه وه۔

يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُونَ ۝۶

هغوئ تاسره د حق ښکاره کيدو نه پس داسے بحث کوی لکه چه (اسلام ته په رابللو) هغوئ مرګ ته تيله کولے شی او (داسے ښکاری چه) هغوی (هغه مرګ په سترګو) وينی۔

وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكَافِرِينَ ۝۷

(او هغه وخت ياد کړئ) چه کله الله تاسو سره په دوه ټولو کښے د يو لوظ کولو چه هغه به تاسو له درکولے شی۔ او الله غوښتل چه هغه حق ځپلو احکامو سره پوره کړی او د کافرانو جرړے پريکړی۔

لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ ۝۸

ځکه چه هغه دا شان حق قائم کړی او باطل تباه کړی که مجرمان دا هرڅومره ناخوښوی۔

إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ ۝۹

(او هغه وخت هُم ياد کړئ) چه کله تاسو ځپل رب ته زارئ کولے۔ په دے ستاسو رب ستاسو دُعا کانے واوريدے۔ (او دے وئيل چه) زه به ستاسو مدد په زرګونو فرښتو کومه د چا به چه لښکر پسے لښکر وړاندے کيږی۔

وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِ قُلُوبُكُمْ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝۱۰ ع

او الله (تعالیٰ) دا خبر بس د يو زيری په شان نازل کړے وه چه د دے په سوب ستاسو زړونه تسله شی او مدد بس د الله نه رازی (فرښتے خو بس يو علامت دی) په تحقيق سره الله ډير غالب (او) د حکمتونو خاوند دے۔

إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ وَيُذْهِبَ عَنْكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ۝۱۱

(دا نښان هغه وخت ظاهر شو) چه کله خدائے امن او تسلئ د زيری ورکولو د پاره په تاسو پرکالی نازلوله او په تاسو ئے د وريځو نه اوبه (راوورولے چه هغے سره تاسو پاک کړی او د شيطان ګند (يعنی د هغهٔ

وېره) تاسو نه لرے کړی او چه ستاسو زړونه مضبوط کړی او د ے (باران) سره ستاسو قدمونه مضبوط کړی۔

إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا ۚ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿١٢﴾

(دا هغه وخت وو) چه ستا رب فرښتو ته هُم وحی کوله چه زۀ تاسو سره یم۔ بیا نو مومنان په زړونو مضبوط کړئ۔ زۀ به د کافرانو زړونو کښے رُعب اچوم بیا (ے مومنانو) تاسو د هغوئ په سټونو حملے کوئ او د هغوئ نس نس وهئ۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ وَمَن يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿١٣﴾

دا به ځکه کیګی چه هغوئ د الله او د هغۀ د رسُول مخالفت کړے دے۔ او چه څوک د الله او د هغۀ د رسُول مخالفت کوی (هغه دے پوهه شی چه) الله (تعالیٰ) ډیره سخته سزا ورکوونکے دے۔

ذَٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابَ النَّارِ ﴿١٤﴾

(ے خلقو!) روا ورئ د الله سزا) هُم دا ده وی نو بیا دا او څکئ او (یاد لرئ چه) کافرانو ته په تحقیق سره د اور عذاب رسیدُونکے دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ ﴿١٥﴾

ے مومنانو! چه کله تاسو کافرانو سره د یو لښکر په شکل مخ شئ نو چرے هغوئ ته مۀ شا کوئ۔

وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٦﴾

او چه څوک په دا سے وخت شا کړی۔ د دے نه سوا چه جنګ له ځائے بدلوی یا جا (مسلمان) ټولی له (مدد ورکولو له) زئ نو هغه به د الله قهر سره واپس ګرزئ او د هغۀ استوګنه به دوزخ وی او د اوسیدو د پاره هغه ځائے ډیر خراب دے۔

فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾

بیا (یاد لره چه) دوئ (یعنی کافران) تا نۀ وُو وژلی وے هغوئ الله (تعالیٰ) وژلی وُو او چه کله تا کانړی ویشتی وُو تا نۀ وُو ویشتلی وے خدائے ویشتلی وُو

چه دَ هغے نتیجه دا اوشوه چه هغه دَ هغے په سوب
په مومنانو لو لوئے احسان اوکړو۔ او په تحقیق سره
الله (تعالیٰ) ډیر اوریدُونکے اوعلم لرُونکے دے۔

ذٰلِكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ مُوْهِنُ كَيْدِ الْكٰفِرِيْنَ ⑱

دا (کار) به داسے کیګی (چه څنګه مونږ وئیلی وُو)
او په تحقیق سره الله (تعالیٰ) دَ کافرانو تدبیر کمزورے
کوُونکے دے۔

اِنْ تَسْتَفْتِحُوْا فَقَدْ جَآءَكُمُ الْفَتْحُ ۚ وَاِنْ تَنْتَهُوْا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ ۚ وَلَنْ تُغْنِيَ عَنْكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْـًٔا وَّلَوْ كَثُرَتْ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ⑲

(یه دَ مکے کافرانو) که چرے تاسو دَ غلبے نښان غوښتو
نو وا خلئ تاسو له غلبه راغله اوکه چرے اوس هُم
تاسو منع شئ نو په تحقیق سره دا به تاسو له ښه وی۔
اوکه چرے تاسو (ورانی ته) اوګرزئ نو مونږ به هُم
(سزا ته) اوګرزو۔ اوستاسو ډله که ډیره هُم مضبوطه
وی چرے به تاسو ته څهٔ فائده درنهٔ کړی او په تحقیق
سره الله (تعالیٰ) مُومنانو سره دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ⑳

اے مومنانو! دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول اطاعت کوئ
او په دوی کښے دَ چا نه هُم مخ مهٔ اړوئ په دے حال
کښے چه تاسو (دَ هغهٔ حُکم) آورئ۔

وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ㉑

او دَ هغه خلقو په شان مهٔ کیګئ چا چه داوئیلی وُو چه
مونږ اورو خو هغوئ نهٔ اوری۔

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ ㉒

دَ الله په نزد خو دَ ځناورونه زیات بد تر هغه خلق دی
چه کا نړهٔ او ګونګیان دی چه هد و هیڅ عقل نهٔ لری۔

وَلَوْ عَلِمَ اللّٰهُ فِيْهِمْ خَيْرًا لَّاَسْمَعَهُمْ ۚ وَلَوْ اَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ㉓

اوکه چرے الله (تعالیٰ) په دوئ (کافرانو) کښے څهٔ
خیر لیدے نو هغوئ ته به ئے (قرآن) اوروِلے وے
اوکه چرے هغوئ ته ئے (اوس دے حال کښے قرآن)
اوروِلے وے نو بیا به هُم هغوئ شا کړے وے او
(دَ قرآن نه به ئے) مخ اړولے وے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ ۚ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ وَاَنَّهٗۤ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝٢٤

يَه مومنانو! دَ الله اودَ هغهٔ دَ رسُول خبره آورئ کله چه هغه تاسو دَ ژوندی کولو دَ پاره راغواړی او پوهٔ شئ چه الله (تعالیٰ) دَ انسان اودَ هغهٔ دَ زړهٔ ترمنځهٔ دے او دا چه تاسو به دَ هغهٔ په طرف دَ ژوندی کولو نه پس بوتللے شئ۔

وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِيْبَنَّ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَاۤصَّةً ۚ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝٢٥

او دَ هغه شرنه ویریګئ چه په تاسو کښے به بس ظالمانو ته رسی او یادلرئ چه په تحقیق سره دَ الله (تعالیٰ) عذاب سخت وی۔

وَاذْكُرُوْۤا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِی الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝٢٦

او (یاد کړئ) چه کله تاسو لږ وئ او مزکه کښے به بے وسه کمزرے شوئ او ویریدئ چه خلق مو اوچت نهٔ کړی۔ بیا دے سره هُم هغهٔ تاسو له (مدینه کښے) ځائے درکړو او په خپل مدد ئے ستاسو مرسته اوکړه او پاکو څیزونو نه ئے تاسو له رزق درکړو چه تاسو شکر اوکړئ۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ وَتَخُوْنُوْۤا اَمٰنٰتِكُمْ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝٢٧

يَه مومنانو! دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول خیانت مهٔ کوئ او مهٔ دَ خپلو امانتُونو خیانت کوئ د اسے حال کښے چه تاسو ښهٔ پوهیګئ۔

وَاعْلَمُوْۤا اَنَّمَاۤ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗۤ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝٢٨

ع

او یادلرئ چه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد دلس یوه فتنه ده او دا چه الله هغه ذات دے چا سره چه لوئے اجر دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا وَّيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝٢٩

يَه مومنانو! که چرے تاسو دَ الله تقویٰ اوکړئ نو هغه به تاسو له دَ لو لوئے امتیاز سامان پیدا کړی او ستاسو کمزورئ به لرے کړی او تاسو به اوبخښی او الله ډیر فضل کوُونکے دے۔

وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ

او (یَه رسوله هغه وخت یاد کړه) هر کله چه کافرانو

يُخْرِجُوكَ ۚ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ۚ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِينَ ﴿۳۰﴾

ستا په حقله تدبيرونه کول چه تا زيوځائے ، قيد کړي يا تا مړکړي يا تا اوباسي او هغوی هُم تدبيرونه کول او الله هُم - او الله په تدبير کوونکو کښے د ټولو نه ښه تدبير کوونکے دے -

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۱﴾

او چه کله د هغوی وړاندے زمونږ آيتونه وئيلے شی نو هغوی وائی (بس بس) مونږ ستاسو خبره واوريده که چرے مونږ اوغواړو نو مونږ هُم داسے خبرے جوړولے شو۔ دا (قرآن) خو لس د وړاندينو خبرے دی۔

وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۳۲﴾

او ياد کړه) چه کله هغوی اووئيل يه الله! که چرے ستاله اړخه هُم دا (دين) حق دے نو مونږ باندے د آسمان نه کانړی اووروه يا مونږ له څه بل د غم نه ډک عذاب راکړه۔

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ﴿۳۳﴾

خو الله (تعالیٰ) هغوئ ته په دے حال کښے عذاب نهٔ شو ورکولے ځکه چه ته په هغوئ کښے وے او نهٔ الله (تعالیٰ) هغوئ ته داسے حال کښے عذاب ورکولے شو کله چه هغوئ استغفار کوی۔

وَمَا لَهُمْ اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ ۚ اِنْ اَوْلِيَآؤُهٗٓ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۴﴾

او هغوی ته څهٔ (نفع - حاصل) دے چه د څه په سوب سره د دے چه هغوئ د عزت لرونکی جُمات (يعنی خانه کعبے) نه (خلق) ايسا روی - الله به هغوی له عذاب نهٔ ورکوی او هغوئ په اصل کښے د دے منجاوران نهٔ دی - د دے (حقيقی) منجاوران خو لس متقيان دی وے دوئ (کافران) کښے ډير په دے خبره نهٔ پوهيګی۔

وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ اِلَّا مُكَآءً وَّتَصْدِيَةً ۚ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۵﴾

او خانه کعبے سره د هغوئ نمونځ د شپيلو وهلو او لاسُونو پړکولو نه سوا نور څهٔ دی - نو بيا (يه بے دينه خلقو!) د خپل کُفر په سوب عذاب اوڅکئ۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن
سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً
ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾

چا چه کُفر کړے دے هغوئ په تحقیق سره خپل مالونه دَ الله دَ لارے نه اړولو له لګوی۔ هغوئ به هُم دا شان دا مالونه لګوی او بیا آخر (دا خرڅ) به هغوی له دَ پښیمانتیا سوب جوړ شی۔ او هغوئ به مغلوب کړے شی او چا چه کفر کړے دے هغوئ به په یوځائے دَ دوزخ په طرف بوتلے شی۔

لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ
بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ
أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٣٧﴾ ع ١٨

ځکه چه الله (تعالیٰ) ناپاک دَ پاک نه بیل کړی او دَ ناپاکه څیزونو بعضے برخے دَ لعضو دَ پاسه کیږدی۔ بیا ټول دَ یو ډیری په شان کړی او بیا هغه (ټول ډیرے) په دوزخ کښے واچوی۔ و اورئ هُم دا (خلق) نقصان موندُونکی دی۔

قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا إِن يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ
سَلَفَ وَإِن يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣٨﴾

ته کافرانو ته اووایه چه که چرے هغوئ منع شی نو چه څه خطا هغوئ نه وړاندے شوے ده هغه به او بخښلے شی او که چرے هغوی بیا (هُم هغو ورانوته) واپس ګرزی نو دَ وړاندینو خلقو سره چه څه شوی دی، هُم هغه حال به دَ دوئ وی۔

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ
كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٣٩﴾

او دوئ (کافرانو) سره جنګیګئ تر دے چه دَ جبر څه پته نښه پ ے نشی او دین ټول دَ خدائے شی او که چرے هغوی ایسار شی نو الله په تحقیق سره دَ هغوی عملونو ته ګوری۔

وَإِن تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ
وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٤٠﴾

او که چرے هغوئ مخ واړوی نو پوهے شئ چه الله (تعالیٰ) په تحقیق سره ستاسو مل دے هغه ډیر ښهٔ ملګرے او ډیر ښهٔ مددګار دے۔

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۱﴾

او پوه شئ چه څه هُم تاسو ته غنیمت کښے په لاس درشی په هغے کښے الله او د هغهٔ د رُسول د پاره او (رُسول سره) نزدیکت لرُونکو د پاره او یتیمانو او مسکینانو د پاره او مسافرانو د پاره پنځمه برخه ده۔ که چرے تاسو په الله باندے ایمان راوړیٔ او په هغے باندے هُم چه مونږ په خپل بنده باندے حقو او ناحقو کښے فیصله کوُونکے ورځ کښے نازل کړی وُو که مه ورځ چه دواړه لښکرے یوځائے شوے وے۔ (نو دے باندے عمل کویٔ) او الله هر یو څیز باندے قادر دے۔

اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى وَالرَّكْبُ اَسْفَلَ مِنْكُمْ وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِي الْمِيْعٰدِ وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْۢ بَيِّنَةٍ وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْۢ بَيِّنَةٍ وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۴۲﴾

(هغه ورځ) هرکله چه تاسو (د جنګ د میدان) په دے غاړه وئ او هغوئ (کافران) پورے غاړه وُو او قافله تاسو نه لاندے طرف ته وه۔ او کچرے تاسو هغوی سره وعده هُم کولے نو تاسو به (د جنګ) د وخت په څله هغوئ سره اختلاف کولے وے (ځکه تاسو لوځائے کړیٔ) ځکه چه هغه هغهٔ خبره پوره کړی چه د کولو هغه فیصله کړے وه (او دا نښان دے د پاره هُم او ښودے شو) چه هغه څوک چه د دلیل په سوب هلاک شوے دے هلاک شی او چه څوک د دلیل په سوب ژوندیٔ شوے دے ژوندے شی او په تحقیق سره الله اوریدُونکے (او) ډیر علم لرُونکے دے۔

اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ كَثِيْرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ فِي الْاَمْرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۴۳﴾

(دا واقعه د هغه وخت ده) هرکله چه الله ستا په خوب کښے تا ته هغوئ لږ ښودلی وُو او کچرے تا ته هغوی (کافران) په شمیر کښے ډیر درښودے شوے

وے نو تاسو به خامخا کمزوری ښودلے او په دے خقله (یعنی دَ جنګ په خقله) په خپلو کښے په جهګړه وے (چه جنګ دے اوشی یا نه) ولے الله (تاسو) بچ اوساتلئ۔ هغه دَ زړونو پورے دَ خبرونه ښهٔ خبر دے۔

وَ اِذْ یُرِیْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَیْتُمْ فِیْۤ اَعْیُنِكُمْ قَلِیْلًا وَّ یُقَلِّلُكُمْ فِیْۤ اَعْیُنِهِمْ لِیَقْضِیَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۴۴ ع

(او یاد کړئ) هر کله چه هغهٔ هغوئ (کافرانو) له ستاسو په نظر کښے دَ جنګ په وخت کمزوری ښودلی او تاسوئے دَ هغوئ په نظر کښے کمزوری ښودلی ځکه چه الله هغه خبره پوره کړی چه دَ کومے هغهٔ فیصله کړے ده او هُم دَ الله په طرف به ټولے خبرے واپس ګرزولے شی۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا لَقِیْتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوْا وَ اذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِیْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۴۵

یَه مومنانو! هر کله چه تاسو (دَ کافرانو) فوځ ته مخامخ شئ نو قدمونه ټینګ کړئ او الله ډیر یادوئ ځکه چه تاسو کامیاب شئ۔

وَ اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا وَ تَذْهَبَ رِیْحُكُمْ وَ اصْبِرُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِیْنَ ۴۶

او دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول منئ او خپلو کښے اختلاف مهٔ کوئ (کچرے داسے مو اوکړل) نو زړهٔ به بائیلئ او ستاسو طاقت به ختم شی۔ او صبر کوئ۔ په تحقیق سره الله صبر کوونکو سره دے۔

وَ لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِیْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ بَطَرًا وَّ رِئَآءَ النَّاسِ وَ یَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا یَعْمَلُوْنَ مُحِیْطٌ ۴۷

او دَ هغه خلقو په شان مهٔ کیګئ چه دَ خپلو کورونو نه خلقو ته (خپله ښهٔ ځوانی او دینی غیرت) ښودلو دَ پاره په غرور سره اووتل او څوک چه دَ الله دَ لارے نه (خلق) منع کوی۔ الله دَ داسے خلقو دَ عملونو دَ تباه کولو فیصله کړے ده۔

وَ اِذْ زَیَّنَ لَهُمُ الشَّیْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ وَ قَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْیَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَ اِنِّیْ جَارٌ لَّكُمْ ۚ فَلَمَّا تَرَآءَتِ

او (یاد کړئ) هر کله چه شیطان کافرانو ته دَ هغوئ عملونه ښهٔ ډول اوښودل او وے وئیل چه نن

الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ اِنِّيْٓ اَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ ؕ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ ع

خلقو کښې څوک په تاسو باندې نشي غالب کيدې او زهٔ ستاسو ملاتړيم - بيا هرکله چه دواړه لښکرې مخامخ شوې نو هغه په خپلو ګيټو روستو شو او هغهٔ اووئيل (چه) زهٔ تاسو نه ويزاريم زهٔ هغه څه وينم چه تاسو يې نه وينئ زه الله نه ويريګم او دَ الله عذاب سخت وي.

اِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ ؕ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝

(ورسره ريادسائ) هرکله چه منافقانو او هغه چاچه زړونو کښې يې مرض وُو وئيل چه دغو مسلمانانو له دَ هغوی دين غاوره کړی دی په حقيقت کښې څوک چه په الله توکل هغه اوګوری ګوری چه الله ډير غالب (او) دَ حکمتونو خاوند دې.

وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا ۙ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ ۚ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ۝

کاش چه تهٔ هغه وخت خيال کښې راولې هرکله به چه ملائيکې دَ کافرانو ساه آخلي - او دَ هغوئ په مخلو او-ملاکانو به ګزارونه کوی او (دا به وائي چه) لوسوزيدونکې عذاب اوڅکئ.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۝ ۙ

دا (عذاب) ستاسو دَ لاسونو دَ تيرو کارونو نتيجه ده او (پوهه شئ چه) الله په خپلو بندی ګانو باندې لږ شان ظلم هُم نهٔ کوی.

كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝

دَ فرعون دَ قام دَ طريقې په شان او دَ هغه خلقو (دَ طريقې په شان) چه هغوئ نه آګاهو تير شوی دی (به ستاسو حشر کيګی) هغوی ټولو دَ الله دَ آيتونو انکار کړې وه - دې دَ پاره الله دَ هغوئ دَ ګناهونو په سوب هغوئ اونيول - په تحقيق سره الله ډير طاقت لرونکې (او) سخته سزا ورکوونکې دې.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً اَنْعَمَهَا عَلٰى قَوْمٍ

دا (به ځکه وی) چه الله کله به يو قام باندې څه نعمت

حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٥٣﴾

تا زلوی نوهغه نعمت نهٔ بدلوی ترڅو پورے چه هغه قام دَ خپل زړهٔ حالت بدل نهٔ کړی او په تحقيق سره الله ډيرآوريدُونکے (او) ډير علم لرُونکے دے۔

كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ ۚ وَكُلٌّ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿٥٤﴾

رَيه منکرانو !) ستا سو حال به هُم دَ فرعون دَ قام او دَ هغوئ نه دَ ړومبنو خلقو په شان ؤوى) چا چه دَ خپل رب دَ آيتونو نه انکار کړے وه۔ بيا نومونږ هغوئ دَ هغوئ دَ گنا هونو په سوب هلاک کړل (او دَ هغوی انعامات دے دَ پاره اوشوکولے شول چه هغوی دَ خدائے نه مخ وا ړولو) او مونږ ه دَ فرعون قام غرق کړے وه او هغوئ ټول ظالمان وُو۔

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٥٥﴾

دَ الله په نزد هغوئ (خلق) دَ څناورونه هُم بدتردی چا چه (دَ خدائے دَ آيتونو نه) انکار او کړو او هغوئ ايمان نهٔ راوړی۔

اَلَّذِيْنَ عٰهَدْتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَهُمْ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَّهُمْ لَا يَتَّقُوْنَ ﴿٥٦﴾

هغه خلق چا سره چه تا لوظ او کړو ولے هغوئ هر ځل خپل لوظ ماتوی او (دَ خدائے) تقوىٰ نهٔ کوی۔

فَاِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِى الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِمْ مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿٥٧﴾

بيا که چرے تهٔ جنگ کښے هغوئ لاندے کړے نو دَ هغوئ له کبله چه دَ هغوئ روستو ژوے ښکرے) دی هغوئ هُم اوزغلوه ځکه چه هغوئ عبرت واخلی۔

وَاِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً فَانْۢبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْخَآئِنِيْنَ ﴿٥٨﴾ ع

او که چرے تهٔ چا قام سره دَ لوظ ماتولو ويره لرے نو تهٔ دا شان دَ هغوئ لوظ ختم کړه چه دَ هغے نه هغوی پوهـ شی چه اوس تاسو دواړه (ښولی دَ خپلو پابندو نه) آزاد یئ۔ الله خيانت کوُونکی نهٔ خوښوی۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ۭ اِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُوْنَ ﴿٥٩﴾

او کافران دِ هيڅکله خيال نهٔ کوی چه هغوئ (دَ خپلو دهوکه بازو په سوب) وړاندے شوی دی هغوی به

هیڅکله (هُم مومنان) بے وسه نهٔ کړی۔

وَ اَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ قُوَّةٍ وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ ۚ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿٦٠﴾

او یَه مسلمانانو! پکار دی چه تاسو هغوئ (جنګ کوونکو) دَ پاره څومره چه کیدے شی خپل طاقتونه یوځائے کړئ۔ دَ ملکی انتظام په سوب هُم) او په سرحداتو دَ چهاونړو جوړولو په سوب هُم۔ دَ دغو (چهاونړو) په سوب تاسو دَ الله دُښمنان او خپل دُښمنان ویروئ او دَ هغوی نه سوا نور (دُښمنان) هُم چه دَ هغو (سرحدی دښمنانو) نه اخوا دی۔ تاسو هغوئ نهٔ پیژنئ وے الله هغوی پیژنی او تاسو چه څهٔ هُم دَ الله په لاره کښے لګوئ هغه به دَ هغے تاسوله پوره پوره اجر درکوی او تاسو سره به دَ ناانصافئ معامله نهٔ کیګی۔

وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٦١﴾

اوکه چرے (ستاسو دَ تیارو په لیدو) هغوئ (کافران) په صلح کولو رضاوی نو (یَه رسُوله!) تهٔ هُم په صلح رضا شه او په الله باندے توکل کوه۔ په تحقیق سره الله دیرے دُعا کانے اورېدُونکے (او) دیر علم لرُونکے دے

وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ۗ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٢﴾

اوکه چرے هغوئ دَ دے خبرے اراده لری چه روستو ته دهوکه درکړی نو (یاد ساته چه) په تحقیق سره الله تا دَ پاره کافی دے۔ هُم هغه دے چا چه تهٔ دَ مومنانو په سوب او دَ خپل مدد په سوب مضبوط کړے۔

وَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ۗ لَوْ اَنْفَقْتَ مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مَّآ اَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۗ اِنَّهٗ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٦٣﴾

او دَ هغوئ زړونه ئے خپلو کښے اونښل (دے پورے چه صحابه ستا دَ خولو په ځائے خپلے وینے تویولو دَ پاره تیار شول) که چرے هر هغه څه چه په زمکه کښے دی هُم تا په هغوئ لګولے وے نو بیا به هُم دَ هغوی زړونه تا دا شان نهٔ وے تړلے۔ وے الله هغوئ کښے یو بل سره مینه (او تا سره هُم مینه) قائمه کړه۔ په

تحقیق سره هغه غالب (او) ډیر د حکمتونو خاوند دے۔

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَسْبُكَ ٱللَّهُ وَمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝٦٤

ع اے نبیؐ! الله او هغه مومنان چه ستا تابع شوی دی ستا د پاره کافی دی (څوک چه مخالف دی د هغوی پروا مه کوه)

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَرِّضِ ٱلْمُؤْمِنِينَ عَلَى ٱلْقِتَالِ ۚ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَٰبِرُونَ يَغْلِبُوا۟ مِا۟ئَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّا۟ئَةٌ يَغْلِبُوٓا۟ أَلْفًا مِّنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ۝٦٥

اے نبیؐ! مومنانو ته (کافرانو سره) د جنګیدو بیا بیا په کلکه تحریک کوه او که چرے تاسو کښے ۲۰ شل ثابت قدم (مومنان) وی نو هغوئ به په ۲۰۰ دوه سوه (کافرانو) باندے غالب راځی ولے چه هغه یو داسے قام دے چه پوهیګی نه (او مومنان خو سره د پوهے په خپل ایمان قائم دی)۔

ٱلْـَٰٔنَ خَفَّفَ ٱللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا ۚ فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّا۟ئَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا۟ مِا۟ئَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوٓا۟ أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ۝٦٦

اوس الله تاسو نه پیتیځ سپک کړے دے او ورته معلومه ده چه تاسو کښے لا پورے څه کمزوری شته (یعنی ټول مومنان پوره پوره مومنان شوی نهٔ دی) بیا یکار دی چه که چرے تاسو کښے ۱۰۰ سل ثابت قدم (مومنان) وی نو په ۲۰۰ دوه سوه (کافرانو) باندے به غالب راځی او که چرے تاسو کښے ۱۰۰۰ زر ثابت قدم مومنان وی نو په ۲۰۰۰ دوه زره (کافرانو) باندے به د الله په حکم غالب راځی او الله ثابت قدم پاتے کیدونکو خلقو سره دے۔

مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِى ٱلْأَرْضِ ۚ تُرِيدُونَ عَرَضَ ٱلدُّنْيَا وَٱللَّهُ يُرِيدُ ٱلْـَٔاخِرَةَ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝٦٧

د هیڅ یو نبی سره نهٔ ښائی چه هغه قیدیان جوړ کړی ترڅو پورے چه هغوئ ملک کښے وینه توئے نکړی (که چرے تاسو بے د باقاعده جنګ نه قیدیان جوړ کړئ نو) تاسو به د دنیا د مالونو طلبګار او ګڼړے شئ۔ په حقیقت کښے الله تاسو د پاره د آخرت نعمتونه غواړی الله ډیر غالب (او) د لویو حکمتونو خاوند دے۔

لَّوْلَا كِتَٰبٌ مِّنَ ٱللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَآ أَخَذْتُمْ

(او) که چرے د الله د طرف نه د اول نه یو واضح حکم

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٦٩﴾

نه وے راغلے نو ځه چه تاسو (دَ قيد يانو) فديه آخستے وه دَ هغے په سوب به تاسو ته لوئے عذاب رسيدلے وے۔

فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٠﴾ ع

بيا نو (هر کله چه دَ فديے حُکم اول نه راغلے دے) ځه چه تاسو ته غنيمت کښے حاصل شي او (هغه دَ الٰهي حُکم لاندے) حلال او طيب وي هغه خورئ او دَ الله تقوىٰ کوئ۔ الله ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْٓ اَيْدِيْكُمْ مِّنَ الْاَسْرٰٓى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّآ اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧١﴾

اے نبيؐ! چه کوم خلق ستاسو لاسونو کښے دَ جنګي قيديانو په حيث دي هغوئ ته او وايه که چرے الله ستاسو زړونو کښے نيکي او ويني نو چه څه تاسونه (دَ جنګ دَ تاوان په طور) اخستي شوي دي دَ هغے نه ښهٔ به تاسو له درکړي او (دے نه سوا) ستاسو ګناهونه به هُم معاف کړي۔ او الله ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٧٢﴾

او که چرے هغوئ (دَ آزادئ نه پس) ستا دَ خيانت کولو اراده او کړي نو دے نه آګاهو هغوئ دَ الله هُم خيانت کړے دے۔ بيا هُم هغهٔ هغوئ ستاسو په قبضه کښے درکړل او الله ډير علم لرونکے (او) ډير دَ حکمتونو خاوند دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يُهَاجِرُوْا مَا لَكُمْ مِّنْ وَّلَايَتِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا ۚ وَاِنِ اسْتَنْصَرُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ اِلَّا عَلٰى قَوْمٍۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ ۗ وَاللّٰهُ

هغه خلق چه ايمان ئے راوړے دے او چا چه هجرت کړے دے او دَ الله په لار کښے ئے خپلو ځانونو او مالونو سره جهاد کړے دے او چا چه هجرت کوونکوله خپلو کورونو کښے ځائے ورکړے دے او دَ (هغوی) مد دئے کړے دے هغوی کښے بعضے دَ بعضو خوا رهٔ دوستان دی او هغه خلق چا چه ايمان راوړے دے

بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۷۲﴾

اوهغوی هجرت نهٔ دے کړے هغوئ سره دَزړهٔ نه دوستی کول ستاسو کار نهٔ دے ترڅو پورے چه هغوئ هجرت اونکړی اوکه چرے هغوئ تاسو نه دَ دین په مقله مدد اوغواړی نو په تاسو باندے دَ هغوی مدد کول فرض دی ولے دَ هغه قام خلاف نا چه دَ هغوئ اوستاسو ترمنځه څه عهد (تړلی) وی او الله ستاسو عملونه ګوری۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۗ اِلَّا تَفْعَلُوْهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْاَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ ﴿۷۳﴾

اوکومو خلقو چه انکار کړے دے هغوئ خپلو کښے دَ یو بل دوستان دی که چرے تاسو هُم هغه اونکړئ دَ څه چه مونږ تاسو ته حُکم درکړے دے نو زمکه کښے به غټ فساد او فتنه پیدا شی۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ۗ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿۷۴﴾

اوکومو خلقو چه ایمان راوړے دے او چا چه هجرت کړے دے او چا چه دَ الله په لاره کښے جهاد کړے دے او چا چه (هجرت کوونکو له) خپلو کورونو کښے ځائے ورکړے دے او دَ هغوئ مدد ئے کړے دے هُم هغوی رښتونی مومنان دی۔ هغوی ته به دَ ګنا هونو معافی هُم حاصلیګی او ورله به معزز رزق هُم وی۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْ بَعْدُ وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ ۗ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۷۵﴾ ع

اوکوم خلق به رچه دے وخت نه) پس ایمان راوړی او هجرت به هُم کوی اوستاسو په ملګرتیا کښے به جهاد کوی هغوی به هُم تاسو نه ګنړلے شی او بعضے رحمی خپلوان دَ بعضو په نسبت دَ الله دَ کتاب له مخے زیات نزدے وی۔ الله هرڅیز نه بښهٔ خبر دے۔

## سُوْرَةُ التَّوْبَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّتِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة توبه - دا سورة مدنی دے او دَدے یوسل یوکم دیرش (۱۲۹) آیتونه او شپاړلس (۱۶) رکوع دی

بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝۱

دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول دَ طرف نه ردے آیتونو کښے) دَ هغه مشرکانو (دَ الزام) نه دَ برئ کیدو اعلان کیګی چا سره چه تاسو شرط تړلے وُه (چه ستاسو به فتح وی او دَ هغوئ به ماتے (شکست)۔

فَسِيْحُوْا فِى الْاَرْضِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِى اللّٰهِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مُخْزِى الْكٰفِرِيْنَ ۝۲

بیا نو عربستان کښے څلور میاشتے اوګرزئ او اووینئ چه تاسو الله له ماتے نشئ ورکولے او دا (هم پوهه شئ) چه الله به کافرانو له هله پربزدی چه رسوا ئے کړی۔

وَاَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِىْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ وَرَسُوْلُهٗ ۚ فَاِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِى اللّٰهِ ۗ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۙ ۝۳

دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول دَ طرف نه ټولو خلقو ته دَ حج اکبر په ورځ دا اعلان دے چه الله او (داشان) دَ هغه رسُول هُم دَ مشرکانو (دَ ټولو الزامونو) نه برئ شوی دی (او مکه فتح شوے دهٔ) بیا که چرے (دَ دے نشان په لیدو) تاسو توبه اوکړئ نو دا به تاسو دَ پاره ښه وی۔ او که چرے تاسو شا کړئ نو پوهه شئ چه تاسو هیڅکله الله ته ماتے نشئ ورکولے او کافرانو ته خبر ورکړه چه دَ هغوئ دَ پاره (لیو) دردناک عذاب دے۔

اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوْكُمْ شَيْئًا وَّلَمْ يُظَاهِرُوْا عَلَيْكُمْ اَحَدًا فَاَتِمُّوْٓا اِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ اِلٰى مُدَّتِهِمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝۴

هن مشرکانو کښے چه چا سره تاسو لوظ کړے دے بیا هغوی ستاسو (سره د) لوظ مات نهٔ کړو او ستاسو خلاف ئے دَ چا مدد اونکړو تاسو دَ هغوئ لوظ دَ هغوی (دَ لوظونو) (مقرره) وخته پورے پوره کوئ (او هغوئ دَ ملک نه مهٔ اوباسئ) په تحقیق سره الله متقیان خوښوی۔

فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ٥

بیا هرکله چه هغه څلور میاشتے تیرے شي چه کومو کښے (د عربستان کافرانو سره پورتني آیتونو کښے) د جنګ نه منع کړے شوی وُو روسته بیا هُم هغوی د لوظ ناسے په طرف مائل نهٔ شول حال دا چه هغوی دے نه آګاه و مسلمانانو سره جنګیدل) نو چه د مشرکانو هغه خاص ټولۍ چرته هُم اووینئ قتلوئ ئے او هغوئ راګیروئ او هغوئ (د هغو په قلعه کانو کښے) بندوئ او د سارلو هرځائے باندے هغوئ د پاره کینئ بیا که چرے هغوئ توبه اوکړی او نمونځ قائم کړی او زکوٰة ورکړی نو د هغوئ لاره پرانزئ- په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے-

وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُونَ ٦ ع

او مشرکانو کښے که چرے څوک تا نه پناه او غواړی نو هغهٔ ته پناه ورکړه ترڅو پورے چه هغه د الله کلام واوری بیا هغهٔ د هغهٔ د امن ځائے ته اورسوه ولے چه هغه دا سے قام دے چه (حقیقت) نهٔ پیژنی-

كَيْفَ يَكُونُ لِلْمُشْرِكِينَ عَهْدٌ عِندَ اللَّهِ وَعِندَ رَسُولِهِ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ٧

الله او د هغهٔ رسُول مشرکانو سره څنګه لوظ و اقرار کولے شی سوا د هغو (مشرکانو) چا سره چه تاسو د مسجد حرام سره لوظ کړے وُه - بیا ترڅو پورے چه هغوئ (تاسو سره) په خپل لوظ ټینګ اوسی تاسو هُم هغوی سره په لوظ ټینګ اوسئ - الله (د لوظ ماتولونه) ځان ساتونکی خوښوی-

كَيْفَ وَإِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ۚ يُرْضُونَكُم بِأَفْوَاهِهِمْ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ

(هن دا سے مشرکانو ته څه رعایت) څنګه (ورکیدے شی) ولے که چرے هغوئ تاسو باندے برشی نو

وَاَكۡثَرُهُمۡ فٰسِقُوۡنَ ۚ ۸

ستاسو دَ ځه خپلوی یا لوظ نامے پروا ه به نهٔ کوی - هغوئ تاسو دَ خپلو خُلو (خبرو) سره خوشحالوی. حال دا چه دَ هغوئ زړُونه (دَ دغو خبرونه) انکار کوی او هغوئ کښے کنړ ځنے لوظ و اقرار ماتوونکی دی.

اِشۡتَرَوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيۡلًا فَصَدُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ؕ اِنَّهُمۡ سَآءَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ۹

هغوی دَ الله دَ آیتُونو په بدل کښے لږ غوندے قیمت وصول کړے دے او دَ هغهٔ دَ لارے نه ئے (خلق) منع کړی دی - په تحقیق سره دَ هغوئ عملُونه ډیر خراب دی -

لَا يَرۡقُبُوۡنَ فِىۡ مُؤۡمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ وَاُولٰٓـئِكَ هُمُ الۡمُعۡتَدُوۡنَ ۱۰

دَ هیڅ یو مومن په حقله هُم هغوئ دَ خپلوئ خیال نهٔ ساتی او نهٔ دَ لوظ و اقرار - او هغوئ دَ حد نه وتلی دی

فَاِنۡ تَابُوۡا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخۡوَانُكُمۡ فِى الدِّيۡنِ ؕ وَنُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ۱۱

بیا نو که چرے هغوئ توبه اوکړی او نمونځونه قائم کړی او زکوٰة ورکړی نو په دین کښے ستاسو رُونړه دی او مونږه (خپل) آیتونه دَ علم لرُونکی قام دَ پاره په تفصیل بیانوُو -

وَاِنۡ نَّكَثُوۡۤا اَيۡمَانَهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ عَهۡدِهِمۡ وَطَعَنُوۡا فِىۡ دِيۡـنِكُمۡ فَقَاتِلُوۡۤا اَئِمَّةَ الۡـكُفۡرِ ۙ اِنَّهُمۡ لَاۤ اَيۡمَانَ لَهُمۡ لَعَلَّهُمۡ يَنۡتَهُوۡنَ ۱۲

او که چرے (دا خلق) دَ خپل لوظ نه پس خپل قسمُونه مات کړی او ستاسو په دین باندے پیغور اوکړی نو (دا سے) دَ کُفر سردارانو سره جنګ کوئ ځکه چه هغوئ دَ شرارتُونو نه منع شی ولے چه دَ هغوی دَ قسمونو هیڅ اعتبار نشته -

اَلَا تُقَاتِلُوۡنَ قَوۡمًا نَّكَثُوۡۤا اَيۡمَانَهُمۡ وَهَمُّوۡا بِاِخۡرَاجِ الرَّسُوۡلِ وَهُمۡ بَدَءُوۡكُمۡ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ اَتَخۡشَوۡنَهُمۡ ۚ فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنۡ تَخۡشَوۡهُ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ۱۳

(یه مومنانو!) آیا تاسو به هغه قام سره نهٔ جنګیږئ چا چه خپل قسمونه مات کړل او رسُول له ئے (دَ هغهٔ دَ کورنه) دَ اوباسلو فیصله اوکړه او تاسو سره (جنګ پاره کولو کښے) (هُم) هغوئ شرو اوکړه - آیا تاسو هغوئ نه ویریږئ؟ (که چرے دا سے ده نو) که تاسو مومنان یئ نو بیا شئ چه الله دَ دے خبرے زیات

حق لری چه تاسو هغهٔ نه اویریکئ۔

قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾

هغوئ سره جنګیګئ الله به هغوئ ته ستاسو په لاسونو (ستاسو د لاسه) عذاب ورکوی او هغوئ به رسوا کوی او تاسو له به په هغوئ باندے برئ درکوی او دے سره به د مومن قام زړونوله (د زورنے او ویرے نه) آزادوی۔

وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٥﴾

او د هغوئ د زړونو قهر به لرے کوی او الله په چا باندے اوغواړی فضل کوی او الله ډیر علم لرونکے (او) د حِکمتونو خاوند دے۔

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾ ع ٢

آیا تاسو خیال کوئ چه تاسو به هُم داسے پریخوے شئ ولے حال دا چه ترا وسه الله هغو خلقو چا چه تاسو کښے جهاد کړے دے (د هغوی په مقابله کښے چا چه جهاد نهٔ دے کړے) ښکاره کړی نهٔ دی۔ چه د خدائے او د هغهٔ د رسول او د مومنانو په مقابله کښے کافرانو سره پټ ساز باز نهٔ لری او الله ستاسو د عملونو نه په ښهٔ شان واقف دے۔

مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَنْ يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّهِ شَاهِدِينَ عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ أُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ وَفِي النَّارِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿١٧﴾

(د اسے) مشرکانو ته (هیڅ) حق نهٔ رسی چه د الله جماتونه آباد کړی هرکله چه هغوئ په خپلو ځانونو باندے (خپله) د کفر ګواهی ورکوی۔ هُم دا خلق دی چه د چا عملونه تو ئے شول او هغوی به تر دیرے مودے اور کښے اوسی۔

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَىٰ أُولَٰئِكَ أَنْ يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾

د الله جماعتونه خو هُم هغوئ آبادوی چه په الله او ورځ د قیامت باندے ایمان راوړی او نمونځونه قائموی او زکوٰة ورکوی او د الله نه سوا د بل چا نه نهٔ ویریګي۔ بیا نزدے ده چه داسے خلق د کامیابئ په

طرف بوتلے شی۔

أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَآجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَجٰهَدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۚ لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ ﴿۱۹﴾

نصف

آیا تاسو په حاجیانو دَ اوبه څکولو او دَ خانه کعبې دَ آباد ساتلو کار دَ هغه سړی (دَ کار) په شان ګنړلے دے چه په الله او ورځ دَ آخرت باندے ئے ایمان راوړو او هغهٔ دَ الله په لاره کښے جهاد اوکړو دا (دواړه تولی) دَ الله په نزد (میشکله) برابرنهٔ دی او الله ظالم قام میشکله دَ کامیابئ په طرف نه وړولی۔

اَلَّذِينَ اٰمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۙ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُونَ ﴿۲۰﴾

(هغه خلق) چه ایمان ئے راوړو او چا چه هجرت اوکړو او (بیائے) دَ الله په لاره کښے دَ خپلو مالونو (په سوب هُم) او دَ ځانونو په سوب (هُم) جهاد اوکړو دَ الله په نزد په درجه کښے ډیر اوچت دی او هُم هغه خلق کامیابیدُونکی دی۔

يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُّقِيمٌ ﴿۲۱﴾

دَ هغوئ رب هغوی له دَ خپل عظیم الشان رحمت خبرورکوی او دَ (خپلے) رضا او دَ داسے جنتُونو هُم چه هغو کښه به دَ هغوئ دَ پاره تل تر تله نعمت وی (هغوی به) هغو کښے اوسیګی (یادلری چه) الله سره یقینی ډیر لوئے اجر دے۔

خٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۚ إِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿۲۲﴾

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَتَّخِذُوٓا اٰبَآءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَآءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُونَ ﴿۲۳﴾

یَه مومنانو! خپل پلاړنیکونه او ورونړه (خپل حقیقی) دوستان مهٔ جوړوئ کچرے هغوئ دَ ایمان په مقابله کښے کفر سره ډیره مینه کوی او تاسو کښے به چه کوم خلق هغوئ سره داسے دوستی کوی هغوئ به یقین سره ډیر ظالمان وی۔

قُلْ إِنْ كَانَ اٰبَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالُ ۨاقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ

تهٔ (مومنانوته) اووایه چه که چرے ستاسو پلاړ نیکونه او ستاسو ځامن او ستاسو ورونړه او ستاسو ښځے او ستاسو (نور) خپلوان او هغه مالونه چه تاسو

وَرَسُوْلِهٖ وَجِهَادٍ فِيْ سَبِيْلِهٖ فَتَرَبَّصُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ
اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۴﴾ ع

کتلی دی او هغه تجارتونه چه دَ هغو دَ نقصان نه تاسو
ویریگئ او هغه کورونه چه هغه تاسو خوښوئ تاسو ته
دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول او دَ هغهٔ په لاره کښے دَ جهاد
په نسبت ډیر گران دی نو تاسو انتظار کوئ ترهغے پورے
چه الله خپله فیصله ښکاره کړی او الله دَ اطاعت نه
وتونکی قام ته هیڅکله (دَ کامیابئ) لارنهٔ ښائی۔

لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِيْ مَوَاطِنَ كَثِيْرَةٍ ۙ وَّيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ
اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا وَّ
ضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ
مُّدْبِرِيْنَ ﴿۲۵﴾

الله په ډیرځلے ستاسو مدد کړے دے (خصوصاً) دَ
حُنین (دَ جنگ) په ورځ هرکله چه ستاسو کثرت شمیر
تاسو غاوره کړی وئ۔ بیا هغه (کثرت شمیر) ستاسو په
هیڅ کار رانغے او زمکه سره دَ ارتوالی په تاسو تنګه
شوه او تاسو په شاتخ واړولو۔

ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ
وَاَنْزَلَ جُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا وَعَذَّبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ
وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۶﴾

او الله خپل سکینت خپل رسول او مومنانو باندے نازل
کړو او داسے لښکرے یئے را خکته کړے چه هغه
تاسو نهٔ لیدے او کافرانو له موعذاب ورکړو او
دَ کافرانو هُم دا جزا ده۔

ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ
غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۷﴾

او الله دَ داسے سزا نه پس چه په چا باندے اوغواړی
رحم کوی او الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم
کوونکے دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا
الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا ۚ وَاِنْ خِفْتُمْ
عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖۤ اِنْ شَآءَ ؕ
اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۸﴾

یه مومنانو! مشرکان په حقیقت کښے پلیت (او
ناپاک) دی بیا نو هغوئ دَ دے کال نه پس مسجد
حرام (یعنی خانه کعبے) ته نزدے را نشی اوکه چرے
تاسو ته دَ غریبئ خطر وی نو که الله خوښهٔ کړهٔ تاسو
به په خپل فضل خامخا غنی کړی۔ په تحقیق سره الله
ډیر خبردار (او) دَ حکمتونو خاوند دے۔

قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

څوک چه په الله ایمان نهٔ راوړی او نهٔ په ورځ دَ

وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿۲۹﴾

آخرت او نهٔ هغه حرام ګڼړي څه چه الله او دَ هغهٔ رسُول حرام کړي دي او نهٔ رښتونے دين خپلوي يعني هغه خلق چاله چه کتاب ورکړے شوے دے هغوي سره جنګ کوئ ترڅو پورے چه هغوي په خپله رضا جزيه ورنکړي او هغوئ سناسو ولکه کښے رانشي۔

ع

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللّٰهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللّٰهِ ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ يُضَاهِـُٔوْنَ قَوْلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۳۰﴾

او يهوديان وائي چه عُزير دَ الله ځوئ دے او نصرانيان وائي چه مسيح دَ الله ځوئ دے۔ دا (خبره) هسے دَ هغوئ دَ خُلے لاپه ده هغوئ (بس هسے) دَ ځان نه دَ وړاندے کافرانو دَ خبرو نقل کوي۔ الله هغوئ هلاک کړه۔ هغوئ دَ حقيقت نه څنګه لرے زي۔

اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۱﴾

هغوئ احبار او رُهبان دَ الله نه سوا خپل رب نيولے دے دا شان مسيح ابن مريم لره هُم۔ حال دا چه هغوئ ته بس دومره حُکم ورکړے شوے وه چه هغوئ دَ يو خدائے عبادت اوکړي چه دَ هغهٔ نه سوا څوک معبود نشته۔ هغه دَ هغوئ دَ شرک نه پاک دے۔

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَيَاْبَى اللّٰهُ اِلَّآ اَنْ يُّتِمَّ نُوْرَهٗ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۳۲﴾

هغوئ غواړي چه دَ الله نُور دَ خپلو خلو په پوکومړکړي او الله دَ خپل نُور دَ پوره کولو نه سوا دَ بلے هرے خبرے نه انکار کوي که په کافرانو هرڅومره بده هُم لګي۔

هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾

هُم هغه دے چاچه خپل رُسول هدايت او حق دين سره اوليږلو۔ دے دَ پاره چه په (نورو) ټولو دينُونو باندے هغه غالب کړي هرڅوکه مشرکانو باندے دا خبره ډيره بده هُم لګي۔

النصف

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْاَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ

يه مومنانو! ډير احبار او رُهبان دَ خلقو مالونه په ناروا خوري او (خلق) دَ الله دَ لارے نه منع کوي او هغه خلق (هُم) چه سرهٔ سپين جمع کوي او دَ الله په لاره کښے

أَلِيمٍ ﴿٣٤﴾

نه ګکوی دغوته دَ دردناک عذاب خبرور کړه۔

يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ ﴿٣٥﴾

دا (عذاب) به هغه ورځ (وی) هرکله به چه دغه (راغونډ کړی شوی سرو سپینو) باندے دَ جهنم اور لګولے شی بیا دغے (سرو سپینو) سره به دَ هغوئ په تندو او اړخونو او شاه ګانو داغونه لګولے شی (او ورته به وئیلے شی چه) دا هغه خیز دے کوم چه تاسو خپلو ځانونو دَ پاره جمع کول بیا چه کوم خیزونه به تاسو جمع کول دَ هغو خوند واخلئ۔

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٦﴾

په تحقیق سره دَ میاشتو شمیره دَ الله په نزد (حکم) دولس[۱۲] میاشتے وی۔ دا دَ الله قانون دے۔ دَ هغے ورځے راسے چه آسمانونه او زمکے هغهٔ پیدا کړی دی۔ دغو (میاشتو) کښے څلور دَ عزت میاشتے دی دا مضبوط دین دے۔ بیا (پکار دی چه) دغو میاشتو کښے په خپلو ځانونو ظلم مه کوئ او ټولو مشرکانو سره جنګیږئ څنګه چه هغوئ ټول تاسو سره جنګیږی او یاد لرئ چه الله متقیانو سره دے۔

إِنَّمَا النَّسِيءُ زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ يُضَلُّ بِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُحِلُّونَهُ عَامًا وَيُحَرِّمُونَهُ عَامًا لِّيُوَاطِئُوا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ فَيُحِلُّوا مَا حَرَّمَ اللَّهُ زُيِّنَ لَهُمْ سُوءُ أَعْمَالِهِمْ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٣٧﴾ ع

نَسِيءَ لس دَ کُفر دَ زمانے زیاتی دے چه هغے سره کافران بے لارے کیږی هغوئ هغه یو کال حلال ګرزوی او بل کال ئے حرام ګرزوی دے دَ پاره چه هغوئ میاشتو له دَ کال دَ ټا کلو میاشتو دَ شمیرے برابر کړی او دَ هغو میاشتو سره ئے سمے کړی چه پکښے جنګ منع دے (او دَ خپله لاسه پیدا کړے تبدلئ په سوب چه څه اختلاف پیدا شوے دے هغه پوره کړی) او دَ دے عملونو خرابی (دَ شیطان دَ طرف نه) هغوئ ته خائسته ښکاره کړے شوے ده او الله کافر قام ته دَ کامیابئ

لاره نهٔ بنائ ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَا لَكُمْ اِذَا قِيْلَ لَكُمُ انْفِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اثَّاقَلْتُمْ اِلَى الْاَرْضِ ؕ اَرَضِيْتُمْ بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا مِنَ الْاٰخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا قَلِيْلٌ ﴿۳۸﴾

يَه مومنانو ! په تاسو څهٔ شوی دی چه هرکله تاسوته اووئيلے شی چه دَ الله په لاره کښے جنګيدو دَ پاره رتلو پيو څائے) اوزئ نو تاسو خلق خپل ملک رسره دَ مينے) په طرف تيتيږئ ۔ آيا تاسو دَ آخرت په ځائے دَ دُنيا ژوند خوښوئ ؟ رکه چرے داسے ده) نو ياد لرئ چه دَ دنيا دَ ژوند سامان دَ آخرت په مقابله کښے بس يو بے کاره څيز دے ۔

اِلَّا تَنْفِرُوْا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوْهُ شَيْـًٔا ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۳۹﴾

که چرے تاسو رتلو يو ځائے دَ الله په لاره کښے) جنګ دَ پاره نهٔ اُوزئ نو هغه به تاسو له دردناک عذاب درکړی او ستاسو نه سوا به يو بل قام راولی او تاسو هغهٔ يعنی الله ته څه نقصان رسولے نشئ او الله په هرڅيز باندے رچه دَ هغے دَکولو هغه اراده اوکړی ) قادر دے ۔

اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ اِذْ اَخْرَجَهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْ هُمَا فِي الْغَارِ اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا ۚ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلَيْهِ وَاَيَّدَهٗ بِجُنُوْدٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِيْنَ كَفَرُوا السُّفْلٰى ؕ وَكَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۴۰﴾

که چرے تاسو دَ رسُول مدد اونکړئ نو ياد لرئ چه) الله دَ هغهٔ هغه وخت هُم مدد کړے دے هرکله چه هغهٔ له کافرانو په دوو کښے دَ يو په صورت اوباسلے وُو هرکله چه هغوی دواړه غار کښے وو او هرکله چه هغهٔ خپل ملګری رابوبکرؓ) ته وئيل چه په تيره هيره رخيره) غم مهٔ کوه ۔ په تحقيق سره الله مونږ سره دے بيا الله په هغه باندے تسلّی نازله کړه او دَ هغهٔ مدد ئے داسے لښکرو سره اوکړو کوم چه تاسو نهٔ ليدل او دَ هغو خلقو خبره ئے لاندے کړه چا چه کُفر کړے وو او هُم دَ الله خبره پاس پاتے کيږی او الله ډير غالب راو) دَ حِکمتُونو خاوند دے ۔

اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا وَّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ

يَه مومنانو ! جهاد دَ پاره اوزئ که چرے تاسو سره

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۚ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾

ساز وسامان وی یاکه نهٔ وی او خپلو مالُونو او خپلو ځانُونو سره دَ الله په لاره کښے جهاد کوئ - دا به تاسو دَ پاره که چرے تاسو پوهیګئ ډیره بنه وی.

لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَّسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ وَلٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُونَ ﴿٤٢﴾

که چرے زر حاصلیدُونکے فائده وے یا لنډ سفر ئے وو دا خلق به تا پسے تلے وے هغوئ ته سفر لرے معلوم شو خو راوس به هغوی ستا دَ واپسی نه پس) دَ الله قسمونه خوری (او) وائی به چه که چرے زمونږ وس کښے وے نو مونږ به خامخا تاسو سره وتے (دا خلق) خپل ځانونه هلاکوی او الله پوهیګی چه دوئ دروغژن دی.

ع ۱۲

عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ ۚ لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكٰذِبِينَ ﴿٤٣﴾

الله ستا دَ غلطئ بد اثر ختم کړو او تا له ئے عزت درکړو خو تا ولے هغو (اجازت غوښتُونکو) ته دَ روستو پاتے کیدلو اجازه ورکړے وه (تا به دَ هغوئ په تلو اصرار کوے) ترهغے پورے چه رښتیا ویُونکی تا ته ښکاره شوے وے او تا ته دَ دروغژنو هُم پته لګیدلے وے.

لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ ﴿٤٤﴾

څوک چه په الله او دَ آخرت په ورځے ایمان راوړی او هغوئ خپلو مالُونو او ځانو نو سره دَ جهاد نه دَ پاتے کیدلو اجازه نهٔ غواړی - الله دَ متقیانو نه ښه واقف دے.

إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴿٤٥﴾

دَ روستو پاتے کیدو اجازه لبس هغوئ غواړی چه په الله او ورځ دَ آخرت باندے ایمان نهٔ راوړی او دَ هغوئ په زړونو کښے شبهات پیدا شوی دی بیا نو هغوئ دَ خپلو شبهاتو له کبله کله دیخوا کیګی کله اخوا.

وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلٰكِنْ كَرِهَ اللّٰهُ انْبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقٰعِدِينَ ﴿٤٦﴾

او که چرے هغوی (جنګ دَ پاره) دَ وتلو څه اراده لرلے نو دے دَ پاره به ئے څه تیاری هُم کولے ولے الله دَ هغوئ (جنګ دَ پاره) وتل خوښ نهٔ کړل. بیا هغوی ئے

خپل ځانونه باندے کینول او هغوئ ته دا او وئیلے شو (یعنې دَ هغوئ کافرانو دوستانو او وئیل) چه څوک ناست پاتے دی هغوی سره تاسو هُم ناست اوسئ۔

لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَّا زَادُوْكُمْ اِلَّا خَبَالًا وَّلَا۟اَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ يَبْغُوْنَكُمُ الْفِتْنَةَ ۚ وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۷﴾

که چرے هغوئ تاسو سره یوځائے وتے وے نو خرابي پیدا کولو نه سوا به ئے ستاسو څه مدد نهٔ وے کړے او هغوی به ستاسو ترمنځه (دَ فساد کولو دَ پاره) آسونه ښهٔ زغلولے (او) ستاسو ترمنځه به ئے فتنه پیدا کول غوښتے او تاسو کښے (هُم) ځنے داسے (خلق موجود) دی چه هغوئ ته دَ رَسولو دَ پاره خبرے آوری او الله ظالمان ښهٔ پیژنی۔

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوْا لَكَ الْاُمُوْرَ حَتّٰى جَآءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ اَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ﴿۴۸﴾

هغوئ دے نه آګاهو هُم فتنه (پیدا کول) غوښتلے وه او تاسو دَ پاره ئے حالات په څوځو رنګه بدل کړی وُو۔ تردے چه حق راغے او دَ الله فیصله ښکاره شوه او هغوئ دا فیصله نهٔ خوښوله۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَلَا تَفْتِنِّيْ ؕ اَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا ؕ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۴۹﴾

او هغوئ کښے ځنے منافق داسے هُم دی چه وائی چه مونږ له (دَ روستو پاتے کیدو) اجازه راکړه او مونږ جنګ له دَ تلو په آزمینت کښے مهٔ آچوه - واوره! دا خلق اول نه په فتنه کښے پراته دی او په تحقیق سره جهنّم کافرانو له نباه کوونکے دے۔

اِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۚ وَاِنْ تُصِبْكَ مُصِيْبَةٌ يَّقُوْلُوْا قَدْ اَخَذْنَآ اَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوْا وَّهُمْ فَرِحُوْنَ ﴿۵۰﴾

که چرے تانه څه فائده اورسی نو په هغوئ بدلګی او که چرے په تاباندے څه مصیبت راشی نو هغوی وائی مونږ خو دَ آګاهو نه دَ خپلو راتلونکو ورځو انتظام کړے وه او هغوئ دَ خوشحالئ نه په شا نیږشی۔

قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَآ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا ۚ هُوَ مَوْلٰىنَا ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾

تهٔ (هغوئ ته) او وایه مونږ ته خو هُم هغه رسی چه الله مونږ دَ پاره مقرر کړی دی هغه ځمونږ کارجوړے

دے او مومنانو له پکار دی چه هغوئ هُم په الله باندے توکل کوی۔

قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ؕ وَ نَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمُ اللّٰهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهٖۤ اَوْ بِاَيْدِيْنَا ۖ فَتَرَبَّصُوْۤا اِنَّا مَعَكُمْ مُّتَرَبِّصُوْنَ ﴿۵۲﴾

تهٔ (هغوئ ته) ووایه چه دوه ښیګړو کښے دَ یو نه سوا تاسو څمونږ دَ پاره دَ څهٔ خبرے انتظار نهٔ کوئ او مونږ تاسو دَ پاره لس دَ دے خبرے انتظار کوو چه الله به تاسو له دَ خپل طرف نه یا څمونږ په لاسو عذاب درکوی بیا تاسو هُم انتظار کوئ مونږ هُم تاسو سره انتظار کوو۔

قُلْ اَنْفِقُوْا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ مِنْكُمْ ؕ اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۵۳﴾

تهٔ (هغوئ ته) ووایه چه کهٔ په رضا ئے لګوی یا په نارضا تاسو نه به په هیڅ رنګ کښے (ستاسو صدقه) نهٔ قبلیږی ځکه چه تاسو دَ اطاعت نه وتونکے قام یئ۔

وَ مَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّاۤ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَ بِرَسُوْلِهٖ وَ لَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَ هُمْ كُسَالٰى وَ لَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَ هُمْ كٰرِهُوْنَ ﴿۵۴﴾

او دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول دَ انکار کولو نه سوا او دَ دے خبرے نه سوا چه هغوئ نمونځ په ډیره ناراستیٔ کولو او دَ خدائے په لاره کښے ئے په ناخوښیٔ خرڅ کولو دَ هغوی صدقے قبلولو نه چا منع کړی دی۔

فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَ لَاۤ اَوْلَادُهُمْ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ تَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۵۵﴾

بیا تهٔ دَ هغوئ په مالونو او دَ هغوئ په اولاد تعجب مهٔ کوه۔ الله لس دا غواړی چه دَ دغو مالونو او اولاد په سوب هغوئ له دَ دے دنیا په ژوند کښے عذاب ورکړی او دا چه دَ هغوئ سا کانے دا سے وخت کښے اوزی چه هغوی انکاریان وی۔

وَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ ؕ وَ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَ لٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَّفْرَقُوْنَ ﴿۵۶﴾

او هغوئ په دے خبره باندے دَ الله قسمونه خوری چه هغوئ تاسو نه دی۔ په حقیقت کښے هغوی تاسو نه نهٔ دی بلکه هغوئ یو داسے قام دے چه ډیر بُزدل دے۔

لَوْ يَجِدُوْنَ مَلْجَاً اَوْ مَغٰرٰتٍ اَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا اِلَيْهِ وَ هُمْ يَجْمَحُوْنَ ﴿۵۷﴾

که هغوئ څه دَ پناه ځائے یا په پتهه دَ اوسیدو دَ پاره غار یا دَ ننوتے دَ پاره څه ځاے اومومی نو هغوئ

به په ښاهلته په منډو منډو لاړشي۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِي الصَّدَقٰتِ ۚ فَاِنْ اُعْطُوْا مِنْهَا رَضُوْا وَاِنْ لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَآ اِذَا هُمْ يَسْخَطُوْنَ ﴿۵۸﴾

او هغوئ کښې څه (منافقان) داسې دي چه د صدقو په حقله په تا الزام لګوی۔ که چرے هغو صدقو کښې هغوئ ته څه ورکړے شي نو هغوئ راضا شي او که چرے هغو کښې هغوئ ته څه ورنکړے شي نو سمدستي خفه شي۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ رَضُوْا مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ ۙ وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ سَيُؤْتِيْنَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ وَرَسُوْلُهٗٓ ۙ اِنَّآ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ ﴿۵۹﴾ ع

او که چرے هغوئ د الله او د هغهٔ د رسول په ورکړه خوشحالیدے او دا ئے وئیلے چه هُم الله څمونږ د پاره کافی دے (که چرے څمونږ لاس تنګ وی نو) الله به په خپل فضل مونږ له راکړی او (دا شان) د هغهٔ رسول هُم۔ مونږ د خپل الله په طرف تمیتهیدُونکی یُو (نو دا به د هغوئ د پاره بنه وه)۔

اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۭ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۶۰﴾

صدقے خولس د فقیرانو او مسکینانو د پاره دی او هغوی د پاره چه د دغو صدقو د پاره مقرر شوی دی ورسره د هغوئ د پاره چه د چا زړونه (ځان سره) نرل غوښتل وی او دا شان د قیدیانو او قرضدارانو د پاره او (هغوئ د پاره چه) د الله په لاره کښې (جنګ کوی) او مسافرانو د پاره دا فرض الله مقرر کړے دے او الله ډیر خبردار (او) د ډیر حکمت خاوند دے۔

وَمِنْهُمُ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ النَّبِيَّ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ اُذُنٌ ۭ قُلْ اُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۭ وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۱﴾

او هغوئ کښې ځنے داسے (منافقان) هُم دی چه نبی ته تکلیف ورکوی او وائی چه هغه خو (تهول) غوږونه دی۔ ته اووایه چه هغه تاسو د پاره د ښیګړے د اوریدو غوږونه لری۔ هغه په الله باندے ایمان راوړی او چه څوک تاسو کښې مومنان وی د هغوئ (په لوغطونو) باندے (هُم) یقین لری او مومنانو د پاره د رحمت موجب دے او هغه خلق چه د الله رسول ته تکلیف رسوی

هغوئ دَ پاره دردناک عذاب دے۔

يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ لِيُرْضُوْكُمْ ۚ وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗۤ اَحَقُّ
اَنْ يُّرْضُوْهُ اِنْ كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٢﴾

هغوی ستاسو دَ خوشحالولو دَ پاره دَ الله قسمونه خوری. حقیقت کښے الله هُم او دَ هغهٔ رسُول هُم زیات حقدار دے چه خوشحاله کړے شی په دے شرط چه دوئ (منافقان) رښتونی مومنان وی۔

اَلَمْ يَعْلَمُوْۤا اَنَّهٗ مَنْ يُّحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاَنَّ
لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ﴿٦٣﴾

آیا هغوی ته معلومه نهٔ ده چه څوک دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول مخالفت کوی دَ هغهٔ دَ پاره دَ جهنّم اور دے هغه به هغے کښے تل اوسی او دا ډیره غټه رسوائی ده۔

يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ
بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ قُلِ اسْتَهْزِءُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مُخْرِجٌ
مَّا تَحْذَرُوْنَ ﴿٦٤﴾

منافقان (هسے دَ ښوونے دَ پاره) دَ ویرے اظهار کوی چه دَ هغوئ خلاف چرته سورة نازل نشی چه هغوئ له (او مسلمانانو له) دَ دے خبرو نه خبر کړی چه دَ هغوئ په زړونو کښے دی۔ ته اووایه چه ټکیا اوسئ خندا کوئ۔ الله (تعالیٰ) به هغه خبره ښکاره کړی چه دَ هغے (دَ څرګندولو) نه تاسو (دَ ښوونے په ډول) ویرېږئ۔

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اِنَّمَا كُنَّا نَخُوْضُ وَنَلْعَبُ ؕ
قُلْ اَبِاللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ وَرَسُوْلِهٖ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٦٥﴾

او که چرے ته هغوئ نه تپوس اوکړے (چه تاسو داسے خبرے ولے کوئ) نو هغوئ به خامخا هُم دا ځواب درکړی (چه) مونږ خولس تهوقه او خندا کوله ته هغوئ نه ځواب ورکړه چه آیا الله او دَ هغهٔ آیتونو او دَ هغهٔ رسُول پورے تهوقے او خندا کوئ۔

لَا تَعْتَذِرُوْا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ؕ اِنْ نَّعْفُ عَنْ
طَآئِفَةٍ مِّنْكُمْ نُعَذِّبْ طَآئِفَةًۢ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿٦٦﴾ ع ٨ ١٤

اوس هیڅ عذر مهٔ کوئ تاسو ایمان (راوړونه پس کفر اوکړو (ریانو دَ دے سزا مومئ) که چرے مونږ تاسو کښے یو ټولئ معاف کړو او یو بل ټولی له عذاب ورکړو دے دَ پاره چه هغوئ مجرمان وُو (نو دا ځمونږ کار دے)

اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ بَعْضُهُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ يَأْمُرُوْنَ بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوْفِ وَيَقْبِضُوْنَ اَيْدِيَهُمْ نَسُوا اللّٰهَ فَنَسِيَهُمْ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٦٧﴾

منافق سړي او منافقانې ښځې خپلو کښې یو بل سره تعلق ساتي - هغوئ د بدو خبرو حکم ورکوي او د ښو خبرو خلاف تعليم ورکوي او خپل لاسونه (د خدائے په لاره کښې د خرڅ کولو نه) راکاږي - هغوي الله پریخو بیانو الله هُم هغوئ پریخول - په تحقیق سره منافقان د اطاعت نه بهر وتونکي دي -

وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا هِيَ حَسْبُهُمْ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٦٨﴾

الله منافقانو سړو او منافقو ښځو او کافرانو سره د جهنم د اور وعده کړے ده هغوي به په دے کښې اوسي - هُم هغه د هغوئ د پاره کافي دے (او دے نه سوا) الله هغوئ (د خپل دربنه) شړلي هُم دي او د هغوئ د پاره یو قائم پاتے کیدونکے عذاب دے -

كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْا اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿٦٩﴾

(یه منافقانو! دا عذاب به) د هغو خلقو (د سزا) په شان (وي) چه تاسو نه اَګا هُوتیرشوي دي - هغوئ تاسو نه زيات طاقتور وُو - هغوئ زيات مال دار (وُو) او زيات اولاد ئے لرلو بیا هغوئ د خپلے برخے مطابق فائده اوچته کړه څنګه چه تاسو نه وړاندينو خلقو د خپلے برخے مطابق فائده اوچته کړه او تاسو دا شان توقه وشتنه اوکړه څنګه چه هغو خلقو توقه وشتنه کړے وه - د هغوي عمل د دُنيا په حقله هُم او د آخرت په حقله هُم لوټے شو او هغه خلق نقصان اوچتوونکي شول -

اَلَمْ يَأْتِهِمْ نَبَاُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ وَقَوْمِ اِبْرٰهِيْمَ وَاَصْحٰبِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكٰتِ اَتَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٧٠﴾

آیا هغوئ له د هغو خلقو خبر ونه دی راغلی چه هغوئ نه اَګا هُوتیرشوي دي یعنې نوحؑ او د عادؑ او ثمودؑ (د قام چه د صالحؑ قام وُه) او د ابراهیمؑ د قام او د مدین د خلقو (یعنې د لوط د قام) - هغوئ له د هغوئ رسولان

ښکاره نښانانو سره راغلي وُو روبے هغوئ انکار اوکړو
اوسزا ئے اوموندله) الله په هغوئ باندے ظُلم اونکړو
بلکه هغوئ په خپلو ځانونو باندے (خپله) ظلم کولو۔

وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ أُولَٰئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۷۱﴾ ربع

او مومن سړي او مومنانے ښځے خپلو کښے یو تر بله دوستان
دي۔ هغوئ دَ نیکو خبرو حُکم ورکوی او دَ بدو خبرو نه
منع کوی او نمونځ کوی او زکوٰة ورکوی او دَ الله او دَ
هغهٔ دَ رسُول اطاعت کوی۔ دوی داسے خلق دی چه
الله به خامخا په هغوئ رحم کوی۔ الله غالب (او)
دَ لوئے حِکمت خاوند دے۔

وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ۚ وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿۷۲﴾ ع ۱۵

الله مومنانو سړو او مومنانو ښځو سره دَ داسے جنتونو
وعدے کړي دي چه ورلاندے نهرونه بهیګی۔ هغوئ
به هغو کښے تل تر تله اوسی۔ او تل عمری جنتونو کښے
دَ استوګنے پاکو ځایونو (هُم وعده کړے ده) او دے
نه سوا دَ الله رضا دَ ټولونه لوئے انعام دے (چه
هغوئ ته به حاصلیګی) (او) دَ دے حاصلیدل (ډیره)
لویه کامیابي ده۔

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿۷۳﴾

اے نبي! کافرانو او منافقانو سره جهاد کوئ او (ټوخ
انتظام سره) په هغوئ باندے سختی کوئ۔ دَ هغوئ
ځائے جهنّم دے او هغه (دَ استوګنے په لحاظ) ډیر
بد ځائے دے۔

يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا ۚ وَمَا نَقَمُوا إِلَّا أَنْ أَغْنَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ مِنْ فَضْلِهِ ۚ فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ ۖ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ

هغوئ دَ الله قسمونه خوری چه هغوئ څه (بده) خبره
نهٔ ده کړے۔ حقیقت کښے هغوئ دَ کفر خبره کړے ده او
دَ اسلام راوړو نه پس ئے کفر کړے دے او (دَ اسلام
خلاف ئے) داسے (ناخوښه) خبرو اراده کړے ده چه
هغه هغوئ نشی حاصلولے او هغوئ مسلمانانو سره بس

عَذَابًا اَلِيْمًا فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ فِى الْاَرْضِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۷۴﴾

دے دپاره دښمنی اوکړه چه الله او د هغهٔ رسُول هغوئ په خپل فضل مالداره کړی وُو- بیا که چرے هغوئ توبه اوکړی نو هغوئ له به ښه وی- او که چرے هغوئ په شا اړشی نو الله به هغوئ له دُنیا کښے هُم او آخرت کښے (هُم) دردناک عذاب ورکوی او دے جهان کښے به نهٔ د هغوئ څوک دوست وی او نهٔ مددګار-

وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ لَئِنْ اٰتٰىنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۷۵﴾

او هغوئ کښے (ځنے کسان) داسے هُم دی چه الله سره دا لوظ کوی چه که چرے هغه (الله) مونږ له په خپل فضل څهٔ راکړی نو مونږ به خامخا د هغهٔ په لاره کښے صدقه کوو او مونږ به خامخا نیکان شو-

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۶﴾

او هرکله چه هغه (خدائے پاک) هغوئ له په خپل فضل مال ورکړو نو هغوئ د هغهٔ په لاره کښے د هغے لګولو کښے بُخل اوکړو او (خپلو پخوانو طریقو ته) واپس شول او (د خدائے او رسُول د خبرو نه ئے) مخ واړولو-

فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِىْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴿۷۷﴾

بیا (نتیجه دا راووته چه) هغهٔ د هغوئ په زړونو کښے د هغے ورځے پورے هرکله به چه هغوئ هغه سره لید نه کوی د نفاق سلسله جاری کړه- ولے چه هغوئ خدائے سره کومه وعده کړے وه د هغے خلاف لاړل- او په سوب د دے چه هغوی دروغ وئیل-

اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿۷۸﴾

آیا هغوئ ته معلومه نهٔ وه چه الله ته د هغوی پټے مشورے هُم معلومه دی او د هغوئ د ښکاره مشورو (هُم) علم لری او دا چه الله په پوره ډول د غیب د خبرو نه واقف دے-

اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِى الصَّدَقٰتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُوْنَ

دا (هُم منافقان) دی چه په مومنانو کښے په خوشحالئ د یوبل نه زیاتے صدقے ورکوونکو باندے طنز کوی او

مِنْهُمْ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٧٩﴾

په هغوئ هُم چه سوا دَ خپلے کتے (څه) وس نهٔ لري - بیانو (سره دَ دے قربانئ) دُوئ (منافقان) هغوی پورے خندا کوی - تهٔ که هغوئ له استغفار اوکړے یا اونکړے (هغوئ دَپاره برابر دی) که چرے تهٔ هغوئ دَپاره آویا ځله هُم استغفار اوکړے نو الله به هغوئ کله هُم معاف نکړی - دا به دے دَ پاره وی چه هغوئ دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول انکار اوکړو او الله دَ اطاعت نه وتونکی قام ته کله هُم دَکامیابئ لاره نهٔ ښائی -

اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٨٠﴾ ع

(دَ جهاد نه) روستو پاتے شوی (منافقان) دَ الله دَ رسول (دَ حکم) خلاف په خپل ځائے په ناسته پاتے کیدلو خوشحاله دی او هغوئ په خپلو ځانونو او خپلو مالونو سره جهاد کول بد گنړلی وُو (او یو بل ته ئے) وئیلی وُو چه دا سے (سخته) گرمئ کښے جنگ دَ پاره (په یو ځائے) مهٔ اُوزئ - تهٔ (هغوئ ته) اووایه چه دَ جهنم اور (دَ دے گرمئ نه) زیات سخت دے - کاش چه هغوئ پوهیدے -

فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلٰفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَكَرِهُوْٓا اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَالُوْا لَا تَنْفِرُوْا فِى الْحَرِّ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا لَوْ كَانُوْا يَفْقَهُوْنَ ﴿٨١﴾

بیا پکار دی چه (خپل دے فریب پورے) هغوئ لږ اوخاندی او دَ خپل عمل په اجر باندے ډیر اوجاړی -

فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَّلْيَبْكُوْا كَثِيْرًا جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٨٢﴾

بیا که چرے الله تا هغوئ کښے یو ټولی ته واپس راولی او (مغه خلق (چرته بیا) جنګ دَ پاره تا نه اجازت اوغواړی نو تهٔ هغوئ ته اووایه چه تاسو به کله هُم (بیا دَ پاره) ماسره (جنګ ته دَ تللو اجازه نهٔ وی او چرے به هُم تاسو دَ دُښمن خلاف ماسره نهٔ جنګیګئ (ولے چه) تاسو په (ومبی ځل (روستو) په ناسته پاتے کیدو راضی شوی وئ - بیانو (دے نه پس تل) روستو پاتے خلقو سره ناست اوسئ -

فَاِنْ رَّجَعَكَ اللّٰهُ اِلٰى طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَاْذَنُوْكَ لِلْخُرُوْجِ فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا مَعِىَ اَبَدًا وَّلَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِىَ عَدُوًّا اِنَّكُمْ رَضِيْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوْا مَعَ الْخٰلِفِيْنَ ﴿٨٣﴾

او هغوئ کښے که چرے څوک مړشی نو دَ هغهٔ په حق کښے

وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا وَّلَا تَقُمْ

عَلٰى قَبْرِهٖ ۭ اِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَمَاتُوْا وَهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٨٤﴾

(دَ جنازے) نمونځ مهٔ کوه - او مهٔ دَ هغهٔ په قبر (دُعا دَ پاره) او دریږه - ولے چه هغوئ دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول انکار اوکړو او په دا سے حال کښے مړهٔ دی هرکله چه هغوئ دَ اطاعت نه بهر وتی وُو -

وَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَاَوْلَادُهُمْ ۭ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿٨٥﴾

او تهٔ دَ هغوی مالُونو او اولاد ته مهٔ حیرانیګه - الله بس دا غواړی چه دَ هغوئ دَ مالُونو او اولاد په سوب هغوئ له دے دُنیا کښے عذاب ورکړی او دا چه دَ هغوئ ساه کانے دا سے وخت کښے اُوزی چه هغوی انکاریان وی -

وَاِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ اَنْ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوْا مَعَ رَسُوْلِهِ اسْتَاْذَنَكَ اُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوْا ذَرْنَا نَكُنْ مَّعَ الْقٰعِدِيْنَ ﴿٨٦﴾

او هرکله چه څهٔ سورة (دے حُکم سره) نازلیګی چه الله باندے ایمان راوړئ او دَ هغهٔ دَ رسُول په ملګرتیا کښے جهاد اوکړئ نو هغوئ کښے مالدار خلق تا نه اجازه غوښتل شروکړی او وائی - مونږ روستو پریږدهٔ څکه چه مونږ روستو پاتے کیدُونکو خلقو سره پاتے شو -

رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلٰي قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿٨٧﴾

هغوئ په دے خبره باندے خوشحاله دی چه روستو پاتے تبیلو سره شی او دَ هغوئ په زړونو باندے مهرلګیدلے دے - بیا هغوئ (دَ خپلو بدو عملونو په سوب) نهٔ پوهیګی -

لٰكِنِ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ لَهُمُ الْخَيْرٰتُ ۡ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٨٨﴾

ولے دا رسُولؐ (یعنی آنحضرت صلی الله علیه وسلم) او چا چه هغهٔ سره (په خدائے باندے) ایمان راوړے دے او چا چه دَ خپلو مالُونو او خپلو ځانُونو په سوب جهاد کړے دے - هغوی دَ پاره دَ هر قسم ښیګړے دی او هُم هغوئ آخر کښے کامیابیدُونکی دی -

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿٨٩﴾ ع

الله هغوئ دَ پاره دا سے جنتونه تیار کړی دی چه ورلاندے نهرُونه بهیګی - هغوئ به دَ غو باغونو کښے تل تر تله اوسی دا ډیره لویه کامیابی ده -

وَجَاۗءَ الْمُعَذِّرُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ لِيُؤْذَنَ لَهُمْ

او دَ مدینے نه ګیرچا پیره څنګلُونو (اد وړو کلو) کښے

وَقَعَدَ الَّذِيْنَ كَذَبُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۭ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ
كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٩٠﴾

او سیدل ونکو خلقو کښې بانے کر (خلق) به وائي چه هغوئ له (هُم) دَ روستو پاتے کیدو اجازه ورکړے شي او هغه خلق چا چه الله او دَ هغهٔ رسُول ته دروغ وئیلي دي (ربے اجازے) روستو پاتے شوی دي. هغوئ کښې چه څوک کافران دي هغوئ ته به یقین سره دردناک عذاب رسي.

لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاۗءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى وَلَا عَلَى
الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ اِذَا نَصَحُوْا
لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ ۭ وَ
اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٩١﴾

(روے اے رسُوله!) څوک چه په حقیقت کښې کمزوري دي او مریضان دي او څوک چه ضرورت دَ پاره دَ لارے سامان نهٔ لري دَ هغوی به ردَ روستو پاتے کیدو په سوب) نیول نهٔ دي. خو چه هغوئ دَ زړهٔ نه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول مُخلصان دي (دا خلق محسنان دي) او په محسنانو باندے هیڅ الزام نشته او الله (دیر بخښونکے راو) بیا بیا رحم کُوونکے دے.

وَّلَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَآ اَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ
قُلْتَ لَآ اَجِدُ مَآ اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ ۠ تَوَلَّوْا
وَّاَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا اَلَّا
يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ ﴿٩٢﴾

او نهٔ هغو خلقو باندے (څه الزام دے) چه تا لره هغه وخت راغلل هر کله چه دَ جنګ اعلان شوے وه دے دَ پاره چه تهٔ هغوئ له څه سوارلئ ورکړے نو تهٔ ځواب ورکړه چه ما سره هیڅ څیز نشته دے چه هغے باندے تاسو سوارهٔ کړم راو دَ دے ځواب په اوریدو) هغوئ لاړل او (دَ دے) غم له کبله دَ هغوئ دَ سترګو نه اوښکے بهیدے چه افسوس دے هغوئ سره هیڅ نشته چه هغه (دَ خدائے په لاره کښې) اولګوی.

اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ وَهُمْ
اَغْنِيَاۗءُ ۚ رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ ۙ وَطَبَعَ
اللّٰهُ عَلٰي قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٩٣﴾

الزام لس هغو خلقو باندے دے چه دے حال کښې اجازه غواړي چه هغوئ مال داره وي. هغوی روستو ناست قبیلو سره (په ناسته) راضي شول او الله دَ هغوئ په زړُونو مهر اولګولو (ولے هغوئ ردا سے دي چه) نهٔ پوهیګي.

يَعْتَذِرُونَ إِلَيْكُمْ إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ ۚ قُل لَّا تَعْتَذِرُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّأَنَا اللَّهُ مِنْ أَخْبَارِكُمْ ۚ وَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝٩٤

هرکله چه تاسو دَ جنګ نه هغوی له واپس راځئ نو هغوی تاسو له راشی (او قسم قسم) بانے کوی - ته هغوی ته او وایه چه بانے مهٔ کوئ مونږ به (ستاسو بانے) هیڅکله نهٔ منو - الله (تعالیٰ) ستاسو دَ حالاتو نه مونږ خبر کړی یو او الله (تعالیٰ) او دَ هغهٔ رسُول به ستاسو عملونه ګوری - بیا به تاسو دَ حاضر او دَ غیب علم لرُونکی خدائے ته وړاندے کولے شئ - نو بیا هغه به تاسو ستاسو دَ عملونو حقیقت نه خبردار کړی -

سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ إِنَّهُمْ رِجْسٌ ۖ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝٩٥

کله چه تاسو هغوئ ته واپس شئ نو هغوی به ستاسو په وړاندے دَ الله (تعالیٰ) قسمونه خوری ځکه چه تاسو هغوی معاف کړئ (نو مونږ هُم تاسو ته وایو چه) هغوی معاف کړئ - ځکه چه هغوئ ګنده دی او دَ هغوی دَ استوګنے دَ عملونو په بدل کښے دَ وړاندے نه دوزخ ټاکلے شوے دے -

يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۖ فَإِن تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ۝٩٦

هغوی به ستاسو په وړاندے قسمونه خوری چه تاسو دَ هغوی نه راضی شئ - بیا نو کچرے تاسو دَ هغوی نه راضی هُم شئ نو الله (تعالیٰ) به دَ اطاعت نه دَ وتونکو خلقو نه نهٔ راضی کیږی -

الْأَعْرَابُ أَشَدُّ كُفْرًا وَنِفَاقًا وَأَجْدَرُ أَلَّا يَعْلَمُوا حُدُودَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝٩٧

په کلو (او ځنګلو) کښے اوسیدُونکی عرب په کفر او نفاق کښے (دَ ټولو عربو نه) وړاندے دی - او (دَ جهالت په سوب) دَ دے حق لری چه څهٔ الله (تعالیٰ) په خپل رسُول باندے راکوز کړی دی دَ هغے حدونه او نهٔ پیژنی - او الله (تعالیٰ) ډیر خبردار او دَ حکمتونو خاوند دے -

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَن يَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ مَغْرَمًا وَيَتَرَبَّصُ

او په کلی والو (او ځنګل کښے اوسیدُونکو) کښے څهٔ خلق

بِكُمُ الدَّوَآئِرَ ۚ عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٩٨﴾

داسے هم شته (څوک چه) دَ خدائے په لار کښے لګولے مال (ډیو) چټی ګڼړی او تا سو دَ پاره دَ (آسمانی) چکرو په انتظار کښے اوسی. (روا اوړئ) بد چکر به په هغوی باندے راځی او الله ښهٔ اوریدُونکے (او) علم لرُونکے دے.

وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبٰتٍ عِنْدَ اللّٰهِ وَصَلَوٰتِ الرَّسُوْلِ ۗ اَلَآ اِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ ۗ سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۗ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٩٩﴾

او په کلی والو (او ځنګل کښے اوسیدُونکی عرلو) کښے داسے هُم شته چه څوک په الله باندے او په ورځ دَ قیامت (رښتونے) ایمان راوړی. او (دَ خدائے په لاره کښے) چه څهٔ لګوی هغه (دَ خدائے تعالےٰ) نزدیکت او دَ رسُول دَ دعا کانو وسیله ګڼړی واورئ! دا فعل به خامخا هغوی له (دَ خدائے) دَ نزدیکت وسیله وی - الله (تعالیٰ) به خامخا هغوی خپل رحمت کښے ور داخل کړی ځکه چه الله (تعالیٰ) دیر بخښوُنکے او بیا بیا رحم کوُونکے دے.

وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۗ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١٠٠﴾

او چه څوک په انصارو او مهاجرو کښے په وړاندے وتونکی دی او هغه خلق هُم چه څوک پوره حُکم منلو سره هغوی پسے لاړل الله (تعالیٰ) هغوی نه راضی شو او هغوئ الله نه راضی شول هغهٔ هغوئ له داسے جنتونه تیار کړی دی چه ورلاندے نهرونه بهیږی هغوئ به تل په هغو کښے اوسیږی - دا ډیره لویه کامیابی ده.

وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ۛ مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ ۟ لَا تَعْلَمُهُمْ ۭ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ۭ سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ﴿١٠١﴾

او بانډیسیانو (او ځنګل کښے اوسیدُونکو) کښے چه ستاسو خواؤشا کښے اوسیږی منافق هُم شته او دَ مدینے په اوسیدُونکو کښے (څه خلق داسے دی) چه په نفاق باندے اصرار کوی ته هغوی نه پیژنے ولے مونږ هغوی پیژنو. مونږ به هغوی له دوه ځلے عذاب ورکوو بیا

به هغوی لوه ډیر لوئے عذاب ته کړزولے شی۔

وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ۭعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۭاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٠٢﴾

او څه نور خلق دی چا چه د خپلو ګناهونو اقرار اوکړو هغوی نیک عملونه د نورو عملونو چه بدوُو سره ګډ کړل نزدے ده چه الله (تعالیٰ) په هغوی باندے فضل اوکړی الله (تعالیٰ) ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۭاِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۭوَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿١٠٣﴾

(ای رسوله !) د دوی مالونو کښے صدقه آخله چه ته هغوئ پاک کړے او د هغوئ د ترقیٔ سامان پیدا کړے او هغوئ له دعا کانے هم کوه ځکه چه ستا دُعا د هغوئ د تسلیٔ سوب ده او الله (تعالیٰ) ستا د دُعا کانو ډیر اوریدُونکے (او د حالاتو) علم لرُونکے دے۔

اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ وَيَاْخُذُ الصَّدَقٰتِ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿١٠٤﴾

آیا هغوئ ته معلومه نه ده چه هُم الله دے چه څوک د خپلو بندیانو توبه قبلوی او د هغوی صدقے آخلی (رسول نه) - او بس الله (تعالیٰ) دے چه څوک ډیر توبه قبلوُنکے او بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

وَقُلِ اعْمَلُوْا فَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۭوَسَتُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٠٥﴾

او (هغوئ ته) او وایه چه په خپل ځائے لګیا او سئ کار کوئ - الله او د هغهٔ رسول او مومنان به ځامخا ستاسو د کارونو حقیقت ته ګوری - او تاسو به په تحقیق سره د حاضر او غیب علم لرُونکی خدائے ته وا پس کړزولے شئ او هغه به تاسو ته ستا د عملونو حقیقت ښائی۔

وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ۭوَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿١٠٦﴾

او څه نور خلق دی چه د الله (تعالیٰ) د حکم په انتظار پریخودے شوی دی (هغهٔ ته اختیار دے چه) که هغوئ له عذاب ورکړی یا که د هغوی توبه قبلوی او الله علم لرُونکے (او) د حکمتونو خاوند دے۔

وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا وَّتَفْرِيْقًۢا

او هغه خلق چا چه لوجماعت د نقصان رسولو او د کفر

بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ وَإِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ مِن قَبْلُ ۚ وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا الْحُسْنَىٰ ۖ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ۝١٠٧

د تبلیغ کولو او په مومنانو کښے بے اتفاقی پیدا کولو د پاره جوړ کړے دے او چه څوک سرے الله او د هغهٔ رسُول سره جنګیدلے دے هغه له د پناه اخستو د ځائے ورکولو د پاره هغوی به خامخا قسم خوری (چه) د دے جماعت جوړولو نه څمونږ اراده بس نیکی کول وُو۔ او الله گواهی ورکوی چه هغوی دروغ وائی۔

لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ ۚ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ۝١٠٨

(ا‌ے نبیؐ!) ته دے (جمات) کښے (هیچرے) اوند رېږے هغه جمات چه د کوم بنیاد د رومبنئ ورځے نه په تقویٰ ایخودے شوے دے ډیر حق لری چه ته هغے کښے (جمات ورکولو له) او درېږے۔ په دے کښے (داسے) (داسے خلق دی چه غواړی چه بالکل پاک شی! او الله مکمله پاکی کوونکی خوښوی۔

أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ۝١٠٩

آیا هغه سرے چه څوک د خپل عمارت بنیاد د الله (تعالیٰ) په تقویٰ او رضا بڼدی ډیر ښهٔ دے که هغه چه د خپل عمارت بنیا دیو خوید وُنکی غاړه باندے بڼدی چه کومه غورزیګی بیا هغه غاړه سره د هغه عمارت په دوزخ کښے پریوزی او الله (تعالیٰ) ظالم قام ته (د کامیابئ) لاره نهٔ ښائی۔

لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝١١٠ ع

هغه بنیاد چه هغوئ جوړ کړے وه به تل تر تله د هغوی زړونو کښے د پښما نتیا سوب وی سوا د دے چه د هغوی زړونه ټوټے ټوټے شی (او هغوی مړهٔ شی) او الله (تعالیٰ) ډیر علم لروُنکے (او) د حکمتونو خاوند دے۔

إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ۚ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ ۖ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ

الله (تعالیٰ) د مومنانونه د هغوئ ځانونه او د هغوئ مالونه (د دے وعدے سره) اخستی دی چه هغوی به جنت آخلی۔ (ځکه) چه هغوئ د الله (تعالیٰ) په لاره کښے جنګیګی بیا نو (یا خو هغوئ) خپل دښمنان وژنی یا پخپله

وَالْقُرْاٰنِ ۭ وَمَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ فَاسْتَبْشِرُوْا
بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ ۭ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١١١﴾

اوړلے شي. دا لو داسے وعده ده چه په هغهٔ باندے لازم ده - او په تورات او انجيل کښے (بيان شوے ده) او په قرآن کښے (هُم) او د الله (تعالىٰ) نه زيات د خپلے وعدے پوره کوونکے څوک دے - بيا نو (ىَه مومنانو!) په خپله دے سودا خوشحاله شئ چه تاسو کړے ده او هُم دا هغه غټه کاميابي ده (چه د کومے مومنانو له وعده ورکړے شوے ده)

اَلتَّاۗىِٕبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّاۗىِٕحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ
السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ
الْمُنْكَرِ وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ۭ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾

(څوک چه) توبه کوونکی دی، عبادت کوونکی دی (د خدائے) تعريف کوونکی دی - (د خدائے تعالىٰ په لاره کښے) سفر کوونکی دی رکوع کوونکی دی سجده کوونکی دی - د نيکو خبرو حکم ورکوونکی دی او د بدو خبرو نه ايسارووونکی او د الله (تعالىٰ) د حدونو حفاظت کوونکی دی - دا سے مومنانو له ته زيرے ورکړه -

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ
وَلَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ
اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿١١٣﴾

د نبي او د مومنانو د شان نه خلاف وه چه د مشرکانو د پاره يے استغفار کولے هر څوک که هغوی نزدے خپلوان هُم نه وے د دے نه پس چه په هغوی ښکاره شوه چه هغوی دوزخيان دی -

وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ
وَّعَدَهَآ اِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗٓ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ۭ
اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ لَاَوَّاهٌ حَلِيْمٌ ﴿١١٤﴾

او د ابراهيمؑ خپل پلار له استغفار کول لس په دے سوب وُو وے هر کله چه په هغهٔ ښکاره شوه چه هغه د الله دښمن دے نو هغه د هغے وعدے نه پوره ويزاره شو. ابراهيمؑ ډير زيات د زړه نرم او عقلمند وه -

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًۢا بَعْدَ اِذْ هَدٰىهُمْ
حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿١١٥﴾

او دا د الله (تعالىٰ) د شان خلاف ده چه يو قام ته د هدايت ورکولو نه پس گمراه اوگرزوی ترڅو چه هغه د هغوی وړاندے هغه (خبرے) بيان نه کړی د کومو نه چه هغوی له ځان ساتل پکار دی - الله (تعالىٰ) د هر

څيزعلم لري.

إِنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يُحْيِ
وَيُمِيتُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن
وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿۱۱۶﴾

دَ آسمانونو او مزکے بادشاهي په تحقيق سره دَ الله ده. هغه ژوندي کوي هُم او وژني هُم او دَ الله نه سوا نهٔ څوک ستاسو دوست دے او نهٔ مددګار.

لَقَد تَّابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهٰجِرِينَ وَالْأَنصَارِ
الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِن بَعْدِ مَا
كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ
إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۱۷﴾

الله (تعالیٰ) په نبي او مهاجرو او انصارو لوئے فضل کړے دے (يعني په هغه خلقو باندے) چه چا دَ هغهٔ (نبي) دَ تکليف په وخت کښے هرکله چه په هغوی کښے دَ يو ډله زړونه په څه شک کښے پريوتي وُو (نژدے وُو) او منله. بيا هغه په هغو (کمزورو خلقو) باندے هُم فضل اوکړو. هغه هغوی (يعني مومنانو) سره په تحقيق سره مينه کوُونکے او بيا بيا رحم کوُونکے دے.

وَعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتّٰى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا
رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَن لَّا مَلْجَأَ
مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا إِنَّ اللَّهَ
هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۱۱۸﴾ ع

دا رنګ يئے په هغه درِيو باندے هُم (رحمهٔ فضل اوکړو) چه څوک روستو پريخو دے شوي وو. تر دے چه کله مزکه سره دَ (ارتوالی) په هغوی تنګه شوه او دَ هغوئ خپل نفسونه هُم په هغوی پيښتي شول او هغوی خيال اوکړو چه دَ الله (تعالیٰ) دَ غضب نه دَ بچکيدو دَ پاره دَ دے نه سوا بله هيڅ پناه نشته نو دَ هغوی په حال په هغوی باندے الله فضل اوکړو څکه چه هغوی هُم توبه اوکړي. الله (تعالیٰ) په تحقيق سره بيابيا توبه قبلوُونکے او بيا بيا رحم کوُونکے دے.

يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصّٰدِقِينَ ﴿۱۱۹﴾

يه مومنانو! دَ الله (تعالیٰ) تقویٰ اختيار کړئ او دَ صادقانو (رتينولی) سره شئ.

مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُم مِّنَ الْأَعْرَابِ
أَن يَتَخَلَّفُوا عَن رَّسُولِ اللَّهِ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنفُسِهِمْ عَن
نَّفْسِهِ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا

دَ مديني او سيدُونکو او چه څوک دَ دوی خوا ؤشا کلی وال او ځنګليان اوسي. هغوی له ښکارنه وه چه دَ الله رسُول يئے (ريو ازے) پريخوے او خپله روستو پاتے

مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَّغِيظُ
الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ بِهٖ
عَمَلٌ صَالِحٌ ۚ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٢٠﴾

وي - او نهٔ (دا چه) دَ هغهٔ دَ ځان نه لا پرواه شوي وي او دَ خپلو ځانونو فکر کښې آخته وي - دا (فيصله) دي دَ پاره (ريکي) چه څه دَ تندې يا دَ ستوماني يا دَ لوږې زحمت په هغوی دَ الله په لاره کښې نه رازي او نهٔ هغوی په يو مزکه قدم وهي چه کافرانوله غصه وروړي او نهٔ هغوی په دښمن څهٔ برے مومي چه هغوی دَ پاره دَ هغې په بدل کښې نيک عمل نه شي ليکلے - الله (تعالیٰ) دَ احسان کوونکو اجر هيچرے نه ضائع کوي -

وَلَا يُنْفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَّلَا كَبِيرَةً وَّلَا يَقْطَعُونَ
وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا
يَعْمَلُونَ ﴿١٢١﴾

او هغوی دَ الله په لاره کښې لږ شان ورکړه هُم نه کوی او نهٔ ډيره او نهٔ په وادئ پورے اوړي وے (زر دَ هغوی په عملونو کښې هغه نيک عمل) او ليکلے شي - چه الله (تعالیٰ) دَ هغوی دَ عملونو (دَ ښهٔ نه) ښه بدل ورکړي -

وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً ۚ فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ
كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ
وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ
يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾ ع

او مومنانو دا نهٔ شو کولے چه هغوئ ټول دَ سره (يو ځائے دَ دين تعليم دَ پاره) ووتے نو بيا ولے او نه شوه چه دَ هغوی په ټولی کښې يو ټولے ووتي - چه هغوی دين پوره زده کولے او خپل قام ته په واپسی (دَ بے دينئ نه) او نسيارولے چه هغوی دَ گمراهئ نه او وېرېږي -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ
وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿١٢٣﴾ ع

يه مومنانو! هغه کافرانو سره جنګ کوئ چه ستاسو په خوا کښې اوسيږي - او پکار ده چه هغوی تاسو کښې مضبوط والے محسوس کړي او پوهه شئ چه الله (تعالیٰ) متقيانو سره دے -

وَإِذَا مَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ
هٰذِهٖ إِيمَانًا ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا
وَّهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿١٢٤﴾

او چه کله يو سورة نازليږي نو هغوئ کښې بعضے منافقان وائي چه دے (سورة) تاسو کښې دَ چا ايمان زيات کړے دے نو زيادلرئ چه) کوم خلق مومنان دي دَ هغوی دَ وړاندېنئ ايمان په سوب دَ هغوی ايمان دے سورة

زیات کړے دے۔ او هغوی لګیا دے خوشحالی حاصلوی۔

وَاَمَّا الَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلٰی رِجْسِهِمْ وَمَاتُوْا وَهُمْ كٰفِرُوْنَ۝۱۲۵

او دَ چا په زړونو کښے چه مرض دے۔ دے (سورة) دَ هغوی په روړاندینی) ګندنور ګند خیژولے دے تر دے چه هغوی به داسے حال کښے مری چه هغوی به کافران وی۔

اَوَلَا یَرَوْنَ اَنَّهُمْ یُفْتَنُوْنَ فِیْ كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَیْنِ ثُمَّ لَا یَتُوْبُوْنَ وَلَا هُمْ یَذَّكَّرُوْنَ۝۱۲۶

آیا هغوی ګوری نه چه دَ هغوی په هرکال کښے یو یا دوه ځله ازمیښت کیګی۔ بیا هُم هغوی توبه نهٔ کوی او نه نصیحت حاصلوی۔

وَاِذَا مَاۤ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰی بَعْضٍ هَلْ یَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَفْقَهُوْنَ۝۱۲۷

او هرکله چه څه سورة نازلیګی نو په هغوی کښے بعضے خلق نورو ته په کتو شی چه معلومه کړی چه آیا څوک سړے تا نه ګوری څو نه۔ بیا ر دَ تسلئ نه پس) دوئ (خلق مجلس نه) لاړشی۔ الله (تعالیٰ) دَ دوی زړونه اړولی دی ځکه چه هغوی داسے خلق دی چه نه پوهیګی۔

لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِیْزٌ عَلَیْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِیْصٌ عَلَیْكُمْ بِالْمُؤْمِنِیْنَ رَءُوْفٌ رَّحِیْمٌ۝۱۲۸

(یه مومنانو!) تاسو له هُم ستاسو دَ قام یو سړے رسول په حیث راغلے دے ستاسو په تکلیف کښے پریوتل په هغهٔ ګران تیریګی۔ او هغه تاسو دَ پاره دَ خیر ډیراویرے دے۔ او مومنانو سره مینه کوونکے (او) ډیر کرم کوونکے دے۔

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِیَ اللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عَلَیْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ۝۱۲۹

نو بیا که هغوی اوګرزی نو ته اووایه چه الله ماله بس دے او دَ هغهٔ نه سوا بل معبود نشته۔ زهٔ په هغه توکل کوم او هغه دَ لوئے عرش رب دے۔

ع ۱۶ ۵

# سُوْرَةُ يُوْنُسَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ مِائَةٌ وَّعَشْرُ اٰيٰتٍ وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة يونس- دا سورة مكي دے (وسره دَ بسم الله دَ دے يوسل اولس آيتونه او يولس ركوع دي-

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروكوم) دَ الله په نوم چه بے حده مهربانه او بيا بيا رحم كوونكے دے-

منزل ٣

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ②

الرٰ- (زه الله ليدونكے يم)- دا (يعني دَ دے سورة آيتونه) كامل اوَ حكمت نه دَ ډک كتاب آيتونه دي-

اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ③

آيا دَ خلقو په نزد حيرانتيا ده چه مونږ په هغوی کښے په يو سړي باندے (دا) وحی کول چه خلق هوښيار کړي او چه کومو خلقو ايمان راوړے دے هغوی له زيرے ورکړي چه دَ هغوی دَ رب سره په ښكاره او په پټه يوه مكمله درجه ده (دا سے) عجيبه (خبره) وه (چه) هغوی كافرانو اووئيل چه دا (سړے) خامخا يو ښكاره دهوكه باز دے-

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ؕ مَا مِنْ شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ④

ستاسو رب په تحقيق سره الله دے چا چه آسمانونه او مزكه شپږ ورځو كښے پيدا كړل بيا هغه په عرش باندے قرار شو هغه دَ هر كار انتظام كوی (دَ هغه په وړاندے) هيڅوک (دَ بل چا) شفيع نه شي (كيدے) سوا دَ هغهٔ دَ اجازے نه- (روا وروځ!) دا الله (دَ لوړتيه بيان شو وصفتونو لرونكے دے) (او هُم هغه) ستاسو رب دے دَ پاره تاسو لس دَ هغهٔ عبادت كوئ- آيا تاسو (سره دَ دے خبرو) بيا هُم نصيحت نه اخلئ-

اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ اِنَّهٗ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ بِالْقِسْطِ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ⑤

هُم هغهٔ ته ستاسو دَ ټولو تلل دي- (دا) دَ الله (تعالیٰ) وعده ده- چه (كومه) پوره كيدونكے (ده) هغه په تحقيق سره مخلوق پيدا كوی بيا هغه واپس كوی دے دَ پاره چه كومو خلقو ايمان راوړو او هغوی نيک راو

پخپل ځائے صحی) کارونه اوکړل هغوی ته په اجرکښے مکمله برخه ورکړی او چه کومو خلقو کفر اوکړو هغوی لـه بـه ليشبيدونکے اوبه دَ ځکلو دَ پاره وی او لو دردناک عذاب به وی. ځکه چه هغوی کفر رکياو) کولو.

هُوَ الَّذِي جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَاءً وَالْقَمَرَ نُورًا وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ مَا خَلَقَ اللَّهُ ذَٰلِكَ إِلَّا بِالْحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٥﴾

هُم هغه دے چا چه نمر ځيله رنړا رکوونکے) او سپوږمۍ نُور (لرُونکے) جوړ کړی دی. او په ليوه اندازه ئے دَ هغے منزلونه جوړ کړی دی. دَ پاره دَ دے چه تاسو ته دَ کلونو شميره او حساب معلومه وی. دا رسلسله) الله رتعالیٰ) دَ حق راو حکمت) سره پيدا کړے ده. هغه دا آيانونه دَ علم لرُونکو خلقو دَ پاره تفصيل سره بيانوی.

إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَّقُونَ ﴿٦﴾

دَ شپے او ورځے وړاندے روستو را تلو کښے او څه چه خدائے رتعالیٰ) په آسمانونو او مزکه کښے پيدا کړی دی رپه دے کښے) متقيانو دَ پاره په تحقيق سره ډير نشانات دی.

إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ ﴿٧﴾

څوک، چه مونږ سره دَ ملاقات اميد نهٔ لری او په دے ژوند راضی شوی دی او په دے هغوی تسله شوی دی او ربيا) چه کوم خلق ځمونږ دَ نشانونو نه غافل شوی دی.

أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨﴾

دَ دوئ رتولو) کور دَ دوی ردَ چلے) کټے په سوب په تحقيق سره ردَ دوزخ) اور دے.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ ۖ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٩﴾

چه کومو خلقو ايمان راوړو او هغوی نيک راو په خپل ځائے صحی) عمل اوکړو هغوی ته به دَ هغوی رب دَ هغوی دَ ايمان په سوب ردَ کاميابئ) رلارے ته) هدايت ورکوی. او دَ سهولتونو نه ډک جنتونو کښے به دَ هغوی دَ اختيار لاندے نهرونه بهيګی.

دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ۚ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٠﴾ ع

هغو رجنتونو) کښے به دَ خدائے په وړاندے دَ هغوئ آواز دا وی. يه الله! تهٔ پاک ئے او ردَ هغوی به

یو بل له) دعا داوی رچه په تاسو دے تل تر تله) سلامتی
دی او ټولو نه آخره کښے به هغوی په اوچت آواز سره دا
اووائی - چه الله (تعالیٰ) لپس د ټولو تعریفونو حق لری چه
د ټولو جهانونو رب دے -

وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ
لَقُضِيَ إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ ۖ فَنَذَرُ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا
فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱﴾

او که چرے الله (تعالیٰ) په خلقو (د هغوی د عملونو) د
بدئ (نتیجه) د هغوی د مال زر غوښتو په شان زر
اچولے نو د هغوی (د ژوند د ختمیدو) میاد به په
هغوی راوستے شوے وے - (ولے څکه چه مونږ داسے
نه دی کړی) دے د پاره مونږ هغه خلق چه زمونږ د
ملاقات طمع نه لری په دے حال کښے پریږدُو چه
هغوی خپله سرکشئ کښے سرګردانه ګرزی -

وَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْۢبِهٖٓ أَوْ قَاعِدًا
أَوْ قَآئِمًا ۚ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهٗ مَرَّ كَأَنْ لَّمْ يَدْعُنَآ
إِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ ۚ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِيْنَ مَا كَانُوْا
يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲﴾

او هر کله چه انسان ته تکلیف اورسی نو هغه په اړخ
(پروت) یا په ناسته یا ولاړه مونږ را بلی - بیا چه مونږ
د هغهٔ تکلیف د هغهٔ نه لرے کړو نو هغه (رداسے په
اړخ) تیر شی (چه) کښے هغه د څه تکلیف لرے کولو د
پاره چه هغه ته رسیدلے وو مونږ هډو بللی نهٔ وُو -
هُم داشان ټولو حد نه وتونکو ته چه څهٔ هغوی کوی
ښائسته ښودلے شوی دی -

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا ۙ
وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ وَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا ۚ
كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۳﴾

او مونږ په تحقیق سره ستاسو نه وړاندے (هُم) دقامونو
نه (لپس قامونه) کله چه (هغوی دے سره چه) هغوی
له د هغوی رسولان ښکاره نښانانو سره راغلی وُو ظلم
کړے وو او ایمان ئے نه وو راوړے تباه کړی دی مونږ
مجرمانو له داشان بدله ورکوو -

ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْأَرْضِ مِنْ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ
كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾

بیا د هغوی نه پس مونږ تاسو مزکه کښے د هغوی په ځائے
راوستی - دے د پاره چه مونږ اوګورو چه تاسو څنګه

عمل کوئ ـ

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ۙ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ ۚ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي ۖ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ۖ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥﴾

اوچه کله هغوی ته ځمونږ روښانه آيتونه اوروےشی نوچه څوک مونږ سره د ليدو اُميد نه لری هغوی وائی چه (اے محمّد!) ته د دے نه سوا څه بل قرآن راوړه یا هُم دے کښے څه ادل بدل کړه ـ ته (هغوی ته) اووایه (چه دا) زما کار نه دے چه زهٔ دے کښے د خپل طرف نه څه ادلی بدلی اوکړم ـ زهٔ (خو) چه (څهٔ) ما ته د وحی (سره حُکم کیګی) هُم هغے پسے زم ـ اوکه چرے زه د خپل رب نه منم نو زه د لویے لویے (آفت ناکے) ورځے د عذاب نه ویرېږم (چه ما کیرنه کړی) ـ

قُلْ لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا تَلَوْتُهُ عَلَيْكُمْ وَلَا أَدْرَاكُمْ بِهِ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا مِنْ قَبْلِهِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٦﴾

(او) ته (هغوی) ته اووایه که چرے الله (تعالیٰ) (دا) غوښتے (چه د دے په ځائے څه نور تعلیم دے ورکړے شی) نو ما به دا ستاسو وړاندے نه آوروے او نهٔ به هغهٔ تاسو د دے تعلیم نه خبروے بیا نو د دے نه آګاهو ما ډیره موده تاسو کښے تیره کړے ده ـ آیا بیا (هُم) تاسو د عقل نه کار نهٔ اخلئ ـ

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُونَ ﴿١٧﴾

بیا (هُم تاسو او وائی) چه څوک په الله (تعالیٰ) دروغ اوتړی یا د هغه نشانانو نه انکار اوکړی د هغه نه به غټ ظالم څوک وی ـ لنډا (دا چه) دا یقینی خبره ده چه مجرمان نه کامیابیګی ـ

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ ۚ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿١٨﴾

او دا (خلق) د الله (تعالیٰ) په ځائے د داسے څیز عبادت کوی چه څهٔ نهٔ دوی ته نقصان ورکوی او نهٔ څه ګټه ورکوی او وائی (چه) دا (ځمونږ معبودان) د الله په وړاندے ځمونږ شفاعت کوونکی دی ـ ته (دوئ) ته اووایه (چه) آیا تاسو الله (تعالیٰ) ته هغه (خبره) بنائ د کومے په

حقله چه نه هغهٔ ته په آسمانونو کښې (دَوجود) علم شته اونه په مزکه کښې (دَ هغې دَوجود څه پته شته) هغه پاک دے اودَ هغوی دَ شریک جوړولو نه ډیر اُوچت دے۔

وَ مَا كَانَ النَّاسُ اِلَّآ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوْا ۭ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيْمَا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٢٠﴾

او (ټول) خلق یوتهولے (شوی) وُو۔ بیا هغوی خپلو کښې اختلاف (پیدا) کړو او چه کومه خبره ستا دَ رب دَ طرف نه مخکښې (دَ وعدے په شکل) راغلے دَه۔ کچرے هغه (مخکښې) نهٔ وے په کومه (خبره) کښې چه هغوی اختلاف کوی۔ دَ هغې په حقله به دَ هغوی ترمینځه (ډیر وړاندے) فیصله شوے وے۔

وَ يَقُوْلُوْنَ لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۚ فَقُلْ اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ فَانْتَظِرُوْا ۚ اِنِّىْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿٢١﴾ ع ٢

او هغوی وائی چه په دَه (رسُول) باندے دَ دهٔ دَ رب له طرفه څه نښان ولے نه دے نازل شوے۔ تهٔ (هغوی) ته اووایه (چه) دَ غیبو دَ هرے (خبرے علم) لِس الله (تعالیٰ) ته حاصل دے۔ دے دَ پاره تاسو (دَ دے) انتظار کوئ زهٔ (هُم) تاسو سره انتظار کوُونکو نه یم۔

وَاِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً مِّنْۢ بَعْدِ ضَرَّاۗءَ مَسَّتْهُمْ اِذَا لَهُمْ مَّكْرٌ فِيْٓ اٰيَاتِنَا ۭ قُلِ اللّٰهُ اَسْرَعُ مَكْرًا ۭ اِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُوْنَ مَا تَمْكُرُوْنَ ﴿٢٢﴾

او چه کله خلقو ته دَ څه تکلیف نه پس چه هغوی ته رسیدلے وی مونږ (لږ دَ خپل) رحمت (مزه) اوڅکوُو نوزر (مونږ) دَ نښانانو په حقله دَ هغوی دَ طرف (نه څه مخالف) تدبیر شروع شی۔ تهٔ (هغوی ته) او وایه چه دَ دے په ځواب کښې) دَ الله تدبیرخو ډیر زر چلیگی۔ او تاسو چه څه تدبیرونه کوئ۔ څمونږ استاذی هغه لکیادے لیکی۔

هُوَ الَّذِيْ يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۭ حَتّٰٓي اِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ ۚ وَجَرَيْنَ بِهِمْ بِرِيْحٍ طَيِّبَةٍ وَّفَرِحُوْا بِهَا جَاۗءَتْهَا رِيْحٌ عَاصِفٌ وَّجَاۗءَهُمُ الْمَوْجُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اُحِيْطَ بِهِمْ ۙ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ

هغه هُم لِس (مهربانه خدائے) دے چه څوک تاسو له وس (ر) ورکوی او په او چه اولمده کښې موگرزوی تر دے چه کله تاسو خلق په کشتو کښې (سوارهٔ) یئ۔ او هغه بنهٔ باد سره هغه خلق هُم بوزی او هغوی په

لَهُ الدِّينَ ۚ لَئِنْ أَنجَيْتَنَا مِنْ هَٰذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ ﴿٢٢﴾

هغوباندے غاورة وى نو په هغوى باندے لوة (ډيرة) تُندة سيلئ راشي او دَ هر اړخ نه (چپه ريه چپه) په هغوى راخيژى او هغوى خيال کوى چه (اوس) دَ مرګ (په خوله) کښے راغلى يُو نو (دا سے وخت کښے) هغوى (خپل) اطاعت خالص دَ خدائے (تعالىٰ) دَ پاره کولو سره دَ هغهٔ مد دغوا ړى (او وائى چه يه الله !) که چرے تا مونږ دَ دے (مصيبت) نه خلاص کړو نو مونږ به خامخا (ستا دَ) شُکر کُوونکو (دله) کښے (داخل) شو۔

فَلَمَّا أَنجَاهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۗ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَىٰ أَنفُسِكُم ۖ مَّتَاعَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٣﴾

بيا هر کله چه هغه هغوى (دے عذاب نه) خلاص کړى او اوچے ته يے اورسوى نو هغوى سمدستي په مزکه ناحقه سرکشي شروکړى۔ (يه خلقو !) ستاسو لس هُم دا دنيا غوبنتل به ستاسو په نوسُونو باندے (مصيبت) اوغورزيګي۔ بيا څمونږ طرف ته به تاسو واپس راځئ۔ نو بيا چه (څه) تاسو کړى وى۔ مونږ به تاسو دَ هغے نه خبردارة کړو۔

إِنَّمَا مَثَلُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ أَنزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ مِمَّا يَأْكُلُ النَّاسُ وَالْأَنْعَامُ حَتَّىٰ إِذَا أَخَذَتِ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَا أَنَّهُمْ قَادِرُونَ عَلَيْهَا أَتَاهَا أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَاهَا حَصِيدًا كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِالْأَمْسِ ۚ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾

دَ دے دينوى ژوند حال (خو) دَ هغے اوبو په شان دے کوم چه مونږ ورېځو نه اووروے بيا هغے سره دَ مزکے پيداوار کوم چه سړى اوڅناورخورى يوځاے رايکى يو وجود) شول تر دے چه مزکے (دَ دے په سوب) دَ اوچتے درجے ښائيست اومندو او ښکلے شوه اودَ دے مالکانو دا اوګنڼل چه (اوس) هغوى دَ دے قابو موندُونکى دى نو په هغے باندے دَ شپے يا دَ ورځے (دَ عذاب په حقله) څمونږ حکم راغلو۔ او مونږ هغه دَ لو ريبلي شوى پسېي په رنګ کړه لکه چه دلته پرون (هډو څهٔ) وُونه۔ (لنډه دا چه) کوم خلق چه دَ سوچ

نه كارا خلى هغوى له مونږ دا شان (خپل) آيتونه په تفصيل بيانوو.

وَاللّٰهُ يَدْعُوٓا اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ۗ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٢٥﴾

او الله (تعالى) د سلامتى كور ته رابلى او چه چاله خوښ كړى (هغه) په يوه نيغه لار روان كړى (او تا كلى منزل ته ئے رسوى).

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ۗ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ۗ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٦﴾

هغه خلقو د پاره چا چه نيكى او كړه ډير ښهٔ انجام به وى او ردے باندے (نور انعامونه هُم). د هغوى په مخونو به نه دُوړه خوريږى او نهٔ د بے عزتۍ ځه (نښے به وى) دا خلق د جنت اوسيدونكى دى (او) په دے كښے به تل ترتله اوسيږى.

وَالَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۭ مَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ۭ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٧﴾

او چا چه به بدى كړى وى (د هغوى د پاره) د بدئ بدل د دے بدى هومره وى او هغوى ته به ذلت رسى او څوك به هُم هغوى له د الله (عذاب) نه ساتونكے نهٔ وى (او د هغوى حال به داسے وى) لكه چه د هغوى په مخونو باندے د شپے ټوټے (ځو) تيرے تورے اچولے شوے وى. دا (خلق) اور (كښے اوسيدونكى) دى په هغے كښے به تر ډيره وخته پورے لګيا وى اوسيږى.

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ اَنْتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ ﴿٢٨﴾

او (يه خلقه!) هغه ورځ ياده كړئ چه په كومه ورځ به مونږ هغوى ټول راغونډوو بيا چه چا شرك كړے وى هغوى ته به مونږ وايو (چه ايسار شئ) په خپل ځائے باندے روالاړ اوسئ (تاسو هُم او ستاسو (جوړ كړى شوى د خدائى) حصه دار (هُم). بيا به مونږ هغوئ كښے يو بل سره (هُم) جدائى واچوو او د هغوى جوړ كړى خدائے سره شريكان به (هغوى) ته وائى (چه) تاسو ځمونږ عبادت (هيڅكله) نهٔ كولو.

فَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًاۢ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِيْنَ۝۲۹

بیا نو ستا سو او ځمونږ ترمینځه (نحیله) الله (تعالیٰ) کافی گواه دے- مونږ ستاسو د پرستش نه د سره ناخبره وُو-

هُنَالِكَ تَبْلُوْا كُلُّ نَفْسٍ مَّآ اَسْلَفَتْ وَ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ وَ ضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ۝۳۰

(ربیا به) هلته هر یو سړے چه څۀ هغۀ مخکښې لیږلی دی د هغې مزه واخلی- او هغوی به اصلی مالک الله (تعالیٰ) طرف ته واپس راوستے شی- او څه چه هغوی د خانه جوړول هغه (ټول) به هغوی نه هیر شی-

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ اَمَّنْ يَّمْلِكُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ مَنْ يُّخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَ يُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَ مَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ۝۳۱

ته (هغوی ته) او وایه (چه او وائی) د آسمان او مزکے نه څوک تاسو له روزی درکوی- یا (دا چه) په غوږونو او سترگو باندے څوک قابو لری او څوک د (ژوندی) مړ (څیز) نه ژوندے (څیز) را او باسی- او د ژوندی (څیز) نه مړ (څیز) او باسی- او څوک (د دے) ټول کار انتظام کوی- په دے به هغوی خامخا دا وائی چه الله (ئے کوی) نو بیا (هغوی ته) او وایه (چه بیا څه وجه ده چه) تاسو تقویٰ نۀ کوئ-

فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ۝۳۲

هغه هُم (د) الله (ذات) دے (چه دا ټے کوی) او (هُم هغه) ستاسو (حقیقی) رب (دے) او د حقو پریخودو نه پس د ناحقے لارے نه سوا څه (حاصلیدے) شی- نو بیا (دا او خو وائی چه) څنګه تاسو (په بل بل طرف) اړولے شئ-

كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝۳۳

داشان چه کوم خلقو نافرمانی شروکړے ده په هغوئ ستا د رب وینا پوره شوے ده چه هغوی ایمان نه راوړی-

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ۝۳۴

تۀ (هغوئ ته) او وایه (چه) آیا ستاسو (جوړکړی) شریکانو کښے (څوک دا سے) شته چه په ړومبی ځل پیدا کوی (او) بیا هغه (پیدا او ښت) دوباره کوی- تۀ (هغوی ته) او وایه چه هُم الله (خود ے چه) په

پرومبی ځل پيدا کوی او بيا هغه (پيدا وښت) دَ سره کوی نو بيا (او وائي چه دے سره) تاسو کوم خوا گرزولے شئ۔

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ ۭ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ۭ اَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ اَحَقُّ اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ اِلَّآ اَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۣ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ٣٥

نۀ (هغوی ته دا هُم) او وايه (چه) ستاسو (جوړکړی) شریکانو کښے څوک (هُم دا سے) شته دے چه (خلقوته) لاربنائي (هغوی به دَ دے سوال څه ځواب درکوی) نه (په خپله هغوی ته) او وايه چه الله (تعالیٰ) (خوے چه څوک) (خلقو ته) دَ حقو لاربنائي۔ نو آيا هغه خدائے چه دَ حقو لاربنائي دَ دے خبرے زيات حق لری چه دَ هغهٔ (حکمونه) دے او منلے شي يا هغه (فرضی خدا ئے) څوک چه دَ دے نه سوا چه هغهٔ ته (نبغه) لار او ښودے شی۔ (پخپله هُم) لار نهٔ مومی۔ بيا او وائي په تاسو څه (شوی) دی تاسو څنګه فيصلے کوئ۔

وَمَا يَتَّبِعُ اَكْثَرُهُمْ اِلَّا ظَنًّا ۭ اِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْـًٔـا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ٣٦

او په هغوی کښے ډير څخے (دَ خپل) وهم نه سوا (څه بل څيز پسے) نه زی۔ (حال دا) چه وهم دَ حقو په ځائے هيڅ کار نه ورکوی۔ چه څه دا (خلق) کوی (په هغے) الله (تعالیٰ) په تحقيق سره ښه خبر دے۔

وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰي مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ٣٧

او دَ دے قرآن دَ الله (تعالیٰ) نه سوا دَ بل چا (دَ طرف نه) په دروغه جوړولو امکان نه شی کيد لے۔ بلکه دا (خو) دَ دے (دَ خدائے دَ کلام) تصديق (کوی) دے چه دَ دے نه وړاندے (موجود) دے او دَ خدائے په کلام کښے چه څه پکار دی دَ هغے تفصيل (بيانوی او) دے کښے هيڅ شک نشته چه دا دَ ټولو جهانونو دَ رب له (اړخه دے۔

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۭ قُلْ فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ٣٨

آيا هغوی وائي چه دے (سړی) دا دَ (خپل طرف نه) جوړکړے دے۔ نۀ (هغوی) ته او وايه (چه) که

تا سو روړے بیان کښے) رښتونی یئ نو دَ دے (دَ سورتونو) په شان یو سورت راوړئ - او دَ الله (تعالیٰ) نه سوا چه چا ته ږدَ را بللو) تا سو طاقت لرئ (خپل مدد له ئے) او غواړئ -

بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۖ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ ﴿٣٩﴾

ولے ږدَ هغوی دا خیال صحی نهٔ دے) بلکه هغوی یو دا سے څیز نه انکار کړے دے چه دَ هغے هغوی پوره علم حاصل کړے نه وُه او نهٔ اوس دَ هغے حقیقت په هغوی ظاهر شوے وُه- څوک چه هغوی نه وړاندے وُو - هغوی (هُم) دا سے انکار کړے وه بیا او گوره (چه) دَ هغه ظالمانو څه انجام شوے وُه-

وَمِنْهُمْ مَنْ يُؤْمِنُ بِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ لَا يُؤْمِنُ بِهِ ۚ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٤٠﴾ ع

او په هغوی کښے بعضے دا سے دی چه په دے به ایمان راوړی او بعضے دا سے دی چه په دے به ایمان نه راوړی او ستا رب فساد کوونکی ښهٔ پیژنی -

وَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ لِي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ۖ أَنْتُمْ بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ وَأَنَا بَرِيءٌ مِمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٤١﴾

او که چرے هغوی ستا انکار او کړی نو تهٔ (هغوی ته) او وایه (چه) زما عمل به (خپله) ماله (ښهٔ یا نقصانی دی) څه چه زهٔ کوم هغے نه تا سو خلاص یئ او څه چه تا سو کوئ دَ هغے نه زهٔ خلاص یم -

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوا لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤٢﴾

او هغوی کښے (بعضے دا سے) دی چه څوک ستا (خبرو) ته هرونخت غوږ ږدی (نو) آیا تهٔ به دا سے کنړو ته سره دَ دے چه هغوی عقل نه (هم لرو) کار نه اخلی- (خپله خبره) واوروے؟

وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْظُرُ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنْتَ تَهْدِي الْعُمْيَ وَلَوْ كَانُوا لَا يُبْصِرُونَ ﴿٤٣﴾

او دوی کښے بعضے دا سے (هُم) شته چه ستا طرف ته (ئے سترگے برندے کړی دی) گوری- (نو) آیا تهٔ به دے ړندو ته چه بصیرت هُم نه لری نیغه لاره ښائے -

إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْئًا وَلَٰكِنَّ النَّاسَ

دَ الله (تعالیٰ شان) په تحقیق سره (دا سے دے چه هغه)

أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۴۵﴾

په خلقو باندے هيڅ ظلم نۀ کوی ولے خلق په خپلو ځانونو باندے (په خپله) ظلم کوی۔

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَاَنْ لَّمْ يَلْبَثُوْۤا اِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ ۭ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۴۶﴾

او چه په کومه ورځ به هغه هغوی د اسے حال کښے راغونډوی چه (هغوی به ګنړی چه) ګنی هغوی دَ ورځے دَ يو ساعت نه سوا (دنيا کښے) پاتے شوی نۀ وو (هغه ورځ به) هغوی دَ يو بل (حال) معلوم کړی۔ (ياد لرئ چه) کوم خلقو دَ الله (تعالیٰ) په وړاندے دَ ورتلو (وعدے) نه انکار اوکړو او هغوئ هدايت قبلوونکی نه شو۔ هغوی (لس) نقصان اوچت کړو۔

وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِیْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۴۷﴾

او دَ کوم (عذاب دَ راستولو) چه مونږ هغوی سره وعده کوو که چرے مونږ دَ هغے څه برخه (ستا وړاندے راواستوو او) تا ته يئے اوښايو (نو ته به هم اوګورے) او که چرے مونږ (دَ هغه وخت نه آګاهو) تاله وفات درکړو نو (تا ته) دَ مرګ نه پس به دَ هغے حقيقت معلوم شي۔ (او) په هرحال (روے چه) هغوی ته به هم هلته دَ هغے حقيقت معلوم شي۔ (او) په هرحال (روے چه) هغوی ته به هم ځمونږ په طرف راولس کيدل دی (هغوی ته به هم هلته دَ هغے حقيقت معلوم شي) (او ياد لرئ چه) څۀ هغوی کوی الله (تعالیٰ) دَ هغے نه ښۀ خبر دے۔

وَلِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ رَسُوْلُهُمْ قُضِیَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۴۸﴾

او هر قام له دَ يو (نه يو) رسول (را تلل ضروری) دی۔ نو بيا چه کله دَ هغوی رسول راشی نو دَ هغوی ترمينځه انصاف سره فيصله اوکړے شي۔ او په هغوی هيڅ ظلم نه کيګی۔

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۴۹﴾

او هغوی وائی (چه) که چرے تاسو رښتونی يئ نو دا وعده به کله (پوره) کيګی۔

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ اِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿٤٩﴾

"ته (هغوى ته) او وايه (چه) زه خو دَ الله تعالىٰ دَ رضا نه سوا ربه خپله) پخپل حق كښې (هُم) نه په څه نقصان قالبولرم اونه په څه گټه بانده - (او دا رښتيا ده چه) هرقام (عذاب ته جوړولو دپاره) لو مياد ټاكلے شوے وى - هركله چه هغه راشى نو (هغه وخت) هغه نهٔ يوه گړئ (دَ هغے نه) روستو پاتے كيدو رانده دَ هغے نه بچ) كيدے شى او نه (خو) هغے نه په وړاندے وتو باندے (دَ هغے نه خلاصئ موندے) شى -

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُهٗ بَيَاتًا اَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٥٠﴾

"ته (هغوى ته) او وايه چه (رلن) دا (خو) او وائى (چه) كه چرے هغه عذاب دَ شپے يادَ ورځے (رښتاسو په ليدو) په تاسو راشى نو مجرم خلق به څنګه دَ هغے نه او تختيدے شى -

اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ اٰلْئٰنَ وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿٥١﴾

آيا چه بيا كله هغه راشى نو (هغه وخت) به تاسو په هغے ايمان راوړئ؟ دَ دے هيڅ فائده نه شى كيدے - هغه وخت خو به تاسو ته او وئيلے شى چه آيا راوس تاسوايمان راوړئ) سره دَ دے چه (دَ دے راتلو پورے) تاسو دَ دے زر راتلل غوښتل -

ثُمَّ قِيْلَ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿٥٢﴾

بيا چه كوموخلقو ظلم كړے وى هغوى ته به اووئيلے شى (چه اوس) تاسو دا نه ختميدُ ونكے عذاب واخلئ - آيا تاسو له ستاسو دَ عملونو نه سوا دَ څه بل څيز بدل دركيږى -

وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ قُلْ اِىْ وَرَبِّىْٓ اِنَّهٗ لَحَقٌّ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿٥٣﴾

او هغوى تا نه تپوس كوى (چه) آيا هغه (عذاب به رښتيا) رازى - "تهٔ (هغوى ته او وايه چه (او) زما په خپل رب قسم دے چه په تحقيق سره هغه راتلونكے دے - او تاسو (دَ دا سے كولو نه خدا ئے) نه شئ منے كولے -

وَلَوْ اَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِى الْاَرْضِ لَافْتَدَتْ

اوكه چرے دا سے هر سړى ته چه ظالم جوړ دے هغه

بِهٖ ۚ وَ اَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ۚ وَقُضِیَ
بَیْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ ۝۵۴

تول حاصل وي چه مزکه کښې دی نو هغه به دَ هغې په
ورکولو دَ خپل نفس په خلا صولو هیله نهٔ کوله (یعنی که
دا ئې کیدې شوې وې دا ئې به نهٔ کیکې) او چه کله
کله به هغوئ عذاب او وینی نو هغوی په (خپل) شرم
پټوی او دَ هغوی ترمینځه به انصاف سره فیصله
اوکړې شي او په هغوی په (هیڅ) ظلم نه کیګی۔

اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اَلَآ اِنَّ وَعْدَ
اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ ۝۵۵

واورئ! څهٔ چه آسمانونو او مزکه کښې دی هغه تول
په تحقیق سره دَ الله (تعالیٰ) دی۔ او دَ الله (تعالیٰ) وعدهٔ
په تحقیق سره پوره کیدُونکې ده۔ وې هغوی کښې ډیر
(خلق) علم نه لری۔

هُوَ یُحْیٖ وَیُمِیْتُ وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝۵۶

هغه ژوندی کوی او وژنی او هغهٔ ته به تاسو واپس
ګرزولې شئ۔

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ
وَشِفَآءٌ لِّمَا فِی الصُّدُوْرِ ۙ وَهُدًی وَّرَحْمَةٌ
لِّلْمُؤْمِنِیْنَ ۝۵۷

یَه خلقو! تاسوله ستاسو دَ رب دَ طرف نه په تحقیق سره
دا ئې کتاب راغلې دې چه کوم سراسر نصیحت
(دې) او هغه (دَ هر) هغې (بیمارئ) دَ پاره چه سینو
کښې وی شفا (ورکوُونکې) دې او دَ ایمان راوړُونکو
دَ پاره هدایت او رحمت دې۔

قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْیَفْرَحُوْا ؕ هُوَ
خَیْرٌ مِّمَّا یَجْمَعُوْنَ ۝۵۸

تهٔ هغوئ ته اووایه (چه داهرڅه) دَ الله (تعالیٰ) فضل
او رحمت سره (ترلی) دی نو بیا هغوی له په دې خوشحالی
کول پکار دی۔ چه کوم (مال) هغوی راغونډوی دَ هغې
نه دا (نعمت) ډیر ښه دې۔

قُلْ اَرَءَیْتُمْ مَّاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ
مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ؕ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَی اللّٰهِ
تَفْتَرُوْنَ ۝۵۹

تهٔ (هغوئ ته) اووایه! (چه) آیا تاسو چرې په دې
خبره غور هُم کړې دې چه الله (تعالیٰ) تاسوله (دَ
آسمانه) رزق راکوز کړې دې۔ بیا تاسو هغې کښې
(څهٔ) حرام او (څهٔ) حلال ګرزولی دی۔ تهٔ (هغوی

تـه) او وايه (چه) آيا الله (تعالىٰ) تاسوته (دَ دے خبرے) اجازه درکړے ده يا تاسو په الله (تعالىٰ) باندے (هسے) دروغ تړئ۔

وَمَا ظَنُّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٦١﴾

اوچه کوم خلق (الله تعالىٰ) باندے دروغ تړي دَهغوي دَ قيامت دَ ورځے په حقله څه خيال دے۔ الله (تعالىٰ)
ع په خلقو باندے په تحقيق سره (ډيرلوئے) انعام کوُونکے دے۔ وے هغوي کښے ډير (خلق) شکر نه کوي۔

وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُو مِنْهُ مِنْ قُرْآنٍ وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ ۚ وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَبِّكَ مِنْ مِثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَلَا أَصْغَرَ مِنْ ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرَ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ ﴿٦٢﴾

اونهٔ ته چرے څه کار کښے (مشغول) يے او نهٔ ته دَ دے (کتاب) نه څهٔ برخه قرآن لوے اونهٔ تاسو (ټول خلق) څه (نور) کار کوئ خو (دے ټولو حالاتو کښے) چه کله تاسو (خپل کار کښے پوره) آخته يئ نو مونږ تاسوته ګورو اومزکه يا آسمان کښے څه (لو) ذره څيز (هُم) ستا دَ رب دَ نظر نه پټ نهٔ وي۔ او نهٔ (پوُ تے غوندے) وړوکے څيز يا غټ څيز شته دے چه کوم (دَهر حقيقت) روښانه کوُونکے يو کتاب کښے (راغلے يا موجود) نهٔ وي۔

أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٣﴾

واورئ! چه څوک (خلق) الله (تعالىٰ) سره (ښتونے) مينه لري۔ په هغوي نه څه ويره (رازي) اونه هغوي غمژن کيګي۔

الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿٦٤﴾

(يعني هغه خلقو) چا چه ايمان (راوړو اوتل ترتله ئے تقوىٰ کوله۔

لَهُمُ الْبُشْرَىٰ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ ۚ لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٦٥﴾

هغوي له (دے) دنيوي ژوند کښے (هُم دَخدائے تعالىٰ دَطرف نه) (دَ) زيرې (مونتو انعام مقرر) دے او روستو راتلونکي ژوند کښے هُم۔ دَ (الله تعالىٰ) فرمائيلي شوو خبرو کښے (هيڅ) هيڅ بدلي نشته۔ دا (هغه کته ده چه) ډيره لويه کټه ده۔

وَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ إِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيعًا ۚ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٦٦﴾

او ربکاردې نه کړي (ځکه چه) غلبه ټوله الله (تعالیٰ) ته حاصله ده (او) هغه ښهٔ اوریدونکے (او) ښهٔ علم لرونکے دے

أَلَا إِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ ۗ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ شُرَكَاءَ ۚ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٦٧﴾

واورئ! (د مخلوق) چه څوک آسمانونو کښے (دی) او مزکه کښے (موجود) دے (هر یو) دَ الله (تعالیٰ) دے او چه کوم خلق دَ الله (تعالیٰ) نه سوا (نورو څیزونو ته) نارے وهی هغوی (اصل کښے دَ خدائے دَ) شریکانو پسے نهٔ روان دی چه (هغوی ئی د الله شریکان منی او هغه حق وی بلکه) هغوی پس (دَ خپل) وهم پسے روان دی او بس - هسے دَ چا جُوټو نه کار اخلی -

هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٦٨﴾

هُم هغه (لا شریکه ذات) دے چا چه تاسو له شپه دَ دے دَ پاره (ځکه تورة) جوړه کړے ده چه تاسو دے کښے آرام اوموښی او (دَ) ورځ (دَ کار دَ پاره) روښانه (جوړه کړے ده) - چه کوم خلق (خفه خبره) اوری (او دَ هغے نه فائده اوچتوی) هغوی له دے (نظام) کښے په تحقیق سره ډیر نښانات دی -

قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ الْغَنِيُّ ۖ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ إِنْ عِنْدَكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ بِهٰذَا ۚ أَتَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٩﴾

او هغوی (خو زر دے) وئیلی دی (چه) الله (تعالیٰ) (هُم ځان له) اولاد جوړ کړے دے - (ګنی مونږ خو هغه) دَ دے خبرے نه پاک ګرزوو - هغه ډیر بے نیازه دے - چه څه آسمانونو کښے (موجود) دی - او څه چه مزکه کښے (موجود) دی - (ټول) دَ هغهٔ دی - دَ دے دعوے (چه تاسو ئې کوئ) تاسو سره هیڅ ثبوت نشته (بیا) آیا تاسو الله (تعالیٰ) سره هغه (خبره) تړئ دَ کومے په حقله چه تاسو (هیڅ هُم) علم نهٔ لرئ -

قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿٧٠﴾

تهٔ (هغوئ ته) او وایه (چه) کوم (خلق) په الله بانده دروغ تړی هغوی هیڅکله نهٔ کامیابیګی -

مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿٧٠﴾

دنیا کښے (دَ هغوی برخه لږ دَ لوښو ورځو دَ پاره) گټه اوچتول دی۔ بیا هغوی له ځمونږ طرف ته واپس راتلل دی۔ بیا به دے سوب چه هغوی (رلگیا دی) کفر کوی مونږ به په هغوئ دَ سخت عذاب (مزه) څکوو۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَقَامِي وَتَذْكِيرِي بِآيَاتِ اللَّهِ فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ وَلَا تُنْظِرُونِ ﴿٧١﴾

او ته هغوی ته دَ نوحؑ حال هُم اوروه ځکه چه هغه (هُم) خپل قام ته وَئیلی وُو (چه) یه زما قامه! که چرے په تاسو زما (خدائے راکړے) مرتبه او دَ الله (تعالیٰ) نښانا تو سره تاسو ته (رښتاسو فرض) یادول بد لگی نو تاسو دَ خپلو خوښ کړی شریکانو سره دَ خپلے خبرے (په حقله تهول دَ پخوالی ساما نونه) راغونډ کړئ (او) دا هُم یکار دہ چه ستاسو خبره په تاسو (دَ هر اړخ نه) شک منه نه وی۔ بیا هغه په ما نافذ کړئ او ماله (هیڅ موقعه او مهلت مهٔ راکوی۔

فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَأَلْتُكُمْ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٧٢﴾

بیا هُم که چرے تاسو مخ وا اړوئ نو دے کښے زما هیڅ نقصان نشته (ولے هُم ستاسو دے) ځکه چه ما خو تاسو نه (دَ دے په بدل کښے) هیڅ اجر نه دے غوښتے زما اجر دَ الله (تعالیٰ) نه سوا په بل هیچا نه دے او ماله حکم راکړے شوے دے چه زه (دَ هغه) دَ مکمل منونکو نه شم۔

فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَمَنْ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ وَجَعَلْنَاهُمْ خَلَائِفَ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِينَ ﴿٧٣﴾

په دے هُم هغوئ دَ هغهٔ نه انکار اوکړو نو بیا هغه او ورسره هغوی له چه په کشتئ کښے هغهٔ سره (سوارهٔ) وُو بچ کړل او هغوی مونږ دَ وړاندینو خلقو په ځائے کینول۔ او چه کومو خلقو زمونږه دَ نښانا تو نه انکار (کړے وه) هغوی مونږ غرق کړل۔ نو اوګورئ (چه) کوم خلق (دَ هغه عذاب نه) خبر کړے شوی وُو دَ

هغوی انجام څنګه اوشو۔

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهٖ رُسُلًا اِلٰى قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ۚ كَذٰلِكَ نَطْبَعُ عَلٰى قُلُوْبِ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿٧٤﴾

بیا دے نه پس مونږ نور (هُم ډیر) رسُولو ن خپل (خپل) قام ته واستول او هغو هغوی له روښانه نښانونه راوړل نو هغه (خلقو) په دے سوب چه (دے نه وړاندے) دے صداقت نه انکار کړے وه (په دے ئے) ایمان رانهٔ وړو۔ مونږ دَ حد نه دَ وتونکو په زړونو داسے مهر لګوو۔

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُّوْسٰى وَهٰرُوْنَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ بِاٰيٰتِنَا فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿٧٥﴾

بیا دَ هغوی نه پس مونږ موسیٰؑ او هارونؑ خپلو نښانانو سره فرعون او دَ هغه دَ قام لویو خلقو طرف ته واستول نو هغوی کبر اوکړو او هغوی دَ روړاندے نه) لو مجرم قام وه۔

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْٓا اِنَّ هٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧٦﴾

بیا چه کله څمونږ دَ طرف نه هغوی له حق راغے نو هغوی اووئیل (چه) دا خامخا (دَ تعلقاتو) ختمونکے فریب دے۔

قَالَ مُوْسٰٓى اَتَقُوْلُوْنَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ۭ اَسِحْرٌ هٰذَا ۭ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ ﴿٧٧﴾

په دے موسیٰؑ هغوئ ته اووئیل (چه) آیا تاسو دَ حقو په حقله (داسے) وائې۔ (او هغه هُم داسے وخت) کله چه هغه تاسو له راغلے دے آیا دا فریب کیدے شی۔ حقیقت دا دے چه فریب ورکوونکی نهٔ کامیابیګی۔

قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا وَتَكُوْنَ لَكُمَا الْكِبْرِيَآءُ فِي الْاَرْضِ ۭ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿٧٨﴾

هغوی اووئیل۔ آیا ته (دے دَ پاره) مونږ له راغلے یے چه په کومه خبرهٔ باندے مونږ خپل پلارنیکونه موندلی وُو هغے نه مونږ لرے کړے۔ او تاسو دواړو ته په ملک کښے لوئی حاصله شی او مونږ خو په چرے په تاسو ایمان نه راوړو۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائْتُوْنِيْ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ﴿٧٩﴾

او فرعون (خپلو خلقو ته) اووئیل (چه) تاسو ماله (دَ ټول ملک نه) هر لیو کامل واقف کار جادوګر راولئ۔

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالَ لَهُمْ مُّوسٰٓى اَلْقُوْا مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ۝٨٠

بيا نو چه تهول جادوګران راغلل نو موسیٰؑ هغوی ته او وئيل (چه) څه چه تاسو له اچول دی وا چوئ.

فَلَمَّآ اَلْقَوْا قَالَ مُوْسٰى مَا جِئْتُمْ بِهِ ۙ السِّحْرُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَيُبْطِلُهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝٨١

په دے چه هغوی له (څهٔ اچول وُو) وا چول نو موسیٰؑ او وئيل (چه) څه چه تاسو خلقو وړاندے کړی دی (لوره) پوره فريب دے (او) الله (تعالیٰ) به خامخا دا ختموی- الله (تعالیٰ) به د مفسدانو کارونو له چرے هُم مخه نهٔ ورکوی.

ع ۱۲ ۱۳ وَيُحِقُّ اللّٰهُ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۝٨٢

او الله (تعالیٰ) د خپلو کلماتو سره حق ثابتوی هرڅو که مجرمان (دا خبره) نهٔ خوښوی.

فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰٓى اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ؕ وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ۝٨٣

بيا (هُم) د هغه قام يوڅو ځوانانو په هغهٔ ايمان راوړو باقی خلقو د فرعون (د ويرے) او د خپل قام د نورو خلقو د ويرے چه هغی هغوئ له څهٔ مصيبت کښے وا (نهٔ) چوی- موسیٰؑ (ونهٔ منولو او فرعون په تحقيق سره زياتے کوونکے وه او د حد نه د وتونکو نه وه.

وَقَالَ مُوْسٰى يٰقَوْمِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ۝٨٤

او موسیٰؑ (خپل قام ته) او وئيل (چه) يه زما قامه! که چرے دا خبره (صحی) وه چه تاسو په الله (تعالیٰ) ايمان راوړے دے نو که چرے (د دے سره) تاسو (د هغهٔ) رښتونی منونکی (هم) يئ- نو په هغه توکل کوئ.

فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝٨٥

په دے هغوی او وئيل (چه) مونږ لس په الله (تعالےٰ) توکل لرو- يه څمونږه ربه! مونږ (د دے) ظالمانو خلقو د پاره د فتنے سوب مهٔ جوړوه.

وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝٨٦

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٨٧

او په خپل رحمت مونږ د کافر خلقو (د ظلم نه) اوساته او مونږ موسیٰؑ او د هغهٔ رور ته وحی او کړه چه تاسو مصر کښے د څو کورونو رنګا ئے د خپل قام (او سيدو له) خاص کړئ او تاسو ټول خلق خپل (خپل) کورونه مخامخ کاخ

جوړکړئ۔ او (هغې کښې) په ښهٔ رنګ نمونځ کوئ۔ او (دا وحی هُم چه یَه موسیٰ!) ته مومنانوته (دَکامیابیٔ) زیرے ورکړه۔

وَقَالَ مُوسٰی رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَیْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِیْنَةً وَّاَمْوَالًا فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۙ رَبَّنَا لِیُضِلُّوْا عَنْ سَبِیْلِكَ ۚ رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰۤی اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ فَلَا یُؤْمِنُوْا حَتّٰی یَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِیْمَ ﴿٨٩﴾

او موسیٰ اووئیل (چه) یَه ځمونږ ربه! تا فرعون له او دَ هغه دَ قام لویو خلقوله (دے) ژوند کښے دَښائیست (سامان) اومالونه ورکړی دی۔ ولے یَه ځمونږه ربه نتیجه دا راوزی چه هغوی ستا دَ لارے نه خلق آړوی۔ نو بیا یَه زمونږه ربه! دَدوی مالونه تباه کړے او دَ دوی په زړونو هُم سزا راکوزه کړه چه نتیجه ئے دا راوزی چه ترڅو هغوی دَردناکه عذاب او نه ګوری ایمان را نهٔ وړی۔

قَالَ قَدْ اُجِیْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِیْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِیْلَ الَّذِیْنَ لَا یَعْلَمُوْنَ ﴿٩٠﴾

(په دے الله تعالیٰ) اوفرمائیل۔ ستاسو دَ دواړو دعا قبوله شوه بیا نو تاسو دواړه ټینګ او دریګئ او چه کوم خلق علم نهٔ لری دَ هغوی په لاره هیڅکله لاړنه شئ۔

وَجٰوَزْنَا بِبَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ بَغْیًا وَّعَدْوًا ؕ حَتّٰۤی اِذَاۤ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ۙ قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِیْۤ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْۤا اِسْرَآءِیْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿٩١﴾

او مونږ بنی اسرائیل دَ سمندرنه (پورے) اوویستل نو فرعون او دَ هغهٔ فوځونه دَ سرکشیٔ او ظلم (په لاره) هغوی پسے ورغلل۔ تردے چه کله دَ غرقیدو آفت هغه (او دَ هغه فوځ) راګیرکړو نو هغهٔ اووئیل زهٔ ایمان راوړم چه په چا باندے بنی اسرائیلو ایمان راوړے دے۔ دَ هغهٔ نه سوا څوک بل معبود نشته او زهٔ (په رښتیا) حکم منونکونه (ګیکم) یم۔

آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَیْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِیْنَ ﴿٩٢﴾

(مونږ اووئیل) آیا ته (اوس ایمان راوړے) ولے په حقیقت کښے تا آګا هو نا فرمانی او کړه او دَ فساد کوونکونه وے

فَالْیَوْمَ نُنَجِّیْكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوْنَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰیَةً ؕ وَاِنَّ كَثِیْرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰیٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ﴿٩٣﴾ ع ٩ ١٤

بس نو اوس به مونږ ستا دَ بدن (دَ بقا) په ذریعه تا له یوه برخه نجات درکوو۔ دَپاره دَ دے چه کوم خلق تا پسے را تلونکی

دي هغوی له تهٔ یو نشان یے او خلقو کښے ډیرشے خلق زمونږ دَ نشانونو نه بے شکه بے خبره دی۔

وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ وَرَزَقْنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ فَمَا ٱخْتَلَفُوا۟ حَتَّىٰ جَآءَهُمُ ٱلْعِلْمُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٩٣﴾

او مونږ بے شکه بنی اسرائیلو له ښکلے او پټ (دَ هر قسم) خوښ لړونکے ځائے ورکړے وُه او (هر قسم) خوښیدُونکی څیزونه (هُم) هغوی له ورکړی وُو۔ بیا هغه وخته پورے چه هغوی له صحی علم (اَو هغوی په رښتیځ خبره کښے) اختلاف اونه کړو۔ ستا رب به دَ هغوی ترمینځه دَ هغه خبرے په حقله چه څهٔ کښے هغوی اوس اختلاف کوی په تحقیق سره دَ قیامت په ورځ فیصله کوی۔

فَإِن كُنتَ فِى شَكٍّ مِّمَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ فَسْـَٔلِ ٱلَّذِينَ يَقْرَءُونَ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿٩٤﴾

بیا که چرے تهٔ (یَه دَ قرآن لوستونکیه !) دَ دے (کلام) په سوب چه کوم ماپه تا نازل کړے دے۔ په څه شک کښے آخته یے نو تهٔ هغه خلقو نه چه تا نه وړاندے داکتاب لولی تپوس اوکړه او تا ته به معلومه شی چه بے شکه (یو) کامل صداقت ستا دَ رب دَ طرف نه تا ته راغلے دے نو بیا تهٔ شک کوونکونه مهٔ جوړیګه۔

وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَتَكُونَ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٩٥﴾

او نهٔ هغو (خلقو) نه هیڅکله نښے چاچه دَ الله (تعالیٰ) نښانونو نه انکار کړے دے ګنے تهٔ به دَ نقصان اوچتوونکونه شے۔

إِنَّ ٱلَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٩٦﴾

دَ کومو خلقو په حقله چه ستا دَ رب (دَ طرف نه دَ هلاکت) خبر راغلے دے هغوی به هیچرے ایمان نه راوړی۔

وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ ءَايَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴿٩٧﴾

او که چرے هغوی له هر قسم نښانونه هُم راشی نو بیا به هُم هغوی ترهغه وخته پورے ایمان نهٔ راوړی ترڅو چه هغوی دردناک عذاب اونه وینی۔

فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ ءَامَنَتْ فَنَفَعَهَآ إِيمَٰنُهَآ إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ لَمَّآ ءَامَنُوا۟ كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ ٱلْخِزْىِ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَمَتَّعْنَٰهُمْ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٩٨﴾

او ولے دَ یونسؑ دَ قام نه سوا بله (یو داسے) نړۍ نه وه چه دَ کومے (خلقو) (به یو ځائے) ایمان راوړے وے او دَ هغے ایمان راوړو هغے له فائده ورکړے وے۔ چه هرکله چه هغوی (یعنی دَ یونس دَ قام خلقو) ایمان راوړو نو مونږ دَ هغوی

نه په دے ژوند کښے (هُم) دَ رسوائي عذاب لرے کړو او هغوی
له یے تر یو وخته پورے (هر قسمه) سامان ورکړو۔

وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ۚ
اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۰﴾

اوکه چرے الله (دَ هدایت په معامله کښے) خپله خوښه
کوے نو (چه څومره) خلق په مزکه دی هغوی ټولو به ایمان
راوړے وے (نو بیا هرکله چه خدائے تعالیٰ هُم نه مجبوروی)
نو آیا ته به خلق (دومره) مجبوروے چه هغوی مومنان شی۔

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تُؤْمِنَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَيَجْعَلُ
الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

او دَ الله (تعالیٰ) دَ حکم نه سوا دَ هیچا په وس کښے نه دۀ چه
هغه ایمان راوړی او هغه خپل غضب په هغه خلقو راکوزوی
چه سرۀ دَ عقله دے نه کار نۀ اخلی۔

قُلِ انْظُرُوْا مَاذَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا تُغْنِي
الْاٰيٰتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

ته (هغوئ ته) اووایه (چه) اوګورئ (چه) په مزکه او
آسمانونو کښے څه (ګکیا دے کیګی) او هیڅ قسم نشانونه
(هُم) که دَ امن وی او که ویرونکی خبرونه هغه خلقو ته
فائده نه ورکوی چه په ایمان نه راوړو ټینګ وی۔

فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ اِلَّا مِثْلَ اَيَّامِ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ
قَبْلِهِمْ ؕ قُلْ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۱۰۳﴾

بیا آیا چه کوم خلق دَ هغوئ نه وړاندے تیر شوی دی
هغوی دَ هغوئ دَ ورځو په شان دَ ورځو نه سوا دَ څه بل
څیز انتظار کوی۔ ته هغوی ته وایه (چه) ښه (که چرے هُم
هغه نمونه ګورئ نو) بیا تاسو (خلق) انتظار اوکړئ۔ زه
هُم په تحقیق سرۀ تاسو سرۀ دَ انتظار کوونکو نه یم۔

ثُمَّ نُنَجِّيْ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كَذٰلِكَ ۚ حَقًّا عَلَيْنَا
نُنْجِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ ع ۱۰ ۱۱ ۱۵

او (چه کله هغه عذاب راشی نو هغه وخت) مونږ به خپل
رسولان او چه چا په هغوی ایمان راوړے دے هغه بچ
کړو۔ دا رنګ زمونږ په ذمه (په خپله جوړ کړے) یو حق
دے چه مونږ مومنان خامخا بچ کوو۔

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْ دِيْنِيْ
فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ
اَعْبُدُ اللّٰهَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ ۖ وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ

ته اووایه یه خلقه! که چرے تاسو زما دَ دین په حقله په څه
شک کښے یئی نو روا ورئ چه) دَ الله نه سوا دَ کومو (معبودانو) تاسو
پرستش کوئ۔ زۀ دَ هغوی پرستش نه کوم بلکه زۀ دَ الله (تعالیٰ)

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٤﴾

پرستش کوم چه څوک به تاسو وژنی او ما له حُکم راکړے شوے دے چه زۀ دَ ایمان راوړونکو نه شم.

وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ۚ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٥﴾

او ژ دَ دے فرمان دَ پیژوند حُکم هُم راکړے شوے دے (چه زَیه او ریدونکیه) ته دَ هرکوږوالی نه پاکید و سره خپل اصلی پام تل ترتله دین ته (وقف) کړه او ته دَ مشرکانو هیچرے نۀ شے.

وَلَا تَدْعُ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۖ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠٦﴾

او نۀ دا الله (تعالیٰ) نه سوا (بل څیز) ته چه تا له نه (څه) ګټه درکوی او نه (څۀ) نقصان درکوی مه بله او که چرے (تا ردا سے) اوکړل نو هغه صورت کښے به ته په تحقیق سره ظالمانو کښے شمیر شے.

وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِنْ يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ ۚ يُصِيبُ بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿١٠٧﴾

او که چرے الله (تعالیٰ) تا له څه تکلیف درکړی نو هغه نه سوا څوک هُم هغے له لرے کوونکے نه شی. او که چرے هغه تا له څه ښیګړه اوغواړی نو دَ هغه دَ فضل منع کوونکے (هُم بیغی) څوک نشته. هغه په خپلو بندیانو کښے چه چا له اوغواړی هغۀ ته (خپل فضل) رسوی. او هغه ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكُمْ ۖ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ ﴿١٠٨﴾

ته (هغوی ته) او وایه (چه) یه خلقه! تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه حق راغلے دے. بیا نو (اوس) چه څوک (دَ هغه ښودے) هدایت اومنی نو هغه بس دَ خپل ځان (دَ فائدے) دَ پاره هدایت منی. او چه څوک دے لارے نه بے لارے شی نو دَ هغۀ بے لارے کیدل (هُم) دَ هغه په ځان به (پیتی) وی. او زۀ ستا سو څه ذمه وار نه یم.

وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَاصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴿١٠٩﴾

او څه چه تا ته وحی کیګی هغه منه او دَ صبر نه کار اخله تر دے چه الله تعالیٰ فیصله اوکړی او هغه دَ ټولو فیصله کوونکو نه ښه فیصله کوونکے دے. ع




سورة هود - دا سورة مكي وے او لبسم الله سره دَ دے يوسل څلير ويشت ١٢٤ آيتونه او لس ١٠ ركوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

رشروكوم ) دَ الله په نوم چه بے حده مهربانه او بيا بيا رحم كوُونكے دے۔

الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ②

الرا - (دا) دا سے كتاب دے چه دَ دے آيتونه محكم جوړه شوی دي او ورسره دا په تفصيل بيان شوی دي (او دا) دَ حكمت لرُونكي او باخبره (ذات) دَ طرف نه دے۔

اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنَّنِيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ ③ وَّاَنِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُمَتِّعْكُمْ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّيُؤْتِ كُلَّ ذِيْ فَضْلٍ فَضْلَهٗ ؕ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيْرٍ ④

(او) دے تعليم سره (رالیږلے) دے چه تاسو دَ الله (تعالیٰ) نه سوا دَ (بل) چا عبادت مهٔ كوئ۔ او دا چه تاسو دَ خپل رب نه بخښنه غواړئ (او) بيا هغه طرف ته په (حقيقت كښے) رجوع كوئ۔ (نو هله) هغه به يو مقرر وخت پورے تاسو له په ښه ډول سامان دركوی۔ او ورسره هر يو فضيلت لرونكي (سړي) ته به خپل فضل دركوی۔ او كه چرے تاسو واړئ نو زه به په تحقيق سره تاسو باندے دَ يو لوئے (هولناكه) ورځے دَ عذاب (دَ راتلو) نه ويريږم۔ ځكه چه زهٔ دَ خدائے دَ طرف نه بے شكه تاسو له هوښيارونكے او خاص خبرونه دركوونكے (رالیږلے شوے) يم۔

اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ⑤

الله (تعالیٰ) ته ستاسو دَ ټولو واپس گرزيدل دي۔ او هغه هر څيز باندے مكمل قدرت لرُونكے دے۔

اَلَآ اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ ؕ اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ ۙ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۚ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ⑥

واورئ! هغوی په تحقيق سره خپلے سينے دے دَ پاره اړوي چه دَ هغهٔ نه پټے شي۔ واورئ! څه وخت چه هغوی خپلے جامے اچوی (نو هغه وخت هُم) څه چه هغوی پټوی او څه چه هغوی ښكاره كوی هغهٔ هغه پيژني۔ هغه په تحقيق سره دَ سينو خبرے (هُم) ښے پيژني۔

وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا ؕ كُلٌّ فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝۶

اوزمکه کښے داسے هیڅ یوزنده سرنښته دے چه دَ هغے رزق دَ الله په زمه نهٔ وی۔ هغه دَ هغهٔ دَ استوګنے عارضی اومستقل ځائے پیژنی۔ (دا) هرڅه یو ښکاره کوونکی کتاب کښے (موجود) دی۔

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ؕ وَلَئِنْ قُلْتَ اِنَّكُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْۢ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۷

او هُم هغه دے چا چه زمکه او آسمانونه شپږو وختونو کښے پیدا کړی دی ځکه چه هغه ستاسو (امتحان) واخلی (چه) تاسو کښے دَ چا عملونه ډیر ښهٔ دی او دَ هغهٔ عرش په اوبو باندے دے او دا یقینی خبره ده کچرے تهٔ (هغوئ) ته اووائے (چه) تهٔ به مرګ نه پس خامخا اوچتولے شے نو کومو خلقو چه انکار کړے دے (هغوئ به په قسمونو) وائی (چه) دا (دعوے) خو لس هسے غلول دی۔

وَلَئِنْ اَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ اِلٰۤى اُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ لَّيَقُوْلُنَّ مَا يَحْبِسُهٗ ؕ اَلَا يَوْمَ يَاْتِيْهِمْ لَيْسَ مَصْرُوْفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝۸ ع

او دا (هُم) پریکړے (قطعی) خبره ده که چرے مونږ دا عذاب دَ یو اندازے دَ میادپورے هغوی نه روستو اوساتونو هغوئ به خامخا وائی (چه) کومه خبره دا منع کوی۔ واورئ! ځهٔ وخت به چه هغه هغوی باندے راشی نو هغوئ نه به نهٔ آخوا کیګی اوچه په کوم عذاب پورے هغوی خندا کوله هغه به هغوئ راګیر کړی۔

وَلَئِنْ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ ۚ اِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ۝۹

اوکه چرے مونږ په انسان دَ خپل طرف نه (دَ ځهٔ قسم رحمت) خوند اوڅکوو (او) بیا هغه نه مونږ هغه لرے کړو نو هغه ډیر نا اُمیده (او) دَ احسان نه انکاری شی۔

وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيْ ؕ اِنَّهٗ لَفَرِحٌ فَخُوْرٌ ۝۱۰

اوکه چرے مونږ دَ ځهٔ مصیبت نه پس چه هغهٔ ته رسیدلے وی په هغهٔ دَ ځهٔ (لوئے) نعمت (خوند) اوڅکوونو سوا دَ هغه خلقو چه صبر اوکړی او نیک

عملونه اوکړي هغه ګکیاشي وائي چه (اوس) څما (ټول) تکلیفونه مانه لرے شوي دي۔ په تحقیق سره هغه ډیر رغاوره او) فخرکوونکے دے۔

إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿۱۱﴾

هم دا (صبرکوونکی خلق) دي چا د پاره چه بخښنه او (ډیر) لوئے اجر دے۔

فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ بَعْضَ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَن يَقُولُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ ۚ إِنَّمَا أَنتَ نَذِيرٌ ۚ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴿۱۲﴾

بیا کیدے شي چه کافرانو نه دا طمع لري چه ته د دے (کلام) چه تا ته وحی شوے دے څه برخه (خلقو ته د رسولو په ځائے) په پریښودلو تیار شې او روے داسے هیڅکله نشي کیدے) او (هغوئ دا هم کوي چه) د هغوی د دے اعتراض له کبله چه ده بانده ولے خزانه را کوزه نشوه یا د ده بانده فرښته رانغله ستا زړه تنګ شي۔ ته خو بس هوښیارونکے او خبروونکے یې او الله د هرے خبرے کارساز دے۔

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِ مُفْتَرَيَاتٍ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۱۳﴾

آیا هغوئ وائي (چه) هغهٔ دا کتاب د خپله ځانه جوړ کړے دے نو هغوی ته او وایه چه که چرے تاسو (دے بیان کښے) رښتوني یئ نو تاسو هم دا شان لس سورتونه د خپله ځانه جوړ کړئ او د الله نه سوا چه (د) چا هم د خپل مدد له د راوستو) ستاسو طاقت وي هغه اوبلئ۔

فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنزِلَ بِعِلْمِ اللَّهِ وَأَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿۱۴﴾

بیا که چرے هغوی ستاسو (دا) خبره او نه مني نو پوهه شئ چه کوم (کلام) تا بانده نازل شوے دے د الله (خاص) علم لري او دا چه د هغهٔ نه سوا بل هیڅ (ذات) هم د پرستش لائق نشته۔ بیا آیا تاسو به پوره حکم منونکي جوړیږئ دیا نه)؟

مَن كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴿۱۵﴾

څوک به (چه) د دے دنیوی ژوند (سامان) او د دے زینت خپل مقصود جوړوي هغوئ ته به مونږ د

هغوئ دَ عملُونو (میوه) دے (ژوند) کښے پوره پوره ورکُوو او هغوئ ته به دے کښے کم نشي ورکيدے۔

أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّارُ ۖ
وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ١٦

هُم دا هغه (خلق) دی چا دَ پاره چه آخرت کښے (دَ دوزخ) دَ اُور نه سوا به (بل) څه نهٔ وی او څه به چه هغوئ دَ دے (دنيوی ژوند) دَ پاره کړی وی هغه به دے کښے دَ سره بے کاره شی او څهٔ به چه هغوی کیاوُو کول هغه به ختم شی۔

اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ وَيَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ
وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰٓى اِمَامًا وَّرَحْمَةً ۗ اُولٰٓئِكَ
يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۗ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ
الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ ۚ فَلَا تَكُ فِيْ
مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ وَلٰكِنَّ
اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ١٧

بیا آیا هغه سړے چه دَ خپل رب نه په لوبښکاره دلیل (ولاړ) دے او چه دَ چانه روستو به هُم دَ هغهٔ دَ طرف نه یو گواه (رازی (چه دَ هغه حکم منُونکے به وی) او دَ ده نه آګا هُو هُم دَ موسیٰؑ کتاب (را غلے) دے (چه دَ دهٔ تائید کولو او) چه (دَ دے کلام نه آګا هو خلقو دَ پاره امام او رحمت وه (یو دروغژن دعویدار غوندے کیدے شی). هغوئ (یعنی دَ موسیٰ د ښتُونی مُونکی) به دهٔ باندے (یو ورځ خا مخا) ایمان راوړی او دغو مخالفو ټولو کښے به چه څوک انکار کیا دی کوی دوزخ دَ هغهٔ ځائے دے۔ بیا (اے دَ دے کلام اوریدوُنکیه !) ته دَ دے په حقله هیڅ (قسم) شک کښے مهٔ پریوزه۔ په تحقیق سره هغه حق دے (او ستا دَ رب دَ طرف نه (دے) وے کثر خلق ایمان نهٔ راوړی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۗ اُولٰٓئِكَ
يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ وَيَقُوْلُ الْاَشْهَادُ هٰٓؤُلَآءِ
الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ۚ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى
الظّٰلِمِيْنَ ١٩

او دَ هغهٔ نه زیات ظالم څوک (کیدے شی) دے چه په الله باندے دروغ اوتړی۔ دا سے خلق به خپل رب ته وړاندے کیګی او ټول ګواهان به وائی (چه) دا هغه خلق دی چا چه خپل رب باندے دروغ اوتړل واورئ! دغو ظالمانو باندے دَ الله لعنت دے۔

الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿٢٠﴾

(دا هغه خلق دي چه الله ته د رسیدلو) د لارے نه (خلق) منع کوي او هغے کښے کږې پیدا کوي او هُم دا خلق د روستو راتلونکي (ژوند) د راتلو نه هم انکاریان دي

أُولٰٓئِكَ لَمْ يَكُوْنُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ۘ يُضٰعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوْا يَسْتَطِيْعُوْنَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوْا يُبْصِرُوْنَ ﴿٢١﴾

دوی (خلق) ملک کښے (الٰهی سلسلے) کمزورے کولے نشي او نه (نحو) د الله په ځائے د هغوئ څوک دوست وی هغوئ ته دوه برخه عذاب ورکیدے شي (د دُنیا کښے هُم او آخرت کښے هُم) نه هغوئ (څه) اوریدے شي او نه (څه) لیدے شي۔

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿٢٢﴾

هُم دا (خلق) دي چا چه خپل ځانُو نه نقصان کښے واچول او چه د څه (غرض) د پاره هغوئ (په الله) دروغ تړل هغه به د هغوئ (د لاس) نه ژی روان به وي۔

لَا جَرَمَ اَنَّهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ﴿٢٣﴾

دا قطعي (خبره) ده چه آخرت کښے به هغوی (د ټولو نه) زیات نقصان او چتوونکي وي۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاَخْبَتُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ ۙ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٤﴾

کوم خلقو چه ایمان را وړو او هغوئ نیک او (مناسب د حال) عمل اوکړو او خپل رب ته تهیتي شول هغوئ به خامخا جنت کښے (اوسیدونکي) وي۔

مَثَلُ الْفَرِيْقَيْنِ كَالْاَعْمٰى وَالْاَصَمِّ وَالْبَصِيْرِ وَالسَّمِيْعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ۚ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٥﴾ ع ٢

د دغو دواړو ټولو حال د یو ړوند او بینا او کوڼ او ښه اوریدونکي (د حال) په رنګ دے آیا د (دوئ) حال یو برابر کیدے شي؟ آیا بیا (هُم) تاسو نه پوهیګئ۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖٓ ۫ اِنِّيْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٢٦﴾

او هُم مونږه نوح د هغه قام ته (د رسُول په حیث) آستولے وه (دا سے هغه هغوئ ته وئیلي وُو) چه ښه واورئ چه زه تاسو له ښه ښکاره (ښکاره) خبروُنکے (او هوښیاروُنکے) (را استولے شوے) یم۔

اَنْ لَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ۭ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ اَلِيْمٍ ﴿٢٧﴾

(دے پیغام سره) چه تاسو د الله نه سوا (د بل څه) عبادت مه کوئ۔ په تحقیق سره زه تاسو باندے د یو

(لوئے) تکلیف (ورکوونکی) ورځے دَ عذاب (ردَ راتلو) به یریګیم۔

فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ مَا نَرٰىكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِينَ ۝۲۸

دے بانده هغوغټتوخلقو چا چه دَ هغهٔ قام کښے ردَ هغهٔ) انکار کرے وُه (هغهٔ ته) اووئیل (چه) مونږ تا لکه دَ خپل ځان یوسړی نه سِوا (څهٔ) نهٔ ګنړو۔ او نهٔ مونږ (دا) وینُو چه سوا دَ هغوخلقونه چه په سرسری نظر څمونږ نه ډیر سپک (په نظر رازی) دی چا تهٔ ځلے ئے۔ او مونږ په خپل ځان باندے ستا (هیڅ قسم) څه لوئی نهٔ وینو بلکه څمونږ یقین دے چه تهٔ دروغژن یئے۔

قَالَ يٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّي وَاٰتٰىنِي رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهِ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُونَ ۝۲۹

هغهٔ اووئیل اے څما قامه! (لږ) اووایه زُتا بته شی چه، زهٔ (دَ خپلے دعویٰ په بنیاد) دَ خپل رب نه (دَ راکړی شوی) په څهٔ ښکاره نشان باندے یم او هغهٔ دَ خپله دره ما ته خپل یو ډیر لوئے رحمت راکړے وی او هغه په تاسو شک من پاتے وی (نو ستاسو به څهٔ حال وی؟) آیا مونږه دا (ځرګند نشان) به په تاسو په زور منُو هرڅوکه تاسو هغه نا خوښوئ۔

وَيٰقَوْمِ لَا أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الَّذِينَ اٰمَنُوا إِنَّهُمْ مُّلٰقُوا رَبِّهِمْ وَلٰكِنِّي أَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ۝۳۰

او یه څما قامه! زهٔ په دے خقله تاسو نه څهٔ مال نهٔ غوارم څما اجر دَ الله نه سوا (بل) چا باندے نهٔ دے او زهٔ به هغهٔ خلق چه (ما باندے یئے) ایمان راوړے دے هیڅکله نهٔ شړم هغوئ (خو) خپل رب سره ملاقات کوُونکی دی ولے دَ هغوئ ذلیل ګنړل ما باندے دا ښکاره کوی چه تاسو جاهل خلق یئ۔

وَيٰقَوْمِ مَنْ يَّنْصُرُنِي مِنَ اللّٰهِ إِنْ طَرَدْتُّهُمْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۝۳۱

او یه څما قامه! که چرے زهٔ هغه اونهٔ منم (په دے کار به) دَ الله نه (دَ راتلُونکے سزا نه ماله دَ بچ کولو دَپاره)

څوک ځما مدد کوی - آیا تاسو (بیا هُم) نهٔ پوهیګئ.

وَلَآ اَقُوۡلُ لَكُمۡ عِنۡدِىۡ خَزَآٮِٕنُ اللّٰهِ وَلَاۤ اَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ وَلَاۤ اَقُوۡلُ اِنِّىۡ مَلَكٌ وَّلَاۤ اَقُوۡلُ لِلَّذِيۡنَ تَزۡدَرِىۡۤ اَعۡيُنُكُمۡ لَنۡ يُّؤۡتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيۡرًا‌ؕ اَللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ ۖۚ اِنِّىۡۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيۡنَ ۝٣١

اوزهٔ تاسوته (دا) نهٔ وایم (چه) دَ الله خزانے ما سره دی او نهٔ (دا) وایم چه زهٔ فرښته یم - او نهٔ زهٔ دَ هغو (خلقو) په حقله چا ته چه ستاسو سترګے دَ سپکاوی په نظر ګوری (دا) وایم (چه) الله به دَ هغوئ (هیڅکله) څه ښیګړه نهٔ نصیب کوی - څهٔ چه دَ هغوئ په نفسونو کښے دی هغه (هُم) الله (ډیر ښهٔ) پیژنی - که چرے زهٔ ستاسو سره یوه خُله شم نو په تحقیق سره زهٔ به ظالمانو نه شم.

قَالُوۡا يٰنُوۡحُ قَدۡ جٰدَلۡتَنَا فَاَكۡثَرۡتَ جِدَالَنَا فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ۝٣٢

هغوئ او وئیل (چه) اے نوحؑ ! تا مونږ سره بحث کړے دے او ښهٔ هُم دا یا تے شوے ده چه که چرے ته رښتونے ئے نو چه دَ څهٔ (عذاب) نه ته مونږ یروے هغه په مونږ راوله -

قَالَ اِنَّمَا يَاۡتِيۡكُمۡ بِهِ اللّٰهُ اِنۡ شَآءَ وَمَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ ۝٣٣

هغهٔ او وئیل - که چرے الله اوغواړی نو هغه به راولی او تاسو (هغه دَ هغے دَ راوستونه) هیڅکله پاتے راوستلے نشئ.

وَلَا يَنۡفَعُكُمۡ نُصۡحِىۡۤ اِنۡ اَرَدْتُّ اَنۡ اَنۡصَحَ لَـكُمۡ اِنۡ كَانَ اللّٰهُ يُرِيۡدُ اَنۡ يُّغۡوِيَكُمۡ‌ؕ هُوَ رَبُّكُمۡ وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَؕ ۝٣٤

او که چرے زه په خپله تاسو سره دَ خلوص (لرلو تعلق) اوغواړم (هُم) نو ځما (زما تاسو سره) خلوص لرل تاسو ته دَ الله دَ عذاب نه دَ بچ کولو دَ پاره څهٔ) ګټه نه در رسوی - که چرے الله دا غواړی چه تاسو هلاک کړی نو هغه ستاسو ربّ دے او هغه ته تاسو واپس کیدے شئ -

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَـرٰٮهُ‌ ؕ قُلۡ اِنِ افۡتَرَيۡتُهٗ فَعَلَىَّ اِجۡرَامِىۡ وَاَنَا بَرِىۡٓءٌ مِّمَّا تُجۡرِمُوۡنَ ۝٣٥

۳ ع ۱۱ ۲

آیا هغوی وائی (چه) هغهٔ دَ دے (عذاب وعده) دَ خپله ځانه جوړه کړے ده - ته هغوئ ته او وایه که چرے ما دا دَ خپله ځانه جوړه کړے ده نو ځما دا خطرناک جُرم به (زما ځما) هُم ځما سره وی او (ستاسو دَ جرمونو سزا به ماله نهٔ وی ورکړے چه) کوم خطرناک جُرم تاسو کوئ هغے نه زهٔ وېزاره یم -

وَأُوحِيَ إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ آمَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

اوۮ نوحؑ په طرف، (دا هُم) وحي شوے وه چه چا ايمان راوړے دے ۮ هغوئ نه سوا ستا په قام (اوس) څوک (بل سړے به تا باندے) هيڅکله ايمان نهٔ راوړی۔ دے ۮ پاره څهٔ چه هغوی کيا دے کوی ۮدے په سوب نهٔ افسوس مهٔ کوه۔

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا ۚ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴿٣٧﴾

اونهٔ ځمونږ ۮ سترګو (وړاندے) او ځمونږ ۮ وحي مطابق کشتئ جوړه کړه او کومو خلقو چه ظلم اوکړو ۮ هغوئ په حقله ما سره څهٔ خبره مهٔ کوه هغوئ به خامخا غرقولے شي۔

وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّن قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ ۚ قَالَ إِن تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ ﴿٣٨﴾

اوهغهٔ (يعنی نوحؑ) ځمونږ ۮ سترګو وړاندے کيا وه کشتئ ئے جوړوله او کله به چه هُم ۮ هغهٔ قام کښے ۮ چا لويو خلقو تهولئ هغهٔ سره تيريدو نو هغوئ به هغهٔ پورے خندا کوله (چه هغے باندے) هغهٔ (هغوئ ته) اووئيل (چه) که چرے (نن) تاسو (خلق) مونږ پورے خاندئ نو (صبا به) مونږ (هُم) تاسو پورے خاندُو څنګه چه (نن) تاسو (مونږ پورے) خاندئ۔

فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٩﴾

بيا به زر تاسو ته معلومه شي (چه) هغه څوک دے په چا چه داسے عذاب راروان دے چه هغه به رسوا کړی او په چا باندے چه مستقل عذاب نازيګی۔

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ وَمَنْ آمَنَ ۚ وَمَا آمَنَ مَعَهُ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٤٠﴾

تر دے پورے چه هر کله ځمونږ (ۮ عذاب) حُکم راشی او چينے اوخوټيګی۔ روانے شی (نو) مونږ به وايو چه ۮ هر يو (قسم ځناورو) نه يوه جوړا يعنی دوه (دوه) او خپله خپل خانه (هُم) سوا ۮ هغهٔ چه ۮ چا ۮ (هلاکت) په حقله (ۮ دے عذاب ۮ راتلو نه) آګاهو (ځمونږ قطعی) فرمان جاری شوے دے او ورسره هغوی چه په

تا ئے ایمان راوړے دے هغه کښے سوارۀ کړه - او په هغه په شمیر یوڅو کسانو نه سوا چا ایمان راوړے نۀ وه -

وَقَالَ ارْكَبُوا فِيهَا بِسْمِ اللَّهِ مَجْرٖيهَا وَمُرْسٰيهَا ۚ إِنَّ رَبِّي لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۴۱﴾

بیا (هرکله چه طوفان راغے نو) هغۀ (خپلو ملګرو ته) اووئیل (چه) دے کښے سوارۀ شئ - دَ دے تلل او اودرول به دَ الله دَ نوم په برکت وی - یه تحقیق سره ځما رب ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

مـا: حفص بفتح الميم و امالة الرا

وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ فِي مَوْجٍ كَالْجِبَالِ وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ يَا بُنَيَّ ارْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن مَّعَ الْكَافِرِينَ ﴿۴۲﴾

او هغه دَ غرونو هومره (اوچتو) چپو کښے هغوئ ګیاوُو او (ړل او ردے کښے) نوح خپل ځوئ ته هرکله چه هغه (هغۀ نه بیل) یو بل طرف ته وُه آواز کړو (چه) یَه ځما ځویه ! مونږ سره سور شه او کافرانو سره مۀ کیږه -

قَالَ سَآوِي إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِي مِنَ الْمَاءِ ۚ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ ۚ وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ ﴿۴۳﴾

هغۀ اووئیل چه زۀ به اوس چرته غر باندے ایسار شم (او پناه به واخلم) چه دے اوبو نه ما بچ کړی - هغۀ اووئیل (چه) دَ الله دَ (دَ دے عذاب) حُکم نه نن هیڅوک هُم (بچانه) سا تونکے نشته (نشی کیدے) سوا دَ دے چه چا باندے هغه خپله رحم اوکړی - او (دے کښے) دَ اولُو چپه دَ هغو دَ دواړو ترمینځه شوه او هغه غرقیدُونکو کښے شامل شو -

وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ ۖ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿۴۴﴾

ع ۴

دے نه پس (زمکے ته هُم) اووئیلے شول (چه) په زمکے (نۀ راوس) خپلے اوبه راکاږه او (آسمان ته هُم چه) یَه آسمانه (راوس) (تۀ دَ وریدو نه) اودریګه او اوبه جذب کړے شوے او (ردا) معامله ختم کړے شوه او هغه (کشتئ رلاړه) جودی باندے اودریده او اووئیلے شول (چه رَیه دَ عذاب فرښتو !) دَ ظالمانو خلقو دَ پاره هلاکت او تباهی -

وَنَادٰى نُوْحٌ رَّبَّهٗ فَقَالَ رَبِّ اِنَّ ابْنِيْ مِنْ اَهْلِيْ وَاِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَاَنْتَ اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿٤٥﴾

اونوحؑ خپل ربّ ته ناره کړه او وے وئیل چه یَه خما ربّ په تحقیق سره خما ځوئ خما دَ اهل نه دے او ستا وعده هم ډېره رښتونے ده او تهٔ دَ ټولو فیصله کوونکو دَ پاسه (ډېره ښه او صحي) فیصله کوونکے یئے۔

قَالَ يٰنُوْحُ اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ اِنِّيْٓ اَعِظُكَ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿٤٦﴾

وے فرمائیل یَه نوحؑ هغه ستا دَ اهل نه هیڅکله نهٔ دے ولے چه هغهٔ په تحقیق سره بد عمل کوونکے دے بیا نو تهٔ ما نه داسے دُعا مهٔ غواړه چه دَ هغې پحقله تا ته (خما دَ طرف نه) علم نهٔ وی ورکړے شوے او زهٔ تا ته نصیحت کوم چه دَ جاهلانو په شان هیڅکله کار مهٔ کوه۔

قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ وَاِلَّا تَغْفِرْ لِيْ وَتَرْحَمْنِيْٓ اَكُنْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٤٧﴾

(نوحؑ) او وئیل یَه خما ربّ! زهٔ په دے خقله ستا پناه غواړم چه تا نه څهٔ داسے سوال اوکړم چه دَ هغې پحقله ما ته حقیقی علم حاصل نهٔ وی او که چرے خما تیر شوے غفلت او نهٔ بخښے نو زهٔ به دَ نقصان او چتوونکو نه شم۔

قِيْلَ يٰنُوْحُ اهْبِطْ بِسَلٰمٍ مِّنَّا وَبَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلٰٓى اُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَكَ وَاُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٤٨﴾

(دے باندے هغهٔ ته) او وئیلے شول (چه) اے نوحؑ! تهٔ خما دَ طرف نه (دَرکړے شوے) سلامتیٔ او دَ (رنګ رنګ قسم) برکتونو سره چه تا باندے او هغو اُمتونو باندے چه تا سره دی (نازل کړی شوی دی) سفر کوه او بعضے سلسلے داسے هُم دی چه ته مونږ خامخا (دَ دُنیا عارضی) سامان ورکوو (وروسته) بیا به هغوئ باندے خمونږ دَ طرف نه دردناک عذاب رازی۔

تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهَآ اِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَآ اَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هٰذَا فَاصْبِرْ اِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٩﴾

ع ۴

دا یرُونکے بیان دَ غیب دَ خاصو خبرونو نه دے کوم چه مونږ تا باندے دَ وحی په ذریعه نازلوو۔ نهٔ خود دے نه آګاهو تا ته دَ دے علم وه او نهٔ ستا قام ته (خبرؤ) بیا نو تهٔ دَ صبر نه کار آخله۔ (ښهٔ) انجام په تحقیق سره (هُم) دَ تقویٰ کوونکو وی۔

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ﴿٥٠﴾

او د عاد په طرف (مونږ) د هغوی رور هود (د رسول په حیث استولے وو او) هغهٔ هغوئ ته وئیلی وُو چه یه خما قامه! تاسو د الله عبادت کوئ د هغهٔ نه سوا بل معبود نشته (د هغه شریک مقرر کولو کښې) تاسو هسے د دروغونه اخلئ-

يَٰقَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٥١﴾

یه خما قامه! زهٔ د دے (کار) تاسو نه هیڅ اجر نهٔ غوارم - خما اجر د هغه ذات سره دے چا چه زهٔ پیدا کړے یم - آیا بیا (هُم) تاسو د عقل نه کار نهٔ اخلئ-

وَيَٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾

او یه خما قامه! تاسو د خپل رب بخښنه غواړئ بیا د هغهٔ په طرف (پوره) رجوع اوکړئ چه د هغے په نتیجه کښے به هغه تاسو باندے بڼهٔ وریدونکے باران راستوی او تاسو له به د طاقت نه پس طاقت درکوی او د مجرم غوندے خدائے نه مخ مهٔ اړوئ -

قَالُوا يَٰهُودُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَن قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿٥٣﴾

هغوئ اووئیل - اے هود! تا مونږ له (د خپلے دعوے) څهٔ ښکاره ثبوت رانهٔ وړه او مونږ (نش) ستا په وینا خپل معبودان نشو پریخودلے او نهٔ به مونږ په تا ایمان راوړو-

إِن نَّقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ ۗ قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾

(ستا په حقله) مونږ سوا د دے (څهٔ) نهٔ وایو چه څمونږ څوک معبود په بدو اراده تا پسے لګیدلے دے - هغهٔ اووئیل - زهٔ الله (په دے خبره) ګواه کوم او تاسو هُم ګواه اوسئ چه هر څوک چه تاسو الله سره شریک کړزوئ زهٔ د هغهٔ نه ویزاره یم -

مِن دُونِهِ ۖ فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ ﴿٥٥﴾

(بیا که چرے زهٔ په غلطئ یم - نو ټول په یو ځائے خما خلاف منصوبه اوکړئ او ماله هیڅ مولت مهٔ راکوئ-

إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُم ۚ مَا مِن دَابَّةٍ

زهٔ په الله چه خما (هُم) رب (دے) او ستاسو (هُم) رب

إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٦﴾

دے باور کوم (او وایم چه دَ زمکے په مخ) هیڅ یو تلونکے هُم (ژندہ سر) داسے نشته چه هغهٔ (خدائے) دَ هغهٔ تندئ نه وی نیولے۔ په تحقیق سره ځمارب دَ مومنانو دَ مدد دَ پاره په نیغه لار ولاړ دے (او خپل طرف ته دَ راتلونکو لګیا دے حفاظت کوی)۔

فَإِن تَوَلَّوْا فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ ۚ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٥٧﴾

بیا که چرے تاسو ما نه شاکرئ (نو دے کښے ځما نقصان نشته دے چه) کوم (تعلیم) سره زهٔ تاسو له را ستولے شوے یم هغه ما تاسو ته رسولے دے او که چرے تاسو شاکرئ نو) ځمارب به ستاسو نه سوا بل یو قام (دَ روښنو) په ځائے راولی او تاسو به هغهٔ ته هیڅ (هُم) نقصان او نشئ رسولے۔ په تحقیق سره ځمارب دَ هر څیز محافظ دے۔

وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٨﴾

او هرکله چه ځمونږ (دَ عذاب پخقله) حکم راغے نو (هغه وخت) مونږ هود له (هُم) او کومو خلقو چه هغهٔ سره ایمان راوړے وُو هغوی (هُم) (هغه عذاب نه) په خپل (خاص) فضل بچ کړل او مونږ هغوئ دَیو سخت عذاب نه اوساتل۔

وَتِلْكَ عَادٌ ۖ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٥٩﴾

او دا (دَ) عاد (غاوره قام وه) چا چه (په غرېدلو سترګو) دَ خپل رب دَ نښانانو نه انکار کړے وه او دَ هغهٔ دَ رسولانو نافرمانئ ئے کړے وه (او) دَ هر یو سرکش او دَ حقو دَ ښمن (سړی دَ حکم) منل ئے لګیا وُو کول۔

وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ ﴿٦٠﴾ ع

دے دُنیا کښے (هُم) لعنت دَ هغوئ په برخه کړے شوے دے او دَ قیامت په ورځ (به هُم ورپسے وی) واورئ! په تحقیق سره عاد دَ خپل رب (دَ احسانونو) ناشکری کړے

وه - واورئ ! رمونږ د عذاب فرښتو ته وايُو چه) عاد يعنې
دَ هُود قام له لعنت اوليکئ -

وَاِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا ۘ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ
مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۚ هُوَ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ
وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيْهَا فَاسْتَغْفِرُوْهُ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ ۚ
اِنَّ رَبِّيْ قَرِيْبٌ مُّجِيْبٌ ٦١

او دَ ثمود په طرف (مونږ) دَ هغوئ رُور صالحؑ استولے
وه - هغهٔ (هغوئ ته) اووئيل - اے ځما قامه ! تاسو
دَ الله عبادت کوئ - دَ هغهٔ نه سوا هيڅوک هُم ستاسو
معبود نشته - هُم هغهٔ تاسو زمکے نه اوچت کړئ (او
عزت ئے درکړو) او دے کښے ئے تاسو آباد کړئ - دے
دَ پاره تاسو هغهٔ نه بخښنه غواړئ او هغهٔ ته پوره
رجُوع اوکړئ په تحقيق سره ځما رب نزدے دے او
(دُعا کانے) قبلوُونکے دے -

قَالُوْا يٰصٰلِحُ قَدْ كُنْتَ فِيْنَا مَرْجُوًّا
قَبْلَ هٰذَآ اَتَنْهٰىنَآ اَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ
اٰبَآؤُنَا وَاِنَّنَا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ
اِلَيْهِ مُرِيْبٍ ٦٢

هغوئ اووئيل اے صالحؑ ! دے نه آگاهُو زخو) ته
څمونږ ترمنځه (د را تلونکی وخت دَ پاره) دَ اُميد
ځائے وے (اوس) آيا ته (سره دَ دے عقل و دانش)
مونږ دے خبرے نه منع کوے چه مونږ دَ داسے څيز
عبادت اوکړو چه دَ څهٔ عبادت څمونږ پلار (نيکونه)
را روان دی کوی - او (حقه خو دا ده چه) کومے خبرے
ته ته مونږ غواړے دَ هغے په حقله مونږ يو لوے آرامه
کوُونکی شک کښے (پراته) يو -

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ
وَاٰتٰىنِيْ مِنْهُ رَحْمَةً فَمَنْ يَّنْصُرُنِيْ مِنَ اللّٰهِ اِنْ
عَصَيْتُهٗ ۗ فَمَا تَزِيْدُوْنَنِيْ غَيْرَ تَخْسِيْرٍ ٦٣

هغهٔ اووائيل - اے ځما قامه ! اووايه کچرے زهٔ (په
حقيقت کښے دَ خپلے دعوے بنياد) دَ خپل رب دَ طرف
نه (دَ را کړی) څهٔ ښکاره ثبوت باندے لرم او هغهٔ
ما ته دَ خپله دره يو (خاص) رحمت را کړے وی نو
(سره دَ دے) کچرے زهٔ دَ هغهٔ نافرمانی اوکړم نو دَ
الله په مقابل به څوک ځما مدد کوی - بيا (هغه وخت
خو به) تاسو ما تباهئ کښے دَ اچولو نه سوا (بله) څه

خبره کښے نه ورانددے کوئ۔

وَيٰقَوْمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيْبٌ ﴿٦٥﴾

او په خما قامه! دا اُوښه (هغه ده) چه ورله الله ستاسو دَ پاره يو نښان جوړ کړے دے۔ دے دَ پاره تاسو دا آزاده گرزيدونه پريدئ دے دَ پاره چه دا دَ الله په زمکه (گرزی او) خوری (څکی) او دے ته څهٔ تکليف مهٔ رسوئ گنی نو تاسو به يو زر را تلونکے عذاب راګير کړی۔

فَعَقَرُوْهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوْا فِيْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ ۗ ذٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوْبٍ ﴿٦٦﴾

په دے هغوئ (په تُوره) دَ هغے پښے پريکړے۔ دے باندے هغهٔ (هغوئ ته) او وئيل تاسو درے ورځے خپلو کورونو کښے (دَ خپلو سامانونو نه) فائده واخلئ۔ دا (وعده) داسے وعده ده چه دروغ به نهٔ وی۔

فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا صٰلِحًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ ۗ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيْزُ ﴿٦٧﴾

بيا هر کله چه خمونږ حُکم راغے (يعنی دَ عذاب) نو مونږ صالحؑ او هغهٔ سره چه چا ايمان راوړے وه هغوی په خپل خاص رحمت دَ هرے بلا او بيا په تيره تيره دَ هغے ورځے دَ رسوائی نه اوساتل۔ په تحقيق سره هُم ستا رب (دَ هر قسم) قوت لرونکے (او) غالب دے۔

وَاَخَذَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿٦٨﴾

او چا چه ظلم کړے وه هغوی هغے عذاب راګير کړل او هغوئ خپلو خپلو کورونو کښے (دَ عذاب په سوب) زمکے سره انختلی پاتے شول۔

كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ۗ اَلَآ اِنَّ ثَمُوْدَا۟ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ۗ اَلَا بُعْدًا لِّثَمُوْدَ ﴿٦٩﴾ ع ٦

لکه چه هغوئ هغے (ملک) کښے چرے اوسيدلی هم نه وُو۔ واورئ! ثمود دَ خپل رب (دَ احسانانو) ناشکری کړے وه۔ واورئ! (دَ عذاب فرښتو ته حُکم اوکړے شو چه) ثمود دَ پاره لعنت اوليکئ۔

وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوْا سَلٰمًا ۗ قَالَ سَلٰمٌ فَمَا لَبِثَ اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ ﴿٧٠﴾

او خمونږ استاذو په تحقيق سره ابراهيمؑ له زيرئ راوړے وه (او) دئيلی وُو چه (خمونږ دَ طرف نه درِ په تا) سلام

وی۔ هغه اووئیل زنا سو دَ پاره دِتل "نرتله) سلامتی وی بیا (هغهٔ) سُور کړے۔

فَلَمَّا رَاٰۤ اَیۡدِیَهُمۡ لَا تَصِلُ اِلَیۡهِ نَکِرَهُمۡ وَاَوۡجَسَ مِنۡهُمۡ خِیۡفَةً ؕ قَالُوۡا لَا تَخَفۡ اِنَّاۤ اُرۡسِلۡنَاۤ اِلٰی قَوۡمِ لُوۡطٍ ؕ ﴿٧٠﴾

سخیٔ زړراوړو = بیا هرکله چه هغهٔ دَ هغوئ لاسُونه اولیدل چه هغې (خوړنے) پورے نه رسی نو (هغهٔ) دَ هغوئ (دا) کار غیرمعمولی اوګڼړلو او دَ دے (کار) نه ئے خطره اوګنړله (په دے) هغوئ اووئیل (چه) تهٔ ویره مهٔ کوه۔ مونږ خو دَ لُوط قام په طرف رالیږلی شوی یُو۔

وَامۡرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ فَضَحِکَتۡ فَبَشَّرۡنٰهَا بِاِسۡحٰقَ ۙ وَمِنۡ وَّرَآءِ اِسۡحٰقَ یَعۡقُوۡبَ ﴿٧١﴾

او دَ هغهٔ ښځه (هُم نزدے هلته) ولاړه وه۔ دے باندے هغه هُم وارخطا شوه۔ بیا مونږ دَ هغې دَ نسلٔ دَ پاره هغې له دَ اسحاقؑ او دَ اسحاقؑ نه پس دَ یعقوب (دَ پیداوښت) زیرئ ورکړو۔

قَالَتۡ یٰوَیۡلَتٰۤی ءَاَلِدُ وَاَنَا عَجُوۡزٌ وَّهٰذَا بَعۡلِیۡ شَیۡخًا ؕ اِنَّ هٰذَا لَشَیۡءٌ عَجِیۡبٌ ﴿٧٢﴾

هغه اووئیل۔ وائ خُما بدے ورځے! آیا زهٔ به راوس بچی) راوړم چه زهٔ زړه (شوے) یم او خُما خاوند هُم دَ بوډاتوب په حال کښے دے۔ په تحقیق سره دا عجیبه خبره ده۔

قَالُوۡۤا اَتَعۡجَبِیۡنَ مِنۡ اَمۡرِ اللّٰهِ رَحۡمَتُ اللّٰهِ وَبَرَکٰتُهٗ عَلَیۡکُمۡ اَهۡلَ الۡبَیۡتِ ؕ اِنَّهٗ حَمِیۡدٌ مَّجِیۡدٌ ﴿٧٣﴾

هغوئ اووئیل آیا تهٔ دَ الله په خبره حیرانیګے یَه دَ دے کورخلقو تاسو باندے (خو) دَ الله رحمت او دَ هغهٔ (هرقسم) برکتونه (ګکیا دے نازلیګی) دی (بیا تاسو له باید چه دا خبره عجیبه نهٔ وی) په تحقیق سره هغه دَ ډیر ثنا صفت وړ (او) دَ اوچت شان لرُونکے دے۔

فَلَمَّا ذَهَبَ عَنۡ اِبۡرٰهِیۡمَ الرَّوۡعُ وَجَآءَتۡهُ الۡبُشۡرٰی یُجَادِلُنَا فِیۡ قَوۡمِ لُوۡطٍ ﴿٧٤﴾

بیا هرکله چه ابراهیمؑ نه وارخطائی لرے شوه او هغهٔ ته زیرے ورکړے شو نو (هغه وخت) هغهٔ دَ لُوط دَ قام پخقله مونږ سره جدل (جنګ) شروکړو۔

اِنَّ اِبۡرٰهِیۡمَ لَحَلِیۡمٌ اَوَّاهٌ مُّنِیۡبٌ ﴿٧٥﴾

ابراهیمؑ ډیر په زړه زور (او) زړُونکے (او) درد مند

(زړۀ لرونکے) (او څمونږ وړاندے) بیا بیا تېتېدُونکے وه.

يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ إِنَّهُۥ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ عَذَابٌ غَيۡرُ مَرۡدُودٖ ۝٧٦

(په دے مونږ هغۀ ته اووئیل) اے ابراهیمؑ ته دَ دے (سفارش) نه منے شه ولے چه ستا دَ ربّ آخری حُکم شوے دے او دَ دغو کافرانو داسے حال دے چه هغوئ باندے به نه روستو کیدُونکے عذاب خامخا رازی.

وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَا لُوطٗا سِيٓءَ بِهِمۡ وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعٗا وَقَالَ هَٰذَا يَوۡمٌ عَصِيبٞ ۝٧٧

او هرکله چه څمونږ استازی لوطؑ له راغلل نو دَ هغوئ له کبله هغه غمجن شو او هغه زړه کښے تنګی محسوسه کړه او وے وئیل چه نن ورځ (ډیره) سخته معلومیګی.

وَجَآءَهُۥ قَوۡمُهُۥ يُهۡرَعُونَ إِلَيۡهِ وَمِن قَبۡلُ كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطۡهَرُ لَكُمۡۖ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُخۡزُونِ فِي ضَيۡفِيٓۖ أَلَيۡسَ مِنكُمۡ رَجُلٞ رَّشِيدٞ ۝٧٨

او دَ هغۀ قام (په غصه) دَ هغۀ په طرف په منډه (منډه) راغے او (دا ړومبنۍ موقع نۀ وه) آګاهو (هُم) هغو خلقو ډیرے خطرناکے) بدئ کولے. هغۀ اووئیل یه څما قامه! دا څما لُونړه (چه هُم ستاسو کورونو کښے وادۀ شوی دی) هغوی ستاسو دَ پاره (او ستاسو دَ عزت ساتلو دَ پاره) ډیرے پاکے دی. بیا نو تاسو دَ الله تقویٰ اوکړئ او څما دَ میلمنو وړاندے ماما رسوا کوی. آیا تاسو کښے څوک (هُم) دَ پوهے خاوند نشته دے؟

قَالُواْ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنۡ حَقّٖ وَإِنَّكَ لَتَعۡلَمُ مَا نُرِيدُ ۝٧٩

هغوئ اووئیل چه تا ته په یقینی ډول معلومه شوے ده چه ستا دَ لونړو په حقله څمونږ هیڅ هُم حق نشته دے او څۀ چه مونږ غواړو هغه تا ته معلومه ده.

قَالَ لَوۡ أَنَّ لِي بِكُمۡ قُوَّةً أَوۡ ءَاوِيٓ إِلَىٰ رُكۡنٖ شَدِيدٖ ۝٨٠

هغۀ اووئیل کشکے څما ستاسو په مقابله کښے زۀ څۀ قسم) توت وے (نو ما به ستاسو مقابله کړے وے) ولے چرے دا نشته نو هُم دا کیدے شی چه زۀ دَ پناه یو زبردست ځائے ته تېښته شم.

قَالُواْ يَٰلُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَن يَصِلُوٓاْ إِلَيۡكَۖ فَأَسۡرِ بِأَهۡلِكَ بِقِطۡعٖ مِّنَ ٱلَّيۡلِ وَلَا

(په دے) هغوئ اووئیل (یعنی میلمنو) چه اے لوطؑ! په تحقیق سره مونږ ستا دَ ربّ استاذی یُو او مونږ ته

يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ اِلَّا امْرَاَتَكَ ؕ اِنَّهٗ مُصِيْبُهَا مَآ اَصَابَهُمْ ؕ اِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ؕ اَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيْبٍ ﴿٨١﴾

معلومه ده چه هغوئ به تا ته هیڅکله اونهٔ رسی (دَ دوی دَ تباهئ وخت راغلے دے) دے دَ پاره ته دَ شپے څه وخت دَ خپل کورخلقو سره په تُندی (دے ځائے نه) اوزه او تاسو کښے هیڅوک ریخوا اخوا اونهٔ ګوری (داشان به تاسو محفوظ اوسئ) هن ستا ښځه دا سے ده چه کوم (عذاب) هغوئ باندے راغلے (دے) هغه هغے باندے خامخا راتلُونکے دے دَ هغوئ تاکلے وخت (صبا) سحر دے (او) آیا سحر نزدے نهٔ دے ؟

فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ ۙ مَّنْضُوْدٍ ﴿٨٢﴾

بیا هرکله چه څمونږ حُکم راغے نو مونږ دَ هغے (آبادئ) پاسنئ حصّه لاندینئ (حصه) جوړه کړه او په هغے باندے دَ اوچے خاورے نه دَ جوړشوُو کانړو پرله پسے باران اووَرولو۔

مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ ؕ وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ بِبَعِيْدٍ ﴿٨٣﴾ ع

چه ستا دَ ربّ تقدیر کښے (هُم هغوئ دَ پاره) لیکلے (او په نامه) شوے وو۔ او دَ دے ظالمانو نه (هُم) دا عذاب لرے نهٔ دے۔

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ اِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ بِخَيْرٍ وَّاِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيْطٍ ﴿٨٤﴾

او دَ مدین په طرف (مونږ) دَ هغه رور شعیبؑ (نبي وا ستولو)۔ هغهٔ (هغوئ ته) اووئیل۔ یَه څما قامه ! تاسو دَ الله عبادت کوئ۔ دَ هغه نه سوا ستاسو هیڅوک معبود نشته او ناپ او تول مهٔ کموئ۔ زهٔ (دے وخت) په تحقیق سره تاسو په ښهٔ حال وینم او (ورسره) زهٔ ستاسو بحقله دَ یو تباه کوُونکے ورځے دَ عذاب نه ویریږم۔

وَيٰقَوْمِ اَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيْزَانَ بِالْقِسْطِ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٨٥﴾

او یَه څما قامه ! تاسو ناپ او تول په انصاف پوره کوئ او خلقو ته دَ هغوئ څیزونه کم مهٔ ورکوئ او فسادیانو غوندے زمکه کښے خرابي مهٔ خوروئ۔

بَقِيَّتُ اللّٰهِ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَآ اَنَا

کچرے تاسو (په رښتیا) مومنان يُ نو (یقین اوکړی چه)

عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ ﴿٨٦﴾

دَ الله (تاسو سره) پاتے شوے (مال) تاسو دَ پاره ښهٔ (او مبارک) دے او زهٔ تاسو باندے څه محافظ نهٔ يم (راستولے شوے بس يو ناصح يم)۔

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ ﴿٨٧﴾

هغوئ اووئيل۔ اے شعيب! آيا ستا نمونځ تا ته حکم درکوی چه دَ کوم څيز خمونږ پلار نيکونو عبادت (تر اوسه) کړے دے هغه مونږ پريږدو يا دا خبره (پريږدو) چه دَ خپلو مالونو په حقله مونږ چه څهٔ اوغواړو (هغه) اوکړو۔ (کچرے داسے ده) نو په تحقيق سره ته ډير عقلمند (او) پوهه (سړے) ئے۔

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ؕ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ﴿٨٨﴾

هغه اووئيل په څما قامه! (لږ خو) او وائی کچرے ثابته شوه چه) زه (دَ خپلے دعوے په بنياد) دَ خپل رب دَ طرف نه رپه راکړی شوی) څهٔ ښکاره دليل باندے يم او هغه دَ خپل طرف نه ماله ښهٔ (دَ خوښے) رزق راکړے دے۔ (نو صبا به دَ خدائے وړاندے څهٔ جواب کوئ؟) او زهٔ نهٔ غواړم چه دَ کومے خبرے نه تاسو منع کړم (هغے نه تاسو منع شئ او خپله زه) ستاسو خلاف قصد اوکړم۔ زهٔ خو بس دَ دے (هومره) اصلاح چه دَ هغے څما وس دے نور څهٔ نهٔ غواړم او څما وس رسيدل هُم دَ الله (په فضل او رحم) دی۔ هُم په هغهٔ باندے څما توکل دے او هُم هغهٔ ته زه بيا بيا تهيتيږم۔

وَيٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيْٓ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِّثْلُ مَآ اَصَابَ قَوْمَ نُوْحٍ اَوْ قَوْمَ هُوْدٍ اَوْ قَوْمَ صٰلِحٍ ؕ وَمَا قَوْمُ لُوْطٍ مِّنْكُمْ بِبَعِيْدٍ ﴿٨٩﴾

او په څما قامه! (گورئ چه چرته ستاسو) ما سره دښمنی تاسو (په دے خبره) غلط نکړی چه تاسو (هُم) هغه مصيبت په سر واخلئ لکه چه دَ نوح قام يا دَ هُود قام يا دَ صالح قام باندے مصيبت راغلے وُه۔ او دَ لُوط قام (خو) تاسو نه څهٔ (دومره) لرے (هُم)

نهٔ دے۔

وَاسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ ؕ اِنَّ رَبِّيْ رَحِيْمٌ وَّدُوْدٌ ﴿۹۰﴾

او تاسو خپل رب نه بخښنه غواړئ (او) بیا دَ هغهٔ په طرف پوره رجوع کوئ۔ په تحقیق سره زما رب بیا بیا رحم کوُونکے (او) ډیر مینه کوُونکے دے۔

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَقُوْلُ وَاِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْنَا ضَعِيْفًا ۚ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ ؗ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ ﴿۹۱﴾

هغوئ اوووئیل۔ اے شعیب! ځنې چه ته وائے دے کښې ډیره (برخه) خمونږ دَ پوهې نه بهر ده او مونږ تا خپل منځ کښې یو کمزورئ سړے ګنړو او که چرے ستا پره نهٔ وے نو مونږ به تهٔ سنګسار کړے وے او تهٔ (په خپله) خمونږ په نظر کښې دَ عزت لائق وجود نهٔ ئے۔

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَهْطِيْٓ اَعَزُّ عَلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاتَّخَذْتُمُوْهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ؕ اِنَّ رَبِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ﴿۹۲﴾

هغهٔ اووئیل۔ په څما قامه! آیا څما پره دَ الله په نسبت ستاسو په نظر کښې زیات عزت لری او هغه تاسو شا ته کړے دے۔ ځنې چه تاسو کوئ هغه څما رب ښه پیژنی۔

وَيٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ؕ سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ ؕ وَارْتَقِبُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ رَقِيْبٌ ﴿۹۳﴾

او په څما قامه! تاسو په خپل ځائے ګلیا اوسئ (خپل) کار کوئ۔ زهٔ (هُم په خپل ځائے) ګلیا یم کار کوم۔ ډیر زر به تاسو ته معلومه شی چه هغه څوک دے په چا چه رُسوا کوُونکے عذاب راځی او څوک دروغژن دے (او څوک رښتونے) او تاسو (هُم څما او څما دَ انجام) انتظار کوئ۔ زهٔ به هُم په تحقیق سره تاسو سره (دَ نتیجے) په انتظار یم۔

وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَاَخَذَتِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿۹۴﴾

او هر کله چه څمونږ حُکم (دَ عذاب په حقله) راغے نو مونږ شعیبؑ او هغوی له چه هغهٔ سره ئے ایمان راوړے وو خپل (خاص) رحمت سره (دَ هغے عذاب نه) اوساتل او چا چه ظلم کړے وو هغوئ هغے عذاب اونیول او هغوئ خپلو (خپلو) کورونو کښې زنګنے سره اُنختی تباه شول۔

كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُوْدُ ﴿۹۵﴾

لکه چه هغوئ دَ غو (کورونو) کښې (هډو) چرے اوسیدلی نهٔ وُو۔ دَ مدین دَ پاره هُم (خدائے) لعنت لیکلے وو لکه

ع ۸

چه ثمود دَ پاره (خدائے) لعنت ليکلے وه۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٩٦﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاتَّبَعُوْٓا اَمْرَ فِرْعَوْنَ ۚ وَمَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ ﴿٩٧﴾

او په تحقيق سره مونږ موسىٰؑ هر قسم نشان او روښانه دليل سره فرعون او دَ هغه قام لويو خلقو ته آستولے وه ولے هغوئ (دَ موسىٰ پځائے) دَ فرعون دَ حُکم منودنه اوکړه او دَ فرعون حُکم هيڅکله صحي نۀ وه۔

يَقْدُمُ قَوْمَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاَوْرَدَهُمُ النَّارَ ۖ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُوْدُ ﴿٩٨﴾

هغه به دَ قيامت په ورځ دَ خپل قام وړاندے (وړاندے) روان وى او هغوئ به (دَ دوزخ) اور کښے ورکوزوى۔ بيا هغه کوز (هُم) او دے کښے کوزيدونکى به هُم خراب وى۔

وَاُتْبِعُوْا فِيْ هٰذِهٖ لَعْنَةً وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ ﴿٩٩﴾

او دے دُنيا کښے (هُم) هغوى پسے لعنت اولګولے شو او دَ قيامت په ورځ به هُم (ور پسے لګولے شى) دا انعام چه هغوئ ته ورکيدونکے دے ډير خراب دے۔

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ وَّحَصِيْدٌ ﴿١٠٠﴾

دا دَ (تباه شوو) علاقو په خبرونو کښے يوه برخه ده۔ مونږ دا ستا وړاندے بيانوو۔ دغو کښے ځنے (علاقے) تراوسه په ځائے شته دے او ځنے تباه شوى حال کښے دى (يعنى دَ هغو نشان تدرے هُم نشته دے)۔

وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِيْ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ۭ وَمَا زَادُوْهُمْ غَيْرَ تَتْبِيْبٍ ﴿١٠١﴾

او مونږ په هغوئ باندے هيڅ ظُلم نه وه کړے وُلے هغوئ (خپله) په خپلو ځانونو ظُلم کړے وُه۔ بيا هر کله چه ستا دَ رب (دَ عذاب) حُکم راغے نو هغو معبودانو دَ چا مدد به چه هغوئ دَ الله نه سوا غوښتو هغوئ له هيڅ فائده ورنه کړه او سوا په تباهئ کښے دَ آچولو هغوئ (په هيڅ يو خبره کښے) هغوى وړاندے نه کړل۔

وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۭ اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ ﴿١٠٢﴾

او ستا دَ رب نيول هر کله چه هغه کلى (خلق) په داسے حال کښے چه هغوئ ظلم دَ پاسه ظلم کوى نيسى (دا شان (دَ حجت ختمولو نه پس) وى دَ هغهٔ نيول ډير دردناک (او) سخت وى۔

اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ذٰلِكَ یَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ یَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ﴿۱۰۳﴾

څوک چه دَ آخرت دَ عذاب نه ویریګی هغهٔ دَ پاره (دَ خدائے په دے (نیولو) په تحقیق سره یو (عبرت ناک) نشان (مونده شی) دے۔ دا یوه داسے ورځ (راتلونکے) ده چه هغے دَ پاره خلق راغونډولے شی او دا به داسے ورځ وی چه ټول خلق به ئے وینی۔

وَمَا نُؤَخِّرُهٗٓ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ ﴿۱۰۴﴾

او مونږ هغه بس یو مقرر شوی معیاد پورے روستوغورزوُو۔

یَوْمَ یَاْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ اِلَّا بِاِذْنِهٖ فَمِنْهُمْ شَقِیٌّ وَّسَعِیْدٌ ﴿۱۰۵﴾

څه وخت به چه هغه (راژی هیڅوک به دَ هغهٔ (یعنی دَ خدائے تعالیٰ) دَ اِذن نه سوا کلام نشی کولے۔ بیا به هغوئ کښے (څنے څو) بد بخته وی او (څنے به) خوش نصیبه وی۔

فَاَمَّا الَّذِیْنَ شَقُوْا فَفِی النَّارِ لَهُمْ فِیْهَا زَفِیْرٌ وَّشَهِیْقٌ ﴿۱۰۶﴾

بیا چه څوک بد بخته (ثابت) شی هغوئ به اور کښے (داخلیګی) وی۔ دے کښے (څو به څنے وخت) دَ هغوئ (دَ ویرده) اوږدے ساه کانے (اوزی) وی او (څنے وخت) به ئے دَ هڅکئ حالت سره سمے ساه کانے (اوزی)

خٰلِدِیْنَ فِیْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ اِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا یُرِیْدُ ﴿۱۰۷﴾

هغوئ به دے کښے هغه وخته پورے لګیا وی اوسی ترڅو پورے چه آسمان او زمکه قائم وی سوا دَ هغے (مودے) چه ستا رب ئے او غواړی۔ ستا رب چه څهٔ غواړی هغه سرته رسوی۔

وَاَمَّا الَّذِیْنَ سُعِدُوْا فَفِی الْجَنَّةِ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ عَطَآءً غَیْرَ مَجْذُوْذٍ ﴿۱۰۸﴾

او څوک به چه خوش نصیبه وی هغوی به جنت کښے داخلیګی۔ هغوئ به هغه وخته پورے لګیا وی اوسی ترڅو پورے چه آسمان او زمکه قائم دی۔ سوا دَ هغه وخته چه ستا رب ئے او غواړی۔ دا (داسے) بخښنه ده چه (کله به هُم) نه ختمیګی۔

فَلَا تَكُ فِیْ مِرْیَةٍ مِّمَّا یَعْبُدُ هٰٓؤُلَآءِ مَا یَعْبُدُوْنَ

بیا (یه دَ دے کلام اوریدُونکیه) کوم عبارت چه دوئ

إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُمْ مِنْ قَبْلُ ۚ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ ﴿١١٠﴾ ع

(دا خلق) کوی دَ دے (دَ باطل کیدو) پحقله ته هیڅ قسم شک (شبه) کښے مهٔ اوسه - دوی دا شان عبادت کوی څنګه عبادت چه (هغوئ نه) آګاهُو دَ هغوئ پلارنیکُونو کولو - او په تحقیق سره مونږ به (هم) هغوئ له پوره پوره برخه ورکوُ چه هغے کښے به (هیڅکله) څه کمښی نهٔ کیګی -

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مُرِيبٍ ﴿١١١﴾

اومونږ (دَ اختلافاتو ختمولو دَ پاره) په تحقیق سره موسیٰ ته (هُم) کتاب (یعنی تورات) ورکړے وه - بیا څهٔ (موده پس) دَ هغے پحقله (هُم) اختلاف اوشو او کچرے هغه دَ رحمت دَ وعدے) خبره چه ستا دَ ربّ نه اوّل نازله شوے ده (منځ کښے) نهٔ وے نو دَ هغوئ ترمنځهٔ به (دیر وړاندے) فیصله شوے وے - او اوس هغوئ دَ دے (کتاب یعنی قرآن) په حقله (هُم) یو بے آرامه کوُونکی شک کښے (پراتهٔ) دی -

وَإِنَّ كُلًّا لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ ۚ إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١١٢﴾

اوپه تحقیق سره ستا رب به هغوتهولو له دَ هغوی دَ عملُونو (میوے) پوره (پوره) ورکوی او هغوئ به څهٔ کوی هغه هغے نه ښهٔ خبر دے -

فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ۚ إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٣﴾

بیا (اے رسُوله!) ته هغوئ (خلقو) سره چا چه تاسره په ملګرتیا کښے (مونږ ته) رجوع کړے ده (دا شان) لکه چه څنګه تا ته حُکم شوے دے په نیغه لار روان او او (په مومنانو) تاسو چرے حد نه مهٔ اُوزئ - څهٔ چه تاسو کوئ هغه هغے ته ګیا دے کوری -

وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ﴿١١٤﴾

اونهٔ دَ هغوخلقو په طرف چا چه دَ ظلم لار نیوے ده مهٔ ورجوختیګه کنی نو تا ته به (هُم دَ جهنّم) دَ اور (تاؤ) اورسی او (هغه وخت) به دَ الله نه سوا ستا هیڅوک

دوست (او مددګار) نهٔ وی او تا ته به (د هیڅ یو طرف نه) مدد نه دررسی۔

وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ ﴿١١٤﴾

او (ته دے کلام اوریدُونکیه) تهٔ د ورځ په دواړه طرفه (او او ورسره د شپے (په ډیرو او (مختلفو) اوختونو کښے په ښهٔ ډول نمونځ کوه په تحقیق سره نیکئ بدئ لرے کوی۔ دا (تعلیم د الله) یادلرُونکو د پاره یو نصیحت دے۔

وَاصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١١٥﴾

او صبر (او استقلال) نه کار اخلئ وے چه الله د نیکانو اجر هیڅکله نه تو یوی۔

فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ اُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْاَرْضِ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّنْ اَنْجَيْنَا مِنْهُمْ ۚ وَاتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَآ اُتْرِفُوْا فِيْهِ وَكَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿١١٦﴾

بیا ولے دے قامونو کښے چه تاسو نه ړومبنی وُو داسے عقلمند (خلق) را او نهٔ وتل چه (خلق ئے) ملک کښے ورا نئ پیدا کولو نهٔ منع کولے سوا د لوږ خو چاله چه مونږ (د دے بدونه) اېسا رید لو او منع کولو له کبله) بچ کړل او (باقی خلق) چا چه ظلم کړے وه د دے (مال و اسباب په خوند) کښے اخته شول۔ کوم چه هغوئ مالداره کړے شوی وُو او مجرمان شول۔

وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ ﴿١١٧﴾

او ستا رب داسے هیڅکله نهٔ دے چه (د ملک آبادئ سره د دے چه د هغو اوسیدُونکی اصلاح کوُونکی وی هلاک کړی۔

وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ ﴿١١٨﴾

او که چرے ستا رب هُم خپله رضا کولے نو ټول خلق به ئے یو جماعت جوړ کړے وے او (هر کله چه هغهٔ داسے اونهٔ کړل او هغوئ ئے د هغو عقل ته پریخی دی) هغوی به تل تر تله اختلاف کیا وی کوی۔

اِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ ؕ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ

سوا د هغو په چا چه ستا رب رحم کړے دے او د دے د پاره هغهٔ هغوئ پیدا کړی دی۔ او ستا د رب دا وینا

وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۱۹﴾

به خامخا پوره کیګی (چه) زه به جهنّم په تحقیق سره (هغو ټولو) جنّاتو او انسانانو نه (چه د اختلاف موجب جوړیګی) ډکوم ۔

وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ ۚ وَجَآءَكَ فِيْ هٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَّذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۰﴾

او ستا د زړهٔ مضبوطولو د پاره د رسولانو ټول اهم خبرونه مونږ تاته بیانوو او دے (سورة) کښے هغه ټولے خبرے په تا نازلے شوی دی۔ چه حق وحکمت نه ډکے دی او نصیحت کوونکی او مومنانو ته د هغوی فرائض وریادوونکی دی ۔

وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ۖ اِنَّا عٰمِلُوْنَ ﴿۱۲۱﴾

او ته هغه خلقو ته چه ایمان نهٔ راوړی او وایه چه تاسو د خپل حال مطابق عمل کوئ۔ مونږ به هُم (د خپل حال مطابق) عمل کوو۔

وَانْتَظِرُوْا ۚ اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

او تاسو انتظار کوئ مونږ هُم ګنیا یو انتظار کوو۔

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۗ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ ع

او د آسمانونو او زمکے غیب صرف الله ته حاصل دے او ټولے خبرے (د انجام په لحاظ) آخر هُم هغهٔ ته واپس کیګی ۔ بیا ته هُم د هغهٔ عبادت کوه او هُم په هغه باور کوه او ستا رب د هغو عملونو نه هیڅکله غافل نهٔ دے کوم چه تاسو کوئ ۔




سورة يوسف - دا سورة مكي دے او لبسم الله سره دے يوسل ١١٢ او دولس آيتونه او ١٢ دولس ركوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾

(شروكوم) دَ الله په نوم چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾

زه الله ليدونكے يم۔ دا (حقا لقولره) دَ ښكاره كندونكى كتاب آيتونه دى۔

اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٣﴾

خپل مطلبونو له ښه ښكاره كوونكے قرآن مونږ نازل كړے دے ځكه چه تاسو (دے كښے) دَ عقل او (سوچ) نه كار واخلئ۔

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ اَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ وَاِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿٤﴾

مونږ تا ته (هره خبره) په ډيره ښه ډول بيانوو ځكه چه مونږ دا قرآن ستا په طرف (دَ حقيقتونو نه ډكے) وحى په ذريعه نازل كړے دے او دے نه آگاهوته (دَ دے حقيقتونو نه) بے خبره خلقو كښے شامل وے۔

اِذْ قَالَ يُوْسُفُ لِاَبِيْهِ يٰۤاَبَتِ اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَاَيْتُهُمْ لِيْ سٰجِدِيْنَ ﴿٥﴾

(ته هغه وخت را ياد كړه) هركله چه يوسفؑ خپل پلار ته اووئيل (روئيلى وو) چه يه ځما پلاره! (يقين اوكړه) ما يوولس ١١ ستورى او نمر او سپوږمئ (خوب كښے) ليدلى دى (او حيرانتيا په دے ده چه) ما هغوئ ځان ته په سجده كولو ليدلى دى۔

قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰۤى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ۗ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٦﴾

هغهٔ اووئيل - يه ځما خوږه ځويه! (خپل دا) خوب خپلو رونړو ته مهٔ اوروه كنى نو هغوئ به ستا په خلاف (خامخا) څهٔ (مخالف) تدبير اوكړى - په تحقيق سره شيطان دَ انسان په ښكاره دښمن دے۔

وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ وَيُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَعَلٰۤى اٰلِ يَعْقُوْبَ

او (څنګه چه تا ليدلى دى) دا شان به ستا رب تا اومانړى او (دَ الٰهى) خبرو علم به تا ته دركړى او په تا او دَ يعقوبؑ

كَمَآ أَتَمَّهَا عَلَىٰٓ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۞ ع ۱۱

په تحول (حقیقی) آل باندے به (دا شان) خپل انعام پوره کړی څنګه چه هغهٔ دے نه آګا هوستا په دوه بزرګانو ابراهیمؑ او اسحاقؑ پوره کړے وه۔ په تحقیق سره ستا رب ډیر علم لرونکے (او) دَ حکمت خاوند دے۔

لَّقَدْ كَانَ فِى يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِۦٓ ءَايَٰتٌ لِّلسَّآئِلِينَ ۞

دَ یوسفؑ او دَ هغهٔ دَ رونړو په (واقعاتو) کښے (دَحق) طالبانو دَ پاره په تحقیق سره ډیر نښانات دی۔

إِذْ قَالُوا۟ لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰٓ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّ أَبَانَا لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۞

(یعنی دَ هغه وخت په واقعاتو کښے) هرکله چه هغوئ (یعنی دَ یوسفؑ رونړو) (یو بل ته) اووئیل (چه) په تحقیق سره یوسفؑ او دَ هغهٔ رور څمونږ په نسبت څمونږ په پلار ډیر ګران دی حال دا چه مونږ سره یو لُو (ډله) (دے کار کښے) څمونږ پلار په څرګنده غلطئ دے

ٱقْتُلُوا۟ يُوسُفَ أَوِ ٱطْرَحُوهُ أَرْضًا يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ وَتَكُونُوا۟ مِنۢ بَعْدِهِۦ قَوْمًا صَٰلِحِينَ ۞

(دے دَ پاره یا خو) یوسف قتل کړئ یا هغه چرته بل ملک کښے (لرے) اوغورزوئ (که دا سے اوکړئ نو) ستاسو دَ پلار توجه به تاسو ته شی او (دَ دے کار نه دَ دیرے هیڅ سوب نشته ځکه چه) دے نه پس (توبه کولو سره به) تاسو (بیا) یو نیک ټولئ جوړ شئ۔

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوا۟ يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ فِى غَيَٰبَتِ ٱلْجُبِّ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ ٱلسَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ۞

سف ۲۰

(په دے) هغوئ کښے یو ویُونکی اووئیل (چه) تاسو یوسف مهٔ قتلوی او کچرے تاسو (څه) کول غواړئ۔ نو هغه (دَ یو) اوچ کوئ تل ته اوغورزوئ۔ چرته دَ قافلے څوک سړے به هغه راوباسی او بے دَ قتلولو به ستاسو مقصد پوره شی)۔

قَالُوا۟ يَٰٓأَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَ۫نَّا عَلَىٰ يُوسُفَ وَإِنَّا لَهُۥ لَنَٰصِحُونَ ۞

(بیا نو) هغوئ (پلار ته) اووئیل۔ یَه څمونږه پلاره! تا ته (څمونږ په حقله) څهٔ (ویره) ده چه دَ یوسف په حقله ته په مونږ اعتماد نه کوے حال دا چه مونږ هغهٔ سره (دَ زړهٔ) اخلاص لرو۔

اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَّرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ⑫

صباله هغه مونږ سره (سيل د پاره بهرته) واستوه. هغه به (مڼه) په د اَکه خوری (څکی) او لوبګی به او مونږ به د هغهٔ حفاظت کوُو.

قَالَ اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْٓ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَاَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ وَاَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ ⑬

هغهٔ (يعني يعقوبؑ) او وئيل. ستاسو د هغهٔ (خپل ځان سره) بوتلل ما يقين سره فکرمند کوی او زهٔ دے خبرے نه ويريږم چه چرته داسے حال کښے چه تاسو هغهٔ نه غافل يئ هغه (چرته) ليوهٔ اونهٔ خوری.

قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّآ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ⑭

هغوئ او وئيل. کچرے سره د دے (هُم) چه مونږ يو مضبوط جماعت يُو هغه ليوهٔ اوخوری نو (قسم په خدا) هغه شان به مونږ يقين سره نقصان کښے پريوتونکی يُو.

فَلَمَّا ذَهَبُوْا بِهٖ وَاَجْمَعُوْٓا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ وَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ⑮

بيا هر کله چه هغوئ هغه بوتلو او (لاړل) د هغهٔ ئے (چرته) او چ کوُی په تل کښے د غورزولو په اتفاق فيصله اوکړه (نو دلته هغوئ خپله اراده پوره کړه) او (مونږ) مونږ هغهٔ ته وحی اوکړه (او زيرے مو ورکړو) چه ته به محفوظ ئے او) هغوئ به د دے کار خبروے او هغوئ (په دے خبره) نهٔ پوهيدل.

وَجَآءُوْٓ اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ ⑯

او ماښختن هغوئ په ژړا خپل پلار له راغلل.

قَالُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوْسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ الذِّئْبُ وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ ⑰

(او) وے وئيل (چه) يَه څمونږ ه پلاره (يقين اوکړه) مونږ (لوبو کښے) يو بل نه وړاندے وړاندے منډے وهلے او يوسفؑ مونږ خپل سامان سره پريخولو (د خدائے کړهٔ داسے اوشوله چه) هغه (ليو) ليوهٔ اوخوړو او (ردا خو مونږ ته معلومه ده چه) ته به څمونږ خبره (رصحی) نهٔ منے کچرے مونږ (دے کښے د سره) ريښتونی (هُم وے نهٔ) يُو.

وَجَآءُوْ عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ

او (د هغهٔ د باورکولو د پاره) هغوئ د هغهٔ په قميص

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰي مَا تَصِفُوْنَ ⑲

دَ دروغو وینه اولګوله (چه دَ هغې په لیدو) هغهٔ اووئیل (دا خبره صحي نهٔ ده) بلکه ستاسو نفسونو تاسو ته یوه (دا سے بده) خبره خائسته درښودلے ده (کومه چه تاسو کړے ده) اوس په ښهٔ شان صبر کول (ماله مناسب) دی او چه کومه خبره تاسو کوئ دَ دے (دَ تدارک) دَ پاره هُم دَ الله نه مدد غوښتے کیدے شی۔ (او هغه نه به غوښتلے شی)۔

وَجَاۗءَتْ سَيَّارَةٌ فَاَرْسَلُوْا وَارِدَهُمْ فَاَدْلٰى دَلْوَهٗ ۭ قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ۭ وَاَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ⑳

او دے کښے یوه قافله راغله او هغوئ خپل اوبه راوړونکے (سړئ) واستولو او هغه (لاړو) په هغهٔ کوی کښے ئے خپله بوکه واچوله (او هر کله چه هغهٔ ته بوکه کښے یو هلک په نظر راغے نو هغهٔ (دَ قافلے خلقو ته) اووئیل۔ یَه (دَ قافلے خلقو! وا خلئ) زیرئ (واورئ! اوما ته اوګورئ) دا یو هلک (په لاس راغلے) دے او هغوئ (یعنی دَ قافلے خلقو) هغه دَ یو تجارتی مال په خیال پټ کړو او څهٔ چه هغوئ کول هغه الله ته ښهٔ معلومه وُه۔

وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍۢ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ ۚ وَكَانُوْا فِيْهِ مِنَ الزّٰهِدِيْنَ ㉑ ع ۲ ۱۲

او دے نه پس هر کله چه دَ یوسف رونړو ته دَ یوسف دَ نیولو علم (وشولو) هغوئ هغه (خپل غلام) اوښودلو او) څه لږ (غوندے) قیمت باندے یعنی د شمیر لوڅو درهمو په بدل ئے دَ هغه (قافلے خلقو په لاس هغه) خرڅ کړو او هغوی دے (ډیر لږ قیمت) باندے څه کار نهٔ وُه۔

وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَاَتِهٖٓ اَكْرِمِيْ مَثْوٰىهُ عَسٰٓى اَنْ يَّنْفَعَنَآ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ۭ وَكَذٰلِكَ

او دَ مصر (خلقو) کښے چه کوم سړی هغه واخستو هغهٔ خپلے ښځے ته اووئیل چه دَ دهٔ دَ استوګنے ځائے عزّت سره جوړ کړه۔ اُمید چه دا (هلک) مونږ دَ پاره ګټندویه

مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ۚ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰ أَمْرِهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢١﴾

(ثابت) شي یا مونږ دے په ځوئ ولئ اونیسو او دا شان مونږ یوسفؑ له هغه ملک کښے (عزت او) مرتبه ورکړه او (مونږ هغهٔ له دَ عزّت دا مقام) دے دَپاره هُم ورکړو ځکه په مونږ دَ رؤیا دَ تعبیر دَ حقیقت علم هغهٔ ته ورکړو او الله په (پوره کولو) دَ خپلے خبرے (پوره) قدرت لری ولے کنړ شمیره خلق په دے (حقیقت) نه پوهیګی.

وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٢﴾

او هرکله چه هغه خپل قوت (او مضبوطتیا عمر) ته اورسیدو نو مونږ هغهٔ ته دَ فیصلے کولو فراست او (خاص) علم ورکړو او (حقیقی) نیکانو ته مونږ دا شان جزا ورکوُو.

وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَفْسِهِ وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ۚ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ ۖ إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٣﴾

او دَ کومے (ښځے) په کور کښے چه هغه (استوګن) وُه. هغے دَ هغهٔ دَ رضا خلاف هغهٔ سره (لو) فعل کول اوغوښتل او (دَ هغه مکان) ټول دروازے ئے بند کړے او وے وئیل (ماله) راشه. هغه اووئیل (زه دَ داسے کولو نه) دَ الله پناه (غواړم) په تحقیق سره هغه ځما ربّ دے. (هُم) هغهٔ ځما دَ استوګنے ځائے ښهٔ جوړ کړے دے. خبره هُم دا ده چه ظالمان نهٔ کامیا بیګی.

وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ ۖ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَا أَنْ رَأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ ۚ كَذَٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوءَ وَالْفَحْشَاءَ ۚ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِينَ ﴿٢٤﴾

او هغے (ښځے) دَ هغهٔ پحقله (خپله) اراده پخه کړه او هغهٔ (یوسفؑ) هُم دَ هغے پحقله (خپله) اراده (یعنی دَ هغے نه دَ ځان ساتلو) پخه کړه. (او) کچرے هغهٔ دَ خپل ربّ روښانه نښان نه وے لیدلے نو هغه به داسے عزم نهٔ وے کړے) (او شو) داسے ځکه چه مونږ دَ هغهٔ نه هره یوه بدی او بے حیائی لرے کړو (او) په تحقیق سره هغه ځما نازولی (او پاک شوی) بندیانو کښے وُه.

وَاسْتَبَقَا الْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُ مِنْ

او هغوئ (دواړو) دَ دروازے په طرف منډه کړه او دے

دُبُرٍ وَّ اَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا جَزَآءُ مَنْ اَرَادَ بِاَهْلِكَ سُوْٓءًا اِلَّآ اَنْ يُّسْجَنَ اَوْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۵﴾

(کشمکش کښې هغې ښځې) دَ هغهٔ قمیص روستو نه اوشکوه او هرکله چه هغوی دروازے ته اورسیدل نو (هغوئ دَ هغے (ښځے) خاوند دروازے سره (ولاړ) اولیدو (په دے) هغې (ښځې) (خپل خاوند ته) او وئیل چه څوک (سړے) ستا اهل سره بدی (کول) اوغواړی دَ هغهٔ سزا سوا دَ دے (بل څهٔ) نهٔ (ده پکار) چه هغه قید کړے شی یا (هغهٔ ته) بل څهٔ دردناک عذاب (ورکړے شی).

قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِيْ عَنْ نَّفْسِيْ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ كَانَ قَمِيْصُهٗ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۲۶﴾

وَاِنْ كَانَ قَمِيْصُهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۷﴾

هغهٔ (یعنی یوسف) او وئیل (خبره دا نه ده بلکه) دے ځما دَ رضا خلاف ما سره (لو) فعل کول غوښتلی وُو او دَ هغے (ښځے) دَ ټبر نه یو گواه گواهی ورکړه (چه دَ دے ښځے جامے صحی سلامت دی او دَ دے سړی قمیص تازه شلیدلے دے نو بیا) کچرے دَ ده قمیص دَ مخکښې نه شلیدلے دے نو دے ښځے رښتیا وئیلی دی او هغه سړے یقین سره دروغژن دے۔ او کچرے دَ هغهٔ (سړی) قمیص روستو نه شلیدلے دے نو دے ښځے دروغ وئیلی دی او هغه (سړے) یقین سره رښتونے دے۔

فَلَمَّا رَاٰ قَمِيْصَهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ اِنَّهٗ مِنْ كَيْدِكُنَّ ۭ اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ ﴿۲۸﴾

بیا هرکله چه دَ هغے (خاوند) دَ هغهٔ (یعنی دَ یوسف) قمیص اولیدو چه روستو نه شلیدلے دے نو هغهٔ (خپلے ښځے ته) او وئیل۔ دا (جهګړه) په تحقیق سره ستاسو دَ چالاکئ نه (پیدا شوے) ده دَ ستاسو ښځو چالاکی ډیره (لویه) وی۔

يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ٚ وَاسْتَغْفِرِيْ لِذَنْۢبِكِ ښ اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِـِٕيْنَ ﴿۲۹﴾

اے یوسفؑ! تهٔ دَ دے (ښځے دَ شرارت) نه سترګے پټے کړه او تهٔ (یَه ښځے) دَ خپلے خطا بخښنه اوغواړه بتحقیق سره تهٔ دَ ظالمانو (او خطا کوونکو) نه ئے۔

ع ۳

وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِيْنَةِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ تُرَاوِدُ فَتٰىهَا عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۭ اِنَّا لَنَرٰىهَا

او دَ هغه ښار (بعضو ښځو (ریو بل ته) او وئیل (چه) دَ عزیز ښځه خپل غلام سره دَ هغهٔ دَ رضا خلاف (بد) فعل کول غواړی (او) دَ هغهٔ مینے دَ هغے دَ زړه ډیر دننه کور

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۰﴾

جوړ کړے دے۔ مونږ (دے خبرہ کښے) هغهٔ په ښکارہ غلطئ وینو۔

فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِنَّ وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً وَّاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۚ فَلَمَّا رَاَيْنَهٗۤ اَكْبَرْنَهٗ وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا ۭ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا مَلَكٌ كَرِيْمٌ ﴿۳۱﴾

او هر کله چه ښځے د هغوئ ته ئے (د بلنے) پیغام واستولو او هغوئ د پاره ئے یو (خاص) مسند تیار کړو او (هر کله چه هغوئ راغلے نو) هغوئ کښے ئے هرے یوے له (د خوراک د پریکولو د پاره یوه یوه) چاړهٔ ورکړه او (یوسف ته ئے) اووئیل (چه) د هغوی مخے ته راشه۔ بیا هر کله چه هغوئ هغهٔ اولیدو نو هغهٔ ئے د (ډیر) لوئے شان انسان اوموندو او (د هغهٔ په لید وئے حیرانتیا نه) خپلے گوتے پریکړے او وے وئیل (چه دا سړے محض) د الله د پاره (د بدئ د کولو) نه ویریدلے دے۔ دا (هډو) بشر دے نا۔ دا (خو) بس یو د عزت لائق مَلَک دے۔

قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيْ لُمْتُنَّنِيْ فِيْهِ ۭ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ۭ وَلَىِٕنْ لَّمْ يَفْعَلْ مَاۤ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

(په دے) ښځے (رښتیا) هغوئ ته اووئیل دا هُم هغه (سړے) دے چه د چا په حقله تاسو زهٔ ملامته کړے یم او ما دهٔ سره د دهٔ د رضا خلاف (د یو خراب) کار کولو کوشش ضرور کړے وُه (ولے) په دے (هُم) دے بچ پاتے شو او کچرے دهٔ هغه کار چه د کومے د پاره زهٔ دهٔ ته حُکم ورکوم اونکړو نو په تحقیق سره دے به قید کړے شي او خامخا به دے ذلیل شي۔

قَالَ رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِيْۤ اِلَيْهِ ۚ وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّيْ كَيْدَهُنَّ اَصْبُ اِلَيْهِنَّ وَاَكُنْ مِّنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۳۳﴾

(د دے په اوریدو) هغهٔ (دُعا سره) اووئیل چه یَه ځما رب! کومے خبرے ته چه هغه ما غواړی د هغے په ځائے جیل ته تګ ځما زیات خوښ دے او کچرے د هغوئ د تدبیر (بد) نتیجه) ته ما نه لرے نهٔ کړے نو زهٔ به دوئ ته تېښت شم او جاهلانو نه به شم۔

فَاسْتَجَابَ لَهٗ رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۴﴾

بیا نو د هغهٔ رب د هغه دُعا واوریده (او د هغوئ د تدبیر (بده نتیجه ئے) هغهٔ نه لرے کړه۔ په تحقیق

سره هُم هغه دے چه ډيرے (دُعا کانے) آوريدُونکے (او دَ خلقو دَ حالاتو) نه ښهٔ خبر دے۔

ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰيٰتِ لَيَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰى حِيْنٍ ۟ ﴿۳۵﴾ ع

بيا دَ هغوئ (يعنى دَ قام دَ سردارانو) (دَ دے) آثار دَليدو نه پس دا اصلاح شوه چه (دَ بدنامئ دَ لرے کولو دَپاره) هغه هغهٔ له (کم نه کم) څهٔ وخت دَ پاره خامخا قيد کړی۔

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ؕ قَالَ اَحَدُهُمَاۤ اِنِّيْۤ اَرٰىنِيْۤ اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْۤ اَرٰىنِيْۤ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۶﴾

او په جيل کښے هغهٔ سره دوه نوځوانان (هُم) ورغلل چه هغوئ کښے يو (نو هغهٔ ته دا) اووئيل (چه) زهٔ (خوب کښے) خپل ځان دے حال کښے) وينم چه زهٔ انګور نچوړی کوم او دوئيم اووئيل (چه) زهٔ (خوب کښے) خپل ځان (دے حال کښے) وينم چه ما په خپل سر ډوډئ اوچتے کړے دی چه هغے نه مارغان ئکيا دے خوری (او هغوئ دواړو هغه ته اووئيل چه) ته مونږ له دَ دے دَ حقيقت خبر راکړه په تحقيق سره مونږ تا دَ نيکانو خلقو نه ګڼړو۔

قَالَ لَا يَاْتِيْكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖۤ اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّاْتِيَكُمَا ؕ ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ ؕ اِنِّيْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۷﴾

هغو اووئيل چه دَ دے وخت خوړنه به لا پورے نه وی راغلے چه زهٔ به تاسو تهٔ دَ هغے دَ راتلونه آګاهو دَ دے (خوب) حقيقت دراوښائيم دا (دَ خوبونو دَ تعبير اهليت ما کښے) له دے کبله دے چه زما رب ماله علم راکړے دے۔ ما دَ هغو خلقو دين چه په الله ايمان نهٔ لری او هغوئ دَ آخرت نه (هُم) مُنکر دی پريخودلے دے۔

وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِيْۤ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ مَا كَانَ لَنَاۤ اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۸﴾

او ما دَ خپل پلار نيکونو يعنی ابراهيمؑ او اسحٰقؑ او يعقوبؑ طريقه نيولے ده۔ مونږ له هيڅ ځيز له هُم الله سره دَ شريک کرزولو حق نشته دے دا (دَ توحيد تعليم حاصليدل) مونږ باندے او نورو خلقو باندے دَ الله

(په خاص فضلونو کښے) پو فضل دے وے کثر خلق (دَ هغهٔ دَ احسانونو) شکر نهٔ کوی۔

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿٣٩﴾

یَه څما دَ جیل دوارو ملګرو! آیا (یو بل سره) اختلاف لرونکی خدایان ښهٔ دی یا الله چه واحد (او) کامله غلبه لرونکے دے؟

مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ۭ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ۭ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٠﴾

تاسو دَ هغهٔ په ځائے سوا دَ څو فرضی نومونو چه (ځیله) تاسو او ستاسو پلار نیکونو ایښی دی (او) دَ چا بحقله چه الله (ستاسو مرسته کښے) هیڅ هُم حجت نه دے راکوز کړے (دَ بل چا) عبادت نه کوئ (یاد لرئ) فیصله کول دَ الله نه سوا دَ هیچا په واک کښے نهٔ دی (او) هغهٔ دا حکم کړے دے۔

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّآ اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا ۚ وَاَمَّا الْاٰخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَّاْسِهٖ ۭ قُضِيَ الْاَمْرُ الَّذِيْ فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ ﴿٤١﴾

یَه څما دَ جیل دوارو ملګرو! (راوس دَ خپل خوب تعبیر واورئ) تاسو کښے څوک به یو خپل مالک ته شراب څکلو ته ورکوی او دوئیم به په پهانسئ مړی۔ بیا مارغان به دَ هغهٔ دَ سرنه (غوښه او دا سے نور ځیزونه) خوری۔ (واخلئ) دَ کومے خبرے بحقله چه تاسو تپوس کوئ دَ هغے فیصله شوے ده۔

وَقَالَ لِلَّذِيْ ظَنَّ اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِيْ عِنْدَ رَبِّكَ ۡ فَاَنْسٰىهُ الشَّيْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِيْنَ ﴿٤٢﴾

او هغوئ کښے هغهٔ ته دَ چا بحقله چه هغهٔ دا ګنړلی وُو چه هغهٔ خلاصیدونکے دے هغهٔ (او وئیل زچه) خپل مالک ته څما (هُم) ذکر اوکړه۔ بیا شیطان دهٔ (آزاد شوی قیدی) نه خپل مالک ته (دا) خبره کول هیر کړل او هغه یعنی (یوسف) ډیر کلونه قیدخانه کښے (پروت) وُه۔

ع ۵ / ۱۵

وَقَالَ الْمَلِكُ اِنِّيْٓ اَرٰى سَبْعَ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَّسَبْعَ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۭ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ اَفْتُوْنِيْ فِيْ رُءْيَايَ

او (څه موده پس) بادشاه (خپلو درباریانو ته) اووئیل (چه) زهٔ خوب کښے اوهٔ څڼے غواګانے وینم چه هغوئ له اوهٔ ماندهٔ غواګانے ګیډے خوری او

اِنۡ كُنۡتُمۡ لِلرُّءۡيَا تَعۡبُرُوۡنَ ﴿۴۳﴾

اوه (تازه) شنه وږی (وینم) او نور (وږی) هُم چه اوچ (دی) یه د سرسرو! که چرے تاسو د خوب تعبیر کوئ نو ما ته ځما د (دے) خوب پحقله صحیح حُکم او بیانئ۔

قَالُوۡۤا اَضۡغَاثُ اَحۡلَامٍ ۚ وَمَا نَحۡنُ بِتَاۡوِيۡلِ الۡاَحۡلَامِ بِعٰلِمِيۡنَ ﴿۴۴﴾

هغوی اوویل (چه دا خو) بے مطلبه خوبُونه دی او مونږ (خلق) د داسے بے مطلبه خوبُونو په حقیقت نهٔ پوهیګو۔

وَقَالَ الَّذِىۡ نَجَا مِنۡهُمَا وَادَّكَرَ بَعۡدَ اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمۡ بِتَاۡوِيۡلِهٖ فَاَرۡسِلُوۡنِ ﴿۴۵﴾

او هغو دوو (اروقیدیانو) کښے هغهٔ چا چه آزادی مونده وه او (چاچه) څهٔ موده پس (یوسفؑ سره هغه شوے خبره) را یاد ه کړه وے وئیل (چه) زهٔ به تاسو د دے د حقیقت نه خبر کړم. بیا نو تاسو (د دے حقیقت معلومولو د پاره) ما واستوئ۔

يُوۡسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيۡقُ اَفۡتِنَا فِىۡ سَبۡعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاۡكُلُهُنَّ سَبۡعٌ عِجَافٌ وَّسَبۡعِ سُنۡۢبُلٰتٍ خُضۡرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۙ لَّعَلِّىۡۤ اَرۡجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۴۶﴾

(او هغه لاړ او یوسفؑ ته اووئیل چه) اے یوسفؑ! (او) یه راستبازه! مونږ ته د دے اوهٔ غټو غواګانو (په خوب کښے لیدلو) پحقله چه هغوله اوهٔ ماندهٔ غواګانے اوخوری او (ورسره) د اوهٔ شنو وږو او (د هغو په مقابله کښے) خونورو اوچو وږو د لیدلو) پحقله تشریح اوکړه چه زهٔ خلقو له لاړ شم او هغوی ته (د خوب د تعبیر) علم اوشی۔

قَالَ تَزۡرَعُوۡنَ سَبۡعَ سِنِيۡنَ دَاَبًا ۚ فَمَا حَصَدْتُّمۡ فَذَرُوۡهُ فِىۡ سُنۡۢبُلِهٖۤ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّمَّا تَاۡكُلُوۡنَ ﴿۴۷﴾

هغهٔ اووئیل (چه) تاسو به اوهٔ کاله پرله پسے په پوره کوشش کرونده کوئ بیا (د دے موده کښے) چه (څهٔ) تاسو اوریبئ هغه (ټول) سوا د (هغے) لږے برخے چه تاسو ئے اوخورئ (باقی نور ټول) د هغے وږو کښے پریږدئ۔

ثُمَّ يَاۡتِىۡ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ سَبۡعٌ شِدَادٌ يَّاۡكُلۡنَ مَا قَدَّمۡتُمۡ لَهُنَّ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّمَّا تُحۡصِنُوۡنَ ﴿۴۸﴾

بیا د دے نه پس به اوهٔ سخت (د تکلیف کلُونه) راځی او سوا د دے لږ مقدار چه تاسو ئے روستو پریږدئ هغهٔ به هغه (ټوله غله) چه تاسو به هغوی د پاره آګاهو نه

اليښے وی اوخوری۔

ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿٤٩﴾ ع

بیادے نه پس به یو (داسے) کال راشی چه هغے کښے به دَ خلقو فریاد واوریدے شی او هغوئ به (خوشحاله) شی او دے حال کښے به یوبل ته تحفے ورکوی۔

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ﴿٥٠﴾

او بادشاه (دَ دے خبرے په آوریدو هغوئ ته) اووئیل (چه) تاسو هغه ماله راولئ۔ بیا هرکله چه (دَ بادشاه) استاذئ هغهٔ له راغےنو هغهٔ (یعنی یوسفؑ هغهٔ ته) اووئیل (چه) ته خپل مالک ته واپس شه او هغهٔ نه تپوس اوکړه چه کوم ښځو خپل لاسونه پریکړی وُو دَ هغوئ (دے وخت) څهٔ حال دے۔ څمارت دَ هغوی دَ منصوبے نه په تحقیق سره ډیر خبر دے۔

قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدْتُنَّ يُوسُفَ عَنْ نَفْسِهِ ۚ قُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوءٍ ۚ قَالَتِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ الْآنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ أَنَا رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ وَإِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٥١﴾

(دَ دے پیغام په آوریدو) هغهٔ (یعنی بادشاه) هغو (ښځو) ته اووئیل (چه) ستاسو (هغه) خبره هرکله چه تاسو یوسفؑ سره دَ هغهٔ دَ رضا خلاف (لوبه) کارکولو کوشش کړے وُه (په اصل کښے) څهٔ وه؟ هغوی اووئیل چه هغه دَ الله په خاطر (دَ بدئ کولو نه) ویریدلے وه (او) مونږ هغهٔ کښے هیڅ بدی نه وه لیدلے (دَ دے په آوریدو) دَ عزیز ښځے اووئیل (چه) اوس حقیقت دَ سره په ډاګه شو۔ (هُم) ما هغهٔ سره دَ هغهٔ دَ رضا خلاف (بد) کارکولو کوشش کړے وه او په تحقیق سره هغه راستبازو کښے دے۔

ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي كَيْدَ الْخَائِنِينَ ﴿٥٢﴾

(او یوسفؑ هغه ته دا هُم اووئیل چه) دا (خبره ما) دے دَ پاره وئیلے ده چه هغهٔ ته (یعنی عزیز ته) معلومه شی چه ما دَ هغهٔ په غیر موجودګئ کښے دَ هغهٔ حق کښے خیانت او نکړو او دا چه (څما ایمان دے چه) دَ خیانت کوونکو تدبیر الله نهٔ کامیابوی۔

وَمَآ اُبَرِّئُ نَفْسِيْ ۚ اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ اِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيْ ۚ اِنَّ رَبِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۵۳﴾

او زۀ خپل نفس (دَ هرقسم غلطئ نه) بری نه ګنړم ولے چه (انسانی) نفس سوا دَ هغۀ په چا چه څمارب رحم اوکړی دَ بدو خبرو حُکم ورکولو کښے ډیر زړه ور دے څمارب (په کمزورو خلقو) ډیره پرده اچوُونکے (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖٓ اَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِيْ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِيْنٌ اَمِيْنٌ ﴿۵۴﴾

او بادشاه حُکم اوکړو چه دے (یعنی یوسفؑ) ماله راولئ چه زۀ هغه خپلو (خاصو کارُونو له) واخلم۔ هرکله چه (یوسفؑ راغے او) هغۀ (یعنی بادشاه) هغۀ سره خبرے اتړے اوکړے نو (هغه ئے په هرشان قابل اوموندو) وے وئیل چه نۀ به تن (نه) مونږ سره دَ عزت مرتبه لرُونکے او اعتباری سړے یے۔

قَالَ اجْعَلْنِيْ عَلٰى خَزَآئِنِ الْاَرْضِ ۚ اِنِّيْ حَفِيْظٌ عَلِيْمٌ ﴿۵۵﴾

(په دے اوریدو یوسفؑ اووئیل) چه ما دَ ملک په خزانو افسر اوګوره ولے چه زۀ په تحقیق سره (دَ خزانو) ډیر ښۀ حفاظت کوُونکے او (دَ هغو دَ لګیخت وجوهاتو باندے) ښه پوهیګم۔

وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ فِي الْاَرْضِ ۚ يَتَبَوَّاُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ۚ نُصِيْبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَّشَآءُ وَلَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۶﴾

او دا شان (مناسب حالات پیدا کولو سره) مونږ یوسفؑ له (هغه) ملک کښے دَ واک اختیار ځائے ورکړو هغه (پخپله رضا چه چرته غوښتۀ) حصار یدو۔ مونږ چه چاله اوغواړو (دے دنیا کښے هُم) دَ خپل رحمت نه (برخه) ورکوو او مونږ دَ نیکانو اجر نه تویوُو۔

وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿۵۷﴾

او (دَ دے دُنیوی اجر نه سوا) دَ راتلوُنکی ژوند بدله ایمان راوړُونکو او دَ الله تقویٰ کوُونکو دَ پاره (به) (راتلوُنکی ژوند) به دَ (ډیر ښۀ) وی۔

وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۸﴾

او (دَ هغه قحط په زمانه کښے) دَ یوسفؑ رونړه (هُم دغه ملک ته) راغلل او دَ هغۀ وړاندے حاضر شول

اوهغهٔ هغوئ (دَ ورايه) او پيژندل وے هغوئ هغه اونشو پيژندے۔

وَ لَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُونِي بِأَخٍ لَّكُمْ مِّنْ أَبِيكُمْ ۚ أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ ﴿٥٩﴾

اوهركله چه هغه هغوئ دَ خپل سامان سره (واپس تلو دَ پاره) تيار كړل نو (هغوئ ته ئے) اووئيل (چه) ستاسو دَ پلار دَ طرف نه چه ستاسو يو رور دے (داخل) هغه (هُم ځان سره) ماله راولئ۔ آيا تاسو وينئ نه چه زه ناپ پوره وركرم او (ربله دا چه) زهٔ دَ ميلمنو خيال لرُونكو كښے دَ ټولو نه زيات (ميلمه نواز) يم۔

فَإِن لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِي وَلَا تَقْرَبُونِ ﴿٦٠﴾

اوكچرے تاسو هغه ماله رانهٔ وستو نو (پوهه شئ چه) ما سره تاسو له په تول دركولو دَ پاره به هيڅ نه وى او هغه وخت ما ته رانزدے نشئ۔

قَالُوا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَاعِلُونَ ﴿٦١﴾

هغوى اووئيل! مونږ به خامخا په دے حقله دَ هغهٔ دَ پلار دَ غولولو كوشش كوُو او په تحقيق سره به مونږ (دا كار) كوُو۔

وَقَالَ لِفِتْيَانِهِ اجْعَلُوا بِضَاعَتَهُمْ فِي رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَا إِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٦٢﴾

او هغهٔ خپلو غلامانو ته اووئيل چه دَ هغوئ دَ پيسو ګُټه (واپس) دَ هغوئ بورو كښے كيږدئ كيدے شى چه هركله هغوئ واپس دَ كور خلقو ته لاړشى نو دا (احسان) اومنى (او) كيدے شى چه هغوئ (له دے كبله) بيا واپس راشى۔

فَلَمَّا رَجَعُوا إِلَىٰ أَبِيهِمْ قَالُوا يَا أَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَا أَخَانَا نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴿٦٣﴾

بيا هركله چه هغوئ خپل پلار ته واپس لاړل نو وے وئيل (چه) يه څمونږ پلاره مونږ (بيا دَ پاره) دَ غلے نه محرومه كړے شوى يُو۔ دے دَ پاره (اوس) څمونږ رور (بن يامين) (هُم) مونږه سره واستوه چه مونږ بيا غله واخستے شو۔ او په تحقيق سره مونږ به دَ هغهٔ حفاظت كوُو۔

قَالَ هَلْ آمَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَا أَمِنتُكُمْ

هغهٔ اووئيل چه (هُم) تاسو او وائئ) آيا زهٔ هغه تاسو ته

عَلٰٓى اَخِيْهِ مِنْ قَبْلُ ؕ فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۪ وَّهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۶۴﴾

سپارلے شم سوا دَ دے چه دَ هغهٔ هُم هغه نتیجه راوزی چه دَ دهٔ نه آگاهو۔ مادَ دهٔ رورستاسو په حواله کولو نه زخهٔ ) نتیجه را وتلے وه۔ بیا رزهٔ هغه تاسو ته سپارم وے دے یقین سره چه تاسونا بلکه ) هُم الله دَ هرچا نه بنه حفاظت کوُونکے دے او هُم هغه دَ ټولونه زیات رحم کوُونکے دے۔

وَلَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوْا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ اِلَيْهِمْ ؕ قَالُوْا يٰۤاَبَانَا مَا نَبْغِيْ ؕ هٰذِهٖ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ اِلَيْنَا ۚ وَنَمِيْرُ اَهْلَنَا وَنَحْفَظُ اَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيْرٍ ؕ ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ ﴿۶۵﴾

او هر کله چه هغوئ خپل سامان پرانستو نو اوئے لیده چه دَ هغوئ مُونږی هغوئ ته واپس کړے شوے ده ( په دے) هغوی ( خپل پلار ته ) اووئیل ( چه ) یه ځمونږه پلاره ( دے نه زیات ) مونږ څه غوښتے شو ( او گورئ ) دا ځمونږ مُونږی ده دا ( هُم ) مونږ ته واپس کړے شوے ده او ( کچرے ځمونږ رور مونږ سره لاړ شی نو ) مونږ به دَ خپل کور خلقو دَ پاره دَ خوراک سامان را بار کړو او دَ خپل رور به ( په هر شان ) حفاظت کوُو او دَ اوښ یو بار به زیات راوړو۔ دا وزن ( چه به مونږ ته مفت په لاس رازی ) لوئے نعمت دے۔

قَالَ لَنْ اُرْسِلَهٗ مَعَكُمْ حَتّٰى تُؤْتُوْنِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ لَتَاْتُنَّنِيْ بِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ ۚ فَلَمَّاۤ اٰتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ﴿۶۶﴾

هغه اووئیل زه به دے تاسو سره تر هغے نهٔ استوم تر څو پورے چه تاسو ما سره دَ الله دَ طرف نه مقرر شوے ( یعنی دَ هغهٔ په قسم ) دا لوظ اونکړئ چه تاسو به هغه خامخا ماله ( واپس ) راولئ۔ سوا په هغه حال چه تاسو ( خپله څهٔ مصیبت کښے ) گیر شئ۔ بیا هر کله چه هغوئ هغهٔ له خپل پوخ قول ورکړو نو هغهٔ اووئیل چه زخهٔ ) مونږ ( دا وخت ) وائیو الله دَ دے نگران دے۔

وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّادْخُلُوْا مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ؕ وَمَاۤ اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ

او هغهٔ ( هغوئ ته ) او وئیل ( چه ) یه ځما ځامنو! تاسو دَ ښار په یوه دروازه یو ځلے دننه مهٔ زئ بلکه په بیلو بیلو

مِن شَيْءٍ ۖ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ ﴿٦٨﴾

دروازو ورننه لاړشئ - او زۀ دَ الله (دَ ينولو) نه دَ سا تلو هيڅ هُم ستاسو پکار نشم راتلے - (په اصل کښے) فيصله کول هُم دَ الله کار دے هُم په هغه ما توکل کړے دے او ټولو توکل کوُونکو له هُم په هغهٔ توکل کول پکار دی -

وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم مَّا كَانَ يُغْنِي عَنْهُم مِّنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ إِلَّا حَاجَةً فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا ۚ وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦٩﴾

او هرکله چه دا شان څنګه چه دَ هغوئ پلار هغوئ ته حُکم ورکړے وُه هغوئ ورډننه شول نو هغه غرض پوره شو چه څهٔ دَ پاره هغوئ ته حُکم ورکړے شوے وه - وے يعقوبؑ په خپل تد بير هغوئ (يعنې ځامن) دَ خدائے دَ تد بير نه نشول ساتلے - هن وے دَ يعقوب په زړه کښے يو خواهش وه چه هغه هغهٔ دا شان پوره کړو او ځکه چه مونږ هغهٔ ته (يعنې يعقوبؑ ته) علم ورکړے وه - هغه ډير علم لرُونکے وه وے کثر خلق (دَ دے حقيقت) علم نهٔ لري -

ع

وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ ۖ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٧٠﴾

او هرکله چه هغوئ دَ يوسفؑ وړاندے حاضر شول نو هغه خپل رور له خپل ځان سره ځائے ورکړو او (هغهٔ ته) او وئيل (چه) په تحقيق سره هُم زهٔ ستا رور يم - بيا چه څهٔ هغوی کيا ری کوی دَ هغے له کبله (اوس) تهٔ غمژن نشے -

فَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ فِي رَحْلِ أَخِيهِ ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا الْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ ﴿٧١﴾

بيا هرکله چه هغهٔ هغوئ له دَ هغوی سامان ورکړو (او وا اليئ دَ پاره ئے) تيار کړل نو هغهٔ (دَ اولو څکلو لو) کټورئ (هُم) دَ خپل رور په بورئ کښے کيښودو - بيا (دا سے او شول چه) چا اعلان کوُونکی (يعنې شاهي کارندهٔ) اعلان اوکړو (چه) يه دَ قافلے خلقو په تحقيق سره تاسو غلهٔ يئ -

قَالُوا وَأَقْبَلُوا عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ ﴿٧٢﴾

هغوئ (يعنې دَ يوسفؑ رونړو) هغوئ (شاهي کارکوُونکو

ته مخ کړو (او) ورته وئیل (چه) تاسو نه څه ورک دی؟

قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ
بَعِيْرٍ وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ ﴿٧٢﴾

هغوئ اووئیل (چه) مونږ نه دَ غلے ناپ کولو شاهي پیمانه ورکه ده او څوک چه هغه (تحولونه پس) راوړی نو دَ یو اوښ دَ بارهومره (غله) به دَ هغهٔ (انعام) وی. او (اعلان کوونکی دا هُم اووئیل چه) زهٔ دَ دے (انعام) ذمه وار یم۔

قَالُوا تَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْاَرْضِ
وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ ﴿٧٣﴾

هغوئ اووئیل (چه) قسم په الله! تاسو ته معلومه ده چه مونږ (دلته) دے دَ پاره نه یُو راغلی چه ملک کښے فساد اوکړو او نهٔ خو مونږ غله یُو۔

قَالُوا فَمَا جَزَآؤُهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ ﴿٧٤﴾

هغوئ اووئیل (چه) کچرے تاسو دروغژن (ثابت) شوئ نو دَ دے (کار یعني غلا) سزا به څهٔ وی؟

قَالُوا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ كَذٰلِكَ
نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧٥﴾

هغوئ اووئیل (چه) دَ دے سزا دا ده چه دَ چا په سلمان کښے هغه (اوینسئ) او موندے شی هغه (خپله به) دَ دے (کار) بدله وی. مونږ (خلق) ظالمانو له دا شان سزا ورکوُو۔

فَبَدَاَ بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا
مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ مَا كَانَ
لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِيْ دِيْنِ الْمَلِكِ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ
نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ وَفَوْقَ كُلِّ ذِيْ عِلْمٍ
عَلِيْمٌ ﴿٧٦﴾

بیا هغهٔ (یعني اعلان کوُونکی) دَ هغهٔ (یعني دَ یوسف دَ رور دَ بورئ نه ړومبئ دَ هغو (نورو) بورئ (کتل) شروکړے. بیا دَ هغهٔ دَ رور بورئ (ئے اوکتهٔ او هغے کښے یئے دَ هغه لوښی په موندو هغے) نه هغه (پیمانه) اوباسله دا شان مونږ دَ یوسف دَ پاره (لیو) تدبیر اوکړو (کنی نو) هغهٔ دَ پاره دَ بادشاه دَ قانون دَ نه خپل رور بے دَ الله دَ تدبیر نه نشو ایسارولے. مونږ چه دَ چا غواړو دَرجے اوچتوو او (حقیقت دا دے چه) دَ هر علم لرُونکی دَ پاسه دَ هغهٔ نه زیات علم لرُونکے وجود (لرُونکے) دے۔

قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ
فَاَسَرَّهَا يُوْسُفُ فِيْ نَفْسِهٖ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ قَالَ

هغوئ (یعني دَ هغهٔ رونړو) اووئیل (چه) کچرے هغهٔ غلا کړی وی (نو څهٔ عجیبه نهٔ ده ولے چه) دَ هغهٔ یو رور

اَنْتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۚ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَصِفُوْنَ ۝۷۷

رهُم) دے نه وړاندے غلا کړے ده- په دے یوسفؑ ر دَ خپل زړهٔ خبره) خپل زړه کښے پټه اوساتله اوپه هغوئ ئے هغه ښکاره نکړه (هن زړه کښے ئے دومره) اووئیل رچه) تاسو رخلق) ډیر بد بخت يئ اوکومه خبره چه تاسو کوئ هغه الله ته ښه معلومه ده-

قَالُوْا يٰۤاَيُّهَا الْعَزِيْزُ اِنَّ لَهٗۤ اَبًا شَيْخًا كَبِيْرًا فَخُذْ اَحَدَنَا مَكَانَهٗ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝۷۸

هغوئ اووئیل رچه) اے سردار ! دَدهٔ یو ډیر بُوډا پلار دے رهغه دَ دے غم نه دَسا تلو دَپاره) دَدهٔ په ځائے تاسو مونږ کښے یو کس اونیسئ- په تحقیق سره مونږ تاسو دَ محسنانو نه گنړو-

قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اَنْ نَّاْخُذَ اِلَّا مَنْ وَّجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهٗۤ ۙ اِنَّاۤ اِذًا لَّظٰلِمُوْنَ ۝۷۹

هغهٔ اووئیل رچه مونږ) دَ هغه کس نه سوا چاسره چه مونږ خپل سامان موندلے دے دَ بل چا په نیولو دَ خدائے پناه غواړُو- کچرے مونږ داسے اوکړو نو په تحقیق سره مونږ به دَ ظالمانو نه یُو-

فَلَمَّا اسْتَيْـَٔسُوْا مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ۗ قَالَ كَبِيْرُهُمْ اَلَمْ تَعْلَمُوْۤا اَنَّ اَبَاكُمْ قَدْ اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ وَمِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُّمْ فِيْ يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْۤ اَبِيْۤ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۝۸۰

بیا هرکله چه هغوئ دَ هغهٔ نه رېعني یوسفؑ نه) نا اُمیده شول نو خپلو کښے رخلقونه) ځان له په خبرو شول ربیا) هغوئ کښے مشر اووئیل رچه) آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده چه ستاسو پلار تاسو نه پوخ لوظ آخستے دے چه دَ الله رپه قسم) رسره) دے او دا چه ردے نه) آګاهو تاسو دَ یوسفؑ پحقله هُم پاتے وئ دے دَپاره چه ترڅو پورے ځما پلار ما ته رخاص) اجازه را نکړی یا رخپله) الله ځما پحقله دَ فیصلے رڅهٔ لار پیدا نهٔ) کړی زه به دا ملک نهٔ پرېږدم او هغه ر الله) دَ ټولو فیصله کوونکو نه ښـهٔ رفیصله کوونکے) دے-

اِرْجِعُوْۤا اِلٰۤى اَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يٰۤاَبَانَاۤ اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَمَا شَهِدْنَاۤ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ

تاسو رخپل پلار ته واپس شئ او رهغهٔ ته ورشئ اووائي رچه) یه ځمونږه پلاره ستا وړوکی ځوئ ضرور غلا کړے

حٰفِظِيْنَ ﴿٨١﴾

ده او مونږ (تاسو ته) هغه وئيلي دي چه دَ څهٔ مونږ ته (خپله) علم دے او مونږ په (خپل) نظر د پټے خبرے حفاظت کولے نشو.

وَسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِيْۤ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ؕ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿٨٢﴾

او تاسو (بے شکه) دَ هغو خلقو نه (هُم) پوښتنه اوکړئ چاسره چه مونږ اوسيدلو او هغے قافلے نه (هُم) چاسره چه مونږ راغلي يُو او يقين اوکړئ چه مونږ (دے خبره کښے) رښتونی يُو.

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ؕ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ؕ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿٨٣﴾

هغهٔ (يعني يعقوبؑ) اووئيل چه دا خبره صحي نهٔ (معلوميګی) بلکه (معلوميګی دا چه) ستاسو نفسُونو څهٔ خبره تاسو ته خائسته کړے ده۔ بيا او س ما دَ پاره هُم دا پاتے ده چه زه ښهٔ صبر اوکړم (څهٔ) لرے نهٔ ده چه الله هغوی ټول ماله راولی - په تحقيق سره هُم هغه دے چه ښهٔ علم لرُونکے (او) دَ حکمتُونو خاوند دے -

وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰۤاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ ﴿٨٤﴾

او هغهٔ دَ هغوئ نه مخ واړولو او ځان ته بيل لاړو دعائے اوکړه (او) وے وئيل چه څما (خدايه!) دَ يوسفؑ په واقعه زه فريادکوم او دَ غم له کبله دَ هغهٔ سترګے دَ اُوښکونه ډکے شوے۔ ولے هغهٔ په خپل غم (ټول عمر خپل زړهٔ کښے) دننه ساتلو۔

قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ ﴿٨٥﴾

هغوئ اووئيل (چه) قسم په الله (دا سے معلوميګی چه) تاسو به تر هغه وخته پورے لګيائ دَ يوسفؑ ذکر به کوئ ترڅو پورے چه تاسو بيمار نهٔ شئ يا وفات نشئ -

قَالَ اِنَّمَاۤ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْۤ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٨٦﴾

هغه اووئيل (چه) زهٔ دَ خپلے پريشانئ او غم فرياد دَ الله وړانده کوم او زهٔ دَ الله نه هغه علم لرم چه تاسو نهٔ لرئ۔

يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ وَلَا

يَه څما ځامنو! زئ (لاړشئ) دَ يوسفؑ او هغه دَ

تَايْـَٔسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ لَا يَايْـَٔسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٨٧﴾

رورلتون اوکړئ او دَ الله دَ رحمت نه نا اُمیده نشئ۔ اصل خبره هُم دا ده چه الله دَ رحمت نه دَ کافرانو نه سوا بل څوک (انسان) نهٔ نا اُمیده کیږی

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ قَالُوْا يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ مَسَّنَا وَاَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰىةٍ فَاَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِيْنَ ﴿٨٨﴾

بیا هرکله چه هغوئ (وا پس شول او بیا) یوسفؑ ته حاضر شول نو (هغهٔ ته) ئے اووئیل (چه) اے سردارهٔ! مونږ ته او څمونږ (ټول) خاندان ته (سخته) تنګی رسیدلے ده او مونږه (ډیره) لږه مونړی راوړے ده۔ بیا نو تاسو (بس دَ احسان په طور) مونږ له (دَ غوښتنے هومره) غله راکړئ او دَ صدقے (په طور دَ حق نه هُم څه زیاته) راکړئ په تحقیق سره الله صدقه ورکوونکو له (لوئے) اجر ورکوی۔

قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ ﴿٨٩﴾

هغهٔ اووئیل (چه) آیا تاسو ته خپل هغه سلوک معلومه دے چه تاسو یوسفؑ او دَ هغهٔ رورسره کړے وه هرکله چه تاسو (دَ خپل کار دَ بدئ نه) ناواقفه وئ۔

قَالُوْٓا ءَاِنَّكَ لَاَنْتَ يُوْسُفُ ۭ قَالَ اَنَا يُوْسُفُ وَهٰذَآ اَخِيْ ۡ قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ۭ اِنَّهٗ مَنْ يَّتَّقِ وَيَصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٩٠﴾

هغوئ اووئیل (چه) آیا په حقیقت (هُم) تاسو یوسفؑ یئ؟ هغهٔ اووئیل (چه) او هُم زهٔ یوسفؑ یم او دا ځما رور دے۔ الله په مونږ فضل کړے دے۔ حقه خبره دا ده چه څوک تقویٰ اوکړی او صبر اوکړی نو الله دَ دا سے محسنانو اجر کله هُم نه ورکوی۔

قَالُوْا تَاللّٰهِ لَقَدْ اٰثَرَكَ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَاِنْ كُنَّا لَخٰطِـِٕيْنَ ﴿٩١﴾

هغوئ اووئیل څمونږ قسم په الله دے په تحقیق سره الله تاله په مونږ لوئے والئ درکړے دے او مونږ بے شکه خطا کارو۔

قَالَ لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۭ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ ۡ وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿٩٢﴾

هغهٔ اووئیل اوس به په تاسو څه قِسم ملامتیا نهٔ وی (او) الله (به هُم) تاسو اوبخښی او هغه دَ ټولو رحم کوونکو نه زیات رحم کوونکے دے۔

اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِىْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِىْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ وَاْتُوْنِىْ بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۹۳﴾

تاسو ځما دا قمیص یوسئ او دا ځما د پلار وړاندې کیدئ - (دے سره به) هغه (ځما پلار) پچقله (ټولو خبرو نه واقف شي او تاسو خپل ټول خاندان (هم) ماله راولئ -

وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيْرُ قَالَ اَبُوْهُمْ اِنِّىْ لَاَجِدُ رِيْحَ يُوْسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ﴿۹۴﴾

او هر کله چه (د هغوئ) قافله (مصر نه) روانه شوه نو د هغوئ پلار (خلقو ته) او وئیل (چه) هسے نه تاسو ځما د خبرے نه انکار او کړئ نو زه خو به خامخا (وایم چه) ماله د یوسفؑ خوشبو لګیا دے رازی -

قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِىْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ﴿۹۵﴾

هغوئ او وئیل چه په تحقیق سره ته خپله پخوانئ غلطئ باندے یئے -

فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ اَلْقٰىهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ ۚ اِنِّىْٓ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾

بیا هر کله چه (د یوسفؑ د پیدا کیدلو) زیرئ راوړونکے (سړئ حضرت یعقوبؑ له) راغے - هغهٔ هغه (قمیص) د هغهٔ وړاندے کیخو - چه هغے سره هغه په ټوله خبره پوهه شو۔ (او هغوئ ته یئے) او وئیل آیا ما تاسو ته نهٔ وو وئیلی چه زه د الله د طرف نه (علم سره په یقینی ډول هغه څهٔ) پوهیګم چه تاسو پرے نهٔ پوهیګئ۔

قَالُوْا يٰٓاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَآ اِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ ﴿۹۷﴾

(بیا) هغوئ (یعنی د حضرت یوسفؑ ورونړو) او وئیل به ځمونږه پلاره! تاسو ځمونږ په حق کښے (د خدائے نه) ځمونږ د ګناهونو بخښنه اوغواړئ په تحقیق سره مونږ خطا کاری یو۔

قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّىْ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۹۸﴾

هغهٔ او وئیل زه به (خامخا) تاسو د پاره د خپل ربّ نه بخښنه غواړم په تحقیق سره هُم هغه (دے چه) ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے -

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰٓى اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ﴿۱۰۰﴾

بیا هر کله چه هغوئ (ټول) یوسفؑ ته اورسیدل نو هغهٔ خپل مور پلار له ځان سره ځائے ورکړو او (ټولو

تہ ئے) او وئیل چہ دَ اللہ دَ رضا سرہ سم تاسو تہول (امن راو سلامتیٔ) سرہ مصر کښے داخل شیٔ۔

وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَ
قَالَ يٰٓاَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ مِنْ قَبْلُ ۫ قَدْ
جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا ۭ وَقَدْ اَحْسَنَ بِيْٓ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ
السِّجْنِ وَجَاۗءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْۢ بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ
الشَّيْطٰنُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ اِخْوَتِيْ ۭ اِنَّ رَبِّيْ لَطِيْفٌ لِّمَا
يَشَاۗءُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۱۰۰

او هغهٔ خپل مور پلار په تخت کینول او هغوئ (تہول) له دے کبله (دَ خدائے شُکر کولو سره) په سجده شول او هغهٔ (یعنی یوسفؑ) او وئیل یَه خما پلار! دا خما دَ آکاهونه (خوب کښے) دَلیدلے خبرے تعبیر دے۔ اللہ هغه پوره کړے دے او هغهٔ په ما ډیر لوئے (فضل کړے دے) وے چه هغهٔ زهٔ (اوّل) دَ جیل نه (او باسلم او) رما ته ئے دَ عزت دے ځائے ته دَ رسولو نه پس) هغهٔ تاسو دَ ځنګل (دَ علاقے) نه (بهر دے وخت ما له) راوستیٔ هرکله چه شیطان ما کښے او خما رونړو کښے وراندے راوستیٔ وه۔ خمارب چه چا سره (وغواړی دَ مهربانیٔ (او احسان) سلوک کوی۔ په تحقیق سره هُم هغه (دے چه) ډیر خبردار (او) دَ حکمتونو خاوند دے۔

رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ
الْاَحَادِيْثِ ۚ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۣ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي
الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ۱۰۱

یَه خمارب! تا ماله دَ حکومت یوه برخه (هُم) راکړے ده او دَ رویا دَ تعبیر کولو څهٔ علم (هُم ما ته راکړے دے۔ (یَه) دَ آسمانونو او زمکے پیدا کوونکیه (هُم) ته دُنیا او آخرت دواړو کښے خما مددګار یئے۔ (هر کله چه خما دَ مرګ وخت راشی) ماله خپل کامل حکم منونکو کښے وفات راکړه او دَ نیکانو (تهولو) سره م یو ځائے کړه۔

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَاۗءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنْتَ
لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ۱۰۲

(یَه خمارسوله!) دا (بیان) دَ غیب دَ خبرونو نه دے مونږ دا یه تا دَ وحی په ذریعه څرګندَوُو او هرکله چه هغوئ (یعنی ستا دښمنانو ستا خلاف) تدبیر کولو سره آخر خپلو کښے اتفاق او کړو نو ته (هغه وخت)

هغوی سره نه وے۔

وَمَآ اَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٠٣﴾
او که ته (هرڅومره) او غواړے (چه ټول خلق په سمه لاره شي) کثرخلق به هیڅکله ایمان نهٔ راوړي۔

وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠٤﴾ ع
او ته دَ دے (تبلیغ او تعلیم) په حقله هغوی نه هیڅ اجر نهٔ غواړے۔ دا خو دَ ټولو جهانونو (او ټولو خلقو) دَ پاره سراسر وسیله (دَ عزت) ده۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿١٠٥﴾
او آسمانونو او زمکے کښے ډیرښے نښانات دی چه هغو سره دا خلق مخ واړوی او تیرشي۔

وَمَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ ﴿١٠٦﴾
او هغوئ کښے کثر (خلق) په الله ایمان نهٔ راوړی وے دا سے حال کښے چه هغوئ ورسره (ورسره) شرک هُم کوی۔

اَفَاَمِنُوْا اَنْ تَاْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ اَوْ تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿١٠٧﴾
نو آیا دا (خلق) دے نه بے خبرے نه (محفوظ او) بے ویرے شوی دی چه هغوی باندے دَ الله عذابونو کښے څه سخت عذاب راشي یا ناسا په هغوئ باندے هغه وخت راشي (چه دَ هغے په رومبئ نه خبر ورکړے شوے دے) او هغوئ ته پته هُم اونه لګی۔

قُلْ هٰذِهٖ سَبِيْلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۚ عَلٰى بَصِيْرَةٍ اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِيْ ۗ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٠٨﴾
ته او وایه (چه) دا څما طریقه ده زهٔ (خو) دَ الله په طرف بلنه ورکوم او څوک چه زما په رښتیا) ما پسے روان دی زهٔ (او هغه ټول) په بصیرت قائم یو او الله (دَ هرقسم نقصونو نه) پاک دے او زهٔ مشرکانو نهٔ یم۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى ۗ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۗ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ
او تا نه آګاهو (هُم) مونږ خلقو ته دَ لارښودنے دَ پاره تل هُم دَ دے دُنیا) دَ علاقو او سیدونکی سړی چا ته چه به مونږ (خپله) وحی کوله رسالت سره استول نو آیا دوی په زمکه نه دی ګرزیدلی چه کتلے وے (چه)

لِلَّذِينَ اتَّقَوْا أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٠٩﴾

څوک دَ هغوئ نه آګاهو (دَ نبیانو منکران) وُو دَ هغوئ انجام څنګه شوے وُه ؟ او دَ آخرت کور دَ هغو خلقو دَ پاره چا چه تقویٰ کړے وه په تحقیق سره ډیر ښهٔ دے بیا آیا تا سو عقل نه کارنه اخلئ۔

حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا جَاءَهُمْ نَصْرُنَا فَنُجِّيَ مَنْ نَشَاءُ ۖ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١١٠﴾

او هر کله چه (یو طرف ته خو) رسُولان (دَ هغوئ نه) نا امیده شول او (بل طرف ته) دَ هغوئ (منکرانو) (دا) پوخ خیال پیدا شو چه هغوئ ته (دَ وحی په نوم) دروغے خبرے ګیا دے کیګی نو (هغه وخت) هغوئ (رسُولانو) له څمونږ مدد راغے او چه چالره مونږ بچ کول غوښتل (هغوی) بچ اوساتلے شول او دَ مجرمانو خلقو نه څمونږ عذاب (هیڅکله) نشی ټرے کیدے۔

لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ۗ مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِنْ تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿١١١﴾

دَ دوئ (خلقو) په ذکر کښے دَ عقلمندو خلقو دَ پاره دَ عبرت لوه نمونه ده۔ دا (هیڅکله) داسے خبره نهٔ ده چه (دَ خپله ځانه) جوړه شوی وی بلکه (دا) دَ دے نه آګاهُو (دَ الهٰی کلام پیش خبرو) له په پوره ډول پوره کوُونکے ده۔ او دَ هرے خبرے پوره تفصیل بیانوُونکے ده او کوم خلق چه ایمان راوړی هغوئ دَ پاره هدایت او رحمت دے۔

# سُوْرَةُ الرَّعْدِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعٌ وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة الرعد ۔ دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے څلور څلويښت آيتونه دی او شپږ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

شروکوم په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه او بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ؕ وَالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ②

زهٔ الله خبردارهٔ او کتونکے یم۔ دا دَ کامل کتاب آيتونه دی او کوم کلام چه په تا ستا دَ رب نه نازل شوے دے هغه دَ سره حق دے وے کثر خلق ایمان نهٔ راوړی۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ③

الله هغه دے چا چه آسمانونه بے دَ ستنو اوچت کړی دی۔ څنګه چه تاسو ګيا ئې ګورئ (او) بيا هغه په عرش قرار شو او نمر او سپوږمئ هغهٔ (ستاسو) په خدمت لګولی دی (ېبيانو) هره يوه (سيّاره) دَ يوے مقرره شوے مودے پورے (دَ خپل ګرزند سره سم) روانه ده۔ هغه (الله) دَ هرے يوے خبرے انتظام کوی او خپل آيتونه په تفصيل بيانوی څکه چه تاسو (خلق) خپل رب سره دَ ليد و يقين او لرئ۔

وَهُوَ الَّذِيْ مَدَّ الْاَرْضَ وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْهٰرًا ؕ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ جَعَلَ فِيْهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ④

او هُم هغه دے چا چه زمکه خوره کړے ده او دے کښے تهينګ ولاړ غرونه او (هُم) درياګونه ئے جوړ کړی دی او دے کښے ئې (دَ هر قسمه) ميوونه دوه قسمونه (يعنی نر او ښځه) جوړ کړی دی۔ هغه شپه په ورځ آچوی۔ کوم خلق چه سوچ کوی هغوئ دَ پاره (بے شکه) دے (خبره) کښے څو (څو) نشانات دی۔

وَفِي الْاَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّجَنّٰتٌ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّزَرْعٌ وَّنَخِيْلٌ صِنْوَانٌ وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ يُّسْقٰى بِمَآءٍ وَّاحِدٍ ۟ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ فِي الْاُكُلِ ؕ اِنَّ

او زمکه کښے يو بل سره څو څو قسمه برخے دی او څو قسمه دَ انګورانو باغونه او (څو څو قسمه) پټی او (په قسم قسم) دَ کهجورو ونے (چه هغو کښے څنے) دَ

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝

يوے يوے جرے نه ځوځو وټونكي روى ) او رځنې ) دَيوے جرے نه دَځوځو وټونكو خلاف ردَيوے تنے نه وتے وي چه يو شان اويو سره او يوے شي او رسره دَ دے ) دَميوو په لحاظ مونږ دوئ كښې بعضو ونوله په بعضو اوچتوو. دے كښې هُم هغو خلقو دَ پاره چه دَعقل نه كار آخلى ډير نښانات دى.

وَاِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ فِيْۤ اَعْنَاقِهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝

او رَيه دَ دے كلام او ريدُونكيه ) كچرے ته ُ ردے دَ حقونه انكاركوُونكو باندے، حيرانه شے رنو په ځائے ده وے چه ) دَهغوئ ردا ) وئيل رچه ) آيا هركله به چه مونږ مرګ نه پس خاورے شُو نو مونږله په ربښتيا ربيا ) په نوى ژوند كښې راتلل وى ستا دَخبرے نه هُم زيا ته دَحيرا نتيا خبره ده دا هغه خلق دى چا چه دَ خپل رب انكار كړے دے او دا هغه خلق دى چه دَ چا سټونو كښې به پړى رپراته ُ ) وى او ددوئ رخلق دَ دوزخ ) او ركښې رپريوتونكي ) دى. هغوئ به دے كښې يو مخيز اوسى.

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ؕ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝

او هغوئ دَسزا دَ ښے جزا نه ډير زر دَ راوستلو تانه مطالبه كيا دے كوى. حال دا چه دوئ نه آګا هو رداسے خلقو باندے ) دَ هر رقسم ) عبرت ناک عذابُونه راغلى دى. او ستارب خلقو له سره دَهغوئ دَظلم رهُم ) بے شک و شُبے رډير ) بخښُونكے دے او دا شان ستارب په تحقيق سره سخته سزا وركوُونكے رهُم ) دے.

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اِنَّمَاۤ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ۝ ع

او كومو خلقو چه انكار كړے دے هغوئ وائي رچه ) دے سړى ) باندے دَ ده دَ رب دَ طرف نه څه نښان ولے راكوز نشو رحال دا چه ته ُ صرف خبروُونكے ر اد

هوښیارۇنکے) یئے او دَ هر قام دَ پاره (دَ خدائے دَ طرف نه) لاره ښوۇونکے (استولے شوے) یئے۔

اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ۭ وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ⑨

الله (ښهٔ) پوهیګی هغه (هُم) چه دَ هرے ښځے په خیټه دی او څه (له) چه رحم ناقِصه غورزوی او (هغه هُم) چه هغه ورله وده ورکوی او هر یوځیز هغهٔ سره دَ ضرورت هومره شته دے۔

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ⑩

هغه دَ پټ او ښکاره (دواړو) علم لرۇنکے۔ دَ لوئے مرتبے خاوند (او) لوئے شان لرۇنکے دے۔

سَوَاۗءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۢ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ ⑪

چه څوک تاسو کښے خبره پټوی او هغه هُم چه ښکاره کوی ئے (دَ هغه علم له مخے دواړه برابر دی) او هغه هُم چه دَ شپے پټ وی او دَ ورځے ګرزی۔

لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ۭ وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ سُوْۗءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ⑫

دَ هغهٔ دَ طرف نه دَ دهٔ (رسُول) نه وړاندے هُم او دَ دهٔ نه روستو هُم (یو بل سره سره) دَ راتلونکو (ملائیکو) یو ټولیٔ (حفاظت دَ پاره) مقرر دے چه دَ الله په حُکم دَ ده حفاظت لګیا دے کوی۔ الله کله هُم دَ یو قام حالت نه بدلوی ترڅو پورے چه هغه خپله دننه حالت بدل نکړی او هر کله چه الله دَ یو قام پخقله دَ عذاب فیصله اوکړی نو دَ دے (عذاب) او ګرځونکے هیڅوک نهٔ وی او دَ هغهٔ نه سوا دَ هغوئ بل څوک (هُم) مددګار نشی کیدلے۔

هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ ⑬

هُم هغه دے چه تاسو ته (پړک دَ) بجلیٔ ښائی دَ ویرے دَ پاره (هُم) او دَ طمعے دَ پاره (هُم) او درنے وریځے او چتوی۔

وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰۗىِٕكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ ۚ وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيْبُ بِهَا مَنْ يَّشَاۗءُ وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ ⑭

او دَ بجلیٔ آواز دَ هغهٔ دَ تعریف سره (سره) دَ هغهٔ دَ پاکیٔ اظهار هُم کوی او فرښتے هُم دَ هغهٔ دَ ویرے له کبله هم داسے کوی او پریوتونکے بجلیٔ هُم استوی

بیا په ځائے چه اوغواړی هغه اوغورزوی اوهغوی د الله په خقله جهګړے کوی حال دا چه هغه سخت عذاب ورکونکے دے۔

لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ۖ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَيْءٍ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ ۚ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ۝١٤

نهٔ انحراکیدونکے بلنه هُم دَ هغهٔ ده اوهغوی چه څوک هغهٔ نه سوابلی هغوی دَ هغوردُعا) ځهٔ جواب نهٔ ورکوی (هن) وے (دَ هغوی کار) دَ هغه سړی په شان دے چه خپل دواړه لاسونه اوبو ته اوږدَوی چه هغه دَ هغهٔ خُلے ته اورسی وے هغه (اوبهٔ) او دَ کافرانو چغے سُورے به عبث لاړے شی۔

السجدة

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۝١٥

او چه څه آسمانُونو یا زمکه کښے دی او دَ هغوی سیوری هُم په خوښه یا په ناخوښه (هر) سحر ماښام هُم الله ته سجده کوی۔

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ قُلِ اللّٰهُ ۗ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۙ اَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ ۚ اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوْا كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ۗ قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝١٦

تهٔ هغوی ته اووایه (چه اووائی) دَ آسمانُونو او زمکے ربّ څوک دے؟ دَ دے جواب به هغوی څوځهٔ درکړی) تهٔ زمیله) اووایه (چه) الله او بیا تهٔ هغوی ته) اووایه آیا بیا (هُم) تاسو دَ هغهٔ نهٔ سوا (خپل) دا سے مددګار تجویز کړی دی چه خپله ځان دَ پاره (هُم) دَ ځهٔ ګټے (په حاصلولو) قدرت نهٔ لری او نه دَ ځهٔ نقصان دَ منع کولو۔ (او هغوی ته) اووایه (چه) آیا ړوند او بینا برابر دی؟ یا آیا تیارهٔ او رڼړا برابر دی؟ آیا هغوی دَ الله دا سے شریکان تجویز کړی دی چا چه دَ هغهٔ په شان (څهٔ) مخلوق پیدا کړے دے چه دَ هغے له کبله (دَ هغهٔ او دَ نورو) مخلوق دَ هغوی دَ پاره شک من شوے دے تهٔ هغوی ته اووایه (چه) (هُم) الله دَ هر یو څیز خالق دے او هغه په کامل ډول یوازے ربه و احد وجود لسیار)

(او په هر یو څیز) کامل اقتدار لرونکے دے۔

أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا
فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَابِيًا ۚ وَمِمَّا يُوقِدُونَ
عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِثْلُهُ ۚ
كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۚ فَأَمَّا الزَّبَدُ
فَيَذْهَبُ جُفَاءً ۖ وَأَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ
فِي الْأَرْضِ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ ﴿١٧﴾

هغهٔ آسمان نه څهٔ اوبهٔ راکوزے کړے بیا (هغے نه) ډیر
ځنے وادئ دَ خپلے (خپلے) اندازے هومره اوبهیدلے
او دغے سیلاب اوچتونکے ځګ اوچت کړو او څهٔ له چه
هغوئ دَ څهٔ کالی یا بل څه کورنی استعمال سامان جوړولو
دَ پاره په اورتپ ورکوی هغے کښے (هُم) دغه (سیلاب)
رنګے یو ځګ (روی) دے۔ دا شان الله دَ حق او باطل (فرق)
بیانوی بیا ځګ خو اوغورزولے (او) تباه شی او کوم
څیز چه خلقو له نفع ورکوونکے وی هغه زمکه کښے الیارکی
الله تهولے خبرے دا شان (په دا که) بیانوی۔

لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا
لَهُ لَوْ أَنَّ لَهُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ
لَافْتَدَوْا بِهِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ سُوءُ الْحِسَابِ وَمَأْوَاهُمْ
جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٨﴾

چا چه دَ خپل ربّ وینا اومنله هغوئ دَ پاره کامیابي ده
او چا چه دَ هغهٔ اونهٔ منله (دَ هغوئ حال به داوی چه)
څهٔ هُم چه زمکه کښے دی کچرے (تهول) دَ هغوئ وی او
دَ هغے هومره نور (هُم) نو هغوئ به دَ دے تهول مال په
ورکړه (خپل ځان دَ عذاب نه) دَ خلاصولو کوشش کولے
هغوئ دَ پاره بد انجام لرونکے حساب (شته) دے او
دَ هغوئ ځائے جهنّم دے او هغه دَ استوګنے په لحاظ
ډیر بد (ځائے) دے۔

أَفَمَنْ يَعْلَمُ أَنَّمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ
هُوَ أَعْمَىٰ ۚ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿١٩﴾

چا ته چه معلومه ده چه څه (کلام) ستاسو رب نه ستاسو
په طرف راغلے دے هغه دَ سره حق دے آیا هغه دَ
هغه چا په شان (کیدے شی) دے چه روند دے (رنا
وے چه) بس هم عقل لرونکی نصیحت اخلی۔

الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنْقُضُونَ الْمِيثَاقَ ﴿٢٠﴾

دا هغه خلق چه دَ الله (سره کړے) لوظ پوره کوی او دا
پوخ لوظ نهٔ ماتوی۔

وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ وَ

او څوک چه دغه تعلقات تل ترتله قائم ساتی چه دَ کومو

يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُوْنَ سُوْٓءَ الْحِسَابِ ﴿٢١﴾

دَ قائم ساتلو الله حُکم ورکړے دے او دَ خپل رب نه ویرېږي او دَ بد را نجام لرُونکی ) حساب نه یره کوی۔

وَالَّذِيْنَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً وَّيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٢﴾

او څوک چه دَ خپل رب دَ رضا په طلب کښے ټینګ پاتے دی او لمونځ ئے په ښه ډول ادا کړے دے او څهٔ چه مونږ هغوئ له ورکړی دی هغے نه ئے پټ (په پټه هُم ) او په ښکاره (هُم) خمونږ په لاره کښے خرڅ کړی دی۔ (او څوک چه ) بدئ نیکئ سره لرے کوی هُم هغوی دَ پاره دَ دے کور (دِ پرښتهٔ ) انجام دے۔

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَدْخُلُوْنَ عَلَيْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ ﴿٢٣﴾

یعنی مستقل دَ استوګنے باغات چه هغو کښے به هغوئ (خپله هُم ) دا خلیږی او دَ هغوئ دَ مشرانو او دَ هغوی دَ بیبیانو او دَ هغوئ دَ نسلونو نه هُم۔ (هغه خلقو ) چا چه نیکی کړی وی (دے کښے به داخلیږی ) او فرښتے به په هره دروازه هغوئ له راڅی۔

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٤﴾

(او وائی به ) ستاسو دَ پاره سلامتی دِ وی چه تاسو ټینګ پاتے شوئ۔ بیا (اوس اوګورئ چه ستاسو دَ پاره ) دَ دے کور څهٔ ښه انجام دے۔

وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿٢٥﴾

او څوک چه الله (سره کړے ) پوخ لوظ دَ مضبوط اقرار نه پس ماتوی او دَ کوم تعلق دَ قائمولو چه الله حُکم ورکړے دے هغه ټکړے ټکړے کوی او زمکه کښے فساد کوی دَ هغوئ په برخه (دَ الله دَ طرف نه) لعنت دے او هغوئ دَ پاره یو خراب کور (هُم ) مقرر دے۔

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ﴿٢٦﴾ ع ٣/٩

الله چه چا دَ پاره خوښوی (هغهٔ له ) رزق زیاتوی او (چه چا له غواړی هغهٔ دَ پاره ) کموی۔ او دوئ (خلق ) په دے دُنیوی ژوند خوشحاله شوی دی حال دا چه دا دنیوی ژوند دَ آخرت په مقابله کښے بس دَ لږ وخت

سامان دے۔

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ۝٢٨

او کومو خلقو چه (رښتاسو) انکار کړے دے هغوی وائی چه په دهٔ د دهٔ د رب نه څهٔ نښان ولے نهٔ دے راکوز شوے، تهٔ اووایه چه الله چاله غواړی هلاکوی او چه څوک (هغه ته) نزدیکت غواړی هغهٔ ته د خپل ځان په طرف لاره ښائی۔

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَىِٕنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ۭ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَىِٕنُّ الْقُلُوْبُ ۝٢٩

یعنی چه چا ایمان راوړے وی او د هغوئ زړونه د الله په یاد د لو تسلی مومی (هغوئ ته هدایت ورکوی) بیالوه شئ چه هُم د الله یاد سره زړونه تسلی مومی۔

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ۝٣٠

کومو خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوی نیک او (مناسب د حال) عمل کړے دے هغوی د پاره (ډیر) ښهٔ حالت او ډیر ښهٔ د واپس تلو ځائے دے۔

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَا۟ عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ۭ قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ مَتَابِ ۝٣١

د دا (قسم انجام موندلو) د پاره مونږ تهٔ یو داسے قام ته چه آگاهو ترے نه ډیر قامونه (د را تلونکی انتظارکښے) تیر شوی وُو استولے ئے۔ دے د پاره چه څهٔ (کلام) مونږ ستا په طرف وحی کړے دے تهٔ هغوئ ته واوروے ولے چه هغوئ د رحمان (د فیضان) انکار لګیا دے کوی تهٔ اووایه دا ځما رب دے هغهٔ نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته په هغه ما توکل کړے دے او هر وخت هغهٔ ته ځما سترګے دی۔

وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى ۭ بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا ۭ اَفَلَمْ يَايْــــَٔسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ لَّوْ يَشَاۗءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا ۭ وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا صَنَعُوْا قَارِعَةٌ اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ حَتّٰى

او کچرے څهٔ داسے قرآن وی چه د هغے په ذریعه (د نښان په طور) غرونه (د خپل ځائے نه اخوا) غورزولے شوی وی یا د دے په سوب زمکه ټکړے ټکړے شوے وی یا د دے په سوب مړو سره خبرے شوی وی (نو آیا دا خلق به په دے ایمان راوړی؟ هیڅکله نه) بلکه

يَأْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿٣١﴾ ع

(دَ ايمان راوړو فيصله) په پوره ډول دَ الله په لاس کښې
ده - آيا چه کومو خلقو ايمان راوړے دے هغوئ ته
(تر اوسه) معلومه نشوه چه کچرے الله غوښتلے نو ټولو
خلقو ته به ئے هدايت کړے وے او (يه رسوله !) کومو
خلقو چه انکار کړے دے دَ هغوئ دَ دے عمل له کبله به
تل په هغوئ څهٔ (نه څهٔ) آفت رازی يا به دَ هغوئ کور
سره نزدے نازليږی تر دے چه دَ الله (آخری) وعده
(يعنی دَ مکے فتح) به راشی - الله به دَ دے وعدے خلاف
هيڅکله نهٔ کوی -

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَمْلَيْتُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ ۗ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿٣٢﴾

او تا نه وړاندے رسولانو پورے هُم خندا شوے وه
چه دَ هغے له کبله ما هغه خلقو له چا چه انکار کړے وه
(څهٔ موده پورے) مولت ورکړو بيا ما هغوئ تباه
کړل - اوس او ګوره څما سزا څنګه (سخته) ده -

اَفَمَنْ هُوَ قَاۗىِٕمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍۢ بِمَا كَسَبَتْ ۚ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَاۗءَ ۭ قُلْ سَمُّوْهُمْ ۭ اَمْ تُنَبِّـُٔـوْنَهٗ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْاَرْضِ اَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ۭ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوْا عَنِ السَّبِيْلِ ۭ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿٣٣﴾

نو آيا هغه (خدائے) به چه دَ هر چا په عملونو نګران
دے (هغوئ نه تپوس نهٔ کوی) او هغوئ خو الله سره
ډير څخے شريکان (هُم) جوړ کړی دی (هغوئ ته) او وايه
تاسو دَ دغو (نقلی خدايانو) نوم ونه (خو) اوښائی - يا آيا
تاسو (خلق) به هغهٔ (خدائے) ته داسے څه خبره
ښائی چه زمکه کښے نشته دے خو هغهٔ ته (دَ هغے) علم
نشته يا تاسو هسے دَ خُلے خبرے کوئ (يعنی هسے دُوزے
ولئ) بلکه کومو خلقو چه انکار کړے دے هغوی ته
دَ هغوئ (حيله) فريب ښائسته (ډول کښے) ښودلے
او هغوی دَ سمے لارے نه اړولے شوی دی او چا له چه
الله هلاک کړی هغه له لاره ښودونکے هيڅوک نهٔ وی -

لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ

هغوی دَ پاره يو عذاب (خو) دے دُنيری ژوند کښے دے

اَشَقُّ ۚ وَمَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ﴿۳۴﴾

او په تحقیق سره دَ آخرت به نور (هُم) سخت وی او هغوئ به دَ الله (دَ عذاب) نه هیڅوک بچ کوُونکے نهٔ وی.

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ۗ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۗ اُكُلُهَا دَآئِمٌ وَّظِلُّهَا ۗ تِلْكَ عُقْبَى الَّذِيْنَ اتَّقَوْا ۖ وَّعُقْبَى الْكٰفِرِيْنَ النَّارُ ﴿۳۵﴾

دَ هغه جنت مثالی بیان چه دَ کوم نیکانو سره وعده شوے ده (دا دے چه) دَ هغے (دَ ونو دَ سیورو) لاندے به نهرونه بهیګی. دَ هغے میوه به هُم تل تر تله پائی او دَ هغے سیورے په (هُم) دا به دَ هغو (خلقو) انجام وی چا چه تقویٰ اوکړه او دَ انکارکوُونکو انجام دَ دوزخ اور دے.

وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ۗ قُلْ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ بِهٖ ۗ اِلَيْهِ اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ ﴿۳۶﴾

او کومو خلقوله چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوئ دَ دے (الهیٰ کلام) سره چه په تا نازل شوے دے خوشحالیګی او دغو (مختلفو) ټولو کښے (رَخنے) دا سے (هُم) دی چه دَ هغے دَ ځنو (برخو) انکار کوی. ته اووایه ما ته (خو) هُم دا حُکم شوے دے چه زهٔ دَ الله عبادت اوکړم او (چاله) هغهٔ سره شریک نکړم زهٔ دَ هغهٔ په طرف (تا سو) بلم او هُم دَ هغهٔ په طرف زهٔ (هُم) رجوع کوم.

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ﴿۳۷﴾ ع

او دا شان مونږ دا دَ یو مفصّل حُکم په دول راکوز کړے دے او (یَه دَ دے او ریدُونکیه!) کچرے ته دَ دے علم نه پس چه تا ته حاصل شوے دے دَ دوی (کافرانو) غوښتنو پسے لاړے نو دَ الله په مقابله کښے به نهٔ (خو) ستا څوک دوست وی او نهٔ څوک ساتُونکے.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ اَزْوَاجًا وَّذُرِّيَّةً ۗ وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ ﴿۳۸﴾

او مونږ تا نه آګا هو (هُم) په تحقیق سره دیر رسُولان استولی وُو او هغوئ له مونږ ښځے او بچي هُم ورکړی وُو او دَ هیڅ یو رسُول دَ پاره ممکنه نهٔ وه چه هغه دَ الله دَ اذن نه سوا (څیل قام له) څهٔ نښان راوړے وے دَ هر یو پروګرام دَ پاره یو میاد مقرر دے.

يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۚ وَعِنْدَهٗٓ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴿۳۹﴾

څه څیز له چه الله غواړی ختموی ئے او رُخه له چه

غو (ری) ساتي يے او هُم هغهٔ سره دَ تولو) حکمونو
اصل (او بيخ) دے۔

وَإِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿٤٠﴾

او دَ کوم رعذاب دَ استولو) چه مونږ هغوئ سره وعده کوو که چرے مونږ دَ هغے څه برخه ستا ردَ سترګو) وړاندے را واستوو رنو ته به هُم دَ هغوئ انجام او ګورے) او که چرے مونږ رهغه وخت نه آګاهو) تاله وفات درکړو رنو تا ته به دَ مرګ نه پس دَ هغے حقيقت معلومه شي وے چه) ستا په ذمه رځمونږ دَ حُکم او پيغام) لس رسُول دی او هغوی نه حساب اخستل ځمونږ په ذمه دی۔

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ وَاللَّهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ ۚ وَهُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٤١﴾

آيا هغوی ليدلی نهٔ دی چه مونږ ملک دَ ټولو طرفونو نه کميالو رانو وُو ريعني اسلام خوريږي) او فيصله رخو) الله کوی۔ هيڅوک دَ هغهٔ فيصلے له بدلونکے نشته او هغه زر حساب اخستونکے دے۔

وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ الْمَكْرُ جَمِيعًا ۖ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ۗ وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّارُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٤٢﴾

او کوم خلق چه دَ هغوئ نه وړاندے وُو هغوئ رهُم دَ نبيانو خلاف) تدبيرونه کړی وُو روے څائے ئے نه وُه نيولے) بيا تد بير کول خو پوره رپوره) هُم دَ الله په واک کښے دی۔ هر لو سړے چه څهٔ رهُم) کوی هغه رالله) هغے نه خبر دے او هغوی کافرانو ته به زر معلومه شي چه دَ را تلونکي کور رښهٔ) انجام دَ چا دَ پاره دے۔

وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَسْتَ مُرْسَلًا ۚ قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ وَمَنْ عِنْدَهُ عِلْمُ الْكِتَابِ ﴿٤٣﴾ ع ۱۲

او کومو خلقو چه ستا انکار کړے دے هغوی وائي چه تهٔ دَ خدائے رسُول نه يے تهٔ هغوی ته او وايه رچه) الله ځما او ستا سو ترمنځه کافي ګواه دے او (دا شان) هغه رسړے هُم ګواه) دے چا ته چه دَ دے رمقدس) کتاب علم دے۔




سورة ابراهيم۔ دا سورة مکی دے او بسم الله سره دے درے پنځوس آيتونه او اوه رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(زهٔ) شروکوم دَ الله په نوم چه بے حده مهربانه او بيا بيا رحم کوونکے دے۔

الٓرٰ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ②

زه الله کتونکے یم۔ (دا) يو کتاب دے چه مونږ په تاځکه نازل کړے دے چه ته تولو خلقوله دَ هغوئ دَ رب په حکم دَ تيرَونه او باسے (او) دَ نور خوا ته ئے راوړے يعنې دَ غالب او دَ تعريفونو خدائے دَ لارے په طرف۔

اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَوَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ۙ③

(هغه غالب او دَ تعريفونو لائق خدائے هُم) الله (دے) (او) څهٔ چه په آسمانونو کښے دی او څهٔ چه زمکه کښے دی ټول دَ هغهٔ دی او (دَ هغهٔ) انکارکوونکو دَ پاره يو سخت عذاب دے۔

الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۗ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ④

څوک (انکارکوونکی چه) دَ آخرت په مقابله کښے دادنيوی ژوند غوره ګنړی او (نور خلقوله هُم) دَ الله دَ لارے نه منع کوی او دا په ناجائزه (حاصلول) غواړی دا خلق دَ حقے لارے نه ډير لرے (پراته) دی۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ ۗ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ⑤

او هر يو رسول مونږ هُم دَ هغهٔ دَ قام په ژبه کښے (وحی سره) آستولے دے چه هغه هغوی ته (حمونږ خبرے) په ډاګه او ښائی۔ بيا (دَ دے تدبير نه پس) الله چه چاله (هلاکول) غواړی هلاکوی ئے او چاله چه (کاميابول) غواړی۔ هغهٔ له دَ مقصود ځائے ته رسوی او هغه په کامل ډول غالب (او) دَ رحمت خاوند دے۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اَنْ اَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ

او زنا نه آګاه هو، مونږ ه موسیٰ (هُم) خپلونښانو

الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ وَ ذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۝۵

سره ردے حُکم سره) لیږلے وُو چه خپل قام دَ تیرونه او باسه (او) دَ نور په طرف ئې راوله او هغوئ ته دَ الله انعامات او دَ هغهٔ عذاب وریادکړه روے چه) بیشکه دے کښے هر لوِ پوُره صبر کوُونکی او پوُره شکر کوُونکی دَ پاره ډیرځنے نښانات دی۔

وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ اَنْجٰىكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ وَ يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَ يَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ؕ وَ فِیْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ۝۶ ع ۱۳

او (یه دَ دے قرآن آوریدُونکیه ته هغهٔ حُکم یادکړه) هرکله چه موسیٰ خپل قام ته وئیلی وُو (چه یه څما قامه!) تاسو په خپلو ځانونو دَ الله (دَ هغه وخت) انعام یادکړئ هرکله چه هغهٔ تاسو دَ فرعون دَ ملکرونه هغه حال کښے بچ کړی وی چه هغوئ تاسوله سخت تکلیف درکولو۔ ستاسو ځامن به ئې وژل او ستاسو ښځے به ئې ژوندئ ساتلے او دے کښے ستاسو دَ رب دَ طرف نه (ستاسو دَ پاره) ډیر لوئے امتحان وُو۔

وَ اِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكُمْ لَىِٕنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ وَ لَىِٕنْ كَفَرْتُمْ اِنَّ عَذَابِیْ لَشَدِيْدٌ ۝۷

او (هغه وخت هُم یادکړئ) هرکله چه ستاسو رب (دَ نبیانو په ذریعه) اعلان کړے وُو چه (یه خلقو!) کچرے تاسو شُکر اوکړو نو زهٔ به تاسوله نور هُم زیات درکوم او کچرے تاسو ناشکری اوکړه نو (یاد ساتئ) څما عذاب په تحقیق سره سخت (روی) دے۔

وَ قَالَ مُوْسٰۤى اِنْ تَكْفُرُوْۤا اَنْتُمْ وَ مَنْ فِی الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ لَغَنِیٌّ حَمِيْدٌ ۝۸

او موسیٰ (خپل قام ته دا هم) وئیلی وُو (چه) کچرے تاسو او څوک چه زمکه کښے اوسی ټول (دَ سیلے) انکار اوکړئ نو دے کښے دَ خدائے څه نقصان نشی کیدے ولے چه) په تحقیق سره الله بے نیازه (او) دَ ډیرو تعریفونو لائق دے۔

معانقة عند المتقدمین

اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوْحٍ وَّ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ ۬ؕ وَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕۛ لَا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا اللّٰهُ ؕ

آیا کوم خلق چه تاسو نه وړاندے وُو یعنی دَ نوحؑ قام او دَ عادؑ او ثمودؑ او څوک چه هغوئ پسے وُو۔ دَ هغوی

جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرَدُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ وَقَالُوْٓا اِنَّا كَفَرْنَا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ وَاِنَّا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَنَآ اِلَيْهِ مُرِيْبٍ ⑩

پحقله زرهٔ درزه وُونکے خبر تاسو ته نه دے رسیدلے (هغوئ دا سے نابوده شول او ختم کړے شول چه) دَ الله نه سوا (او س) هغوئ هیڅوک (هُم) نه پیژنی۔ (هر کله چه) دَ هغوئ رسُولان (څمونږه) روښانه نښانے سره راغل نو هغوئ دَ هغو خبره اونهٔ منله او وے وئیل (چه) کوم (تعلیم) سره تاسو راستولی شوی یئ او دَ کومے خبرے په طرف چه تاسو مونږه غواړئ دَ هغے پحقله مونږ لونا قراره شک کښے (پراته) یُو۔

قَالَتْ رُسُلُهُمْ اَفِي اللّٰهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَدْعُوْكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى قَالُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَصُدُّوْنَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا فَاْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ⑪

دَ هغوئ پیغمبرانو (هغوئ ته) او وئیل (چه) آیا تاسو ته دَ الله پحقله څهٔ شک دے چه دَ آسمانُونو او زمکے پیدا کوونکے دے۔ هغه تاسو دے دَ پاره راغواړی چه هغه ستاسو گناهونو کښے بعضے اوبخښی او یو مقرر کړی وخت پورے تاسو نه ډیل ورکړی هغوئ او وئیل (چه) تهٔ (خو) مونږ غوندے انسان یې۔ تهٔ غواړے چه دَ کوم څیز څمونږ پلار (نیکونو) عبادت (تراوسه) کولو هغے نه مونږ واړوے۔ بیا (کچرے دے کار کښے تهٔ په حقه یئ نو) مونږ له ښکاره نښان راوړه۔

قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑫

دَ هغوئ پیغمبرانو هغوئ ته او وئیل رچه دا رښتیا ده چه) مونږ ستاسو غوندے بشر یُو دے (ورسره دا هُم رښتیا ده چه) الله خپلو بندیانو کښے چه په چا اوغواړی (خاص) احسان کوی او دا خبره څمونږ وس کښے نهٔ ده چه دَ الله دَ حُکم نه سوا تاسو له څهٔ نښان راوړُو او مومنانو له هُم په الله توکل پکار دے۔

وَمَا لَنَآ اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

او په مونږ څهٔ شوی دی چه مونږ په الله توکل اونکړو۔ حال دا چه هغه څمونږ (دَ حال مناسب) لارے مونږ ته

الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۱۲﴾

ع ۲ ۱۴ بنو دلی دی اوتوکل کوونکوله په الله توکل پکاردے۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ
اَرْضِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا ؕ فَاَوْحٰۤى اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ
لَنُهْلِكَنَّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۳﴾

اوکوموخلقوچه انکاراوکرو هغوئ دَ خپلے (خپلے زمانے) پیغمبرانوته اووئیل چه مونږ به تاسو خامخا خپل ملک نه اوباسو یا تاسو به (دَ مجبورئ) نه څمونږ مذهب ته واپس (راشئ (نوهله به دغو تکلیفونو نه بچ شئ) چه په هغے دَ هغوئ رب په هغوئ وحی نازله کړه (چه) په تحقیق سره مونږ به دغو ظالمانوله هلاکوو۔

وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ
خَافَ مَقَامِيْ وَخَافَ وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾

او دَ هغوئ (دَ تباهئ) نه پس به دغه ملک کښے خامخا تاسو آبادوو۔ دا (وعده) دَ هغهٔ پحقله ده چه څما دَ مقام نه ویریګی او ورسرهٔ څما دَ ویره ورکوونکو پیش خبرونه ویریګی۔

وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿۱۵﴾

اوهغوئ (دَ خپل) بَری دَپاره دُعا اوکړه او (نتیجه دا اوشوه چه) هر یوکس (او) دَحق دښمن نامراده پاتے شو۔

مِّنْ وَّرَآئِهٖ جَهَنَّمُ وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ ﴿۱۶﴾

دَدے (دُنیوی عذاب) نه پس (دَ هغهٔ دَ پاره دَ) جهنّم (عذاب هُم شته) دے او (هلته به) په هغه سښے تودے اوبهٔ څکولے شی۔

يَّتَجَرَّعُهٗ وَلَا يَكَادُ يُسِيْغُهٗ وَيَاْتِيْهِ الْمَوْتُ مِنْ
كُلِّ مَكَانٍ وَّمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ؕ وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ
غَلِيْظٌ ﴿۱۷﴾

هغه به هغه په کوټ کوټ څکی او په آسانئ به ئیے نشی تیرولے او هر ځائے (او هر طرف نه به) په هغهٔ مرګ رازی او هغه به مری نا او دے نه علاوه هُم (هغهٔ دَ پاره) یو سخت عذاب (شته) دے۔

مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ
اِشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ؕ لَا يَقْدِرُوْنَ
مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰى شَيْءٍ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ﴿۱۸﴾

کوموخلقوچه دَخپل رب (دَ حکمونو) انکار کړے دے دَ هغوئ عملونه دَ هغے ایرے په رنګ دی چه دَتیزے سیلئ په ورځ هوا په تیزئ اوړے وی۔ څهٔ چه هغوئ (دَ خپل را تلونکی وخت دَ پاره) ګټلی دی دَ هغے به هیڅ برخه (هُم) دَ هغوئ په لاس نهٔ رازی دا لویه تباهی ده۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ اِنْ یَّشَاْ یُذْهِبْكُمْ وَیَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِیْدٍ ۙ﴿۱۹﴾

(یه اوریدونکیه!) آیا تا لیدلی نهٔ دی چه الله زمکه آسمانونه حق و حکمت سره پیدا کړی دی - کهٔ هغه اوغواړی نو تاسو به هلاک کړی او (ستاسو په ځائے به) بل یو نوے مخلوق راولی -

وَّمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِیْزٍ ﴿۲۰﴾

او دا خبره الله دَپاره څهٔ گرانه نهٔ ده -

وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِیْعًا فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِیْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ ؕ قَالُوْا لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَهَدَیْنٰكُمْ ؕ سَوَآءٌ عَلَیْنَآ اَجَزِعْنَآ اَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِنْ مَّحِیْصٍ ؑ﴿۲۱﴾

او هغوئ ټول به دَ الله وړاندے او دریږی - بیا به (هغوی کښے) کمزوری (کمزړی شوی) کبرجنو ته وائی (چه) مونږ خو تاسو پسے تلونکی وُو - بیا آیا تاسو دَ الله دَعذاب نه (دے وخت) څهٔ مونږ نه لرے کولے شئ - هغوئ به (جواب کښے) او وائی که چرے الله مونږ ته هدایت راکړے وے نو مونږ به (هُم) تاسو ته هدایت درکړے وے (ولے اوس ته کیدے شی) څمونږ بے صبری ښودل یا څمونږ صبرکول (دے وخت) مونږ دَپاره یو برابر دی (او) څمونږ دَپاره دَ خلاصی هیڅ یوه لاره نشته دے -

ع ۳ ۱۵

وَقَالَ الشَّیْطٰنُ لَمَّا قُضِیَ الْاَمْرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدْتُّكُمْ فَاَخْلَفْتُكُمْ ؕ وَمَا كَانَ لِیَ عَلَیْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِیْ ۚ فَلَا تَلُوْمُوْنِیْ وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ مَآ اَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُصْرِخِیَّ ؕ اِنِّیْ كَفَرْتُ بِمَآ اَشْرَكْتُمُوْنِ مِنْ قَبْلُ ؕ اِنَّ الظّٰلِمِیْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۲۲﴾

او هرکله به چه دَ ټولے معاملے فیصله اوشی نو شیطان به (خلقو ته) وائی (چه) په تحقیق سره الله تاسو سره پخه وعده کړے وه او ما (هُم) تاسو سره (لوه) وعده کړے وه ولے ما هغه (وعده) تاسو سره پوره نکړه او څما په تاسو هیڅ لاس نهٔ رسیدو - او ما تاسو خپلے خوا ته اوغوښتئ او تاسو څما خبره اومنله - دے دَپاره (اوس) په ما ملامته مهٔ اچوئ بلکه خپل ځان ملامته کړئ (دا وخت) نهٔ زهٔ ستاسو فریاد آوریدے شم او نهٔ تاسو څما فریاد آوریدے شئ - تاسو چه زهٔ دَ الله شریک جوړ کړے وم - ما ستاسو دَ دے خبرے نه آگاهو انکار کړے دے (په دے خدائے فرمائی چه

دا ے شرک کوونکو ) ظالمانو دَ پاره په تحقیق سره دردناک عذاب دے۔

وَاُدْخِلَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ؕ تَحِیَّتُهُمْ فِیْهَا سَلٰمٌ ﴿۲۳﴾

او کومو خلقو به چه ایمان راوړے وی او هغوئ ښه (او مناسب دَ حال عملونه کړی وی۔ هغوئ به دَ هغوئ دَ رب په حکم داسے باغونو کښے چه دَ هغو (سیورو) لاندے به نهرونه بهیږی ورداخلولے شی (او) هغوئ به هغه (جنتونو) کښے تل ترتله اوسی او هلته به دَ هغوی (لو بل دَ پاره دا) دعاوی (چه په تاسو دِ) سلامتی روی)۔

اَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ وَّفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ﴿۲۴﴾

(اے اوریدونکیه!) آیا تا لیدلی نه دی (چه) الله (تعالیٰ) څنګه دَ یو پاک کلام پخپله حقیقت بیان کړے دے۔ هغه دَ یوے پاکے ونے په شان وی چه جرړه ئے (په ځمکه) قائمه وی او دَ دے (هر یو ښاخ) آسمان ته اوچت (رسیدلے) وی (دے)۔

تُؤْتِيْٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍۢ بِاِذْنِ رَبِّهَا ؕ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۵﴾

هغه هر وخت دَ خپل رب په حکم خپله (تازه) میوه ورکوی او الله (تعالیٰ) دَ خلقو دَ پاره (دَ هغوی دَ فطرت) ټولے خبرے بیانوی ځکه چه هغوئ نصیحت واخلی۔

وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيْثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيْثَةِ ِۨ اجْتُثَّتْ مِنْ فَوْقِ الْاَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ﴿۲۶﴾

او دَ بدے خبرے حال دَ بدے ونے په شان دے چه دَ زمکے نه او ځکلے (غورزولے) شوے وی (او) چه هغے له (چرته هم) قرار نه وی۔

يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ ۙۗ وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ﴿۲۷﴾ ع

کومو خلقو چه ایمان راوړے دے هغوئ له الله (تعالیٰ) دَ دے قائم پاتے کیدونکی (او پاکے) خبرے په ذریعه (دے) دنیاوی ژوند کښے (هم) قائم ساتی او آخرت کښے به ئے هم (قائم ساتی) او ظالمان به الله (تعالیٰ) هلاکوی او الله (تعالیٰ) چه څه غواړی (هغه) کوی۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا

(اے اوریدونکیه!) آیا تا هغه خلق نه دی لیدلی چا چه

قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ٢٨

په ناشکرئ دَ الله (تعالیٰ) نعمت بدل کړ او راوخپله هُـم (هلاک شول) اوخپل تمام ئے (هُم) دَ هلاکت کور کښے ورو اچولو۔

جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ٢٩

یعنی جهنم کښے هغوی به دے کښے ننوزی او هغه ځائے (دَ استوګنے په لحاظ) ډیر خراب دے۔

وَجَعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا لِيُضِلُّوا عَنْ سَبِيلِهِ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ٣٠

او هغوئ دَ الله سره یو برابر شریکان جوړ کړی دی ځکه چه (خلق) دَ هغهٔ دَ لارے نه واړوی۔ "ته (هغوی ته) او وایه (چه بښه ده څو ورځے) عارضی فائده او چته کړئ بیا به ستاسو په تحقیق سره (دَ دوزخ) دَ اور خواته تلل وی۔

قُلْ لِعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ ٣١

(اے رسُوله!) زما هغه بندیانو ته چه ایمان ئے راوړے دے او وایه چه هغوی دَ هغے ورځے دَ راتلونه آګاهو چه هغے کښے به نهٔ څهٔ (اخستل) خرڅول وی او نهٔ څه پخه دوستی وی۔ نمونځونه په ښه طریقه ادا کوی او چه څهٔ مونږ هغوی له ورکړی دی هغے نه په پټه (هُم) او په ښکاره (هُم) څمونږ په لاره کښے لګوی۔

اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهَارَ ٣٢

الله (تعالیٰ) هغه (ذات) دے چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړی دی او دَ وریځو نه ئے اوبه راکوزے کړے او دَ هغے په ذریعه ئے ستاسو دَ پاره دَ میوو (دَ قسم) نه رزق پیدا کړے دے او هغهٔ کشتئ (چلولو نکے هوا) ئے بے پیسو ستاسو په خدمت کښے لګولے ده ځکه چه هغه دَ هغهٔ په حُکم سمندر کښے روانے وی او دا شان دریابونه (هُم) هغهٔ

وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَائِبَيْنِ وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ٣٣

بے پیسو ستاسو په خدمت لګولی دی او نمر او سپوږمئ (هُم) هغهٔ (دوا ړه) بے دمے کولو (خپل خپل) کار کوی او هغهٔ شپه او ورځ (هُم) بے پیسو ستاسو په خدمت کښے لګولی دی۔

وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ ۗ وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ
اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ۗ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ ﴿٣٤﴾ ع

اوئخه چه تاسو رغم) هغهٔ نه غوښتې دی هغهٔ تاسو له درکړی دی او که چرے تاسو دَ الله رتعالیٰ) احسانات شمیرل اوغواړئ نو دَ هغو شمیر به او نکړے شئ په تحقیق سره انسان ډیر ظالم راو) ډیر ناشکره دے۔

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا
وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ ﴿٣٥﴾

او رَیه او دیدونکیه! هغه وخت را یاد کړه) هرکله چه ابراهیمؑ رپه دعا کښے) وئیلی وُو رچه) یَه څما ربّ! دا ښار ریعنی مکّه) دَ امن رځائے) جوړ کړه او څما ځامن دَ دے خبرے نه لرے او ساته چه مونږ دَ ناحقه معبودانو عبادت اوکړو۔

رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنْ تَبِعَنِيْ
فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَمَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٦﴾

یَه څما رب! هغوئ په تحقیق سره ډیر خلق بے لارے کړی دی بیا چه چا څما او منودل هغه (خو) ما نه دے او چا چه څما او نهٔ منودل دَ هغهٔ په حقله څما دا عرض دے چه هغه او بخښه (ولے چه) په تحقیق سره تهٔ ډیر بخښونکے راو) بیا بیا رحم کوونکے یئے۔

رَبَّنَآ اِنِّيْٓ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ
زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ ۙ رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ
فَاجْعَلْ اَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ
وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ ﴿٣٧﴾

یَه څمونږه ربه! ما خپل اولاد کښے څنے ستا دَ دے عزت ناک کور سره په یوه وادئ کښے چه پکښے هیڅ قسم پیداوار نشته، ډیره کړی دی۔ یَه څماربه! رما دا ځکه کړی دی) چه هغوی په ښه شان نمونځونه اوکړی بیا تهٔ دَ خلقو زړونه دَ دوئ خوا ته راواړوه او دوی له دَ مختلفو میوُنه رزق ورکړه ځکه چه هغوی رتل ترتله ستا) شکر کیا وی کوی۔

رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ ۗ وَمَا يَخْفٰى
عَلَى اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ﴿٣٨﴾

یَه څمونږه ربه! څهٔ چه مونږ پټوو او څهٔ چه ښکاره کوُو په تحقیق سره تهٔ هغه ټولو نه خبره یئے او دَ الله رتعالیٰ) نه څه څیز نهٔ په زمکه کښے پټ پاتے کیدے شی او نه آسمان کښے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَی الْکِبَرِ اِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ ؕ اِنَّ رَبِّیْ لَسَمِیْعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۹﴾

دَهر (قسم) تعریف هُم (الله (تعالیٰ) خق لری چا چه سره (ځما) دَ بوډهـاتوبه ماته (دوه ځامن) اسمائیل او اسحاق راکړی دی - ځمارب (دیرے) دُعا کانے اوریدُنکے دے -

رَبِّ اجْعَلْنِیْ مُقِیْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّیَّتِیْ ﴿ۖ﴾ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ﴿۴۰﴾

(یَه) ځمار به ! ما اوځما اولاد په ښه طریقه نمونځ کوونکے جوړکړه - (یَه) ځمونږه ربه ! (په مونږ فضل اوکړه) اوځما دُعا قبوله کړه -

رَبَّنَا اغْفِرْ لِیْ وَلِوَالِدَیَّ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ یَوْمَ یَقُوْمُ الْحِسَابُ ﴿۴۱﴾

(بیا) ځمونږه ربه ! دَ حساب (کتاب) په ورځ ماله اوځما مور او پلار او ټولو مومنان او بخښه -

ع

وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا یَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ ؕ اِنَّمَا یُؤَخِّرُهُمْ لِیَوْمٍ تَشْخَصُ فِیْهِ الْاَبْصَارُ ﴿۴۲﴾

او (یَه اوریدونکیه !) دا ظالمان (دَ مکے اوسیدُونکی) چه څه کیا دی کوی - دے نه ته الله (تعالیٰ) هیڅکله بے خبره مهٔ گڼړه - هغه هغوئ له بس تر هغے ورځے مولت ورکوی کومه ورځ به چه (دَ هغوئ) سترگے دَ (حیرانتیا نه) بکے پاتے شی -

مُهْطِعِیْنَ مُقْنِعِیْ رُءُوْسِهِمْ لَا یَرْتَدُّ اِلَیْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ ﴿ؕ۴۳﴾

(هغوئ) خپل سرُونه اوچت نیولی دَ ویرے نه به منډے وهی (او) دَ هغوئ نظر به واپس نه رازی او دَ هغوئ زړونه به (دَ اُمیدونو نه) خالی وی -

وَاَنْذِرِ النَّاسَ یَوْمَ یَاْتِیْهِمُ الْعَذَابُ فَیَقُوْلُ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا رَبَّنَاۤ اَخِّرْنَاۤ اِلٰۤی اَجَلٍ قَرِیْبٍ ۙ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ؕ اَوَلَمْ تَكُوْنُوْۤا اَقْسَمْتُمْ مِّنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ ﴿ۙ۴۴﴾

او ته هغه خلق دَ هغے ورځے نه اوبروه هرکله به چه په هغوی هغه عذاب راشی (دَ کوم چه وعده شوے ده) کوم خلقو چه ظلم کړے وی (هغه وخت به) وائی (چه یَه) ځمونږه ربه ! ځمونږه معامله چرته (ربل) نږدے وخته پورے روستو کړه مونږ به ستانه راغلے دعوت قبول کړو او (ستا) رسُولانو پسے به زُو (په دے به هغوئ ته جواب ورکړے شی آیا اوس هُم لا په تاسو حُجّت پوره شوے نه دے ؟) او آیا تاسو

اول قسم (په قسم) نهٔ وه خوړلے چه ستاسو هیڅ زوال نشته -

وَّسَكَنْتُمْ فِيْ مَسٰكِنِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْاَمْثَالَ ۝

حقیقت دا چه تاسو دَ هغو خلقو کورونه خپل کورونه جوړ کړی دی چا چه (تاسونه آګاهو) په خپلو ځانونو ظلم کړے وُو او تاسو ته دا خبره په ډاګه شوے ده چه هغوی سره مونږ څه سلوک کړے وه او مونږ ستاسو دَ پاره صفا بیان کړی دی -

وَقَدْ مَكَرُوْا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللّٰهِ مَكْرُهُمْ وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُوْلَ مِنْهُ الْجِبَالُ ۝

او دوی (خلق) خپل (هر لو) تدبیر آزمائیلے دے او دَ هغوی (هر) تدبیر الله (تعالیٰ) سره (محفوظ) دے او هر څوکه دَ هغوی تدبیر داسے وی چه په نتیجه کښے ئے غرُونه (هُم دَ خپله ځایه) اوخوزی (دوئ به ستا هیڅ نقصان اونکړے شی) -

فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ۝

بیا (ے اوریدُونکیه !) تهٔ هیچرے الله (تعالیٰ) خپلو رسولانو سره دَ وعدے خلاف (معامله) کوُونکے مهٔ ګڼره - الله (تعالیٰ) په تحقیق سره غالب (او دَ بدو کارو لو) سزا ورکوُونکے دے -

يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ۝

(او هغه ورځ خامخا راتلُونکے ده) کله به چه دَ زمکے او آسمانونو په ځائے نوره زمکه او آسمانونه جوړ کړے شی - او دوئ (خلق) به الله (تعالیٰ) ته وړاندے وی چه واحد (او په هر یو څیز) پوره غلبه لرُونکے دے -

وَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ ۝

او هغه ورځ به تهٔ مجرمان په زنځیرونو کښے تړلی وینے -

سَرَابِيْلُهُمْ مِّنْ قَطِرَانٍ وَّتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُ ۝

دَ هغوئ کُرتے (به تله چه) دَ تارکولو نه جوړے شوے (ځکے تورے) وی او دَ دوزخ اور به دَ

هغوئ مخونه پټوی۔

لِيَجْزِيَ اللّٰهُ كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾

(دا به ځکه وی) چه الله (تعالیٰ) هر چاله ځنهٔ چه هغه (خپل ځان له) کړی وی دَ هغې بدله ورکوی۔ الله (تعالیٰ) په تحقیق سره ډیر زر حساب اخستونکے دے۔

هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٥٢﴾ ع

دا (ذکر) دَ خلقو (دَ نصیحت اخستو) دَ پاره بس دے او دے خبرے دَ پاره (هُم) چه هغوی (ته دَ راتلونکی عذاب نه په پوره ډول) هوښیار کړے او دے دَ پاره (هُم) چه هغوئ ته معلومه شی چه (هُم) الله (تعالیٰ) بس یوازے یو حقیقی معبود دے او دے دَ پاره (هُم) چه دَ عقل خاوندان نصیحت واخلی۔

## سُوْرَةُ الْحِجْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ مِائَةُ اٰيَةٍ وَّسِتَّةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة الحجر - دا سورة مکی دے او لبسم سره دَ دے لبسم الله سره یو سل آیتونه او شپږ رکوع دی-

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۱

رشروکوم ) په نامه دَ خدائے چه بے کچه مهربانه او
بیا بیا رحم کوونکے دے-

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ وَ قُرْاٰنٍ مُّبِيْنٍ ۲

زهٔ الله کتونکے یم - دا ر دَ دیو ) کامل کتاب او ر خپل
مطلوبونو له ) دَ واضح کوونکی قرآن آیتونه دی-

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ۳

کوم خلقو چه ر دَ دے ) انکار کړے دے هغوئ ډیر
ځله غواړی چه څنګه به ښهٔ وے چه هغوی ر هُم
دَ دے ) حکم منونکی وے-

ذَرْهُمْ يَاْكُلُوْا وَ يَتَمَتَّعُوْا وَ يُلْهِهِمُ الْاَمَلُ فَسَوْفَ
يَعْلَمُوْنَ ۴

ته هغوئ دَ خوړلو څکلو او دَ څه وخت د پاره دَ
سامانونو نه فائده اخستو کښے اخته پریږده- او
ر هغوئ پریږده چه دَ هغوئ دَ دروغو ) اُمیدونه
هغوئ غافل ساتی - ولے چه هغوئ په زر ر حقیقت ) معلوم کړی-

وَ مَاۤ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا وَ لَهَا كِتَابٌ مَّعْلُوْمٌ ۵

او مونږ هیڅ کله یوه نړئ بے دَ دے چه دَ هغے
پخقله ر آکا هُونه ) یوه معلومه فیصله شوی وی
هلاکه کړے نهٔ ده-

مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَ مَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ۶

هیڅ یو قام دَ خپل ر هلاکت ) دَ میادنه تیښته نشی کولے
او نهٔ روستو پاتے کیدے شی-

وَ قَالُوْا يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْ نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ اِنَّكَ لَمَجْنُوْنٌ ۷

او هغوئ ر په ډیر زور ) او وئیل ر چه ) یَه هغه سړیه په
چا چه دا ذکر نازل شوے دے ته په تحقیق سره لیونئے-

لَوْ مَا تَاْتِيْنَا بِالْمَلٰٓئِكَةِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۸

او که ته رښتنئ یئے - نو ولے فرښتے مونږ له نهٔ راولے-

مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ مَا كَانُوْۤا
اِذًا مُّنْظَرِيْنَ ۹

ر آیا هغوی ته معلومه نهٔ ده چه ) مونږ ر کله هُم ) فرښتے
ر را کوزوُ نو ) دَ حقو مطابق راکوزو او ر هرکله چه
هغوئ دَ کافرانو دَ پاره راکوزو نو ) هغه وخت هغوی له

(یعنی کافرانو له پوتې قدرے هُم) مولت نشی ورکیدے۔

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ⑨

دا ذکر (یعنی قرآن) مونږه نازل کړے دے او په تحقیق سره هُم مونږه به یې حفاظت کوُو۔

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ⑩

او مونږه دَ وړاندے (زمانے) دَ خلقو سلسلو کښے (هُم) تا نه آګاهُو رسُولان استولی وُو۔

وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ⑪

او کوم رُسول به چه هغوئ له راتلو هغوی به هغهٔ پورے خندا کوله۔

كَذَٰلِكَ نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ⑫

دا شان مونږ دا (دَ خندا کولو عادت) دَ مجرمانو په زړونو کښے ورځائے کړو۔

لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ ⑬

دوئ (خلق) په دے قرآن ایمان نهٔ راوړی سره دَ دے چه دَ ړُومبنو (ریچقله دَ الله) سُنت تیر شوے دے۔

وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَظَلُّوا فِيهِ يَعْرُجُونَ ⑭

او کچرے (فرض کوه) مونږ په هغوی (دَ معرفت څه آسمانی لاره پرانستے (هُم) وے او هغوی دے نه (فائده اوچتولو) سره په حقیقت پوهه شوے هُم وے۔

لَقَالُوا إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُورُونَ ⑮ ع

نو (ربیا به هُم) هغوئ (هُم دا) وئیلے (چه) څمونږ په سترګو هسے پرده اچوے شوے ده (ګنی نو حقیقت هیڅ نشته) بلکه په مونږه (خلقو څه) جادو شوے دے۔

وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَزَيَّنَّاهَا لِلنَّاظِرِينَ ⑯

او په تحقیق سره مونږ په آسمانونو کښے (دَ ستورو) ډیر ځنے منزلونه جوړ کړی دی او مونږه هغه دَ کتونکو دَ پاره ښائسته جوړ کړی دی۔

وَحَفِظْنَاهَا مِن كُلِّ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ⑰

او (ورسره) مونږه هغه دَ هر لوسرکش (راو) رټلی شوی (وجود دَ اختیار) نه محفوظ کړی دی۔

إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُّبِينٌ ⑱

وے کوُم سړے چه په غلا دَ (الٰهی وحی) څه خبره واوری (او هغه په بل رنګ خوره کړی) نو هغه پسے به یوه روښانه شغله ورپیښوے شی۔

وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُوْنٍ ۲۰

او مونږه زمکه خوره کړې ده او دې کښې مونږ محکم غرونه اودرولی دی او (ورسره) مونږ دې کښې هر قسم د کار څیزونه (پیدا کړی او) لوئے کړی دی۔

وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ بِرٰزِقِيْنَ ۲۱

او دے کښې مونږ تاسو د پاره او (هر) هغه (مخلوق) د پاره چاله چه تاسو رزق نهٔ ورکوئ د معیشت سامانونه پیدا کړی دی۔

وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ۲۲

او هیڅ یو څیز داسے نشته دے چه د هغے (بے انتها) خزانے مونږ سره نه وی ولے مونږ هغه په یوه معلومه اندازه راکوزو۔

وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِيْنَ ۲۳

او مونږه (د بخارا تو) او چنتو ونکے هوا گانے (هُم) پریښے دی۔ او (د دغو په ذریعه) مونږه د وریځو نه اوبه راکوزے کړے دی۔ بیا هغه مونږ په تاسو څکولی دی او تاسو هغه محفوظ نشئ ساتلے (ولے دا شان مونږه دا محفوظے کړی دی)۔

وَاِنَّا لَنَحْنُ نُحْيٖ وَنُمِيْتُ وَنَحْنُ الْوٰرِثُوْنَ ۲۴

او په تحقیق سره مونږه ژوندی کول او وژل کوُو او هُم مونږ (د ټولو) وارث یوُ۔

وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَاْخِرِيْنَ ۲۵

او مونږ تاسو کښے وړاندے وتونکی (هُم) پیژنو او (دا شان) مونږ (تاسو کښے روستو پاتے کیدُونکی (هُم) پیژنو۔

وَاِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ۲۶ ع ۲

او په تحقیق سره هم ستا رب به هغوی یو ځائے کوی هغه د حکمتونو خاوند (او) ډیر خبردار دے۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ۲۷

او انسان مونږ د کړنګیدلے خاورے نه چه شکل ئے بدل شوے وُه جوړ کړے دے۔

وَالْجَآنَّ خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ۲۸

او (د دے نه) اگاهو جنات هُم مونږ د ډیرے ګرمے هوا (د قسم) د اور نه پیدا کړی وُو۔

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ۝٢٨

او (يه دَ دے كلام اوريدُونكيه هغه وخت را يادكړه) هركله چه ستا رب فرښتو ته وئيلي وُو (چه) زهٔ آواز وركوُونكے خټه يعنى تورے خټے نه چه شكل ئے بدل شوے وى يو بشر پيدا كوُونكے يم۔

فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ۝٢٩

بيا هركله چه زه هغه جوړ كړم او دَ هغهٔ (په زړه) كښے خپل كلام پُوک وهم نو تاسو ټول هغهٔ سره (الله تعالىٰ ته) په سجده پريوزئ۔

فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ۝٣٠

دا سے ټولو فرښتو (هغهٔ سره خدائے تعالىٰ ته) سجدهٔ اوكړه۔

إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ۝٣١

سوا دَ ابليس نه (چه) هغهٔ (خدائے ته خالص) سجده كوُونكو سره سجده كولو نه انكار اوكړو۔

قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ۝٣٢

(په دے خدائے) اوفرمائيل (چه) اے ابليس! دا په تا څه اوشول چه تهٔ (خالص دَ هغهٔ وړاندے) سجده كوُونكو سره نه كيږے۔

قَالَ لَمْ أَكُن لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُۥ مِن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ۝٣٣

هغهٔ اووئيل زهٔ دا سے نه يم چه دَ يو دا سے بشر په طريقه حُكم اومنم كوم چه تا آواز وركوُونكے خاورے يعنى دا سے تورے خټے نه چه شكل ئے بدل شوے وه پيدا كړے دے۔

قَالَ فَٱخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ۝٣٤

وے فرمائيل (كچرے ستا دا خيال دے) نو تهٔ دَ دے (ځائے) نه اوزه وے چه په تحقيق سره ته رټلے شوے ئے۔

وَإِنَّ عَلَيْكَ ٱللَّعْنَةَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلدِّينِ ۝٣٥

(او يادلره چه) دَ جزا (او سزا) ورځے پورے به په (تا رځما) لعنت وريږى۔

قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِىٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ۝٣٦

هغهٔ اووئيل (چه) يه خُما ربّ (كه تهٔ مخے سره ماله سزا نهٔ راكوے نو) تهٔ ماله دَ هغوى (دَ بيا اوچتولو ورځے پورے مولت راكړه۔

قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِينَ ۝۳۸

وے فرمائیل ته به دَ مولت مونډونکو نه یې۔

إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ۝۳۹

هغه معلوم وخت ته پورے رچه ذکرئے پورته شوے دے۔

قَالَ رَبِّ بِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ
وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝۴۰

هغهٔ اوویل رچه) ربه ځما د به هرکله چه تا زهٔ بے لارے ګرزولے یم زه به خامخا هغوئ دَ پاره دنیا کښے (ګمراهی) خائسته ورښایم او هغوی ټول به بے لارے کوم۔

إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ۝۴۱

وے چه کوم ستا نازولی بندیان دی (او چه ځما په فریب کښے نشی راتلے هغوی به بچ شی)۔

قَالَ هَٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ۝۴۲

بیائے اوفرمائیل (چه) ما ته دَ را تلو هُم دا نیغه لار ده۔

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ
اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ ۝۴۳

څوک چه ځما بندیان دی هغوی باندے به ستا هیڅ وس نه وی۔ هن (دا سے کسان چه تا پسے روان اوسی یعنی خپله بے لارے وی (هغوی دے کښے نه راځی)۔

وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ۝۴۴

او په تحقیق سره جهنم هغوی ټولو (دَ پاره) دَ وعدے ځائے دے۔

لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ لِكُلِّ بَابٍ مِنْهُمْ جُزْءٌ مَقْسُومٌ ۝۴۵ ع ۳ ۱۹ ۲

دَ دے اوهٔ دروازے دی (او دَ دے) هرے دروازے دَ پاره به هغوی (یعنی کنارو) کښے یوه معلومه برخه وی۔

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ۝۴۶

تقوی لرونکی (خلق) به په تحقیق سره باغونو او دَ چینو (ځایونو کښے وی)۔

ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ آمِنِينَ ۝۴۷

(هغوی ته به اوویلے شی چه) تاسو روغ رمټ او بے ویرے (ترحے) هغو کښے داخل شئ۔

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَىٰ
سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ ۝۴۸

او دَ هغوی په زړونو کښے به چه څه هُم کینه وی هغه به مونږ اوباسو۔ هغوی به لکه دَ رونړو (جنت کښے اوسیګی او) تختونو باندے به یو بل ته مخامخ (ناست) دی۔

لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُمْ مِنْهَا بِمُخْرَجِينَ ۝۴۹

نهٔ به هغوی هغے کښے ستوماتی محسوسوی او نهٔ به هغو

نه هغوی چړے او با سلے شی۔

نَبِّئْ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ۝٥٠
په پیغامبره! ځما بندیان خبر کړه چه زهٔ ډیر زیات بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے یم۔

وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ ۝٥١
(دا) چه ځما عذاب په حقیقت کښے (دردناک وی) دے۔

وَنَبِّئْهُمْ عَن ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ ۝٥٢
او هغوی ته د ابراهیمؑ د میلمنو پحقله (هم) خبر کړه۔

إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا قَالَ إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ ۝٥٣
هر کله چه هغوی هغهٔ له راغلل اووے وئیل (چه مونږ تا سو ته) سلام کوو۔ نو هغهٔ اووئیل (چه) مونږ خو ستاسو (د راتلو) په سوب یریګو۔

قَالُوا لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ ۝٥٤
هغوی اووئیل (چه) ته ډیره مهٔ کوه۔ مونږ تا ته د یو ډیر علم موندونکی ځوئ زیرے درکوو۔

قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِي عَلَىٰٓ أَن مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُونَ ۝٥٥
هغهٔ اووئیل (چه) آیا تا سو سره ځما د بوډاتوب ما ته دا زیرے راکړے دے بیا اووائی (چه) په کوم بنیاد تا سو ما ته (دا) زیرے راکوئ۔

قَالُوا بَشَّرْنَاكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُن مِّنَ الْقَانِطِينَ ۝٥٦
هغوئ اووئیل (چه) مونږ تا ته رښتونے زیرے درکړے دے بیا ته مهٔ نا اُمیده کیګه۔

قَالَ وَمَن يَقْنَطُ مِن رَّحْمَةِ رَبِّهِۦٓ إِلَّا الضَّآلُّونَ ۝٥٧
هغهٔ اووئیل (چه زهٔ څنګه نا اُمید کیدے شم) او د بے لارے خلقو نه سوا د رب د رحمت نه څوک نا اُمیده کیګی۔

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا الْمُرْسَلُونَ ۝٥٨
(بیائے) اووئیل (چه بنه ده) نو اے (د خدائے استازو رهغه) ستاسو ضروری کار څهٔ دے؟ (چه د هغے د پاره تاسو را لیږلی شوی یئ)۔

قَالُوٓا إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ۝٥٩
هغوئ اووئیل (چه) مونږ یو مجرم قام ته (د هغوی د پاره) را لیږلی شوی یو۔

إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ ۝٦٠
سوا د لوطؑ منونکو نه (چه) هغوئ ټول به مونږ بچ کړو۔

إِلَّا امْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَآ إِنَّهَا لَمِنَ الْغَابِرِينَ ۝٦١
ع
هن د هغهٔ د ښځے پحقله ځمونږ اندازه ده چه هغه

به روستو پاتے کیدُونکو او (هلاکیدُونکو) کښے وی۔

فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوۡطِ ۨالۡمُرۡسَلُوۡنَ ﴿۶۲﴾

بیا هرکله چه هغوی (یعنی ځمونږه استاذی) لوطؑ او دَ هغهٔ (منُونکو) له راغلل۔

قَالَ اِنَّكُمۡ قَوۡمٌ مُّنۡكَرُوۡنَ ﴿۶۳﴾

نو هغهٔ (هغوئ) ته او وئیل (چه) تاسو (دے علاقه کښے) نا آشنا (معلومیږئ)۔

قَالُوۡا بَلۡ جِئۡنٰكَ بِمَا كَانُوۡا فِيۡهِ يَمۡتَرُوۡنَ ﴿۶۴﴾

هغوی او وئیل (اصل) خبره دا ده چه مونږ تاسو له دَ هغے (عذاب) خبر راوړے دے چه دَ څهٔ په حقله دوئ (خلق) ګیادی شک کوی۔

وَاٰتَيۡنٰكَ بِالۡحَـقِّ وَاِنَّا لَصٰدِقُوۡنَ ﴿۶۵﴾

او مونږ تاسو له یقینی خبر راوړے دے او مونږ رښتُونی یُو۔

فَاَسۡرِ بِاَهۡلِكَ بِقِطۡعٍ مِّنَ الَّيۡلِ وَاتَّبِعۡ اَدۡبَارَهُمۡ وَلَا يَلۡتَفِتۡ مِنۡكُمۡ اَحَدٌ وَّامۡضُوۡا حَيۡثُ تُؤۡمَرُوۡنَ ﴿۶۶﴾

بیا نو تاسو دَ شپے آخری برخه کښے (څه وخت) دَ خپل کورخلقو سره (دے ځائے نه) اُوزئ او (خپله) هغوی پسے (روستو روستو) زئ۔ او تاسو کښے دِ هیڅوک په شا اونهٔ ګوری او چرته دَ تلو چه تاسو ته حُکم درکیدے شی (نو هلته لاړ شئ)۔

وَقَضَيۡنَاۤ اِلَيۡهِ ذٰلِكَ الۡاَمۡرَ اَنَّ دَابِرَ هٰٓؤُلَاۤءِ مَقۡطُوۡعٌ مُّصۡبِحِيۡنَ ﴿۶۷﴾

او دا خبره مونږه هغوی ته په یقینی ډول اوښودله چه دَ هغوی (خلقو) جړه به صبا (کیدو سره) پریکړے شی۔

وَجَآءَ اَهۡلُ الۡمَدِيۡنَةِ يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ ﴿۶۸﴾

او دَ هغه ښار خلق په خوشحالو هغهٔ (یعنی لوطؑ) له راغلل (په دے خیال چه اوس دَ هغهٔ دَ نیولو موقعه په لاس راغلے ده)۔

قَالَ اِنَّ هٰٓؤُلَاۤءِ ضَيۡفِىۡ فَلَا تَفۡضَحُوۡنِ ﴿۶۹﴾

(په دے) هغهٔ (هغوی ته) او وئیل (چه) دا خلق ځما میلمانهٔ دی۔ تاسو (دَ هغوئ په ویړولو) ما مهٔ رُسوا کوئ۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخۡزُوۡنِ ﴿۷۰﴾

او دَ الله (تعالیٰ) تقویٰ او کړئ او ما مهٔ ذلیل کوئ۔

قَالُوۡۤا اَوَلَمۡ نَنۡهَكَ عَنِ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۷۱﴾

هغوی او وئیل آیا مونږ تهٔ دَ اخوا دیخوا (راغلیاؤ) خپل

ځان سره دَالبسارولو نه منع کړے نه وے؟

قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِیٓ اِنۡ کُنۡتُمۡ فٰعِلِیۡنَ (٧١)

هغهٔ اووئیل رچه) کچرے تاسو رځما خلاف) څه کول
غواړئ نو دا ځما لونړه رتاسو کښے دَکافی ضمانت په طور
دی)۔

لَعَمۡرُكَ اِنَّهُمۡ لَفِیۡ سَکۡرَتِهِمۡ یَعۡمَهُوۡنَ (٧٢)

رَیه ځمونږ نبیؐ!) قسم دے ستا په ژوند رچه) دا
رستا مخالفین هُم) په تحقیق سره رَدَ هغوئ په شان)
خپلے بد مستئ کښے تکیا دی اُوسی۔

فَاَخَذَتۡهُمُ الصَّیۡحَةُ مُشۡرِقِیۡنَ (٧٣)

په دے هغه (موعود) عذاب هغوی رلیعنی دَلوطؑ قام)
دَسحر رنړا خوریدو سره اونیول۔

فَجَعَلۡنَا عَالِیَهَا سَافِلَهَا وَاَمۡطَرۡنَا عَلَیۡهِمۡ حِجَارَةً مِّنۡ سِجِّیۡلٍ (٧٤)

دا شان مونږ دَ هغه کلی پورتنے مخ لاندینے مخ کړو
او په هغوی مو دَ کنکرونه دَجوړو کا نړو باران اوورولو۔

اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّلۡمُتَوَسِّمِیۡنَ (٧٥)

دے ربیان) کښے دَفراست نه کار آخستُونکو دَ پاره په
تحقیق سره ډیر نښانات دی۔

وَاِنَّهَا لَبِسَبِیۡلٍ مُّقِیۡمٍ (٧٦)

او هغه رځه کمنام ځائے نه دے بلکه) په یوه لویهٔ مستعمله
لاره رپروت) دے۔

اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّلۡمُؤۡمِنِیۡنَ (٧٧)

دے رواقعه) کښے دَمومنانو دَ فائدے دَ پاره په تحقیق
سره یو نښان دے۔

وَاِنۡ کَانَ اَصۡحٰبُ الۡاَیۡکَةِ لَظٰلِمِیۡنَ (٧٨)

او دَا یکے اوسیدُونکی رهُم) په تحقیق سره ظالمان وُو۔

فَانۡتَقَمۡنَا مِنۡهُمۡ وَاِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِیۡنٍ (٧٩)

ع ٥ ١٩

دے دَ پاره مونږ هغوی له هُم ردا شان سخته) سزا
ورکړے وه او دا دواړه رځایونه) په یوه رصفا او)
ښکاره لار بانده رپراته) دی۔

وَلَقَدۡ کَذَّبَ اَصۡحٰبُ الۡحِجۡرِ الۡمُرۡسَلِیۡنَ (٨٠)

دَحجر اوسیدُونکو رهُم) په تحقیق سره رځمونږ) دَ
پیغامبرانو انکار کړے وُه۔

وَاٰتَیۡنٰهُمۡ اٰیٰتِنَا فَکَانُوۡا عَنۡهَا مُعۡرِضِیۡنَ (٨١)

او هغوی ته رهُم) مونږ خپل رهرقسم) نښانات ورکړی
وُو چه نتیجه ئے رایُوته) دا اووته چه هغوی رهغو

(نښانانو) نه مخ واړولو۔

وَكَانُوا يَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا آمِنِينَ ﴿٨٢﴾

او هغوی به د غرونو لعضې حصې پریکولې او ترِنه به ئې کورونه جوړول۔

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴿٨٣﴾

او (د وعدې مطابق) سحر کيدو سره هغې (موعود) عذاب هغوئ اونیول۔

فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾

او چه څه (مالونه) هغوی جمع کول هغې (مغه وخت) هغوی له هیڅ فائده ورنکړه۔

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ ۖ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ ﴿٨٥﴾

او مونږ آسمانونه او زمکه حق (او حکمت) سره پیدا کړی دی او هغه (مقرر کړے شوے) وخت په تحقیق سره راتلونکے دے۔ دے د پاره ته (د هغوی په زیاتو) ډیر د معافئ نه کار اخله۔

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ ﴿٨٦﴾

په تحقیق سره ستا رب ډیر پیدا کوونکے (او) ښهٔ علم لرونکے دے۔

وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ ﴿٨٧﴾

او په تحقیق سره مونږ تا ته اووه بیا بیا بیانوونکی (آیتونه) او (ډیر لوئې) عظمت لرونکے قرآن درکړے دے۔

لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾

او دا مونږ چه هغوی (کښې څنې خلقو) له (د کټې عارضی) سامان ورکړے دے هغې ته په برندو برندو سترګو مهٔ ګوره او د هغوی (د تباهئ) غم مهٔ خوره او په مومنانو (د مینې) خپل لاسونه خوروه۔

وَقُلْ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْمُبِينُ ﴿٨٩﴾

كَمَا أَنزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ ﴿٩٠﴾

ته اووایه چه زهٔ یو په ښکاره خبرداری ورکوونکے یم۔ دے د پاره چه (خدائے وائی چه) مونږ دوئ (خلقو) د پاره (هُم) عذاب مقرر کړے دے چاچه د رسولِ کریمؐ خلاف منصوبو کښې خپل خپل فرائض تقسیم کړی دی۔

الَّذِينَ جَعَلُوا الْقُرْآنَ عِضِينَ ﴿٩١﴾

هغه (خلق) چا چه قرآن د دروغو د خبرو لوه ګنړه کړے دے۔

فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٩٣﴾

بيا نو ستا په رب دِ قسم وي ! مونږ به دے ټولو نه تپوس کوُو۔

عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٤﴾

دَ هغو کارونو پخقله چه هغوئ کول۔

فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٩٥﴾

بيا چه دَ کومے خبرے (دَ رسُولو) تا ته حکم درکيګی هغه په ډاګه (خلقو) ته وايه او دَ دے مشرکانو (دَ خبرے) نه ډډه کوه۔

اِنَّا كَفَيْنٰكَ الْمُسْتَهْزِءِيْنَ ﴿٩٦﴾

مونږ په تحقيق سره تا دَ دے خند اکوُونکو (دَ شر) نه محفوظ ساتو۔

الَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۚ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٩٧﴾

چه دَ الله سره نور ځنے معبودان جوړه وي بيا نو هغوی به ډير زر (دَ دے په نتيجه) پوه شي۔

وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُوْلُوْنَ ﴿٩٨﴾

او مونږ په يقيني ډول پوهيګو چه څه هغوی وائي په هغے ستا زړه خفه کيګی۔

فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٩٩﴾

بيا ته دَ خپل رب تعريف سره (دَ هغه ثناء) بيانوه او (دَ هغهٔ) کامل حکم منُونکو نه شه۔

وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ﴿١٠٠﴾

او دَ خپل رب عبادت کوه تر هغے چه په تا (روخت دَ) مرګ راشي۔




سورة النحل - دا سورة مكي دے او بسم الله سره دَ دے يو سل يو كم ديرش [۱۲۹] آيتونه او شپاړلس [۱۶] ركوع دي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروكوم) په نامه دَ هغه خدائے چه بے كچه مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے.

اَتٰۤى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ②

(په منكرو!) دَ الله حُكم بس را تلونكے دے - دے دَ پاره تاسو دَ دے دَ زر را تلو مطالبه مه كوي - هغه پاك (ذات) دے او چه كوم خبرے هغوى (كافران) دَ شرك پخقله كوى هغه دَ هغو نه ډير اوچت دے.

يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖۤ اَنْ اَنْذِرُوْۤا اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنَا فَاتَّقُوْنِ ③

هغه فرښتے په خپلو بنديانو كښے چاله چه هغه خوښوى په خپل حُكم كلام سره را كوزوى (او رسولانو ته وائى) چه (خلق) خبردار كړه چه خبره هُم دا صحي ده چه ځما نه سوا هيڅوك هُم (په رښتيا) دَ عبادت لائق نشته دے دَ پاره تاسو (دَ مصيبتونو نه) دَ خپل ځان دَ بچ كولو دَ پاره هُم ما وسيله كړئ.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ④

هغهٔ زمكے او آسمانونه حق (او حكمت سره) پيدا كړى دى (او) دَ هغوئ دَ شرك دَ خيالاتو نه هغه ډير اوچت دے.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ⑤

هغه انسان دَ يوے (ډيرے معمولى) نُطفے نه پيدا كړے دے بيا هغه (خپل ځان دومره اوچت حسابوى چه ځمونږ پخقله په ښكاره ښكاره جهګړه مار جوړيګى.

وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا ۚ لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ⑥

بله دا چه څاروى (الله پيدا كړى دى او هغوى) ئے دا سے جوړ كړى دى چه دوئ كښے ستاسو دَ پاره دَ ګرمئ سامان دے او نورے هُم ډيرے ګټے دى او تاسو دَ هغوئ (دَ غوښے) څه برخه خورئ.

وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ ٧

او دے نه علاوه هرکله چه تاسو هغوی د څرولو نه (پس ماښام رهغوی د اودرولو ځایونو ته) واپس راولئ نو دے کښے د یو قسم ښائیست سامان وی. دا شان هغه وخت هرکله چه تاسو هغوئ (سحر) څرولو د پاره (پراښتی) پریږدئ (نو دے کښے هُم ستاسو د پاره د ښائیست او د لوئی سامان وی).

وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ ۚ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ٨

او هغوی ستاسو پیټی او چتوی او هغه (لرے) ښار پورے هُم اوړی کوم ځائے ته چه تاسو بے د تکلیف اوچتولو نه نشئ اوړلے. په تحقیق سره ستاسو رب (چه تاسو) دیر شفقت کوونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ۚ وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ٩

او هغهٔ آسونه، کچرے او خرونه (هُم) ستاسو د سورلئ د پاره (او ورسره) د زینت (او شان) د پاره (پیدا کړی دی) او (بیا به هُم) هغه (ستاسو د پاره د سورلئ نور سامان) چه هغه تاسو (اوس) نه پیژنئ پیدا کوی.

وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ ۚ وَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ١٠ ع

او (تاسو ته) د دین نیغه لار ښودل (هُم) د الله په ذمه دی او د دے حاجت (ددے د پاره دے چه) هغو (یعنی د دین لارو) کښے څنے کږے (دی) دی. ولے کچرے هغه (الله) خپله رضا کوے نو تاسو ټولو ته به ئے (هدایت) سمه لار ښودلے وے.

هُوَ الَّذِي أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ۖ لَّكُم مِّنْهُ شَرَابٌ وَمِنْهُ شَجَرٌ فِيهِ تُسِيمُونَ ١١

(الله) هُم هغه ذات دے چه ورېځو نه اوبه راکوزے کړی دی. دے کښے ستاسو د څکلو (اوبه) دی او دے سره هغه ونے (هُم) وده کوی کوم کښے چه تاسو څاروی څروئ.

يُنبِتُ لَكُم بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ وَالنَّخِيلَ وَالْأَعْنَابَ

هغه د دے په ذریعه تاسو د پاره پټی، زیتون او

وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝۱۱

د کهجورے ونے او انګوران او (نور) هر قسم میوے پیدا کوی - هغه خلقو د پاره چه د غور وفکر نه کار اخلی په تحقیق سره دے کښے یو (ښکاره) نښان (موندے شی) دے -

وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۭ وَالنُّجُوْمُ مُسَخَّرٰتٌۢ بِاَمْرِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝۱۲

او هغه شپه او ورځ، نمر او سپوږمئی ستاسو په خدمت لګولی دی او (نور) ټول ستوری (او سیارے هُم) د هغهٔ په حُکم (ستاسو) په خدمت مقرر دی - کوم خلق چه عقل نه کار اخلی هغوئ د پاره په تحقیق سره دے کښے ډیر نښانات (موندے شی) دی -

وَمَا ذَرَاَ لَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ۝۱۳

او کوم مختلف قسمه څیزونه چه هغوی تاسو د پاره زمکه کښے پیدا کړی دی (هغه ټول ستاسو پکار رازی) د دے (څیزونو په پیدا وښت) کښے (هُم) هغه خلقو د پاره چه نصیحت آخلی په تحقیق سره یو نښان (موندے شی) دے -

وَهُوَ الَّذِيْ سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝۱۴

هغه سمندر (هُم ستاسو) په خدمت لګولے دے - دے د پاره چه تاسو دے نه (د کب یا ماهی) تازه غوښه اخورئ - او دے نه زیورات (کالی) او باسئ - کوم چه تاسو (خلق) د اچولو پکار راولئ او (ئیه د دے کلام اوریدونکیه) نهٔ دے کښے کشتئ او بو کښے په څیرولو راو په تیره په تلو) وینئ (چه دے د پاره زئ چه تاسو سمندری سفر اوکړئ) او د دے د پاره چه تاسو د هغهٔ بعضے نور فضلونه (هُم) اولټوئ - ځکه چه تاسو د هغه شکر اوکړئ -

وَاَلْقٰى فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَاَنْهٰرًا وَّسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ۝۱۵

او هغهٔ په زمکه کښے (مُحکم) غرونه جوړ کړی دی په دے سوب چه چرته هغه (په حرکت کولو) تاسو

چکر کښے وانهٔ چوی۔ (او هغهٔ تاسو د پاره) ډیر دریابونه (روان کړی دی) او ډیرے ښخے د لارو) لارے (هم جوړے کړی) دی ځکه چه تاسو په آسانئ خپل منزلِ مقصود ته لاره مومئ۔

وَعَلٰمٰتٍ ۭ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ ۝۱۷

او (د دے نه علاوه هغه نور) ښخے علامات هُم (زاکم کړی دی) او د ستورو په ذریعه (هُم) هغوی (خلق) لاره مومی۔

اَفَمَنْ يَّخْلُقُ كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝۱۸

بیا (او خو وائی چه) آیا څوک چه پیدا کوی هغه د هغه چا په شان کیدے شی چه (څهٔ هُم) نهٔ پیدا کوی۔ آیا تاسو بیا (هُم) نه پوهیګئ۔

وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۱۹

او که چرے د الله احسانات شمیرل اوغواړئ نو کله به هُم تاسو دا په شمیر نکړے شئ) په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ۝۲۰

او څهٔ چه تاسو پټوئ او څه چه ښکاره کوی الله هغے (ټولو) نه خبر دے۔

وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ۝۲۱

او الله نه سوا چه د کوم (باطل معبودان) هغوی بلی هغوی هیڅ (هُم) نشی پیدا کولے او (دا پرے لا د پاسه چه) هغوئ خپله پیدا کړے شوی دی۔

اَمْوَاتٌ غَيْرُ اَحْيَاۗءٍ ۚ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ۙ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ۝۲۲ ع

هغوئ (ټول) مړهٔ دی نهٔ چه ژوندی او هغوئ (ته دا هُم) معلومه نه ده چه کله به (بیا) اوچتولے شی۔

اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ وَّهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ ۝۲۳

(بیا په ښه شان یاد ساتئ چه) ستاسو معبود هُم یو معبود دے او کوم خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی د هغوئ زړونه (د حق نه) ناآشنا دی او هغوئ د کبرنه کار اخلی۔

لَا جَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۭ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ۝۲۴

دا یقینی خبره ده چه څهٔ هغوئ په پټه کوی (هغه هُم) او څه چه هغوی په ښکاره کوی (هغه هُم) الله تعالیٰ ته

معلومه دی. هغه کبرجن هیڅکله نهٔ خوښوی.

وَإِذَا قِيلَ لَهُم مَّاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٤﴾

او هر کله چه هغوئ ته او ویلے شی (چه) هغه (کلام) چه ستاسو رب نازل کړے دے څومره (ښائسته دے) نو هغوی وائی چه دا (دَ خدائے کلام نه دے بلکه) دَ اولنو خلقو قصئ دی.

لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۙ وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ ﴿٢٥﴾ ع

(دَ دے دهوکے نتیجه به دا (راوزی چه) هغوی به دَ قیامت په ورځ خپل پیتی هُم پوره (پوره) او چتوی او دَ دغو جاهلانو پیتی هُم کوم چه هغوی بے لارے کوی. واورئ! کوم پیتی چه هغوی او چتوی هغه ډیر خراب دی.

قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُم مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾

کوم خلق چه دوی نه وړاندے وُو هغوی (هُم دَ خپلے خپلے زمانے دَ نبیانو خلاف) تد بیرونه کړی وُو چه دَ هغے په نتیجه کښے الله دَ هغوئ (دَ تد بیرونو) دَ عمارتونو بنیادونو نه (دَ هغوی دَ تباه کولو دَ پاره) راغے چه دَ هغے له کبله په هغوی دَ پاس نه راپریوتل (او دَ هغهٔ دا) عذاب په هغوی دَ هغے لارے نه راغے چه هغوی پرے خبر نه وُو.

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ ۚ قَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٢٧﴾

بیا بهٔ هغه هغوی له دَ قیامت په ورځ رسوا کوی او وائی به (چه اوس) کوم ځائے دی هغه ځما شریکان چه دَ چا له کبله تاسو (ځما دَ نبیانو سره) دښمنی لرله (او) چا ته چه علم ورکړے شوے وی هغوی به (هغه وخت) وائی چه نن په کافرانو په تحقیق سره رسوائی او مصیبت (راتلونکے) دے.

الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ ۖ فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ ۚ بَلَىٰ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ

(په دے کافرانو به) چه دَ چا روجونه به فرښتے (عن) هغه وخت چه هغوی په خپلو ځانونو ظُلم کیا وی کوی،

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۹﴾

او باسی۔ هغه وخت به هغوئ (د دا سے وائی) چه مونږه (خو) څهٔ (هُم) د بدئ کار نه کولو ربیا به هغوئ ته او ویلے شی چه دا سے نه ده بلکه د دے اپوته خبره ده یادساتئ څه چه تاسو کول الله ﷻ نه بنه خبر دے۔

فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۳۰﴾

دے د پاره (راوس) تاسو د جهنّم په دروازو کښے د تل تر تله استوګنے د پاره ورننه اوزئ وے چه د کبرجنو ځائے ډیر زیات خراب (روی) دے۔

وَقِيْلَ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا مَاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ۭ قَالُوْا خَيْرًا ۭ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۭ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ ۭ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۱﴾

او (هرکله چه) هغه خلقو نه چه د تقوئ (لار ربئے) نیوے ده او ویلے شول (چه) ستا سو د پاره څه شان (لږونکے کلام) راکوز شوے دے نو هغوی اوویل راو اوڅومره ښهٔ کلام دے) چا چه د نیکئ لار اونیوله د هغوی د پاره دے (دنیاوی ژوند) کښے (هُم) ښیګړه ده او د آخرت کور (خو هغوئ د پاره) به نور هُم ښهٔ دی او د تقوئ کوونکو کور په تحقیق سره ډیر ښه (روی) دے۔

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَاۗءُوْنَ ۭ كَذٰلِكَ يَجْزِي اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۲﴾

(هغه کور) د تل عُمری استوګنے باغونه (دی) چه هغوئ ته به هغوئ ورزی د هغو (باغونو) لاندے به نهرونه بهیګی، هغوی چه څه غواړی هغوی ته به رسی (یادساتئ) تقوئ کوونکو ته الله داشان بدله ورکوی۔

الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰۗىِٕكَةُ طَيِّبِيْنَ ۙ يَقُوْلُوْنَ سَلٰمٌ عَلَيْكُمُ ۙ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۳﴾

(هغه تقوئ کوونکی) چه د چا روحُونه به فرښتے دا سے حال کښے چه د هغوئ نفسونه به پاک وی (دا سے) ویبا سره آخلی چه (راوس) ستا سو د پاره (هُم سلامتی) سلامتی ده رزئ اوس د خپلو ښو) عملونو په بدل کښے تاسو جنت ته ورزئ۔

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰۗىِٕكَةُ اَوْ يَاْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ ۭ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ وَمَا ظَلَمَهُمُ

دوئ (کافران) د دے خبرے نه سوا د څهٔ انتظار کیادی کوی چه فرښتے دوئ له (آسمانی عذاب سره) راشی. یا ستا

اللّٰهُ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۳۳﴾

دَرب دَ (آخری فیصلے) حُکم (راشی) دا شان هغهٔ خلقو وئیلی وُو چه دَ هغے نه آګاهُو (رونختُونو کښے) وُو او الله په هغوئ هیڅ ظُلم نه وو کړے بلکه هغوی (هُم خپله) په خپلو ځانونو ظلم کولو.

فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۳۴﴾ ع

بیا دَ هغوی دَ عملو نو سزا هغوی اونیول او چه دَ کوم (عذاب خبر) پورے هغوی خندا کوله هغه هغوی راګیر کړل او تباه ئے کړل.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ نَّحْنُ وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ۭ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَي الرُّسُلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۳۵﴾

او کومو خلقو چه شرک او کړو هغوی (دا هُم) وئیلی دی چه کچرے الله (رهم دا) غوښتے (چه دَ هغهٔ نه سوا دَ بل چا عبادت دے او نشی) نو نهٔ به مونږ دَ هغهٔ نه سوا دَ بل څیز عبادت کوے او نهٔ به ځمونږ پلار نیکونو دا سے کوے او نهٔ به (هیڅ) مونږ دَ هغهٔ (دَ وینا نه) سوا څه څیز (لره رخپله) حرام ګرزولے. څوک چه دَ هغوی نه آګاهو (دَ حقو دښمنان) وُو هغوی (هُم) دا سے وئیلی وو. کوړے (دوئ دومره هُم سوچ نه کوی (چه) په رُسولانو (دَ خدائے پیغام) دَ رَسولو نه سوا نوره څه ذمه واری ده.

وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلٰلَةُ ۭ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۳۶﴾

او په تحقیق سره مونږ هر قام نه (څوک نه څوک) رُسول (دے حکم سره) بیګلے دے. چه (اَے خلقو!) تاسو دَ الله عبادت کوئ او دَ هر لویے کچه زیاتی کوُونکی نه په ډډه اُوسئ. په دے هغوی کښے (رخو) څنے دا سے (رښهٔ ثابت) شول چه هغوی ته الله هدایت اوکړو او څنے دا سے چه په هغوی هلاکت واجب شو. بیا تاسو ملک کښے (رښه) اوګرزئ او اوګورئ چه (دَ نبیانو) دَ انکار کوُونکو انجام څنګه شوے وو.

اِنْ تَحْرِصْ عَلٰى هُدٰىهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ

(اے رسُوله!) کچرے ته دَ دوئ دَ هدایت ډیر زیات

يُضِلُّ وَمَا لَهُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴿٣٧﴾

خواهش لري نو (پوهشه چه) کوم خلق (نورو له سره دَ پوهې) بې لارې کوي هغوي ته الله هیڅکله سمه لار نهٔ ښائي او نهٔ دَ هغوي څوک مددګار وي۔

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾

او هغوي په الله ډېر سخت قسمونه خوړلي دي (چه) څوک مړشي الله به هغه (بيا کله هُم) نهٔ ژوندےکوي (ولے حقيقت) داسے نه دے، دا (ژوندي کول داسے) وعدهٔ ده چه دَ هغے (دَ سرته دَ رسولو) هغه (الله) ذمه وار دے ولے ګنړ خلق (په دے حقيقت) نهٔ پوهيږي۔

لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴿٣٩﴾

دا په دوئيم ځل ژوندون به دے دَ پاره وي چه هغه په هغوي هغه (حقيقت) ښکاره کړي څه کښے چه هغوي (نن) اختلاف لګيا دي کوي او څکه چه کومو خلقو دَ کُفر (لار) خپله کړے وه هغوي ته معلومه شي چه هغوي دروغژن وو۔

إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَن نَّقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٤٠﴾ ع

څمونږ کار دَ څه (داسے) څيز پخقله چه دَ هغے (دَ کولو) مونږ اراده اوکړه بس دا وي چه مونږ دَ دے پخقله وا ُلو چه اوشه او هغه اُوشي۔

وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِن بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾

او کوم خلقو چه بس دَ دے چه په هغوي ظُلم اوشو الله دَ پاره هجرت اوکړو نو (څمونږ پخپل ذات قسم دے چه) مونږ به هغوي له خامخا دنيا کښے ښهٔ ځائے ورکوُو او دَ آخرت اجر خو به نور هُم ډېر زيات وي۔ کشکے چه دوي (کافران په دے حقيقت) پوهيدے۔

الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٤٢﴾

څوک چه دَ ظلمونو سره (هُم) ټېينګ پاتے شي او (چه ټول عمر) په خپل رب توکل کوي۔

وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِمْ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٤٣﴾

او مونږ تا نه آګاهو (هُم ټول عمر) سړي دَ رسُول په حيث استول (او) مونږ هغوي ته وحي کوله او (يه

منکرو!) که تاسو رد دے حقیقت علم نهٔ لرئ) نو د دے (الله رالیکلی) ذکرکوونکو نه تپوس اوکړئ (چه په حقیقت پوهٔ شئ)۔

بِالْبَيِّنٰتِ وَ الزُّبُرِ ؕ وَ اَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ وَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۴﴾

نصف

مونږه هغوی ښکاره نښانالو او (الهامی) صحیفوسره (استولی وُو) او په تا مونږ دا (کامل) ذکرنازل کړے دے د دے د پاره چه ته ټولو خلقو ته هغه (د الله فرمان) چه رښتا په ذریعه) هغوئ ته راغلے دے په څرګنده بیان کړے او د دے د پاره چه هغوی (په دے) غوراوکړی۔

اَفَاَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّخْسِفَ اللّٰهُ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۴۵﴾

بیا آیا څوک چه رښتا خلاف) بد تد بیرونه راروان دی کوی هغوی د دے خبرے نه امن کښے دی چه الله هغوی (هُم) د مے ملک کښے ذلیل (اورسوا) کړی یا هغه عذاب (چه خبرئے ورکړے شوے دے) په هغوی به په (داسے لار) راشی چه د هغوئ په خیال کښے هم ونهٔ وی۔

اَوْ يَاْخُذَهُمْ فِيْ تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۴۶﴾

یا هغه هغوی د هغو په سفر کښے تباه کړی بیا (هغوی دِ یاد لری چه) هغوی (به هیڅکله الله د دے خبرو پوره کولونه) پاتے نشی موندے۔

اَوْ يَاْخُذَهُمْ عَلٰى تَخَوُّفٍ ؕ فَاِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۴۷﴾

یا هغه هغوی له په رو رو کمولو هلاک کړی ولے چه ستا رب په تحقیق سره (په مومنانو) ډیره مینه کوونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَ الشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَ هُمْ دٰخِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

او آیا سره د دے چه هغوی ګیادی ذلیل کیګی هغوی (کله هُم) د الله وړاندے (په عاجزئ) تیتیدوسره چه هُم الله (هغوی د پاره پیدا کړی دی) هغه په غور نه دی لیدلی چه د هغے سیوری د ښی طرف نه او د قطب د طرفونو نه (خوا دیخوا کیګی۔ (بیا دا شان د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم سیورے به لوئیګی

(وهغه کافران به ذلیل کیګی)۔

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ مِنْ دَآبَّةٍ وَّالْمَلٰٓئِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٤٩﴾

او چه (څه هُم) آسمانونو کښې دی او (ورسره) چه څهٔ هُم زمکه کښې د ساه خیزونه دی (او ژنبوے) فرښتې هُم د الله په وړاندے تهیتی اوسی او هغوی لوئی نه کوی۔

يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ﴿٥٠﴾ ۩

هغوی د خپل رب نه چه په هغوی غالب دے ویریګی او چه د کومے خبرے هغوی ته حُکم ورکیګی (هُم هغه) کوی۔

وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ﴿٥١﴾

او الله (تل ترتله هر قام ته هم دا) فرمائیلی دی (چه) تاسو دوه معبودان مهٔ جوړوئ، هغه (یعنی حقیقی معبود خو) هُم یو دے بیا تاسو هُم ما نه رو ویریګئ (بیا زهٔ تاسو ته وایم چه) هُم ما نه ویریګئ۔

وَلَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَهُ الدِّيْنُ وَاصِبًا ۚ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُوْنَ ﴿٥٢﴾

او څه (هُم) چه په آسمانونو او زمکه کښې (موندے شی) دی ټول د هغهٔ دی او اطاعت تل ترتله هُم د هغهٔ حق دے نو آیا تاسو د الله نه سوا بل چا له د خپل حفاظت سوب جوړوئ۔

وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ اِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَاِلَيْهِ تَجْـَٔرُوْنَ ﴿٥٣﴾

او چه کوم نعمت هُم تاسو سره دے هغه هُم د الله د طرف نه دے بیا هر کله چه تاسو ته تکلیف رسی نو (هغه وخت هُم) تاسو هغهٔ ته فریاد کوئ۔

ثُمَّ اِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنْكُمْ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿٥٤﴾

بیا هر کله چه تاسو نه د غه تکلیف لرے کړی نو تاسو کښې بعضے خلق ناساپه (نور) چا له خپل رب سره شریک جوړول شرو کړئ۔

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۚ فَتَمَتَّعُوْا ۫ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٥٥﴾

نتیجه ئے دا دی چه څهٔ مونږ هغوی له ورکړی دی هغوی د دغے نه انکار اوکړی۔ ښه ده نو تاسو د دے عارضی ژوند (راوڅوو ښه سامانونو نه) فائده واخلئ او د دے انجام به هُم تاسو زر معلوم کړئ۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ نَصِيْبًا مِّمَّا رَزَقْنٰهُمْ ۚ

او څهٔ چه مونږ هغوی له ورکړی دی د دے کښې یوه

تَاللّٰهِ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ﴿۵۷﴾

برخه هغوی (خپلو) هغو رناحقه معبودانو) دپاره بیله وی چه دَ هغې (دَ حقیقت) پحقله هغوئ (هیڅ) علم نهٔ لری۔ قسم په خدائے چه څهٔ (دروغ) تاسو دَ خپله ځانه لګیا یئ جوړوئ دَ هغې پحقله به خامخا تاسو نه پوښتنه کیګی۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنٰتِ سُبْحٰنَهٗ ۙ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿۵۸﴾

او هغوی الله ته دَ لونړو نسبت کوی (یاد لرئ) هغه (دَ داسے خبرونه) پاک دے او (دَ مزے خبره دا ده چه) هغوئ سره هر هغه څهٔ شته چه هغوی یئے غواړی (یعنی ځامن)

وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِالْاُنْثٰى ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ﴿۵۹﴾

او (دَ دے په مقابله کښے دَ هغوئ دا حال دے چه) هر کله چه هغوی کښے چا ته دَ جنیئ (دَ پیداوښت) خبر ورکړے شی نو دَ هغهٔ مخ تور شی او هغه ډیر خفه شی۔

يَتَوَارٰى مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ بِهٖ ۭ اَيُمْسِكُهٗ عَلٰى هُوْنٍ اَمْ يَدُسُّهٗ فِى التُّرَابِ ۭ اَلَا سَاۗءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۶۰﴾

(او) چه دَ کومے خبرے هغهٔ ته خبر ورکړے شوے دے دَ دے دَ اوریدنے له کبله هغه دَ خلقونه پټیګی او سوچ کوی (چه) آیا هغه هغې له (دَ را تلونکی ذلت سره (ژوندئ) پریږدی یا هغه چرته خاوره کښے خخه کړی۔ واورئ چه کومه رائے هغوی لری هغه ډیره بده ده۔

لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۚ وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۶۱﴾ ع ۱۴

کوم خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی دَ هغوی خیال بد دے او هر لو اعلیٰ صفت (او شان) هُم دَ الله دے او هُم هغه غالب (او) دَ حکمتونو خاوند دے۔

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَاۗبَّةٍ وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَاۗءَ اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا

او که (الله داسے کولے چه هغه) خلقو ته دَ ئے ته نهٔ ورکولے) نو هغهٔ به په دے زمکه هیڅ یو دَ لونده سر ژوندے (خیز) نه وے پریخوے ولے دَ هغه دا

يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝٦٢

سُنت دے چه هغه (دَ اصلاح دَ پاره) هغوی ته یو مقرر وخت پورے مولت (ورکیا دے ورکوی). بیا هرکله چه دَ هغوئ (دَ سزا) وخت راشي (او نهٔ دَ دے نه) په وړاندے (ړنج) وتے شي۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ وَتَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى ۭ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَاَنَّهُمْ مُّفْرَطُوْنَ ۝٦٣

او هغوئ الله دَ پاره هغه څیز په نامه کوی چه هغه هغوی (ځپله ځان دَ پاره) نهٔ خوښوی او دَ هغوی ژبے (په ډاډه زړه) دا دروغ وائی چه هغوی به خامخا ښیګړه مومی - (روے دا) یقیني خبره چه دَ هغوی دَ پاره (دَ دوزخ) دَ اور (عذاب شته) دے او دا چه هغوی به (دے کښے) پریخو دے شي۔

تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝٦٤

قسم په خدائے چه مونږ تا نه آګا هُونهو اُمتونو ته رُسولان استولی وُو بیا هغوئ ته شیطان دَ هغوی (بد) عملونه ښائسته کړل بیا نن هُم هغه دَ هغوی مالک (جوړ شوے) دے (او هغوی هغهٔ پسے روان دی) هغوی دَ پاره یو دردناک عذاب دے۔

وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝٦٥

او مونږ په تا دا کتاب دے دَ پاره راکوز کړے دے چه دَ کومے خبرے په حقله هغوی (ځپلو کښے) اختلاف کړے دے دَ هغے (اصل حقیقت دَ هغه کتاب) په هغوی ښکاره کړی او (ور سره) څوک چه (په دے) ایمان (راوړی) هغوی دَ پاره دا (کتاب) هدایت او دَ رحمت موجب وی۔

وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ۝٦٦ ع

او هم الله دَ اسمان نه اوبهٔ راوورولی دی او هغے سره هغهٔ زمکه پس دَ دے دَ شاړیدو (بیا دَ سره) آباد کړے ده۔ کوم خلق چه (دَ هغے خبرے) دَ اوریدو او دَ هغے منلو دَ پاره تیار (وی) دی هغوی دَ پاره دے کښے په تحقیق سره یو (دیر لوئے) نښان (موندے شي) دے۔

وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۖ نُسْقِيكُمْ مِمَّا فِي بُطُونِهِ مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ ﴿٦٦﴾

او تاسو دپاره څارو کښے (هُم) په تحقیق سره د نصیحت حاصلولو ذریعه شته - آیا تاسو نهٔ وینئ (چه) هرڅه چه د هغوی په خیټو کښے (ګند وغیره) وی هغے نه یعنی سُوټو او د وینے د منځ نه ستاسو د څکلو دپاره (پاک او) صاف شودهٔ درکوی چه د څکونکو دپاره ښهٔ او د مرئ نه په آسانه کوزیدونکی دی۔

وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾

او د کجهورو د میوو او آنګورانو نه تاسو شراب (هم) جوړوئ او ښه رزق (هُم) په تحقیق سره پوهیدونکو دپاره پکښے نښان موندے شی۔

وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ ﴿٦٨﴾

او ستا رب د شاتو (مچینه) مچئ ته وحی اوکړه چه تهٔ غرونو کښے او ونو کښے او چه ر د آنګورانو او دا سے نورو تخیرونو د پاره خلق) سپرګئ جوړوی هغو کښے (خپل) کورجوړوه۔

ثُمَّ كُلِي مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ۚ يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٦٩﴾

بیا د هرقسم میوو نه لږه لږه اخله (او) خوره او د خپل رب ښودلو طریقو باندے چه (تا دپاره) آسانے کړے شوی دی روانه اوسه۔ د دے مچو خیټو نه (ستاسو) د څکلو یو څیز اوزی چه مختلفو رنګونو کښے وی او دے کښے د خلقو د پاره شفا ده کوم خلق چه غور (او فکر) کوی هغوی د پاره دے کښے په تحقیق سره ډیر نښانات موندے شی۔

وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ ۚ وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴿٧٠﴾ ع ۹ ۱۸

او الله تاسو پیدا کړی ئی بیا به هغه ستاسو روحونه آخلی او تاسو کښے څنے (کسان) دا سے هُم دی چه هغوی د عمر ډیر خراب حالت ته رسی چه د هغے په نتیجه کښے هغوئ د علم (د حصول) نه پس (بیا) بے علمه شی - په تحقیق سره الله ډیر علم لرونکے (او) په هره خبره پوره پوره قادر دے۔

وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ۭ اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿٧١﴾

او الله تعالیٰ تاسو کښې ځینې د ځنو نه په رزق کښې وړاندې کړی دی او کوم خلق چه وړاندې کړې شوی دی هغوی خپل (قبضه کړې) رزق (په هیڅ حال هُم) هغوی ته په چا چه د هغوی ښې لاسونه قابض دی واپس کوونکی نهٔ دی چه نتیجه ئې دا وی چه هغوی دې کښې یو برابر (شریک) شی - بیا آیا هغوی (سره د پوهیدو په دې حقیقت) د الله د نعمت نه انکار کوی -

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۭ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٢﴾

او الله تاسو د پاره د تاسو نه (هُم ستاسو غوندې جذبات لرونکې) ښځې جوړې کړې دی او (بله داچه) هغوی ستاسو د ښځو نه ستاسو د پاره ځامن او نمسی پیدا کړی دی او هغهٔ تاسو له د هر (قسم) پاکیزه څیزونو نه رزق ورکړې دې - آیا بیا به (هُم) هغوی په یو هلاکیدونکی څیز (خو) ایمان لری او د الله د نعمتونو نه به هغوئ انکار کوی -

وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٧٣﴾

او هغوی د الله په ځائے د داسې څیزونو پرستش کوی چه آسمانونو او زمکې نه څه د ورکړې واک نهٔ لری او نه لرے شی -

فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٧٤﴾

بیا (ئې مشرکانو! تاسو) د الله پخقله (د خپله ځانه) خبرې مهٔ جوړوئ په تحقیق سره الله ته (هر څه معلوم دی) او تاسو (هیڅ هُم) نه پوهیږئ -

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا ۭ هَلْ يَسْتَوٗنَ ۭ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ۭ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾

الله (ستاسو د پوهولو د پاره) د یو داسې بنده حال بیانوی چه غلام وی (او) چه د څه خبرې (هُم) طاقت نه لری، او (د دې په مقابله کښې د هغه بنده حال هُم) چا له چه مونږه د خپلے خوا نه ښه رزق ورکړې وی او هغه د دې نه په پټه (هُم) او په ښکاره (هم ځمونږ

په لاس کښې) نکوی۔ آیا هغوئ دواړه (قسمه خلق) یو برابر کیدے شی؟ (هیڅکله نا) دَ هر ثنا صفت لائق هُم الله دے ولے هغوی کښې ډیر څښے (خلق) نه پوهیګی۔

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَآ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّهُوَ كَلٌّ عَلٰى مَوْلٰىهُ ۙ اَيْنَمَا يُوَجِّهْهُّ لَا يَاْتِ بِخَيْرٍ ۭ هَلْ يَسْتَوِيْ هُوَ ۙ وَمَنْ يَّاْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَهُوَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۷۶﴾

ع

او الله دَ دوه نورو سړو حال (هُم) بیانوی چه هغو کښې یو څو ګونګے وی چه دَ هیڅ خبرے طاقت نه لری او هغه په خپل مالک هسے پیتی وی۔ چرته هُم (چه دَ هغهٔ مالک، هغه واستوی (هغه) څه ښیګړه نه راوړی (بیا) آیا هغه (سړے) او هغه (بل) سړے چه دَ انصاف حکم ورکوی او هغه (خپله هم) په نیغه لار روی یو بل سره برابر کیدے شی۔

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَمَآ اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۷۷﴾

او دَ آسمانونو او دَ زمکے دَ غیب علم هُم الله ته (حاصل) دے۔ او دَ هغے (ټولو کلی) وخت (دَ را تلو) معامله خو داسے ده لکه دَ سترګے رپ۔ بلکه هغه (دَ دے نه هُم) ډیر نزدے لږ (وخت کښې کیدُونکے ده) په تحقیق سره الله په هره خبره پوره پوره قادر دے۔

وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْـــــًٔا ۙ وَّجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـــِٕدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۸﴾

او الله تاسو دَ میاندو دَ خیټو نه داسے حال کښې پیدا کړی یُ چه تاسو ته هیڅ علم نه وُه او هغهٔ تاسو دَ پاره غوږونه او سترګے او زړونه پیدا کړی دی چه تاسو شکر اوکړئ۔

اَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِيْ جَوِّ السَّمَاۗءِ ۭ مَا يُمْسِكُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۷۹﴾

او آیا هغوئ مارغانو ته چه دَ آسمان په فضا کښې زنه په کار لګولے شوی دی (دغور په نظر) نه دی کتلی هغوی (په تاسو دَ را پرلوتو او تهونګو خوړلو نه) الله نه سوا (بل) هیڅوک نشی ایسارولے۔ کوم خلق چه ایمان لری هغوی دَ پاره دے کښې په تحقیق سره ډیر نښانات دی۔

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْۢ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ بُيُوْتًا تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ

او الله ستاسو کورونه ستاسو دَ استوګنے دَ پاره جوړ کړی دی۔ او هغه دَ څارو دَ څرمنو نه (هم) تاسو دَ پاره کورونه

إِقَامَتِكُمْ ۙ وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٨٠﴾

جوړ کړی دی چه هغه تاسو په سفر کښے سپک موښي او (بله دا چه) دَ خپل اېسارتیه په وخت (دَ هغونه فائده اخلئ) او دَ دغو څارو دَ باریکه وړئ نه او (ورسره) دَ هغو دَ غټو وړو او دَ هغو دَ ویښتو نه مستقل سامان او څهٔ وخته پورے عارضی سامان جوړ ولو (ذریعه ئے جوړه کړے دَه)۔

وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِمَّا خَلَقَ ظِلَالًا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنَ الْجِبَالِ أَكْنَانًا وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ ﴿٨١﴾

او الله چه څه پیدا کړی دی هغے کښے هغه تاسو دَ پاره ډیر څخے سیوری ورکونکی څیزونه جوړ کړی دی (چه دَ هغو لاندے تاسو آرام کوئ) او غرونو کښے (تاسو) دَ پاره دَ پناه ځایونه جوړ کړی دی او ورسره هغه تاسو دَ پاره ډیر قسمه قمیصونه جوړ کړی دی چه تاسو دَ ګرمئ نه ساتی او بعضے قمیصونه (یعنی زرے) داسے دی چه تاسو (خپلو کښے) دَ جنګ (دَ سختئ) نه ساتی۔ دا شان هغه په تاسو خپل (روحانی) انعام (هُم) پوره کوی ځکه چه تاسو (دَ هغهٔ) پوره حُکم منوونکی شئ۔

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٨٢﴾

بیا که هغوی (اوس هُم) واوړی نو (ورله دے کبله اے نبي! په تا به الزام نه رازی ولے چه) ستا په ذمه بس په ښهٔ ډول رَسول دی۔

يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ ثُمَّ يُنْكِرُونَهَا وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُونَ ﴿٨٣﴾

هغوی دَ الله (دا) انعام (ښهٔ) پیژنی ولے بیا (هُم) دَ هغے انکار کیادی کوی او هغوی کښے ډیر څخے خو پاخهٔ کافران دی۔ ع

وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٨٤﴾

او (هغه ورځ هُم یاده کړئ) په کومه ورځ به چه مونږ هر یو قام کښے یو ګواه اودرُو بیا به (هغه وخت) هغه خلقو ته چا چه کفر کړے دے (دَ عذر پیش کولو یا دَ هغے دَ کمی پوره کولو) اجازه نشی ورکولے او نهٔ به

دَ هغوی ځنې عذر رفعه شي۔

وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٥﴾

او کوم خلقو چه ظُلم کړے دے هغوی به کله چه (غه (تا ګلے شوے) عذاب اووینی نو هغه (وخت به) نه (خو) هغه (عذاب) هغوئ نه کموے شی او نهٔ به هغوی ته مولت ورکیدے شی۔

وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُوا مِنْ دُونِكَ ۖ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٨٦﴾ ربع

او کوم خلقو چه (الله سره) شریکان جوړ کړی دی هرکله به چه هغوی خپل (جوړ کړی) شریکان اووینی نو وائ به (چه) یه ځمونږه رب! دا ځمونږ جوړ کړی شریکان دی څوک چه مونږ ستا په ځائے مدد له رابلل۔ په هغے به هغوی (یعنی هغه جوړ کړی شوی شریکان سمدستی) هغوی ته (ووائ (چه) په تحقیق سره تاسو دروغژن یئ۔

وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ ۖ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٨٧﴾

او هغه ورځ به هغوئ (ظالمان په تادئ) دَ الله وړاندے دَ خپل اطاعت اظهار کوی او (هر هغه څه) به چه هغوی دَ ځانه جوړ ول دَ هغوی (دَ ذهنونو) نه به غائب شي۔

الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ ﴿٨٨﴾

کوم خلقو چه (خپله هُم) کُفر کړے دے او نور خلق ئے هُم دَ الله دَ لارے نه منع کړی دی هغوی ته به مونږ دَ دے عذاب نه زیات یو بل عذاب ورکوُوے چه هغوی (مُدام) فساد کولو۔

وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِمْ مِنْ أَنْفُسِهِمْ ۖ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ ۚ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿٨٩﴾ ع ۱۲ ۱۸

او هغه ورځ هُم یاده کړئ کله به چه مونږ دَ هر قام دننه دَ هغوی خلاف هُم هغوی کښے یو ګواه راولو او (اے رسُوله!) مونږ په تا دَ دوی (ټولو) خلاف ګواه راولو او مونږ دا کتاب دهرے یوے خبرے په ډاګه بیانولو دَ پاره او (ټولو خلقو ته) لارے ښودنے دَ پاره او (په هغوی) رحمت کولو او پوره حُکم مُنونکو ته زیرے ورکولو

دَپاره راکوز کړے دے۔

إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَآئِ ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٩٠﴾

په تحقيق سره الله دَعدل او احسان او ﴿پردو سره هُم﴾ دَ نزدو ﴿خلقو﴾ په شان ﴿پېژند گلو او د اشان دَمدد﴾ ورکولو حکم کوی او ﴿دَ هر يو قسم﴾ بے حيائی او ناخوښے خبرو او دَ بغاوت نه منع کوی۔ هغه تاسو ته نصيحت کوی ځکه چه تاسو پوهه شئ۔

وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللّٰهِ إِذَا عٰهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللّٰهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾

او ﴿پکار دی چه﴾ دَ الله ﴿سره کړے خپل﴾ لوظ هر کله چه تاسو ﴿هغهٔ سره څهٔ﴾ لوظ کړے وی پوره کړئ او په کلکه قسمونو نه خو ﴿لونه پس هر کله چه تاسو الله ﴿په هغه قسم خوړو سره﴾ خپل ضامن جوړ کړے دے، مهٔ ماتوئ څه چه تاسو کوئ په تحقيق سره الله هغے نه خبر دے۔

وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنْكَاثًا ۗ تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبٰى مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللّٰهُ بِهِ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾

او دَ هغے ښځے په شان مهٔ کيګئ چا چه خپل وريښلی پړسی دَ مضبوطوالی نه پس اوشلول او ذره ذره کړی ئے ﴿و دا شان تاسو خپل قسمونه دَ فريب په طور خپلو کښے دَ رسوخ جوړولو ذريعه مهٔ جوړوئ، له دے ويرے چه يو قام چرته دَ بل قام په مقابله زيات طاقتور نشی۔ الله خو بس دے وخت ستاسو دَ دے ﴿حکمونو﴾ په ذريعه ازمينښت کوی او دَ قيامت په ورځ به خامخا په تاسو دَ دے خبرو ټول حقيقت ښکاره کړی څه کښے چه تاسو اختلاف لرلو۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلٰكِنْ يُضِلُّ مَنْ يَشَآءُ وَيَهْدِي مَنْ يَشَآءُ ۚ وَلَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾

که الله ﴿هُم﴾ خپله رضا کوے نو هغهٔ به تاسو ﴿ټول﴾ يو اُمت کړے وے، ولے ﴿هغهٔ دا سے نهٔ کوی بلکه﴾ کوم سړے چه ﴿ګمراهی﴾ غواړی هغهٔ له هغه بے لارے کوی او چه څوک ﴿سمه لار﴾ غواړی هغهٔ ته هغه هدايت ورکوی او څه چه تاسو کوئ دَ دے پحقله به ﴿دَ قيامت

پہ ورځ ) تاسو نہ تپوس کیگی۔

وَلَا تَتَّخِذُوٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌ
بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَتَذُوْقُوا السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ
سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝۹۵

او تاسو خپل قسمونہ خپلو کښے دَ فریب کولو ذریعہ مۀ جوړوئ کنی نو رستاسو ) قدم بہ پس دَ دے چہ هغه رښه مضبوط ) ځائے نیولے وی ربیا ) اوخوئیگی او تاسو بہ بد انجام اووینئ وے چہ تاسو ر دا شان نور خلق هُم ، دَ الله دَ لارے نه منع کړل او په تاسو به لوئے عذاب نازلیگی۔

وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۚ اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ
هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۹۶

او تاسو دَ الله رسره دَ کړی ) لوظ په بدل کښے ډیر کم قیمته رڅیز ) مۀ اخلئ او کچرے تاسو عقل لرئ نو پوهـ شئ چه څه الله سره دی هغه په تحقیق سره تاسو دَ پاره ردے نه ډیر زیات ) ښۀ دی۔

مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ ۗ وَلَنَجْزِيَنَّ
الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا
يَعْمَلُوْنَ ۝۹۷

څۀ چه تاسو سره دی هغه به ختم شی او چه څۀ الله سره دی هغه رتل تر تله ) پاتے کیدُونکی دی او ځمونږ په خپل ذات قسم دے چه ) کوم خلق ټینګ پاتے شوی دی مونږ به هغوی ته خامخا دَ هغوی دَ ډیرو ښو عملونو مطابق ر دَ هغوی دَ ټولو نیک عملونو ) بدله ورکوُو۔

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ
فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ
بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝۹۸

څوک به چه په حال دَ ایمان نیک او مناسب دَ حال عمل کوی سړے وی که ښځۀ مونږ به هغۀ ته خامخا لو پاکیزه ژوند ورکوُو او مونږ به هغوئ رټولو خلقو ) ته ر دَ هغوی دَ ډیرو ښو عملونو ) بدله ورکوُو۔

فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ
الرَّجِيْمِ ۝۹۹

راے اوریدُونکیه ! ) هرکله چه تۀ قرآن لولے نو دَ رټلی شوی شیطان ردَ شر ) نه ردَ حفاظت دَ پاره ) دَ الله پناه غواړه۔

اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ

رځکه ) خبره په تحقیق سره هُم دا ده چه کوم خلقو

يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۹۹﴾

ايمان راوړے دے او په پنالاد خپل رب ئے توکل کړے دے په هغوی د هغهٔ هيڅ وس نه رسی۔

اِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

د هغهٔ وس خو بس په هغو خلقو رسی چه هغهٔ سره دوستی لری او چه د هغهٔ په سوب شرک کوی۔ ع ۱۳

وَاِذَا بَدَّلْنَآ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ ۙ وَّاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مُفْتَرٍ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

او هرکله چه مونږ د يو نشان په ځائے يو بل نشان راوړو او ردے کښے څهٔ شک دے چه) الله چه څه راکُوزوی د هغے (ضرورت) هغهٔ ته رد هرچا نه) ښهٔ علم وی نو (په دا سے وخت مخالفين وائی) چه مفتری (په الله دروغ تړونکے) ئے (رو لے حقيقت دا سے) نا بلکه دوئی کښے ګڼر خلق علم نه لری۔

قُلْ نَزَّلَهٗ رُوْحُ الْقُدُسِ مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ لِيُثَبِّتَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

ته (دا سے معترض ته) او وايه (چه) رُوح القدس دا ستا د رب د خوا نه حق (د حکمت) سره راکُوز کړے دے دے د پاره چه کوم خلقو ايمان راوړے دے هغوئی هغه (په ايمان) تل تر تله قائم کړی او (نور دا چه هغهٔ) د حُکم منُونکو د لارے ښودے د پاره او (هغوئی ته) زيرے ورکولو د پاره (دا) راکوز کړے دے)۔

وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ اِنَّمَا يُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ ؕ لِسَانُ الَّذِيْ يُلْحِدُوْنَ اِلَيْهِ اَعْجَمِيٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۰۳﴾

او په تحقيق سره مونږ پوهيګو چه هغوی وائی (چه دا الهٰی وحی نه ده بلکه) يو سړے د ده ته ښائی (رو لے هغوی نه پوهيګی چه) کوم سړی ته هغوی (اشاره کوی او د هغوی خيال د هغهٔ په طرف) ژی د هغه ژبه عجمی ده او دا (د قرآن ژبه خو ښه) روښانه عربی ژبه ده۔

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۙ لَا يَهْدِيْهِمُ اللّٰهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۰۴﴾

کوم خلق چه د الله په نشانانو ايمان نهٔ راوړی الله هغوی ته هدايت نهٔ کوی او هغوی د پاره دردناک عذاب دے۔

اِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

دروغ هُم هغه خلق تړی چه د الله په نشانانو ايمان نهٔ لری او هُم دغه خلق غټ دروغژن دی۔

مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ اِيْمَانِهٖۤ اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهٗ مُطْمَىِٕنٌّۢ بِالْاِيْمَانِ وَلٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۰۶﴾

څوک (هُم) چه دَ خپل ایمان راوړو نه پس دَ الله انکار اوکړی- سوا دَ هغه نه چه (په انکار) مجبوره کړے شوے وی- ولے دَ هغوی زړونه په ایمان مطمئن دی (هغوی په نشی نیولے کیدے) هن هغه خلق چا چه (خپله) سینه کُفر دَ پاره پرانستے وی په هغوی به دَ الله (ډیر) لوئے غضب (نازل) وی او هغوی دَ پاره ډیر درُوند عذاب دے-

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۷﴾

او دا به په دے سوب وی چه هغوی دے دنیوی ژوند سره مینه په آخرت غوره کړه او زور سره دَ دے کبله چه الله کفر کوونکو خلقو ته هدایت نه ورکوی-

اُولٰٓىِٕكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۚ وَاُولٰٓىِٕكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾

دا هغه خلق دی چه دَ چا (دَ کفر په وجه دَ هغوی) په زړونو او دَ هغوی په غوږونو او دَ هغوی په سترګو مهر لګولے دے او هُم دغه خلق سخت غافل دی-

لَا جَرَمَ اَنَّهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۰۹﴾

(او) دے کښے څه شک نشته چه هغوی به آخرت کښے (دَ ټولو نه) زیات نقصان اوچتوونکی وی-

ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ هَاجَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا فُتِنُوْا ثُمَّ جٰهَدُوْا وَصَبَرُوْٓا ۙ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۰﴾ ع ۱۵

او په تحقیق سره ستا رب هغو خلقو دَ پاره چه په تکلیف کښے غورزولو نه پس ئے هجرت اوکړو بیا هغوی جهاد اوکړو او (په خپل لوظ) ټینګ او دریدل (هن) په تحقیق سره ستا رب به دَ دے (شرط پوره کولو) نه پس (هغوی دَ پاره) ډیر بخښونکے او بیا بیا رحم کوونکے دی-

يَوْمَ تَاْتِىْ كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾

دَ دے جزا اظهار به خاص هغه ورځ وی چه کومه ورځ به چه هر سړے دَ خپل ځان پخقله په جګړا راځی او هر سړی چه څه کړی وی (دَ هغے اجر به) هغهٔ ته پوره پوره ورکیدے شی او په هغوی (به هیڅ یو رنګ کښے هُم) ظُلم نه کیګی-

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ۝۱۱۲

او الله رستا سو دَ پوهولو دَ پاره ) دَ يو کلي حال بيانوي چه ورته ( دَ هر قسم ) امن حاصل دے ( او ) تسلي ورته نصيب ده دَ هر طرف نه دَ هغے رزق هغے ته به خلاص مټ تلکيا دے رسي ـ بيا ( هُم هغے ) دَ الله دَ نعمتونو ناشکري کړے ده ـ دَ هغے ( په دے ناشکرئ ) الله دَ هغے ( اوسيدُونکو ) باندے دَ هغوي دَ خپل ( بد ) عمل له کبله لوږه او ويره نازله کړے ده ـ

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ۝۱۱۳

او په تحقيق سره هغوي ته هُم هغوي کښے ( څمونږ ) يو رُسول راغلے دے وے هغوي دَ هغهٔ انکار اوکړو په دے هغه حال کښے چه هغوي تلکيا وُو ظُلم ئے کولو ( څمونږ ) عذاب هغوي اونيول ـ

فَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا وَّاشْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ۝۱۱۴

بيا چه کوم حلال ( او ) پاکيزه ( مال ) الله تاسو له درکړے دے تاسو هغے نه خورئ او دَ الله دَ نعمت کچرے تاسو دَ هغهٔ عبادت کوئ شُکر اوکړئ ـ

اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۱۱۵

هغهٔ په تاسو ئش مردار او وينه او دَ خنزير غوښه او ( هر ) هغه څيز حرام کړے دے چه وربانده دَ الله نه سوا دَ بل چا نوم اخستے شوے وي او چه څوک دَ غو کښے دَ څه څيز په خوړلو مجبور کړے شي په دا سے حال چه هغه ( دَ شريعت ) مقابله کوُونکے نه وي او نهٔ دَ حد نه وتُونکے وي نو ( يادلرئ چه ) الله ډير بخښوُنکے ( او ) بيا بيا رحم کوُونکے دے ـ

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ۝۱۱۶

او دَ خپلو ژبو دَ دروغو بيانولو په سوب ( دا ) مهٔ وائ چه دا حلال دي او دا حرام دي ( څکه چه هسے نه ) چه تاسو په الله دروغ تړوُنکي شي ـ کوم خلق چه په الله دروغ تړي هغوي هيڅکله نهٔ کاميا بيګي ـ

مَتَاعٌ قَلِيلٌ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١١٨﴾

(د دنيا) لږ غوندے عارضي سامان دے او (د دے دروغو په نتيجه کښے) هغوئ د پاره دردناک عذاب دے (ربانو دے نه ځان ساتل پکار دی)۔

وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِن قَبْلُ ۖ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١١٩﴾

او کومو خلقو چه يهودى مذهب خپل کړے وُه په هغوى (هُم) مونږ د دے نه آگاهو هغه (توله) څيزونه حرام کړى وُو چه د هغے ذکر مونږ تا ته کړے دے او مونږ په هغوئ (د دے حکمونو سره) ظلم نهٔ وه کړے بلکه هغوى (د هغو حکمونو په ماتولو) په خپلو ځانونو ظلم کولو۔

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢٠﴾ ۱۵ ع ۲۱

بيا (ريا دساتئ چه) کومو خلقو چه د بے خبرئ په حال (کښے) بدى کړى وى (او) بيا د دے نه پس (هغوى هغے نه) توبه اوکړى او (د خپلے غلطئ) اصلاح (هُم) اوکړى (هغوى په حق کښے ستا ربّ به د دے (شرطونو د پوره کولو نه پس) ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے وى۔

إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِّلَّهِ حَنِيفًا وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٢١﴾

په تحقيق سره ابراهيم په هر خير (ښيگړه) کښے کامل (او) د الله تعالىٰ د پاره عاجزى کوونکے (او) تل تر تله د خدائے پوره حکم منونکے وه او هغه مشرکانو کښے نه وه۔

شَاكِرًا لِّأَنْعُمِهِ ۚ اجْتَبَاهُ وَهَدَاهُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٢٢﴾

(هغه) د هغهٔ د انعامونو شکر کوونکے وُه او د هغهٔ (ربّ) هغه نازولے وُه او هغهٔ ته يے نيغه لاره ښودلے وه۔

وَآتَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٢٣﴾

او مونږ هغهٔ ته په دے دنيا کښے (هُم لويه) کاميابى ورکړے وه او په تحقيق سره هغه په آخرت کښے (هُم) صالحانو نه وى۔

ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٢٤﴾

(او ئے رسوله!) مونږ تا له د وحى په ذريعه حکم درکړے دے چه (څمونږ) پوره او تل تر تله حکم منونکى د ابراهيم لارے پسے زره او (يه د هغے خلقو خبرئ چه)

هغه مشرکانو نه نهٔ وُو۔

إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ ۚ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١٢٥﴾

دَ سبت (ربد اثرات) هُم په هغو خلقو اچولے شوی وُو چا چه دے کښے اختلاف کړے وُو او په تحقیق سره ستا رب به دَ دے خبرے پحقله څه کښے چه هغوی اختلاف کولو دَ قیامت په ورځ فیصله کوی۔

ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ ۖ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١٢٦﴾

(او اے رسُوله!) تهٔ (خلقو ته) دَ حکمت او دَ ښهٔ نصیحت په ذریعه دَ خپل رب دَ لارے په طرف غواړه او په داسے طریقه چه دَ ټولو نه ښه وی هغوی سره (دَ هغوی دَ اختلافاتو پحقله) بحث کوه۔ ستا رب هغوی (هُم) چه دَ هغهٔ دَ لارے نه اړولی دی (دَ ټولو نه) ښهٔ پیژنی او هغوی هُم چه هدایت اخلی۔

وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ ﴿١٢٧﴾

کچرے تاسو (خلق زیاتی کوُونکو ته) سزا ورکړئ نو چه څومره زیاتی شوے وی تاسو (هُم) هغه هومره سزا ورکړئ او (قسم م په خپل ذات دے چه) کچرے تاسو صبر اوکړئ نو دَ صبر کوُونکو پحقله به هغه (صبر کول) ښهٔ دی۔

وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ ۚ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٨﴾

(او اے رسُوله!) تهٔ صبر نه کار اخله (او ستا صبر کول دَ الله (په مدد کیدے شی) دی۔ او تهٔ دَ هغوی غم مهٔ خوره او چه څهٔ تدبیرونه هغوی کوی دَ هغے له کبله تکلیف مهٔ محسوسوه۔

إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴿١٢٩﴾ ع

او یاد ساته چه په تحقیق سره الله هغه خلقو سره وی چا چه تقویٰ کړے وی او څوک چه نیکان دی۔




سورۃ بنی اسرائیل۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے یوسل دولس[112] آیتونه او دولس[12] دکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ⓵

(شروکوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه (او) بیابیا رحم کوونکے دے۔

سُبْحٰنَ الَّذِیْٓ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِیْ بٰرَکْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِیَهٗ مِنْ اٰیٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْبَصِیْرُ ⓶

(رزۂ) دَ هغهٔ (خُدائے) پاکی (بیانوم) چه دَ شپے خپل بنده (دَ دے) حرمت لرُونکی جمات نه (هغه) دَلرے جمات پورے چه دَ هغے چارچاپیرهِ له (هُم) مونږ برکت ورکرے دے (دَ دے دَ پاره) لوتلو چه مونږ هغهٔ ته خپل بعضے نښانات اوښایو۔ په تحقیق سره هُم هغه (خُدائے) دے چه دَ خپلو بندیانو فریاد بنهٔ اوریدونکے (او دَ هغوی حالات) بنهٔ لیدونکے دے۔

وَاٰتَیْنَا مُوْسَی الْکِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ هُدًی لِّبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِیْ وَکِیْلًا ⓷

او مونږ ه موسیٰؑ له کتاب (یعنی تورات) ورکرے وه او هغه مونږ دَ بنی اسرائیلو دَ پاره دَ هدایت (ذریعه) جوړه کړے وه (او هغے کښے هغوی ته حکم شوے وُه) چه تاسو څما نه سوا بل څوک (خپل) کارجوړے مهٔ گرزوی۔

ذُرِّیَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ؕ اِنَّهٗ کَانَ عَبْدًا شَکُوْرًا ⓸

(او دا هُم وئیلی وُوچه اے) دَ هغو خلقو نسله! چا له چه مونږ نوحؑ سره (په کشتئ) سواره کړی وُو۔ (یاد لرئ چه) په تحقیق سره هغه (حمونږ) ډیر شُکر کوونکے بنده وُه بیا تاسو هُم شُکر کوونکی شئ۔

وَقَضَیْنَآ اِلٰی بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ فِی الْکِتٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِی الْاَرْضِ مَرَّتَیْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا کَبِیْرًا ⓹

او مونږ دے کتاب کښے بنی اسرائیلو ته دا خبره په (صفا ټکو) رسولے وه چه په تحقیق سره تاسو به دے ملک کښے دوه ځل فساد کوئ او یقینی ده چه تاسو به ډیره زیاته سرکشی کوئ۔

فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ اُوْلٰىهُمَا بَعَثْنَا عَلَیْکُمْ عِبَادًا لَّنَآ

او هرکله چه دَ دے دوو (ځلو فسادونو) کښے دَ ړومبی

أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ ۚ وَكَانَ وَعْدًا مَفْعُولًا ۝۵

(ځل) وعده (دَ پوره کيدو وخت) راغے نو موږ خپلو بندیانو کښے ځنے داسے (ستاسو دَ کېرئ وهلو دَ پاره) په تاسو راَوچت کړل چه سخت جنګيالی وُو او هغوئ ستاسو کورونو ته دننه ورغلل او (په هرحال) دا وعده پوره کيدُونکے وُه۔

ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَاكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ۝۶

(دے نه پس) بيا موږ تاسو له (په دښمن) دَ حملے طاقت درکړو او موږ دَ مالُونو او دَ ځامنو په ذريعه ستاسو مدد اوکړو او موږ تاسو دَ ډيرے په لحاظ هُم (وړاندے نه) زيات کړئ۔

إِنْ أَحْسَنْتُمْ أَحْسَنْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ ۖ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا ۚ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوءُوا وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيرًا ۝۷

(وا ورئ!) که چرے تاسو نيکان شئ نو نيک جوړيدل په تاسو خپلو ځانونو ته فائده رسوی او که تاسو بدعملونه کوئ نو (هُم) دے (يعني خپلو ځانونو) دَ پاره به (بد) کوئ) بيا هرکله چه په دوئم ځل دَ وعدے (دَ پوره کيدو وخت) راغے۔ دے دَ پاره چه هغوئ (يعني ستاسو دښمنان) ستاسو دَ رنو مشرانو سره ناخوښه سلوک اوکړی او (په دا شان) جماعتونو کښے داخل شی څنګه چه هغوئ دے کښے په رومبی ځل داخل شوی وُو او چه په څه څيز ئے وس اورسی هغه دَ سره تباه (او برباد) کړی (نو دا خبره هم پوره شوه)۔

عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ ۚ وَإِنْ عُدْتُمْ عُدْنَا ۘ وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا ۝۸

(اوس هُم) څه لرے نهٔ ده (بلکه کيدے شی) چه ستاسو رب په تاسو رحم اوکړی او که چرے تاسو (بيا خپلے غلطے رويے په طرف) واپس شوئ نو موږ به هُم (دَ خپلے سزا په طرف) واپس شُو (او ياد لرئ چه) جهنم موږ دَ کافرانو دَ پاره قيدخانه جوړه کړے ده۔

إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ

په تحقيق سره دا قرآن دَ هغے (لارے) ښودنه کوی چه دَ ټولو نه صحی ده او مومنانو له چه مناسب دَ حال

أَجْرًا كَبِيرًا ﴿٩﴾

عمل کوی زیرے ورکوی چه هغوی د پاره (ډیر) لوئے اجر دے.

وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٠﴾

او (قرآن) دا (هم وائی) چه کوم خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی هغوی د پاره مونږ دردناک عذاب تیار کړے دے.

وَيَدْعُ الْإِنْسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ ۖ وَكَانَ الْإِنْسَانُ عَجُولًا ﴿١١﴾

او انسان شر (په داسے جوش) غواړی په کوم جوش چه الله هغه (بنده) د خیر په طرف غواړی او انسان ډیر زیات تلوارچن دے.

وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ آيَتَيْنِ ۖ فَمَحَوْنَا آيَةَ اللَّيْلِ وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِتَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنَاهُ تَفْصِيلًا ﴿١٢﴾

او مونږ شپه او ورځ دوه نشانات جوړ کړی دی دا شان چه د شپے د نشان اثر خو مونږ لرے کړو او د ورځے نشان مونږ د پاره د لیدنے جوړ کړو ځکه چه تاسو د خدائے فضل اولټوئ او (په آسانئ) د کلونو شمیره او حساب معلوم کړے شئ او مونږ هر یو څیز ښهٔ په ډاګه بیان کړے دے.

وَكُلَّ إِنْسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ ۖ وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنْشُورًا ﴿١٣﴾

او مونږ د هر یو انسان په مرئ کښے د هغهٔ عمل تړلے دے او مونږ به د قیامت په ورځ د هغهٔ (د عملونو) یو کتاب را اوباسو او هغهٔ ته به وړاندے کیږدو چه هغه به هغه (د سره) پرانستے اُوموی.

اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴿١٤﴾

(او هغهٔ ته به اووئیلے شی) خپل کتاب (هم خپله) اولوله او اوګوره چه نن هم ستا نفس ستا حساب اخستو د پاره کافی دے.

مَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۗ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ﴿١٥﴾

(بیا یاد لرئ) چه څوک هدایت قبول کړی د هغه هدایت موندل هم د هغهٔ د ځان د فائدے د پاره دی او چه څوک (دا هدایت اونهٔ منی) بے لارے شی د هغهٔ بے لارے کیدل به د هغهٔ (د نفس) خلاف وی.

اوڅوک پیټهئ اوچتوُنکے به دَ بل رچا) پیټهئ نه اوچتوی او مونږ ربه هیڅ یو قام) ته هیڅکله عذاب نه ورولو ترڅو پورے چه رهغوی ته) څوک رسُول اُونه لیږو.

وَ اِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا فَفَسَقُوْا فِيْهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا ⑯

او هرکله چه مونږ دَ یو نرئ ردَ خلقو) دَ هلاکت اراده اوکړو نو راول) مونږ دَ هغې شتمنو خلقو ته ردَ نیکئ) حُکم ورکوُ چه په هغې هغوی را پُوته) دے نرئ) کښے نافرمانی شروکړی بیا دَ هغې نرئ پخقله څمونږ خبره پوره شی او هغه مونږ سمه تباه کړو.

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ ۭ وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا ⑰

او ردَ دے قانون له مخه) مونږ دَ نوحؑ ردَ قام او هغهٔ) نه پس رپرله پسے) ډیرنسلوُنه هلاک کړل او ستا رب دَ خپلو بندیانو په ګناهونو ربه ښه شان) خبرلرونکے ردے او هغوئ) ښهٔ وینی.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰىهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ⑱

کوم سرئ چه تش دَ دُنیا غوښتوُنکے وی۔ مونږ داسے قسم خلقو کښے چه چاله غواړو دے دنیا کښے څه دَ تلوارسے رردنیاوی) فائدے ورکوُو۔ دے نه پس دَ هغهٔ دَپاره دَ جهنم رعذاب) سازوُو چه هغے کښے به هغه ملامته اوسپک رټےور داخلیګی۔

وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰۗىِٕكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا ⑲

اوکومو خلقو چه دَ ایمان په حال او هغے دَپاره ے هغے سره سم کوشش رهُم) اوکړو نو ریادلرئ) هُم داسے خلق دی چه دَ چا دَ کوشش به قدر کیګی۔

كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَاۗءِ وَهٰٓؤُلَاۗءِ مِنْ عَطَاۗءِ رَبِّكَ ۭ وَمَا كَانَ عَطَاۗءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا ⑳

مونږ تولو ته مدد ورکوُو هغوی له هُم ریعنی دین دارو له هُم) او هغوی له هُم ریعنی دُنیا دارو له هُم) او دا مدد ستا دَ رب ورکړه ده او ستا دَ رب ورکړه دَ یو خاص تهولی نه منع کوے نشی۔

اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۭ وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ

اوګوره څنګه مونږ ردَ دنیاوی سامانونو له مخه هُم) هغوی

دَرَجٰتٍ وَّ اَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ﴿۲۱﴾

کښې بعضو له په بعضو فضیلت ورکړے دے او دَ آخرت ژوند خو به په تحقیق سره (لوړ هُم) دَ ډیرو دَرجو او دَ لوړ زیات فضیلت (ژوند) وی۔

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿۲۲﴾ ع

بیا (اے اوریدُونکیه!) الله سره بل څوک دَ عبادت لائق مهٔ جوړوهٔ گنی ته به هُم ملامته (او دَ الله) دَ مدد نه محرومه پاتے شے۔

وَ قَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَاۤ اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ لَّهُمَاۤ اُفٍّ وَّ لَا تَنْهَرْهُمَا وَ قُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ﴿۲۳﴾

ستا رب (دَ دے خبرے) په کلکه حُکم ورکړے دے چه تاسو دَ هغهٔ نه سوا دَ بل چا عبادت مهٔ کوئ (او پله دا چه خپل) مور پلار سره ښهٔ سلوک کوئ۔ کچرے هغوی کښې یو یا دواړه ستا ژوند کښې زاړهٔ شی نو هغوئ ته (دَ هغوی په څه خبره دَ نا خوښئ ښکاره کولو دَ پاره) اُف تندرے مهٔ وائی او مهٔ هغوی رټئ او هغوی سره (ټول عمر) په نرمئ خبره کوئ۔

وَ اخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَ قُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴿۲۴﴾

او دَ رحم دَ جذبے لاندے دَ هغوی وړاندے عاجزی کوئ او (هغوی دَ پاره دَ دعا کولو په وخت) وائی (چه) ځما رب! په دوئ مهربانه شه ولے چه دوئ په وړوکوالی کښې ځما پالنه کړے وه۔

رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا فِيْ نُفُوْسِكُمْ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا صٰلِحِيْنَ فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ غَفُوْرًا ﴿۲۵﴾

ستاسو رب دَ هر څه نه چه ستاسو زړونو کښې وی (دَ هرچا نه) ښهٔ خبر دے (او) کچرے تاسو نیکان شئ نو زیاد لرئ چه) هغه بیا بیا رجوع کوُونکو له ډیر زیات بخښوُنکے دے۔

وَ اٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَ الْمِسْكِيْنَ وَ ابْنَ السَّبِيْلِ وَ لَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا ﴿۲۶﴾

او خپلوان مسکین او مسافر له دَ هغهٔ حق ورکړه او په هیڅ رنگ کښې (هُم) اسراف مهٔ کوه۔

اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْۤا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ ؕ وَ كَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا ﴿۲۷﴾

اسراف کوُونکی خلق په تحقیق سره دَ شیطانانو رونړه وی او شیطان دَ خپل رب ډیر نا شکره دے۔

وَاِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَآءَ رَحْمَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ تَرْجُوْهَا فَقُلْ لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُوْرًا ﴿۲۸﴾

او دَ خپل رب دَ یو عظیم الشان رحمت دَ حاصلولو دَ پاره چه دَ هغے تهٔ په طمع یې. کچرے تهٔ دَ هغو خپلوانو نه په ډډه شے (نو په داسے حال ډډه کول جائز دی ولے) بیا هُم هغوی سره دَ نرمئ خبره کوه۔

وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا مَّحْسُوْرًا ﴿۲۹﴾

او تهٔ نهٔ (خو دَ کنجوستیا نه) خپل لاسونه تړلی خپلے مرئ کښے اَچوه او نهٔ (په اسراف دا یو مغیز پرانزه کښې نو یا خو به) تهٔ دَ ملامتے شے یا به تهٔ دَ ستومانتیا دَ اثر نه کینے۔

اِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا ۢ بَصِيْرًا ﴿۳۰﴾ ع

ستا رب چا دَ پاره چه غواړی رزق زیاتوی او (چا دَ پاره چه غواړی) کموی۔ هغه په تحقیق سره دَ خپلو بندیانو (دَ حالاتو) نه خبر (او) لیدونکے دے۔

وَلَا تَقْتُلُوْۤا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَاِيَّاكُمْ ؕ اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً كَبِيْرًا ﴿۳۱﴾

او تاسو دَ غریبئ دَ ویرے خپل اولاد مهٔ قتلوی هغوئ له (هُم) مونږ رزق ورکوو او تاسو له هُم (مونږ درکوو) په تحقیق سره دَ هغوئ وژل (ډیره) غټه غلطی ده۔

وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰۤى اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً ؕ وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿۳۲﴾

او زنا ته (هُم) مهٔ نزدے کیږئ په تحقیق سره هغه ډاکیزه بے حیائی او ډیره بده لاره ده۔

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِیْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا فَلَا يُسْرِفْ فِّی الْقَتْلِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ مَنْصُوْرًا ﴿۳۳﴾

او چه دَ څهٔ (وژل) الله حرام کړزولی دی هغه (دَ شریعت) دَ حق نه سوا مهٔ قتلوی او چه څوک مظلوم اووژلے شی دَ هغهٔ وارث ته مونږ (دَ قصاص) اختیار ورکړے دے. بیا (دَ هغهٔ دَ پاره دا هدایت دے) چه هغه دِ (دَ قاتل) په قتلولو کښے (څمونږ دَ مقرر کړی) حد نه وړاندے نهٔ اُوزی (کچرے هغه حد کښے دننه اوسی) نو په تحقیق سره (څمونږ مدد) به هغه سره وی۔

وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ حَتّٰى

او تاسو دَ داسے طریقے نه سوا چه (دَ یتیم په حق کښے)

يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ ۖ وَاَوْفُوْا بِالْعَهْدِ ۚ اِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْـُٔوْلًا ۝٣٤

ډیره ښه وی (په بل شان) دَ یتیم مال ته ورځوخت نشئ تر دے چه هغه پوخ عمر ته اورسی او (خپل) لوظ پوره کړئ وے چه دَ هر یو لوظ پځقله به په یقینی ډول (یوه نه یوه ورځ) تپوس کیګی۔

وَاَوْفُوا الْكَيْلَ اِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ۚ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا ۝٣٥

او هر کله چه تاسو (یا ته څه) په ناپ ورکوئ نو په ناپ پوره ورکوئ او (هر کله چه په تول ورکوئ نو هُم) دَ تلے نیغے ډنډئ سره په تول ورکوئ - دا خبره تولو نه ښهٔ او دَ انجام په لحاظ هرڅهٔ نه ښهٔ ده۔

وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ۚ اِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ اُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْـُٔوْلًا ۝٣٦

(یه اوریدونکیه!) چه دَ کومے خبرے تا ته علم نه وی هغے پسے مهٔ ځه (وے چه) دَ غوږونو او سترګو او دَ زړه، دے ټولو څیزونو پځقله به (ځانله) تپوس کیګی۔

وَلَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ۚ اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا ۝٣٧

په زمکه په غُرور مهٔ ګرځه، وے چه ته نه خو دا شان دَ ملک انتها ته رسیدے شے او نه ته (دا شان دَ قام) دَ سردارانو اوچته درجه حاصلولے شے۔

كُلُّ ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهٗ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا ۝٣٨

دے (حکمونو) کښے دَ هر یو (کار) بد صُورت ستا دَ رب په نزد ناخوښه دے۔

ذٰلِكَ مِمَّآ اَوْحٰٓى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتُلْقٰى فِىْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا ۝٣٩

دا (دَ او چت شان تعلیم) دَ هغه علم او حکمت (یوه برخه) ده چه ستا رب دَ وحی په ذریعه تا ته استولے دے او ته الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق مهٔ ګڼړه ګنی نو ته به ملامَنه (او) رټلے دکلے دوزخ کښے واچولے شے۔

اَفَاَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا ۚ اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا ۝٤٠ ع

آیا ستاسو رب تاسو له هلکان (دَ نعمت په طور) مخصوص کړی دی او (خپله) هغهٔ څنے فرښتو له (نجلے) لوڼړه

جو ړے کړے دی په تحقیق سره (دا) ډیره (خطرناکه) خبره کوئ۔

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِيَذَّكَّرُوْا وَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا ﴿۴۱﴾

او مونږ ده دے قرآن کښے (هره یوه خبره) دے دپاره بیان کړے ده چه هغوی (دے نه) نصیحت واخلی ولے (سره د دے) هغه (قرآن) هغوی (عجب او) نفرت کښے لګیا دی زیاتوی۔

قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗٓ اٰلِهَةٌ كَمَا يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِي الْعَرْشِ سَبِيْلًا ﴿۴۲﴾

(ته) اووایه چه (کچرے) د هغوی د وینا مطابق هغه (الله) سره نور (څوک) د عبادت لائق (هم) وے نو دا سے حال کښے به هغوئ (مشرکانو د دغو معبودانو په مدد) د عرش (خدائے) پورے د رسیدلو څه لاره خامخا لټولے۔

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا ﴿۴۳﴾

هغه د هغوئ (د مشرکانو) د شرک د خبرونه ډیر پاک او ډیر اوچت دے۔

تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا ﴿۴۴﴾

اووه واړه آسمانه او زمکه او چه څوک په هغو کښے (اوسیږي) دی د هغهٔ ثناء وائی او (د دنیا) هر څیز د هغهٔ صفت سره د هغهٔ ثناء کوی۔ ولے تاسو د دغو (څیزونو) په ثنا نه پوهیږئ۔ په تحقیق سره هغه پرده پوشی کوونکے او ډیر بخښونکے دے۔

وَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُوْرًا ﴿۴۵﴾

او هر کله چه ته قرآن لولے نو (هغه وخت) مونږ ستا ترمنځه او د هغو خلقو ترمنځه چه په آخرت ایمان نهٔ لری یوه پټه (او د عام نظرنه پټه) پرده پیدا کوو۔

وَّجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا وَاِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِي الْقُرْاٰنِ وَحْدَهٗ وَلَّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ نُفُوْرًا ﴿۴۶﴾

او مونږ د هغوئ په زړونو (څو) پردے اچوو څکه چه هغوئ په دے (رښتنی) پوهه نهٔ شی او د هغوی په غوږونو کښے کونړوالے (پیدا کړے) دے او هر کله چه ته قرآن کښے خپل رب چه ایکی یو دے یادوے نو هغوی په نفرت په شا روان شی۔

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ بِهٖٓ اِذْ يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ وَاِذْ هُمْ نَجْوٰٓى اِذْ يَقُوْلُ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ﴿۴۷﴾

(او) هرکله چه هغوئ (په ښکاره) ستا خبرے کیا وی آوری نو چه په کوم غرض هغوئ ستا خبرے کیا وی آوری مونږ دَ هغے دَ حقیقت نه ښهٔ خبر یو او (دغسے) هرکله چه هغوی یو تر بله پَسْ پَسْ کیاوی کوی (دَ هغے هُم مونږ ته علم وی او) هرکله چه هغه ظالمان (یو بل ته) کیاوی وائی چه (تاسو یو دهوکه کښے راغلی سړی پسے زئ نو (هغه وخت هُم مونږ کیا لیو اورو).

اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ﴿۴۸﴾

اوګوره هغوی ستا پحقله څنګه (څنګه) خبرے جوړے کړی دی چه دَ هغے په نتیجه کښے هغوی بے لارے شوی دی او اوس هغوی دَ (هدایت دَ حاصلو دَ پاره) هیڅ لار نشی موندے.

وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿۴۹﴾

او هغوئ (دا هُم) وئیلی دی (آیا) هرکله چه مونږ (مرګ نه پس) هډوکی (هډوکی) شو او څه موده پس به چه وراسته هډوکی (هُم) چوره چوره شی (نو مونږ به بیا دَ سره ژوندی کولے شو او) آیا رښتیا به مونږ دَ لوئی مخلوق په شکل اوچتولے شو؟

قُلْ كُوْنُوْا حِجَارَةً اَوْ حَدِيْدًا ﴿۵۰﴾

تهٔ (هغوی ته) اووایه (چه) تاسو (که) کانړی جوړ شئ یا اوسپنه.

اَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِىْ صُدُوْرِكُمْ ۚ فَسَيَقُوْلُوْنَ مَنْ يُّعِيْدُنَا ۗ قُلِ الَّذِىْ فَطَرَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ فَسَيُنْغِضُوْنَ اِلَيْكَ رُءُوْسَهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هُوَ ۗ قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَرِيْبًا ﴿۵۱﴾

یا څهٔ بل داسے مخلوق چه ستا سو په زړونو کښے دغو نه هُم سخت په نظر راڅی (بیا به هُم تاسو په دوئم ځل ژوندی کولے شئ) (دَ دے په آوریدو به) هغوی خامخا وائی (چه) څوک به مونږ په دوئم ځل (را ژوندی کړی) راولی. تهٔ (هغوی) ته اووایه (چه) هُم هغه (خدائے) چا چه تاسو په ړومبی ځل پیدا کړی وئی په دے به هغوی خامخا په حیرانتیا ستا سو په طرف (په کتو کتو) سرخوزوی

اوو ائی به (چه) دا (دَ ژوندی کولو معامله) به کله وی؟ (ورکله چه هغوی دا سے او وائی نو) ته (هغوی ته) اووایه (چه) بالکل ممکنه ده چه هغه (وخت اوس) نزدے (راغلے) وی۔

يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهٖ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٥٢﴾ ع ٥

(دا وعده به هغه ورځ پوره کیگی) کومه ورځ به چه هغه تاسو رابلی نو تاسو به دَ هغهٔ ثناء صفت بیانولو سره دَ هغهٔ حُکم منئ (او ډیر زر به حاضریگئ) او تاسو به گنړئ چه تاسو (دنیا کښے) ډیر لږ پاتے وئ۔

وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنزَغُ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلْإِنسَانِ عَدُوًّا مُّبِينًا ﴿٥٣﴾

ته ځما بندیانو ته او وایه (چه) هُم هغه خبره کوئ چه (دَ ټولو نه) زیاته ښه وی (ولے چه) شیطان په تحقیق سره دَ هغوی ترمنځه فساد لگیاوی اچوی - شیطان دَ انسان ښکاره (ښکاره) دښمن دے۔

رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ ۖ إِن يَشَأْ يَرْحَمْكُمْ أَوْ إِن يَشَأْ يُعَذِّبْكُمْ ۚ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴿٥٤﴾

ستا رب تاسو (دَ ټولو نه) زیات پیژنی که هغه اوغواړی نو په تاسو به رحم اوکړی او کچرے هغه اوغواړی نو تاسو له به عذاب ورکړی او (اے رسوله!) مونږ ته دَ هغوی ذمه وار نه ئے آستولے۔

وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِمَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيِّينَ عَلَىٰ بَعْضٍ ۖ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ﴿٥٥﴾

او کوم (څیزونه چه) آسمانونو او زمکه کښے (استوګن) دی هغوی له ستا سو رب (دَ ټولو نه) زیات پیژنی او مونږ په تحقیق سره نبیانو کښے بعضو له په بعضو (نورو نبیانو) فضیلت ورکړے دے او داوٗد له (هُم) مونږ زبُور ورکړے وُه۔

قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِهٖ فَلَا يَمْلِكُونَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنكُمْ وَلَا تَحْوِيلًا ﴿٥٦﴾

ته (هغوی ته) اووایه (چه) دَ کومو خلقو په حقله ستاسو دعوٰی ده چه هغوی دَ هغهٔ نه سوا خُدائی لری هغوئ (ځپل مدد دَ پاره) اوغواړئ (نو تاسو ته به معلومه شی چه) نهٔ هغوی (ستاسو څخهٔ) تکلیف تاسو نه دَ لرے کولو

واک لری او نهٔ رستا سو په حال کښے) دَ څه تبدیلئ پیدا کولو (طاقت لری).

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ ۚ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا ﴿٥٧﴾

هغه خلق څوک چه هغوی بلی هغوئ هُم خپل رب ته دَ نزدیکت دَ پاره څهٔ وسیله لټوی (یعنی دا ګیا دی کوری) چه څوک خدا ئے ته زیات نزدے دے (څکه چه مونږ دَ هغهٔ مدد حاصل کړو) او هغوی مدام دَ هغهٔ دَ رحمت اُمید لری او دَ هغهٔ دَ عذاب نه ویرېږي. ستا دَ رب عذاب په تحقیق سره داسے دے چه ترے نه ویره کیږی.

وَإِن مِّن قَرْيَةٍ إِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا ۚ كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴿٥٨﴾

او (دَ زمکے په مخ) هیڅ یو داسے نرئ نشته (نهٔ به وی) چه مونږ به ورله دَ قیامت دَ ورځے نه آګاهُو هلاک نه کړو یا هغے له ډیر سخت عذاب ورنکړو دا خبره (په الهی) تقدیر کښے (رومبئ نه) لیکلے شوے ده.

وَمَا مَنَعَنَا أَن نُّرْسِلَ بِالْآيَاتِ إِلَّا أَن كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ ۚ وَآتَيْنَا ثَمُودَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا ۚ وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا ﴿٥٩﴾

(آیا) مونږ له نښانانو رالیږلو کښے دے نه سوا بل څه (امر) ایسار وے شی. چه رومبنی خلقو دے نښانانو نه) انکار کړے وه (او دے نه ئے هیڅ فائده اخستے نکے نه وه وے دا هیڅ وجه دَ نښان دَ رالیږلو نه حصارو نه ده) نو بیا (هرکله چه) مونږ (قام دَ) ثمود نه یو اوښه دَ لو ښکاره نښان په طور ورکړه نو هغوئ په هغے ظلم اوکړو او مونږ نښانات هُم (دَ بد انجام نه) دَ ویرولو دَ پاره استوُو.

وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِالنَّاسِ ۚ وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ ۚ وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيدُهُمْ

او هرکله چه مونږ تا سو ته وئیلی وُو ستا سو رب تمامی دَ هغے خلقو دَ هلاکولو (فیصله) کړے ده (بیا هُم هغوی فائده او چته نکړه) او چه کومه رُویا مونږ تا ته ښودلے وه هغه (هُم) او هغه ونه (هُم) کومه چه په قرآن کښے

اِلَّا طُغْيَانًا كَبِيْرًا ﴿٦٠﴾ ع

پہ لعنت شوے دہ مونږ د خلقو د پارہ صرف د امتحان ذریعه جوړه کړے وه او (سره د دے چه) مونږ هغوی (ګکیا یو) ویروُو بیا (هُم) هغه (یعنی ځمونږ ویرول) هغوی له په یوه خطرناکه سرکشئ کښے ګکیا دے زیاتوی۔

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ قَالَ ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِيْنًا ﴿٦١﴾

او (هغه وخت هُم یاد کړئ) هرکله چه مونږ فرښتو ته وئیلی وُو (چه) تاسو آدمؑ سره (یو ځائے) سجده اوکړئ نو هغوی (د حُکم مطابق آدمؑ سره یو ځائے) سجده کړے وه۔ وے ابلیس (کړے نه وه) هغهٔ وئیلی وه (چه) آیا زهٔ دهٔ (یعنی بشر سره) یو ځائے سجده اوکړم چه تا د خټے نه پیدا کړے دے۔

قَالَ اَرَءَيْتَكَ هٰذَا الَّذِيْ كَرَّمْتَ عَلَيَّ لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهٗٓ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٦٢﴾

(وروسته دا) هغهٔ اووئیل (چه) اے الله! هُم تهٔ ماته (او وایه چه آیا دا (ځما مطاع کیدے شی) څوک چه تا په ما او چت کړے دے، کچرے تا ماله د قیامت تر ورځے پورے مولت را کړو نو ځما هُم ستا په ذات قسم دے چه زهٔ به (د دهٔ ټول) اولاد قابو کړم سوا د لږو خلقو نه (چاله چه تهٔ اوسلتے)۔

قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَاِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُوْرًا ﴿٦٣﴾

(الله او فرمائیل ځه لرے شه) وے چه ستا هُم او په دوی کښے چه څوک تا پسے لاړ (د هغوی هُم) سزا جهنم دے (او دا) پوره پوره بدله (ده)۔

وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِي الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ وَعِدْهُمْ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿٦٤﴾

او (مونږ او وئیل ځه) دوئ کښے چه په چا ستا وس رسی هغهٔ له په خپل آواز دهوکه ورکړه (او ځان ته ئے) او غواړه او خپل سواره او پیاده په هغوئ را اوځغلوه او د هغوی په مالونو او اولاد کښے د هغوی حصه دار جوړ شه او هغوی سره (د دروغو) وعدے اوکړه (او بیا د خپلو کوششونو نتیجه اوګوره) او شیطان چه کومے

وعدے کوی هُم دَ فریب په نیت ئے کوی ۔

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ ۚ وَكَفٰى بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٦﴾

څوک چه ځما بندیان دی په هغوئ میچرے ستا زور (نشي چلیدے) او (یۀ ځما بنده ! ) ستا رب په کار جوړولو کښے تا دَپاره کافی دے۔

رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهٖ ۚ إِنَّهٗ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٦٧﴾

او (یه ځما بندیانو ! ) ستاسو رب (خو) هغه دے چه تاسو دَپاره کشتئ سمندر کښے بُوزی، دے دَ پاره چه تاسو دَ هغهٔ فضل او لټوئ هغه په تحقیق سره په تاسو بیا بیا رحم کُونکے دے۔

وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ ۖ فَلَمَّا نَجّٰىكُمْ إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ الْإِنْسَانُ كَفُورًا ﴿٦٨﴾

او هر کله چه په سمندر کښے (دَ سیلاب له کبله) تاسو ته تکلیف اورسی نو دَ هغهٔ نه سوا (نور څیزونه) څوک چه تاسو رابلئ (ستاسو دَ ذهنونو نه بیناه شی۔ بیا هر کله چه تاسو په حفاظت اوچے ته راولی نو تاسو (هغهٔ نه) ډډه کوئ او انسان ډیر زیات ناشُکره دے۔

أَفَأَمِنْتُمْ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ وَكِيلًا ﴿٦٩﴾

آیا بیا تاسو (دا خیال کوئ چه تاسو) دَ دے خبرے نه بیغمٔ (من کښے ئې چه هغه (یا خو) تاسو په اوچه غاړه (زمکه) کښے ننه باسی یا په تاسو کنکرے اووَروی او بیا تاسو هیڅوک خپل کارجوړے (او مددګار) اونه مومئ۔

أَمْ أَمِنْتُمْ أَنْ يُعِيدَكُمْ فِيهِ تَارَةً أُخْرٰى فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِنَ الرِّيحِ فَيُغْرِقَكُمْ بِمَا كَفَرْتُمْ ۙ ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهٖ تَبِيعًا ﴿٧٠﴾

یا تاسو دَ دے خبرے نه بے ویرے یئ چه هغه تاسو (بیا) په دوئیم ځل دے (سمندر) ته راوالپس کړی او تاسو باندے یوه تیزه هوا راپریږدی او ستاسو دَ کُفر له کبله تاسو غرق کړی (او) بیا په دے (عذاب) تاسو ځمونږ خلاف څوک هُم مددګار او نه مومئ۔

وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا ﴿٧١﴾ ع

او مونږ بنی آدم ته (ډیر) عزت ورکړے دے او دَ هغوی دَپاره مُو په اوچه او لمده دَ سور لئ سامان پیدا کړے دے او هغوئ له مُو دَ پاکیزه څیزونو نه رزق ورکړے

دے او چه کوم مخلوق مونږ پیدا کړے دے په دے کښے
یو ه ګڼره برخه باندے مونږ هغوئ له لوئے فضیلت
ورکړے دے۔

يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ اُنَاسٍۭ بِاِمَامِهِمْ ۚ فَمَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ
بِيَمِيْنِهٖ فَاُولٰٓئِكَ يَقْرَءُوْنَ كِتٰبَهُمْ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۝۷۱

او (هغه ورځ هُم یاده کړئ) کومه ورځ به چه مونږ
هر یو تولئ دَ هغوئ دَ مشرسره راغواړو بیا چه دَ
چا ښی لاس کښے به دَ هغوی (دَ عملونو) کتاب ورکړے
شی هغوی به (په ډیر شوق) خپل کتاب لولی او په هغوی
به پوتئ قدرے (هُم) ظلم نه کیګی۔

وَمَنْ كَانَ فِيْ هٰذِهٖٓ اَعْمٰى فَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى وَاَضَلُّ
سَبِيْلًا ۝۷۲

او څوک به چه دے (دُنیا) کښے ړوند وی هغه به په
آخرت کښے (هُم) ړوند وی او (زداشان به هغه) په
خپل (طور او) طریقه کښے دَ ټولو نه زیات بے لارے وی۔

وَاِنْ كَادُوْا لَيَفْتِنُوْنَكَ عَنِ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ
لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهٗ ۖ وَاِذًا لَّاتَّخَذُوْكَ خَلِيْلًا ۝۷۳

او نږدے وه چه دَ دے (کلام) له کبله چه مونږ تا ته
وحی سره راکوز کړے دے هغوی ته (سخت نه سخت)
عذاب کښے آخته کړے وے۔ دے دَ پاره چه ته (دَ
هغوی دَ ویرے) دَ دے (کلام) نه سوا بل څه (کلام
دَ خپله ځانه) جوړ مونږ سره اوتړے او (کچرے تا داسے
کړے نو) هغسے به هغوی په تحقیق سره ته (خپل)
خوږ دوست جوړ کړے وے۔

وَلَوْلَآ اَنْ ثَبَّتْنٰكَ لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْــًٔا
قَلِيْلًا ۝۷۴

او کچرے ته مونږ (دَ قرآن په ذریعه) مضبوط کړے
نه وے نو بیا به هُم (هُم داسے وه چه) ته به (دَ
الهام) نه هُم دَ هغوی په طرف ډیر و کمو خبرو کښے
درمات وے روان اوس خو دَ الله وحی تا ته صحی لاره
ښودلے ده)۔

اِذًا لَّاَذَقْنٰكَ ضِعْفَ الْحَيٰوةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا
تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيْرًا ۝۷۵

(او کچرے تخنګه چه دَ هغوی خیال دے ته په مونږ دروغ
تړونکے وے) نو هغسے به مونږ به تا دَ ژوند لوئے عذاب

اور دَ مرگ لوئے عذاب ځکوَلے وے (او) بیا بهٔ تاځمونږ خلاف هیڅوک (هُم) خپل مددګار نه وے مُوندلے۔

وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْكَ مِنْهَا وَاِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۷۶﴾

او هغوئ په تحقیق سره ستا دَ ملک نه دَا باسلو مخلفے بانے لټوی ځکه چه تا او ویره وی رکه دا سے او شوه نو (هغوی به رخپله هُم) ستا نه پس لږه موده (محفوظ) پاتے شی (او زر به تباه شی)۔

سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلًا ﴿۷۷﴾ ع ۸

(دا سلوک به ځمونږ دَ هغه سلوک سره سم وی کوم چه مونږ ه تا نه آګاهو (زیرشوو) خپلو رُسولانو (قامونو) سره کړے وه او تهٔ به ځمونږ په دے سُنت کښے هیڅ فرق او نهٔ مومے۔

اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا ﴿۷۸﴾

تهٔ دَ نمر په غرغره کیدو (پرلیو (تهٔ) نه واخله دَ شپے دَ بنے تیرے کیدو پورے (مختلفو وختو لوکښے) په ښهٔ رنګ نمونځ کوه او سحر وختی (دَ قرآن) لوستنه هُم (لازم اوګنړه) دَ سحر په وخت دَ (قرآن) تلاوت کول په تحقیق سره دَ الله په نزد لو خوښ عمل دے۔

وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰۤى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ﴿۷۹﴾

او دَ شپے هُم تهٔ دَ دے (قرآن) په ذریعه ځه دَ اوده کیدو نه پس ویښیږه چه په تا لو زیاتی انعام دے۔ (دا شان) خامخا کیدونے ده چه ستا رب تا دَ تعریف په مقام اُودروی۔

وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا ﴿۸۰﴾

او اووایه (چه) اے ځما ربِّ! ما په ښه طریقه (بیا دوځم ځل مکه کښے) داخل کړه او دَ نیک ذکر دَ پریخودو په طریقه م (دَ مکے نه) او باسه او دَ خپلے خوا نه ځما څوک مدد ګار (او) ګواه مقرر کړه۔

وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا ﴿۸۱﴾

او ټولو خلقو ته اووایه چه بس اوس حق راغلے دے او باطل خو دے تختید ونکے۔

وَ نُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّ رَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا ۝۸۲

او مونږ په قرآن کښې په رورو هغه (تعليم) راکوزوو چه دَ مومنانو دَ پاره (خو موجب دَ شفا (او) رحمت دے او ظالمان ئې په نقصان کښې زياتوي.

وَاِذَآ اَنْعَمْنَا عَلَى الْاِنْسَانِ اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ كَانَ يَئُوْسًا ۝۸۳

او هر کله چه مونږ په انسان انعام اوکړو نو هغه مخ واړوی او خپله څوا (دے نه) لرے باسی او هر کله چه هغهٔ ته تکليف اورسی نو هغه ډير نااُميده شی۔

قُلْ كُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ ؕ فَرَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ اَهْدٰى سَبِيْلًا ۝۸۴ ع ۹

تهٔ (هغوی ته) اووايه (چه مونږ کښې) هر يو (تولے) په خپله (خپله) طريقه لګيا دے عمل کوی بيا نو په (خپل رب فيصله پريګيدهٔ وے چه) ستاسو رب هغه چا له چه په ښه صحی لاره دے ښهٔ پيژنی (دے دَ پاره دَ هغهٔ فيصله به دَ ربښتونی ربښتنی خامخا ښکاره کوی)۔

وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ ؕ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا ۝۸۵

او هغوی تا نه دَ رُوح په حقله تپوس کوی تهٔ (هغوی ته) اووايه (چه) رُوح زما دَ رب په حُکم (پيدا شوے) دے او تاسو ته (په دے حقله) دَ علم نه کمه (برخه) درکړے شوے ده۔

وَ لَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهٖ عَلَيْنَا وَكِيْلًا ۝۸۶

او که چرے مونږ اوغواړو نو په تحقيق سره کوم (الٰهی کلام) چه مونږ په تا وحی کړے دے هغه به (دَ دنيا) نه اوچت کړو بيا به دے کار کښې ته ځان دَ پاره زمونږ خلاف هيڅوک کارساز او نهٔ مومندے۔

اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيْرًا ۝۸۷

سوا دَ دے نه چه ستا دَ رب (خاص) رحمت وی (چه دا واپس راوړی وے دا قرآن ختميدے نشی ځکه چه) ستا دَ رب په تحقيق سره په تا ډير لوئے فضل دے۔

قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ۝۸۸

تهٔ (هغوی ته) اووايه (چه) که چرے ټول انسانان (هُم) او جنات (هُم) دَ دے قرآن دَ نظير راوړو دَ پاره راغونډ شی نو (بيا هُم) هغوی دَ دے نظير نشی راوړے

هرڅوک هغوی دَ یو بل مددګار (هُم) جوړ شی۔

وَ لَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ کُلِّ مَثَلٍ فَاَبٰٓی اَکْثَرُ النَّاسِ اِلَّا کُفُوْرًا ﴿۸۹﴾

او مونږ دے قرآن کښے په تحقیق سره هره یوه (ضروری) خبره په مختلفو طریقو بیان کړے ده بیا (هُم) ګنړو خلقو (دَ دے پخقله) کفر (کولو) نه سوا دَ هرے خبرے نه انکار کړے دے۔

وَ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَکَ حَتّٰی تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْاَرْضِ یَنْۢبُوْعًا ﴿۹۰﴾

او هغوی (دا هُم) ووئیلی دی (چه) مونږ به هیڅکله ستا (څه) خبره نهٔ منو ترڅو پورے (چه دا سے اونشی چه) تهٔ څمونږ دَ پاره دَ زمکے نه څهٔ چینه روانه کړے۔

اَوْ تَکُوْنَ لَکَ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِیْلٍ وَّ عِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْاَنْهٰرَ خِلٰلَهَا تَفْجِیْرًا ﴿۹۱﴾

یا ستا دَ کجهورو او دَ انګورانو څه باغ وی او تهٔ دے کښے ډنه بنهٔ (ډیر) نهرونه جاری کړے۔

اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ کَمَا زَعَمْتَ عَلَیْنَا کِسَفًا اَوْ تَاْتِیَ بِاللّٰهِ وَ الْمَلٰٓئِکَةِ قَبِیْلًا ﴿۹۲﴾

یا لکه څنګه چه ستا دعوی ده تهٔ په مونږه دَ آسمان ټکړے را او غورزوے یا الله او فرښتے (مونږ ته) مخ په مخ ادروے۔

اَوْ یَکُوْنَ لَکَ بَیْتٌ مِّنْ زُخْرُفٍ اَوْ تَرْقٰی فِی السَّمَآءِ ؕ وَ لَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِیِّکَ حَتّٰی تُنَزِّلَ عَلَیْنَا کِتٰبًا نَّقْرَؤُهٗ ؕ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّیْ هَلْ کُنْتُ اِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۳﴾ ع

یا ستا دَ سرو زرو کور وی یا تهٔ آسمان ته اوخیژے او مونږه به ستا (آسمان ته) په ختلو هُم ایمان رانهٔ وړو ترڅو پورے چه تهٔ (پاس نه) په مونږ څه کتاب را کوز (نهٔ) کړے چه هغه مونږ (خپله) اولولو۔ تهٔ (هغوی ته) او وایه (چه) څمارب (دَ دا سے فضول خبرو دَ کولو نه) پاک دے۔ زهٔ (خو) بس بشر رسُول یم (آسمان ته نشم ختلے)۔

وَ مَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ یُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰٓی اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۴﴾

او هغه خلق په دغه هدایت چه هغوی له راغلے دے دَ ایمان راوړو نه بس دے خبرے منع کړی دی چه هغو (خپلو زړونو) کښے او وئیل (چه) آیا الله یو بشر دَ رسُول په حیث را لیږلے دے۔

قُلْ لَّوْ کَانَ فِی الْاَرْضِ مَلٰٓئِکَةٌ یَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّیْنَ

تهٔ (هغوی ته) او وایه (چه) کچرے په زمکه فرښتے

لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿۹۶﴾

(او سیدے) وے چه په زمکه په تسلی گرزیدے نو (ضرور) به مونږ خامخا په هغوی دَ آسمان نه (هُم) فرښته دَ رسُول په حیث راکوزه کړے وے۔

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًاۢ بَصِيْرًا ﴿۹۷﴾

ته (هغوی ته) اووایه (چه) ځما او ستاسو ترمنځه دَ گواه په حیث هُم الله کافی دے۔ هغه خپلو بندیانو نه خبر او لیدُونکے دے۔

وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ ۭ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ۭ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ﴿۹۸﴾

او چاله چه الله هدایت ورکړی هُم هغه په سمه لار وی او چاله چه هغه بے لارے کړی نو ته به دَ هغهٔ (یعنی الله) خلاف دَ هغه (کس) څوک هُم مددگار او نهٔ مومے او دَ قیامت په ورځ به مونږ هغوی دَ هغو دَ مقصدونو (او نیستونو) سره سم ړانده او گونگیان او دَ کنړو په حال راغونډوُو۔ دَ هغوی ځائے به جهنم وی هرکله چه به هغه (جهنم) لږ څه شی نو په هغوی به عذاب سخت کړے شی کوم (عذاب) به چه دَ غرغنډو دَ اوروی۔

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿۹۹﴾

دا (اور) به دَ هغوی (دَ عملونو) جزا وی وے چه هغوی ځمونږ دَ نښانانو انکار اوکړو او وے وئیل چه آیا هرکله به چه مونږ (مرگ نه پس) هډوکی او چوره چوره شُو (نو مونږ به بیا دَ سره را ژوندی کولے شو او) آیا واقعی به مونږ ه دَ یولوی مخلوق غنوندے اوچتولے شُو۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۭ فَاَبَى الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا ﴿۱۰۰﴾

آیا هغوی (او سه پورے) پوهه نهٔ شول چه هغه (ذات) چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړی دی په دے خبره هُم قادر دے چه هغه دَ هغوی غوندے (نور خلق) پیدا کړی او په دے کښے هیڅ شک نشته چه

هغه هغوی دَ پاره یو میاد مقرر کړے دے بیا (هُم) دے ظالمانو لپس دَ ناشکرئ لاره نیولے ده۔

قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّیْٓ اِذًا لَّاَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْاِنْفَاقِ ؕ وَكَانَ الْاِنْسَانُ قَتُوْرًا ۧ ﴿۱۰۰﴾

ع

ته (هغوی ته) او وایه (چه) کچرے تاسو ځما دَ رب دَ رحمت (دَ بے انتها) خزانو (هُم) مالکان وے نو (بیا به هُم) تاسو (دَ هغو) دَ لګیخت دَ ویرے نه (هغو) له ایسارے کړے وے او انسان ډیر (زیات) شُوم دے۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ فَسْـَٔلْ بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِذْ جَآءَهُمْ فَقَالَ لَهٗ فِرْعَوْنُ اِنِّیْ لَاَظُنُّكَ يٰمُوْسٰى مَسْحُوْرًا ﴿۱۰۱﴾

او مونږ موسیٰ ته نهه ښکاره نښانات ورکړی وُو بیا نو ته دَ بنی اسرائیلو نه (دَ دے حالاتو) پوښتنه اوکړه هرکله چه هغه (موسیٰ) هغوی (دَ مصر او سیدونکو) له راغلے وُو نو فرعون هغهٔ ته وئیلی وُو (چه) اے موسیٰ به تحقیق سره زهٔ تا دهوکه شوے ګڼړم۔

قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَآ اَنْزَلَ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ بَصَآئِرَ ۚ وَاِنِّیْ لَاَظُنُّكَ يٰفِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا ﴿۱۰۲﴾

هغهٔ جواب ورکړو (چه) به تحقیق سره ته پوهه شوے ئے چه دا (نښانات) صرف دَ آسمانونو او زمکے رب داسے راکوز کړی دی چه سترګے غړوونکی دی۔ او اے فرعون! زهٔ ستا پخقله یقین لرم چه تهٔ به (خپلو بد و ارادو کښے) ناکامه او نامراده شے۔

فَاَرَادَ اَنْ يَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْاَرْضِ فَاَغْرَقْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ جَمِيْعًا ۙ ﴿۱۰۳﴾

په دے هغهٔ هغوئ ته (یعنی موسیٰ او دَ هغهٔ قام ته) دَ ملک نه دَ اوښکلو اراده اوکړه دَ دے نتیجه دا راووته چه مونږ هغه او چه څوک هغهٔ سره وُو ټول غرق کړل۔

وَّقُلْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ اسْكُنُوا الْاَرْضَ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيْفًا ؕ ﴿۱۰۴﴾

او دَ هغهٔ (دَ هغه دَ ډوبیدو دَ مرګ) نه پس بنی اسرائیلو ته مونږ او وئیل (چه) تاسو دے (وعده کړی شوی) ملک کښے (زئ په آرام) اوسئ بیا هرکله چه (دَ مسلمانانو دَ پاره) په دوئم ځل (دَ عذاب) دَ وعدے

(دَ پوره کید وونحت) را شی نو مونږ به تاسو (ټول) یو ځائے هلته راولو۔

وَ بِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَ بِالْحَقِّ نَزَلَ ؕ وَ مَاۤ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا ۱۰۵

او دا قرآن مونږ حق (او حکمت) سره نازل کړے دے او حق (او حکمت) سره دا راکوز دے او مونږ ته لېږلے یې د زیرے ورکوونکے او عذاب نه خبروونکے استولے یې۔

وَ قُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ وَّ نَزَّلْنٰهُ تَنْزِيْلًا ۱۰۶

او مونږ (دے له) قرآن جوړ کړے دے او دَ دے مو برخے برخے کړی دی (یعنی سورتونه مو جوړ کړی دی) ځکه چه ته دا (په آسانئ) او په رو رو خلقو ته واوروے شے او مونږ دا لږ لږ نازل کړے دے۔

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖۤ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖۤ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ۙ ۱۰۷

ته (هغوی ته) او وایه (چه) که تاسو په دے ایمان راوړئ یا نه راوړئ کوم خلقو ته چه دَ دے (دَ نزول) نه آګاهو (دَ الهامی صحیفو یا صحی فطرت په ذریعه) علم ورکړے شوے دے هرکله چه دَ هغوی وړاندے دا لوستے شی نو هغوئ (دَ دے په اوریدو) پوره ځکم منو وو سره په سجده شی۔

وَّ يَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَاۤ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا ۱۰۸

او وائی (چه) ځمونږ رب (دَ هر لو عیب نه) پاک دے او دا چه ځمونږ دَ رب وعده خامخا پوره کیدونکے ده۔

وَ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ يَبْكُوْنَ وَ يَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا ۩ ۱۰۹ السجدة

او هرکله چه هغوی تندی اولګوی نو ژاړی او هغه (قرآن) دَ هغو۔ عاجزی (نوره هُم) زیاتوی۔

قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ؕ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ۚ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا وَ ابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ۱۱۰

ته (هغوی ته) او وایه (چه) کچرے تاسو (خدائے ته) دَ الله (په نوم) او بلئ یا دَ رحمان (په نوم) کوم (نوم هُم چه تاسو اخلئ) تاسو هغه بللے شئ۔ ولے چه ټول (ښه نه ښه) صفتونه هُم دَ هغه دی او نه خپله

وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَمْ یَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ یَكُنْ
لَّهٗ شَرِیْكٌ فِی الْمُلْكِ وَلَمْ یَكُنْ لَّهٗ وَلِیٌّ مِّنَ الذُّلِّ
وَكَبِّرْهُ تَكْبِیْرًا ۱۱۱

ع ۱۲

دُعا په اُوچت آواز مهٔ وایه او مهٔ هغه ردیں په
مزه وایه بلکه دَ دے ترمنځه ځه لاره خپله کړه۔
او رتو لے دُنیا ته بیا بیا او روئوسره ) او وایه رچه ) دَ
هر تعریف جوګه هُم الله دے چه نهٔ څو اولاد لری
او نهٔ په حکومت کښے دَ هغهٔ څوک شریک دے او
نهٔ هغه عاجز دے چه څوک ربل سرے په هغهٔ دَ
رحم له کبله ) دَ هغهٔ دوست جوړ یګی ربلکه څوک هُم
چه دَ هغهٔ دوست وی ) دَ هغهٔ دَ مدد دَ اخستو دَ پاره
وی او دَ هغهٔ ښه رپه ښهٔ شان ) لوئی بیانوه۔

سُوْرَةُ الْكَهْفِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ مِائَةٌ وَّاِحْدٰى عَشْرَةَ اٰيَةً وَّاثْنَا عَشَرَ رُكُوْعًا

سورة الکهف دا سورة مکی دے لبسم الله سره دَ دے سل دَ پاسه یولس آیتونه او دولس رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ خدائے چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ۜ ②

دَ هر تعریف لائق هُم الله دے چا چه (دا) کتاب په خپل بنده نازل کړے دے او دے کښے ئے هیڅ کږی نهٔ ده ایښے۔

قَيِّمًا لِّيُنْذِرَ بَاْسًا شَدِيْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۙ ③

(او هغهٔ دا) دَ (لیښتنی) نه ډک او صحی لاره ښودونکے نازل کړے دے ځکه چه هغه (خلقوله) دَ هغهٔ (یعنی دَ الله) دَطرف نه دَ (را تلونکی) یو سخت عذاب نه خبر کړی او ایمان (راوړونکوله چه نیک (او دَ ایمان سره مناسب) کارونه کوی زیرے ورکړی چه هغوی دَ پاره (دَ خدائے دَطرف نه) ښهٔ اجر (لیکلے) دے۔

مّٰكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ۙ ④

هغوی به دے (دَ اجر مقام) کښے تل اوسی۔

وَّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ ⑤

او (ورسره هغه دا دے دَ پاره نازل کړے دے) چه هغه هغو خلقوله دَ (را تلونکی عذاب نه خبر کړی چه دا وائی (چه) الله (فلانی سړیٔ) ځوئ جوړ کړے دے۔

مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ ۭ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۭ اِنْ يَّقُوْلُوْنَ اِلَّا كَذِبًا ⑥

هغوی ته په دے حقله هیڅ هُم علم نشته او نهٔ دَ هغوی دَ مشرانو (په دے حقله څه علم وُه) دا ډیره غټه (خطرناکه) خبره ده چه دَ هغوی دَ خُلونه نکیا دے او (زی (بلکه) هغوی نکیا دی هسے دروغ وائی۔

فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ اِنْ لَّمْ يُؤْمِنُوْا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَسَفًا ⑦

آیا کچرے هغوی په دے عظیم الشان کلام ایمان نهٔ (راوړی نو تهٔ به دَ هغوی دَ غمه دَ ډیر افسوس له کبله

خپل ځان هلاکت ته غورزوے۔

إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ⑧

څه چه دَ زمکے په مخ دی هغه مونږ په تحقیق سره دَ دے زینت (موجب) جوړ کړی دی ځکه چه مونږ دَ هغوی امتحان واخلو (چه) دوئ کښے دَ ټولو نه ښهٔ کار کوونکے څوک دے۔

وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا ⑨

او چه څهٔ په دے (زمکه) دی هغه به په تحقیق سره مونږ (لوه ورځ) ختم کړو او ورانه ویجاړه به پریږدو۔

أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا ⑩

آیا تهٔ خیال کوے چه دَ کهف او دَ رقیم اوسیدونکی (خلق) څمونږ په نښانانو کښے څه عجیبه (نښان) وُو (چه دَ هغے نه پریښیا کله هُم نښی مونده کیدے)۔

إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوا رَبَّنَا آتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ⑪

هر کله چه هغوئ ځوانانو په ارت غار کښے پناه واخسته او دُعا کولو سره) هغوی اووئیل (چه) یَه څمونږه ربّ مونږ له دَ خپلے خوا نه (خاص) رحمت راکړه او مونږ دَ پاره څمونږ (دے) معامله کښے کامیابی او دَ هدایت سامان پیدا کړه۔

فَضَرَبْنَا عَلَى آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا ⑫

مونږ په دے ارت غار کښے دَ شمیر دَ یو څو کلونو لپارے هغوی (دَ بهرنی حالاتو) دَ اوریدو نه محرومه کړل۔

ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ لِنَعْلَمَ أَيُّ الْحِزْبَيْنِ أَحْصَى لِمَا لَبِثُوا أَمَدًا ⑬

بیا مونږ هغوی اُوچت کړل ځکه چه مونږ ته پته اولګی چه څومره موده هغوی (هلته) ایسار شوی وُو هغے له (دَ مسیح منونکو) په دواړو ټولو کښے زیات محفوظ ساتونکے کوم ټولے دے۔

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُم بِالْحَقِّ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ⑭

(او س) مونږ دَ هغوی اهم خبر بالکل صحی تا ته بیانوو هغوی یو څو ځوانان وُو چه په خپل ربّ ئے (حقیقی) ایمان راوړے وُو او هغوئ مونږ په هدایت کښے

(نور هُم) زیات کړی وُو۔

وَّرَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اِذْ قَامُوْا فَقَالُوْا رَبُّنَا رَبُّ
السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَاْ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰهًا
لَّقَدْ قُلْنَآ اِذًا شَطَطًا ﴿۱۵﴾

او هر کله چه هغوئ (دَ خپل وطن نه وتو دَ پاره) پاسیدل نو مُونږ دَ هغوئ زړونه مضبوط کړل بیا هغوی (یو بل ته) اووئیل (چه) څمونږ رب (هغه دے چه) دَ آسمانونو او زمکے (هُم) رب دے مونږ به دَ هغهٔ نه سوا بل څوک معبود هیڅکله (هُم) نه رابلوکني نو مونږ به دَ حق نه لرے خبره کوُونکی یوُ۔

هٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ لَوْ لَا
يَاْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍۭ بَيِّنٍ ؕ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ
افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ؕ ﴿۱۶﴾

دے خلقو یعني څمونږ قام دَ دے حقیقي معبود په ځائے (خپل ځان دَ پاره) نور (نور معبودان) جوړ کړی دی هغوی دَ دوی په ثبوت ولے څه ښکاره دلیل نهٔ راوړی۔ بیا (هغوی ولے نهٔ پوهیګی چه) کوم سړے په الله دروغ اوتړی دَ هغهٔ نه زیات ظالم (بل) څوک (کیدے شی) دے۔

وَاِذِ اعْتَزَلْتُمُوْهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ فَاْوٗٓا
اِلَى الْكَهْفِ يَنْشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَيُهَيِّئْ
لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا ﴿۱۷﴾

او (دے وخت) هر کله (چه) تاسو دَ دوئ نه (او ورسره) دَ الله نه سوا چه دَ کوم څیز هغوی پرستش کوی په ډډه شوے یئ نو (اوس) تاسو دے یلن غریه پناه ګاه کښے ناست اوسئ (که دا سے اوکړئ) نو ستاسو رب به په خپل رحمت (څه لاره) ستاسو دَ پاره پرانزی او تاسو دَ پاره به ستا سو دے کار کښے څهٔ دَ آسانئ سامان پیدا کړی۔

وَتَرَى الشَّمْسَ اِذَا طَلَعَتْ تَّزٰوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ
ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَاِذَا غَرَبَتْ تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ
الشِّمَالِ وَهُمْ فِيْ فَجْوَةٍ مِّنْهُ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ
اللّٰهِ ؕ مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ

(راے اوریدُونکیه !) تهٔ نمر ته ګورے هر کله چه هغه خیژی نو دَ هغوی دَ پناه لوځے ځائے نه په ښي طرف آخوا تیریګی او هر کله چه هغه پریوزی دَ هغوی نه کس طرف ته اخوا تیریګي او هغوی دے غار کښے دننه یو کشاده ځائے کښے (او سیدلی) وُو۔ دا خبره دَ الله

تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿۱۸﴾

ع ۲ ۱۴

(دَ مدد) په نښانانو کښې (دَ نښان په طور) ده چا ته چه الله (دَ هدايت) لاره اونښائي هُم هغه په هدايت دی او چا ته چه هغه بې لارې کړی دَ هغهٔ به زکله هم ئحوک دوست (او) لاره ښودُونکے اونه مُومے۔

وَ تَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَّ هُمْ رُقُوْدٌ ۖ وَّ نُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَ ذَاتَ الشِّمَالِ ۖ وَ كَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ ۚ لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَّ لَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿۱۹﴾

او (اے اوریدُونکیه!) تهٔ هغوی بیدار گنړے ولے حال دا چه هغوی اُودهٔ دی او مونږ به هغوی په ښی طرف (هُم) کرزُوو او په کس طرف (هُم) او دَ هغوی سپیٔ به (هُم هغوی سره سره) غولی کښې خوارهٔ لاسونه (موجود) وی۔ کچرے تهٔ دَ هغوی دَ حالاتو نه خبر شے نو تهٔ به دَ هغوی نه دَ تېختے دَ پاره شاکړے او دَ هغویٔ له کبله به رُعب کښې راشے۔

وَ كَذٰلِكَ بَعَثْنٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوْا بَيْنَهُمْ ۚ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ ۚ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۚ قَالُوْا رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ۚ فَابْعَثُوْٓا اَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هٰذِهٖٓ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَلْيَنْظُرْ اَيُّهَآ اَزْكٰى طَعَامًا فَلْيَاْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَ لْيَتَلَطَّفْ وَ لَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَدًا ﴿۲۰﴾

باعتبار عدد الحروف بان التاء لیس النثر من النصف الاخیر

هو النصف الاول الاول والافتاء من النصف الاخیر

نصف القرآن

او دا شان مونږ هغوی (دَ بے وسئ دَ حال نه) اُوچت کړل په دے هغوی خپلو کښې (په حیرانتیا) یو بل نه په تپوس شول او هغوی کښې یو اووئیل (چه) تاسو دلته څومره وخت پاتے شوے یئ هغوی جواب ورکړو (چه) مونږ یو ورځ یا دَ ورځے څه برخه پاتے لُوریا) هغویٔ (یعنی نورو) اووئیل (چه) څومره (مُوده) چه تاسو (دلته) پاتے شوی یئ هغه ستاسو رب ته ښه معلومه ده۔ بیا (دا بحث پریږدئ او) خپلو ځوانو پیسو سره خپلو کښې څوک ښار ته واستوئ چه هغه اوګوری چه دے (ښار) کښې دَ چا غله دَ ټولو نه ښه ده بیا (چه دَ چا غله دَ ټولو نه ښه وی) هغه نه دَ خوړلو څهٔ سامان راوړی او هغه دے په هوښیارتیا (دَ خلقو) دَ راز دَ خبرو معلومولو کوشش اوکړی او ستاسو په حقله دِ چا ته هیڅکله (څه) پته نهٔ ورکوی۔

إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ
فِي مِلَّتِهِمْ وَلَن تُفْلِحُوا إِذًا أَبَدًا ﴿۲۱﴾

ولے چه که هغوی په تاسو غلبه اوموی نو په تحقیق سره تاسو به سنګسار کړی یا (په زور به) تاسو واپس خپل مذهب کښے داخل کړی او دا شان به تاسو کله (هُم) کامیاب نشئ۔

وَكَذَٰلِكَ أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوا أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ
حَقٌّ وَأَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَا إِذْ يَتَنَازَعُونَ
بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوا عَلَيْهِم بُنْيَانًا رَّبُّهُمْ
أَعْلَمُ بِهِمْ قَالَ الَّذِينَ غَلَبُوا عَلَىٰ أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ
عَلَيْهِم مَّسْجِدًا ﴿۲۲﴾

او دا شان مونږ (خلق) دَ هغوی (دَ حالاتو) نه خبر کړی دی، دے دَ پاره چه هغوی ته معلومه شی چه دَ الله وعده پوره کیدونکے ده او (دا هُم) چه دَ دے (وعده کړے شوی) وخت (را تلو) کښے هیڅ هُم شک نشته (او هغه وخت هُم یاد کړه) هرکله چه هغوئ دَ خپل کار په حقله خبرے کولے او هغوی (یو بل ته) اوویل (چه) تاسو دَ هغوی (دَ استوګنے په ځائے) څه عمارت جوړ کړئ۔ دَ هغوی رب دَ هغوی (دَ حال نه) دَ هر چا نه ښه خبروه (آخر) چا چه په خپل قول کښے غلبه حاصله کړه هغوی اوویل (چه) مونږ (خو به) دَ هغوئ دَ (استوګنے په ځائے) جماعت جوړوو۔

سَيَقُولُونَ ثَلَاثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ
خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ وَ
يَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ قُل رَّبِّي أَعْلَمُ
بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ فَلَا تُمَارِ
فِيهِمْ إِلَّا مِرَاءً ظَاهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم
مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿۲۳﴾ ع

هغوی (څوک چه حقیقت نه بے خبره دی خامخا) دَ غیب په حقله بے سر او پښو خبرے جوړوی (او کله به) وائی (چه هغوی بس) درے (سړی) وُو چه هغوی سره څلورم دَ هغوی سپیٔ وُه او (کله به دا) وائی (چه هغوی) پنځه وُو چه ورسره شپږم دَ هغوئ سپیٔ وه او (هغوی کښے بعضے داسے هُم) وائی چه (هغوئ) اووه وُو او هغوی سره اتم دَ هغوئ سپیٔ وه ته (هغوی ته) اووایه (چه) دَ هغوی په صحی شمیره (هُم) الله ښه پوهیګی (او) دَ لږو خلقو نه سوا هغوئ هیڅوک نهٔ پیژنی بیا ته دَ هغوی په حقله دَ

ع ۳ ۱۵

مضبوط بحث نه سوا هد و بحث مهٔ کوه او دَ هغوئ
پحقله هغوی کښې دَ چا نه دَ حقیقت تپوس مهٔ کوه۔

وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاْيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾

او تهٔ دَ څه خبرے پحقله (په دعویٰ) میڅکله مهٔ
وایه (چه) زهٔ به صبا دا (کار) ضرور کوم۔

إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ۚ وَٱذْكُر رَّبَّكَ
إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ
رَبِّي لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾

هن! (البته) دا شان به کوم) څنګه به چه الله غواړی
او هر کله چه تهٔ هیر کړے نو په را یادید و دَ خپل رب
(وعدے) یاد وه او وایه (چه څما پوره) اُمید دے
چه څما رب به آخر ما کامیابوی او) ما به په هغه
لاره بوزی چه دَ هدایت موندو له مخه به (څما دَ
تجویز کړے لارے نه هُم سرته دَ رسیدو) زیاته
نزدے وی۔

وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَٰثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَ
ٱزْدَادُوا تِسْعًا ﴿٢٥﴾

او (بعضے خلق دا هُم وائی چه) هغوی خپلے لوئے
پناه ګاه کښې درے سوه کاله او سیدلی وُو او (په
دے موده) نهه (کاله) هغوی نور زیات کړی وُو۔

قُلِ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا ۖ لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ
أَبْصِرْ بِهِۦ وَأَسْمِعْ ۚ مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِيٍّ
وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾

تهٔ (هغوئ ته) او وایه (چه) څومره (موده غار کښې)
هغوی پاتے شوی وُو هغے نه (هُم) الله ښهٔ خبر دے
دَ آسمانونو او زمکے غیب هغه دَ پاره دے، هغهٔ
ښهٔ لیدُونکے او ښهٔ اوریدُونکے دے دَ هغوئ (خلقو)
دَ هغه نه سوا څوک هُم مددګار نشته دے او هغه
خپل حُکم (او خپلو فیصلو) کښې هیچا له (خپل) شریک
نه جوړوی۔

وَٱتْلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن كِتَابِ رَبِّكَ ۖ لَا مُبَدِّلَ
لِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلْتَحَدًا ﴿٢٧﴾

او ستا دَ رب دَ کتاب نه چه (کوم برخه) په تا وحی
کیګی هغه لوله (او خلقو ته ئے اوروه) دَ هغهٔ خبرو له
هیڅوک هُم بدلوُونکے نشته او دَ هغهٔ په ځائے به
تهٔ بل دَ پناه ځائے او نه مُومے۔

وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا (٢٨)

اوخپل ځان هغو خلقو سره ساته چه خپل رب د هغهٔ د خوشحالئ غوښتو د پاره سحر ماښام بَلی او ستا نظر هغوی شاته په پرېخو وړاندے لاړنشی (او کچرے ته داسے اوکړے نو) ته به د دنیاوی ژوند ښائست غواړے او د چا زړهٔ چه مونږ د خپلو یادونه غافل کړے وی او هغه د خپل پریوتی خواهش منلی وی او د هغهٔ معامله د حد نه زیاته وی د هغه حُکم مهٔ منه۔

او (خلقو ته اووایه چه) دا (رښتنی حُکم) ستا د رب د خوانه نازله (شوے) ده بیا چه څوک غواړی (په دے) دِ ایمان راوړی او چه څوک غواړی (د دے) دِ انکار اوکړی (ولے دا دِ یاد اولری چه) مونږ د ظالمانو د پاره په تحقیق سره یو اور تیار کړے دے چه د هغے څلور طرفه (اوس هُم) هغوی راګیر کړی دی او کچرے هغوی فریاد اوکړی نو په داسے اُوبو به د هغوی اوریدنه کیګی چه د ویلی شوے تابنے په شان به وی۔ مخونه به سوزوی هغه به د څکلو د پاره ډیر خراب څیژوی او هغه (اور) د استوګنے بد ځائے دے۔

وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكُمْ فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءَتْ مُرْتَفَقًا (٢٩)

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا (٣٠)

(هن) کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوی نیک (او مناسب د حال) عمل کړے دے (هغوی به په تحقیق سره لوئے اجر مومی) چا چه ښهٔ کار کړے وی مونږ هیڅکله د هغوی اجر نه تویوُو۔

أُولٰئِكَ لَهُمْ جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهٰرُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِنْ سُنْدُسٍ وَ

(هْن هْن) د غه خلقو د پاره تل عُمری د استوګنے باغونه دی (د غو کښے به) د هغوی (د خپل انتظام) لاندے نهرونه بهیګی هغوی د پاره به هغو کښے د سرو زرو بنګړو غوندے کالی (زیور) جوړولے شی او

إِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِـِٔيْنَ فِيْهَا عَلَى الْأَرَآئِكِ ۭ نِعْمَ الثَّوَابُ ۭ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ؏ ۳۱

مغوی به د ورېښمو باریکې او غټې شنې جامې اغوندی (مغوی به) دے جنتونو کښې په خالستہ پلنګونو ارتے وهلی ناست وی۔ د ا ښه مزه بنه بدله ده او هغه ډیر ښهٔ د استوګنې ځائے دے۔

ع ۴

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ وَّحَفَفْنٰهُمَا بِنَخْلٍ وَّجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ۳۲

او ته هغوی ته د هغو دوه سړو حال بیان کړه چه په هغو کښې یو له مونږ د انګورانو دوه باغونه ورکړی وُو او هغه مونږ د هر طرف نه د کجهورو ونو کښې راګیر کړی وُو او مونږ د هغو ترمنځه څه پټی هُم پیدا کړی وُو۔

كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ اٰتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ مِّنْهُ شَيْئًا ۙ وَّفَجَّرْنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا ۳۳

دے دواړو باغونو (خپله) خپله میوه (ښه) ورکړه او دے کښې ئے څه (هُم) کمی او نکړو او د هغو ترمنځه مونږ یو نهر جاری کړے وُه۔

وَّكَانَ لَهٗ ثَمَرٌ ۚ فَقَالَ لِصَاحِبِهٖ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَّأَعَزُّ نَفَرًا ۳۴

او دے به ډیره میوه کوله په دے سوب هغهٔ خپل ملګری ته په خبرو خبرو کښې (په ډیر فخر) او وئیل (چه اوګوره) ستا په نسبت ځما مال زیات او پَرِه م ډېر دی ده۔

وَدَخَلَ جَنَّتَهٗ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ قَالَ مَآ أَظُنُّ أَنْ تَبِيْدَ هٰذِهٖٓ أَبَدًا ۳۵

او (یو ځلے) هغه په خپل ځان ظُلم کولو سره خپل باغ کښې داخل شو هغهٔ (خپل ملګری ته) او وئیل (چه) زهٔ نه پوهیګم چه چرے دا (ځما باغ) تباه شی۔

وَّمَآ أَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً ۙ وَّلَئِنْ رُّدِدْتُّ إِلٰى رَبِّيْ لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا ۳۶

او زهٔ نه پوهیګم چه هغه (د تباهئ وعده کړے شوے) وخت (چرے) را تلونکے دے او کچرے (فرض که) زه خپل رب ته واپس (هُم) کړے شم نو زهٔ به (هلته هُم) په تحقیق سره ډیر ښهٔ د استوګنې ځائے مومم۔

قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ أَكَفَرْتَ بِالَّذِيْ خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوّٰكَ

د هغهٔ ملګری هغهٔ ته په سوال جواب کښې او وئیل (چه) آیا تا د هغهٔ (د ذات نه) انکار کړے دے چا چه ته (اوّل ځل) د خاورے نه (او) بیا د نطفے نه پیدا کړے

رَجُلًا ﴿۳۷﴾

او بيا هغهٔ ته پوره سړے جوړ کړے.

لٰكِنَّا۠ هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿۳۸﴾

ستا خو دا حال دے (وے) زهٔ خو دا وايم (چه) حقه خو دا ده چه هُم الله څما رب دے او زهٔ چا له (هُم) دَ خپل رب سره شريک نه جوړوم.

وَلَوْلَآ اِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿۳۹﴾

او هر کله چه تهٔ خپل باغ ته راغلے وے نو وے تا او نهٔ وئيل (چه هُم هغه به کيږي) چه الله ئے غواړي (وے چه) هُم دَ الله په فضل هر څه کيږي. که چرے تهٔ ما (عاجز) خپله ځانی مال او اولاد کښے کم ګڼړے.

فَعَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿۴۰﴾

نو بيخي ممکنه ده چه څما رب ستا دَ باغ نه ښهٔ (باغ) راکړي او په دے (ستا باغ) دَ پاس نه دَ اور شعله را او غورزوي چه دَ هغے له کبله هغه صفا ډاګه شي.

اَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ لَهٗ طَلَبًا ﴿۴۱﴾

يا دَ دے اوبهٔ اوچے شي (او) بيا تهٔ (يعني دَ اسلام دښمن) دَ دے دَ لټون طاقت او نهٔ موے (بيا نو هم داسے اوشو)

وَاُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَآ اَنْفَقَ فِيْهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُشْرِكْ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿۴۲﴾

او دَ دے ټول ميوے تباه کړے شوے او هغه (يعني د باغ مالک) په داسے حال کښے چه هغه (باغ) په خپلو او ډانګو غورزيدے وُه دَ هغے (مال) له کبله چه هغه دَ دے (باغ دَ ترقیٔ) دَ پاره لګولے وُه خپل دواړه لاسونه مروړل او وئيل ئے (چه) اے کاش ما څوک دَ خپل رب شريک نهٔ وے جوړ کړے.

وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾

(او هغه وخت) هيڅ يوه ډله دَ هغهٔ سره نشوه چه دَ الله نه سوا دَ هغه ئے مدد کړے وے او نهٔ هغه (دَ دے څه) بدله واخستے شوه.

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ ۭ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ عُقْبًا ﴿۴۴﴾ ع

په داسے وخت دَ الله مدد بکار ريږي چه حقيقي معبود دے او هغه په بدله ورکولو کښے (هُم) ټولو نه ښهٔ دے او دَ (ښهٔ) انجام (پيدا کولو) له مخه ټولو نه

بنهٔ دے۔

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ۝۴۵

او ته هغوی ته د دے دنیاوی ژوند حال (مثل) په داگه بیان کړه (چه هغه) د هغه اوبو په شان (دے) چه هغه مونږ د وریځے نه اوورولے. بیا هغے سره د زمکے زرغونه یو ځائے شوه. بیا (آخر) هغه (د بوسو) چوره چوره شوه چه هوا گانے ئے الوزئ (را الوزئ) او الله په هره خبره قدرت لرونکے دے۔

اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ۝۴۶

مال او ځامن د دے دنیاوی ژوند ښائست دے او باقی پاتے کیدونکے نیک (او مناسب د حال) کارونه (چه د دے څیزونو نه وا خستے شی) ستا د رب په نزد د بدلے په لحاظ (هُم) ښه دی او د اُمید په لحاظ (هُم) ښه دی۔

وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً ۙ وَّحَشَرْنٰهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا ۝۴۷

او (هغه ورځ به د هغے ښے نتیجے را وزی) کومه ورځ به چه مونږ دا غرونه (د ځیل ځیل ځائے نه) روان کړو او ته به د زمکے ټول خلق یو بل سره (د جنګ د پاره) په مقابله کښے په ډلو او وینے او مونږ به دوئ (ټول) یو ځائے کړو او دوئ کښے به څوک (هُم پاتے) نه پریږدو۔

وَعُرِضُوْا عَلٰي رَبِّكَ صَفًّا ۭ لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍۢ ۡ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ مَّوْعِدًا ۝۴۸

او هغوئ به صفونه ترلی ستا د رب وړاندے حاضریگی (او هغوی ته به او وئیلے شی چه) او گورئ تاسو دا سے د کمزورئ په حال مونږ له راغلی یئ په کوم حال چه مونږ په رومبنی ځل پیدا کړی وئ (او تاسو دا اُمید نهٔ لرلو) بلکه ستاسو دعوی وه چه مونږ به تاسو د پاره د وعدے (پوره کولو) وخت نهٔ مقرر کوو۔

وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا

او (د هغوی د عملونو) کتاب به (د هغوی وړاندے)

فِيْهِ وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ
صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰىهَا ۚ وَوَجَدُوْا مَا
عَمِلُوْا حَاضِرًا ۗ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا ﴿۴۹﴾ ع

کیښودے شی بیا راے او رید وُنکیه !) ته به د غـه مجرمان دَ دے له کبله چه په هغے کښے (لیکلی شوی) دی په ډیرہ ویرہ اُودینے او (هغه وخت) هغوی به وائی چه اے (افسوس) ځمونږ ہ تباهی (مخامخ دہ) په دے کتاب څه (شوی) دی (چه) نه څه وړہ خبرہ بے دَ لیکلو پریږدی او نهٔ څه لویه خبرہ-اوڅه به چه هغوی کړی دی هغه بهٔ دَ هغوی تر وړاندے وی او ستا رب به په چا ظُلم نهٔ کوی۔

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ
اِبْلِيْسَ ؕ كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ
اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ وَهُمْ
لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ﴿۵۰﴾

او (هغه وخت هم یاد کړہ) هرکله چه مونږ فرښتو ته وئیلی وُو چه تا سو آدم سرہ (لوځائے) سجدہ اوکړئ په دے هغوی (زخو دَ حُکم مطابق هغهٔ سرہ) سجدہ اوکړہ وے ابلیس (اونکړہ) هغه دَ جِنّاتو نه وُہ بیا نو هغه (دَ خپل فطرت سرہ سم) دَ خپل رب حُکم او نهٔ منلو (یَه ځما بندیانو !) آیا تا سو ځما په ځائے هغه (شیطان) او دَ هغهٔ نسل (خپل) دوستان جوړوئ او حال دا چه هغه ستا دښمنان دی۔ هغه (شیطان) ظالمانو دَپارہ ډیرہ بدہ بدله ثابت شوے دے۔

مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ
اَنْفُسِهِمْ ۪ وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ﴿۵۱﴾

ما هغوی دَ آسمانونو او دَ زمکے پید اوښت (په وخت) حاضر کړی نهٔ وُو او نهٔ (م خپله) دَ هغوی (دَ خپلو) ځانونو دَ پید اوښت په موقع-او نهٔ ما بے لارے کوُونکوله (خپل) مددګار جوړ ولے شو۔

وَيَوْمَ يَقُوْلُ نَادُوْا شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ فَدَعَوْهُمْ
فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ مَّوْبِقًا ﴿۵۲﴾

او (هغه ورځ هُم یاده کړئ) کله به چه هغه (خدائے پاک مشرکانو ته) وائی چه اوس تا سو ځما (هغه) شریکان اوغواړئ چه دَ چا (دَ شریک والی) پخقله به تا سو دعویٰ کوله په دے به هغوی هغوله را اوغواړی وے

مخې به هغوی له (هیڅ) جواب نه ورکوی او د هغوی رد تجویز کړو شریکانو) ترمنځه به مونږ یوه پوله جوړه کړو۔

وَرَاَ الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ فَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مُّوَاقِعُوْهَا وَلَمْ يَجِدُوْا عَنْهَا مَصْرِفًا ﴿۵۳﴾ ع

او مجرمان به هغه اور او وینی او پوهه به شی چه هغوی دے کښې پریوتونکی دی او هغوی به د دے نه د روستو کیدو ځائے نه مومی۔

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ۭ وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا ﴿۵۴﴾

او په تحقیق سره مونږ په دے قرآن کښې خلقو د پاره هره یوه (ضروری) خبره په مختلفو طریقو بیان کړے ده او داسے به مو وے نه کول چه انسان د ټولو نه زیات بحث کوونکے دے۔

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَاۗءَهُمُ الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا ﴿۵۵﴾

او هغه خلقو له هرکله چه هغوی له هدایت راغے نو (په دے) ایمان راوړو او د خپل رب نه بخښنه غوښتو نه نبس دے خبرے منع کړل چه د روسنو خلقو حال په هغوی (هُم) راشی یا بیا عذاب هغوی ته وړاندے اودریږی۔

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾

او مونږ رسولان صرف زیرے ورکوونکی (او د عذاب د راتلو نه) خبردونکی استوو او کومو خلقو چه انکار کړے دے هغوی په دروغه دے د پاره جهګړه کوی چه د دے په ذریعه حق ختم کړی او هغوی ځما نښانات (او) ځما ویره ورتے نه هسے ټوکه جوړه کړے ده۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ ۭ اِنَّا جَعَلْنَا عَلٰي قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ وَاِنْ

او د هغه سړی نه زیات ظالم نور څوک (کیدے شی) دے څوک چه د هغهٔ د رب د نښانانو په ذریعه پوهه کړے شو (ووے) بیائے (هُم) د دے نه مخ واړولو او څه چه د هغهٔ لاسونو (کتلی او) وړاندے استولی وُو هغه هیر کړل په تحقیق سره مونږ د دے خلقو

تَدْعُهُمْ اِلَى الْهُدٰى فَلَنْ يَّهْتَدُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴿۵۷﴾

په زړونو د دوی پردې اچولی دی ځکه چه هغوی په دې پوهه نه شي او د هغوی په غوږونو کښې دروند والے (پیدا کړے دے) او که چرے ته هغوی هدایت ته راوغواړے نو (هغوی تاسره دومره حسد لري چه) په دے حال کښې به هغوی هدایت (هم) هیڅکله نه قبلوي۔

وَرَبُّكَ الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ ۭ لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ ۭ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْىِٕلًا ﴿۵۸﴾

او ستا رب ډیر بخښونکے (او ډیر) رحمت کوونکے دے که چرے هغه د هغوی (د بدو) عملونو په وجه هغوی هلاکول غوښتے نو هغه به په هغوی سمدستي عذاب نازل کړے وے (ولے هغه داسے نه کوي) بلکه هغوی د پاره یو میاد دے چه هغے نه اخوا (یعني پروړاندې د دے نه چه هغوی عذاب اوڅکي) هغوی به هیڅکله د پناه ځائے او نه مومي۔

وَتِلْكَ الْقُرٰٓى اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿۵۹﴾

او هغه کلي کوم چه مونږ د هغوی د ظلم له کبله هلاک کړي وو (هغوی د پاره د عبرت موجب کیدے شول) او مونږ د هغوی د هلاکت د پاره د آګاهۍ نه یو میاد مقرر کړے وه دے د پاره که هغوی اوغواړي نو توبه اوکړي۔

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰىهُ لَآ اَبْرَحُ حَتّٰٓى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا ﴿۶۰﴾

او (هغه وخت هم یاد کړئ) هر کله چه موسیٰؑ خپل ځوان (ملګري) ته وئیلي وو (چه) زه (به کومه لار چه روان یم په هغے قائم پاتے کیدونکے) به نه اوړم تر هغے چه د هغے دوه سمندرونو یو ځائے کیدو ته اورسم یا په صدو روان اوسم۔

فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوْتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿۶۱﴾

بیا هر کله چه هغوی (دواړه) د دے (دواړو سمندرونو) خپلو کښې د یو ځائے کیدو ځائے ته (یعني د نبوت زمانے ته نزدے) پورے اورسیدل نو هغوی خپل کب هلته هیر کړو چه په هغے هغه (کب) په تیزه منډه په سمندر کښې خپله لار واخستله۔

فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰىهُ اٰتِنَا غَدَآءَنَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا ﴿٦٣﴾

بیا هرکله چه هغوی (هغه ځائے نه) وړاندے اووتل نو هغهٔ (یعنی موسٰیؑ) خپل ځوان (ملګری) ته اووئیل (چه) ځمونږ دَ سحرخوراکه مونږ له راکړه په تحقیق سره مونږ دَ خپل دے سفرله کبله ستړی شوی یُو۔

قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَآ اَنْسٰنِيْهُ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ وَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا ﴿٦٤﴾

هغهٔ اووئیل (چه) اووا یه راوس به څه کیګی) هرکله چه مونږ (دَ آرام دَ پاره) په دے غراو دریدُو نو ماځی هیر کړو اوما نه دا شیطان نه سوا بل چا هیر نکړو او هغه په سمندر کښے په عجیبه شان لاړو واخسته۔

قَالَ ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰٓى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا ﴿٦٥﴾

هغهٔ اووئیل (چه) هُم دا هغه (مقام) دے چه کوم مونږ لټولو بیا هغوی دَ خپلو خپو نښانانو پسے واپس راغلل۔

فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ اٰتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَعَلَّمْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا ﴿٦٦﴾

نو هغوی ځمونږ (په نازولی) بندیانو کښے یو داسے بنده هلته اولیدو چاله چه مونږ دَ خپلے خوا نه (سیرت دَ) رحمت ورکړے وُه او هغهٔ ته مو دَ خپلے خوا نه (خاص) علم (هُم) ورکړے وُه۔

قَالَ لَهٗ مُوْسٰى هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰٓى اَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ﴿٦٧﴾

موسٰیؑ هغهٔ ته اووئیل (چه) آیا زه دے (مقصد) دَ پاره تا سره تلے شم چه کوم علم تا ته حاصل دے هغے نه ما ته هُم څه (خبرے دَ) مراد اوښائے۔

قَالَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٦٨﴾

هغهٔ اووئیل (چه) تهٔ به ما سره هیڅکله صبر اونکړے شے۔

وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلٰى مَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ خُبْرًا ﴿٦٩﴾

او دَ کومے خبرے علم چه تا ته نشته په هغے تهٔ صبر څنګه کولے شے۔

قَالَ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ صَابِرًا وَّلَآ اَعْصِيْ لَكَ اَمْرًا ﴿٧٠﴾

هغهٔ اووئیل (چه) کچرے الله اوغوښتهٔ نو تهٔ به ما صابره بیا مومے او زهٔ به ستا دَ هیڅ یو حُکم نافرمانی اونکړم۔

قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي عَن شَيْءٍ حَتَّىٰ أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴿٧٠﴾ ع ۹ ۲۱

هغهٔ (رُوحانی بزرګ) او وئیل (چه) کچرے تهٔ ما سره زے نو تهٔ دَ هیڅ یو څیز پښتنه تر څو پورے چه زهٔ دَ هغے پښتنه تا ته ذکر کو لو کښے رومبیٔ نشم مانه تپوس مهٔ کوه۔

فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ خَرَقَهَا ۖ قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ﴿٧١﴾

بیا هغوی (دواړه هغه ځائے نه) روان شول تر هغے چه هرکله هغوی کشتئ کښے سوارهٔ شول نو هغهٔ (دَ خدائے نیازبین) هغے کښے سورے اوکړو په دے هغهٔ (موسیٰؑ) او وئیل (چه) آیا تا دے دَ پاره سورے کړے دے چه تهٔ دے کښے ونډه (ناستو) کسانو له غرق کړے۔ په تحقیق سره تا (دا) یو دَ ناخوښے کار کړے دے۔

قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٧٢﴾

هغه دَ خدائے نیازبین او وئیل (چه) آیا ما (تا ته) وئیلی نه وُو (چه) تهٔ به ما سره هیڅکله صبر اونکړے شے۔

قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا ﴿٧٣﴾

په دے هغهٔ (یعنی موسیٰؑ) او وئیل (چه دا ځل) تاسو ما مهٔ نیسئ وے چه (ما ستاسو هدایت) هیر کړے وُه او تاسو څما دَ (دے) خبرے له کبله په ما سختی مهٔ کوئ۔

فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا لَقِيَا غُلَامًا فَقَتَلَهُ قَالَ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَّقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُّكْرًا ﴿٧٤﴾

بیا هغوئ (دواړه هغه ځائے نه) روان شول تر دے چه هغوئ هرکله یو هلک او لیدو نو هغهٔ (دَ خدائے بنده) هغه او وژلو (په دے) هغهٔ (یعنی موسیٰؑ) او وئیل (چه) آیا (دا) ربښتیا نه ده چه) تاسو (دا وخت) یو پاک (او بے ګناه) سړے بے دَ (خُون) دَ بدلے (نا حقه) او وژلو په تحقیق سره تاسو (دا) ډیر بد کار کړے دے۔

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٧٥﴾

هغهٔ (دَخدائے نیازبین) اوویل (چه) آیا ما تا ته وئیلی نهٔ وُو (چه) تهٔ به ما سره هیڅکله صبراونکرے شے۔

قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍۭ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ قَدْ
بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ﴿٧٦﴾

هغهٔ یعنی (موسیٰ) اوویل (چه) کچرے دے نه پس ما دَڅهٔ خبرے پخقله تاسو نه تپوس اوکړو نور بے شکه) تاسو ما ځان سره مهٔ ساتئ۔ (او هغه حال کښے به) تاسو په تحقیق سره څما دَ خپلے رائے مطابق دَ معذورګنړلو حد پورے رسیدلے یئ۔

فَانْطَلَقَا ٚ حَتّٰٓى اِذَآ اَتَيَآ اَهْلَ قَرْيَةِ ِۨاسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا
فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ
اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ ۭ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ
عَلَيْهِ اَجْرًا ﴿٧٧﴾

بیا هغوئ (هغه ځائے نه هُم) روان شول تردے چه هرکله هغوئ دَ یوکلی خلقو ته اورسیدل نو دَ هغے (کلی) او سیدونکو نه هغوئ ډوډی اوغوښته ولے هغوئ دَ میلمستیا نه انکار اوکړو۔ بیا هغوئ دے (کلی) کښے یو داسے دیوال اولیدو چه پرلوټونکے وه۔ هغهٔ (دَخدائے بنده) هغه سم کړو (په دے) هغهٔ (یعنی موسیٰ) اوویل کچرے تاسو غوښتلے نو یقین سره دَدے څه (نه څه) اجرت مو خستے شو۔

قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ ۚ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ
مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٧٨﴾

هغهٔ (دَخدائے نازولی) اوویل (چه) دا څما او ستاسو ترمنځه (رونحت دَ) بیلتون دے۔ په کومه خبره چه تا صبر اونکرے شوزهٔ (وس تا) دَدے حقیقت نه خبروم۔

اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِيْنَ يَعْمَلُوْنَ فِي الْبَحْرِ
فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا وَكَانَ وَرَاۗءَهُمْ مَّلِكٌ يَّاْخُذُ
كُلَّ سَفِيْنَةٍ غَصْبًا ﴿٧٩﴾

کشتئ خو دَ یو څو مسکینانو وه چه دریاب کښے کارکوی او دَ هغوئ مخامخ (دریاب نه پورے غاړه) یو (ظالم) بادشاه وه چه هره یوه کشتئ به ئے په زور آخستله۔ ځکه ما اوغوښتل چه هغه عیب داره کړم۔

وَاَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ اَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِيْنَآ اَنْ
يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴿٨٠﴾

او دا دَ هلک (چه کومه واقعه وه نو دَ دے) حقیقت دا دے چه دَ دهٔ مور پلار دواړه مومنان وُو په دے

(دَ دهٔ دَ دے حال په ليدو) مونږ اوويريدو چه هسے نه چه (لوئے شي) هغه په دوئ دَ سرکشئ او کُفر الزام اونکوی۔

فَأَرَدْنَآ أَن يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَوٰةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا ﴿٨١﴾

بيا مونږ اوغوښتل چه دَ هغوئ رب دوئ له دَ دے (هلک) نه دَ پاکئ او رحم و انصاف له مخه (په بدل کښے) ښهٔ (هلک) ورکړی۔

وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَٰمَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِى الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُۥ كَنزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَٰلِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَآ أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ۚ وَمَا فَعَلْتُهُۥ عَنْ أَمْرِى ۚ ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٨٢﴾ ع

او (هغه) ديوال دَ هغه ښار دَ دوؤ يتيمانو هلکانو وُه او دَ هغے لاندے دَ هغوئ خزانه (خخه) وه۔ او دَ هغوئ پلار (ريو) نيک (سړے) وُه۔ دے دَ پاره ستا رب اوغوښتل چه هغه خپل پوخ عُمرته اورسی او (چه لوئے شی نو) خپله خزانه (يخپله) اوباسی۔ ستا دَ رب دَ طرف نه (په هغهٔ خاص) رحم (شوے) دے او دا (کار) ما دَ خپل نوش په حُکم نهٔ دے کړے۔ دا دَ دے خبرے حقيقت دے چه تا پرے صبر او نکړے شو۔

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِى الْقَرْنَيْنِ ۖ قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿٨٣﴾

او هغوئ تا نه دَ ذوالقرنين پحقله هُم تپوس کوی نهٔ (هغوئ ته) اووايه (چه) زهٔ به خامخا تاسو ته دَ هغهٔ پحقله څهٔ ذکر کوم۔

إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ فِى الْأَرْضِ وَءَاتَيْنَٰهُ مِن كُلِّ شَىْءٍ سَبَبًا ﴿٨٤﴾

په تحقيق سره مونږ هغهٔ ته زمکه کښے حکومت ورکړے وه او مونږ هغهٔ له دَ هر لوڅيز (دَ حاصلولو) ذريعه ورکړے وه۔

فَأَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٥﴾

بيا هغه په يوه لاره روان شو۔

حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِى عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَوَجَدَ عِندَهَا قَوْمًا ۗ قُلْنَا يَٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِمَّآ أَن تُعَذِّبَ وَإِمَّآ أَن

تر دے پورے چه هر کله هغه دَ نمر دَ پريوتو ځائے ته اورسيدو نو هغهٔ ته دا سے ښکاره شوه (لکه) چه دَ خړو او لوچينه کښے ډوبيګی او هغهٔ هغے سره څهٔ خلق (آباد) اوموندل (په دے) مونږ (هغهٔ ته)

تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾

اووئیل (چه) اے ذوالقرنین! تا ته اجازه ده چه هغوئ له عذاب ورکړے یا د هغوئ په مقابله د ښهٔ سلوک نه کار آخلے۔

قَالَ أَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُكْرًا ﴿٨٧﴾

هغهٔ اووئیل راوزهٔ به هُم داسے کوم او) چه څوک ظلم اوکړی هغهٔ ته خو به مونږ خامخا سزا ورکوؤ بیا به هغه خپل رب ته واپس کولے شی او هغه به هغهٔ ته سخته سزا ورکوی۔

وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَىٰ ۖ وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ﴿٨٨﴾

او څوک به چه ایمان راوړی او نیک راومناسب د حال) عمل کوی هغهٔ د پاره (د خدائے سره د هغهٔ د عملونو بدله کښے) ښهٔ انجام دے او مونږ به (هُم) خامخا هغهٔ د پاره په خپل حُکم د آسانئ خبره وایُو۔

ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾

بیا هغه په یوه لاره روان شو۔

حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ لَمْ نَجْعَلْ لَهُمْ مِنْ دُونِهَا سِتْرًا ﴿٩٠﴾

تر هغے پورے چه هرکله هغه د نمر د ختلو ځائے ته اورسیدو نو هغهٔ هغه په داسے خلقو ختُونکے اومونده چا د پاره چه مونږ (د هغوئ او) د هغهٔ (نمر) ترمنځه څه پرده نه وه جوړه کړے۔

كَذَٰلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿٩١﴾

(دا واقعه هُم) داشان ده او مونږ د دے ټولو حالاتو ښهٔ خبر آخستے دے۔

ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾

بیا هغه په یوه لاره روان شو۔

حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِنْ دُونِهِمَا قَوْمًا لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾

تر دے چه هرکله هغه د دوؤ غرونو ترمنځه اورسیدو نو هغهٔ د هغے نه آخوا څهٔ داسے خلق اومونده چه په گرانه د هغهٔ په خبره پوهیدل۔

قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾

هغوئ اووئیل (چه) اے ذوالقرنین! په تحقیق سره یاجوج او ماجوج دے ملک کښے ګډیا دی فساد خوروی بیا آیا مونږ تا سو د پاره څهٔ خراج په دے شرط مقرر

کړو چه تاسو څمونږ او د هغوئ ترمنځه یو بند جوړ کړئ۔

قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿٩٦﴾

هغهٔ اووئیل چه په دے خقله څمارب چه کوم طاقت ما ته راکړے دے هغه (د دښمنانو د ساماَلونونه) ډیر ښهٔ دے، دے د پاره تاسو ماله د وس مطابق مدد راکړئ۔ دے د پاره چه زهٔ ستاسو او د هغوئ ترمنځه بند جوړ کړم۔

آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ حَتَّىٰ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انفُخُوا حَتَّىٰ إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿٩٧﴾

تاسو به ماله د اوسپنے ټکړے راکړئ (بیا نو هغه بند تیاریدل شروشول) تر دے چه هرکله هغهٔ (د غرهٔ) د هغو (دوه اړو) څوکو ترمنځه یو والئ راوستو نو هغهٔ (هغوئ ته) اووئیل (چه اوس په دے اور) اولګوئ تر دے چه هغے هغه بالکل (په شان د) اور کړو نو (هغوئ ته ئے) اووئیل (چه اوس) ماله (ویلے شوے) تانبا راکړئ دے د پاره چه (هغه) په دے واچوم۔

فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ﴿٩٨﴾

بیا (هرکله چه هغه دیوال تیار شو نو) هغوی (یعنی یاجوج ماجوج) پرے اونشو ختلے او نهٔ ئے ئے کښے څهٔ سوره اوکړے شوه۔

قَالَ هَٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ﴿٩٩﴾

(په دے) هغهٔ اووئیل (چه) دا (کارخولس) څما د رب خاص احسان سره (شوے) دے بیا هرکله چه (د لوئے عذاب څقله) څما د رب وعده (په پوره کیدو) راشی نو هغه به دا (بند مات کړی او) زمکے سره سمه به ئے یوه غوندئ کړی او څما د رب وعده (زما مخا) پوره کیدُونکے ده۔

وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا ﴿١٠٠﴾

او (هرکله چه د هغے د پوره کیدو وخت راشی نو) هغه وخت به مونږ هغوئ د یو بل خلاف په جوش خلے ته پریږدُو او شپیلئ به اوغږولے شی۔ بیا به

مونږ هغوی (ټول) یو ځائے کړو۔

وَّعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ عَرْضَا ﴿١٠١﴾

او مونږ به هغه ورځ جهنّم کافرانو ته مخامخ راولو۔

الَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَآءٍ عَنْ ذِكْرِيْ وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا ﴿١٠٢﴾ ع

(هغه کافران) چه دَ چا سترګے ځما دَ ذکر (یعنی قرآن کریم) نه (دَ غفلت) په پرده کښے وے او هغوئ دَ آوریدو طاقت (هُم) نهٔ لرلو۔

اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ مِنْ دُوْنِيْٓ اَوْلِيَآءَ ؕ اِنَّآ اَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ نُزُلًا ﴿١٠٣﴾

(نو) آیا (سره دَ دے هرڅه دَ لیدو) بیا (هُم) هغه خلق چا چه کُفر کړے دے (دا) خیال کوی چه هغوئ به ځما په ځائے ځما بندیانو له مددګار جوړ کړے شی۔ مونږ دَ کافرانو له دَ انعام (یعنی دَ بدلے) په طور جهنّم تیار کړے دے۔

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْاَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا ﴿١٠٤﴾

ته (هغوئ ته) او وایه (چه) آیا مونږ تاسو دَ هغه خلقو نه خبر کړو چه دَ اعمالو په لحاظ دَ ټولو نه زیات نقصان اوچتوونکی دی۔

الَّذِيْنَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا ﴿١٠٥﴾

(دا هغه خلق دی) چه دَ چا (ټول) کوشش دے دنیاوی ژوند کښے غیب شوے دے او (دے سره) هغوئ (دا هُم) خیال کوی چه هغوئ ښکیا دی ښهٔ کار کوی۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ وَلِقَآئِهٖ فَحَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيْمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا ﴿١٠٦﴾

دا هغه خلق دی چا چه دَ خپل رب دَ نښانانو او هغهٔ سره لیدو نه انکار کړے دے، دے دَ پاره دَ هغوئ (ټول) عملونه پریوتی (دے دُنیا کښے) پاتے شوی دی۔ بیا نو دَ قیامت په ورځ به مونږ دَ هغوی هیڅ خیال نهٔ کوُو۔

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ﴿١٠٧﴾

دَ هغوئ بدله یعنی جهنّم به په دے سوب وی چه هغوئ کفر اوکړو او ځما نښانانو او ځما رسُولانو پورے ئے خندا اوکړه۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿١٠٨﴾

کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او هغوئ نیک (او مناسب دَحال) عمل کړے دے دَ هغوئ ځائے به په تحقیق سره فردوس نومے جنت وی۔

خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ﴿١٠٩﴾

هغوئ به هغو کښے (وسی راو) هغو نه آخوا کیدل به نهٔ غواړی۔

قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ﴿١١٠﴾

تهٔ هغوئ ته اووایه (چه) که چرے (هرلو) سمندرځما دَرب دَ خبرو (دَلیکلو) دَپاره روشنائی (رسیاهی) جوړه وے نوځما دَ رب دَ خبرو دَ ختمیدلو نه آګاهو به (دَ هرلو) سمندر (اوبه) ختمے وے که چرے (دَدے) دَ زیاتولو دَپاره مونږ نورے (اوبه هُم سمندرکښے) اچولے۔

قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴿١١١﴾ ع ١٢

تهٔ (هغوئ ته) اووایه (چه) زهٔ بس ستاسو غوندے یو بشریم (فرق بس دا دے چه) ځما په طرف (دا) وحی کیګی چه ستاسو دَ عبادت لائق (خدائے) هُم ایکی یو (حقیقی) خدائے دے بیا چه کوم سړے دَ خپل رب دَ لیدو اُمید لری هغهٔ له پکار دی چه نیک (او مناسب دَ حال) کارونه اوکړی او دَ خپل رب عبادت کښے څوک هُم شریک نکړی۔

## سُوْرَةُ مَرْيَمَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة مریم - دا سورة مکی ده او لبسم الله سره دَ دے یوکم سل ۹۹ آیتونه او شپږ ۶ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ خدائے چه ډیر زیات مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

كٓهٰيٰعٓصٓ ②

یَه عَالِم او صادق خدایه - ته کافی او هادی یې۔

ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ③

(دے سورة کښے) ستا دَ ربّ دَ (هغه) رحمت ذکر (دے) چه هغهٔ په خپل بنده زکریا (هغه وخت) او کړو هرکله

اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ④

چه هغهٔ خپل رب ته په قلار نارے کړے۔

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا وَّلَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ⑤

(او) وے وئیل یَه ځما ربّ! ځما حال خو په تحقیق سره (دا سے دے چه) ځما خو ټول هډوکی کمزوری شوی دی او (ځما) سر دَ لوړ الوب له کبله سور شوے دے او یَه ځما ربّ! زهٔ کله هُم تا نه دَ دعا کالو له کبله نامراده پاتے شوے نهٔ یم۔

وَاِنِّيْ خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِيْ وَكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا فَهَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ⑥

او په تحقیق سره زهٔ دَ ځان (دَ مرګ) نه پس دَ خپلو خپلوانو (دَ سلوک) نه ویریږم - او ځما ښځه شنډه ده - بیا لو ته دَ خپله لوره ماله یو دوست (یعنی ځوئ) را کړه۔

يَّرِثُنِيْ وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۖ وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ⑦

چه ځما هُم وارث وی او دَ آلِ یعقوب (دَ دین او تقویٰ دَ میراث) هُم وارث وی او یَه ځما ربّ هغه (خپل) خوښ (وجود) جوړ کړه۔

يٰزَكَرِيَّآ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ِۨاسْمُهٗ يَحْيٰى ۙ لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا ⑧

(په دے الله (او فرمائیل) یَه زکریا! مونږ تاله دَ یو هلک خبر درکوو (چه دَ ځوانئ عمر ته به رسی او) دَ هغهٔ نُوم به (دَ خدائے دَ طرف نه) یحیٰی وی - مونږ دے نه آګاهُو هیڅوک په دے نُوم نهٔ دے یاد کړے۔

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ كَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا وَّقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ۝٩

(زکریا) اووئیل یَه څمارب! څما به هلک څنګه کیږی هرکله چه څما ښځه شنډه ده او زهٔ دَ بوډا توب آخری حد ته رسید لے یم۔

قَالَ كَذٰلِكَ ۚ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَّقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْئًا ۝١٠

(الهام راوړونکے فرښتے) اووئیل (چه څنګه) ته وائے (حقیقت) هُم دا شان (دے وے) ستا ربّ وائی چه دا (خبره) په ما آسانه ده او (اوګوره چه) ما ته دے نه آګاهُو پیدا کړے ئے او حال دا چه ته هیڅ شے نهٔ وے

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ۚ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ۝١١

(زکریا) اووئیل یَه څما ربّ! ما ته څهٔ حُکم اوکړه۔ وے فرمائیل تا دَ پاره دا حُکم دے چه ته خلقو سره پرله پسے درے شپے خبرے مهٔ کوه۔

فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰٓى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ۝١٢

دے نه پس (زکریا) محراب نه اووتو خپل قام له راغے۔ او هغوئ ته ئے په تَلار اووئیل چه سحر ماښام دَ خُدائے ثنا صفت کوئ۔

يٰيَحْيٰى خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ۗ وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ۝١٣

(دے نه پس یحیٰیؑ پیدا شو او مونږ هغهٔ ته اووئیل) اے یحیٰیؑ! ته (الهیٰ) کتاب کلک اونیسه او مونږ هغهٔ ته وړوکوالی کښے (خپل) حُکم ورکړے وو۔

وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَكٰوةً ۗ وَكَانَ تَقِيًّا ۝١٤

(او دا خبره) څمونږ دَ طرف نه په طور دَ مهربانیٔ (او دَ شفقت وه) او (دَ هغهٔ) دَ پاکولو دَ پاره (وه) او هغه ډیر زیات نیک وو۔

وَّبَرًّاۢ بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ۝١٥

او هغه خپل مور پلار سره ښهٔ سلوک کوونکے وو او ظالم او نافرمان نهٔ وو۔

وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوْتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ۝١٦ ع

(او کله چه هغه پیدا شو هغه وخت هُم په هغهٔ سلامتی وه او کله به چه هغه مری او کله به چه هغه راژوندی کولو سره بیا اوچتیګی (هغه وخت به هُم په هغهٔ سلامتی وی)

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ ۘ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا ربع
مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿۱۶﴾

او ته (ذکر کړه) (په دې) کتاب کښې (چه) د مریم ذکر (رازی هغه) بیان کړه (خاص دا خبره چه) هر کله هغه د خپلو خپلوانو نه د نمر خاته (په طرف یو) ځائے ته لاړه۔

فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا ۫ فَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهَا رُوْحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿۱۷﴾

او (د خپل ځان او) هغو (یعنی خپلوانو) ترمنځه ئے پرده واچوله (یعنی هغوی سره ئے تعلق پریخو او خپل ځان ئے پټ کړو) هغه وخت مونږ د هغه په طرف خپل کلام راوړونکے فرښته (یعنی جبرائیل) راواستولو او هغه د هغے وړاندے د یو صحت مند بشر په شکل ښکاره شو۔

قَالَتْ اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْكَ اِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ﴿۱۸﴾

(مریم هغه ته) او وئیل، زۀ تا نه د رحمان خدائے پناه غواړم که چرے تا کښے څه هُم تقویٰ شته۔

قَالَ اِنَّمَآ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ ۖ لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا ﴿۱۹﴾

(په دے هغه فرښتے) او وئیل زۀ خو بس ستا د رب نه پیغام راوړونکے یم دے د پاره چه زۀ تا ته (د وحی مطابق) د یو پاک هلک (زیږئ) د کرم (چه د ځوانئ تر عُمره به رسی)۔

قَالَتْ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ وَّ ع
لَمْ اَكُ بَغِيًّا ﴿۲۰﴾

(مریم) او وئیل۔ ځما به هلک څنګه کیګی چه په حقیقت کښے ما ته څوک سړے نۀ دے را نزدے شوے او ما کله هُم بدکاری نه ده کړے۔

قَالَ كَذٰلِكِ ۚ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ ۚ وَلِنَجْعَلَهٗٓ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّا ۚ وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿۲۱﴾

(فرښتے) او وئیل (خبره) دا شان ده (څنګه چه تا اووئیل وے) ستا رب داوئیلی دی چه دا (کار) ما ته آسان دے او (مونږ به ځکه دا هلک پیدا کوو) چه دے خلقو د پاره یو نښان جوړ کړو او د خپل طرف نه ئے د رحمت (موجب هُم جوړ کړو) او د دے (خبرے) فیصله مونږ کړے ده۔

فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا قَصِيًّا ﴿۲۲﴾

دا شان مریم په اُمید شوه او بیا هغے سره د یو لرے

مکان په طرف لاړه ۔

فَأَجَآءَهَا الْمَخَاضُ إِلَىٰ جِذْعِ النَّخْلَةِ ۚ قَالَتْ يَٰلَيْتَنِى مِتُّ قَبْلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ۝۲۴

بیا (هر کله چه هغه هلته اورسیده نو) هغه دَ ماشوم کیدو دَ تکلیف له کبله دَ کجهورے دَ تنے په طرف لاړه (هر کله چه مریم پوهه شوه چه دَ هغے ماشوم کیدونکے دے نو هغے په دے خیال چه دُنیا به څه وائی) اوویل کاش چه زهٔ دے نه وړاندے مړه وے او دَ چا په یادو کښے نهٔ وے ۔

فَنَادَىٰهَا مِن تَحْتِهَآ أَلَّا تَحْزَنِى قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ۝۲۵

بیا (فرښتے) هغے ته دَ لاندے نه آواز کړو چه (بی بی) غم مهٔ کوه ۔ الله تا نه لاندے طرف ته یو چینه روانه کړے ده (هغے له ورشه او دَ خپل ځان او دَ ماشوم صفائی اوکړه) ۔

وَهُزِّىٓ إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ۝۲۶

او (هغه) کجهوره چه تا سره نزدے وی دَ هغے ښاخ اونیسه او دَ خپل ځان په طرف ئے اوخنډوه په تا به تازه تازه میوے راغورزوی ۔

فَكُلِى وَاشْرَبِى وَقَرِّى عَيْنًا ۖ فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا فَقُولِىٓ إِنِّى نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا ۝۲۷

بیا (هغه) خوره او (دَ چینے اوبهٔ هُم) څکه او (خپله هُم لامبه او ماشوم هُم لامبوه او داشان) سترگے یخوه ۔ بیا (که چرے (دے مُوده کښے) ته څوک سړے اووینے نو (ورته) ووایه چه ما دَ رحمان (خدائے) دَ پاره (ډیوه) روژه منلے ده بیا نو نن به زهٔ چا انسان سره خبره نهٔ کوم ۔

فَأَتَتْ بِهِۦ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُۥ ۖ قَالُوا۟ يَٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْـًٔا فَرِيًّا ۝۲۸

دے نه پس هغے هغه خپل قام له سور کړے راوستو هغوئی اوویل اے مریم ! تا ډیر بد کار کړے دے ۔

يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ۝۲۹

یَه دَ هارون خورے ! ستا پلار څو بد سړے نهٔ وه او ستا مور هُم بدکاره نهٔ وه ۔

فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ ۖ قَالُوا۟ كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِى الْمَهْدِ صَبِيًّا ۝۳۰

په دے هغے هغهٔ (ماشُوم) ته اشاره اوکړه بیا نو خلقو اوویل مونږ دهٔ سره څنګه خبرے اُوکړو چه (تر اُوسه) زنګونه

ځانګو کښې د ناستې ماشوم وه۔

قَالَ اِنِّيْ عَبْدُ اللّٰهِ ۛ اٰتٰىنِيَ الْكِتٰبَ وَجَعَلَنِيْ نَبِيًّا ﴿۳۱﴾

(دَ دے په آوریدو ابن مریم) اووئیل چه زۀ دَ الله بندۀ یم او هغۀ ماله کتاب راکړے دے او زۀ ئے نبي جوړ کړے یم۔

وَّجَعَلَنِيْ مُبٰرَكًا اَيْنَ مَا كُنْتُ ۠ وَاَوْصٰنِيْ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿۳۲﴾

او زۀ چه هر چرته یم هغۀ زۀ برکت ناک جوړ کړے یم او ترڅو چه زۀ ژوندے یم ما ته ئے دَ نمونځ او زکوٰة تاکید کړے دے۔

وَّبَرًّۢا بِوَالِدَتِيْ ۡ وَلَمْ يَجْعَلْنِيْ جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿۳۳﴾

او زۀ ئے خپلے مور سره ښۀ سلوک کوونکے جوړ کړے یم او زۀ ئے ظالم او بدبخته کړے نه یم۔

وَالسَّلٰمُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُّ وَيَوْمَ اَمُوْتُ وَيَوْمَ اُبْعَثُ حَيًّا ﴿۳۴﴾

او کومه ورځ چه زۀ پیدا شوے وُم هغه ورځ هُم په ما سلامتي نازله شوے وه او هر کله به چه زه مرم او هر کله به چه زه بیا را ژوندے کولے شم (هغه وخت به هُم په ما سلامتي نازلولے شي)۔

ذٰلِكَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِيْ فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿۳۵﴾

(او ګورئ) دا (حقیقي) عیسیٰ ابن مریم دے او دا (دَ هغۀ اصلي) رښتونے واقعه ده چه په کښې هغوئ (خلق) لګیا دي اختلاف کوي۔

مَا كَانَ لِلّٰهِ اَنْ يَّتَّخِذَ مِنْ وَّلَدٍ ۙ سُبْحٰنَهٗ ۭ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۳۶﴾

دَ خدائے دَ شان دا خلاف ده چه هغه چاله ځوئ کړي. هغه دے خبرے نه پاک دے۔ هغه کله هُم چه دَ څۀ خبرے فیصله کوي نو وائي او ‌ِشي (دا سے) نو هغسے په کیدو شي (بیا نو هغۀ ته دَ مدد دَ پاره دَ ځوئ جوړولو څۀ ضرورت دے)۔

وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۳۷﴾

او الله ځما هُم ربّ دے او ستاسو هُم رب دے۔ هُم دَ هغۀ عبادت کوئ۔ هُم دا نیغه لاره ده۔

فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَيْنِهِمْ ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۳۸﴾

وَلے مختلفو ډلو خپلو کښې اختلاف اوکړو (او رښتنی ئے پریښوده) بیا کو موخلقو چه په لوه لویه ورځ

دَ حاضریدو نه انکار اوکړو په هغوئ به عذاب نازلیګي.

أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٣٨﴾

کومه ورځ به چه هغوئ مونږ سره حاضریګي هغه ورځ به دَ هغوئ آورید وقوت ډیر تیز وی او نظر به ئے هُم ډیر تیز وی ولے هغه ظالمان نن ډیره زیاته ګمراهئ کښے آخته دی.

وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٩﴾

او هغوئ دَ هغے ورځے نه اوویره وه کومه ورځ به چه (افسوس او) مایوسی خوره وی (یعني دَ قیامت دَ ورځے نه) هرکله به چه دَ ټولو خبرو فیصله اوشی او (اوس خو) دا خلق غفلت کښے (پراته) دی او ایمان نهٔ راوړی.

إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٤٠﴾

ع ٢٥ ٥

په تحقیق سره مونږ به دَ (ټولے) زمکے وارثان یُو او دَ هغو خلقو هُم چه په دے اوسی او (آخر به) ټول خلق ځمونږ په طرف واپس راوستلے شی.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ ۚ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٤١﴾

او تهٔ دَ قرآن کریم نه دَ ابراهیمؑ ذکر کوه. په تحقیق سره هغه ډیر رښتنے وه او نبی وه.

إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴿٤٢﴾

(او تهٔ هغه وخت هُم یادکړه او دَ خلقو وړاندے ئے بیان کړه) هرکله چه ابراهیمؑ خپل پلار ته وئیلی وُو چه یَه ځما پلاره! ما ته یو خاص علم راکړے شوے دے چه تا ته نه دے حاصل.

يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ﴿٤٣﴾

بیا نو (سره دَ دے چه زهٔ ستا ځوئ یم) ته ما پسے زه. زهٔ به تا ته نیغه لار اوښایم.

يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ ۖ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا ﴿٤٤﴾

یَه ځما پلاره! دَ شیطان عبادت مهٔ کوه. په تحقیق سره شیطان دَ رحمان خدائے نافرمان دے.

يَا أَبَتِ إِنِّي أَخَافُ أَن يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ فَتَكُونَ لِلشَّيْطَانِ وَلِيًّا ﴿٤٥﴾

یَه ځما پلاره! زهٔ ویریږم چه تا ته (دَ نافرمانئ په سوب) دَ رحمان خدائے دَ طرف نه څهٔ عذاب اونهٔ رسی

چه دَ هغې په نتیجه کښې ته دَ شیطان دوست شې۔

قَالَ اَرَاغِبٌ اَنْتَ عَنْ اٰلِهَتِیْ یٰۤاِبْرٰهِیْمُ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ لَاَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِیْ مَلِیًّا ﴿۴۶﴾

په دے (دَ ابراهیمؑ پلار) اوویل۔ اے ابراهیمؑ! آیا ته ځما دَ خدایانو نه تکیاشې کرکه کوے؟ اے ابراهیمؑ! کچرے ته مُنع نشوے نو زهٔ به تا خامخا سنګسار کړم او (بنه دهٔ چه) ته ځهٔ وخت دَ پاره ځما سترګو نه پناشے (هسے نه چه دَ قهر نه زهٔ څه اونکړم)۔

قَالَ سَلٰمٌ عَلَیْكَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّیْ ؕ اِنَّهٗ كَانَ بِیْ حَفِیًّا ﴿۴۷﴾

(په دے ابراهیمؑ) اوویل بنه دهٔ ځما دَ طرف نه دِ تا دَ پاره مدام دَ سلامتیٔ دُعاوی (یعنی زهٔ تا نه اخوا کیګم) زهٔ به دَ خپل رب نه تا دَ پاره خامخا دَ بخښنې دُعاکوم۔ هغه په ما ډیر زیات مهربانه دے۔

وَاَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَاَدْعُوْا رَبِّیْ ۖ عَسٰۤی اَلَّاۤ اَكُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّیْ شَقِیًّا ﴿۴۸﴾

او (دَیه پلاره) زهٔ به تا او څوک چه ته دَ الله نه سوا غواړے تهول پریږدم او بس دَ خپل رب نه به دعا کانے غواړم (او) په تحقیق سره زهٔ به دَ خپل رب په حضور دَ دُعا کولو په سوب بد نصیب نهٔ یم۔

فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا یَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۙ وَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ ؕ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِیًّا ﴿۴۹﴾

بیا هرکله چه (ابراهیمؑ) هغوئ (یعنی خپلو خلقو) نه هُم او چه دَچا هغوی دَ الله نه سوا عبادت کولو (هغوئ نه هُم) ځان له شو نو مونږ هغهٔ له اسحاقؑ او (دَ هغهٔ نه پس) یعقوبؑ ورکړو او هغوئ ټول مونږ نبیان کړل۔

وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِیًّا ﴿۵۰﴾ ع ۳

او مونږ هغوئ له دَ خپل رحمت نه یوه (رغتهه) برخه ورکړه او مونږ هغوئ دَ پاره تل عُمری پاتے کیدونکے دَ او چتے درجے ښهٔ ذکر مقرر کړو۔

وَاذْكُرْ فِی الْكِتٰبِ مُوْسٰۤی ۫ اِنَّهٗ كَانَ مُخْلَصًا وَّكَانَ رَسُوْلًا نَّبِیًّا ﴿۵۱﴾

او ته دَ قرآن نه دَ موسیٰؑ هُم ذکر کوه هغه ځمونږ خوښ بنده وُه او رسُول (او) نبي وه۔

وَنَادَیْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَیْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِیًّا ﴿۵۲﴾

او مونږ موسیٰؑ ته دَ طُور دَ ښسی طرف نه آواز کړو او هغه موخپل راز ونه ښودلو سره ځان ته نږدے کړو۔

وَوَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَّحْمَتِنَآ اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ۝۵۳

او مونږ هغهٔ (موسیٰ) له په خپل رحمت د هغهٔ رور هارونؑ نبي (د مدد کار په حیث) ورکړو.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ
وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ۝۵۴

او ته د قرآن نه د اسماعیلؑ هُم ذکر کوه. په تحقیق سره هغه هُم رښتونے وعدے کوونکے وه او رسول (او) نبي وه.

وَكَانَ يَاْمُرُ اَهْلَهٗ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ وَكَانَ عِنْدَ
رَبِّهٖ مَرْضِيًّا ۝۵۵

او خپل اهل ته به ئے د نمونځ او زکوٰة تاکید کولو او د خپل رب خوښ وُه.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِدْرِيْسَ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ۝۵۶

او ته د قرآن مطابق د ادریسؑ هُم ذکر کوه، هغه هُم صدیق نبي وه.

وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ۝۵۷

او مونږ هغه ډیر اوچت ځائے ته رسولے وه.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ مِنْ
ذُرِّيَّةِ اٰدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ وَّمِنْ ذُرِّيَّةِ
اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْرَآءِيْلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا
اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا ۝۵۸

دا ټول هغه خلق وُو په چا چه نبیانو کښے خُدائے پاک انعام کړے وُو (هغو نبیانو) کښے چه د آدمؑ اولاد وه ځوک چه مونږ نوحؑ سره په کشتئ کښے بچ کړل او د ابراهیمؑ او یعقوبؑ (اولاد وُو) او هغو (خلقو) کښے وُو چاله چه مونږ هدایت ورکړو او خپل ځان د پاره مو خوښ کړل. هرکله به چه په هغوئ د رحمان خدائے کلام لوستے شو نو هغوئ به په سجده او په ژړا (په ژمکه) پریوتل.

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا
الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ۝۵۹

بیا د هغوی نه پس یو نوے نسل راغلو چا چه نمونځ ضائع کړو او د نفسانی خواهشاتو (ربنوئنے) پسے لاړ. بیا به هغوی ډیر زر د ګمراهئ مقام ته اورسی.

اِلَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ
الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ شَيْئًا ۝۶۰

سوا د هغهٔ چه توبه اوکړی او ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی دوئ به جنت کښے داخلیګی او په هغوئ به هیڅ ظُلم نهٔ کیګی.

جَنّٰتِ عَدْنِ الَّتِيْ وَعَدَ الرَّحْمٰنُ عِبَادَهٗ بِالْغَيْبِ
اِنَّهٗ كَانَ وَعْدُهٗ مَاْتِيًّا ۝۶۱

(یعنی هغه جنتونو کښے) چه تل عُمری دی او چه د کومو رحمٰن (خدائے) خپلو بنده یانو سره د اسے وخت کښے

وعده کړے ده چه هغه دَ هغوئ دَ نظر نه لاپورے پټ دی په تحقیق سره دَ خدائے وعده پوره کیدُونکے ده۔

لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَامًا ۖ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾

هغوی به دے (جنتُونو) کښے څه فضول خبره نه آوری بلکه نشته دَ سلامتیٔ (او امن خبرے به آوری) او دغو (جنتونو) کښے به هغوئ ته سحر ماښام رزق رسیږی۔

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾

دا هغه جنت دے چه دَ هغے وارثان به مونږ خپلو بندیانو کښے هغوی کُوُو چه متقیان وی۔

وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ۖ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿٦٤﴾

او (فرښتے به هغوئ ته وائی چه) مونږ خو بس ستاسو دَ رب په حُکم نازلیږو او څهٔ چه څمونږ وړاندے دی او څه چه څمونږ روستو دی او څه چه دَ دے دواړو ترمنځه دی ټول دَ خدائے دی او ستا سو رب هیرُونکے نهٔ دے۔

رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ ۚ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ﴿٦٥﴾ ع

(هغه) دَ آسمانُونو (هُم) رب دے او دَ زمکے هُم (رب) او چه څهٔ دَ دے دواړو ترمنځه (دی) بیا (یه مُسلمانه) دَ هغهٔ عبادت کوه او دَ هغهٔ په عبادت ټول عُمر قائم اوسه۔ آیا تا ته دَ هغهٔ غوندے صفت لرُونکے معلومه دے۔

وَيَقُولُ الْإِنْسَانُ أَإِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾

او انسان به تل دا وائی چه آیا هرکله زهٔ مړشم نو بیا به ژوندئے را او چتولے شم؟

أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنْسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْئًا ﴿٦٧﴾

آیا انسان ته دا (خبره) یاده نه ده چه مونږ هغه دے نه آکا هُو پیدا کړے وُه او (هغه وخت) هغه هیڅ څیز نهٔ وه۔

فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾

بیا قسم دے ستا په رب مونږ به هغوی (بیا لوځل) او چتوُو او شیطانان به هُم (او چتوو او) بیا به هغه ټول دَ جهنّم نه چارچاپیره دا سے راولو چه هغوی به په گوڼډو پریوتی وی۔

ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ اَيُّهُمْ اَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا ﴿۶۹﴾

بیا به مونږ هرډلي نه داسے خلق بیل کړو چه دَ رحمٰن (خدائے) سخت دښمنان وُو۔

ثُمَّ لَنَحْنُ اَعْلَمُ بِالَّذِيْنَ هُمْ اَوْلٰى بِهَا صِلِيًّا ﴿۷۰﴾

او مونږ ته ښه معلومه ده چه هغوی کښے څوک دوزخ ته دَ تلو زیات حق لری۔

وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿۷۱﴾

تاسو کښے هرسړے هغے (دوزخ) ته تلونکے دے دا دَخدائے داسے پخه وعده ده چه خامخا به سرته رسی۔

ثُمَّ نُنَجِّى الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ فِيْهَا جِثِيًّا ﴿۷۲﴾

او مونږ به نیکان بچ کړو او ظالمان به په ګوډو هغے کښے وریږدو۔

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا ۙ اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿۷۳﴾

او هر کله چه هغوی ته څمونږ ښکاره آیتونه اوروے شی نو کافران مومنانو ته وائی چه (راځو او وائی) مونږ دواړو ډلو کښے کوم فریق دَ درجے په لحاظ او دَ مجلس (سیالانو) په لحاظ زیات ښهٔ دے۔

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَحْسَنُ اَثَاثًا وَّرِءْيًا ﴿۷۴﴾

او مونږ دَ هغوی نه اګاهو دَ ډیرو زمانو خلق هلاک کړی دی چه دَ سامانونو په لحاظ او دَ ښکاره شان او شوکت په لحاظ دَ دے خلقو نه ښهٔ وُو۔

قُلْ مَنْ كَانَ فِى الضَّلٰلَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ مَدًّا ۚ حَتّٰٓى اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ اِمَّا الْعَذَابَ وَاِمَّا السَّاعَةَ ؕ فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضْعَفُ جُنْدًا ﴿۷۵﴾

ته اووایه چه کوم سړے په ګمراهئ کښے (پروت) وی رحمٰن (خدائے) هغهٔ ته لوے موده پورے مولت ورکوی۔ تر دے چه هر کله دَ داسے خلقو وړاندے هغه عذاب راشی چه دَ کوم هغوی سره وعده شوے وه (یعنے) یا دنیاوی عذاب یا (قیامت) پوره تباهی۔ هغه وخت به هغوی ته معلومه شی چه څوک دَ مکان په لحاظ خراب دے او دَ دوستانو په لحاظ کمزورے دے۔

وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ۗ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴿۷۶﴾

او الله به هدایت موندونکی خلق په هدایت کښے زیاتوی او باقی پاتے کیدونکی نیک عملونه دَ خدائے په نظر کښے تولو نه ښهٔ دی دَ جزا په لحاظ هُم او دَ

انجام په لحاظ هُم۔

أَفَرَءَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ﴿۷۷﴾

آیا تا دَ هغه سړی په حال چرے غور نه دے کړے چا چه زمونږ دَ نښانا تو نه انکار اوکړو او وے وئیل چه په تحقیق سره ماته به ډیر مال او ځامن راکیدے شی۔

أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿۷۸﴾

آیا هغه دَ غیب پته لګولے ده؟ یا دَ رحمٰن (خدائے) نه ئے څه وعده اخستے ده۔

كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿۷۹﴾

داسے به هیڅکله نهٔ وی مونږ به دَ هغهٔ دا خبره محفوظه ساتو او دَ هغهٔ عذاب به اوږد کړو۔

وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴿۸۰﴾

او چه په څهٔ (څیز) هغه فخر لګیا دے کوی دَ هغے به مونږ وارثان شو او هغه به مونږ له یوازے رازی۔

وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴿۸۱﴾

او هغوی دَ الله نه سوا ډیر خدایان جوړ کړی دی په دے اُمید چه هغوی به دَ هغو خلقو دَ پاره دَ عزت موجب وی۔

كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿۸۲﴾

داسے به هیڅکله نهٔ وی هغه خُدایان به یوه ورځ دَ هغوی دَ عباد تونو نه انکار اوکړی او دَ هغوی خلاف به اودریګی۔

أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿۸۳﴾

آیا تا ته معلومه نهٔ ده چه مونږ شیطانان پریښی دی چه هغوی کافران غلَوی۔

فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿۸۴﴾

بیا تهٔ دَ هغوی خلاف په تادئ څه قدم مهٔ اوچتوه مونږ دَ هغوی دَ تباهئ ورځے شمیرلی دی۔

يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿۸۵﴾

کومه ورځ به چه متقیان را ټولوندی کړی دَ رحمٰن خُدائے وړاندے غونډ په یو ځائے بوزُو۔

وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿۸۶﴾

او مجرمان به مونږ په شړنه دَ جهنّم په طرف ورولو۔

لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿۸۷﴾

هغه ورځ به چا ته دَ شفاعت اختیار نهٔ وی سوا دَ هغه چا چه دَ رحمٰن (خدائے) نه ئے لوظ اخستے دے۔

وَ قَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ﴿۸۸﴾
اوروئې وائي چه رحمٰن (خدائے) ځوئ جوړ کړے دے.

لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا اِدًّا ﴿۸۹﴾
(ته ورته او وایه) تاسو یوه ډیره سخته خبره کوئ.

تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَ تَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَ تَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴿۹۰﴾
نزدے ده چه (ستاسو دَ خبرے له کبله) آسمان په شلیدو را اوغورزیګی او زمکه ټوټے ټوټے شي او غرونه ذره ذره (په زمکه) پرېوزي.

اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا ﴿۹۱﴾
دے دَ پاره چه هغوی دَ رحمٰن خدائے ځوئ جوړ کړے دے

وَ مَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ﴿۹۲﴾
او دا دَ رحمٰن (خدائے) دَ شان سراسر خلاف ده چه هغه (ځان له) څوک ځوئے جوړ کړي.

اِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ اِلَّاۤ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴿۹۳﴾
وے چه هرڅه چه آسمانُونو او زمکے کښے دي هغه به دَ رحمٰن (خدائے) وړاندے دَ مریٔ په ډول حاضریګی.

لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَ عَدَّهُمْ عَدًّا ﴿۹۴﴾
(خدائے) هغوی نه ګیره اچولے ده او شمیرلی ئے دي.

وَ كُلُّهُمْ اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ﴿۹۵﴾
او دَ قیامت په ورځ به هغوی ټول ځان ځان له دَ هغهٔ په خدمت کښے حاضریګي.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا ﴿۹۶﴾
په تحقیق سره هغه خلق چه ایمان ئے راوړے دے او چا چه نیک عملونه کړي وي رحمٰن (خدائے) به هغوی دَ پاره وُد (مینه) پیدا کړي.

فَاِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الْمُتَّقِيْنَ وَ تُنْذِرَ بِهٖ قَوْمًا لُّدًّا ﴿۹۷﴾
بیا مونږ خو دا (قرآن) ستا په ژبه آسان راکوز کړے دے۔ دے دَ پاره چه ته دَ دے له کبله متقیانو ته زیرے ورکړے او دَ دے په ذریعه جهګړه مار قام هوښیار کړے.

وَ كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴿۹۸﴾
او څومره اُمتونه دي چه هغوی نه آګاهُو تیر شوی دي مونږ هغوی هلاک کړي دي آیا تهٔ هغوی کښے چاله هُم دَ حِس په ذریعه محسوس وے یا دَ هغوی پوټے قدرے آواز اورے.




سورة طٰهٰ- دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے یو سل او شپږ دیرش آیتونه او اته رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

طٰهٰ ②

اے هغه سړیه! چه کامل قوتونه لرے مونږ په تا

مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى ③

(دا) قرآن دے دَ پاره نهٔ دے نازل کړے چه تهٔ تکلیف کښے پریوزے۔

اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ④

(دا خو) بس (دَ خدائے نه) ډیریدونکی انسان دَ پاره دَ لارے ښودنے او هدایت (دَ پاره) دے۔

تَنْزِيْلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلٰى ⑤

(قرآن) دَ هغهٔ دَ طرفه راکوز شوے دے چا چه زمکه او اوچت آسمانونه پیدا کړی دی۔

اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى ⑥

(هغه) رحمٰن (دے چه) په عرش مضبوط تام شوے دے۔

لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى ⑦

په آسمانونو او زمکه کښے چه څهٔ دی او هغه هُم چه دَ دے دواړو ترمنځه دی دَ هغهٔ دی او ورسره (هغه هُم) چه دَ لمده نماورے دَ لاندے دی۔

وَاِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى ⑧

کچرے تهٔ په اوچت آواز وائے نو خدائے هغه هُم آوری او کچرے په رووا ئے نو هغه هُم آوری۔ وے چه هغه پټے خبرے نه هُم خبردے او څهٔ چه ډیر زیات پټ وی (دَ هغے علم هُم لری)۔

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ⑨

الله (هغه ذات دے چه هغهٔ) نه سوا څوک دَ عبادت لائق نشته دَ هغهٔ ډیر ښځے صفتونه دی۔

وَهَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ⑩

(او دَ دے په ثبوت کښے مونږ وایو چه) آیا تا ته دَ موسیٰ واقعه رسیدلے ده؟ (یا نه)۔

اِذْ رَاٰ نَارًا فَقَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِقَبَسٍ اَوْ اَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ١١

(یعنی) هرکله چه هغهٔ لیو اور اولیدو نو هغهٔ خپل اهل ته اووئیل (په خپل ځائے) ایساره اوسه - ما لیو اور لیدلے دے ممکنه ده چه زهٔ هلته لاړ شم هغه اور نه څهٔ سروتکه ستاسو دَ پاره هُم راوړم یا په اور (خپل ځان دَ پاره څهٔ روحانی) هدایت حاصل کړم۔

فَلَمَّآ اَتٰهَا نُوْدِيَ يٰمُوْسٰى ١٢

بیا هرکله چه هغه هغے (اور) ته اورسیدو نو هغهٔ ته آواز اوشو چه یَه موسیٰ!

اِنِّيْٓ اَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ ۚ اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ١٣

زهٔ ستا رب یم بیا تهٔ خپل پیزار او باسه ولے چه تهٔ دَ طویٰ په پاکه وادیٔ کښے ئے۔

وَاَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوْحٰى ١٤

او ما تهٔ خپل (ځان دَ پاره) خوښ کړے ئے بیا ستا په طرف چه څهٔ وحی کیږی هغه تهٔ واوره (او په هغے عمل اوکړه)

اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدْنِيْ ۙ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ ١٥

په تحقیق سره زهٔ الله یم ځما نه سوا څوک دَ عبادت لائق نشته بیا تهٔ هُم ځما عبادت کوه او ځما دَ ذکر دَ پاره نمونځ قائم کړه۔

اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ اَكَادُ اُخْفِيْهَا لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۢ بِمَا تَسْعٰى ١٦

په تحقیق سره قیامت راتلونکے دے نزدے ده چه زهٔ هغه ښکاره کړم - دے دَ پاره چه هر یو نفس له دَ هغهٔ دَ اعمالو مطابق بدله ورکړے شی۔

فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ فَتَرْدٰى ١٧

بیا څوک چه په قیامت ایمان نهٔ راوړی او خپلو غوښتنو پسے زی تا په قیامت ایمان راوړو نه منع نکړی چه دَ هغے په نتیجه کښے تهٔ هلاک شے۔

وَمَا تِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يٰمُوْسٰى ١٨

او (مونږ هغه وخت موسیٰ ته اووئیل چه) اے موسیٰ! دا ستا په ښی لاس کښے څهٔ دی؟

قَالَ هِيَ عَصَايَ ۚ اَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا وَاَهُشُّ بِهَا عَلٰى غَنَمِيْ وَلِيَ فِيْهَا مَاٰرِبُ اُخْرٰى ١٩

(هغهٔ) اووئیل دا ځما امسا ده زهٔ په دے ادانره کیږم او دَ دے له کبله خپلو چیلو ته (دَ ونو

پانړے راشندوم او دَ دے نه سوا هُم دے کښے ماد پاره
نورے ډیرے فائدے (پټے) دی۔

قَالَ اَلْقِهَا يٰمُوسٰى ⑳
په دے هغهٔ (یعنے خدائے) او فرمائیل اے موسیٰؑ! دا
امسا په زمکه اوغورزوه۔

فَاَلْقٰهَا فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى ㉑
بیا نو هغهٔ هغه په زمکه اوغورزوله چه هغے نه پس
هغهٔ سمد ستی اولیدل چه هغه مار دے چه منډه
وهی۔

قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا
الْاُوْلٰى ㉒
په دے (الله) او فرمائیل دا اونیسه او مهٔ ویریګه
مونږ به دا بیا دَ دے پرومبی حال ته راولو۔

وَاضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ
غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى ㉓
او خپل لاس په ترخ کښے ننینګ کړه۔ هرکله چه ته
دا را اوباسے نو هغه به سپین وی وے بے دَ څه
بیمارئ، دا به یو بل نشان وی۔

لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ㉔
(او مونږ به دا دے دَ پاره کوو) چه دَ دے په نتیجه
کښے مونږ تا ته خپل لوئے نشانات اوښایو۔

اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ㉕ ع
ته فرعون له لاړشه وے چه هغهٔ سرکشی کړے ده۔

قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ㉖
(په دے موسیٰؑ) او وئیل یَه څما ربه څما سینه پرانزه۔

وَيَسِّرْ لِيْٓ اَمْرِيْ ㉗
او چه کوم فرض څما په ذمه شوے دے دَ هغے سرته
رسول ما دَ پاره آسان کړه۔

وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ㉘
او کچرے څما په ژبه کښے څه غوټه وی نو هغه پرانزه۔

يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ㉙
(تر دے چه) خلق څما په خبره په آسانئ پوهه شی۔

وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ㉚
او څما اهل کښے څما یو نائب جوړ کړه (یعنی)

هٰرُوْنَ اَخِي ㉛
هارونؑ چه څما رور دے دَ دهٔ په ذریعه څما

اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ ㉜
طاقت زیات کړه۔

وَاَشْرِكْهُ فِيْٓ اَمْرِيْ ㉝
او هغه څما په کار کښے شریک کړه۔

كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا ㉞
دے دَ پاره چه مونږ (دواړه) ډیر زیات ستا ثنا

صفت بیان کړو۔

وَّنَذْكُرَكَ كَثِيْرًا ۳۴

او ډیر ډیر ستا ذکر اوکړو۔

اِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيْرًا ۳۵

ته مونږ ښه وینے۔

قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى ۳۶

(الله) اوفرمائیل، اے موسیٰ! تا چه څه اوغوښتل تاله درکړے شول۔

وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً اُخْرٰٓى ۳۷

او مونږ (دَ دے نه اگاهُو) یوځل نور هُم په تا احسان کړے دے۔

اِذْ اَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّكَ مَا يُوْحٰٓى ۳۸

هرکله چه مونږ ستا په مور دَ وحی په ذریعه هغه هرڅهٔ نازل کړل چه (په دا سے وخت کښے) راکوزول ضروری وی۔

اَنِ اقْذِفِيْهِ فِى التَّابُوْتِ فَاقْذِفِيْهِ فِى الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَاْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّىْ وَ عَدُوٌّ لَّهٗ ۚ وَ اَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّىْ ۚ وَلِتُصْنَعَ عَلٰى عَيْنِىْ ۳۹

(چه دَ هغے اوږد بیان دا دے) چه هغه (موسیٰ) په تابوت کښے کیږده بیا هغه (تابوت) په دریاب کښے پریږده بیا (دے نه پس دِ داسے وی چه) دریاب دے څمونږ حُکم سره دا (تابوت) غاړے ته اورسوی (دے دَ پاره چه) هغهٔ له هغه سړے یوسی چه څما هُم او دَ هغهٔ (موسیٰ) هُم دښمن دے او په تا ما دَ خپل طرف نه مینه نازله کړه (یعنی ستا دَ پاره مے دَ خلقو په زړونو کښے مینه پیدا کړه) او ددے نتیجه دا راوته چه ته څمونږ دَ سترګو وړاندے اوپاللے شوے۔

اِذْ تَمْشِيْٓ اُخْتُكَ فَتَقُوْلُ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى مَنْ يَّكْفُلُهٗ ۚ فَرَجَعْنٰكَ اِلٰٓى اُمِّكَ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ وَ قَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنٰكَ مِنَ الْغَمِّ وَ فَتَنّٰكَ

(دا هغه وخت اوشول) هرکله چه ستا خور (ورسره ورسره) روانه وه او وئیل یئے چه یهٔ خلقو! آیا زهٔ تاسو ته دَ هغے ښځے خبر درکړم چه دے به اوساتی او دا شان مونږ ته خپلے مور ته واپس کړے۔ دے دَ پاره چه دَ هغے سترګے یخے شی او هغه غم اونکړی او

فُتُوْنًا ۥ فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۥ ثُمَّ جِئْتَ عَلٰى قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى ۝۴۰

(اے موسیٰ!) تا لوسرے وژلے وُهٔ بیا مونږ تهٔ دَهغه غم نه خلاص کړے او مونږ تهٔ په نورو ډیرو امتحانُونو کښے اچولو سره په ښه شان اوزمائیلے چه دَهغے نه پس تهٔ ډیر کلونه دَ مدین خلقو کښے پاتے شوے۔ بیا اے موسیٰ! (کیده کیده چه) تهٔ هغه عُمر ته اورسیدے چه څمونږ دَ کار وی۔

وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِيْ ۝۴۱

او ما تهٔ دَ خپل ذات دَ پاره (رُوحانی ترقی ورکولو سره) تیار کړے۔

اِذْهَبْ اَنْتَ وَاَخُوْكَ بِاٰيٰتِيْ وَلَا تَنِيَا فِيْ ذِكْرِيْ ۝۴۲

(بیا هر کله چه تهٔ هغه عمر ته اورسیدے نو ما تا ته اووئیل چه) تهٔ او ستا رور څما نښانو سره لاړ شئ او څما په ذکر کښے هیڅ قسم کمی مهٔ کوئ۔

اِذْهَبَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ۝۴۳

تاسو دواړه فرعون ته ورشئ ولے چه هغه سرکشی کړے ده۔

فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى ۝۴۴

او تاسو دواړه هغهٔ سره نرمے نرمے خبرے کوئ۔ کیدے شی چه هغه پوهه شی یا (څمونږ نه) په ویره شی۔

قَالَا رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ اَوْ اَنْ يَّطْغٰى ۝۴۵

دواړو عرض اوکړو چه یه څمونږه ربه! مونږ ویریږو چه هغه په مونږ زیاتے اونکړی یا په مونږ دَحد نه زیاته سختی اونکړی۔

قَالَ لَا تَخَافَآ اِنَّنِيْ مَعَكُمَآ اَسْمَعُ وَاَرٰى ۝۴۶

(الله) اوفرمائیل تاسو دواړه هډو اونهٔ ویریږئ زهٔ تاسو سره یم (ستاسو دُعا کانے هُم) اورم (او ستاسو حال هُم) وینم۔

فَاْتِيٰهُ فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلَا رَبِّكَ فَاَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۥ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ۭ قَدْ جِئْنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ ۭ وَالسَّلٰمُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى ۝۴۷

بیا دواړه هغهٔ ته ورشئ او هغهٔ ته اووائی مونږ دواړه ستا دَ رب رسُولان یو۔ بیا مونږ سره بنی اسرائیل واستوه او هغوئ ته تکلیفونه مهٔ ورکوه۔ مونږ تا له ستا دَ رب نه یو لوئے نښان راوړے دے او

(تا ته وايو چه) څوک چه (زمونږ راوړی) هدايت پسے زی (دَ خدائے دَ طرف نه به) په هغهٔ سلامتی نازليږی۔

إِنَّا قَدْ أُوحِيَ إِلَيْنَآ أَنَّ الْعَذَابَ عَلَىٰ مَنْ كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ۴۹

مونږ ته دا وحی شوے ده چه څوک (دَ خدائے دَ نښان نه) انکار اوکړی او شاکړی نو په هغهٔ به عذاب نازليږی۔

قَالَ فَمَن رَّبُّكُمَا يَٰمُوسَىٰ ۵۰

(دَدے په اوريدو فرعون) اووئيل يَه موسیٰ! ستاسو دَ دواړو رب څوک دے؟

قَالَ رَبُّنَا الَّذِيٓ أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ ۵۱

(موسیٰ) اووئيل زمونږ رب هغه دے چا چه هر يو څيز له (دَ ضرورت هومره) اندامونه ورکړی دی او بيا ئے دَدے (اندامونه) دَ کار اخستلو طريقه ښودلے ده۔

قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُونِ الْأُولَىٰ ۵۲

(فرعون) اووئيل (کچرے دا خبره ده) نو دَ پرومبنو خلقو څه حال وه (يعنی هغوی خو دا خبرے نهٔ منودے هغوی سره به څهٔ سلوک کيږی)۔

قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَٰبٍ ۖ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى ۵۳

(موسیٰ) اووئيل دَ هغو (پرومبنو خلقو) علم خو ځما رب ته دے (دَ هغوی ټولو حالات دَ هغهٔ) په کتاب کښے محفوظ دی۔ ځما رب نهٔ تيروزی او نهٔ هيروی۔

الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّن نَّبَاتٍ شَتَّىٰ ۵۴

(هُم هغه دے) چا چه تاسو دَ پاره دا زمکه دَ فرش په طور جوړه کړے ده او دے کښے ئے تاسو دَ پاره لارے هُم جوړے کړی دی او آسمان (وريځے) نه ئے اوبه راوروے دی۔ بيا (تهٔ هغوی ته دا هُم اووايه چه) مونږ دے اوبو سره څنے قسمه دَ زرغونه (بوټو) جوړے پيدا کړی دی۔

كُلُوا۟ وَارْعَوْا۟ أَنْعَٰمَكُمْ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِي النُّهَىٰ ۵۵ ع ۲ ۱۱ ۱۰

(بيا) تاسو ئے هُم خورئ او څيلو څناورو ته ئے هُم خورئ دے کښے دَ عقل خاوندانو دَ پاره ډير نښانات دی۔

۞ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ۵۶

مونږه دے (زمکے) نه تاسو پيدا کړي يئ او هُم دے ته به مو واپس کوؤ او دَ دے نه به تاسو په دوئم

ځل را او باسو۔

وَلَقَدْ اَرَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَاَبٰى ﴿۵۶﴾

او مونږ هغهٔ (فرعون) ته هر قسم نشانات او ښودل وے (سره د دغو) هغه په انکار ټینګ وُه او لګیا وه انکار ئے کولو۔

قَالَ اَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ اَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يٰمُوْسٰى ﴿۵۷﴾

او وے وئیل (اے موسیٰ!) آیا ته دے د پاره مونږ له راغلے ئے چه په خپل جادو مونږ ځمونږ د زمکے نه اوباسے۔

فَلَنَاْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهٖ فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهٗ نَحْنُ وَلَآ اَنْتَ مَكَانًا سُوًى ﴿۵۸﴾

(که دا خبره ده) نو مونږ به هُم ستا په مقابله کښے ستا په شان جادو راوړو بیا په ځمونږ او د خپل ځان ترمنځه یو (وخت او) مقام مقرر کړه نهٔ به دے نه مونږ روستو کیږو او نهٔ به ته۔ هغه به (یو داسے) ځائے (وی چه) ځمونږ او ستاسو ترمنځه برابر وی۔

قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّيْنَةِ وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿۵۹﴾

(د دے په اوریدو موسیٰ) او وئیل چه ستا (او ځمونږ) د لیدو ځائے کید وورځ د (ستاسو) د اختر ورځ وی او نیږه قدرے نمر چه راوخیژی نو ټول خلق را غونډ کړئ۔

فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى ﴿۶۰﴾

د دے په اوریدو فرعون په شا لاړو او خپله تدبیرونه چه هغهٔ نه کیدے شول هغه ئے او کړل او بیا (موسیٰ ته) واپس شو۔

قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۚ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرٰى ﴿۶۱﴾

(بیا) موسیٰ هغوی ته او وئیل په خلقو! تاسو تباه شئ په الله دروغ مهٔ تړئ ګنے نه چه هغه تاسو په عذاب دل کړی او څوک چه (په خدائے) دروغ تړی هغه مراد ته نهٔ رسی۔

فَتَنَازَعُوْٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ وَاَسَرُّوا النَّجْوٰى ﴿۶۲﴾

د دے په اوریدو (فرعون او د هغهٔ ملګری) خپلو کښے په جهګړه شول او پټے منصوبے ئے جوړول شروع کړل۔

قَالُوْٓا اِنْ هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ يُرِيْدٰنِ اَنْ يُّخْرِجٰكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيْقَتِكُمُ الْمُثْلٰى ﴿٦٣﴾

(او) هغوی اووئيل دا دواړه (موسیٰؑ او هارونؑ) نور هيڅ هُم نه دی بس جادوګر دی (چه) داغواړی چه تاسو ستاسو دَ زمکے نه دَ جادو په زور او باسی او ستاسو دا ښهٔ اعلیٰ مذهب تباه کړی۔

فَاَجْمِعُوْا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا ۚ وَقَدْ اَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلٰى ﴿٦٤﴾

بيا پکار دی چه تاسو هُم خپل تدبيرونه اوکړئ۔ بيا ټول دَ يو ټولی په شکل کښے راشئ او چه څوک (سړے) نن اوګټی هغه به خامخا مراد ته رسی۔

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ﴿٦٥﴾

(دَ دے په اورېدو هغه خلقو کوم چه فرعون دَ موسیٰؑ مقابلے دَ پاره راغونډ کړی وُو) اووئيل چه اے موسیٰؑ! يا خو ته خپل تدبير اوکړه (يعنی ښکاره کړه) يا مونږ تا نه رومبئ کيږو۔

قَالَ بَلْ اَلْقُوْا ۚ فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى ﴿٦٦﴾

(بيا موسیٰؑ) اووئيل (ښه دا ده) چه (تاسو خپل) تدبير اوکړئ (يعنی ښکاره کړئ) هغوی چه خپل تدبير اوکړو دَ دے په نتيجه کښے دَ هغوی پړی او دَ هغوئ کونتئ موسیٰؑ ته (دَ هغوی دَ فريب له کبله) داسے په نظر راغے لکه چه هغه زغلی۔

فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى ﴿٦٧﴾
قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ اَنْتَ الْاَعْلٰى ﴿٦٨﴾

او موسیٰؑ خپل نفس (زړهٔ) کښے په پټه او ويرېدو۔ (بيا) مونږ هغهٔ ته وحی اوکړه (چه موسیٰؑ!) مهٔ ويرېږه وے چه هُم ته غالب راځے۔

وَاَلْقِ مَا فِيْ يَمِيْنِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوْا ۭ اِنَّمَا صَنَعُوْا كَيْدُ سٰحِرٍ ۭ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُ حَيْثُ اَتٰى ﴿٦٩﴾

او څه چه ستا په ښی لاس کښے دی هغه په زمکه واچوه څهٔ چه هغوی کړی دی هغه ټول به هغه تير کړی (يعنی دَ هغوی مکر به ښکاره کړی) هغوی چه څهٔ کړی دی هغه خو دَ دهوکه بازو ليوهٔ دهوکه ده او دهوکه باز چه دَ هر طرف نه هُم راشی دَ خدائے په مقابله کښے نشی کاميابيدے۔

فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ هٰرُوْنَ وَ مُوْسٰى ۞

بیا راهر کله چه موسیٰ خپله کونتئ دَ غورزولو نه پس دَ فرعون راوستی شوو) چالبازو ته (خپله کمزوری معلومه شوه نو هغوی دَ خپل ضمیر په آواز) سجده کښے اوغورزولے شول او ووے وئیل مونږ دَ هارونؑ او دَ موسیٰ په رب ایمان راوړو۔

قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ؕ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ ۡ وَلَتَعْلَمُنَّ اَيُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّ اَبْقٰى ۞

(دَ دے په اوریدو فرعون) اووئیل آیا تاسو ځما دَ حُکم نه د رومبئ ایمان راوړئ (معلومه شوه چه) هغه ستاسو سردار دے چا چه تاسو ته دا چالاکئ ښودلی دی بیا (دَ دے دهوکے په بدله کښے به) زهٔ ستاسو لاسونه او پښے دَ خپلے (خلاف ورزی له کبله پریکړم او زهٔ به تاسو) دَ کجهورے تنو سره ترلی په صلیب کړم او تاسو ته به معلومه شی چه مونږ کښے څوک ډیر سخت او ډیره وخته پورے عذاب ورکونکے شی۔

قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَ الَّذِيْ فَطَرَنَا فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ؕ اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ؕ ۞

(دَ دے په اوریدو) هغوی (یعنی دَ فرعون رومبنو ملګرو جادوګرو) اووئیل مونږ ه تا دَ دے نښا نالو نه غوره نشو ګنړلے چه (دَ خدا ئے دَ طرف نه) مونږ ته راغلی دی او نهٔ په هغهٔ (خدائے) چا چه مونږ پیدا کړو بیا چه څومره ستا زور دے اولګوه تهٔ خو بس دَ دے دُنیا ژوند ختمولے شے۔

اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا وَمَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ؕ وَ اللّٰهُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى ۞

نصف

مونږ (اوس) په خپل رب ایمان راوړے دے چه هغه مونږ اوبخښی او دا دهوکه بازی (په مقابله کښے) هُم معاف کړی څه دَ پاره چه تا مونږ مجبوره کړی وُو او الله دَ ټولو نه ښهٔ دے او دَ ټولو نه زیات قائم پاتے کیدونکے دے۔

اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ؕ لَا

حقیقت دا دے چه څوک خپل رب ته دَ مجرم په حیث

يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ﴿۷۵﴾

حاضرشی په تحقیق سره دَ هغهٔ دَ پاره جهنّم دے. نهٔ به هغے کښے مری او نهٔ به ژوندے پاتے کیږی۔

وَ مَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ﴿۷۶﴾

او کوم سړے چه دَ ایمان په حال هرکله چه هغه ورسرهٔ مناسب دَ حال عمل هُم کوی هغهٔ (خدائے) له راشی نو داسے هر یو سړے به او چتے مرتبے مُومی۔

جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى ﴿۷۷﴾

هغه مرتبے به تل تر تله پاتے کیدُونکی باغونه (وی) چه ور لاندے به نهرونه بهیګی۔ (او) هغوی به دے کښے تل تر تله اوسی۔ او دا دَ هغه (چا) مناسب بدله ده چه پاک اوسی۔

وَ لَقَدْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى ۙ اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيْقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا ۙ لَّا تَخٰفُ دَرَكًا وَّ لَا تَخْشٰى ﴿۷۸﴾

او مونږ موسیٰؑ ته وحی کړے وه چه زما بندیان (یعنی خپل قام) دَ شپے په تیارهٔ کښے اوباسه بیا هغوی ته په سمندر کښے یوه اوچه لاره اونبا یه۔ نهٔ به ستا داویره وی چه څوک به مے دَ روستو نه اونیسی او نهٔ به تا سو (دَ سمندر دَ تباهئ نه) ویریګئ۔ (دَ دے په اوریدو موسیٰؑ خپل قام سره دَ سمندر په طرف لاړو)۔

فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ؕ ﴿۷۹﴾

او فرعون خپل لښکر سره هغوی پسے لاړو او سمندر هغه او دَ هغهٔ ملګری ډوب کړل۔

وَ اَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَ مَا هَدٰى ﴿۸۰﴾

او فرعون خپل قام بے لارے کړو۔ او دَ هدایت لارے ورته اونهٔ ښودله۔

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ قَدْ اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ عَدُوِّكُمْ وَ وٰعَدْنٰكُمْ جَانِبَ الطُّوْرِ الْاَيْمَنَ وَ نَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَ السَّلْوٰى ﴿۸۱﴾

یَه بنی اسرائیلو! مونږه تا سو ستاسو دَ دښمن نه خلاص کړی یئ او دے نه پس مونږ تا سو سره دَ طُور په ښی طرف دوه مخیزه وعده کړے ده (یعنی دَ تورات په احکامو عمل کولو سره برکت لازم دے) او مونږ تا سوله ترنجبین او مرزان هُم راکوز کړی وُو (دے دَ پاره چه تا سوله خوراک پیدا کړو)۔

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَلَا تَطْغَوْا فِيْهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ ۚ وَمَنْ يَّحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِيْ فَقَدْ هَوٰى ﴿٨١﴾

(او وئیلی م وُوچه) څه مونږ تا سوله درکړی دی هغې نه پاک څیزونه خورئ او دَ دے (رزق) پچقله دَ ظُلم نه کار مهٔ اخلئ هسے نه چه په تاسو څما غضب نازل شی او چه په چا هُم څما غضب نازل شی هغه (پوره نه) پریوزی۔

وَاِنِّيْ لَغَفَّارٌ لِّمَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهْتَدٰى ﴿٨٢﴾

او څوک چه توبه اوکړی او ایمان راوړی۔ بیا مناسب دَ حال عمل (هُم) اوکړی او هدایت اومومی نوزهٔ دَ هغهٔ غښے نه غټه گناه بخښم۔

وَمَآ اَعْجَلَكَ عَنْ قَوْمِكَ يٰمُوْسٰى ﴿٨٣﴾

او (مونږ اووئیل) یَه موسیٰ! خپل قام دِ پریښو، تهٔ ولے په تادئ تادئ راغلے یے؟۔

قَالَ هُمْ اُولَآءِ عَلٰٓى اَثَرِيْ وَعَجِلْتُ اِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى ﴿٨٤﴾

(موسیٰ جواب کښے) اووئیل هغوی (خلق) ما پسے راروان دی او یَه څما ربه! زهٔ دے دَ پاره تاله په تادئ راغلے یم چه تهٔ (څما په دے کار) خوشحاله شے۔

قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ وَاَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ ﴿٨٥﴾

(دَ دے په اوریدو خدائے) اووئیل مونږ ستا قام تا نه پس یو آزمینښت کښے اچولے دے او سامری هغوی بے لارے کړی دی۔

فَرَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۚ قَالَ يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۚ اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ ﴿٨٦﴾

بیا نو موسیٰ خپل قام ته بنهٔ په قهر خفه واپس شو (او خپل قام ته ئے) اووئیل یَه څما قامه! آیا ستاسو ربّ تاسو سره یوه ښه وعده نهٔ وه کړے آیا دَ دے وعدے په پوره کیدو نا وخته شوے وه یا تاسو غوښتل چه په تاسو دَ رب نه څه غضب نازل شی څکه تاسو څما وعده اوغورزوله۔

قَالُوْا مَآ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَآ اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ اَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿٨٧﴾

هغوی اووئیل مونږ ستا وعده په خپله رضا نه ده پریښودے بلکه فرعون دَ قام زیورات و (کالو) چه کوم پیتهئ په مونږ بار کړے شوے وه هغه مونږ اوغورزولو او دا شان

سامری هُم هغه او غورزولو۔

فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ فَقَالُوْا هٰذَآ اِلٰهُكُمْ وَاِلٰهُ مُوْسٰى ۵ فَنَسِيَ ﴿۸۹﴾

بیا هغهٔ هغوی دَ پاره (یعنی ځمونږ دَ پاره) یوسخیٔ جوړ کړو چه څه ډهانچه وه دَ دے نه به یو بے مطلبه آوازوتلو (یعنی په حقیقت کښے سخیٔ نهٔ وه) بیا (دَ هغهٔ ملګرو) اوویل چه دا ستاسو هُم او دَ موسیٰؑ هُم خدائے دے او هغهٔ دا په هیره (روستو پرېښے) دے۔

اَفَلَا يَرَوْنَ اَلَّا يَرْجِعُ اِلَيْهِمْ قَوْلًا ۵ وَّلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ﴿۹۰﴾ ع ۱۴

بےشکه سامری او دَ هغهٔ ملګرو دا سے او کړل وے هغوی خپله نهٔ لیدل چه هغه سخیٔ دَ هغوی دَ څهٔ خبرے جواب نهٔ ورکوی او نهٔ هغوی ته څهٔ ضرر رسوی۔

وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هٰرُوْنُ مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ ۚ وَاِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ ﴿۹۱﴾

او هارونؑ (دَ موسیٰؑ) دَ راتلو نه پس (هُم) آګاه هغوی ته وئیلی وُه چه په ځما قامه تاسو دَ دے (سخی) په ذریعه آزمېښت کښے اچولی شوی یئ او ستاسو رب خو رحمان (خدائے) دے۔ بیا ما پسے زئ او ځما حکم منئ (او شرک مهٔ کوئ)

قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عٰكِفِيْنَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَيْنَا مُوْسٰى ﴿۹۲﴾

(وے دے ضدی قام) اوویل ترڅو چه موسیٰؑ مونږ له واپس رانشی مونږ به تر هغے دَ دے عبادت کښے مشغول یُو۔

قَالَ يٰهٰرُوْنُ مَا مَنَعَكَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا ﴿۹۳﴾

(هرکله چه موسیٰؑ واپس راغے نو هغهٔ هارونؑ ته اوویل) اے هارونؑ! هرکله چه تا خپل قام په لارے کیدو اولیدو نو تهٔ څه منع کړے وے؟

اَلَّا تَتَّبِعَنِ ۭ اَفَعَصَيْتَ اَمْرِيْ ﴿۹۴﴾

چه تهٔ ځما په لاره لاړ نه شوے؟ آیا تا ځما دَ حکم نافرمانی اوکړه؟

قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَاْخُذْ بِلِحْيَتِيْ وَلَا بِرَاْسِيْ ۚ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تَقُوْلَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ

(هارونؑ) اوویل په ځما دَ مورځویه! مهٔ ځما دَ ږیرے ولیښنئ نیسه او مهٔ ځما دَ سرویښته

وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِيْ ﴿۹۵﴾

زۀ خو دے خبرے ویرہ وسے وُم چہ تۀ دا اونۀ وائے چہ تا بنی اسرائیلو کښے اختلاف پیدا کړے دے او څما دَ خبرے خیال دِ اونۀ ساتلو (چہ دَ قام تنظیم پاتے شی)۔

قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يٰسَامِرِيُّ ﴿۹۶﴾

بیا موسیٰ سامری تہ مخ کړو او وے وئیل اے سامری! دا ستا څۀ قیصہ دہ؟

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوْا بِهٖ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ فَنَبَذْتُهَا وَكَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ﴿۹۶﴾

هغۀ او وئیل ما هغه څه اولیدل چہ دے خلقو لیدلی نۀ وُو او ما دَ دے رسُول (یعنی موسیٰ) خبرو کښے څۀ خپلے کړے او (څۀ یے پریخوے) بیا (هرکله چہ وخت راغلے نو) ما دا (خپلے کړے خبرے) هم او غورزوے او څما نفس ما تہ دا خبرے خائسته کړے وے۔

قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ وَانْظُرْ اِلٰٓى اِلٰهِكَ الَّذِيْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿۹۷﴾

(موسیٰ) او وئیل بنه دہ تۀ ځه ستا په دے دُنیا کښے هُم دا سزا دہ چہ تۀ دے (دُنیا) کښے هر لو تہ دا وائے چہ (ما سرہ) او نۀ لګئ (یعنی زۀ موسیٰ ناپاک ګرزولے یم) او (موسیٰ سامری تہ دا هُم او وئیل چہ) تا دَپارہ یو وخت مقرر دے (یعنی دَ سزا) چہ هغه بہ تہ الیسار نکړے شے او نۀ خپل معبود (سخی) تہ اوګورہ چہ تا بہ هغے تہ مخامخ په ناسته عبادت کولو. مونږ بہ دا سوزوو او مونږ بہ دا سمند رکښے غورزوو۔

اِنَّمَآ اِلٰهُكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿۹۸﴾

ستاسو معبود خو بس الله دے چہ دَ هغۀ نہ سوا بل دَ عبادت لائق نشته ـ هغه دَ هر لو څیز علم لری۔

كَذٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَاۗءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿۹۹﴾

دا شان مونږ ستا وړاندے دَ ړومبنو خلقو خبرُونہ بیانوو او مونږ تا له دَ خپلے خوا نه ذکر (یعنی قرآن) درکړے دے۔

مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿۱۰۰﴾

څوک چہ دے نہ مخ واړوی هغه بہ دَ قیامت په

ورځ لو درونه پیټئ او چتوی۔

خٰلِدِیْنَ فِیْهِ ؕ وَ سَآءَ لَهُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ حِمْلًا ﴿۱۰۱﴾

(دا سے خلق به) دے حال کښے ډیره وخته پورے اوسی او دَ قیامت په ورځ به دا پیټئ نو رهُم زورورکوونکے دی۔

یَّوْمَ یُنْفَخُ فِی الصُّوْرِ وَ نَحْشُرُ الْمُجْرِمِیْنَ یَوْمَىٕذٍ زُرْقًا ﴿۱۰۲﴾

کله به چه شپیلئ کښے او پوکلے شی او هغه ورځ به مونږ مجرمان دا سے حال کښے او چتوو چه سترگے به ئے شنے وی۔

یَّتَخَافَتُوْنَ بَیْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا ﴿۱۰۳﴾

هغوی به خپلو کښے په وروروخبرے کوی چه تا سو تو لس لس (رصدئ دُنیا کښے حاکمان) پاتے شوی یئ۔

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا یَقُوْلُوْنَ اِذْ یَقُوْلُ اَمْثَلُهُمْ طَرِیْقَةً اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا یَوْمًا ﴿۱۰۴﴾ ع

مونږ ته ښهٔ معلومه ده هغه چه هغوی به وائی۔ هرکله چه هغوی کښے به دَ ټولو نه زیات دَ هغوی په مذهب تلونکے اووائی چه تا سو خو لس لزه مُوده پاتے یئ۔

وَ یَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ یَنْسِفُهَا رَبِّیْ نَسْفًا ﴿۱۰۵﴾

او هغوی تا نه دَ غرونو په حقله تپوس کوی چه هغه به ځما رب دَ بېخه او غورزوی۔

فَیَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴿۱۰۶﴾

لَّا تَرٰى فِیْهَا عِوَجًا وَّ لَاۤ اَمْتًا ﴿۱۰۷﴾

او هغه به دا سے صفا میدان پریږدی چه نهٔ خو به تهٔ دے کښے څه موړ وینے او نهٔ څه اوچتولے۔

یَوْمَىٕذٍ یَّتَّبِعُوْنَ الدَّاعِیَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَ خَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا ﴿۱۰۸﴾

هغه ورځ به خلق آواز ورکوونکی پسے روان شی چه دَ چا په تعلیم کښے هیڅ قسم کږی به نهٔ وی او دَ رحمان رخُدائے دَ آواز) په مقابله کښے دَ انسانانو آوازونه به ځ پاتے شی بیا به نهٔ دَ لیس لیس نه سوا څه نهٔ اورے۔

یَوْمَىٕذٍ لَّا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَ رَضِیَ لَهٗ قَوْلًا ﴿۱۰۹﴾

هغه ورځ به شفاعت سوا دَ هغهٔ چه دَ چا په حق کښے دَ شفاعت کولو اجازه رحمٰن رخدائے) ورکړی او چه دَ چا په حق کښے خبره کول هغه خوښه کړی چا ته فائده نهٔ ورکوی۔

يَعۡلَمُ مَا بَيۡنَ اَيۡدِيۡهِمۡ وَ مَا خَلۡفَهُمۡ وَ لَا يُحِيۡطُوۡنَ بِهٖ عِلۡمًا ﴿۱۱۰﴾

هغه چه څه هغوی ته پیښنو دُونکی دی هغې نه هُم خبر دے او چه څهٔ دَ هغوی شا نه تیر شوی دی دَ هغې نه هُم خبر دے او هغوی دَ خپل علم په سوب دَ هغه (خدائے) احاطه نشی کولے۔

وَ عَنَتِ الۡوُجُوۡهُ لِلۡحَيِّ الۡقَيُّوۡمِ ؕ وَ قَدۡ خَابَ مَنۡ حَمَلَ ظُلۡمًا ﴿۱۱۱﴾

او (هغه ورځ) به دَ ژوندی او قائم پاتے کیدُونکی او قائم ساتُونکی (خدائے) وړاندے تهول لوئے خلق (په ادب) تیټیګی او چه څوک ظُلم کوی هغه به نامراده پاتے کیګی۔

وَ مَنۡ يَّعۡمَلۡ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَ هُوَ مُؤۡمِنٌ فَلَا يَخٰفُ ظُلۡمًا وَّ لَا هَضۡمًا ﴿۱۱۲﴾

او چا چه دَ وخت ضرورت سره سم کارونه کړی وی او هغه مومن هُم وی هغه خو به نهٔ دَ څه ظلم نه ویریګی او نهٔ دَ څه حق وهلو نه۔

وَ كَذٰلِكَ اَنۡزَلۡنٰهُ قُرۡاٰنًا عَرَبِيًّا وَّ صَرَّفۡنَا فِيۡهِ مِنَ الۡوَعِيۡدِ لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُوۡنَ اَوۡ يُحۡدِثُ لَهُمۡ ذِكۡرًا ﴿۱۱۳﴾

او دا شان مونږ دا (کتاب) په عربیٔ ژبه کښے دَ قرآن په شکل نازل کړے دے او په دے کښے مو هر قسم ویرُونکی خبرے په ډاګه بیان کړی دی۔ دے دَ پاره چه هغوی تقویٰ اوکړی یا دا چه دا (قرآن) هغوی دَ پاره (دَ خدائے دَ یادو سامان (دَ نوی سرنه) پیدا کړی۔

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الۡمَلِكُ الۡحَقُّ ۚ وَ لَا تَعۡجَلۡ بِالۡقُرۡاٰنِ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يُّقۡضٰۤى اِلَيۡكَ وَحۡيُهٗ ۫ وَ قُلۡ رَّبِّ زِدۡنِىۡ عِلۡمًا ﴿۱۱۴﴾

بیا الله چه بادشاه دے، دَ لوئے شان خاوند دے او تل تر تله قائم دے او نهٔ دَ قرآن (دَ وحی) دَ راکوزولو نه مخکښے چه ستا په طرف ئے وحی پوره شی، په هغے (په لوستلو) کښے تلوار مه کوه او (مجملاً دا) وایه چه یَه ښمارب اِښما علم زیات کړه۔

وَ لَقَدۡ عَهِدۡنَاۤ اِلٰۤى اٰدَمَ مِنۡ قَبۡلُ فَنَسِىَ وَ لَمۡ نَجِدۡ لَهٗ عَزۡمًا ﴿۱۱۵﴾

ع ۶ ۱۵

او مونږ دے نه آګاهو آدمؑ ته (دَ لوے خبرے) پخقله په کلکه وئیلی وو وے هغه هیر کړل او مونږ ئے نیه معلوم کړه چه دَ هغهٔ په زړهٔ کښے څمونږ دَ حکم ماتولو پخقله څه پخه اراده نهٔ وه۔

وَ اِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِكَةِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِيۡسَ ؕ

او (دا هُم یاد کړه چه) هرکله چه مونږ ملائکوته او وئیل

أَبَىٰ ﴿١١٦﴾

چه د آدمؑ (د پیدا اوښت په منئه کښې خدائے ته) سجده اوکړئ نو د ابلیس نه سوا ټولو سجده اوکړه هغه انکار اوکړو۔

فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ ﴿١١٧﴾

بیا لو مونږ (آدمؑ ته) اووئیل چه اے آدمه! دے (ابلیس) ستا او ستا د ملګرو دښمن دے، بیا تاسو دواړه (ټولی) چرته دے د جنت نه اونه باسی چه د دے په نتیجه کښې ته اوستا هر لو ملګرے مصیبت کښې پریوزی۔

إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ﴿١١٨﴾

په تحقیق سره دے (جنت) کښې تا د پاره دا (ریکلے شوے ده) چه ته اوږے پاتے نشے او (نهٔ ستا ملګری) او نهٔ ته بربنډ شے۔

وَأَنَّكَ لَا تَظْمَأُ فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴿١١٩﴾

او نهٔ ته تږے پاتے شے او نه په نمر او سوزے۔

فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطَانُ قَالَ يَا آدَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَىٰ ﴿١٢٠﴾

بیا شیطان د هغهٔ په زړهٔ کښې وسوسه واچوله (او) وے وئیل یه آدمه! آیا زهٔ تا ته د یوے داسے ونے خبر درکړم چه سدا بهار ده او د داسے بادشاهئ (ښه درکړم) چه ورله فنا نشته۔

فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ ۚ وَعَصَىٰ آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَىٰ ﴿١٢١﴾

بیا هغوی دواړو (یعنی آدمؑ او د هغه ملګرو) هغے ونے نه څهٔ اوخوړل (یعنی د هغے خوند ئے اوڅکلو) بیا نو د هغوی دواړو کمزورئ هغوی ته ښکاره شوے او هغوی دواړو په خپلو ځانونو د جنت د زینت سامانونه (یعنی نیک عملونه) را چا پیرول شروع کړل او آدمؑ د خپل رب حکم اونهٔ منودو بیا ځکه هغه سمے لارے نه خطا شو۔

ثُمَّ اجْتَبَاهُ رَبُّهُ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدَىٰ ﴿١٢٢﴾

دے نه پس د هغهٔ رب هغه خوښ کړو او په هغهٔ ئے رحم اوکړو او هغهٔ ته ئے صحی لاره اوښودله۔

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا ۖ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا

(او خدائے) اووئیل تاسو دواړه (ټولی) دے نه ټول اوزئ۔ تاسو کښې به بعضے د بعضے دښمنان وی۔

يَضِلُّ وَلَا يَشْقٰى ﴿١٢٣﴾

بيا کچرے تاسو له څما دَ طرف نه هدايت راشي نو څوک
چه به څما هدايت مني هغه به چرے نهٔ بے لارے
کيږي او نهٔ به هلاکيږي۔

وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِىْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا
وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَعْمٰى ﴿١٢٤﴾

او څوک چه به سره څما دَ ياد کيرنے مخ اړوي هغه به دَ
تکليف ژوند مومي او دَ قيامت په ورځ به هغه
مونږ روند اوچتوو۔

قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِىْۤ اَعْمٰى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا ﴿١٢٥﴾

(په دے به) هغه وائي يه څما ربه! تا زهٔ ولے روند
اوچت کړم۔ حال دا چه ما خو بنهٔ ليدے شول۔

قَالَ كَذٰلِكَ اَتَتْكَ اٰيٰتُنَا فَنَسِيْتَهَا ۚ وَكَذٰلِكَ الْيَوْمَ
تُنْسٰى ﴿١٢٦﴾

(په دے به خدائے) اوفرمائي تا له خو هُم څمونږ آيتونه
راغلي وُو چه هغه تا هير کړي وُو بيا نن تهٔ هُم دَ رحمت
دَ وليش په وخت پريښو دلے شے۔

وَكَذٰلِكَ نَجْزِىْ مَنْ اَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ؕ
وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى ﴿١٢٧﴾

او څوک چه دَ خدائے دَ قانون نه بهرزي او دَ خپل رب
په آيتونو ايمان نهٔ راوړي هغهٔ سره هُم دا سے کيږي
(او دا خو لش دَ دنيا سلوک دے) دَ آخرت عذاب خو دَ دے
نه هُم ډير سخت او تر ډيرے مودے دے۔

اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ
يَمْشُوْنَ فِىْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى
النُّهٰى ﴿١٢٨﴾ ع ٦

آيا دے خلقو ته (دَ دے خبرو نه) نصيحت حاصل نشو چه
دَ دے نه آگاهو تير شوي قامُونو کښے ډير مونږ هلاک کړل
دوئ (خلق) دَ هغوي په کورونو کښے گرزي راگرزي۔ دے
کښے دَ عقل دَ خاوند انو دَ پاره غټ نشانات دي۔

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَّاَجَلٌ
مُّسَمًّى ﴿١٢٩﴾

او کچرے يوه خبره ستا دَ رب دَ طرف نه رومبئ تيره نهٔ وے
او موده هُم مقرر نهٔ وے نو عذاب به (دے قامونو دَ پاره)
تل عمري وے (او تر ډيرو وختنه پورے به جاري وے)۔

فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ
رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ
غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ

بيا څهٔ چه دوئ (خلق) وائي ته په دے صبر اوکړه (ولے چه
ستا دَ رب سُنت هُم دا دے چه دَ رحم نه کار واخستے شي)
او دَ نمر دَ ختو او دَ هغے دَ پريوتو نه آگاهو دَ هغهٔ تعريف سره

وَ اَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿١٣٠﴾

دَ هغهٔ ثناء صفت بیانوه او دَ شپې په څنډو وختونو کښې او (دا شان) دَ ورځې په ټولو وختونو کښې دَ هغهٔ ثنا صفت کوه ځکه چه (دَ هغهٔ دَ فضل په حاصلولو) ته خوشحاله شې۔

وَ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖۤ اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ۬ لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ؕ وَ رِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى ﴿١٣١﴾

او مونږ دوئ کښې چه بعضو خلقو له دَ دُنیا دَ ځائست څهٔ سامانونه ورکړی دی ته دَ هغوئ په طرف په خپلو دواړو سترګو په غور کړی نظر مهٔ کوه (د ے چه دا سامانونه هغوی ته دے دَ پاره ورکړے شوی دی) چه مونږ دَ دے په سوب دَ هغوی آزمیښت اوکړو او ستا دَ رب ورکړے رزق دَ ټولو نه ښهٔ او باقی پاتے کیدونکے دے۔

وَ اْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَ اصْطَبِرْ عَلَيْهَا ؕ لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا ؕ نَحْنُ نَرْزُقُكَ ؕ وَ الْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿١٣٢﴾

او ته خپل اهل ته په کلکه دَ نمونځ وایه او ته خپله هُم (دا نمونځ) قائم ساته۔ مونږ تا نه رزق نه غواړو بلکه مونږ تا له رزق درکوو او انجام دَ تقوی ښهٔ وی۔

وَ قَالُوْا لَوْ لَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اَوَ لَمْ تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ مَا فِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿١٣٣﴾

او هغوی وائی چه دے هغه مونږ له دَ خپل رب نه څه نښان نهٔ راوړی آیا هغوی له هغسے نښان نهٔ دے راغلے څنګه چه پرومبنو کتابونو کښې بیان شوے دے۔

وَ لَوْ اَنَّاۤ اَهْلَكْنٰهُمْ بِعَذَابٍ مِّنْ قَبْلِهٖ لَقَالُوْا رَبَّنَا لَوْ لَاۤ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّذِلَّ وَ نَخْزٰى ﴿١٣٤﴾

او که چرے مونږ دوی دے (رسول) نه آګاهو دَ یو عذاب په ذریعه هلاک کړے وے نو هغوی به وئیلے چه یه څمونږه ربه! تا مونږ ته څوک رسول ولے را اونهٔ لیږلو (که چرے تا دا سے کړے وے) نو مونږ به ستا نښانا نو پسے تلے رومبئ دَ دے نه چه مونږ ذلیل او رسوا کیدے۔

قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوْا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ اَصْحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَ مَنِ اهْتَدٰى ﴿١٣٥﴾ ع

ته اووایه هر یو سړے دَ خپل انجام په انتظار کښې دے بیا تاسو هُم دَ خپل انجام انتظار کوئ او تاسو به زر معلوم کړئ چه څوک په سمه لاره تلونکو او هدایت موندونکو کښې دے (او څوک نهٔ دے)۔




سورة انبياء - دا سورة مكى دے او بسم الله سره دَ دے يوسل ديارلس ١١٣ آيتونه او اوۀ ركوع دى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروكوم) په نامه دَ الله چه ډير مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔

اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَ هُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ ②

دَ خلقو نه دَ حساب اخستو وخت را نزدے شوے دے ولے هغوى (بيا هُم) غفلت كښے (پراته) دى او ګرځيدلى مخ اړوى -

مَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ ③

هغوئ له دَ هغوئ دَ رب دَ طرف نه كله هُم څۀ نوے يادګيرنه نۀ ده راغلے ولے هغوئ هغه آورى هُم او ور پورے ټوكه او خندا هُم كوى -

لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا هَلْ هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ اَفَتَاْتُوْنَ السِّحْرَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ④

او دَ هغوى زړونه غفلت كښے دى او هغه خلق چا چه ظُلم اوكړو پټے پټے مشورے كوى (او وائى) چه (ګورئ نا) دا سړے ستا سو غوندے يو بشر دے آيا بيا تاسو دَ دۀ دَ فريب په خبرو كښے راځئ حال دا چه تاسو بنۀ پوهيګئ -

قٰلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ⑤

(دَ دے خبرو په اوريدو محمّد رسول صلى الله عليه وسلم) او وئيل څما رب پوهيګى په هغو خبرو چه آسمان كښے (وئيلے كيګى) او (هغه هُم) چه زمكه كښے (وئيلے كيګى) دى او هغه ډير اوريدونكے (او) ډير خبردار دے۔

بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ فَلْيَاْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ ⑥

بلكه هغوى (يعنى مخالفينو) خو تر دے پورے وئيلى دى چه دا (كلام) پريشانه خوبونه دى بلكه (پريشانه خوبونه هُم نا) هغۀ په غريبو سترګو دَ ځانه جوړے كړى دى بلكه هغه يو شاعرانه مزاج لرونكے سړے

دے رد چا په مزغو کښے چه قسم قسم خیالات اوچتیګی)
بیا پکار دی چه مونږ له څه نشان راوړی لکه چه څنګه
رومبنی رسولان نشانانو سره را لیږلی شوی وُو۔

مَآ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝۷

دوئ نه رومبنو کلو کښے هُم کوم چه مونږ تباه کړی وُو چا ایمان نهٔ وو راوړے آیا نو بیا دوئ به ایمان راوړی۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝۸

او مونږ تا نه آګاهُو (تول عمر) هُم سړی د رسولانو په حیث لیږل او مونږ به هغوئ ته وحی کوله او (یه منکرو!) کچرے تاسو ته (دا خبره) معلومه نهٔ وی نو د اهلِ کتاب نه تپوس اوکړئ۔

وَمَا جَعَلْنٰهُمْ جَسَدًا لَّا يَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوْا خٰلِدِيْنَ ۝۹

او مونږ هغو رسولانو ته داسے بدن نهٔ وه ورکړے چه هغوئ به ډوډئ نهٔ خوړله او نهٔ هغوی غیرمعمولی عمر موندونکی خلق وُو۔

ثُمَّ صَدَقْنٰهُمُ الْوَعْدَ فَاَنْجَيْنٰهُمْ وَمَنْ نَّشَآءُ وَاَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِيْنَ ۝۱۰

اوچه کومه وعده مونږ هغوی سره کړے وه هغه مونږ پوره کړه او هغوئ او د هغوئ نه سوا چه چاله مو اوغوښتل (د ښمنانو نه مو اوساتل) اوچه څوک حد نه وتونکی وُو هغه مو هلاک کړل۔

لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝۱۱ ع

مونږ ستاسو په طرف یو داسے کتاب راکوز کړے دے چه هغے کښے عزت سره ستاسو ذکر دے آیا تاسو د عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَّاَنْشَاْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ۝۱۲

او څومره کلی دی چه ظُلم ئے کولو نو مونږ هغوی تباه کړل او د هغوی په ځائے مو یو بل قام پیدا کړو۔

فَلَمَّآ اَحَسُّوْا بَاْسَنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ ۝۱۳

بیا هر کله چه (هلاک کیدونکی خلقو) څمونږ عذاب محسوس کړو نو (د دے نه د ځان ساتلو د پاره) په منډه شول۔

لَا تَرْكُضُوْا وَارْجِعُوْٓا اِلٰى مَآ اُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ ۝۱۴

(بیا مونږ اووئیل) مهٔ زغلئ او د هغو څیزونو په طرف چه ورسره تاسو د آرام ژوند تیرولو او د خپلو کورونو

په طرف واپس شئ دَ دے دَ پاره چه تاسو نه دَ خپلو عملُونو پهٔ حقله پوښتنه اوشی۔

قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۱۵﴾

دَ دے جواب هغوی داورکړو چه افسوس! مونږ خو (ټول عمر) ظُلم کولو۔

فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ حَتّٰى جَعَلْنٰهُمْ حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ ﴿۱۶﴾

او هغوی هُم داخبره بیا بیا کوله تر دے چه مونږ هغوی دَ ریبلی پټی (فصل) په شان کړل چه دَ هغے ټول ځائُست ختم شوے وُه۔

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿۱۷﴾

او مونږ آسمانُونه او زمکه او څه چه دَ دے دواړو ترمنځه دی هسے دَ لوبے په طورنهٔ دی پیدا کړی (بلکه دَ هغے په پیدا اوښت کښے حِکمت وه)۔

لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ اِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۱۸﴾

که مونږ هسے ځان ته مشغوله جوړولے نو ځان سره نزدے به موجوده کړے وے۔

بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ ۚ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ﴿۱۹﴾

ولے مونږ خو حق په ناحقه (باطل) راغورځو او هغه دَ هغے سرماتوی او هغه (باطل) سمدستی اوتختی او تاسو خبرو له کبله په تاسو افسوس دے۔

وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَمَنْ عِنْدَهٗ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ﴿۲۰﴾

او چه کوم څیزونه په آسمانُونو کښے دی او زمکه کښے دی ټول دَ هغهٔ دی او چه څهٔ هغهٔ سره دی هغوئ دَ هغهٔ عبادت نه مخ نهٔ اړوی او نهٔ (دَ هغے له کبله) ستړی کیګی۔

يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ﴿۲۱﴾

هغوئ دَ شپے دَ ورځے ثنا وائی او دَ دے نه نهٔ آوړی۔

اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ يُنْشِرُوْنَ ﴿۲۲﴾

آیا هغو خلقو په زمکه کښے خُدایان جوړ کړی دی؟ او هغوئ (مخلوقات) پیدا کوی۔

لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۲۳﴾

که چرے دے دواړو (یعنی زمکه او آسمان) کښے الله نه سوا نور هُم خُدایان وے نو دا دواړه به تباه وے بیا الله چه دَ عرش هُم رب دے دَ هر عیب نه پاک دے

اودَ هغو (خبرو) نه هُم چه هغوی ته وائی۔

لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ ﴿۲۳﴾

ځه چه هغه کوی دَ هغې پـوښتنه هغه چا ته جواب ورکوونکے نهٔ وی په حقیقت کښې هغه (خلق) جواب ورکوونکی وی۔

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ۚ هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِیَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِیْ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۙ الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۲۴﴾

آیا هغوی دَ هغهٔ نه سوا خدایان جوړ کړی دی؟ ته اووایه خپل دلیل راوړئ۔ دا (قرآن) خو هغوی دَ پاره هُم چه ماسره دی دَ عزت موجب دے اوچه مانه آګاهو تیرشوی دی هغوی دَ پاره هُم دَ عزت موجب دے وے هغوی کښې ډیرځنے خلق حق نهٔ پیژنی، دے دَ پاره دے نه ډډه کوی۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِیْٓ اِلَیْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴿۲۵﴾

او مونږ تا نه آګاهو چه څومره رسُولان استولی دی هغوی کښې هر یو ته مونږ دا وحی کوله چه حقیقت دا دے چه زهٔ یو خدائے یم بیا تو (بس) زما عبادت کوئ۔

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۲۶﴾

او (دا خلق) وائی چه رحمان (خدائے) ځوئے جوړ کړے دے (دَ هغوی خبره صحی نهٔ ده) هغه خو دَ هرے کمزورئ نه پاک دے۔ حقیقت دا دے چه رجا ته روئ ځوئ وائی) هغه دَ خدائے ځه بندیان دی چا ته چه دَ خدائے دَ طرف نه عزت حاصل دے۔

لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾

هغوئ دَ خدائے په خبره یو ټکئ هُم نهٔ ورزیاتوی او هغوئ دَ هغهٔ په حکمونو عمل کوی۔

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُوْنَ ۙ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰی وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿۲۸﴾

هغهٔ (خدائے) هغه نه هُم خبر دے چه هغوی ته پیښیدُونکے ده اوچه ځهٔ هغوی روستو پریخے دی او هغوی سوا دَ دے نه چا دَ پاره چه خدائے دا خبره خوښه کړی وی دَ هیچا دَ پاره شفاعت نهٔ کوی او هغوئ دَ هغهٔ دَ ویرے نه په رپا وی۔

| | |
|---|---|
| وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾ | او څوک هُم چه په هغوی کښے دا او وائی چه زهٔ دَ هغه اَ ئے نه سوا دَ عبادت لائق یم مونږ به هغه جهنّم کښے غورزوُ او مونږ ظالمانوله هُم داسے بدله ورکوو- |
| اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا ؕ وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ؕ اَفَلَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۰﴾ | آیا کافرانو دا او نهٔ لیدل چه آسمان او زمکه دواړه بند وُو بیا مونږ هغوئ دواړه پرانستل او مونږ اوبو سره هر یو ژوندے څیز ژوندے کړے دے آیا بیا هغوی ایمان نهٔ راوړی ؟ |
| وَجَعَلْنَا فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بِهِمْ ۪ وَجَعَلْنَا فِيْهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿۳۱﴾ | او مونږ په زمکه غرونه جوړ کړل دے دَ پاره چه هسے نه چه هغه (یعنی زمکه) دوئ (یعنی دَ زمکے په سر مخلوق) په سخته زلزله آخته شی او مونږ په زمکه خورے ورے لارے هُم جوړے کړے ځکه چه دا خلق په هغو (مختلفو ځایونو ته) اورسی- |
| وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوْظًا ۚۖ وَّهُمْ عَنْ اٰيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿۳۲﴾ | او مونږ آسمان یو مضبوط چت (یعنی دَ حفاظت سوب) جوړ کړے دے او بیا هُم هغوی دَ هغے دَ نښانانو (یعنی دَ آسمان نه ښکاره کیدُونکو نښانانو) نه (چه دَ هغوی دَ فائدے دَ پاره دی) ډډه کوی- |
| وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ كُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ﴿۳۳﴾ | او هُم هغه ذات دے چا چه شپه او ورځ او نمر او سپوږمئ پیدا کړی دی دا ټول (آسمانی سیارے) خپل خپل محور کښے په آزاده روان دی - |
| وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ ؕ اَفَا۟ئِنْ مِّتَّ فَهُمُ الْخٰلِدُوْنَ ﴿۳۴﴾ | او مونږ هیڅ یو انسان له ستا نه آگاهو غیر طبعی عمر نهٔ دے ورکړے ، آیا کهٔ چرے ته مړ شے نو هغوی به تل تر تله ژوندی وی- |
| كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ وَنَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ؕ وَاِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ﴿۳۵﴾ | هر ساه اخستونکے به دَ مرګ خوند اخلی او مونږ به په بدو او ښو حالاتو ستاسو آزمینښت کوُو او آخر به تاسو ټول مونږ په طرف راوستلے شئ- |

ع ۲

وَإِذَا رَاٰكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ إِلَّا هُزُوًا ۭ أَهٰذَا الَّذِيْ يَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ ۚ وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝۳۶

او هر کله چه کافران تا وینی نو تا یو سپک تحیز گنړی (او وائی) آیا دا سړے دے چه ستاسو دَ خدایانو کمزورئ په کوته کوی۔ حال دا چه هغوئ خپله دَ رحمٰن (خدائے) دَ ذکر نه انکار کوی۔

خُلِقَ الْإِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ ۭ سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِيْ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ ۝۳۷

دَ انسان په ختهٔ کښے تادی ایخودے شوے ده۔ بیا (یاد ساتئ) زهٔ به تاسو ته خپل نښان ښایم بیا تاسو تادی مهٔ کوئ۔

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝۳۸

او (دَدے په اوریدو) هغوی وائی کچرے تاسو خلق (یعنی مسلمانان) رښتنی یئ نو دا وعده به کله پوره کیګی۔

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝۳۹

کچرے کافرانو ته دَ دغه وخت علم وے هر کله چه به هغوی نهٔ دَ خپلو مخونو نه او نهٔ دَ خپلو شاګانو نه اور اخوا کولے شی او نهٔ به دَ هیڅ یو طرف نه دَ هغوی مدد کیدے شی (نو هغوی به دومره تادی نهٔ کولے)

بَلْ تَأْتِيْهِمْ بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ۝۴۰

(بلکه هغه عذاب به) هغوی له ناساپه راشی او هغوی به حیران کړی بیا هغوی به دَ هغے دَ رد کولو طاقت نهٔ لری او نهٔ به هغوی ته څهٔ مولت ورکیدے شی۔

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝۴۱ ع ۳

او تا نه اګاهو چه کوم رسولان تیر شوی دی هغوی پورے هم خندا شوے وه وے نتیجه ئے دا او خته چه چا هغو رسولانو پورے خندا کړے وه هغوی هم هغه خبرو راګیر کړل کوم و سره به چه هغوئ نبیانو پورے خندل۔

قُلْ مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ ۭ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝۴۲

تهٔ او وایه چه دَ شپے یا دَ ورځے دَ رحمان خدائے دَ نیولو نه تاسو څوک ساتلے شی وے (حقیقت دا دے

چه) هغوئ دَخپل رب دَ ذکر نه تکیا دی مخ اړوی۔

أَمْ لَهُمْ آلِهَةٌ تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا ۚ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ أَنفُسِهِمْ وَلَا هُم مِّنَّا يُصْحَبُونَ ﴿٤٣﴾

آیا دَ هغوی په مرسته کښے څښے (ربښتونی) معبودان شته چه هغوئ ځمونږ دَ عذاب نه اوساتی؟ هغوی (معبودان) خو دَ خپلو ځانونو هُم حفاظت نشی کولے او نهٔ ځمونږ په مقابله کښے څوک دَ هغوی ملګرتیا کولے شی۔

بَلْ مَتَّعْنَا هَٰؤُلَاءِ وَآبَاءَهُمْ حَتَّىٰ طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۗ أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ أَفَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴿٤٤﴾

حقیقت دا دے چه مونږ هغوی له هُم او دَ هغوی پلارنیکونو له هُم ډیر مال او سامانونه ورکړی وو تردے چه په هغوی یوه اوږده زمانه تیره شوه بیا دوئ نهٔ وینی چه مونږ دَ هغوی دَ ملک په طرف وړاندے کیګو او دَ غاړو نه ئے تکیا یو وړوکے کوُو نو آیا دَ دے دا نتیجه اوزی چه) هغوی به غالب راژی؟

قُلْ إِنَّمَا أُنذِرُكُم بِالْوَحْيِ ۚ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَاءَ إِذَا مَا يُنذَرُونَ ﴿٤٥﴾

تهٔ هغوی ته اووایه چه زهٔ خو تاسو دَ وحی په سوب تکیا یم خبروم او رښهٔ پوهیګم چه) هرکله چه (روحانی) کا نړهٔ هوښیار کړے شی نو هغوی آواز نشی اوریدے۔

وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٤٦﴾

او کچرے هغوی ته ستا دَ ربّ دَ عذاب دَ لږ هوا لی یوه لمبه اورسی نو هغوی به ضرور وائی چه افسوس دے په مونږ ه! مونږ خو ظلم کولو۔

وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ ﴿٤٧﴾

او مونږ به دَ قیامت په ورځ دَ وزن کولو دا سے سامانونه پیدا کوُو چه دَ هغے له کبله به په هیڅچا لږ غوندے هُم ظلم نهٔ کیږی (او کچرے دَ غوښتو دَ دانے هومره دَ ریا عمل) وی نو مونږ به رهغه راوړو او مونږ به حساب اخستو کښے کافی یُو۔

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَارُونَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾

او مونږ ه موسیٰؑ او هارونؑ له امتیازی نښان ورکړے وُه او رڼرا مو ورکړے وه او دَ متقیانو دَ پاره دَ یادګیرنے تعلیم مو ورکړے وُه۔

الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ ﴿۴۹﴾

هغه (متقیان) چه د خپل رب نه په پټه (هُم) ویریږی او د حساب کتاب د مقرر شوی وخت نه هُم ویریږی.

وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ اَنْزَلْنٰهُ ۚ اَفَاَنْتُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۰﴾ ع ۴

او دا (قرآن) د یادګیرنے یو داسے کتاب دے چه پکښے د ټولو آسمانی کتابونو خوبئ راغلی دی دا مونږه نازل کړے دے بیا آیا تاسو د داسے کتاب نه مُنکر یئ.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ﴿۵۱﴾

او دے نه آګاهو مونږ ابراهیمؑ له د هغهٔ صلاحیت او قابلیت ورکړے وه او مونږ د هغهٔ (د دننه) نه ښهٔ واقف وُو.

اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ﴿۵۲﴾

هرکله چه هغهٔ خپل پلار او خپل قام ته اووئیل دا څهٔ بتان دی چه د هغے وړاندے تاسو ناست یئ.

قَالُوْا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ ﴿۵۳﴾

هغه اووئیل مونږ خپل پلار نیکو نه لیدلی دی چه هغوئ د دے عبادت کولو.

قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۵۴﴾

هغهٔ اووئیل بیا خو تاسو هُم او ستاسو پلار نیکو نه هُم یو ښکاره ګمراهی کښے آخته وئ.

قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ مِنَ اللّٰعِبِيْنَ ﴿۵۵﴾

هغوی اووئیل آیا تا مونږ له یو حقیقت راوړے دے یا ته مونږ سره ټکیاځے ټوکے کوئے.

قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۶﴾

(ابراهیمؑ) اووئیل حقیقت دا دے چه ستاسو رب د آسمانونو هُم رب دے او د زمکے هُم رب دے (هُم هغه ذات دے) چا چه دا پیدا کړی دی او زهٔ په دے خبره ستاسو وړاندے ګواه یم.

وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ اَصْنَامَكُمْ بَعْدَ اَنْ تُوَلُّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۵۷﴾

او هغهٔ اووئیل قسم په خدائے! هرکله چه تاسو واپس لاړ شئ نو زهٔ به ستاسو د بُتانو خلاف یو پوخ تدبیر کوم.

فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا اِلَّا كَبِيْرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ اِلَيْهِ يَرْجِعُوْنَ ﴿۵۸﴾

بیا هغهٔ هغه (یعنی بُتان) ټوټے ټوټے کړل سوا هغو کښے د یو لوئے بُت نه. دے د پاره چه هغوئ (د یو ځل بیا) هغهٔ له راشی.

| | |
|---|---|
| قَالُوْا مَنْ فَعَلَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَآ اِنَّهٗ لَمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ | په دے هغوی اووئیل چه څوک زمونږ د معبودانو سره دا کار چا کړے دے په تحقیق سره دا سے کارکوونکے ظالمانو نه دے۔ |
| قَالُوْا سَمِعْنَا فَتًى يَّذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهٗٓ اِبْرٰهِيْمُ ۝ | (بیا ځنے نورو خلقو) اووئیل مونږ د یو ځوان نه چه نوم ئے ابراهیمؑ دے د دوئ د کمزورئ بیانول اوریدلی دی۔ |
| قَالُوْا فَاْتُوْا بِهٖ عَلٰٓى اَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُوْنَ ۝ | (بیا د قام سردارانو) اووئیل (که دا خبره ده نو) دا سړئ د ټولو خلقو وړاندے راولئ کیدے شی هغوئ (د هغهٔ په خقله) څهٔ فیصله اوکړی۔ |
| قَالُوْٓا ءَاَنْتَ فَعَلْتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا يٰٓاِبْرٰهِيْمُ ۝ | (بیا) هغوی اووئیل اے ابراهیمؑ! آیا تا زمونږ معبودانو سره دا کار کړے دے؟ |
| قَالَ بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا فَسْـَٔلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا يَنْطِقُوْنَ ۝ | (ابراهیمؑ) اووئیل چه (آخر) چاکوونکی خو دا کار څامخا کړے دے دا د ټولو نه لوے بُت ستا مخامخ ولاړ دے کچرے هغه خبرے کولے شی نو هغوئ نه (یعنی دے بُت نه هُم او نورو بتانو نه هُم) تپوس اوکړئ۔ |
| فَرَجَعُوْٓا اِلٰٓى اَنْفُسِهِمْ فَقَالُوْٓا اِنَّكُمْ اَنْتُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ | په دے هغوی د خپلو سردارانو په طرف په کتو شول او هغوی اووئیل (ښتنی خبره خو دا ده چه ظالمان تاسو یئ۔ |
| ثُمَّ نُكِسُوْا عَلٰى رُءُوْسِهِمْ ۚ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هٰٓؤُلَآءِ يَنْطِقُوْنَ ۝ | او هغه خلق خپلو سرونو له مخه راوغورزولے شول (یعنی لاجوابه کړے شول) او هغوی اووئیل چه تا ته معلومه ده چه دوئ خو خبرے نهٔ کوی۔ |
| قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْـًٔا وَّلَا يَضُرُّكُمْ ۝ | (ابراهیمؑ) اووئیل نو آیا تاسو د الله نه سوا د داسے څیز عبادت کوی چه نهٔ تاسو ته فائده درکوی او نهٔ نقصان رسوی۔ |
| اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ | (مونږ) په تاسو افسوس (کوو) او په هغهٔ هُم چه د چا تاسو د الله نه سوا عبادت کوئ آیا تاسو د عقل نه کار نهٔ اخلئ؟ |

قَالُوا حَرِّقُوهُ وَانْصُرُوا آلِهَتَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ فَاعِلِينَ ۞ ۶۸

(په دے هغوی په قهر) اووئیل د اسرے اوسوزوئ او د خپلو معبودانو مدد او کړئ کچرے تاسو د څهٔ کولو اراده کړے ده۔

قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ۞ ۶۹

بیا مونږ او وئیل یه اوره! ته په ابراهیم یخ هُم شه او د هغهٔ د پاره د سلامتیٔ سوب هُم جوړ شه۔

وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ ۞ ۷۰

او هغوئ هغهٔ سره څه بد سلوک کول او غوښتل وے مونږ هغوی نا کام کړل۔

وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ ۞ ۷۱

او مونږ هغه له هُم او لوطؑ له هُم د هغے زمکے په طرف نجات ورکړو کومه کښے چه مونږ د ټولو جهانونو د پاره برکتونه ایښودی وُه۔

وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَالِحِينَ ۞ ۷۲

او مونږ هغهٔ ته اسحاقؑ او یعقوبؑ هُم ورکړو په طور د نمسی او مونږ ټول نیکان کړل۔

وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ ۖ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ ۞ ۷۳

او مونږ هغوی له (د خلقو) امامان جوړ کړل هغوی به څمونږ په حُکم هغوی ته هدایت ورکولو او مونږ د هغوی په طرف د نیک کارکولو او د مونځ قائمولو او د زکوٰة ورکولو وحی اوکړه او هغوی ټول څمونږ عبادت کوونکی بندیان وُو۔

وَلُوطًا آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ تَعْمَلُ الْخَبَائِثَ ۗ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَاسِقِينَ ۞ ۷۴

او (مونږ هغهٔ له) لوطؑ (هُم ورکړو) چا ته چه مونږ حُکم (یعنی د فیصلے کولو وس) ورکړو او علم هُم او هغه مو د هغے کلی (د خلقو) نه خلاص کړو چه ډیر زیات ناخوښه کارونهٔ ئے کول۔ هغوی (یعنی د لوطؑ د ښار اوسیدُونکی) یو ډیر بد قام یعنی نافرمان وو۔

وَأَدْخَلْنَاهُ فِي رَحْمَتِنَا ۖ إِنَّهُ مِنَ الصَّالِحِينَ ۞ ۷۵ ع ۵

او مونږه هغه (یعنی لوطؑ) خپل رحمت کښے داخل کړو هغه څمونږ د نیکو بندیانو نه وُه۔

وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِنْ قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ

او (یاد کړه) نوحؑ هرکله چه هغهٔ د هغے (یعنی د ابراهیم

وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ۝٧٦

دَ (وا قعې) نه آگاهُو (مونږ ته) فریاد اوکړو او مونږ دَ هغهٔ دُعا واوریده. بیا مونږ هغه هُم او دَ هغهٔ دَ کور خلق هُم دَ لوی دیرے لوئے ویرے نه خلاص کړل۔

وَنَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝٧٧

او مونږ دَ هغه قام په مقابله کښے دَ هغهٔ مدد اوکړو چه ځمونږ دَ نښانانو نه انکار کړے وُو هغه دیر بد قام وُو بیا لُو مونږ هغوی ټول غرق کړل.

وَدَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ اِذْ يَحْكُمٰنِ فِى الْحَرْثِ اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ ۝٧٨

او (یاد کړئ) داؤد هُم او سلیمانؑ هُم۔ هر کله چه هغوی دواړو دَ لو پټی دَ جهګړے فیصله کوله هغه وخت کله چه دَ لو قام عامی خلقو هغه خوړلے وُو (یعنی تباه کړے وو) او مونږ دَ هغوی دَ فیصلے ګواه وُو۔

فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَكُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا ؗ وَّسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ؕ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ۝٧٩

او مونږ په اصل معامله سلیمانؑ پوهه کړو او ټولو ته مونږ حُکم او علم ورکړے وُو او مونږ داؤدؑ سره دَ غرهٔ خلق هُم او مارغان هُم په کار لګولی وُو۔ هغوی ټولو دَ خدائے ثناصفت کولو او مونږ دَ دے هر څه په کولو قادر وُو۔

وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ۝٨٠

او مونږ هغهٔ ته دَ لو لباس جوړول ښودلی وُو چه هغه تاسو په جنګ کښے بچ کړی بیا آیا تاسو به شکر کوئ ؟

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً تَجْرِىْ بِاَمْرِهٖۤ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِىْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَكُنَّا بِكُلِّ شَىْءٍ عٰلِمِيْنَ ۝٨١

او مونږ سلیمانؑ دَ پاره تیزه هوا هُم په خدمت کښے لګولے وه چه دَ هغهٔ په حُکم به چلیده دَ هغے زمکے په طرف چه په کښے مونږ برکت اچولے وه او مونږ دَ هر څهٔ علم لرو۔

وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ۝٨٢

او څنے باغیان خلق داسے وُو چه دَ هغهٔ دَ پاره به ئے سمندرونو کښے غوطے وهلے او دَ دے نه سوا به ئے هُم نور کارونه کول او مونږ هغوی دَ پاره دَ نګرانئ کار کولو۔

وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿٨٣﴾

او (ته) ایوبؑ (هُم یادکړه) هرکله چه هغهٔ خپل رب ته په فریاد اووئیل چه ځما حال دا دے چه زهٔ تکلیف کښے یم او یه خدایه! تهٔ دَ ټولو رحم کوُونکو نه زیات رحم کوُونکے ئے۔

فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَكَشَفْنَا مَا بِهِ مِن ضُرٍّ وَآتَيْنَاهُ أَهْلَهُ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا وَذِكْرَىٰ لِلْعَابِدِينَ ﴿٨٤﴾

بیا مونږ دَ هغهٔ دعا واوریده او چه کوم تکلیف هغهٔ ته رسیدلے وُه هغه مولرے کړو او هغهٔ ته موَ هغهٔ خپل خانه هُم ورکړه او دَ هغونه سوا مو په خپل (فضل اورحم) دَ ځانه نور هُم ورکړل او مونږ دا واقعهٔ دَ عبادت کوُونکو دَ پاره دَ نصیحت موجب جوړه کړے ده۔

وَإِسْمَاعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا الْكِفْلِ كُلٌّ مِّنَ الصَّابِرِينَ ﴿٨٥﴾

او اسماعیلؑ هُم (یادکړه) او ادریسؑ هُم او ذوالکفلؑ هُم۔ دا ټول صبر کوُونکی وُو۔

وَأَدْخَلْنَاهُمْ فِي رَحْمَتِنَا إِنَّهُم مِّنَ الصَّالِحِينَ ﴿٨٦﴾

او مونږ هغوی ټول په خپل رحمت کښے داخل کړی وُو او هغوی ټول نیکان وُو۔

وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَىٰ فِي الظُّلُمَاتِ أَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿٨٧﴾

او ذوالنونؑ (یعنی یونسؑ هُم یادکړه) هرکله چه هغه په قهر کښے لاړو او دَ زړهٔ نه ئے پوره باور وُه چه مونږ به هغهٔ نهٔ آزاروو۔ بیا په مصیبتونو کښے هغه مونږ ته فریاد اوکړو (او دے وئیل) چه ستا نه سوا هیڅوک دَ عبادت لائق نشته۔ تهٔ پاک ئے، په تحقیق سره زهٔ دَ ظُلم کوُونکو نه وم۔

فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْغَمِّ وَكَذَٰلِكَ نُنجِي الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾

بیا مونږ دَ هغهٔ دعا اوریده او هغه مو دَ غم نه خلاص کړو او مونږ دا شان مومنانو ته نجات ورکوُو۔

وَزَكَرِيَّا إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ رَبِّ لَا تَذَرْنِي فَرْدًا وَأَنتَ خَيْرُ الْوَارِثِينَ ﴿٨٩﴾

او ذکریاؑ هُم (یادکړه) هرکله چه هغهٔ خپل رب ته فریاد کړے وه او وئیلي وُو چه یهٔ ربه! مایوازے مهٔ پریږده او تهٔ وارثانو کښے دَ ټولو نه ښهٔ وارث ئیے۔

فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَوَهَبْنَا لَهُ يَحْيَىٰ وَأَصْلَحْنَا لَهُ

او مونږ دَ هغهٔ دعا اوریده او هغهٔ له مو یحییٰؑ ورکړو

زَوْجَهٗ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَ
يَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا ۭ وَكَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ ﴿٩٠﴾

دَ هغهٔ بی بی (ښځې) نه موږ دَ هغهٔ له مخه صحت ورکړه
هغوی ټولو به دَ نیکئ په کار کښې تادی کوله او موږ ته
به ئې په مینه او ویره فریاد کولو او څموږ دَ رضا دَ
پاره به ئې په عاجزئ زړونه تیرولو۔

وَالَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا
وَجَعَلْنٰهَا وَابْنَهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩١﴾

او هغه ښځه (یاد کړه) چا چه دَ خپل ناموس حفاظت
اوکړو بیا موږ په هغې خپل کلام نازل کړو او هغه او
دَ هغې ځوئے موږ دنیا دَ پاره یو نښان جوړ کړو۔

اِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً ڮ وَّاَنَا رَبُّكُمْ
فَاعْبُدُوْنِ ﴿٩٢﴾

دا ستاسو اُمت هُم یو اُمت دے او زهٔ ستاسو رب یم
بیا تاسو هُم ځما عبادت کوئ۔

وَتَقَطَّعُوْٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ ۭ كُلٌّ اِلَيْنَا
رٰجِعُوْنَ ﴿٩٣﴾ ع

او هغوی (یعنې دَ نبیانو مخالیفینو دَ خپلے منځ کښې)
خپل دین ټوٹے ټوٹے کړے دے (حال دا چه) هغوئ
ټول څموږ په طرف را تلونکی دی۔

فَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا
كُفْرَانَ لِسَعْيِهٖ ۚ وَاِنَّا لَهٗ كٰتِبُوْنَ ﴿٩٤﴾

بیا هر څوک چه مناسب دَ حال عمل اوکړی او ورسره
مومن هُم وی نو دَ هغهٔ کوشش به نهٔ ردکیږی او
موږ دَ هغهٔ نیک عملونه لیکلی ساتو۔

وَحَرٰمٌ عَلٰي قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَآ اَنَّهُمْ لَا
يَرْجِعُوْنَ ﴿٩٥﴾

او هر یو کلے چه موږ تباه کړے دے هغو دَ پاره دا (فیصله)
شوے ده چه دَ هغې اوسیدونکی به واپس دے دنیا
ته نهٔ راځی۔

حَتّٰٓي اِذَا فُتِحَتْ يَاْجُوْجُ وَمَاْجُوْجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ
حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ ﴿٩٦﴾

تردے چه هرکله یاجوج ماجوج دَ پاره ورپرانستے
شی او هغوی په هر یو غر او دَ هر سمندر په چپه په
ټوپ وهلو دنیا کښې خوارهٔ شی۔

وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَاِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ اَبْصَارُ
الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ يٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا
بَلْ كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٩٧﴾

او (دَ خدائے) رښتنی وعده تردے را شی نو هغه وخت
به دَ کافرانو سترګے وازے په وازے پاتے شی او هغوی
به وائی افسوس په موږ! موږ خو دَ دے ورځے
پحقله ډیر غفلت کښې وُو بلکه موږ خو ظالمان وُو۔

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ۖ أَنْتُمْ لَهَا وَارِدُونَ ۹۸

(هغه وخت به او وئيلے شي) تاسو هُم او د کومو څيزونو چه تاسو د الله نه سوا عبادت کوئ سره ټهول به د جهنم خشاک جوړ يګئ تاسو ټهول به دے کښے داخليږئ.

لَوْ كَانَ هَٰؤُلَاءِ آلِهَةً مَا وَرَدُوهَا ۖ وَكُلٌّ فِيهَا خَالِدُونَ ۹۹

که چرے دا (مصنوعي خدايان کوم چه تاسو خدايان ګڼړي) په حقه خدايان وے نو دا خلق به ولے جهنم کښے غورزيدے او دا ټهول خو به په هر وخت هغے کښے پراته وي.

لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ۱۰۰

هغوی به دے کښے چغے وهي او هغوی به دے کښے (پوهيږونکو کښے د چا) خبره نهٔ آوري.

إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ۱۰۱

په تحقيق سره هغه خلق چه د چا په حقله چه څمونږ طرف نه د نيک سلوک وعده شوے ده هغوی به دے دوزخ نه لرے ساتلے شي.

لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ۖ وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنْفُسُهُمْ خَالِدُونَ ۱۰۲

هغوی به د دے آواز قدرے نهٔ اوري او هغوی به دے (حال) کښے کوم چه د هغوی زړونه غواړي تل اوسي.

لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ هَٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ ۱۰۳

د ډيرے پريشانئ وخت به هُم هغوی نهٔ غمژن کوي او فرښتے به هغوی ته رازي او وائي به دا هغه ستاسو ورځ ده د کومے چه تاسو سره وعده شوے وه.

يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ۚ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ ۚ وَعْدًا عَلَيْنَا ۚ إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ ۱۰۴

کومه ورځ به چه مونږ آسمان د اشان راغونډ کړو لکه چه ليک کهاتو کښے بند شي څنګه چه مونږ ستاسو پيدا ونبت په ړومبي ځل شروع کړے وه دغه شان به بيا دا سر دوباره کوو دا مونږ په ځيل ځان لازم کړي دی او مونږ هُم د دا سے کولو اراده لرو.

وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ۱۰۵

او مونږ به زبور کښے د څو نصيحتونو د کولو نه پس دا ليکلی دی چه د ارض (مقدس) وارثان به څما نيک بنديان دی.

اِنَّ فِیْ هٰذَا لَبَلٰغًا لِّقَوْمٍ عٰبِدِیْنَ ﴿١٠٧﴾

دے (مضمون) کښے لو پیغام دے هغه قام دَ پاره چه عبادت کوونکے دے۔

وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِیْنَ ﴿١٠٨﴾

او مونږ ته دَ دنیا دَ پاره بس دَ رحمت په حیث استولے ئے۔

قُلْ اِنَّمَا یُوْحٰۤی اِلَیَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿١٠٩﴾

ته اووایه چه په ماخو بس دا وحی کیږی چه ستاسو خدائے یو دے بیا آیا تاسو به دا خبره منئ (که نا؟)

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ عَلٰی سَوَآءٍ ؕ وَاِنْ اَدْرِیْۤ اَقَرِیْبٌ اَمْ بَعِیْدٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ ﴿١١٠﴾

بیا که چرے هغوی شاکری نو ته هغوی ته اووایه چه ما تاسو (کښے مومن او کافر) له یو برابر خبر ورکړے دے او زه نه پوهیږم چه هغه خبره چه دَ کومے تاسو سره وعده شوے ده نزدے ده یا لرے۔

اِنَّهٗ یَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ وَیَعْلَمُ مَا تَكْتُمُوْنَ ﴿١١١﴾

خدائے دَ ښکاره خبرے هم علم لری او څه چه تاسو پټوئ په هغے پوهیږی۔

وَاِنْ اَدْرِیْ لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَاعٌ اِلٰی حِیْنٍ ﴿١١٢﴾

او نه پوهیږم چه هغه (خبره) چه پورته بیان شوے ده کیدے شی چه تاسو دَ پاره یو آزمیښت دی او (دے نه) یو مودے پورے تاسو ته فائده رسول په نظر کښے دی (یا تل ترتله)۔

قٰلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ وَرَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰی مَا تَصِفُوْنَ ﴿١١٣﴾

دَ (دے وحی په راتلو محمد رسول الله صلی علیه وسلم) اوفرمائیل یَه ربه ته په حقو فیصله اوکړے۔ څمونږ رب خو رحمٰن دے او (یَه کافرانو) کومے خبرے چه تاسو کوئ دَ هغو خلاف هم دَ هغهٔ نه مدد غوښتے شی۔ ع ٧




سورة الحج - دا سورة مدني دے او لبسم الله سره دَدے يو کم اتيا آيتونه او لس رکوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه او بيا بيا رحم کوونکے دے۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيْمٌ ②

يه خلقو! تاسو دَ خپل رب تقوىٰ اوکړئ وے چه فيصله کوونکے زلزله ډير لوئے څيز دے۔

يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ اَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى وَمَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ ③

کومه ورځ به چه هغه تاسو اووينئ هره شوده (رېئ) څکوونکي ښځه به چه په چا پئ څکوی هغه به ترے هير شی او هره يوه په اُميد ښځه به زيان شی (خپل حمل به اوغورزوی) او ته به اووينے چه هغوئ دَ بدمستانو په شان دی وے هغوی به بد مست نهٔ وی خو دَ الله عذاب ډير سخت دے۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ④

او خلقو کښے ځنے داسے هُم دی چه دَ الله پخقله بے دَ علم لرلو بحث کوی او دَ هر لو حق نه دَ لرے او سرکش (خبره) منی۔

كُتِبَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ وَيَهْدِيْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ⑤

(حال دا چه) دَ دے (سرکشانو او حق نه دَ لرے خلقو) پخقله فيصله شوے ده چه څوک (سړے) به چه داسے خلقو کښے چا سره دوستی کوی هغه (سرکش او حق نه لرے سړے) به هغه هُم بے لارے کړی او دَ دوزخ دَ عذاب په طرف به ئے بوزی۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ

يه خلقو! کچرے تاسو بيا سر دوباره او چتيدلو پخقله په شک کښے يئ نو (ياد لرئ) مونږ تاسو آکا هو خاورے نه پيدا کړی وئ بيا نطفے نه بيا موودهٔ در کړه يو داسے حال نه چه دَ انځنلو خاصيت ئے لرلو بيا داسے حال نه

لَكُمْ ۚ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى
ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ۖ وَمِنكُم
مَّن يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا
يَعْلَمَ مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا ۚ وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً
فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنبَتَتْ
مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ﴿٦﴾

چه هغه دَ لوښکے غوندے وَه څه موده خو هغه دَ یوے
سالمے تکے په شکل وه او څه موده دَ ناقصه تکے په شکل.
دے دَ پاره چه مونږ په تاسو (حقیقت) ښکاره کړو. او مونږ
چه کوم څیز غواړو رِحمونو کښے یوے مودے پورے ساتو
بیا مونږ ئے دَ یوماشوم په شکل او باسو (بیا ئے لویوُو)
چه نتیجه ئے دا وی چه تاسو دَ خپل (عُمر) پوخوالی ته
اورسئ او تاسو کښے ځنے داسے هُم وی چه خپل پوره عمر
ته رسیدو نه ئے مړهٔ شی او ځنے په تاسو کښے داسے وی
چه دَ خپل زوړ (عمر انتها) ته اورسی چه سره دَ ډیره
عمله دَ سره دَ علم نه خالی شی او ته زمکه وینے چه هغه
(کله کله) خپل ټول طاقت ختم کړی بیا هر کله چه مونږ
په هغے اوبه راکوُزے کړونو هغه په جوش کښے راشی
او په وده شی او هر قسم خائسته فصلونه په راټوکولو شی.

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ وَ
أَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٧﴾

دا دے دَ پاره کیږی چه ښکاره کړے شی چه هُم الله
قائم پاتے کیدُونکے او (نورو له) قائم ساتُونکے ذات
دے او هغه مړی ژوندی کوی او په هر څیز قادر دے.

وَأَنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَأَنَّ اللَّهَ
يَبْعَثُ مَن فِي الْقُبُورِ ﴿٨﴾

او هر څیز دَ پاره چه کوم وخت مقرر دے هغه به
خامخا رازی په دے کښے څه شک نشته او په تحقیق سره
الله به هغه چاله چه قبرونو کښے دی په دوئم ځل اوچتوی.

وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَ
لَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ ﴿٩﴾

او خلقو کښے ځنے داسے هُم وی چه دَ الله په حقله بے دَ علمه
بے دَ هدایته او بے دَ څه روښانه کتاب داسے حال
کښے بحث کوی.

ثَانِيَ عِطْفِهِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۖ لَهُ فِي
الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖ وَنُذِيقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَذَابَ
الْحَرِيقِ ﴿١٠﴾

چه خپل اړخ ئے تاؤ کړے وی (یعنی دَ کبر اظهار کوی)
ځکه چه دَ الله دَ لارے نه خلقوله بے لارے کړی.
داسے خلقو دَ پاره دُنیا کښے هُم رسوائی وی او دَ قیامت

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۱۱﴾

په ورځ به هُم مونږ هغوی ته سوزوُنکے عذاب رسوُو.
ستاسو لاسونو چه آګا هو څه کړی دی دَ دے په نتیجه
کښے به دا خبره څرګندیګی او ردے نه به معلومیګی )
چه اللّٰه په خپلو بندیانو هیڅ قسم ظلم نهٔ کوی. ع

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ ۚ فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ اِۨطْمَاَنَّ بِهٖ ۚ وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ اِۨنْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ ۚ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۲﴾

اوخلقو کښے ( څوک ) داسے هُم دی چه دَ اللّٰه عبادت صرف
په ناخو ښئ کوی. بیا کچرے هغوی ته څهٔ فائده اورسی
نو هغوی په دے ( عبادت ) خوشحاله شی او که هغوی
ته څه تکلیف اورسی نو بیخ په شا لاړ شی. هغوی دُنیا کښے
هُم نقصان کښے پریوزی او آخرت کښے هُم او هُم دا
ښکاره ښکاره نقصان دے.

يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ وَمَا لَا يَنْفَعُهٗ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ﴿۱۳﴾

هغوی دَ اللّٰه نه سوا هغه څیز نه مدد غواړی چه نهٔ
هغوی ته نقصان رَسوی او نهٔ ګټه او هُم دا ډیره غټه
ګمراهی ده.

يَدْعُوْا لَمَنْ ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ ۭ لَبِئْسَ الْمَوْلٰى وَلَبِئْسَ الْعَشِيْرُ ﴿۱۴﴾

هغوی هغه ( څوک ) راغواړی چه دَ چا ضرر دَ هغهٔ دَ
ګټے نه زیات نزدے دے، داسے آقا هُم خراب دے
او داسے ملګری هُم ډیر خراب دی.

اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿۱۵﴾

په تحقیق سره اللّٰه مومنانو له چه مناسب دَ حال عمل هُم
کوی به داسے باغونو کښے داخلوی چه ( سیوری کښے )
به ئے نهرونه بهیګی. اللّٰه چه څه اوغواړی هغه کوی.

مَنْ كَانَ يَظُنُّ اَنْ لَّنْ يَّنْصُرَهُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ اِلَى السَّمَاۗءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنْظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهٗ مَا يَغِيْظُ ﴿۱۶﴾

کوم سړے چه دا یقین لری چه اللّٰه به دَ هغه ( یعنی دَ
نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم ) مدد کله هُم نهٔ کوی نهٔ
دُنیا کښے نهٔ آخرت کښے، نو هغهٔ له پکار دی چه هغه یوه
رسئ آسمان ته بوزی ( او په هغے اوخیژی ) بیا هغه
پریکړی بیا هغه دِ اوګوری چه آیا بیا دَ هغهٔ تدبیر دا
خبره لرے کوی کومه چه هغهٔ له قهر وروی ( یعنی دَ نبی

کریم صلی الله علیه وسلم آسمانی مددونه او فتوحات)۔

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يُّرِيْدُ ⑯

او مونږ دا شان دا (قرآن) په ښکاره ښکاره نښانو سره نازل کړے دے او په تحقیق سره الله چه د چا پخقله اراده کوی هغهٔ ته سمه لار ښائی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـِٕيْنَ وَالنَّصٰرٰى وَالْمَجُوْسَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا ۖ اِنَّ اللّٰهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ⑰

په تحقیق سره چه کوم خلق (په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) ایمان راوړی او هغه خلق چه یهودیان شول او صابیان او نصرانیان او مجوسیان او هغه خلق هُم چا چه شرک اوکړو په تحقیق سره الله به د هغوی ترمنځه د قیامت په ورځ فیصله کوی په تحقیق سره الله په هر لوڅیز نګران دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُوْمُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَاۗبُّ وَكَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ ۭ وَكَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ ۭ وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاۗءُ ⑱ السجدة

(په د اسلام مخالفه!) آیا ته نهٔ وینے چه هرڅه چه په آسمان کښے دی هغه د الله حُکم منی او دا شان چه څوک په زمکه کښے دی او نمر هُم او سپوږمئ هُم او ستوری هُم او غرونه هُم او ونے هُم او څاروی هُم او ډیر څخه خلقو کښے هُم۔ په خلقو کښے یو ډیر ډله داسے ده چه د هغے پخقله د عذاب فیصله شوے ده او څوک چه خدائے ذلیل کړی هغهٔ ته څوک عزت ورکونکے نهٔ وی الله چه څهٔ غواړی کوی۔

هٰذٰنِ خَصْمٰنِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ ۡ فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّنْ نَّارٍ ۭ يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوْسِهِمُ الْحَمِيْمُ ⑲

دا دوه یو تر بله مخالفت کوونکی ټولی داسے دی چه د خپل رب پخقله ګیا دی جنګیږی بیا څوک چه د الله د لورتنی منونکی کافران شول هغوی د پاره به د اور جامے جوړولے شی او د هغوی په سرونو به ایشیدلے او به آچولے شی۔

يُصْهَرُ بِهٖ مَا فِيْ بُطُوْنِهِمْ وَالْجُلُوْدُ ⑳

(ترد دے چه) د دے ایشیدلو اوبو له کبله چه څه د هغوی په خیټو کښے دی هغه به هُم ورسته شی

او د هغوی څرمنې به هُم (ورستې شي).

وَلَهُمْ مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيْدٍ ٢١

او د هغوی د پاره به د اوسپنې ستکونه (تيار وي شي).

كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ اُعِيْدُوْا فِيْهَا ۗ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ٢٢

هر کله به چه هغوی د غم او فکر له کبله د دې عذاب نه د وتلو کوشش کوي نو بيا به د دې په طرف واپس کړې شي (او ورته به وئيلې شي سوزونکې عذاب کښې (خوند اوڅکئ).

اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ۗ وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ٢٣

په تحقيق سره الله به مومنانو له چه مناسب د حال عمل هُم کوي داسې باغونو کښې ساتي چه د هغې (د سيورې) لاندې به نهرونه بهيږي هغوی ته به هغوی کښې د سرو او د غمو ختلي بهنګرې اچولې شي او د هغوی جامې به د ريښمو وي.

وَهُدُوْٓا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ ۚ وَهُدُوْٓا اِلٰى صِرَاطِ الْحَمِيْدِ ٢٤

د هغوی به پاکو خبرو په طرف پام کړزولې شي او داسې کار د کولو په طرف به هغوی بوتلې شي چه هغه به د ستائينې وړ وي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِيْ جَعَلْنٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءَ ِۨالْعَاكِفُ فِيْهِ وَالْبَادِ ۗ وَمَنْ يُّرِدْ فِيْهِ بِاِلْحَادٍۢ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ٢٥

(ولې) هغه خلق چه کافران دي او د الله د لارې نه او د بيت الله په طرف د تلو نه چه هغه مونږ د ټولو انسانانو د فائدې د پاره جوړ کړې دې منع کوي۔ (سره د دې چه هغه بيت الله داسې دې چه مونږ د ټولو انسانانو د پاره جوړ کړې دې) هغوی د پاره هُم چه دې کښې په ناسته د خدائې عبادت کوي او هغوی د پاره هُم چه ځنګلونو کښې اوسيږي او کوم سړې چه په دې کښې په ظُلم څه کږې پيدا کول او غواړي هغوی له به مونږ دردناک عذاب ورکوو.

وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِيْ شَيْـًٔا وَّطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ٢٦

او (ياد کړه) چه مونږ ابراهيمؑ ته د بيت الله په ځائې د استوګنې موقع ورکړه (او ورته مو اووئيل) چه هيڅ يو څيز مونږ سره شريک مه جوړوه او زما کور د طواف

کوُونکو دَ پاره او په ولاړه عبادت کوُونکو دَ پاره او دَ رکوع کوُونکو دَ پاره او دَ سجده کوُونکو دَ پاره پاک کړه۔

وَاَذِّنۡ فِى النَّاسِ بِالۡحَجِّ يَاۡتُوۡكَ رِجَالًا وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاۡتِيۡنَ مِنۡ كُلِّ فَجٍّ عَمِيۡقٍ ﴿۲۸﴾

او ټولو خلقو کښے اعلان اوکړه چه هغوی دَ حج په نیت تا له راځی پیاده هُم او په هره یوه داسے سوارلئ هُم چه دَ اوږد سفرله کبله ماندهٔ شوی وی (دا سے سوارلئ) به دَ لرے لرے نه په ژورو لارو راځی۔

لِّيَشۡهَدُوۡا مَنَافِعَ لَهُمۡ وَيَذۡكُرُوا اسۡمَ اللّٰهِ فِىۡۤ اَيَّامٍ مَّعۡلُوۡمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمۡ مِّنۡۢ بَهِيۡمَةِ الۡاَنۡعَامِ‌ۚ فَكُلُوۡا مِنۡهَا وَاَطۡعِمُوا الۡبَآٮِٕسَ الۡفَقِيۡرَ ﴿۲۹﴾

څکه چه هغوی (یعنی راتلوُنکی) دغه سُود ونه اووینی چه هغوی دَ پاره (مقرر شوی دی.) او څو مقرر شوو ورځو کښے الله دَ دے نعمتونو په سوب یاد کړئ کوم چه مونږ هغوی ته ورکړی دی (یعنی) دَ غنمو څارُو دَ قسم نه (لکه غوا، اوښ او داسے نور) بیا پکار دی چه هغوی دَ دے غوښه اوخوری او په تکلیف کښے دَ پریوتو او نادارو (خلقو) باندے اوخوروی۔

ثُمَّ لۡيَـقۡضُوۡا تَفَثَهُمۡ وَلۡيُوۡفُوۡا نُذُوۡرَهُمۡ وَلۡيَطَّوَّفُوۡا بِالۡبَيۡتِ الۡعَتِيۡقِ ﴿۳۰﴾

بیا خپل خیرے دِ لرے او خپلے نذرونه (صدقے) دِ پوره کړی او دَ پخوانی کور (خانه کعبے) طواف دِ اوکړی۔

ذٰ لِكَ وَمَنۡ يُّعَظِّمۡ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيۡرٌ لَّهٗ عِنۡدَ رَبِّهٖ‌ ؕ وَاُحِلَّتۡ لَـكُمُ الۡاَنۡعَامُ اِلَّا مَا يُتۡلٰى عَلَيۡكُمۡ‌ فَاجۡتَنِبُوا الرِّجۡسَ مِنَ الۡاَوۡثَانِ وَاجۡتَنِبُوۡا قَوۡلَ الزُّوۡرِ ۙ ﴿۳۱﴾

خبره دا ده چه کوم سړے دَ الله مقرر کړی دَ عزت ځایونو تعظیم کوی نو دا به دَ هغهٔ دَ رب په نزد دَ هغهٔ دَ پاره ښه وی او اَے مومنانو! ستاسو دَ پاره (ټول) څاروی جائز (حلال) کړے شوی دی سوا دَ هغو نه چه دَ کوم حرمت په قرآن شریف کښے بیان شوے دے بیا پکار دی چه تاسو دَ بت پرستئ دَ شرک نه بچ شئ او۔

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيۡرَ مُشۡرِكِيۡنَ بِهٖ‌ ؕ وَمَنۡ يُّشۡرِكۡ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخۡطَفُهُ الطَّيۡرُ اَوۡ تَهۡوِىۡ بِهِ الرِّيۡحُ فِىۡ مَكَانٍ سَحِيۡقٍ ﴿۳۲﴾

(داشان) خپل عبادت او اطاعت بس الله لره مخصوص کولو سره دَ دروغو وئیلو نه بچ شئ (او) تاسو خدائے سره هیچا له شریک مهٔ جوړوئ او څوک چه الله سره چا لره شریک جوړوی هغه دَ آسمان نه غورزیګی او مارغان

هغه په ټوټوټو (ټوټوټو) اوړي او هوا هغه چرته لرې ځائے غورزوي۔

ذٰلِكَ ۗ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿۳۲﴾

حقیقت دا دے چه کوم سړے چه دَ الله مقرر شوی نښانو عزت کوی دَ هغهٔ (کار به) دَ زړونو تقوىٰ او کرزوے شی۔

لَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ﴿۳۳﴾ ع

(یاد لرئ چه) دَ دے قربانو نه یوے مودے پورے تاسو ته نفع حاصلول جائز ده بیا دَ خدائے پخوانی کور ته دَ هغو رسول ضروری دی۔

وَلِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ۗ فَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗٓ اَسْلِمُوْا ۗ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ ﴿۳۴﴾

او دَ هر لیو قام دَ پاره مونږ دَ قربانئ یو طریقه مقرر کړے ده، دے دَ پاره هغوئ په دے ځاروچه الله هغوی له ورکړی دی دَ الله نوم واخلی (بیا یاد لرئ چه) ستاسو خدائے یو خدائے دے بیا تاسو هُم دَ هغهٔ حکم منئ او څوک چه دَ خدائے وړاندے عاجزی کوونکی دی هغوی ته زیرے ورکړه۔

الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ عَلٰى مَآ اَصَابَهُمْ وَالْمُقِيْمِي الصَّلٰوةِ ۙ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۳۵﴾

دا سے خلقو ته چه هر کله دَ الله نُوم دَ هغوی وړاندے واخستے شی نو دَ هغوی زړونه لړزیګی او هغو خلقو ته هُم (زیرے ورکړه) چه په خپلو ځانونو نازلیدونکو مصیبتونو صبر کوی او نمونځ قائموی او چه څه مونږ هغوی له ورکړی دی (څمونږ دَ رضا دَ پاره) هغے نه لګوی۔

وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۚ فَاِذَا وَجَبَتْ جُنُوْبُهَا فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ ۚ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۳۶﴾

او مونږ دَ قربانئ اوښانو له هُم عزت ورکړے دے هغو کښے ستاسو دَ پاره ډیره ښیګړه ده بیا هغو لړه په قطار او دردولو سره په هغوی دَ خدائے نوم اخلئ او هر کله چه دَ هغوی اړخونه په زمکه اولګی نو دَ هغوی (دَ غوښے) نه خپله هُم خورئ او په هغوی هُم خوروئ چه دَ خپلے غریبئ له کبله صبر دی او په هغوی هُم خوروئ

چه دَ خپلے غریبۍ له کبله پریشانه دی. دا شان مونږ دغه ښاروی ستاسو فائدے دَ پاره جوړ (پیدا) کړی دی چه تاسو شُکر اوکړئ.

لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ۚ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ ۗ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣٧﴾

(یاد لرئ چه) دَ دے قربانو غوښے او وینه هیڅکله الله ته نهٔ رسی وے ستاسو دَ زړونو تقوىٰ الله ته رسی (په حقیقت کښے) دا شان الله دا قربانۍ ستاسو په خدمت کښے لګولی دی. دے دَ پاره چه تاسو دَ الله دَ هدایت له کبله دَ هغه لوئی بیان کړئ او تهٔ دَ اسلام حُکمونه په پوره ډول ادا کوونکو ته زیرے ورکړه.

اِنَّ اللّٰهَ يُدٰفِعُ عَنِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُوْرٍ ﴿٣٨﴾

په تحقیق سره الله به دَ هغه خلقو دَ طرف نه چه ایمان ئے راوړے دے دفاع کوی په تحقیق سره الله هر خیانت کوونکے (او) انکار کوونکے نهٔ خوښوی.

اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقٰتَلُوْنَ بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيْرُ ﴿٣٩﴾

هغه خلق چا سره چه جنګ کیا دے کیګی هغوی ته هُم دَ جنګ کولو اجازه ورکیدے شی. وے چه په هغوی ظلم شوے دے او الله دَ هغوی په مدد کولو قادر دے.

الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ اِلَّآ اَنْ يَّقُوْلُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَّصَلَوٰتٌ وَّمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيْهَا اسْمُ اللّٰهِ كَثِيْرًا ۗ وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿٤٠﴾

(دا هغه خلق دی) چا له چه دَ هغوی دَ کورونو نه تش دَ هغوی په دومره وینا چه الله ځمونږ رب دے. بے دَ څهٔ جائز وجے او باسلے شول او کچرے الله روئی یعنی کافرانو کښے بعضے دَ بعضو په سوب (دَ شرارت نه) منع نهٔ ساتلے نو کرجے او دَ یهودیانو دَ عبادت ځایونه او جماتونه به چه پکښے دَ الله نوم ډیر ډیر اخستے شی، برباد کړے شوے وے او په تحقیق سره الله به دَ هغه چا مدد کوی ځوک به چه دَ هغهٔ (دَ دین) مدد کوی په تحقیق سره الله ډیر طاقتور (او) غالب دے.

اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ﴿٤١﴾

دوی (یعنی مسلمان مهاجر) هغه خلق دی چې که مونږ هغوی له دنیا کښې طاقت ورکړو نو هغوی به نمونځ قائموی او زکوٰتونه به ورکوی او د نیکو خبرو حُکم به ورکوی او د بدو خبرو نه به منع کوی او د ټولو کارونو انجام د خدائے په لاس کښې دے۔

وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ ﴿٤٢﴾

او که چرې (دا دښمنان) ستا انکار کوی نو دے نه آګاه وو د نوحؑ قام هُم، او عاد او ثمود هُم۔

وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ وَقَوْمُ لُوْطٍ ﴿٤٣﴾

او د ابراهيمؑ قام هُم د لوطؑ قام هُم۔

وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ ۚ وَكُذِّبَ مُوْسٰى فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ ۚ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿٤٤﴾

او د مدين او سېدُونکو هُم (د خپلو خپلو نبیانو نه) انکار کړے وه او موسیٰؑ نه دروغژن وئیلے شوی وو۔ بیا ما انکارکوُونکو ته لږ مولت ورکړو او بیا مو هغوی اونیول بیا (خیال اوکړه چې) ځما انکار څنګه خطرناک وُه۔

فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصْرٍ مَّشِيْدٍ ﴿٤٥﴾

او څومره کلی دی چې مونږ په داسے حال کښې هلاک کړی وو چې هغوی ظُلم کولو هغه ن په خپلو چتونو راپرېوتی پراته دی او څومره کوُیان دی چې د سره شاړ دی او څومره اوچتے اوچتے قلعه کانے دی چې تباه شوی دی۔

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَتَكُوْنَ لَهُمْ قُلُوْبٌ يَّعْقِلُوْنَ بِهَآ اَوْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ۚ فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِيْ فِي الصُّدُوْرِ ﴿٤٦﴾

آیا هغوی په زمکه په ګرزیدو نهٔ دینی حه هغوی د داسے زړونو خاوندان شی چې په (دے خبرو) پوهیدُونکی وی یا داسے غوږونه ورحاصل شی چې (د دے خبرو) اوریدُونکی وی وے اصل خبره داده چې دا په څرګنده سترګے ړندے نهٔ وی وے زړونه چې په سینو کښې دی ړانده وی۔

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ ؕ وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ﴿٤٧﴾

دا خلق عذاب غوښتو کښې تادی کوی او الله کله هُم د خپلے وعدے خلاف نهٔ کوی او یو نه یو ورځ د خدائے په نزد ستاسو د شمیر د زرو کلونو هومره وی۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ اَخَذْتُهَا ۚ وَاِلَيَّ الْمَصِيْرُ ﴿۴۹﴾

او څومره کلي دي چه ورله (اول څو) مهلت ورکړو سره د دے چه هغوی ظالمان وُو ظُلم ئے کولو بیا ما هغوی اونیول او هُم ما ته د ټولو راتلل دی۔ ع

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَآ اَنَا لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۚ ﴿۵۰﴾

ته او وایه په خلقو! زهٔ تاسو ته بس د یو هوښیاروونکی په حیث راغلے یم۔

فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿۵۱﴾

بیا چه څوک ایمان راوړی او مناسب (د هغے) د حال عمل کوی هغوی ته به (د خدائے) بخښنه او د عزت رزق حاصل وی۔

وَالَّذِيْنَ سَعَوْا فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۵۲﴾

او هغه خلق چا چه ځمونږ د نشانانو پخلاف (په دے غرض) کوشش اوکړو چه هغوی مونږ پاتے راولی هغه خلق جهنم کښے پریوتونکی دی۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ اِذَا تَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ۚ فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۙ ﴿۵۳﴾

او مونږ تا نه آګاهو نهٔ څوک رسول وا ستولو او نهٔ نبی دے هرکله چه هغهٔ څه اوغوښتل شیطان د هغهٔ د غوښتنے په لاره کښے مشکلات پیدا کړل بیا الله هغه چه شیطان ئے اچوی ختموی او چه څهٔ د هغهٔ خپل نښانات وی هغه مضبوطوی او الله ډیر علم لرونکے او د حکمت خاوند دے۔

لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِي الشَّيْطٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَفِيْ شِقَاقٍ ۢ بَعِيْدٍ ۙ ﴿۵۴﴾

نتیجه دا وی چه څه (مشکلات) شیطان اچوی هغه د هغو خلقو د پاره د تیندک سوب شی چه د چا په زړونو کښے مرض وی او چه د چا زړونه سخت وی او ظالمان (د خدائے د هرے یوے خبرے) په سخته مخالفت کولو ته تیار وی۔

وَّلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتُخْبِتَ لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۵۵﴾

او (دا هر څه دے د پاره وی) چه هغه خلق چه د علم خاوندان دی پوهه شی چه هغه (قرآن) ستا د رب د طرف نه سراسر رښتنی دهٔ او چه په دے ایمان راوړی او

دَ هغوی زړونه دي ته تیت شی او الله مومنانو ته خامخا دَ نیغې لارې په طرف هدایت ورکوونکے دے۔

وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً أَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ ﴿٥٥﴾

او کافران به دَ دے (قرآن) په حقله تر هغه وخته پورے په (دَ تباهئ) وخت ناساپه راشی یا هغوی له دَ هغې ورځے عذاب راشی چه دَ خان نه روستو هیڅ نهٔ پریږدی، شک کښے پراته وی۔

الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ۚ فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٥٦﴾

هغه ورځ به تول بادشاهت دَ الله وی هغه به دَ هغوی ترمنځه فیصله کوی بیا مومنان چه مناسب دَ حال عمل هُم کوی هغه به نعمت لرُونکی جنتونو کښے اوسی۔

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٥٧﴾ ع

او کافران او څوک چه زمونږ دَ آیتونو مُنکرخو هغه دی چا دَ پاره چه دَ رسوائ عذاب دے۔

وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٥٨﴾

او هغه خلق چه دَ الله په لاره کښے هجرت کوی بیا اووژلے شی یا په خپل مرګ مړهٔ شی الله به هغوی ته ډیر اوچت انعام ورکوی او الله انعام ورکوونکو کښے دَ ټولو نه ښهٔ دے۔

لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿٥٩﴾

هغه به هغوی خوښوی او الله ډیر خبردار (او ډیره پوهه لرُونکے دے)۔

ذَٰلِكَ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهِ ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنصُرَنَّهُ اللَّهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴿٦٠﴾

دا خبره هُم دا شان ده او کوم سړے چه دومره سزا ورکړی څومره چه هغهٔ ته تکلیف رسیدلے وی۔ ولے سره دَ هغې (دَ هغهٔ دښمن) الوته په هغهٔ اوخیژی نو الله به خامخا دَ هغهٔ مدد کوی په تحقیق سره الله ډیر معاف کوونکے (او) ډیر بخښونکے دے۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٦١﴾

دا (دَ جزا سزا سلسله) دے دَ پاره (روانه) ده چه ثابته شی چه الله شپه په ورځ کښے او ورځ په شپه کښے دا خلوی او په تحقیق سره الله (ډیرے دعا ګانے) اوریدُونکے (او ډیر حالات) لیدُونکے دے۔

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَ اَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَ اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۶۲﴾

دا (دُعا کانے اورېدل او دَ حالاتونه وا تفيت لرل) دے دَپاره دی چه الله په خپل ذات کښے قائم دے او نور خيژونه تا ئم ساتی او دے دَپاره چه کوم تيز هغوی دَخدا ئے نه سوا مدد له غواړی هغه تباه کيدُونکے دے او دے دَپاره چه هُم الله دَ ټولو دَپاسه دے او دَ ټولونه لوئے دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ﹡ فَتُصْبِحُ الْاَرْضُ مُخْضَرَّةً ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ ﴿۶۳﴾ۚ

آيا تا اونهٔ ليدل چه الله دَ آسمان (ورېځو) نه اوبه ورولی دی چه په هغے زمکه شنکئ (راوباسی) په تحقيق سره الله (په خپلو بنديانو) دَ مهربانئے سلوک کوُونکے دے او (دَ هغوی دَ حالاتونه) ډير خبردار دے۔

لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۶۵﴾ ع ۱۵

څهٔ چه په آسمانونو کښے دی او څهٔ چه په زمکه کښے دی هغه ټول دَ هغهٔ دی او په تحقيق سره الله دَ ځان نه سوا دَ ټولو وجودُونو دَ مدد نه بے نيازه (او) دَ تعريفونو مالک دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ ؕ وَيُمْسِكُ السَّمَآءَ اَنْ تَقَعَ عَلَى الْاَرْضِ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۶۶﴾

آيا تا ليدلی نهٔ دی چه الله څهٔ چه په زمکه دی هغه ستاسو په خدمت کښے بے څهٔ مزدورئ آخته کړی دی او کشتئ هُم په سمندر کښے دَ هغهٔ په حُکم زی۔ او هغه آسمان ايسار کړے دے چه چرته په زمکه دَ هغهٔ دَ حُکم نه سوا اونهٔ غورزيږی۔ په تحقيق سره الله په ټولو خلقو شفقت کوُونکے او بيا بيا رحم کوُونکے دے۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ؕ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ ﴿۶۷﴾

او هُم هغه دے چا چه تاسو ژوندی کړئ بيا به تاسو وژنی بيا به تاسو ژوندی کوی په تحقيق سره انسان ډير ناشکره دے۔

لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا هُمْ نَاسِكُوْهُ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْاَمْرِ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ ؕ اِنَّكَ لَعَلٰى هُدًى

مونږ هر يو اُمت دَپاره دَ عبادت طريقه مقرر کړے ده چه دَ هغے مطابق هغه زی۔ بيا دَ دے طريقے (يعنی اسلام)

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٦٨﴾

پخپله دِ هغوی تا سره بحث نهٔ کوی روے چه دا خدائے مقرر کړے دہ ) او تهٔ هغوی خپل رب ته راغواړه ولے چه تهٔ په سمه لاره ئے۔

وَ اِنْ جٰدَلُوْكَ فَقُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٦٩﴾

او که چرے هغوی تا سره بحث اوکړی نو اووایه چه الله ستاسو دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے۔

اَللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿٧٠﴾

الله به ستاسو او ځما ترمنځه ) دَ قیامت په ورځ دَ هغو خبرو فیصله کوی څهٔ کښے چه تاسو اختلاف لرئ۔

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِى السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ فِىْ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿٧١﴾

( اے محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ! ) آیا تا ته معلومه نهٔ دہ چه الله دَ هر هغه څیز نه چه په آسمان او زمکه کښے دے خبر دے دا هرڅه په یو کتاب کښے لیکلی شوی شته دے او دا شان ( دَ څه قانون محفوظ ) کول دَ الله دپاره آسان دی۔

وَ يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّ مَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ﴿٧٢﴾

او هغه خلق دَ الله نه سوا دَ هغو څیزونو عبادت کوی کومو دَ پاره چه هغه څه دلیل نهٔ دے راکوزکړے او چه دَ څه پخپله هغوی ته هیڅ قسم څه علم نشته او دَ ظالمانو به هیڅوک مددګار نهٔ وی۔

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِىْ وُجُوْهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمُنْكَرَ ؕ يَكَادُوْنَ يَسْطُوْنَ بِالَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ؕ قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ اَلنَّارُ ؕ وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٧٣﴾

او هر کله چه دَ هغوی وړاندے ځمونږ ښکاره ښکاره آیتونه لوستلے شی نو تهٔ دَ نامنونکو په مخونو ( صفا صفا ) تا دَ ناخوښئ ویښے چه هغوی به په هغو خلقو حمله اوکړی څوک چه هغوی ته ځمونږ آیتونه لګیا دی آوروی۔ ته اووایه

ع ٩ / ١٦ آیا زهٔ تاسو ته دَ دے حال نه هُم دَ یو بد حال خبردرکړم ؟ ( او هغه ) جهنّم ( کښے غورځیدل ) دی الله تعالیٰ دَ دے وعده کافرانو ( دَ نامنونکو ) سره کړے دہ او هغه دَ پناه بد ځائے دے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا

( یه خلقو ! ) یو خبره تاسو ته کولے شی تاسو هغه په غور واورئ ! تاسو دَ الله نه سوا چه دَ چا نه مدد غواړئ هغوی نو هیڅ هُم

وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ۖ وَإِن يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا
لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ ۚ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ ﴿۷۳﴾

نشي پيدا کولے هرڅو که ټول سره غونډ شي بلکه يو مچ که د هغوی د مخ نه څه څيز اوتختوی نو هغوی هغه څيز (هُم) نشي خلاصولے۔ د ا دُعا کانے غوښتونکے (هُم) او چا نه چه دُعا کانے غوښتے شي (هغه هُم) ډیر کمزوری دی۔

مَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿۷۴﴾

هغو خلقو د الله (د صفاتو) صحي اندازه نهٔ ده لګولے په تحقيق سره الله خو ډير طاقت لرونکے (او) ډيرزيات غالب دے۔

اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ ۚ
إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿۷۵﴾

الله فرښتو نه خپل رُسولان خوښوی او (د ا شان) انسانانو نه (هُم)، الله ډير (د دُعا کانو) اوريدونکے او (د حالاتو) ډير ليدونکے دے۔

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ
الْأُمُورُ ﴿۷۶﴾

څه چه د هغوی وړاندے دی هغے نه هُم هغه خبر دے او څه چه هغوی روستو پريخي دی د هغے هُم علم لري او ټولے خبرے هُم د هغه په طرف ځی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا
رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۩ السجدة ﴿۷۷﴾

يَه مومنانو! رکوع کوئ او سجده کوئ او د خپل رب عبادت کوئ او نيک کارونه کوئ دے د پاره چه تاسو خپل مقصود او مومئ۔

وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِ ۚ هُوَ اجْتَبَاكُمْ
وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ۚ مِّلَّةَ
أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ ۚ هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِن
قَبْلُ وَفِي هَٰذَا لِيَكُونَ الرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ
وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ ۚ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ
وَآتُوا الزَّكَاةَ وَاعْتَصِمُوا بِاللَّهِ هُوَ مَوْلَاكُمْ ۖ فَنِعْمَ
الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿۷۸﴾

او د الله په لاره کښے داسے کوشش کوئ چه پوره وی ولے چه هُم هغهٔ تاسو ته بزرگی درکړے ده او د دين ربه تعليم کښے ئے په تاسو هيڅ سختی نهٔ ده اچولے۔ (يَه مومنانو!) د خپل پلار ابراهيمؑ په دين (ټينګ شئ ولے چه) الله ستاسو نوم مسلمانان ايښودے دے۔ دے کتاب کښے هُم او دے نه ړومبو کتابونو کښے هُم څکه چه رسُول په تاسو ګواه وی او تاسو په باقی دُنيا ګواه او ستی بيانمونځ قائم کړئ او زکوٰة ورکوئ او الله سره (تعلق) ټينګ کړئ۔ هغه ستاسو مالک دے بيا څومره ښهٔ مالک دے او څومره ښهٔ مددګار دے۔




سورة مومنون - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے یو سل او نورلس آیتونه او شپږ رکوع دی۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾ | (شروکوم) په نامه دَ خدائے چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔ |
| قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۲﴾ | (کامل) مومنان خپل مراد ته اورسیدل۔ |
| الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ﴿۳﴾ | هغه (مومنان) چه خپل نمونځونه په عاجزئ کوی. |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ﴿۴﴾ | او چه دَ لغو خبرونه ډډه کوی۔ |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ﴿۵﴾ | او چه زکوٰة (باقاعده) ورکوی۔ |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴿۶﴾ | او چه دَ خپلو دَ شرم دَ ځایونو حفاظت کوی۔ |
| اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿۷﴾ | سوا دَ خپلو ښځو یا دَ هغه چا چه مالکان ئے دَ هغوی ښئ لاسونه دی۔ بیا په دا سے خلقو به هیڅ قسم ملامته نهٔ وی۔ |
| فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۸﴾ | او څوک چه دَ دے نه سوا بله خبره او غواړی نو هغوی به زیاتی کوونکی وی۔ |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۹﴾ | او هغوی (یعنی کامل مومنان) چه دَ خپلو امانتونو او خپلو لوظونو۔ |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۱۰﴾ | او څوک چه دَ خپلو نمونځونو حفاظت کوی۔ |
| اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ﴿۱۱﴾ | هُم دغه خلق اصل وارثان دی۔ |
| الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۲﴾ | چه دَ فردوس وارثان به وی هغوی به دے کښے تل ترتله اوسی۔ |
| وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ﴿۱۳﴾ | او مونږ انسان دَ لمدے خاورے دَ خلاصے نه پیدا کړو۔ |
| ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ﴿۱۴﴾ | بیا هغه مو یو حصار یدونکی ځائے کښے دَ نطفے په طور کیښودو۔ |

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ
مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا
الْعِظٰمَ لَحْمًا ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ
فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ⑮

بیا نطفے له مو وده ورکولو سره دا سے شکل ورکړو چه هغه انختونکے وجود جوړ شو بیا دے وجود نه مو لوتی جوړه کړه بیا دا لوتۍ مو دَ هډوکی په شکل کړه بیا په هغو هډوکو مونږ غوښه اوخیژوله بیا هغه مو په یو بل شکل کړه۔ بیا دَ ډیر برکت څاوند دے هغه خدائے چه دَ ټولونه ښهٔ پیدا کوونکے دے۔

ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ⑯

بیا تاسو خلق دے نه پس مړکیدُونکی یئ۔

ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ ⑰

بیا تاسو دَ قیامت په ورځ اوچتیدُونکی یئ۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ ۖ وَمَا كُنَّا عَنِ
الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ⑱

او مونږ ستاسو دَ پاسه (دَ درجو دَ پاره) اوهٔ (رُوحانی) لارے جوړے کړی دی او مونږ (دَ خپل) مخلوق نه غفلت نه دے کړے۔

وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِى الْاَرْضِ ۖ
وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍۢ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ ⑲

او مونږ دَ آسمان (دوریځو) نه دَ یو اندازے مطابق اوبهٔ راکوزے کړی دی بیا هغه مو په زمکه کښے اودَروَلے او مونږ دَ هغے په اوچتولو هُم قادریُو۔

فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ ۘ لَكُمْ فِيْهَا
فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ⑳

بیا مونږ تاسو دَ پاره دے نه باغونه جوړ کړهٔ دَ کجهورو (هُم) او دَ انګورانو (هُم)۔ دے کښے تاسو دَ پاره ډیرے میوے (پیدا کړے شوی) دی او هغو نه تاسو خورئ۔

وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ
وَصِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ ㉑

او (مونږ تاسو دَ پاره) هغه ونے هُم پیدا کړی دی) چه دَ طور سینا نه اوُزی او څان کښے ئے ناه تیلو سره توکیږی او خوړونکو دَ پاره اِنګوبے هُم۔

وَاِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۖ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِىْ بُطُوْنِهَا
وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ㉒

او تاسو دَ پاره څارو کښے ډیر عبرت دے مونږ په تاسو دَ هغه څیز نه چه دَ هغوی خیټو کښے وی څکوُ او دے څارو کښے تاسو دَ پاره نورے هُم ډیرے ګټے دی او تاسو هغو نه لعضے خورئ۔

وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ㉓

او په هغو او په کیښتو سوارولے شئ۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۝۲۳

او مونږ نوح دَ هغهٔ قام ته واستولو، بيا هغه اووئيل يَه څما قامه! دَ الله عبادت کوئ دَ هغهٔ نه سوا بل څوک ستاسو دَ عبادت لائق نشته آيا تاسو دَ هغهٔ تقویٰ نهٔ کوئ؟

فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً ۖۚ مَّا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ۝۲۴

دَ دے په اوريدو دَ هغهٔ دَ قام دَ کافرانو مشرانو اووئيل دا سړے خو لېس تاسو غوندے يو انسان دے (او) غواړی چه ستاسو دَ پاسه شی۔ که چرے الله پيغمبر استول غوښتلے نو فرښتے به ئے راکوزولے مونږ خپل پلار نيکونو کښے څه دا قسم واقعه کيدل نهٔ دی اوريدلی۔

اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ ۝۲۵

دا خو لېس يو انسان دے چه ليونے شوے دے بيا دَ دهٔ دَ انجام څه وخته پورے انتظار اوکړئ۔

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ ۝۲۶

(دَ دے په اوريد نوح) اووئيل يَه څما ربه! څما مدد اوکړه ولے چه دا خلق څما انکار کوی۔

فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَاِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ ۙ فَاسْلُكْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَاَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۚ وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ۝۲۷

بيا مونږ هغهٔ ته وحی اوکړه چه دَ (کوم) کشتئ (مونږ حکم درکړے دے هغه) څمونږ دَ سترګو وړاندے او دَ وحی مطابق جوړه کړه۔ بيا هر کله چه څمونږ حُکم راشی او زمکه را اوخټکيږی نو دے (کشتئ) کښے دَ هر يو څاروی (دَ قسم) نه (چه دَ هغے مونږ حکم درکړو) يو يوه جوړه کيږده او خپل خپلوان هُم۔ سوا دَ هغونه چه دَ چا خلاف څمونږ حکم رومبئ نه نازل شوے دے سواره کړه او چا چه ظُلم کړے دے دَ هغوی په حقله ما سره هيڅ خبره اونکړے ولے چه هغوی به خامخا غرق کولے شی۔

فَاِذَا اسْتَوَيْتَ اَنْتَ وَمَنْ مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ نَجّٰىنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝۲۸

بيا هر کله چه ته او ستا ملګری په ښهٔ شان کشتئ کښے کيني نو تاسو کښے دِ هر يو او وائی چه ټول تعريفونه هُم الله دَ پاره دی چا چه مونږ دَ ظالمانو دَ قام نه خلاص کړو

وَقُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ﴿٢٩﴾

او (دَ کشتئ نه دَ کوزیدو په وخت) اووایه چه یَه خُماربه! تهٔ ما (دَ دے کشتئ نه) په داسے حال کښے کوز کړه چه په ما ډیر ډیر برکتونه نازلیګی او (ما ته دَ دے دعا هُم ځکه حاجت دے هر کله چه) ستا وجود دَ ټولو کوزونکو نه ښهٔ دے۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ وَّاِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِيْنَ ﴿٣٠﴾

دے کښے ډیر نښانات دی او په تحقیق سره مونږ دَ بندیانو امتحان اخستونکی یُو۔

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٣١﴾

بیا مونږ دَ هغوی نه پس ډیر قامُونه پیدا کړل۔

فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٣٢﴾ ع

او مونږ هغوی کښے دَ هغو نه رسُولان واستول (دے پیغام سره) چه دَ الله عبادت کوئ دَ هغهٔ نه سوا ستاسو
ع ٢
بل څوک معبود نشته آیا تاسو دَ هغهٔ په سوب دَ هلاکت نه خپل ځان نه بچکوئ ؟

وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يَاْكُلُ مِمَّا تَاْكُلُوْنَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ ﴿٣٣﴾

او دَ هغهٔ (نوی رسُول) قام کښے چه کومو خلقو کفر کړے وه او دَ مرګ نه پس خُدائے سره دَ ملاقات نه ئے انکار کړے وه او څوک چه مونږ دَ دے دُنیا ژوند کښے مالدار جوړ کړی دَ هغوی سردارانو اوویل دا خو ستاسو غوندے یو سړے دے هُم هغے (خوراکونو نه) خوری چه څهٔ تاسو خورئ او هُم هغے (اوبو) نه څکی چه تاسو ئے څکئ۔

وَلَئِنْ اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿٣٤﴾

او که چرے تاسو خپل ځان غوندے دَ یو سړی خبره منئ نو تاسو به نقصان اوچتوونکو نه شئ۔

اَيَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ وَكُنْتُمْ تُرَابًا وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ﴿٣٥﴾

آیا هغه تاسو سره دا وعده کوی چه هر کله تاسو مړهٔ شئ او خاورے شئ او هډوکی (هډوکی) شئ نو تاسو به بیا دَ سره ژوندی را اوباسلے شئ۔

هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿٣٦﴾

دَ کومے خبرے چه تاسو سره وعده کیږی هغه دَ عقل نه ډیره لرے ده او دَ منلو خبره نهٔ ده۔

إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ۝۳۷

ژوند خو لیس خمونږ دَ دے دُنیا ژوند دے مونږ کله مرګ حال یو او کله ژوندی او مونږ به دَ مرګ نه پس کله هُم په دوئم ځل نشو اوچتولے۔

إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا وَمَا نَحْنُ لَهُ بِمُؤْمِنِينَ ۝۳۸

دا خو (لیس) یو ازرے یو سړے دے چه په الله دروغ تړی۔ مونږ به کله هُم دَ دهٔ (خبرے) نهٔ منو۔

قَالَ رَبِّ انصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ۝۳۹

(دَ دے په اوریدو) هغهٔ او وئیل یه ځما ربه دے خلقو ځما انکار کړے دے بیا تهٔ ځما مدد اوکړه۔

قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ ۝۴۰

بیا خدائے اوفرمائیل دا خلق به لږ موده کښے پښیمانه شی۔

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ فَجَعَلْنَاهُمْ غُثَاءً ۚ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۝۴۱

او هغوی یو عذاب او نیول چه دَ هغے پوخ خبر ورکړے شوے وه او مونږ هغوی نه خزله جوړه کړه (او فرښتو ته مو حُکم ورکړو چه) ظالمانو دَ پاره دَ خدائے لعنت (راوبیکئ)

ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ ۝۴۲

بیا هغوی نه پس مونږ ځنے نور قامونه پیدا کړل۔

مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۝۴۳

هیڅ یو قام دَ خپلے مودے نه وړاندے نه تیرېګی۔ او نهٔ دَ هغے نه وروستو (زیح) پاتے کیدے شی۔

ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ۖ كُلَّ مَا جَاءَ أُمَّةً رَّسُولُهَا كَذَّبُوهُ ۚ فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُم بَعْضًا وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ۝۴۴

بیا مونږ خپل رُسولان پرله پسے واستول هرکله به چه یو قام له دَ هغهٔ رسُول راتلو هغوی به دَ هغهٔ انکارکولو بیا مونږ هغوی کښے بعضے بعضو پسے واستول (یعنی هغه نامنونکی به ئے هلاکول) او مونږ هغوی تول تیره شوے افسانه کړل۔ او (دَ هغوی پخقله مو فرښتو ته حُکم ورکړو) چه کومو خلقو ایمان رانهٔ وړو هغوی دَ پاره دَ خدائے لعنت (راوبیکئ)۔

ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ۝۴۵

دے نه پس مونږ موسیٰ او دَ هغهٔ رور هارُون خپلو نشانانو او ښکاره ښکاره غلبے سره دَ فرعون او دَ هغه

إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيهِۦ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ وَكَانُوا۟ قَوْمًا عَالِينَ ﴿٤٦﴾

سردارانو په طرف واستول. بیا هغوی کبر اوکړو او هغوی سرکش خلقو نه شول.

فَقَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَـٰبِدُونَ ﴿٤٧﴾

بیا هغوی اوویل آیا مونږ ځان غوندے دوه انسانانو باندے ایمان راوړو حال دا چه د دوی دواړو قام زمونږ غلامی کوی.

فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْلَكِينَ ﴿٤٨﴾

بیا هغوی د هغو دواړو (یعنی موسیٰ او هارونؑ) انکار اوکړو نتیجه دا اوشوه چه هغوی هم هلاکیدونکو نه شول.

وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَـٰبَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٤٩﴾

او مونږ موسیٰ له (هغه) کتاب ورکړو (چه هغه تهول پیژنی) دے د پاره چه هغه (او د هغهٔ قام) هدایت واخلی.

وَجَعَلْنَا ٱبْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُۥٓ ءَايَةً وَءَاوَيْنَـٰهُمَآ إِلَىٰ رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ ﴿٥٠﴾

او مونږ ابن مریم او د هغهٔ مور یو نشان جوړ کړو او مونږ هغو دواړو له په یو اوچت ځائے پناه ورکړه چه د حصاریدلو او د بهیدونکو اوبو ځائے وه. ع

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟ مِنَ ٱلطَّيِّبَـٰتِ وَٱعْمَلُوا۟ صَـٰلِحًا ۖ إِنِّى بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴿٥١﴾

(او مونږ اوویل) اے رسولانو! د پاکو څیزونو نه خوری او مناسب د حال عمل کوئ (او) څهٔ چه تاسو کوئ ما ته معلومه ده.

وَإِنَّ هَـٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ﴿٥٢﴾

او دا ستاسو (یعنی د نبیانو) جماعت هُم یو جماعت دے او زهٔ ستاسو رب یم بیا د هلاکت نه بچ کیدلو د پاره ما خپل ډهال کړئ.

فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٥٣﴾

د دے په اوریدو (یعنی کافرانو) شریعت برخے برخے کړو او هرے فرقے ځان له یوه برخه اونیوه په دے ئے فخر کول شروع کړل.

فَذَرْهُمْ فِى غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٥٤﴾

بیا ته هغوی یو مودے پورے غفلت کښے پاتے پریږده.

اَیَحْسَبُوْنَ اَنَّمَا نُمِدُّهُمْ بِهٖ مِنْ مَّالٍ وَّ بَنِیْنَ ﴿۵۵﴾

آیا هغوی خیال کوی چه څومونږ (د طرفه) د هغوی په مال او ځامنو مدد کول -

نُسَارِعُ لَهُمْ فِی الْخَیْرٰتِ بَلْ لَّا یَشْعُرُوْنَ ﴿۵۶﴾

هغوئ د نیکئ په کارونو کښې زر زر زیاتول دی؟ (داسې نا) بلکه هغوی (په حقیقت نهٔ پوهیګی)

اِنَّ الَّذِیْنَ هُمْ مِّنْ خَشْیَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۵۷﴾

هغه خلق چه د خپل رب د ویرے نه ریږی

وَالَّذِیْنَ هُمْ بِاٰیٰتِ رَبِّهِمْ یُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۸﴾

او هغه خلق چه د خپل رب په آیتونو ایمان راوړی -

وَالَّذِیْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا یُشْرِکُوْنَ ﴿۵۹﴾

او چه د خپل رب جاله شریک نهٔ جوړه وی -

وَالَّذِیْنَ یُؤْتُوْنَ مَاۤ اٰتَوْا وَّ قُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ اَنَّهُمْ اِلٰی رَبِّهِمْ رٰجِعُوْنَ ﴿۶۰﴾

او چه (د خدائے ورکړے) مال (د دے حق لرونکو ته) ورکوی او د هغوی زړونه د دے خبرے نهٔ ویریږی چه هغوی له به یوه ورځ خپل رب ته واپس تلل دی -

اُولٰٓئِکَ یُسٰرِعُوْنَ فِی الْخَیْرٰتِ وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ ﴿۶۱﴾

هُم دا خلق د نیکئ په کارونو کښې تادی کوونکی دی او هغوی په دے طرف یو بل نه وړاندے اوزی -

وَلَا نُکَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا وَلَدَیْنَا کِتٰبٌ یَّنْطِقُ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾

او مونږ د هیچا په ذمه څه کار نهٔ اچوو وے د هغه طاقت سره سم - او مونږ سره یوه اعمال نامه ده چه ریښتیا ریښتیا وائی او په هغوی به هیڅ تسم ظلم نهٔ کیګی -

بَلْ قُلُوْبُهُمْ فِیْ غَمْرَةٍ مِّنْ هٰذَا وَلَهُمْ اَعْمَالٌ مِّنْ دُوْنِ ذٰلِکَ هُمْ لَهَا عٰمِلُوْنَ ﴿۶۳﴾

وے د هغوی زړونه خو د دے تعلیم پخقله غفلت کښې پراتهٔ دی او دے نه سوا د هغوی نور هُم دیر (بد) عملونه دی چه هغوی ئے کیا دی کوی -

حَتّٰۤی اِذَاۤ اَخَذْنَا مُتْرَفِیْهِمْ بِالْعَذَابِ اِذَا هُمْ یَجْئَرُوْنَ ﴿۶۴﴾

دے پورے چه هرکله مونږ دوی کښې مالداره حال خلق په عذاب اخته کړو نو ناساپه هغوی فریاد ونه شروکړی -

لَا تَجْئَرُوا الْیَوْمَ اِنَّکُمْ مِّنَّا لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿۶۵﴾

(هغه وخت مونږ هغوی ته وایو) نن فریادونه مهٔ کوئ څومونږ د طرف نه به تاسو ته هیڅ مدد نهٔ رسی -

قَدْ کَانَتْ اٰیٰتِیْ تُتْلٰی عَلَیْکُمْ فَکُنْتُمْ عَلٰۤی اَعْقَابِکُمْ تَنْکِصُوْنَ ﴿۶۶﴾

څما آیتونه به تاسو ته اوروے شول وے تاسو به پام نهٔ کولو او فضول خبرو کولو سره او د دے نه مخ اړولو

مُسْتَكْبِرِيْنَ ۖ بِهٖ سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ﴿۶۷﴾

سره په خپلو ګپتو به واپس کیدئ۔

اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ اَمْ جَآءَهُمْ مَّا لَمْ يَاْتِ اٰبَآءَهُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۶۸﴾

آیا هغو خلقو په دے قول (یعنی قرآن) غور اونکړو یا هغوی سره هغه (وعده) شوے ده چه د هغوی پلار نیکونو سره نهٔ وه شوے۔

اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا رَسُوْلَهُمْ فَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۶۹﴾

(او) آیا هغوی خپل رسول اونهٔ پیژندلو چه د هغے له کبله هغوی د هغهٔ انکار کوی۔

اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِهٖ جِنَّةٌ ۚ بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۰﴾

آیا هغوی وائی چه هغه لیونتی دے (روے داخبره نهٔ ده) بلکه هغه هغوی له حق (د حقو تعلیم) راوړے دے او هغوی کښے کثر شمیره خلق حق نهٔ خوښوی۔

وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ۚ بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۱﴾

او کچرے حق د هغوی تلوسے تلے نو آسمان او زمکه او چه څه د هغوی ونیه او سی به تباه شوے دے۔ حقیقت دا دے چه مونږ هغوی لره د هغوی د عزت سامان راوړے دے او هغوی د خپل د عزت سامان نه ډډه کوی۔

اَمْ تَسْــَٔلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ ۖ وَّهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۷۲﴾

آیا تهٔ هغوی نه څهٔ تاوان غواړے د اسے لښی کیدلے ولے چه ستا د رب ورکړے مال ډیر ښهٔ دے او هغه (رب) ډیر ښه عزت ورکوونکے دے۔

وَاِنَّكَ لَتَدْعُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۷۳﴾

او تهٔ هغوی سمے لارے ته غواړے۔

وَاِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنٰكِبُوْنَ ﴿۷۴﴾

او څوک چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی هغوی د (دینی) لارے نه اخوا کیدونکی دی۔

وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوْا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۵﴾

او کچرے مونږ په هغوی رحم اوکړو او چه کوم ضرر هغوی ته رسی هغه لرے کړو نو هغوی به خپلے سرکشئ کښے نور هم زیات شی۔

وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۷۶﴾

او مونږ هغوی په سخت عذاب کښے راګیر کړی دی بیا هم هغوی د خپل رب وړاندے په عاجزی تهیت نشول او نهٔ ئے د هغهٔ وړاندے ژړا فریاد اوکړو۔

حَتّٰٓى اِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ اِذَا هُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ ﴿۷۷﴾ ع

ترڅو چه هر کله مونږ هغوی ته دَ لوسخت عذاب وَرخلاص کړو نو هغوی به مایوسه کیني۔

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۸﴾

او هغه هُم دَ خدائے (ذات) دے چا چه تاسو دَ پاره غوږونه او سترګے او زړهٔ پیدا کړے دے تاسو دَ سره هېڅ شکر نهٔ کوئ۔

وَهُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۹﴾

او هُم هغه دے چا چه زمکه کښے تاسو خوارهٔ کړئ او تاسو به هُم دَ هغهٔ په طرف راغونډولے شئ۔

وَهُوَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۸۰﴾

او هُم هغه دے چه تاسو ژوندی کوی او چه تاسو به وژنی او دَ شپے او ورځے وراندے روستو راتلل دَ هغهٔ په اختیار کښے دی آیا تاسو عقل نه کارنهٔ اخلئ۔

بَلْ قَالُوْا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُوْنَ ﴿۸۱﴾

حقیقت دا دے چه هغوئ هُم هغه خبره کوی چه دَ هغوئ نه پرومبنو کړے وه۔

قَالُوْٓا ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ﴿۸۲﴾

هغوی ووئیلی وو چه آیا هر کله چه مونږ مړهٔ شُو او خاورے شو نو بیا به مونږ را او چتولے شو؟

لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا هٰذَا مِنْ قَبْلُ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۸۳﴾

دے نه آګاهو دَ دے خبرے وعده مونږ سره او خُمونږ پلار نیکو سره شوے وه روے دا دے او نشول)۔

قُلْ لِّمَنِ الْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهَآ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۴﴾

"نهٔ او وایه کچرے تاسو پوهیګئ نو ( را خورا ته او وائی چه) دا تولہ زمکه او دے کښے هرڅهٔ دَ چا دی؟

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ؕ قُلْ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۸۵﴾

په تحقیق سره هغوی به (دَ دے په جواب کښے) او وائی دَ الله۔ دَ دے په اوریدو "نهٔ او وایه آیا تاسو دَ پوهے نه کار نهٔ اخلئ؟

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ﴿۸۶﴾

(ربا) "نهٔ او وایه چه دَ اووهٔ آسمانونو او دَ عرشِ عظیم رب څوک دے؟

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ؕ قُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۸۷﴾

هغوی به سمدستی او وائی (را نول) دَ الله دی "نهٔ او وایه آیا بیا تاسو (دَ خدائے په ذریعه دَ تباهئ نه)

دَ پچ کید لو کوشش نهٔ کوئ ؟

قُلْ مَنْۢ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ يُجِيْرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٨٨﴾

(ورسره) ته اووایه چه دَچا په قبضه کښے دَ هر څیز بادشاهي ده او هغه (ټولو) له پناه ورکوی هَو دَ هغهٔ دَ عذاب نه خلاف بل څوک پناه نشي ورکولے. کچرے تاسو پوهیګئ (نو په دے پوهیده شئ).

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ۭ قُلْ فَاَنّٰى تُسْحَرُوْنَ ﴿٨٩﴾

هغوی به ردَ پورتنی سوال په اوریدو) سمدستی اووائی دَ الله (په واک کښے). دَ دے په اوریدو ته اووایه چه بیا تاسو په دهوکه کښ څوا نه بوتلے شئ.

بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِالْحَقِّ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿٩٠﴾

حقیقت دا دے چه مونږ هغوئ له حق راوړے دے او هغوی دے نه دَ سره منکر دی.

مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ وَّلَدٍ وَّمَا كَانَ مَعَهٗ مِنْ اِلٰهٍ اِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ اِلٰهٍۢ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلٰي بَعْضٍ ۭ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿٩١﴾

الله چاله هُم څوئ نهٔ دے جوړکړے او هغه سره څوک هُم دَ عبادت لائق نشته (کچرے داسے وے) نو هر یو معبود به خپل پیدا کړی څیز د نه بیل اوړلے وے او په دے (معبودانو) کښے به بعضو په نورو حمله کړے وے الله پاک دے دَ هغے نه چه کومے خبرے دوئ کوی.

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٩٢﴾ ع

هغه دَ غیب علم لری او دَ موجود هُم (علم لری) بیا چاله چه هغوئ دَ هغهٔ شریک جوړوی دَ هغو نه هغه ډیر بالا دے.

قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ مَا يُوْعَدُوْنَ ﴿٩٣﴾

ته اووایه یَه ځما ربه! کچرے ته ځما په ژوند هغه څه اوښائے چه دَ څه هغوی سره وعده لګیا دے کیږی.

رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٤﴾

نو یَه ځما ربه! ته ما دَ ظالم قام نه مهٔ کړے.

وَاِنَّا عَلٰٓي اَنْ نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقٰدِرُوْنَ ﴿٩٥﴾

او مونږ په دے څیز قادر یُو چه څهٔ هغو سره وعده کوُو تا ته ئے اوښایُو.

اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ ۭ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ ﴿٩٦﴾

ته دَ هغوی بدے خبرے په داسے (جوابي) خبرے لرے کړه چه ډیرے ښائسته وی مونږ دَ هغوی خبرو باندے ښهٔ پوهیګو.

وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ﴿٩٧﴾

او ته اووایه یَه ځما ربه زهٔ دَ سرکشو خلقو نه ستا پناه غواړم.

وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ ۝٩٨

او یَه خُمار به زهٔ ستا پناه غوارم دَ هغې نه (هُم) چه هغوی خما مخې ته راشی۔

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ ۝٩٩

او هغه وخت هر کله چه هغوی کښې چاله مرګ راشی هغه به وائی یَه خُماربه! ما واپس کړه، ما واپس کړه، ما واپس کړه۔

لَعَلِّي أَعْمَلُ صَالِحًا فِيمَا تَرَكْتُ ۚ كَلَّا ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ
هُوَ قَائِلُهَا ۖ وَمِن وَرَائِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ
يُبْعَثُونَ ۝١٠٠

دے دَ پاره چه زهٔ هغه ځائے کښې کوم چه ما پرېښوے دے (یعنی دنیا کښې) مناسب دَ حال عمل اوکړم۔ دا سے به هیڅکله نهٔ وی۔ دا بس دَ خُلے یوه خبره ده چه هغوئ ئې کیادی کوی او دَ هغوی روستو یوه پرده ده هغې ورځې پورے چه هغوی به په روښم ځل اوچتولے شی۔ (بیا نو هغوی به دُنیا ته ژوندی کړے شوی کله هُم نه راواپس کیږی۔

فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ
وَلَا يَتَسَاءَلُونَ ۝١٠١

بیا هر کله چه شپیلۍ کښې پُوک وهلے شی نو هغه ورځ به دَ هغوی ترمنځه هیڅ خپلوئ پاتے نشی او نهٔ به هغوی دَ یو بل دَ حال تپوس کوی۔

فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝١٠٢

بیا چه دَ چا پیتې درانهٔ شی هغه خلق به کامیاب وی۔

وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا
أَنفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ۝١٠٣

او چه دَ چا پیتې سپک شی هغوی به په نقصان کښې پرېوزی (او خپل ځانونه به تباه کړی) او جهنّم کښې به تل تر تله اوسی۔

تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ ۝١٠٤

او ربه دَ هغوی مخونه سوزوی او هغوی به هغې کښې مخ تورن شی۔

أَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُم بِهَا
تُكَذِّبُونَ ۝١٠٥

(او ورته به اووئیلے شی) آیا تاسو ته خما آیتونه نشو لوستلے؟ او تاسو دَ هغې انکار نهٔ کولو؟

قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا
ضَالِّينَ ۝١٠٦

هغوی به وائی یَه خُمونږه ربه! خُمونږ به مرغی په مونږ غالبه شوه او مونږه یو بے لارے ټولیٔ وُو۔

رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا
ظَالِمُونَ ۝١٠٧

یَه خُمونږه ربه مونږ دے (دوزخ) نه او باسه بیا کچرے مونږ (دَ دے ګناهونو په طرف) بیا واپس شُو نو مونږ به ظالمان یُو۔

قَالَ اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ۝١٠٨

(خدائے به) او فرمائی لرے شئ (او) دوزخ ته ځئ او ماسره خبرے مهٔ کوئ۔

إِنَّهُۥ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِى يَقُولُونَ رَبَّنَآ ءَامَنَّا فَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿۱۰۹﴾

خبره دا ده چه ځما په بندیانو کښې یو ټولۍ داسې وه چه وئیل به ئې چه یه ځمونږه ربه! مونږ ایمان راوړے دے بیا نو ته مونږ او بخښه او په مونږ رحم اوکړه او ته د ټولو رحم کوونکو نه ښهٔ یئې۔

فَٱتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا حَتَّىٰٓ أَنسَوْكُمْ ذِكْرِى وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ ﴿۱۱۰﴾

ولے هغوی تاسو د ټوکو وشتو کړل۔ دے پورے چه هغوی تاسو نه ربه سوب ستاسو په هغوی کښې د دلچسپی (خستلو) ځما یاد ول هیر کړل او تاسو به ټول عمر هغوی پورے خندا کوله۔

إِنِّى جَزَيْتُهُمُ ٱلْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوٓا۟ أَنَّهُمْ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿۱۱۱﴾

د هغوی د صبر کولو له کبله زهٔ به نن هغوی ته د دَحال مناسب بدله ورکوم۔ په تحقیق سره هغوی به کامیاب وی۔

قَٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِى ٱلْأَرْضِ عَدَدَ سِنِينَ ﴿۱۱۲﴾

بیا به هغه (یعنی خدائے) اوفرمائی، څو کاله تاسو په زمکه پاتے شوئ؟

قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَسْـَٔلِ ٱلْعَآدِّينَ ﴿۱۱۳﴾

هغوئ به وائی مونږ بس یوه ورځ یا د ورځې یوه برخه په زمکه پاتے شوی یو، ته د شمیر کوونکو نه تپوس اوکړه۔

قَٰلَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ۖ لَّوْ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۱۱۴﴾

(د دے په اورید و به خدائے) اوفرمائی کچرے تاسو د پوهے نه کار واخلئ نو تاسو ډیره لږه موده پاتے شوئ۔

أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَٰكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ ﴿۱۱۵﴾

آیا تاسو دا گنړل چه مونږه تاسو بے مقصده پیدا کړی یئ؟ دا چه تاسو به مونږ ته نهٔ واپس کیږئ۔

فَتَعَٰلَى ٱللَّهُ ٱلْمَلِكُ ٱلْحَقُّ ۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْكَرِيمِ ﴿۱۱۶﴾

بیا الله د لوئے شان څاوند، بادشاه او قائم پاتے کیدونکے او قائم ساتونکے دے۔ د هغهٔ نه سوا د عبادت لائق هیڅوک نشته هغه د عرشِ کریم رب دے۔

وَمَن يَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرْهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴿۱۱۷﴾

او څوک چه د الله نه سوا بل یو معبود اوبلی؛ چه د هغهٔ څه دلیل نهٔ وی نو د هغهٔ حساب د هغهٔ رب سره دے۔ حقیقت دا دے چه کافر هیڅکله نهٔ کامیا بیږی۔

وَقُل رَّبِّ ٱغْفِرْ وَٱرْحَمْ وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿۱۱۸﴾ ع

او ته اووایه یه ځما ربه! معاف کړه او رحم اوکړه او ته د ټولو نه ښه رحم کوونکے یئې۔

سُوْرَةُ النُّوْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسٌ وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّتِسْعَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورۃ نور - دا سورۃ مدنی دے او لبسم اللہ سرہ دے پینځه شپیته آیتونه او نهه رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه د الله چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا وَاَنْزَلْنَا فِيْهَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ②

(۱) یو دا سے سورۃ دے چه مونږ را کوز کړے دے او (چه پرے عمل کول) مونږ فرض کړی دی او دے کښے مونږ ښکاره حکمونه بیان کړی دی دے د پاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔

اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۪ وَّلَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۚ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ③

زنا کاره ښځه او زنا کار سړے (کچرے په هغوی الزام ثابت شی نو) هغوئ کښے هر یو سل سل کوړے وهئ۔ او کچرے تاسو په الله او په ورځ د آخرت ایمان (ادرئ نو د الله حکم سرته رسولو کښے د دے دواړو قسمه مجرمانو پحقله تاسو رحم او نکړئ او پکار دی چه د دے دواړو سزا د مومنانو یو جماعت اووینی۔

اَلزَّانِيْ لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً ۫ وَّالزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَآ اِلَّا زَانٍ اَوْ مُشْرِكٌ ۚ وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ④

او یو زناکار د زناکارے یا د مشرکے نه سوا بل چا سره صحبت نه کوی او نه زناکاره د زناکار یا د مشرک نه سوا بل چا سره صحبت کوی او په مومنانو دا خبره حرامه شوے ده۔

وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَاْتُوْا بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ⑤

او څوک چه په پاکو ښځو تور تړی بیا څلور ګواهان نه راولی (نو د هغوئ دا سزا ده چه) هغوئ اتیا کوړے وهئ او د هغوی ګواهی کله هم مه قبلوی او هغوی (د خپل دے کار له کبله د اسلامی شریعت) د اطاعت نه بهر دی۔

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۚ فَاِنَّ اللّٰهَ

سوا د هغوئ نه چه روستو توبه اوکړی او اصلاح اوکړی

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑥

بیا ربه داسے کولو) په تحقیق سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ اِلَّآ اَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمْ اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍۢ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ⑦

او څوک چه په خپلو ښځو تور تړی او هغوی سره ګمان نه سوا بل څوک ګواه نهٔ وی نو هغوی کښے هر یو سړی له. داسے ګواهی ورکول پکار دی چه په الله قسم خوړو سره څلور ګواهۍ دی او (هره ګواهۍ کښے) هغه دا اووائی چه هغه رښتونے دے۔

وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ⑧

او پنځمه (ګواهی) کښے (او وائی) چه په هغهٔ دے دَ خدائے لعنت وی کچرے هغه دروغژنو نه وی۔

وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ اَنْ تَشْهَدَ اَرْبَعَ شَهٰدٰتٍۢ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۙ ⑨

او دَ هغې ښځے نه به ربه چا چه دَ هغې خاوند تور اوتړی) دَ هغې په الله قسم خوړلو سره څلور ځله ګواهی چه هغه (یعنی خاوند) دروغژن دے عذاب لرے کوی۔

وَالْخَامِسَةَ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَآ اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ⑩

او پنځم (قسم) به داشان (او خوری) چه دَ الله غضب دِ په هغې (ښځے) نازل وی کچرے هغه (تور تړونکے خاوند) رینښتونے وی۔

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيْمٌ ⑪ ع

او کچرے دَ الله فضل او دَ هغهٔ رحمت په تاسو نهٔ وے او دا نهٔ وے چه الله ډیر فضل کوونکے (او) دَ ډیرو حکمتونو خاوند دے (نو تاسو به غرق وے)۔

اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ ۗ لَا تَحْسَبُوْهُ شَرًّا لَّكُمْ ۗ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۗ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْاِثْمِ ۚ وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ⑫

په تحقیق سره هغه خلق چا چه یو غټ تور تړلے وهٔ هُم تاسو کښے یو ټولۍ دے تاسو دا (خبره) خپل ځان دَ پاره بده مهٔ ګنړئ بلکه هغه تاسو دَ پاره ډیره ښه وه روښے چه دَ دے په سوب دَ حکمت نه ډک تعلیم تاسو حاصل کړو) هغوی کښے به هر سړی ته چه څومره ګناه هغه کړے وی دَ هغې سزا اورسی۔ او څوک چه دَ دے ګناه دَ غټې برخے ذمه دار وُه هغهٔ ته به ډیر لوئے

عذاب اورسی۔

لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتُ
بِاَنْفُسِهِمْ خَيْرًا ۙ وَّ قَالُوْا هٰذَآ اِفْكٌ مُّبِيْنٌ ۝۱۳

هرکله چه تاسو دا خبره اوریدلے وه نو ولے مومنانو سړو او مومنانو ښځو د خپل قام په حقله نیک ګمان اونکړو او دا ئے اونهٔ وئیل چه دا ښکاره دیرلوئے دروغ دی۔

لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا
بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ۝۱۴

او ولے هغوی (چا چه دا دروغ خوارهٔ کړی وُو) په دے څلورګو اهان رانهٔ وستل بیا هرکله چه هغوی ګواهان رانهٔ وستل نو د الله د فیصلے له مخه هغوی دروغژن دی۔

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَ
الْاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝۱۵

او کچرے په تاسو د الله فضل او رحمت دنیا او آخرت کښے نهٔ وے نو تاسو نه به د دے کار (په سوب) چه تاسو په کښے پریوتی وئ ډیرلوئے عذاب رسیدلے وے۔

اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ
لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ وَّ تَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّ هُوَ عِنْدَ اللّٰهِ
عَظِيْمٌ ۝۱۶

له دے کبله چه تاسو خپلو کښے د یو بل په ژبه دا دروغ از ده کول شروکړل او په خپلو خُلو مو هغه خبره بیانول شروکړل چه د هغے تاسو ته علم نهٔ وه (خدائے تاسو نه خفه شو) او تاسو دا خبره ډیره کمزرله وے په حقیقت کښے د الله په نزد ډیره غټه وه۔

وَلَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّتَكَلَّمَ
بِهٰذَا ۖ سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ۝۱۷

او ولے دا مو اونهٔ وئیل چه هرکله تاسو دا خبره اوریدلے وه نو سمد ستی مو او وئیل چه دا زمونږ کار نهٔ دے چه مونږ دا خبره بیا د سره کړو یه خدایا تهٔ پاک ئے دا ډیر غټ تومت دے۔

يَعِظُكُمُ اللّٰهُ اَنْ تَعُوْدُوْا لِمِثْلِهٖٓ اَبَدًا اِنْ كُنْتُمْ
مُّؤْمِنِيْنَ ۝۱۸

الله تاسو د دے قسم د خبرے د بیانولو نه ټول عمر د پاره منے کوی کچرے تاسو مومنان یئ۔

وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ۖ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝۱۹

او الله تاسو د پاره خپل احکام بیانوی او الله ډیر علم لرونکے (او) د حکمتونو خاوند دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِيْنَ
اٰمَنُوْا لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاللّٰهُ

په تحقیق سره چه کوم خلق غواړی چه په مومنانو کښے بدی خوره شی هغوی د پاره ډیرلوئے عذاب دے۔ دُنیا

يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٠﴾
وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ
رَّحِيْمٌ ﴿٢١﴾

کښې هُم او آخرت کښې هُم او الله پوهيږي او تاسو نهٔ پوهيږئ.
او کچرې دَ الله فضل او رحم په تاسو نهٔ وې او کچرې الله
ډير مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکې نهٔ وې (نو تاسو به
تکليف کښې پريوتې وې).

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ وَمَنْ
يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ
وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ
اَبَدًا ۙ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ
عَلِيْمٌ ﴿٢٢﴾

يه مومنانو شيطان پسې مهٔ زئ او څوک چه شيطان پسې
زي نو هغه دې پوهه شي چه شيطان د بدئ او دَ ناخوښو
خبرو حکم ورکوي او کچرې دَ الله فضل او رحم په تاسو
نه وې نو کله به هُم تاسو کښې څوک پاکباز نهٔ وې.
وې الله چه چاله غواړي هغه پاکوي. او الله ډيرې
دعا کانې اوريدونکې او ډير علم لرونکې دې.

وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْۤا
اُولِي الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ
وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا ؕ اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ؕ
وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٣﴾

او په تاسو کښې (دين په دنيا) فضيلت لرونکي او آسوده حال
خلق دِ قسمونه نهٔ خوري چه هغوی به دَ خپلو
خپلوانو او مسکينانو او دَ الله په لاره کښې دَ هجرت
کوونکو مدد نهٔ کوي او پکار دي چه هغوی دَ بخښنې
نه کار واخلي او معاف کړي آيا تاسو نهٔ غواړئ چه
الله ستاسو غلطئ معاف کړي او الله
ډير معاف کوونکې (او) بيا بيا رحم کوونکې دې.

اِنَّ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ
لُعِنُوْا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۠ وَلَهُمْ عَذَابٌ
عَظِيْمٌ ﴿٢٤﴾

هغه خلق چه په پاک لمنه ښځو تور تړي. چه (دَ شريرانو
دَ شرارت نه غافله دي) او ايمان والې دي په هغوی به دُنيا
او آخرت کښې لعنت کيږي او هغوی دَپاره به لوئې عذاب وي.

يَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ
بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٥﴾

هغه ورځ هر کله چه به دَ هغوی ژبې او لاسونه او دَ
هغوئ پښې هُم دَ هغوی دَ هغو کارونو په حقله چه هغوئ
به کول دَ هغوی خلاف گواهي ورکوي.

يَوْمَئِذٍ يُّوَفِّيْهِمُ اللّٰهُ دِيْنَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّ
اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ ﴿٢٦﴾

هغه ورځ به الله هغوی له دَ هغوی صحي بدله ورکوي
او هغوی ته به معلومه شي چه هُم الله کامل صِدق دې

داسے صدق چه خپل ځان پخپله ښکاره کړي.

اَلْخَبِيْثٰتُ لِلْخَبِيْثِيْنَ وَالْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيْثٰتِ ۚ وَ
الطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالطَّيِّبُوْنَ لِلطَّيِّبٰتِ ۚ اُولٰٓئِكَ
مُبَرَّءُوْنَ مِمَّا يَقُوْلُوْنَ ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ
كَرِيْمٌ ﴿۲۶﴾ ع

ناپاکے ښځے د ناپاکو سړو د پاره دي او ناپاک سړي د ناپاکو ښځو د پاره دي او پاکے ښځے د پاکو سړو د پاره دي. دا ټول خلق د دے ښځو نه چه (د بنمنان ئے) وائي پاک دي هغوي د پاره بخښنه او د عزت رزق (ښکلے شوے) دے.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ
حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ
لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾

يه مومنانو! د خپلو کورونو نه سوا نورو کورونو کښے مه داخليږئ ترڅو پورے چه اجازت وانخلئ او چه ترڅو (د خليدو نه آگاه و) د هغو کورونو کښے اوسيدونکو ته سلام او نکړئ. دا به تاسو د پاره ښه وي او د دے کار نتيجه به دا وي چه تاسو به ښکے ښځے ټول عمر) ياد لرئ.

فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَآ اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ
لَكُمْ ۚ وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ ؕ
وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸﴾

او که چرے تاسو په دے کورونو کښے هيڅوک اونه مومئ بيا هُم هغے کښے مه داخليږئ ترڅو پورے چه تاسو (د کور د خلقو د طرف نه) اجازت درکړے شوے نه وي او که چرے څوک کور کښے وي او تاسو ته او وئيلے شي چه د دے وخت لاړشئ نو تاسو لاړشئ دا به تاسو د پاره زيات پاکه وي او الله ستاسو د کارونو نه ښه خبر دے.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ
فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا
تَكْتُمُوْنَ ﴿۲۹﴾

ستاسو د پاره هغو کورونو ته ورتلل د گناه موجب نه دي چه دو کښے هيڅوک نه او سيږي او ستاسو سامان هغے کښے (وي) دے او الله هغے نه هُم خبر دے چه تاسو ئے ښکاره کوئ او هغے نه هُم چه تاسو ئے پټوئ.

قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ؕ
ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۳۰﴾

ته مومنانو ته او وايه چه هغوي خپلے سترگے ټيټے ساتي او د خپل شرم د ځايونو حفاظت کوي دا به د هغوي د پاره ډيره د پاکئ موجب وي. څه چه هغوي کوي الله هغے نه په ښه شان خبر دے.

وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ
فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا 3
وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۠ وَلَا يُبْدِيْنَ
زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ
اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ
بَنِيْٓ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا
مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ
مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ
النِّسَآءِ ۠ وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ
مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ۭ وَتُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ
لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۱﴾

او مومنانو ښځوته او وایه چه هغوئ هم خپلے سترګے ټیټے ساتی او د خپل د شرم د ځایونو حفاظت کوی او خپل ښائست دے نۀ ښکاره کوی۔ سوا د دے چه خپله بے اختیاره ظاهر شی او خپل پړونی (لوپټه) د خپله سینه دا سے اچوی چه د سینے د پاسه بوټلوسره هغه پټے کړی او هغوی د خپل زینت تش په خپلو خاوندانو، یا په خپلو پلارانو یا د خپلو خاوندانو په پلارانو یا د خپلو ځامنو یا د خپلو خاوندانو د ځامنو یا د خپلو رونړو د ځامنو یا د خپلو خوئندو د ځامنو یا د خپلو (کور ملګتیانو) ښځو یا چه د هغوی ښی لاسونه د چا مالکان دی، یا دا سے ماتحتان سری چه لا پورے ځوانی ته نۀ دی رسیدلی یا په دا سے ماشومانو چه لا پورے هغوی ته د ښځو د خاص تعلقاتو علم نشته، د خپل زینت ښکاره کوی۔ دے نه سوا په بل چا د نۀ ښکاره کوی او خپلے پښے د (په زور زور په زمکه) نۀ وهی دے د پاره چه هغه څیز ښکاره شی چه هغه خپل زینت سره ئے پټوی۔ او یه مومنانو! ټول د الله په طرف رجوع اوکړئ دے د پاره چه تاسو کامیاب شئ۔

وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ وَالصّٰلِحِيْنَ مِنْ عِبَادِكُمْ
وَاِمَآئِكُمْ ۭ اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۭ
وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۲﴾

او خپلو کښے چه کوم کُنډے دی او چه په خپلو مریانو یا وینځو کښے نیکان وی د هغوی واده کوئ که چرے هغوی غریبان وی نو الله به ئے په خپل فضل غنی کړی او الله ډیر وسعت لرونکے (او) ډیر علم لرونکے دے۔

وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ
اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۭ وَالَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ
اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا ڰ وَّاٰتُوْهُمْ
مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اٰتٰىكُمْ ۭ وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ

او پکار دی چه هغه خلق څوک چه د نکاح توفیق نۀ لری پاک اوسی هغے پورے چه الله هغوی په خپل فضل غنی کړی او الله ډیر وسعت لرونکے (او) ډیر علم لرونکے دے
او پکار دی چه هغه خلق څوک چه د نکاح توفیق نۀ لری

عَلَى الْبِغَآءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ
الدُّنْيَا ۚ وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ
غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۳﴾

پاکی دِ ترلاسه کړی تر دے پورے چه الله هغوی په خپل فضل غنی کړی او ستاسو په مرئیانو کښې چه کوم خلق د لیکلی مطالبه اوکړی کړے تاسو هغوی کښې ښیګړه وینی نو هغوی سره لیکنه کوئ او رکړے هغوی سره پوره مال نهٔ وی نو ) چه الله تاسو ته کوم مال درکړے دے هغے نه رد هغوی دَ آزادئ دَ پاره ) څه مال ورکړئ او تاسو خپلے وینځے په بدکارئ مهٔ مجبوروئ کړے هغوی په نیکئ او سیدل غواړی ، دے دَ پاره چه په دے سوب تاسو دَ دنیاوی ژوند سامان غونډ کړئ او څوک چه هغوی مجبوره کړی نو الله دَ هغوښځو دَ مجبورئ نه پس ډیر بخښونکے راو ) بیا بیا رحم کوونکے دے رهغه به هغوی په دے نهٔ نیسی ) ۔

وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّمَثَلًا مِّنَ الَّذِيْنَ
خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۴﴾ ع

او مونږ په تاسو ښکاره ښکاره نښانات نازل کړی دی او کوم خلق چه تاسو نه وړاندے تیر شوی دی دَ هغوی حالات هُم بیان کړی دی او دَ متقیانو دَ پاره دَ نصیحت خبرے هُم بیان کړی دی۔

اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا
مِصْبَاحٌ ۚ اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ۚ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ
دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ
وَّلَا غَرْبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ
نَارٌ ۚ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ ۚ يَهْدِي اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ
وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ ۚ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ
عَلِيْمٌ ﴿۳۵﴾

الله دَ آسمانونو هُم نور دے او دَ زمکے هُم دَ هغه دَ نور کیفیت دا دے لکه چه یو تاخ وی چه پکښې یوه ډیوه پرته وی راو هغه ) ډیوه دَ یوے شیشے کلوب لاندے وی او هغه کلوب داسے ځلیدونکے وی لکه چه یو ځلیدونکے ستورے دے راو ) هغه رچراغ ) یو داسے برکت ناکے ونے دَ زیتون ردَ تیلو ) سره بلیګی چه هغه رونه ) نهٔ شرقی وی او نهٔ غربی وی ۔ نزدے ده چه هغه تیل هرڅوکهٔ هغے ته اور رسی برګ سره بل شی ردا چراغ ) دَ ډیرو نورونو کنړه رمعلومیګی ) ده۔

الله چاله چه او غواړی دَ خپل نُور دَ پاره هدایت ورکوی
او الله دَ خلقو دَ پاره رنتولے ضروری) خبرے بیانوی او الله
دَ هر یو څیز نه ښه خبردے۔

فِیْ بُیُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَ یُذْكَرَ فِیْهَا اسْمُهٗ
یُسَبِّحُ لَهٗ فِیْهَا بِالْغُدُوِّ وَ الْاٰصَالِ ﴿۳۶﴾

دا (دیوے) داسے کورونو کښے دی چه دَ کومو دَ اوچتولو
حُکم خدائے ورکړے دے او هغو کښے دَ خدائے نوم اخستے
شی (او) څو سړی هغو کښے سحر ماښام ثنا صفت کوی۔

رِجَالٌ لَّا تُلْهِیْهِمْ تِجَارَةٌ وَّ لَا بَیْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ
وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِیْتَآءِ الزَّكٰوةِ یَخَافُوْنَ یَوْمًا
تَتَقَلَّبُ فِیْهِ الْقُلُوْبُ وَ الْاَبْصَارُ ﴿۳۷﴾

چا لره چه دَ الله دَ ذکر نه او نمونځ قائم ساتلو نه او دَ
زکوٰة ورکولو نه، نهٔ تجارت او نهٔ سودا خرڅول غافل ساتی
هغوی دَ هغے ورځے نه ویرېږی چه زړونه به پکښے اړوته
شی او سترګے به اوګرزی۔

لِیَجْزِیَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَ یَزِیْدَهُمْ مِّنْ
فَضْلِهٖ وَ اللّٰهُ یَرْزُقُ مَنْ یَّشَآءُ بِغَیْرِ حِسَابٍ ﴿۳۸﴾

نتیجه به ئے دا وی چه الله به هغوی له دَ هغوی دَ عملونو
ښه نه ښه جزا ورکوی او هغو به په خپل فضل (مال او
اولاد کښے) زیات کړی - او الله چه چاله غواړی بے حسابه
رزق ورکوی -

وَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْۤا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِیْعَةٍ یَّحْسَبُهُ
الظَّمْاٰنُ مَآءً حَتّٰۤی اِذَا جَآءَهٗ لَمْ یَجِدْهُ شَیْـًٔا وَّ وَجَدَ
اللّٰهَ عِنْدَهٗ فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ وَ اللّٰهُ سَرِیْعُ الْحِسَابِ ﴿۳۹﴾

او هغه خلق چا چه کفر اوکړو دَ هغوی عملونه دَ سراب
په شان دی چه په یو ویړ میدان کښے په نظر رازی او چه
تږے ئے او به ګنړی تر هغے چه هر کله هغه هغے له
راشی نو هغه هیڅ او نهٔ مومی او الله هغے سره او وینی
بیا الله هغهٔ سره دَ هغے پوره پوره حساب کوی او الله
ډیر زر حساب کوونکے دے۔

اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِیْ بَحْرٍ لُّجِّیٍّ یَّغْشٰىهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ
سَحَابٌ ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ اِذَاۤ اَخْرَجَ یَدَهٗ
لَمْ یَكَدْ یَرٰىهَا وَ مَنْ لَّمْ یَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا
لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ ﴿۴۰﴾

یا (دَ هغو کافرانو دَ عملونو کیفیت) دَ هغو تیرو په رنګ
دے چه په یو ژور سمندر خورے شوے وی چه دَ
پاسه پرے څپے اوچتیږی او په هغو څپو لورے څپے
ع اوچتیږی او دَ هغو ټولو دَ پاسه یو ورېځ وی دا داسے
تیرے وی چه په هغو کښے بعضے دَ بعضو دَ پاسه خورے

دی۔ هر کله چه انسان خپل لاس را اوباسی نو سره د کوشش هغه نشی لیدے او چا د پاره چه الله نُور جوړ نکړی هغه ته چرته نه نور نشی حاصلیدے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالطَّيْرُ صٰٓفّٰتٍ ۭ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۴۱﴾

آیا ته کورے نا چه الله هغه ذات دے چه څوک په آسمانونو او زمکه کښے اوسی ټول د هغهٔ ثنا صفت بیانوی او مارغان صف ترلی د هغهٔ وړاندے حاضروی۔ هغوی کښے هر یو د خپل خپل پیدا او بنت سره سم خپل نمونځ او خپل ثنا صفت پیژنی او څهٔ چه هغوی کوی الله تعالیٰ د هغے نه ښهٔ خبر دے۔

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۴۲﴾

او آسمانونو او زمکه کښے بادشاهی هُم د الله ده او هُم د الله په طرف ټولوله واپس تلل دی۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِيْ سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهٗ ثُمَّ يَجْعَلُهٗ رُكَامًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِيْهَا مِنْۢ بَرَدٍ فَيُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ وَيَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ ۭ يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ ﴿۴۳﴾

آیا تا اونهٔ لیدل چه الله وریځے په رو رو په شړلو راولی بیا هغه یو ځائے کوی بیا هغه کټ په کټ کوی بیا ته کورے چه د هغو د منه نه باران راسسیکی ررا ودنگی) او هغه د وریځے نه ډیر غټ غټ څیزونه را غورزوی چه هغے کښے بعضے د ږلئ غوندے وی او هغه چه چا ته (یعنی کوم قام ته) رسول غواړی رسوی۔ او چا ته چه ئے غواړی هغهٔ نه ئے منع کوی۔ نږدے وی چه د دے بجلئ رنړا بعضے سترگے ړندے کړی۔

يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿۴۴﴾

الله شپے او ورځے له چکر ورکوی دے کښے د عقل د خاوندانو د پاره ډیر عبرت دے۔

وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّنْ مَّآءٍ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰٓى اَرْبَعٍ ۭ يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۵﴾

او الله هر گرزنده ځناور د اوبونه پیدا کړے دے بیا څهٔ خو داسے وی چه پخپلو خیټو زی او څهٔ داسے دی چه (په خپلو) دوؤ لیښنو زی او څهٔ داسے دی چه په څلورو لیښنو زی۔ الله چه څه غواړی پیدا کوی او الله په

هر لو ځيز قادر دے۔

لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝٤٦

مونږ ښکاره ښکاره نښانات را کُوز کړی دی او الله چه چاله غواړی نيغے لارے ته هدايت ورکوی۔

وَيَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ۝٤٧

او هغوی وائی مونږ په الله او د هغهٔ په رسول ايمان راوړو او مونږ د اطاعت وعده اوکړه بيا هغوی کښے يو ټولئ دے نه پس (خپل اقرار نه) اوګرزی او دا سے خلق هيڅکله مومنان نهٔ دی۔

وَاِذَا دُعُوْآ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝٤٨

او هرکله چه هغوی د الله او د هغهٔ د رسول په طرف دے د پاره را اوغوښتے شی چه هغوی د هغو ترمنځه فيصله اوکړی نو هغوی کښے يو ټولئ په ډډه شی۔

وَاِنْ يَّكُنْ لَّهُمُ الْحَقُّ يَاْتُوْآ اِلَيْهِ مُذْعِنِيْنَ ۝٥٠

او کچرے څه خبره د هغوی په حق کښے وی نو هغوی سمدستی د اطاعت ښکاره کولو سره راځی۔

اَفِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَمِ ارْتَابُوْٓا اَمْ يَخَافُوْنَ اَنْ يَّحِيْفَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُوْلُهٗ ؕ بَلْ اُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝٥١

آيا د هغوی زړونو کښے څهٔ بيماری ده؟ يا هغوی شک کښے پراتهٔ دی يا هغوی ويريږی چه الله او د هغهٔ رسول به په هغوی ظلم اوکړی۔ دا سے هيڅکله نه ده بلکه هغوی خپله ظالمان دی۔

اِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ اَنْ يَّقُوْلُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝٥٢

د مومنانو جُواب هرکله چه هغوی د الله او د هغهٔ د رسُول په طرف را اوغوښتے شی چه هغوئ د هغو ترمنځه فيصله اوکړی داوی چه مونږ واوريدل او مونږ اومنودل او همُم هغه خلق مراد ته رسی۔

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ وَيَتَّقْهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ۝٥٢

او څوک چه د الله او د هغهٔ د رسُول اطاعت اوکړی او الله نه اوويريږی او د هغهٔ تقویٰ اوکړی هغوی مراد ته رسی۔

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ؕ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝٥٣

او هغه خلق د الله پاخهٔ قسمونه خوری۔ کچرے تهٔ هغوئ ته حُکم اوکړے نو هغوی به سمدستی کورونو نه اُوزی۔ او وايه قسمونه مهٔ خورئ۔ ځمونږ حکم خو تا سو ته

بس دَ دا سے اطاعت دے چه په عام طور اطاعت ګنړلے شي۔ الله هغے نه چه تاسو ئے کوئ په تحقیق سره خبردار دے۔

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ مَّا حُمِّلْتُمْ ۗ وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ تَهْتَدُوْا ۗ وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝۵۴

ته او وایه دَ الله اطاعت کوئ او دَ هغه دَ رسُول اطاعت کوئ بیا که چرے هغوئ اوګرزی نو بیا په دهٔ (رسُول) بس دَ هغے ذمه داری ده چه دَ هغهٔ په ذمه شوی دی او په تاسو دَ هغے ذمه واری ده چه ستاسو په ذمه شوی دی او که چرے تاسو دَ هغهٔ اطاعت اوکړئ نو هدایت به بیا مومئ او دَ هغهٔ دَ رسُول په ذمه خو بس خبره په ښکاره رسَول دی۔

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۖ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا ۗ يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْئًا ۗ وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝۵۵

او الله تاسو کښے ایمان راوړُونکو او مناسب دَ حال عمل کوُونکو سره وعده کړے ده چه هغه به هغوی په زمکه خلیفه جوړه وی لکه څنګه دَ هغوی نه آګاهو خلقو له ئے خلافت ورکړے وه او چه کوم دین هغهٔ هغوی دَ پاره خوښ کړے دے هغه به هغو دَ پاره ښهٔ په کلکه قائم کړئ او دَ هغوی دَ ویرے حال به هغوی دَ پاره امن کښے بدل کړی هغوی به ځما عبادت کوی (او) هیڅ څیز به ما سره شریک نهٔ جوړوی او څوک چه دے نه پس هُم انکار اوکړی هغه به نافرمان ګرزولے شي۔

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝۵۶

او تاسو ټول نمونځونه کوئ او زکوٰتونه ورکوئ او دَ دے رسُول اطاعت کوئ۔ دے دَ پاره چه په تاسو رحم اوشي۔

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۗ وَلَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝۵۷ ع

(اے اوریدونکیه!) هیچرے خیال اونکړے چه کافران به په زمکه کښے دَ بیرونو سره مونږ یاتے راولی او دَ هغوی ځائے خو دوزخ دے او هغه ډیر بد ځائے دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ

اے مومنانو! پکار دی چه هغه خلق دَ چا چه ستاسو ښی

اَیۡمَانُکُمۡ وَالَّذِیۡنَ لَمۡ یَبۡلُغُوا الۡحُلُمَ مِنۡکُمۡ ثَلٰثَ
مَرّٰتٍ ؕ مِنۡ قَبۡلِ صَلٰوۃِ الۡفَجۡرِ وَحِیۡنَ تَضَعُوۡنَ ثِیَابَکُمۡ
مِّنَ الظَّہِیۡرَۃِ وَمِنۡۢ بَعۡدِ صَلٰوۃِ الۡعِشَآءِ ۟ؕ ثَلٰثُ عَوۡرٰتٍ
لَّکُمۡ ؕ لَیۡسَ عَلَیۡکُمۡ وَلَا عَلَیۡہِمۡ جُنَاحٌۢ بَعۡدَہُنَّ ؕ
طَوّٰفُوۡنَ عَلَیۡکُمۡ بَعۡضُکُمۡ عَلٰی بَعۡضٍ ؕ کَذٰلِکَ یُبَیِّنُ
اللّٰہُ لَکُمُ الۡاٰیٰتِ ؕ وَاللّٰہُ عَلِیۡمٌ حَکِیۡمٌ ﴿۵۹﴾

لاسونه مالکان دی او هغه خلق چه لا پورے بالغ نهٔ دی
هغوی دِ درے وختونو کښے په اجازه دننه رازی۔ سحر
دَ نمونځ نه آګاهو، او هرکله چه دَ غرمے تاسو جامے
اوباسئ او دَ ماسختن نمونځ نه پس۔ دا درے وختونه
ستاسو دَ پردے وختونه دی۔ دَ دے وختونو نه پس
(دننه په تلو راتلو) نهٔ په تاسو څهٔ ګناه شته او نهٔ په
هغوئ۔ وے چه بعضے تاسو نه بعضو له ورځله ماجتونوله
زی رازی۔ دا شان الله خپل حکمونه په ښکاره بیانوی
او الله ډیر علم لرونکے (او) دَ حکمتونو خاوند دے۔

وَاِذَا بَلَغَ الۡاَطۡفَالُ مِنۡکُمُ الۡحُلُمَ فَلۡیَسۡتَاۡذِنُوۡا کَمَا
اسۡتَاۡذَنَ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ کَذٰلِکَ یُبَیِّنُ اللّٰہُ لَکُمۡ
اٰیٰتِہٖ ؕ وَاللّٰہُ عَلِیۡمٌ حَکِیۡمٌ ﴿۶۰﴾

او هرکله چه ستاسو ماشومان بالغ شی نو دا شان دِ اجازت
اخلی لکه څنګه چه هغوی نه اول خلقو (یعنی مشرانو)
اجازه اخسته۔ دا شان الله تاسو دَ پاره خپل حکمونه
بیانوی او الله ډیر علم لرونکے (او) دَ حکمتونو خاوند دے۔

وَالۡقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِیۡ لَا یَرۡجُوۡنَ نِکَاحًا
فَلَیۡسَ عَلَیۡہِنَّ جُنَاحٌ اَنۡ یَّضَعۡنَ ثِیَابَہُنَّ غَیۡرَ
مُتَبَرِّجٰتٍۭ بِزِیۡنَۃٍ ؕ وَاَنۡ یَّسۡتَعۡفِفۡنَ خَیۡرٌ لَّہُنَّ ؕ
وَاللّٰہُ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ ﴿۶۱﴾

او هغه ښځے چه بوډئ شوی دی او دَ نکاح تلبے نه دی
په هغوی هیڅ ګناه نشته دے که خپلے جامے اوباسی
دا شان چه زینت نهٔ څرګندوی او دَ هغوی بچ کیدل
هغوی دَ پاره به ښه وی او الله ډیر اوریدونکے (او)
علم لرونکے دے۔

لَیۡسَ عَلَی الۡاَعۡمٰی حَرَجٌ وَّلَا عَلَی الۡاَعۡرَجِ حَرَجٌ وَّلَا
عَلَی الۡمَرِیۡضِ حَرَجٌ وَّلَا عَلٰۤی اَنۡفُسِکُمۡ اَنۡ تَاۡکُلُوۡا مِنۡۢ
بُیُوۡتِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ اٰبَآئِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ اُمَّہٰتِکُمۡ اَوۡ
بُیُوۡتِ اِخۡوَانِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ اَخَوٰتِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ اَعۡمَامِکُمۡ
اَوۡ بُیُوۡتِ عَمّٰتِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ اَخۡوَالِکُمۡ اَوۡ بُیُوۡتِ خٰلٰتِکُمۡ
اَوۡ مَا مَلَکۡتُمۡ مَّفَاتِحَہٗۤ اَوۡ صَدِیۡقِکُمۡ ؕ لَیۡسَ عَلَیۡکُمۡ

نهٔ په ړندو، نهٔ په ګوډو، نهٔ په رنځورو نهٔ په تاسو
دَ خپلو کورونو نه یا دَ خپل پلار نیکونو دَ کورونو نه یا دَ
خپلو میاندو (یعنی نیا نیکهٔ) دَ کورنه یا دَ خپلو رونړو دَ
کورنه یا دَ خپلو خوئیندو دَ کورنه یا دَ خپلو ترُونو دَ کورنه
یا دَ خپلو تروریانو دَ کورنه یا دَ خپلو ماماګانو دَ کورنه
یا خپلو خاله ګانو (دَ مور خوئیندو) دَ کورنه، یا چه دَ چا
دَ سامان په انتظام تاسو مقرر یئ یا دَ خپلو دوستانو دَ

جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا ۭ فَاِذَا دَخَلْتُمْ
بُيُوْتًا فَسَلِّمُوْا عَلٰٓي اَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ
مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً ۭ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ
تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٢﴾

کورونو نه دَ څهٔ څیز په اخستلو (او) خوړلو څهٔ بده
شته. (دا شان) په تاسو هیڅ گناه نشته کړے تاسو
ټول یو ځاے خورئ یا بیل بیل خورئ بیا هرکله چه
کورونو کښے ننه کیګئ نو په خپلو عزیزانو یا دوستانو ع ۸/۱۴
سلام اچوئ. دا دَ الله دَ طرف نه یوه ډیره برکتناکه او
پاکه دُعا ده. دا شان هغهٔ خپل حُکمونه تاسو ته په ښکاره
اوروی چه تاسو عقل نه کار واخلئ.

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاِذَا
كَانُوْا مَعَهٗ عَلٰٓي اَمْرٍ جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَاْذِنُوْهُ ۭ
اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ
بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ فَاِذَا اسْتَاْذَنُوْكَ لِبَعْضِ شَاْنِهِمْ
فَاْذَنْ لِّمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللّٰهَ ۭ اِنَّ
اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٦٣﴾

بس هُم هغه خلق دَ مومن بللو لائق دی چه په الله او دَ
هغهٔ په رُسول ایمان راوړی او هرکله چه دَ څهٔ قامی کار
دَ پاره هغهٔ (رسُول) سره ناست وی نو (تر هغے) نهٔ
پاسی چه ترڅو دَ هغه نه اجازت وا نخلی. هغه خلق چه
په اجازه زی هُم هغوی په الله او دَ هغهٔ په رُسول ایمان
لری بیا هرکله چه هغوی دَ څهٔ ضروری کار دَ پاره تا نه اجازت
واخلی نو هغوی کښے چه دَ چا پخقله تهٔ اوغواړے هغوی له اجازت
ورکړه او دَ الله نه دَ هغوی دَ پاره بخښنه اوغواړه او په تحقیق
سره الله ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے

لَا تَجْعَلُوْا دُعَاۗءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاۗءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ۭ
قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ
الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ
يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٦٤﴾

(اے مومنانو!) دا اونه گڼرئ چه دَ رسُول تاسو کښے چاله رابلل داسے
دی لکه چه څنگه تاسو کښے دَ بعضو نورو له رابلل. الله هغه خلق
پیژنی چه تاسو کښے (غلی غوندے) په اړخ (دَ مشورے دَ مجلس
نه) تختی. بیا پکاری چه څوک دَ هغهٔ (رسُول) دَ حکم مخالفت کوی
دے نه اوویریګی چه هغوی ته دَ خدائے دَ طرف نه څه آفت او
نهٔ رسی یا هغوی ته دردناک عذاب اونهٔ رسی.

اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ قَدْ يَعْلَمُ مَآ اَنْتُمْ
عَلَيْهِ ۭ وَيَوْمَ يُرْجَعُوْنَ اِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ۭ وَاللّٰهُ
بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٦٥﴾

واوری، څه چه په آسمانونو او زمکه کښے دی هُم دَ الله دی. په کوم
(ځاے) چه تاسو (ولاړ) یئ هغه هُم الله پیژنی او کومه ورځ به چه
هغه خلق دَ الله په طرف واپس کیږی نو هغه به هغوی ته دَ هغوی دَ ع ۹/۱۵
عملونو حال ورښائی او الله هر یو څیز نه ښه خبر دے.




سورۃ الفرقان - دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سرہ دے دوہ کم اتیا آیتونه او شپږ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه ډیر زیات مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا ②

هغه ذات دَ ډیرو برکتونو خاوند دے چا چه فرقان په خپل بنده نازل کړے دے - دے دَ پاره چه هغه دَ ټولو جهانونو دَ پاره هوښیاروونکے شی.

الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا ③

هغه (ذات) چه دَ چا په قبضه کښے دَ آسمانونو او زمکے بادشاهی ده او چه چا څه څوئ نهٔ دے جوړ کړے او چه دَ چا په بادشاهئ کښے څوک شریک نشته او چا چه هر څیز پیدا کړے دے بیا هغے دَ پاره ئے یوه اندازه مقرر کړے ده.

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ وَلَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا يَمْلِكُوْنَ مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً وَّلَا نُشُوْرًا ④

او هغه خلقو دَ هغهٔ (خدائے) نه سوا معبودان جوړ کړی دی چه هیڅ شی پیدا کولے - حال دا چه هغوی خپله پیدا کړے شوی دی او دَ خپل ځان دَ پاره نهٔ په نقصان قدرت لری او نهٔ په ګټه نهٔ دَ مرګ مالکان دی او نهٔ دَ ژوند او نهٔ بیا دَ اوچتیدو.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ هٰذَاۤ اِلَّاۤ اِفْكُ ِۨافْتَرٰىهُ وَاَعَانَهٗ عَلَيْهِ قَوْمٌ اٰخَرُوْنَ ۚ فَقَدْ جَآءُوْ ظُلْمًا وَّزُوْرًا ۚ ⑤

معانقه عند المتاخرین

او کافران وائی دا خو لس هسے یو دروغ دی چه دهٔ جوړ کړی دی او دَ دے په جوړولو لو یوبل قام دَ دهٔ مدد کړے دے - بیا دے خلقو (دَ دے خبرے په کولو) ډیر غټ ظلم کړے دے او ډیر غټ دروغ ئے وئیلی دی.

وَقَالُوْۤا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ⑥

او هغوی وائی چه دا قرآن خو دَ رومبنو خبرے دی چه هغه (په چا) لیکلی دی او اوس هغه سحر مانښام دَ هغه وړاندے اوروے شی (دَ دے دَ پاره چه هغه قرآن په سبهٔ شان اولیکی)

قُلْ اَنْزَلَهُ الَّذِیْ یَعْلَمُ السِّرَّ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ
اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِیْمًا ۝۶

ته اووایه چه دا (قرآن) خو هغهٔ (خدائے) راکوز کړے دے چه دَ آسمانونو او زمکے دَ رازونو نه واقف دے هغه ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

وَقَالُوْا مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ یَاْكُلُ الطَّعَامَ وَیَمْشِیْ
فِی الْاَسْوَاقِ ؕ لَوْلَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْهِ مَلَكٌ فَیَكُوْنَ مَعَهٗ
نَذِیْرًا ۝۷

او هغوی وائی چه په دے رسول څهٔ شوی دی چه هغه ډوډئ هُم خوری او بازارونو کښے هُم گرزی ولے په دهٔ فرښته راکوزه نشوه چه دهٔ سره په ولاړه ئے خلق اوښیارولے

اَوْ یُلْقٰۤى اِلَیْهِ كَنْزٌ اَوْ تَكُوْنُ لَهٗ جَنَّةٌ یَّاْكُلُ مِنْهَا ؕ
وَقَالَ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ۝۸

یا په دهٔ څه خزانه راکوزه وے یا دهٔ سره څهٔ باغ وے چه میوه ئے دهٔ خوړلے. او ظالمان وائی چه تاسو خو لیونی سړی پسے روان یئ چه په هغهٔ ډوډی خوړولے شی.

اُنْظُرْ كَیْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ
سَبِیْلًا ۝۹

اوگوره! دوئ ستا پخقله څنگه څنگه خبرے جوړوی او هغوی بے لارے شوی دی بیا هغوی (دَ صحی خبرے کولو) څه لاره نهٔ مومی.

ع

تَبٰرَكَ الَّذِیْۤ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَیْرًا مِّنْ ذٰلِكَ
جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ وَیَجْعَلْ لَّكَ
قُصُوْرًا ۝۱۰

ډیر دَ برکتونو خاوند هغه خدائے دے چه کهٔ اوغواړی نو ستا دَ پاره به (دَ هغوی دَ تجویز کړی) هغے (باغ) نه ډیر ښهٔ باغونه پیدا کړی چه (دَ سیوری) لاندے به ئے نهرونه بهیګی او تا دَ پاره به لوئے لوئے محلونه تیار کړی.

بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ ۫ وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ
بِالسَّاعَةِ سَعِیْرًا ۝۱۱

حقه دا ده چه دا خلق دَ قیامت انکار کیا دی کوی او مونږ هغه چا دَ پاره چه قیامت نه مُنکر دی دَ غرغندو (دَ اور) دَ عذاب انتظام کړے دے.

اِذَا رَاَتْهُمْ مِّنْ مَّكَانٍۭ بَعِیْدٍ سَمِعُوْا لَهَا تَغَیُّظًا
وَّزَفِیْرًا ۝۱۲

هرکله چه به هغه (یعنی جهنّم) هغوی دَ لرے نه وینی نو هغوی به دَ دے دَ جوش او دَ ډرا تلونکی) مصیبت آواز آوری.

وَاِذَاۤ اُلْقُوْا مِنْهَا مَكَانًا ضَیِّقًا مُّقَرَّنِیْنَ دَعَوْا هُنَالِكَ
ثُبُوْرًا ۝۱۳

او هرکله چه به هغوی دَ هغے (دوزخ) په یوه برخه کښے لاسونه تړلی او غورزولے شی او هغوئ به هغه وخت مرګ غواړی.

لَا تَدْعُوا الْیَوْمَ ثُبُوْرًا وَّاحِدًا وَّادْعُوْا ثُبُوْرًا كَثِیْرًا ۝۱۴

ربیا به دَ خدائے فرښتے هغوی ته وائی) نن یو مرګ مهٔ غواړئ بلکه بیا بیا مرګ غواړئ روے چه په تاسو بیا بیا عذابونه راتلونکی دی)

قُلْ اَذٰلِكَ خَيْرٌ اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَّمَصِيْرًا ﴿١٥﴾

تهٔ هغوی ته اووایه چه دا (انجام) بنهٔ دے یا تل ترتله جنت چه متقیانو سره ئے وعده شوے ده هغه به دَ هغوی (صحی صحی) بدله او آخری ځلئے وی۔

لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ خٰلِدِيْنَ ؕ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ وَعْدًا مَّسْئُوْلًا ﴿١٦﴾

هغوی چه دے کښے څه غواړی هغه به موی۔ هغوی به دے کښے تل ترتله اوسی۔ دا یوه داسے وعده ده چه دَ هغے پوره کول ستا په رب واجب دی۔

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَقُوْلُ ءَاَنْتُمْ اَضْلَلْتُمْ عِبَادِيْ هٰٓؤُلَآءِ اَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيْلَ ؕ ﴿١٧﴾

او هرکله چه به هغه هغوی او دَ هغوی ناحقه معبودان خپل وړاندے اودروی او بیا به هغوی ته وائی۔ آیا تا څما دا بندیان بے لارے کړی وُو یا هغوی خپله دَ سمے لارے نه اوړیدلی دی۔

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِكَ مِنْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى نَسُوا الذِّكْرَ ۚ وَكَانُوْا قَوْمًاۢ بُوْرًا ﴿١٨﴾

بیا به هغوی جواب ورکړی ته پاک ئے څمونږ هیڅ حق نهٔ وُه چه مونږ تا نه سوا نور څوک خپل کارجوړی جوړوے وے تا دے خلقوله او دَ دوئ پلار نیکونوله دنیاوی سامانونه ورکړی دے پورے چه (هغوی ستا) یاد پرېخوادهلاکیدونکے قام جوړ شو۔

فَقَدْ كَذَّبُوْكُمْ بِمَا تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا وَّلَا نَصْرًا ۚ وَمَنْ يَّظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيْرًا ﴿١٩﴾

بیا به (کافرانو ته اووئیلے شی) چه اوګورئ دے ناحقه معبودانو ستا سو خبرونه انکار کړے دے بیا نن تاسو نهٔ خو عذاب لرے کولے شئ او نهٔ څهٔ مدد حاصلولے شئ او چه څوک تاسو کښے ظالم دے مونږ به هغهٔ ته لوئے عذاب ورکوو۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّآ اِنَّهُمْ لَيَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ وَيَمْشُوْنَ فِي الْاَسْوَاقِ ؕ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً ؕ اَتَصْبِرُوْنَ ۚ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيْرًا ﴿٢٠﴾ ع ٢

تا نه آګاهُو مونږ چه څومره رسُولان استولی وُو هغوی تولو روډئ خوړله او بازارونو کښے ګرزیدل او مونږ تاسو کښے بعضوله دَ بعضو دَ پاره دَ آزمیښت سوب جوړ کړے دے (دے کتو دَ پاره) چه آیا تاسو (مسلمانان) صبر کوئ یا (نا) او (ای مسلمانانه!) ستا رب (حالاتو ته) ډیر کتوونکے دے۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰی رَبَّنَا ؕ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا ﴿٢١﴾

اوهغوی څوک چه څمونږ دَ ملاقات اُمید نهٔ لري اووئیل چه په مونږ ولے فرښتے راکوزے نکړے شوے؟ یا ولے مونږ خپل رب په خپلو سترګو نهٔ وینو۔ هغوی خپلو زړونو کښے خپل ځان ډیر لوئے ګڼړلے دے او په سرکشئ کښے ډیر وړاندے وتلی دی۔

يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰی يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿٢٢﴾

(آیا دے خلقو ته معلومه نهٔ ده چه) کومه ورځ به چه فرښتے اووینی هغه ورځ به مجرمانو ته هیڅ قسم زیرئ نشی ورکیدے او (هغوئ به په ویره) وائی (مونږ نه) لرے اوسئ۔

وَقَدِمْنَآ اِلٰی مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا ﴿٢٣﴾

او مونږ دَ هغوی دَ هرقسم عمل په طرف پام اوکړو چه هغوئ کړے وو او هغه مو هوا کښے په نوستلو دَ الوزولو ذراتو په شان کړو۔

اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ﴿٢٤﴾

جنتیان به هغه ورځ دَ اسنوګنے دَ ځائے په لحاظ هُم ښهٔ وی او دَ خوب دَ ځایونو په لحاظ به هُم هغوی په اعلیٰ ځایونو کښے وی۔

وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا ﴿٢٥﴾

او هغه ورځ (یاده کړئ) هرکله به چه آسمان اوشلیګی او وریځے به په سرُونو ګرزی او فرښتے به بیا بیا راکوزولے شی۔

اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ ۨ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ؕ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا ﴿٢٦﴾

هغه ورځ به بادشاهی په رښتیا دَ رحمٰن (خدائے) په نظر کښے رازی۔ او (دا) ورځ به په کافرانو ډیره سخته وی۔

وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰی يَدَيْهِ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِی اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا ﴿٢٧﴾

او هغه ورځ به ظالم (دَ افسوس) لاسونه مروړی (او) وائی به چه کاش زهٔ رسُول سره تللے۔

يٰوَيْلَتٰی لَيْتَنِیْ لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيْلًا ﴿٢٨﴾

په بده برخه! کاش! ما فلانے سړے دوست نهٔ وے جوړ کړے۔

لَقَدْ اَضَلَّنِیْ عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ اِذْ جَآءَنِیْ ؕ وَكَانَ

هغهٔ زهٔ دَ خدائے دَ ذکر نه غافل کړم هرکله چه هغه

الشَّيْطٰنُ لِلْاِنْسَانِ خَذُوْلًا ۝۲۹
(دَ رسُول په ذريعه) ماله راغلے وُه۔ اوشيطان آخر کښے انسان يوازے پريږدي زي۔

وَقَالَ الرَّسُوْلُ يٰرَبِّ اِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْاٰنَ مَهْجُوْرًا ۝۳۰
او رسُول اووئيل په ځمار به! ځما قام خودا قرآن په شا روستو غورزولے دے۔

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ ۚ وَكَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا ۝۳۱
او مونږ دا شان مجرمانو کښے دَ ټولو نبيانو دښمنان جوړ کړی دی او ستا رب دَ هدايت ورکولو او مدد ورکولو په لحاظ (دَسره) کافي دے۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ جُمْلَةً وَّاحِدَةً ۚ كَذٰلِكَ ۚ لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنٰهُ تَرْتِيْلًا ۝۳۲
او کافرانو اووئيل، قرآن وے په دهٔ (نبي) په يو ځل نازل نشو۔ دَ هغوئ ويئنا هُم يو شان صحي ده روے مونږ دا په مختلفو سورتونو او وختونو کښے) دے دَپاره (نازل کړو) چه مونږ دَ دے (قرآن) په سوب ستا زړهٔ (ورسره ورسره) مضبوط کړو او مونږ دا ډيرښهٔ جوړکړے دے۔

وَلَا يَأْتُوْنَكَ بِمَثَلٍ اِلَّا جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاَحْسَنَ تَفْسِيْرًا ۝۳۳
او (ستا دَ ترديد دَپاره) هغوئ هيڅ خبره نهٔ کوی چه مونږ دَ هغے په جواب کښے يوه پخه خبره بيان نکړو او دَ دے ښهٔ نه ښهٔ تفسير اونکړو۔

اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِيْلًا ۝۳۴
څوک به چه خپلو سردارانو سره دَجهنّم په طرف بوتللے شي دَ هغوئ مقام به ډير بد وی او دَ هغوئ لاره به دَ ډيرے ګمراهئ وی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهٗۤ اَخَاهُ هٰرُوْنَ وَزِيْرًا ۝۳۵
او مونږ موسیٰ له يو (معلوم) کتاب ورکړے وه او مونږ هغهٔ سره دَ هغهٔ رور هارونؑ هُم دَ نائب په حيث استولے وه۔

فَقُلْنَا اذْهَبَآ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۭ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِيْرًا ۝۳۶
او مونږ هغوی ته وئيلی وُو چه تاسو دواړه هغه قام ته لاړ شئ چا چه ځمونږ دَ آيتونو انکار کړے دے۔ بيا (هر کله چه هغوئ تبليغ اوکړو) مونږ هغه انکارکوونکی دَ سره تباه کړل۔

وَقَوْمَ نُوحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ أَغْرَقْنٰهُمْ وَجَعَلْنٰهُمْ لِلنَّاسِ اٰيَةً ۗ وَاَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۳۷﴾

او دَ نوحؑ قام هُم هرکله چه هغوئ دَ رُسولانو انکار اوکړو مونږ غرق کړل او مونږ هغوئ خلقو دَ پاره يو نښان جوړ کړل او مونږ ظالمانو دَ پاره دردناک عذاب تيار کړے دے۔

وَّعَادًا وَّثَمُوْدَا۟ وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا ﴿۳۸﴾

او عادؑ هُم او ثمودؑ هُم او دَ کوئ خلق هُم او دَ هغوئ ترمنځه نور ډيرزيات قومونه هُم (مونږ تباه کړل)۔

وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ الْاَمْثَالَ ۫ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيْرًا ﴿۳۹﴾

او هغوی کښے هر قام دَ پاره مونږ حقيقت بيان کړو او (هرکله چه هغوی پوهه نشول نو) ټول مو هلاک کړل۔

وَلَقَدْ اَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِىْٓ اُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ ۭ اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرَوْنَهَا ۚ بَلْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ نُشُوْرًا ﴿۴۰﴾

او دا (دَ مکے کافران) هغے کلی سره تير شوی دی چه په رے تکليف ورکوونکے باران نازل کړے شوے وه۔ آيا دوئ دَ هغے (کلی نښانانو) ته نه کوری۔ حقيقت دا دے چه دوئ په دوئم ځل دَ او چتيد لو اُميد هدونه لرو۔

وَاِذَا رَاَوْكَ اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا ۭ اَهٰذَا الَّذِىْ بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوْلًا ﴿۴۱﴾

او هرکله چه هغوی تا وينی نو تا لس دَ ټوقے وښتے ځيز ګڼړی (او وائی) آيا الله دا سړے دَ رُسول په حيث راستو لے دے۔

اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۭ وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا ﴿۴۲﴾

ګوڼے مونږ په خپلو معبودانو ټينګ نهٔ وے نو دهٔ (سړی) خو مونږ هغوی نه لس اړولی وُو۔ او هرکله چه دوئ عذاب اووينی نو هغوئ ته به خامخا حقيقت معلوم شی چه څوک په خپل طور و طريقه کښے زيات بے لارے وه۔

اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ ۭ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا ﴿۴۳﴾

(اے رسُوله!) آيا تا دَ هغه سړی حال هُم معلوم کړو چا چه خپل دَ نوش غوښتنے دَ عبادت لائقے اوګرزولے۔ آيا ته به هغه سړی نګران يئے (چه ته هغهٔ په زوره دَ ګمراهئ نه منع کړے)۔

اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُوْنَ اَوْ يَعْقِلُوْنَ ۭ اِنْ

آيا ته خيال کوے چه هغوئ کښے ګنړ شميره آوری يا

هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٤٤﴾ ع

پوهیگی ؟ هغوی خو بس دَ څناورو په شان دی، بلکه دَ سلوک
په لحاظ دَ هغوئ نه هُم زیات خراب۔

أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ
سَاكِنًا ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا ﴿٤٥﴾

(پہ دَ قرآن اوریدُونکیه !) آیا تا ته معلومه نهٔ ده چه
ستا رب څنګه سیورے اوږد کړے دے او کچرے هغهٔ
غوښتلے نو هغه به ئے یو ځائے او دروے جوړ کړے وے
بیا مونږ نمر په دے یو کواه جوړ کړو۔

ثُمَّ قَبَضْنَاهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا ﴿٤٦﴾

بیا مونږ هغه رورو خپل طرف ته را ښکل شروکړو۔

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا وَالنَّوْمَ سُبَاتًا
وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا ﴿٤٧﴾

او هُم هغه (خدائے) دے چا چه شپه ستا سو دَ پاره
جامه جوړه کړه او دَ خوب او آرام سوب او ورځ ئے
دَ خوریدلو او ترقئ ذریعه۔

وَهُوَ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ
وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا ﴿٤٨﴾

او هُم هغه (خدائے) دے چا چه هوا ګانے په خپل رحمت
اول زیری ورکوونکے واستولے او مونږ دَ وریځے نه پاکے
(اوصفا) اوبهٔ را کوزے کړے دی۔

لِنُحْيِيَ بِهِ بَلْدَةً مَيْتًا وَنُسْقِيَهُ مِمَّا خَلَقْنَا أَنْعَامًا
وَأَنَاسِيَّ كَثِيرًا ﴿٤٩﴾

دے دَ پاره چه دے سره مړ ملک ژوندئ کړی او دا شان
دے (اوبو) سره دَ هغهٔ پیدا کړی څاروی او ډیر انسانان
په اوبو خړوب کړی۔

وَلَقَدْ صَرَّفْنَاهُ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوا فَأَبَىٰ أَكْثَرُ
النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا ﴿٥٠﴾

او مونږ دا (اوبه) هغو (انسانانو) کښے بنے خورے کړیے
څکه چه هغوئ نصیحت واخلی ولے خلقو کښے ډیر څنے
خلق دَ کفر نه سوا په هیڅ یوه خبره نهٔ رضا کیږی۔

وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ نَذِيرًا ﴿٥١﴾

او کچرے مونږ غوښتلے نو هر کلی ته به مو یو هوښیارونکے
(نبي یا مامور) استولے وے۔

فَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَجَاهِدْهُمْ بِهِ جِهَادًا كَبِيرًا ﴿٥٢﴾

بیا نهٔ دَ کافرانو خبره مهٔ منه او دَ دے (قرآن) په ذریعه
هغوئ سره لوئے جهاد کوه۔

وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَ
هَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا

او هُم هغه دے چا چه دوه سمندره روان کړی دی چه
هغے کښے یو خو ډیر خوږ دے او بل مالګین (او) تریخ

مَحْجُورًا ۝53

دے او هغهٔ (الله) دَ دے دواړو ترمنځه يو بند جوړ کړے دے او داسے سامان ئے جوړ کړے دے چه هغوی يو بل نه لرے ساتی، يو ځائے کيدو ته ئے نه پريږدی۔

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا ۝54

او هغه (خدائے) دے چا چه دَ اوبو نه انسان جوړ کړو بيا هغه کله خو نسب جوړ کړے دے (يعنی دَ پلار نيکهٔ شجره) او کله ئے صهر جوړ کړے دے (يعنی دَ سخرانے شجره) او ستا رب په هر څيز قادر دے۔

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنْفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ ۗ وَكَانَ الْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِ ظَهِيرًا ۝55

او هغوی (کافران) دَ الله نه سوا دَ هغه چا عبادت کوی چه نهٔ هغوئ ته ګټه ورکولے شی او نهٔ تکليف ورکولے شی او کافر تل تر تله دَ خپل رب (دَ جاری کړو سلسلو) خلاف وی۔

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ۝56

قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِلَّا مَنْ شَاءَ أَنْ يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا ۝57

او مونږ خو ته بس زيرئ ورکوونکے او ويروونکے ليږلے ئے ته هغوی ته ووايه چه زهٔ تاسو نه دَ هغے (يعنی دَ خدائے دَ پيغام رسولو) څهٔ اجر نهٔ غواړم۔ هو کچرے پخپله رضا غواړی نو دَ خپل رب په طرف تلونکے لاره دِ اونيسی (هُم هغه به ئما بدله وی)۔

معانقة عند المتقدمين

وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِ ۚ وَكَفَىٰ بِهِ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا ۝58

او ته په هغهٔ توکل کوه چه ژوندے دے (او تهول ژوندی ساتی) چرے نهٔ مری او دَ هغهٔ صفت سره سره دَ هغهٔ ثناء هُم کوه او هغه دَ خپلو بندیانو دَ ګناهونو نه ښهٔ خبر دے۔

الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۚ الرَّحْمَٰنُ فَاسْأَلْ بِهِ خَبِيرًا ۝59

هغه (خدائے) چا چه آسمانونه او زمکه او څه چه دَ دغو ترمنځه دی هغه تهول شپږو ورځو کښے پيدا کړی دی بيا هغه په تهينګه په عرش قرار شو هغه رحمان دے۔ بيا هر کله چه (ئے انسانه!) ته دَ هغهٔ پخقله څهٔ تپوس کوے نو خبير نه تپوس کوه چه ډير خبرداره دے

(او مخې مخې جواب ورکوے شي).

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمٰنُ
أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ﴿٦١﴾ السجدة ع

او هر کله چه هغوی ته او ویلے شي چه د رحمان وړاندے په سجده شئ نو وائي رحمان څهٔ شیز دے؟ آیا مونږ به د هغهٔ وړاندے سجده کوو چه ته (د سجدے کولو) ته حکم ورکوے او دا خبره هغوی په نفرت کښے نور هُم زیاتوی.

تَبٰرَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوجًا وَّجَعَلَ فِيهَا
سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِيرًا ﴿٦٢﴾

برکت لرونکے دے هغه ذات چا چه آسمان کښے د ستورو د اوو درید و ځایونه جوړ کړی دی او هغے کښے ځلیدونکے چراغ جوړ کړے دے او نور ورکونکے سپوږمۍ ئے جوړه کړے ده.

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ أَرَادَ
أَنْ يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا ﴿٦٣﴾

هُم هغه دے چا چه شپه ورځ یو بل پسے راتلونکی جوړ کړی دی د هغه چا (د فائدے د پاره) چه نصیحت حاصلول غواړی یا شکر گزاره بنده جوړیدل غواړی.

وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا
وَّإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُونَ قَالُوا سَلٰمًا ﴿٦٤﴾

او د رحمان (ربښتونی) بندیان هغه وی چه په زمکه په آرام زی او هر کله چه ناپوهه خلق هغوی سره مخ شی نو هغوی (جنګ نهٔ کوی بلکه) وائی مونږ خوستا سره خیر (ښیګړه) غواړو.

وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا ﴿٦٥﴾

او هغه خلق هُم چه د خپل رب د پاره شپے په سجده کښے او په ولاړه تیروی.

وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ۖ
إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ﴿٦٦﴾
إِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿٦٧﴾

او هغوی (د رحمن بندیان وائی) یه خسونږه ربه! مونږ نه د جهنم عذاب لرے کړه د هغهٔ عذاب یوه ډیره لویه تباهی ده. هغه (دوزخ) د لږ وخت د پاره هُم خراب ځائے دے او د مستقل حصاریدو په طور هُم (خراب ځائے دے).

وَالَّذِينَ إِذَآ أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ
بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ﴿٦٨﴾

او هغوی (د الله بندیان) داسے وی چه هر کله خرڅ کوی نو د فضول خرڅئ نه کار نهٔ اخلی او نهٔ بُخل کوی او د

هغوئ خرڅ (لګيخت) د دے دواړو ترمنځه منځه دی-

وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ يَلْقَ اَثَامًا ﴿٦٨﴾

او هغوی دا سے وی چه د الله نه سوا بل معبود نۀ بلی او نۀ څه ساه (خستونکے چه چاله چه الله حفاظت ورکړے وی قتلوی سوا (د شرعی حق نه) او نۀ زنا کوی او څوک به چه دا سے کار کوی هغه به د خپلے ګناه جزا اووینی -

يُّضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَيَخْلُدْ فِيْهٖ مُهَانًا ﴿٦٩﴾

د قیامت په ورځ به هغهٔ د پاره عذاب زیات کړے شی او هغه به هغے کښے په بد حال اوسیګی -

اِلَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٧٠﴾

سوا د هغهٔ چا چه توبه اوکړه او ایمان ئے راوړو او د ایمان سره سم کارونه ئے اوکړل بیا دا خلق به داسے وی چه الله به د هغوی بدئ په ښو بدلے کړی او الله ډیر بخښونکے (او) مهربانه دے -

وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاِنَّهٗ يَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾

او چه څوک توبه اوکړی او هغے سره سم عمل اوکړی نو هغه په رښتیا الله ته تیتیګی -

وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ ۙ وَاِذَا مَرُّوْا بِاللَّغْوِ مَرُّوْا كِرَامًا ﴿٧٢﴾

او هغوی هُم (د الله بندیان دی) چه په دروغه شهادتونه نۀ ورکوی او هرکله چه بے کاره خبرو (کارونو) سره تیریګی نو په درنه طریقه (بے د شامیلیدو په هغو کښے) تیریګی-

وَالَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوْا عَلَيْهَا صُمًّا وَّعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾

او هغوی هُم (د الله بندیان دی) چه هرکله هغوی ته د هغوئ د رب آیتونه وریاد کړے شی نو هغو سره د پند د کنړو کار نۀ کوی-

وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ اَزْوَاجِنَا وَذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ اَعْيُنٍ وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا ﴿٧٤﴾

او هغوی هُم (د رحمٰن بندیان دی) چه هروخت دا وائی یه حمونږه ربه! ځمونږ په ښځو او اولاد ځمونږ سترګے یخے کړه او مونږ له د نیکانو امامت راکړه-

اُولٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوْا وَيُلَقَّوْنَ فِيْهَا تَحِيَّةً وَّسَلٰمًا ﴿٧٥﴾

دا هغه خلق دی چاله به چه د هغوی په نیکی د ټینګ اودریدو له کبله جنت کښے بالا خانے ورکیدے شی او

هغوی ته به دے کښے دُعا کانے کیدے شی او دَ خیر ښیګړے پیغامات به ورکیدے شی۔

خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا ؕ حَسُنَتۡ مُسۡتَقَرًّا وَّ مُقَامًا ﴿۷۶﴾

هغوی به دے کښے تل تر تله اوسی هغه (جنت) دَ لږ وخت دَ آرام دَ پاره هُم ډیر ښهٔ دے او دَ تل عمری قیام دَ پاره هُم ډیر ښهٔ ځائے دے)۔

قُلۡ مَا یَعۡبَؤُا بِکُمۡ رَبِّیۡ لَوۡلَا دُعَآؤُکُمۡ ۚ فَقَدۡ کَذَّبۡتُمۡ فَسَوۡفَ یَکُوۡنُ لِزَامًا ﴿۷۷﴾ ع ۶

(ای رسوله!) ته هغوئ ته او وایه چه خما رب ستاسو څه پرواه کوی کهٔ چرے ستاسو دَ طرف نه دعا (او استغفار) نهٔ وی بیا هر کله چه تاسو (دَ الله دَ پیغام نه) انکار اوکړو نو (اوس) به دَ هغهٔ عذاب (ستاسو سره) انښتے وی۔




سورۃ شعراء : دا سورۃ مکی دے اوبسم اللہ سره دَ دے دوه سوا ٢٢٨ ته ویشت آیتونه اویوولس رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

طٰسٓمّٓ ②

طاهر (او) سمیع (او) مجید (خدائے دَ دے صورت نازلوونکے دے)۔

تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ③

دا آیتونه دَ دے کتاب دی چه (خپل مطلبونه) په ښکاره بیانوی۔

لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ④

ته به چرې خپل ځان هلاکت ته اچوے چه هغوی ولے ایمان نه راوړی۔

اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ⑤

که مونږ اوغواړو نو آسمان نه به په هغوئ یو داسے نشان راکوزکړو چه دَ هغے وړاندے به دَ هغوی ستونه ټیټ په ټیټ پاتے شی۔

وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ ⑥

او دَ رحمٰن نه کله هُم څه نوے ذکر نهٔ دے راغلے چه دَ هغے نه خلق مخ نهٔ اړوی۔

فَقَدْ كَذَّبُوْا فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ⑦

بیا نو (چه) هغوئ (دَ خدائے تعالیٰ دَ آیتونونه) انکار کړے دے۔ دَ دے په نتیجه کښے به دَ هغوی دَ خندا حقیقت خامخا په هغوئ ښکاره شی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الْاَرْضِ كَمْ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ⑧

آیا هغوئ زمکے ته نهٔ ګوری چه مونږ دے کښے قسم قسم ښائسته جوړے پیدا کړی دی۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۚ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ⑨

دے کښے یو لوئے نښان دے ولے هغوی کښے ډیر څنے ایمان نهٔ راوړی۔

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ⑩ ع

او په تحقیق سره ستا رب غالب (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَاِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰٓى اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠﴾
قَوْمَ فِرْعَوْنَ ۭ اَلَا يَتَّقُوْنَ ﴿١١﴾

او ریاد کړه) هرکله چه ستا رب موسیٰ ته آواز کړے وه (او وئیلی ئے وُو) چه ظالم قام یعنی دَ فرعون قام له ورشه (او هغوی ته او وایه چه) آیا هغوی تقویٰ نهٔ کوی؟

قَالَ رَبِّ اِنِّىْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿١٢﴾

هغهٔ (جواب کښے) اووئیل یَه څما ربه! زهٔ ویریږم چه هغوی څما انکار اونکړی۔

وَيَضِيْقُ صَدْرِىْ وَلَا يَنْطَلِقُ لِسَانِىْ فَاَرْسِلْ اِلٰى هٰرُوْنَ ﴿١٣﴾

او څما سینه تنګی محسوسوی او ژبه مِ انخلی بیانو (ماسره) هارونؑ هُم اولیږه۔

وَلَهُمْ عَلَىَّ ذَنْۢبٌ فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿١٤﴾

او (دا خبره هُم ده چه) دَ هغوی (خلقو) څما خلاف یو الزام هُم دے او زهٔ ویریږم چه ما مړهٔ کړی۔

قَالَ كَلَّا ۚ فَاذْهَبَا بِاٰيٰتِنَآ اِنَّا مَعَكُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ ﴿١٥﴾

وے فرمائیل، هیڅکله نا، بیا (څما دَ حُکم په اوریدو) تاسو دواړه څمونږ آیتونو سره لاړشئ، مونږ به ستاسو (او ستاسو ملګرو) سره یُو، او (ستاسو دعا ګانے به) اورُو۔

فَاْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦﴾

بیا فرعون ته ورشئ او هغهٔ ته اووائی چه مونږ دَ رب العالمین (خدائے) استاذی یُو۔

اَنْ اَرْسِلْ مَعَنَا بَنِىْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ﴿١٧﴾

(دے حُکم سره) چه مونږ سره بنی اسرائیل واستوه۔

قَالَ اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ﴿١٨﴾

هغهٔ (فرعون) اووئیل (یَه موسیٰ!) آیا مونږ تهٔ هغه وخت نهٔ وے پاللے هرکله چه تهٔ لا ماشوم وے او تا مونږ کښے دَ خپل عمر ډیر کلونه تیر کړی دی۔

وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِىْ فَعَلْتَ وَاَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٩﴾

او تا هغه کار هُم کړے دے چه تا کړے دے او تهٔ (څمونږ دَ احسانانو) ناشکره ئے۔

قَالَ فَعَلْتُهَآ اِذًا وَّاَنَا مِنَ الضَّاۗلِّيْنَ ﴿٢٠﴾

(موسیٰ) اووئیل هغه کار (چه تا ورته اشاره کړے ده) ما هغه وخت کړے وه کله چه ما ته حقیقت معلوم نهٔ وه۔

فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِىْ رَبِّىْ حُكْمًا وَّجَعَلَنِىْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٢١﴾

بیا دَ دے په نتیجه کښے هرکله چه ما ته تا نه ویره پیدا شوه نو زهٔ تاسو نه اوتختیدم بیا څما رب ما ته حُکم (یعنی دَ نبوت مرتبه) راکړه او زهٔ ئے رسولانو کښے ریو

رسُول) کړم۔

وَ تِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿٢٢﴾

او دا (په ورکوالی کښے څما د پاللو) د نعمت احسان چه ته په ما زیادوے نو آیا دا د دے خبرے په بدل کښے ورانده کیدے شی چه تا د بنی اسرائیلو ټول قام غلام کړے دے۔

قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٣﴾

د دے په اوریدو فرعون (د شرمه خبره بل خوا ته اړولو د پاره) اوویل دا رب العالمین څوک دے؟ (چه د چا د طرف نه را تلل ته بیانوے)۔

قَالَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ﴿٢٤﴾

(موسیٰ) اوویل آسمان او زمکه او څه چه د دے دواړو ترمنځه دی د هغو رب کچرے ته باور کول غواړے۔

قَالَ لِمَنْ حَوْلَهٗٓ اَلَا تَسْتَمِعُوْنَ ﴿٢٥﴾

(د دے په اوریدو) فرعون خپل ګیرچاپیره خلقو ته اوویل آیا تاسو نهٔ اورئ (چه موسیٰ څهٔ وائی)۔

قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٢٦﴾

(موسیٰ د خپل ړومبنی بیان په تقله) اوویل هُم هغه چه ستاسو هُم رب دے او ستاسو د ړومبنو پلار نیکونو هُم رب وه۔

قَالَ اِنَّ رَسُوْلَكُمُ الَّذِيْٓ اُرْسِلَ اِلَيْكُمْ لَمَجْنُوْنٌ ﴿٢٧﴾

(د دے په اوریدو فرعون) اوویل (اے خلقو!) ستاسو هغه رسُول چه تاسو ته رالیږلے شوے دے خامخا پاګل دے۔

قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٢٨﴾

(موسیٰ پوهه شو چه هغه خبره بل خوا ته اړول غواړی او) وے ویل (رب العالمین) هُم هغه دے چه د نمرخاته هُم رب دے او د نمر پریوا ته هُم (رب دے) او څه چه د هغو ترمنځه دی (د هغو هُم رب دے) وے شرط دا دے چه تاسو عقل نه کار واخلئ۔

قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِيْ لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ ﴿٢٩﴾

(د دے په اوریدو) فرعون (په قهر شو او) وے ویل کچرے څما نه سوا تا څوک بل د عبادت لائق جوړ کړو نو زهٔ به تا قید کړم۔

قَالَ اَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٠﴾

هغهٔ (یعنی موسیٰ) اوویل آیا هغه وخت هُم چه زهٔ

څه (حقیقت) څرګندوونکے څیز تاله راوړم (یعنی معجزه)

قَالَ فَأْتِ بِهٖٓ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِينَ ﴿۳۱﴾

(دَ دے په اوریدو) فرعون اوویل که ته په حقه ئے نو څه راوړه۔

فَأَلْقٰى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ ﴿۳۲﴾

بیا هغهٔ (یعنی موسیٰ) خپله آمسا په زمکه اوغورزوله نو ناساپه (فرعونیان څه ګوری چه) هغه یوه صفا صفا په نظر راتلونکی اژدها ده۔

وَنَزَعَ يَدَهٗ فَإِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِينَ ﴿۳۳﴾ ع

او هغهٔ خپل لاس (خپل ترخ نه) را اوباسلو نو ټولو لیدونکو ناساپه اولیدل چه هغه تک سپین دے۔

قَالَ لِلْمَلَإِ حَوْلَهٗٓ إِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴿۳۴﴾

دَ دے په اوریدو فرعون خپل ګیرچاپیر سردارانو ته اوویل دا خو - څوک غټ ماهر جادوګر دے۔

يُرِيدُ أَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ ۖ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴿۳۵﴾

دے غواړی چه دَ خپل جادو په زور تاسو دَ ستاسو دَ ملک نه اوباسی بیا ستاسو څهٔ صلاح ده۔

قَالُوٓا أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِينَ ﴿۳۶﴾

هغوی اوویل دهٔ له او دَ دهٔ رورله (څو ورځے) مهلت ورکړه او مختلفو ښارونو ته سړی واستوه چه (قابل سړی) راغونډ کړی۔

يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيمٍ ﴿۳۷﴾

(او) هر غټ جادوګر او ښهٔ قابل خلق راولی۔

فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿۳۸﴾

بیا ټول جادوګر په یوه معلومه ورځ راغونډ کړے شول۔

وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنْتُمْ مُّجْتَمِعُونَ ﴿۳۹﴾

او خلقو ته اوویلے شول آیا تاسو ټول ربه یو مقصد دَ یوځائے کیدو دَ پاره تیار یئ که نه۔

لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ إِنْ كَانُوا هُمُ الْغٰلِبِينَ ﴿۴۰﴾

ځکه چه کچرے جادوګر غالب شی نو مونږ به دَ هغوی دینا پسے ځو۔

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوا لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِينَ ﴿۴۱﴾

بیا هرکله چه جادوګر راغلل نو هغوی فرعون ته اوویل کچرے مونږ غالب شُو نو آیا مونږ ته به څه انعام هُم راکیدے شی؟

| | |
|---|---|
| قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ اِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿٤٢﴾ | (فرعون) اووئيل او ! بلكه هغه شان به تاسو څما دربار كښې مقربين شئ۔ |
| قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى اَلْقُوْا مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ﴿٤٣﴾ | دَ دے په اوريدو موسٰیؑ هغوئ ته اووئيل چه څه تدبير تاسو له كول دى او كړئ۔ |
| فَاَلْقَوْا حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ اِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿٤٤﴾ | بيا هغوئ خپلے رسئ او خپلے كونتئ (په ميدان) كښنوے اووے وئيل، قسم دے دَ فرعون په اقبال مونږ به خامخا برئ مومو۔ |
| فَاَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ ﴿٤٥﴾ | بيا موسٰیؑ خپله امسا اوغورزوله نو ناساپا هغے دَ هغوئ دروغ ختم كړل۔ |
| فَاُلْقِىَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴿٤٦﴾ | بيا جادوګر (دَ خدائے دړاندے) په سجده كړے شول۔ |
| قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٧﴾ | هغوى اووئيل مونږ په رب العالمين چه دَ موسٰیؑ او |
| رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿٤٨﴾ | هارونؑ رب دے ايمان راوړو۔ |
| قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِىْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٤٩﴾ | دَ دے په اوريدو فرعون اووئيل چه آيا څما دَ حُكم نه آګاهو تاسو ايمان راوړو ؟ په تحقيق سره دے ستاسو چرته سردار دے چه تاسو ته ئے جادو ښودلے دے بيا ډير زر به تاسو (په خپل انجام) پوهه شئ۔ زۀ به ستاسو لاسونه او پښے دَ (خپلے) نافرمانئ په سوب پريكړم او تاسو ټول به په صليب اوېزاندۀ كړم۔ |
| قَالُوْا لَا ضَيْرَ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ ﴿٥٠﴾ | هغوى اووئيل هيڅ خبره نۀ ده آخر مونږ خپل رب ته واپس تلونكى يُو۔ |
| اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَآ اَنْ كُنَّآ اَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٥١﴾ | ع ٣ مونږ اُميد كوُو چه څمونږ رب به څمونږ ګناهونه په دے سوب معاف كړى چه مونږ ټولو نه اول ايمان راوړونكى شُو۔ |
| وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِىْٓ اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ﴿٥٢﴾ | او مونږ موسٰیؑ ته وحى اوكړه چه څما بنديان شپه په شپه اوباسه، تاسو پسے به چغه كيګى۔ |

فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿٥٣﴾

بیا نو فرعون ښارونو ته راغونډونکي سړي واستول.

اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ ﴿٥٤﴾

(دا پیغام سره) چه دا خلق (یعنی بنی اسرائیل) خو یو وړوکئ جماعت دے.

وَاِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُوْنَ ﴿٥٥﴾

ولے دے سره دهغوی مونږ قهروی.

وَاِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ ﴿٥٦﴾

او مونږ ډیر لوی چه ډیر محتاط یو (بیا مونږ له دهغوی مقابله کول پکار دی).

فَأَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿٥٧﴾

بیا مونږ هغوی (یعنی فرعون او دهغهٔ جماعت) د باغونو او چینو.

وَّكُنُوْزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿٥٨﴾

او خزانو او د عزت لرونکی ملک نه او باسل (یعنی محروم موکړل).

كَذٰلِكَ ۖ وَاَوْرَثْنٰهَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿٥٩﴾

هُم داسے اوشول او مونږ د هغو څیزونو وارثان بنی اسرائیل کړل.

فَأَتْبَعُوْهُمْ مُّشْرِقِيْنَ ﴿٦٠﴾

بیا د سحر په وخت هغوی (یعنی فرعون او د هغهٔ د تمام خلق د بنی اسرائیلو د ایسارولو د پاره) هغوی پسے شول.

فَلَمَّا تَرَآءَ الْجَمْعٰنِ قَالَ اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ ﴿٦١﴾

بیا هرکله چه دواړه یو بل ته مخامخ شول نو د موسیٰ ملګرو اووئیل مونږ خو او نیولے شو.

قَالَ كَلَّا ۖ اِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ ﴿٦٢﴾

(موسیٰ) جواب ورکړو هیڅکله به داسے نهٔ وی څما رب ما سره دے هغه به ما ته د کامیابئ لاره ښائی.

فَأَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ۖ فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ ﴿٦٣﴾

بیا مونږ موسیٰ ته وحی اوکړه چه خپله امسا سمندر له راواچوه په داسے کولو (سمندر) اوشلیدو او د هغے هره یوه برخه د لوے غرے په شان په نظر راتله.

وَاَزْلَفْنَا ثَمَّ الْاٰخَرِيْنَ ﴿٦٤﴾

او هغه وخت مونږ بل ټولی (یعنی د فرعون ټولی) نزدے راوستو.

وَاَنْجَيْنَا مُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿٦٥﴾

او موسیٰ او د هغهٔ ملګری مونږ بچ کړل.

ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ ۝٦٦
اوبل تولے موغرق کرو۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝٦٧
دے (واقعه) کښے یوغټ نښان دے ولے دوئی زیاتونکو کښے دیر څخه نۀ منی۔

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝٦٨ ع
اوپه تحقیق سره ستارب غالب (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ اِبْرٰهِيْمَ ۝٦٩
اوهغوی ته دَ ابراهیمؑ واقعه هُم اوروه۔

اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا تَعْبُدُوْنَ ۝٧٠
هرکله چه هغهٔ خپل پلار او قام ته اووئیل تاسو دَ څهٔ څیز عبادت کوئی؟

قَالُوْا نَعْبُدُ اَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عٰكِفِيْنَ ۝٧١
مونږ دَ بتانو عبادت کوُو او دَ هغوی وړاندے کینو۔

قَالَ هَلْ يَسْمَعُوْنَكُمْ اِذْ تَدْعُوْنَ ۝٧٢
دَ دے په اوریدو ابراهیمؑ اووئیل چه تاسو هرکله هغوی (مدد له غواړئی) نو هغوی ستاسو فریاد آوری؟

اَوْ يَنْفَعُوْنَكُمْ اَوْ يَضُرُّوْنَ ۝٧٣
یا تاسو ته څه نفع یا نقصان درکولے شی؟

قَالُوْا بَلْ وَجَدْنَاۤ اٰبَآءَنَا كَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ۝٧٤
هغوئی اووئیل داسے خونهٔ ده ولے مونږ خپل مشران په داسے کولو لیدلی دی۔

قَالَ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ۝٧٥
هغهٔ اووئیل چه آیا تاسو ته معلومه ده چه دَ چا تاسو عبادت راروان یئی کوئی۔

اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمُ الْاَقْدَمُوْنَ ۝٧٦
تاسو هُم او ستاسو پلار نیکونه هُم۔

فَاِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيْۤ اِلَّا رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ۝٧٧
هغوی ټول دَ رب العالمین نه سوا ځما تباهی غواړی۔

الَّذِيْ خَلَقَنِيْ فَهُوَ يَهْدِيْنِ ۝٧٨
چا (یعنی رب العالمین) چه زهٔ پیدا کړے یم او (دَ دے په نتیجه کښے) هغه به ما ته هدایت هُم راکوی۔

وَالَّذِيْ هُوَ يُطْعِمُنِيْ وَيَسْقِيْنِ ۝٧٩
اوچه دَ هغهٔ صفت دا دے چه هُم هغه په ما دوړئی خوروی او هُم هغه په ما اوبهٔ څکوی۔

وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ۝٨٠
او هرکله چه زهٔ بیمار شم نو هغه ماله شفا راکوی۔

وَالَّذِيْ يُمِيْتُنِيْ ثُمَّ يُحْيِيْنِ ۝٨١
اوچه ما به وژنی او ما به ژوندے کوی۔

وَالَّذِيْۤ اَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لِيْ خَطِيْٓـَٔتِيْ يَوْمَ الدِّيْنِ ۝٨٢
او هغه داسے دے چه زهٔ اُمید کوم چه هغه به ځما ګناه

دَجزا سزا په وخت ما ته بخښنی.

رَبِّ هَبْ لِيْ حُكْمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۳﴾

يَه خُما ربه! ما ته صحي تعليم راكړه او په نيكانو كښے م شامل كړه.

وَاجْعَلْ لِّيْ لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۸۴﴾

او راتلونكو خلقو كښے تل ترتله خُما ښهٔ ذِكر پريږده.

وَاجْعَلْنِيْ مِنْ وَّرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِيْمِ ﴿۸۵﴾

او ما دَ نعمتونو دَجنت په وارثانو كښے كړه.

وَاغْفِرْ لِاَبِيْٓ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿۸۶﴾

او خُما پلار او بخښه هغه بے لارے شوے وه.

وَلَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ ﴿۸۷﴾

او په كومه ورځ به چه خلق بيا راژوندی كولے شی ما هغه ورځ رُسوا مهٔ كړه.

يَوْمَ لَا يَنْفَعُ مَالٌ وَّلَا بَنُوْنَ ﴿۸۸﴾

كومه ورځ به چه نهٔ مال نفع وركوی او نهٔ ځامن.

اِلَّا مَنْ اَتَى اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ ﴿۸۹﴾

او (هغوی به كټه مومی) چه الله له يو سلامت زړهٔ سره راذی.

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۹۰﴾

او كومه ورځ به چه جنت را نزدے كړے شی.

وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِلْغٰوِيْنَ ﴿۹۱﴾

او گمراهانو دَپاره به دوزخ نه پردے اوچتے كړے شی.

وَقِيْلَ لَهُمْ اَيْنَمَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿۹۲﴾

او او به وئيلے شی چه كوم ځائے دی هغوی دَچا به چه تاسو دَ الله نه سوا عبادت كولو.

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿۹۳﴾

آيا هغوی ستاسو مدد كولے شی؟ يا ستاسو بدل آخستے شی؟

فَكُبْكِبُوْا فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوٗنَ ﴿۹۴﴾

بيا هغه وخت به هغوی (يعنی دَدروغو معبودان او كافران) او دَبے لارو او

وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ اَجْمَعُوْنَ ﴿۹۵﴾

دَ ابليسانو ټولے لښكرے هغے (دوزخ) كښے پرمخ اوغورزولے شی.

قَالُوْا وَهُمْ فِيْهَا يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۹۶﴾

هغوی به خپلو كښے هركله به چه هغوی هغے (جهنّم) كښے په جنګ وی دائ به.

تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۹۷﴾

قسم په خدائے مونږ په ښكاره ښكاره گمراهی كښے پراته وُو.

اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۸﴾

هركله به چه مونږ تاسو له دَرب العالمين خدائے يو برابر درجه دركوله.

وَمَآ اَضَلَّنَآ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٩٩﴾
او مونږ خو مجرمانو بے لارے کړی وُو۔

فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِيْنَ ﴿١٠٠﴾
بیا (زمونږ) شفاعت کُوونکو کښے څوک هُم څمونږ شفاعت نهٔ کوی۔

وَلَا صَدِيْقٍ حَمِيْمٍ ﴿١٠١﴾
او نهٔ څمونږ څوک غم خوار دوست شته دے بیا کچرے

فَلَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٠٢﴾
څمونږ دَ واپس تلو وس وے نو مونږ به (دواپس کیدو سره) خامخا مومنانو سره وے۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۚ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٠٣﴾
دے (واقعه) کښے یو ډیر لوئے نښان دے وے دوئ (کافرانو) کښے ډیرځنے ایمان نهٔ راوړی۔

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٠٤﴾ ع ٩
او په تحقیق سره ستا رب غالب (او) بیا بیا رحم کوونکے دے

كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ ِۨالْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٠٥﴾
دَ نوحؑ قام دَ (خپلو) رسولانو انکار اوکړو۔

اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ نُوْحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٠٦﴾
او هر کله چه هغوی ته دَ هغوی رور نوحؑ اووئیل آیا تاسو تقویٰ نهٔ کوئ؟

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٠٧﴾
زهٔ تاسو ته دَ یو امانت دار پیغامبر په حیث راغلے یم۔

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٠٨﴾
بیا دَ الله تقویٰ اوکړئ او څما اومنئ۔

وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠٩﴾
او زهٔ دَ دے (خدمت په بدل کښے) څه اجر نه غوارم، څما اجر خو رب العالمین (خدائے) سره دے۔

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١١٠﴾
بیا نو دَ الله تقویٰ اوکړئ او څما اومنئ۔

قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿١١١﴾
(هغو کافرانو) اووئیل چه آیا مونږ به په تا ایمان راوړو حال دا چه ډیر کمزوری خلق تا پسے دی۔

قَالَ وَمَا عِلْمِيْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١١٢﴾
هغهٔ اووئیل ما ته دَ کوم ځائے نه خبر شوے دے چه دَ هغوی دَنه عملونه څنګه دی؟

اِنْ حِسَابُهُمْ اِلَّا عَلٰى رَبِّيْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ ﴿١١٣﴾
هغوی سره حساب کتاب خو څما دَ رب په ذمه دے کچرے تاسو پوهیږئ۔

وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٤﴾
او څوک چه دَ مومن په حیث ما له راځی څما کار دا نهٔ دے چه هغه اوشړم۔

إِنْ أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٦﴾
زۀ خو بس یو په ښکاره ښکاره هوښیارونکے (انسان) یم۔

قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَا نُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمَرْجُومِينَ ﴿١١٧﴾
(هغو کافرانو) اووئیل اے نوحؑ! که ته منع نشوے نو ته به په کاڼړو ویشتونکو نه شے (یعنی مونږ به تا په کاڼړو اولو)۔

قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِي كَذَّبُونِ ﴿١١٨﴾
نصف
د دے په اوریدو (نوحؑ) اووئیل یه څمار به! څما قام څما انکار کړے دے۔

فَافْتَحْ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَنَجِّنِي وَمَن مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١٩﴾
بیا ته څما او د هغوئ ترمنځه یو آخری فیصله اوکړه او ما او څما ملګری مومنان (د دښمن) د شر نه اوساته۔

فَأَنجَيْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ﴿١٢٠﴾
بیا مونږ هغه او چه چا هغۀ سره ایمان راوړے وو یو ډکه کشتئ کښے (د شر نه) بچ کړل۔

ثُمَّ أَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبَاقِينَ ﴿١٢١﴾
بیا دے نه پس چه پاتے خلق وُو هغوی مو غرق کړل۔

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٢٢﴾
دے کښے یو ډیر لوئے نښان وو دے هغوی (کافرانو) کښے ډیرُخنے په ایمان راوړو رضا نه وُو۔

وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٢٣﴾
ع
هُم ستا رب غالب (او) بیا بیا کرم کوونکے دے۔

كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٢٤﴾
(را شان) عاد هُم د رسُولانو انکار اوکړو۔

إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٢٥﴾
هر کله چه هغوی ته د هغو رور هُود اووئیل آیا تاسو تقوی نۀ کوئ۔

إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٢٦﴾
زۀ تاسو ته د یو امانت دار پیغامبر په حیث راغلے یم۔

فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٢٧﴾
بیا نو د الله تقویٰ اوکړئ او څما او منئ۔

وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٢٨﴾
او زۀ تاسو نه د دے (خدمت) څه اجر نۀ غوارم څما اجر خو د رب العالمین خدائے سره دے (چا چه زۀ رالیږلے یم)۔

أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ ﴿١٢٩﴾
آیا تاسو په هره یو ډیکئ (د یادګار په طور) هسے فضول عمارتونه جوړوئ۔

وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ﴿١٣٠﴾
او تاسو لوئے لوئے محلونه جوړوئ دے د پاره چه ستاسو

نوم پاتې شي.

وَاِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِيْنَ ﴿١٣٠﴾
او هر کله چه تاسو (څوک) نيسئ نو دَ ظالمانو په شان ئې نيسئ.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٣١﴾
بيا دَ الله تقوىٰ اوکړئ او زما اومنئ.

وَاتَّقُوا الَّذِيْٓ اَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُوْنَ ﴿١٣٢﴾
بيا زۀ وايم چه دَ هغۀ (خدائے) تقوىٰ اوکړئ چا چه ستاسو هغو څيزونو سره مدد کړے دے چه تاسو ئې پيژنئ؛

اَمَدَّكُمْ بِاَنْعَامٍ وَّبَنِيْنَ ﴿١٣٣﴾
هغۀ څاروُو او ځامنو.

وَجَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿١٣٤﴾
او باغونو او چينو سره ستاسو مدد کړے دے.

اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٣٥﴾
زۀ په تاسو دَ يوے لوئے ورځے دَ عذاب دَ نازليدو نه ويريږم.

قَالُوْا سَوَآءٌ عَلَيْنَآ اَوَعَظْتَ اَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوٰعِظِيْنَ ﴿١٣٦﴾
هغوی اوويل ستا وعظ کول يا نۀ کول مونږ دَ پاره برابر دی.

اِنْ هٰذَآ اِلَّا خُلُقُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٣٧﴾
(دے چه کومے خبرے مونږ ته کوے) هغه خو دَ رومبئ زمانے خلقو نه را روانے دی.

وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿١٣٨﴾
او په مونږ به (کله هُم) عذاب نۀ رازی.

فَكَذَّبُوْهُ فَاَهْلَكْنٰهُمْ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۗ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٩﴾
بيا هغو کافرانو دَ هغۀ انکار اوکړو او مونږ هغوی هلاک کړل. دے واقعه کښے يو ډير لوئے نښان دے ولے هغوی کښے ډير څخه مومنان نشول.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٤٠﴾ ع
او په تحقيق سره ستا رب غالب (او) بيا بيا رحم کوونکے دے.

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٤١﴾
ثمود هُم دَ رسولانو انکار کړے وه.

اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ صٰلِحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٤٢﴾
هرکله چه هغوئ ته دَ هغوی ورور صالح وئيلی وُو چه آيا تاسو تقوىٰ نۀ کوئ؟

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٤٣﴾
زۀ تاسو ته دَ يو امانت دار پيغامبر په حيث راليږلے شوے يم.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٤٤﴾
بيا نو دَ الله تقوىٰ اوکړئ او زما اومنئ.

وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٤٥﴾
او زۀ په دے کار کښے تاسو نه څه اجر نۀ غوارم زما اجر خو رب العالمين سره دے (چا چه زۀ راليږلے يم).

أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هٰهُنَآ اٰمِنِينَ ﴿١٤٦﴾
آيا ستاسو خيال دے چه (څهٔ چه دے (دُنيا) كښے دى تاسو به دے كښے امن سره (ژوند تيرولو ته) پريښودے شئ۔

فِي جَنّٰتٍ وَّعُيُونٍ ﴿١٤٧﴾
يعني باغونو او چينو كښے۔

وَّزُرُوعٍ وَّنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴿١٤٨﴾
او د ښو فصلونو (رنگ رنگ) پټو كښے او كجهورو كښے چه د هغے ميوے د وزن د زياتي له كبله ټكياوى پريوزى۔

وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فٰرِهِينَ ﴿١٤٩﴾
او تاسو د غرونو په كښستو كښستو (په خپله لوئي) غاوره كيدو سره كورونه جوړوئ۔

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٥٠﴾
بيا د الله تقوىٰ اوكړئ او څما اومنئ۔

وَلَا تُطِيعُوٓا أَمْرَ الْمُسْرِفِينَ ﴿١٥١﴾
او د حد نه وتونكو خلقو خبرے مهٔ اورئ۔

الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿١٥٢﴾
هغه خلق چه ملك كښے فساد كوى او اصلاح نهٔ كوى۔

قَالُوٓا إِنَّمَآ أَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٥٣﴾
د دے په اوريدو هغوى (كافرانو) اووئيل تا ته خولس (جادو) دركيدے شى (يعني ته دا كار د چا په لاړ او وياكوے)

مَآ أَنْتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۖۚ فَأْتِ بِاٰيَةٍ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِينَ ﴿١٥٤﴾
ته څمونږ په شان يو سړے ئے، بيا كه رښتونے ئے نو څهٔ نښان ښكاره كړه۔

قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿١٥٥﴾
هغهٔ اووئيل دا يوه اُوښه ده، يوه ورځ دے د پاره په كودر او به څكل مقرر دى او يوه ورځ ستاسو د پاره كودر نه او به اوړل مقرر دى۔

وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥٦﴾
او تاسو دے (اُوښے) ته څه نقصان او نهٔ رسوئ كنى نو د لوئے ورځے عذاب به تاسو راونيسى۔

فَعَقَرُوهَا فَأَصْبَحُوا نٰدِمِينَ ﴿١٥٧﴾
(سره د دے د اوريدو هم) هغوى د دے (اوښے) پښے پريكړے او (بيا) پښيمانه شول۔

فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ ۗ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِينَ ﴿١٥٨﴾
بيا هغوى (وعده كړے شوى) عذاب اونيول۔ په تحقيق سره دے كښے يو ډير لوئے نښان وه ولے هغوى كښے ډيرئے مومنان نشول۔

وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٥٩﴾ ع ١٢
او په تحقيق سره ستا رب غالب (او) بيا بيا كرم كوونكے دے

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ ِۨالْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٦٠﴾

دَ لوطؑ قام هُم دَ رسُولانو انکار اوکړو۔

اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ لُوْطٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٦١﴾

هرکله چه دَ هغوئ رور لوطؑ اووئیل چه آیا تاسو تقویٰ نهٔ کوئ۔

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٦٢﴾

زهٔ تاسو ته دَ یو امانت دار په حیث رالیږلے شوے یم۔

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٦٣﴾

بیا دَ الله تقویٰ اوکړئ او ځما اومنئ۔

وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٤﴾

اوزهٔ دَ دے (کار) په بدل تاسو نه څهٔ اجر نهٔ غواړم۔ ځما اجر خو لس رب العالمین سره دے۔

اَتَاْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٥﴾

آیا ټولو مخلوقاتو کښے تاسو ځان دَ پاره نران خوښ کړی دی۔

وَتَذَرُوْنَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ عٰدُوْنَ ﴿١٦٦﴾

او تاسو هغوئ پریښی دی چالره چه ستاسو رب ستاسو دَ ښځو په حیث پیدا کړی دی (ښتش دا نه چه تاسو داسے فعل کوئ) بلکه (حقیقت دا دے چه) تاسو (دَ انسانی فطرت) تقاضے په هر شان ماتوونکے قام یئ۔

قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰلُوْطُ لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِيْنَ ﴿١٦٧﴾

هغوئ اووئیل، اے لوط! کچرے تهٔ منع نشوے نو ملک نه او باسُونکو خلقو کښے به شامل شے۔

قَالَ اِنِّيْ لِعَمَلِكُمْ مِّنَ الْقَالِيْنَ ﴿١٦٨﴾

(لوطؑ) اووئیل (په هر حال) زهٔ ستاسو عمل ته په نفرت کورم۔

رَبِّ نَجِّنِيْ وَاَهْلِيْ مِمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٩﴾

یَه ځماربه! ما او ځما اهل دے کارونو نه اوساتے۔

فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٧٠﴾

بیا مونږ هغه او دَ هغهٔ اهل سره ټول بچ کړل۔

اِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٧١﴾

سوا دَ یوے بوډئ نه چه روستو پاتے کیدُونکو کښے شوه۔

ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٧٢﴾

بیا (لوطؑ دَ بچ کولو نه پس) نور ټول مونږ هلاک کړل۔

وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٣﴾

او مونږ په هغوی (دَ کانړو) باران اووروو۔ او چه څوک (دَ خدائے دَ طرف نه) هوښیار کړے شی (وے بیا هُم نهٔ منے کیږی) په هغوی وروُنکے باران ډیر خراب وی۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ

په تحقیق سره دے واقعه کښے یو لوئے نښان وُه وے

مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٧٥﴾

دوئ (کافرانو) کښے ډیر ځنے بیا هُم مومنان نۀ ؤ.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٧٦﴾ ع ۹ / ۱۲

ستا رب په تحقیق سره هغه دے چه غالب او بیا بیا رحم کوونکے دے.

كَذَّبَ اَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٧٧﴾

دَ بَنْ او سیدونکو هُم دَ رُسولانو انکار کړے وه.

اِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٧٨﴾

هر کله چه هغوی ته شعیبؑ او وئیل چه آیا تاسو تقویٰ نۀ کوئ.

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٧٩﴾

زۀ تاسو ته دَ یو امانت دار پیغامبر په حیث راغلے یم.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٨٠﴾

بیا دَ الله تقویٰ اوکړئ او زما اطاعت کوئ.

وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٨١﴾

او زۀ په دے کار تاسو نه هیڅ اجر نۀ غواړم زما اجر خو لس رب العالمین ذمه اخستے سره دے.

اَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ ﴿١٨٢﴾

(ائے خلقو!) تول پوره ورکوئ او نورو ته نقصان رسوونکی مۀ جوړیږئ.

وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ﴿١٨٣﴾

او په نیغه ډنډئ تول کوئ.

وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿١٨٤﴾

او خلقو ته دَ هغوئ څیزونه (دَ هغوی دَ حق نه) کم مۀ ورکوئ او ملک کښے هیڅکله فساد مۀ کوئ.

وَاتَّقُوا الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٨٥﴾

او چه چا تاسو او تاسو نه ړومبنی خلق پیدا کړی دی دَ هغۀ تقویٰ اوکړئ.

قَالُوْآ اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ ﴿١٨٦﴾

(دَ دے په اوریدو دَ هغۀ قام) او وئیل تۀ خو داسے سړے یئے چه ورته خوراک ورکیدے شی.

وَمَآ اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَاِنْ نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿١٨٧﴾

او تۀ خو لس زمونږ په شان یو انسان یئے او په تحقیق سره مونږ تا دروغژن ګنړو.

فَاَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿١٨٨﴾

بیا که تۀ چرے رښتونے یئے نو په مونږ دَ وریځے څۀ ټکړه را او غورزوه.

قَالَ رَبِّيْٓ اَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨٩﴾

(دَ دے په اوریدو شعیبؑ) او وئیل زما رب ستاسو عملونو نه ښۀ خبر دے.

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٨٩﴾

ولے رسره دَ هغهٔ دَ پوهولو ) هغوی دَ هغهٔ انکار اوکړو بیا هغوی دَ سیوری دَ ورځے عذاب اونیول (یعنی دَ کوروا و ډیرو خنه پورے پا تیکید ونکو وریځو عذاب ) په تحقیق سره هغه دَ یوے ډیرے درنے ورځے عذاب وه۔

اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٩٠﴾

دے واقعه کښے یولوئے نشان وه او رسره دَ دے دَ لیدو هُم ) هغو کافرانو کښے ډیرځنے مومنان نشول۔

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٩١﴾

ع ١٢/١٤ او په تحقیق سره ستا رب غالب (او ) بیا بیا کرم کوونکے دے۔

وَاِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٩٢﴾

او په تحقیق سره دا (قرآن ) دَ رب العالمین خدائے دَ طرف نه نازل شوے دے۔

نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ﴿١٩٣﴾

دے سره یوه امانت دار کلام راوړونکے فرښته (جبرائیل ) ستا په زړه نازله شوے ده۔

عَلٰی قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ﴿١٩٤﴾

دے دَ پاره چه ته هوښیاروونکے تولی کښے شامل شے۔

بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ ﴿١٩٥﴾

(دا جبرائیل دَ خدائے په حُکم ) په ښکاره بیانوونکے عربیٔ ژبه کښے راکوز کړے دے۔

وَاِنَّهٗ لَفِیْ زُبُرِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٩٦﴾

او په تحقیق سره د دے کتاب ذکر ړومبنو کتابونو کښے هُم وه۔

اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً اَنْ يَّعْلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿١٩٧﴾

آیا هغوی دَ پاره دا نشان کم دے چه دا (قرآن ) دَ بنی اسرائیلو عالمان هُم پیژنی۔

وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ عَلٰی بَعْضِ الْاَعْجَمِيْنَ ﴿١٩٨﴾

او کچرے مونږ دا په عجمیانو کښے په چا راکوز کړے وے۔

فَقَرَاَهٗ عَلَيْهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ﴿١٩٩﴾

او هغوی دا دَ دوئ (کافرانو) وړاندے اوروے نو هغوی به کله هُم ایمان نهٔ وے راوړے۔

كَذٰلِكَ سَلَكْنٰهُ فِیْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٢٠٠﴾

دا شان مونږ دَ مجرمانو په زړونو کښے دا (خبره ) ننه باسلے ده۔

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ حَتّٰی يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿٢٠١﴾

(بیانو ) هغوی به په دے ایمان نهٔ راوړی تر هغے چه دردناک عذاب اووینی۔

فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٠٢﴾

بیانو هغه (عذاب) به دَ هغوی په ناخبریٔ کښے هغوی له ناسا په راشی۔

فَيَقُوْلُوْا هَلْ نَحْنُ مُنْظَرُوْنَ ﴿٢٠٣﴾
بیا به هغوی وائی آیا مونږ ته به مهلت راکړے شی؟

اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿٢٠٤﴾
بیا (او وایه چه) آیا هُم دے خلقو څمونږ عذاب زرغوښتو۔

اَفَرَءَيْتَ اِنْ مَّتَّعْنٰهُمْ سِنِيْنَ ﴿٢٠٥﴾
بیا آیا ستا یقین نشته دے چه کچرے مونږ هغوی ته په
کلونو فائده ورسوے۔

ثُمَّ جَآءَهُمْ مَّا كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿٢٠٦﴾
بیا به هغوی له هغه (عذاب) راغلے وے چه دَ څه
هغوی سره وعده کیږی۔

مَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ ﴿٢٠٧﴾
نو چه څه هُم هغوی ته ورکړے شوی دی هغے به دَ هغوی
نه دا (عذاب) لرے کولے نشوے۔

وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا لَهَا مُنْذِرُوْنَ ﴿٢٠٨﴾
او مونږ هیڅ یو کلی ته بےدَ دے چه هغے ته مونبیان
استولی دی هلاک نهٔ کړل۔

ذِكْرٰى وَمَا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٢٠٩﴾
دا دے دَ پاره اوشول چه هغوی نصیحت واخلی او
مونږ ظالمان نهٔ یو۔

معانقة ٩ عند المتقدمين

وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ ﴿٢١٠﴾
او شیطانان دے (قرآن) سره نهٔ دی راکوز شوی۔

وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٢١١﴾
او نهٔ دا کار دَ هغوئ حال سره سم وه او نهٔ هغوی دَ
دے طاقت لرلو۔

اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴿٢١٢﴾
په تحقیق سره هغوی (دَ کلام الٰهی) دَ اوریدو نه لرے
ساتلی شوی دی۔

فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَكُوْنَ مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ ﴿٢١٣﴾
بیا تهٔ الله سره بل معبود نه مددمهٔ غواړه کنی تهٔ به په
عذاب اخته شوی خلقو نه شے۔

وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ ﴿٢١٤﴾
او تهٔ (تولو نه اوّل) خپل تولو نه نزدے خپلوان ویره وه۔

وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢١٥﴾
او چه څوک تاله په حیث دَ مومنانو راشی هغوی ته دَ مینے
لاسونه خوارهٔ کړه۔

فَاِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٢١٦﴾
بیا کچرے څه وخت هغوی ستا اونهٔ منی نو او وایه چه
زهٔ ستاسو دَ عمل نه ویزاره یم۔

وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ﴿٢١٧﴾
او غالب (او) بیا بیا مهربانه ذات باندے توکل کوه۔

الَّذِیْ یَرٰىكَ حِیْنَ تَقُوْمُ ﴿۲۱۸﴾

چه تا هغه وخت ګوري هرکله چه ته (ېواز ې نمونځ دَ پاره) ولاړ ېږې.

وَ تَقَلُّبَكَ فِی السّٰجِدِیْنَ ﴿۲۱۹﴾

او هغه وخت هم هرکله چه ته (جماعت سره نمونځ دَ پاره) سجده کوونکي جماعت کښې اخوا دیخوا ګرزې.

اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ﴿۲۲۰﴾

په تحقیق سره هغه (خدائې) ډیر اوریدونکے (او) ډیر علم لرونکے دے.

هَلْ اُنَبِّئُكُمْ عَلٰی مَنْ تَنَزَّلُ الشَّیٰطِیْنُ ﴿۲۲۱﴾

آیا زه تاسو ته اوښایم چه شیطانان په چا راکوزیږي؟

تَنَزَّلُ عَلٰی كُلِّ اَفَّاكٍ اَثِیْمٍ ﴿۲۲۲﴾

(شیطانان) په هر دروغژن او ګناهګار راکوزیږي.

یُّلْقُوْنَ السَّمْعَ وَ اَكْثَرُهُمْ كٰذِبُوْنَ ﴿۲۲۳﴾

هغوی خپل غوږونه (آسمان ته) نیسي او هغوی کښې ډیرخه دروغژن وي.

وَ الشُّعَرَآءُ یَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ ﴿۲۲۴﴾

او دَ شاعرانو تابع داسے وي چه هغوی لپسے تلونکي بے لارے وي.

اَلَمْ تَرَ اَنَّهُمْ فِیْ كُلِّ وَادٍ یَّهِیْمُوْنَ ﴿۲۲۵﴾

(یه اوریدونکیه!) آیا ته لا (تراوسه) پوه نشوے چه هغوی (شاعران) په هره وادئ کښې بے مقصده ګرزي.

وَ اَنَّهُمْ یَقُوْلُوْنَ مَا لَا یَفْعَلُوْنَ ﴿۲۲۶﴾

هغوی هغه وائي چه کوي نه.

اِلَّا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ ذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِیْرًا وَّ انْتَصَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا ؕ وَ سَیَعْلَمُ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْۤا اَیَّ مُنْقَلَبٍ یَّنْقَلِبُوْنَ ﴿۲۲۷﴾

ع ۱۵

سوا (په شاعرانو کښې) دَ مومنانو او دَ نیک عمل کوونکو او هغه چه (په خپلو شعرونو کښې) دَ الله ډیر ډیر ذکر کوي او (کېږے دَ چا هجو کوي نو شرو خپله نهٔ کوي بلکه) دَ مظلومیت نه پس (جائز) بدل اخلي او هغه خلق چه ظالمان وي به ژر پوه شي چه کوم طرف ته به هغوی له تلل وي.

## سُوْرَةُ النَّمْلِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعٌ وَّتِسْعُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة النمل - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ کم ۹۴ سل آیتونه او اوه ۷ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه دَ خدائے چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

طٰسٓ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ②

طا هر (او) سمیع (یعنی پاک او دَ دعا کانو اوریدونکے خدائے دَ دے سورة را کوُونکے دے) دَ دے آیتونه دَ قرآن او دلیل لرُونکی کتاب برخه دی۔

هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ③

چه مومنانو دَ پاره (سوب دَ) هدایت او زیری دی۔

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ④

دا سے مومنان چه په جمع نمونځ کوی او زکوٰة ورکوی او دَ آخرت په ژوند (او را تلونکی وعده کړے شو خبرو) یقین لری۔

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ⑤

هغه خلق چه دَ آخرت په ژوند ایمان نهٔ تهٔ راوړی مونږ دَ هغوی عملونه هغوی دَ پاره ښائسته کړی ښودلی دی بیا نو هغوی سرگردانه گرزی۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ⑥

هغوی دَ پاره به دردناک عذاب وی او هغوی به دَ آخرت په ژوند کښے دَ ټولو نه زیات نقصان اوچتوونکی وی۔

وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ⑦

او په تحقیق سره تا ته قرآن دَ هغه (ذات) نه رازی چه ډیر دَ حِکمتونو خاوند (او) ډیر علم لرُونکے دے۔

اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖٓ اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا ۭ سَاٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ⑧

(یاد کړهٔ) هرکله چه موسیٰ خپل اهل ته اوویل ما یواور لیدلے دے زهٔ به په یقینی ډول تاسو له دَ هغے (اور) نه څه (ډیر لوئے) خبر راوړم یا تاسو له به یوه پرکیدُونکے سروټکه راوړم چه تاسو ورته تود شئ۔

فَلَمَّا جَآءَهَا نُوْدِيَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ۭ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ⑨

بیا هرکله چه هغوی هغے (اور) له را غلل (نو) هغوی ته آواز او شو چه څوک اور کښے دے او چه څوک دے

نہ چا پیرہ دے ھغهٔ تہ برکت ورکړے شوے دے او الله رب العالمین پاک دے۔

يٰمُوْسٰىٓ اِنَّهٗٓ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٠﴾

یَہ موسیٰ! خبرہ دا دہ چہ زۂ الله یم چہ ھغه عالِم (او) دَ حِکمتونو خاوند دے۔

وَاَلْقِ عَصَاكَ ۭ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَاۗنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ۭ يٰمُوْسٰى لَا تَخَفْ ۣ اِنِّىْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿١١﴾

تهٔ خپله امسا او غورزوه او هرکله چه هغهٔ هغه (امسا) اولیدله (نو څه ګوری) چه هغه خوزی لکه چه هغه یو وړُوکے ماروی نو هغه په شا اوتختید و او روستو ئے اونهٔ کتل (بیا مونږ ورته اووئیل) یه موسیٰ! مهٔ ویرېږه زهٔ هغه یم چه رُسولان ځما وړاندے نهٔ ویرېږی۔

اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًۢا بَعْدَ سُوْۗءٍ فَاِنِّىْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢﴾

وے چه چا ظُلم اوکړو، او بیا دَ هغه ظُلم په ځائے ئے نیکی شروکړه زهٔ (دَ هغهٔ دَ پاره) ډیر بخښونکے (او) بیا بیا کرم کوُونکے یم۔

وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاۗءَ مِنْ غَيْرِ سُوْۗءٍ ۣ فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهٖ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿١٣﴾

او تهٔ خپل لاس خپل ګریوان کښے واچوه هغه به بے دَ څهٔ بیمارئ سپین راووزی او دا هغو نهو نشانانو کښے دے چه فرعون او دَ هغهٔ قام ته استولکی دی۔ هغه دَ اطاعت نه وتونکے قام دے۔

فَلَمَّا جَاۗءَتْهُمْ اٰيٰتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١٤﴾

بیا هرکله چه هغه له ځمونږ سترګے غړوُونکی نشانات راغلل نو هغوی اووئیل دا خو لو ښکاره جادو دے۔

وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا ۭ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿١٥﴾ ع

او هغوی بیا بیا ظُلم او کبر سره دَ هغو (نشانانو) نه انکار اوکړو حال دا چه دَ هغوی زړونو په هغو یقین کړے وه۔ بیا اوګوره دَ فساد کوُونکو انجام څنګه کیږی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا ۚ وَقَالَا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ فَضَّلَنَا عَلٰي كَثِيْرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٦﴾

او مونږ داوُدؑ او سلیمانؑ ته علم ورکړو او دواړو اووئیل ثَنا الله دَ ټولو تعریفونو مالک دے چا چه مونږه له په خپلو ډیرو مومنانو بندیانو فضیلت راکړے دے۔

وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ وَقَالَ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا

او سلیمانؑ دَ داوُدؑ وارث شو او هغهٔ اووئیل یه خلقو!

مَنْطِقَ الطَّيْرِ وَأُوتِينَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ۖ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِينُ ﴿١٦﴾

مونږ ته د مارغانو ژبه ښودلے شوے ده او هر ضروري تميز (يعني تعليم) مونږ ته راکړے شوے دے۔ دا ښکاره ښکاره فضل دے۔

وَحُشِرَ لِسُلَيْمَانَ جُنُودُهُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿١٧﴾

او يو (ورځے) د سليمانؑ وړاندے د جناتو او انسانانو او مارغانو لښکرے په ترتيب يو ځائے کړے شوے (بيا هغوی ته د تلو حکم اوشو)۔

حَتَّىٰ إِذَا أَتَوْا عَلَىٰ وَادِ النَّمْلِ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَا أَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوا مَسَاكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَانُ وَجُنُودُهُ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٨﴾

ترڅو چه هرکله هغوی نمله وادئ ته اورسيدلے نو د نمله قام يو سرې اووئيل، يه د نمله د قام خلقو خپل خپل کورونو ته لاړشئ۔ څسے نه چه سليمانؑ او د هغهٔ لښکرے په لاعلمئ تاسو د ښپو لاندے کړی۔

فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِنْ قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِي أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصَّالِحِينَ ﴿١٩﴾

بيا سليمانؑ د هغهٔ د خبرے په اوريدو اوخاندل او وے وئيل يه ځما ربه! ماله توفيق راکړه چه زهٔ ستا د نعمت چه تا په ما او ځما په پلار کړے دے شکر اوکړم چه ته ترے خوش کړے او (يه خدايا!) خپل رحم سره تهٔ ما په خپلو نيکانو بندګانو کښے داخل کړے۔

وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَائِبِينَ ﴿٢٠﴾

او هغهٔ د هغوی ټولو مارغانو حاضري واخسته بيا ئے اووئيل په ما څهٔ شوی دی چه زهٔ هُد هُد نهٔ وينم يا هغه (د قصده) غير حاضر دے۔

لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَذْبَحَنَّهُ أَوْ لَيَأْتِيَنِّي بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ ﴿٢١﴾

زهٔ به هغهٔ له خامخا سخته سزا ورکوم يا به هغه قتلوم يا به هغه ځما وړاندے څه ښکاره دليل (د خپلے غير حاضرئ) وړاندے کوی۔

فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطْتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ﴿٢٢﴾

بيا څه وخت پورے هغه اليسار شو (د دے کښے هُدهُد راغے) او هغهٔ اووئيل چه ما د هغه څيز علم حاصل کړے دے چه تا ته حاصل نه دے او زهٔ د صبا (د قام د علاقے) نه تا له (راغلے يم او) يو يقيني خبر راوړے دے۔

إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾

(چه هغه دا دے چه) ما (رهلته) یوه ښځه اولیده چه په هغوی حکومت کوی او هر نعمت هغې سره دے او دَ هغې یو لوئے تخت دے۔

وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٢٤﴾

او ما هغه او دَ هغې قام دَ الله نه سوا نمر ته په سجده اولیدل او شیطان هغوی ته دَ هغوی عملونه ځائسته ورښودلی دی او هغوی ئے دَ رښتونی لارے نه منع کړی دی ځکه هغوی هدایت نهٔ مومی۔

أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾

او اصرار کوی چه الله ته سجده اونکړی چه دَ آسمانونو او زمکے هر پټ تقدیر څرګندوی او څهٔ چه هغوی پټوی او ښکاره کوی دَ هغو (ټولو) هم علم لری۔

اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿٢٦﴾ السجدة

(حال دا چه) الله هغه دے چه دَ هغهٔ نه سوا څوک دَ عبادت لائق نشته (هغه) دَ یو لوئے تخت مالک دے۔

قَالَ سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٢٧﴾

(دَ دے په اورید و سلیمانؑ) اووئیل چه مونږ به کورو چه تا رښتیا وئیلی دی یا ته دَ دروغژنو نه ئے۔

اذْهَب بِّكِتَابِي هَٰذَا فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ ﴿٢٨﴾

ته ځما دا خط یوسه او دا دَ هغوی (یعنی دَ صبا دَ قام) ورا نده اوغورزوه بیا (په ادب) روسنو را او دریږه) او اوګوره چه هغوی څهٔ جواب درکوی۔

قَالَتْ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ إِنِّي أُلْقِيَ إِلَيَّ كِتَابٌ كَرِيمٌ ﴿٢٩﴾

هر کله چه هغهٔ داسے اوکړل نو هغې (ملکے) اووئیل چه ځما درباریانو ! ځما وړاندے یو دَ عزت لائق خط اچولے شوے دے۔

إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿٣٠﴾

(چه مضمون ئے دا دے چه) دا خط دَ سلیمان دَ طرف نه دے او دے کښے ښودلی شوی دی چه (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ ﴿٣١﴾ ع

(او وائی) چه په مونږ زیاتی مهٔ کوئ او ځمونږ وړاندے حکم منونکی په حیث حاضر شئ۔

قَالَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ فِيْٓ اَمْرِيْ ۚ مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰى تَشْهَدُوْنِ ﴿٣٢﴾

بیا هغې (ملکې) اوویل یه سردارانو! ځما په کار کښې خپله کوټلې صلاح راکړئ ولے چه زۀ هیڅکله څۀ فیصله نۀ کوم ترڅو چه تاسو ما سره نۀ یئ (او صلاح را نکړئ).

قَالُوْا نَحْنُ اُولُوْا قُوَّةٍ وَّاُولُوْا بَاْسٍ شَدِيْدٍ ۙ وَّالْاَمْرُ اِلَيْكِ فَانْظُرِيْ مَاذَا تَاْمُرِيْنَ ﴿٣٣﴾

(درباریانو) اوویل مونږ طاقتور او ډیر جنګیالی یُو او (آخری) فیصله ستاسو لاس کښې ده بیا غور اوکړئ چه تاسو څۀ حُکم ورکول غواړئ مونږ به هغه منُو.

قَالَتْ اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا وَجَعَلُوْٓا اَعِزَّةَ اَهْلِهَآ اَذِلَّةً ۚ وَكَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ﴿٣٤﴾

هغې اوویل چه هرکله بادشاهان یو ملک ته ورزی نو هغه تباه کوی او د هغې اوسیدونکو کښې درانۀ (عزتمند) خلق رسوا کوی او هغوی دا شان شروع راسے کیا دے کوی.

وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ اِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌۢ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٣٥﴾

او (زما فیصله کړے ده چه) زۀ هغوی ته یو ډالئ واستوم بیا به گورم چه ځما استادی څۀ جواب راوړی.

فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ قَالَ اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُوْنَ ﴿٣٦﴾

بیا هرکله چه هغه تحفه سلیمانؑ ته وړاندے کیخوے شوه نو هغۀ اوویل آیا تۀ د مال سره ځما مدد کول غواړے (کچرے دا خبره ده نو یاد لره چه الله چه څه ماله راکړی دی هغه د هغې نه ډیر بهٔ دی چه تاله ئے درکړی دی (او معلومیږی چه) تۀ په خپله ډالئ ډیره نازیږے.

اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿٣٧﴾

(اے هُد هُد!) تۀ هغوئ ته واپس شه او (هغوی ته اووایه چه) زۀ به د یو لوئے لښکر سره هغوی له راشم داسے لښکر چه د هغې د مقابلے به د هغوی طاقت نۀ وی او زۀ به هغوئ هغې (ملک) نه (د هغوئ د ماتے نه پس) داسے حال کښے اوباسم چه (هغوی به د بادشاهئ عزت نه لاس وینځلے وی).

قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ اَنْ يَّاْتُوْنِيْ مُسْلِمِيْنَ ﴿٣٨﴾

(د دے نه پس) هغۀ (خپلو درباریانو ته) مخ کړو او وے وئیل (یه درباریانو تاسو کښے به څوک د هغې تخت ماله راوړی رومبئ د دے نه چه هغوی (حلق) حُکم منُونکی ما ته حاضر شی.

قَالَ عِفْرِيْتٌ مِّنَ الْجِنِّ اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ مِنْ مَّقَامِكَ ۚ وَاِنِّيْ عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ اَمِيْنٌ ﴿۳۹﴾

(دَ غر يزو علاقو خلقو کښې) يو سرکش سردار اوويل ستا (دَ دے) ځائے دَ تلو نه اوّل به زۀ هغه (تخت) راوړم او زۀ به دے خبره دير قدرت لرُونکے (او) امانت دارېم۔

قَالَ الَّذِيْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ ۚ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ ۖ لِيَبْلُوَنِيْٓ ءَاَشْكُرُ اَمْ اَكْفُرُ ۖ وَمَنْ شَكَرَ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ رَبِّيْ غَنِيٌّ كَرِيْمٌ ﴿۴۰﴾

(دَ دے په اوريدو) هغه سړي چا ته چه دَ (الٰهی) کتاب علم حاصل وو اوويل چه زۀ به تاله هغه (تخت) ستا دَ سترگے رپ نه ړومبئ راوړم۔ بيا هرکله چه (سليمانؑ) هغه خوا کښې پروت اوليدلو هغهٔ اوويل دا ځما دَ رب په فضل شوے دے۔ دے دَپاره چه هغه ما آزمائي چه زۀ شکر کوم يا ناشکري کوم او چه څوک شکر اوکړي هغه دَ خپل ځان دَ فائدے دَپاره دا سے کوي او چه څوک ناشکري اوکړي نو په تحقيق سره ځما رب بے نيازه (او) دير سخاوت کوونکے دے۔

قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ اَتَهْتَدِيْٓ اَمْ تَكُوْنُ مِنَ الَّذِيْنَ لَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۴۱﴾

(بيا) هغهٔ اوويل هغے (ملکے) دَپاره دَ هغے تخت سپک وراوښائي مونږ گورُو چه آيا هغه هدايت مومي يا دَ هغو خلقو نه کيږي چه هدايت نۀ مومي۔

فَلَمَّا جَآءَتْ قِيْلَ اَهٰكَذَا عَرْشُكِ ۖ قَالَتْ كَاَنَّهٗ هُوَ ۚ وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِيْنَ ﴿۴۲﴾

بيا هرکله چه هغه راغله نو ورته اوويلے شول چه آيا ستا تخت داسے دے؟ دَ دے په اوريدو هغے اوويل چه دا سے معلوميگي دا هُم هغه دے او مونږ ته دَ دے نه ړومبئ علم حاصل شوے وو (او مونږ ستا) حُکم منُونکي جوړ شوي يُو۔

وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَّعْبُدُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۖ اِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴿۴۳﴾

او سليمانؑ ملکه دَ الله نه سوا (دَ بل چا) دَ پرستش کولو نه منع کړه په تحقيق سره هغه دَ کافرانو دَ قام نه وه۔

قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ ۚ فَلَمَّا رَاَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَّكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا ۚ قَالَ اِنَّهٗ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيْرَ ۗ قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ وَاَسْلَمْتُ

او هغے ته اوويلے شول چه محل کښې داخله شه۔ بيا هرکله چه هغے هغه (محل) اوليدو نو هغه ئے ژورے اوبۀ اوگڼړلے او وارخطا شوه۔ بيا سليمان اوويل چه دا خو محل دے چه په کښې دَ شيشے ټکرے کيد لی دي۔ بيا

مَعَ سُلَيْمٰنَ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۴﴾

ع ۱۴ ـــ هغې (ملکې اووئیل) یه څما رب! ما په خپل ځان ظُلم اوکړو اوزهٔ سلیمانؑ سره په رب العالمین خدائے ایمان راوړم.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ فَاِذَا هُمْ فَرِيْقٰنِ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۴۵﴾

او په تحقیق سره مونږ ثمود ته دَ هغهٔ رور صالحؑ دَرسُول په آستولے وه (دے حُکم سره) چه دَ الله عبادت کوئ بیا هغوی دَ دے په اوریدو دوه تولی شول چه په خپلو کښے په جهګړه شول۔

قَالَ يٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ لَوْ لَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۴۶﴾

هغهٔ (صالحؑ) اووئیل، یه څما قامه! تاسو دَ خوشحالۍ دَ راتلو نه رومبئ دَ بدئ دَ پاره ولے تلوار کوئ آیا تاسو دَ خدائے نه دَ خپلو ګناهونو دَ پاره بخښنه نهٔ غوارئ دے دَ پاره چه په تاسو رحم اوشی۔

قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ قَالَ طٰٓئِرُكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ ﴿۴۷﴾

هغوی اووئیل راسے صالحؑ، مونږ چه زخومره فکر کړے دے) ته او ستا ملګری را ته سپړهٔ ښکاره شوی دی صالحؑ اووئیل ستاسو دَ نحُوست سوب خو الله سره دے بلکه حقیقت دا دے چه تاسو یو داسے قام یئ چه آزمیښت کښے اچولی شوی یئ۔

وَكَانَ فِي الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُّفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا يُصْلِحُوْنَ ﴿۴۸﴾

او په ښکاره نههٔ سری وه چه ملک کښے ئے فساد کولو او اصلاح ئے نهٔ کوله۔

قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ لَنُبَيِّتَنَّهٗ وَاَهْلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ لِوَلِيِّهٖ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۴۹﴾

هغوی اووئیل چه تاسو ټول په دے دَ الله قسم اوخورئ چه مونږ به په دهٔ او دَ دهٔ دَ کور په خلقو دَ شپے حمله کوُو بیا چه څوک دَ دهٔ دَ خُون مطالبے له راشی مونږ به هغوی ته وایو چه مونږ دَ دهٔ دَ کور دَ خلقو تباهی (واقعه) نهٔ وه لیدلے او مونږ ه رښتونی یو۔

وَمَكَرُوْا مَكْرًا وَّمَكَرْنَا مَكْرًا وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۵۰﴾

او هغوی یو تدبیر اوکړو او مونږ هُم یو تدبیر اوکړو او هغوی نه معلومه نهٔ وه۔

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ اَنَّا دَمَّرْنٰهُمْ

بیا اوګوره چه دَ هغوی دَ تدبیر څهٔ نتیجه اوخته۔ مونږ

وَقَوْمَهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٥١﴾

هغوی او دَ هغوئ ټول قام تباه کړو۔

فَتِلْكَ بُيُوْتُهُمْ خَاوِيَةًۢ بِمَا ظَلَمُوْا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿٥٢﴾

بیا (اوګوره) دا دَ هغوی کورونه دی چه دَ هغوی دَ ظلمونو له کبله پرلیوتی دی۔ دے کښې دَ علم لرونکی قام دَ پاره لوئے نښان دے۔

وَاَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿٥٣﴾

او مونږ هغه خلق چا چه ایمان راوړو او تقوىٰ ئے کوله بچ کړل۔

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ﴿٥٤﴾

او (مونږ) لوطؑ (دَ رسول په حیث لیږلے وه) هر کله چه هغه خپل قام ته اووئیل آیا تاسو بدی کوی او تاسو ګنیا ئې ګورئ۔

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿٥٥﴾

آیا تاسو دَ ښځو په ځائے سړو له دَ شهوت په حیث راځئ حقیقت دا دے چه تاسو یو جاهل قام یئ۔

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْۤا اَخْرِجُوْۤا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ﴿٥٦﴾

بیا دَ هغه دَ قام جواب لس دا وه (چه) یه خلقو دَ لوطؑ کورنئ دَ خپل ښار نه اوباسئ هغوئ داسے خلق دی چه ډیر نیکان جوړیدل غواړی۔

فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗۤ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ؗ قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿٥٧﴾

نتیجه ئے دا اوشوه چه مونږ هغه (لوطؑ) او دَ هغهٔ دَ کورنئ خلق سوا دَ هغهٔ دَ ښځے نه بچ کړل مونږ هغه (ښځهٔ) روستو پاتے خلقو کښې شمیرلے وه۔

وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٥٨﴾ ع ١٩

او مونږ په هغوئ یو باران اوورولو او چا ته چه دَ عذاب خبر رسیدلے وی دَ هغوی باران ډیر بد وی۔

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى ؕ ءٰٓاللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٥٩﴾

ته اووایه چه دَ هر تعریف (حمد) الله مستحق دے او دَ هغهٔ هغه بندیان څوک چه هغه خوښ کړی دی په هغوی تل تر تله سلامتی نازیګی آیا الله ښه دے یا هغه څیزونه چاله چه هغوی (دَ هغه) شریک ګرزوی۔

اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ۚ مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ۗ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ ﴿٦١﴾

(او نحو وائي) آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی؟ او (چا) تاسو دَ پاره دَ ورېځې نه اوبه راوروے دی بیا دے اوبو سره مونږ خائسته باغونه او باسلی دی. تاسو دَ دے باغونو ونے نشوے پیدا کولے- آیا الله سره بل هُم دَ عبادت لائق شته دے؟ (چه دَ ټول کائنات انتظام ئکیا دے کوی) وے دوئ (کافران) داسے قام دے چه دَ هغهٔ شریک ئکیا دی جوړوی.

اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَآ اَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ۗ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٢﴾

(او اونحو وائی) چا زمکه دَ حصار یدو دَ پاره جوړه کړے ده؟ او دے کښے دریابونه روان کړی دی او دَ دے (دَ فائدے) دَ پاره ئے غرونه جوړ کړی دی. او دَ دوؤ سمند رونو ترمنځه (چه پکښے دَ لو او به خوږے او دَ بل ترخے دی) یو بند جوړ کړے دے- آیا دَ الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق شته دے؟ وے حقیقت دا دے چه هغوئ کښے کنږ شمیره نهٔ پوهیګی.

اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ۗ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٦٣﴾

(او دا نحوا و وائی) څوک دَ چا بے کسه دُعا آوری هرکله چه هغه هغهٔ (خدائے) نه دُعا غواړی- او (دَ هغهٔ) تکلیف لرے کوی او هغه به تاسو (دُعا غوښتونکوانسانانو) له (ډیوه ورځ) دَ تولے مکے وارثان کړی- آیا (دَ هغه قادرِ مطلق) الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق شته دے؟ تاسو دَ سره هډو نصیحت نهٔ اخلئ.

اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُّرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۗ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٤﴾

(او نحو وائی) دَ اوچے او دَ لمدے (سمند رونو) په مصیبتونو کښے څوک تاسو ته دَ خلاصی لاره ښائی- او څوک دَ خپل رحمت (یعنی باران) نه وړاندے دَ زیری په طور هوا ګانے راستوی- آیا دَ الله نه سوا بل معبود هُم شته دے؟ الله ستا سو دَ شرک دَ خبرونه ډیر اوچت

دے۔

اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَمَنْ يَّرْزُقُكُمْ
مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ
اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۶۴

راوخو وائې چه) هغه چه په ړومبی ځل پیدا کوی او
بیا ردَ پیدا وخت) سلسله جاری کوی او چه دَ وریځو
او دَ زمکے نه تاسوله رزق درکوی۔ آیا ردَ هغه قادر
مطلق) الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق هُم شته
دے؟ نه اووایه کچرے تاسو رښتونی یئ نو خپل دلیل
وړاندے کړئ رچه دَ هغهٔ ثانی نور هُم شته دے)۔

قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ
اِلَّا اللّٰهُ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ۶۵

ربیا نهٔ) اووایه چه آسمانونو او زمکه کښے چه هر یو
مخلوق دے دَ خدائے نه سوا رهغوی کښے څوک هُم) دَ
غیب علم نهٔ لری او هغوئ کښے څوک دا هُم نهٔ پوهیگی
چه هغوی به کله ژوندی کړی او چتولے شی۔

بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ
مِّنْهَا بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ۶۶

بلکه حقیقت دا دے چه دَ آخرت دَ ژوند پخقله دَ هغوئ
ع علم دَ سره ختم شوے دے بلکه دَ هغے پخقله شک کښے
پراتهٔ دی۔ بلکه هغوئ دَ هغے پخقله دَ سره ړانده دی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ اَئِنَّا
لَمُخْرَجُوْنَ ۶۷

او کافران وائی چه آیا هر کله مونږ او ځمونږ پلار نیکونه
خاورے شونو آیا مونږ به بیا ردَ زمکے نه) ژوندی
را اوباسلے شُو۔

لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ اِنْ
هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۶۸

مونږ سره او ځمونږ پلار نیکونو سره دے نه آکاهو هُم
داسے وعده شوے وه ولے دا لس دَ ړومبنو خلقو
خبرے دی رچه کله هُم سرته نهٔ رسی)۔

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ
الْمُجْرِمِيْنَ ۶۹

نهٔ اووایه چه دَ زمکے په مخ اوګرزئ او اوګورئ چه
دَ مجرمانو انجام څهٔ شوے وه۔

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ ۷۰

او نهٔ دَ هغوئ غم مهٔ خوره او دَ هغوئ دَ تدبیرونو له
کبله زړهٔ تنګ نکړے۔

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۷۱

او هغوئ وائی کچرے تاسو رښتونی یئ نو دا ردَ عذاب)

وعده به کله پوره کیږي؟

قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۷۲﴾

ته او وایه چه کیدے شي چه هغه (عذاب) چه تاسو ورله تلوار کوئ د هغې څه برخه تاسو ته روستو روستو راروانه وي.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾

او ستا ربّ په خلقو فضل کوونکے دے وے هغوئ کښے ډیرځنې شکر نۀ کوي.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۴﴾

او ستا ربّ هغه څیزونه هُم پیژني چه د هغوي سینے پټوي او هغه (هُم) چه هغوئ ئې ښکاره کوي.

وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۵﴾

او آسمانونو او زمکه کښے چه څه څیز هُم پټ دے یو بیانوونکی کتاب کښے (محفوظ) دے.

اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَقُصُّ عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَكْثَرَ الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۷۶﴾

دا قرآن د بني اسرائیلو وړاندے ډیرځله هغه خبرے آوروي چه هغو کښے هغوئ اختلاف کیا دی کوي.

وَاِنَّهٗ لَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۷۷﴾

او هغه یقین سره د مومنانو د پاره هدایت او رحمت دے

اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ بِحُكْمِهٖ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْعَلِيْمُ ﴿۷۸﴾

ستا رب د دوئ (بني اسرائیلو) ترمنځه خپل حُکم (یعني قرآن) سره (په حقه) فیصله کوي. او هغه غالب (او) ډیر علم لرونکے دے.

فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِيْنِ ﴿۷۹﴾

بیا په الله توکل کوئ په تحقیق سره ته دلیل سره په حقه ئې.

اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۸۰﴾

ته هیڅکله مړوته نشے آوروے او نۀ کڼروته (خپل) آواز اوروے شے (بیا هغه وخت) چه هغوي مخ واړوي لاړشي.

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِي الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ۭ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾

او ته ړندوته هُم د هغوئ د گمراهئ نه په راستنولو هدایت نشے ورکولے. ته خولیس هغوئ ته آوروے چه زمونږ په آیتونو ایمان راوړي او هغوي (د عمل په لحاظ هُم) حُکم منونکی دي.

وَاِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ

او هرکله به چه د هغوئ د تباهئ پیش خبري پوره شي

الۡاَرۡضِ تُکَلِّمُهُمۡ ۙ اَنَّ النَّاسَ کَانُوۡا بِاٰیٰتِنَا لَا یُوۡقِنُوۡنَ ﴿۸۲﴾

نو موږ به هغوئ دَ پاره دَ زمکے نه یو چینچئ راوباسو چه هغوئ به خوری - په دے سوب چه خلقو ځموږ په نښا ناتو باور نهٔ کولو۔ ع

وَ یَوۡمَ نَحۡشُرُ مِنۡ کُلِّ اُمَّۃٍ فَوۡجًا مِّمَّنۡ یُّکَذِّبُ بِاٰیٰتِنَا فَهُمۡ یُوۡزَعُوۡنَ ﴿۸۳﴾

او هغه ورځ (یاده کړه) هرکله چه به هر (هغه) قام نه چه ځموږ دَ نښا ناتو انکار به ئې یا وی کوی - موږ یو لوئے ټولئ اودروؤ - بیا به هغه (ټولئ دَ جواب ورکولو دَ پاره) مختلفو ټولو کښے تقسیم کړے شی۔

حَتّٰۤی اِذَا جَآءُوۡ قَالَ اَکَذَّبۡتُمۡ بِاٰیٰتِیۡ وَ لَمۡ تُحِیۡطُوۡا بِهَا عِلۡمًا اَمَّا ذَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۸۴﴾

او هرکله به چه هغه هغے ته رسی هغه به هغوئ ته وائی - آیا تاسو سره دَ دے ځما دَ نښا ناتو انکار کړے وه چه تاسو دَ علم په ذریعه دَ هغو نه پوره واقفیت حاصل کړے نهٔ وه یا دا او وائی چه تاسو دَ اسلام خلاف څهٔ څهٔ سازشونه کول۔

وَ وَقَعَ الۡقَوۡلُ عَلَیۡهِمۡ بِمَا ظَلَمُوۡا فَهُمۡ لَا یَنۡطِقُوۡنَ ﴿۸۵﴾

او دَ هغوئ دَ ظلمونو له کبله به دَ هغوئ خلاف شوے پیش خبری پوره شی او هغوئ به څه خبره اونکړے شی۔

اَلَمۡ یَرَوۡا اَنَّا جَعَلۡنَا الَّیۡلَ لِیَسۡکُنُوۡا فِیۡهِ وَ النَّهَارَ مُبۡصِرًا ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۸۶﴾

آیا هغوی ته معلومه نهٔ ده چه موږ شپه دے دَ پاره جوړه کړے ده چه هغوی دے کښے آرام اوکړی او ورځ موږ دَ لیدنے طاقت ورکوونکے جوړه کړه په دے کښے مومن قام دَ پاره غټ نښا نات دی۔

وَ یَوۡمَ یُنۡفَخُ فِی الصُّوۡرِ فَفَزِعَ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَنۡ فِی الۡاَرۡضِ اِلَّا مَنۡ شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَ کُلٌّ اَتَوۡهُ دٰخِرِیۡنَ ﴿۸۷﴾

او هغه (ورځ هُم یاده کړئ) کومه ورځ به چه بګل کښے هوا پوک وهلے شی چه دَ هغے په نتیجه کښے به آسمانونو او زمکه کښے چه څه هُم دی وارخطا یا سی سوا دَ هغهٔ چه دَ چا پحفله به الله اوغواړی (چه هغه دَ وارخطائی نه محفوظ شی) او ټول به هغهٔ (خدائے) ته تابعدار اوحکم منونکی رازی۔

وَ تَرَی الۡجِبَالَ تَحۡسَبُهَا جَامِدَۃً وَّ هِیَ تَمُرُّ مَرَّ

او ته غرونه داسے ګورے چه هغوی په ځپل ځائے

السَّحَابِ ۭ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِیْٓ اَتْقَنَ كُلَّ شَیْءٍ ۭ اِنَّهٗ خَبِیْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۸۸﴾

ولاړ دي حال دا چه هغوی لکه دَ وريځو روان دي - دَ دَ الله کاريگري ده چا چه هرڅيز مضبوط جوړکړے دے - هغه ستاسو دَ عملونو نه ښه خبردار دے -

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَیْرٌ مِّنْهَا ۚ وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ یَّوْمَىِٕذٍ اٰمِنُوْنَ ﴿۸۹﴾

څوک به چه نيکي کوی هغهٔ ته به دے نه ښه بدله ورکيدے شي او دا سے خلق به هغه ورځ ويرے نه رچه پورته ئے ذکر شوے دے) محفوظ وي -

وَمَنْ جَآءَ بِالسَّیِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِی النَّارِ ۭ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۰﴾

اوڅوک به چه بدو عملونو سره خدائے ته حاضريګي دَ هغوی سرداران به دوزخ کښے پرمخ غورزوے شي او ورته به وئيلے شي چه آيا ستاسو جزا ستاسو دَ عمل مطابق نهٔ ده -

اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِیْ حَرَّمَهَا وَلَهٗ كُلُّ شَیْءٍ ۫ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿۹۱﴾

ما ته خولس دا حُکم شوے دے چه زهٔ دَ دے رمکے) ښار دَ رب چه هغه هغهٔ (رب) عزت مند جوړکړے دے عبادت اوکړم او هرڅيز دَ هغهٔ په قدرت کښے دے او ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ حُکم منونکو نه شم -

وَاَنْ اَتْلُوَا الْقُرْاٰنَ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰی فَاِنَّمَا یَهْتَدِیْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ اِنَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُنْذِرِیْنَ ﴿۹۲﴾

او دا هُم چه زهٔ قرآن واوروم بيا څوک چه دَ دے په اوريدو هدايت اوموهي نو دَ هغهٔ هدايت موندل بس دَ هغه دَځان دَ پاره دي او چه څوک دَ دے اوريدو نه پس بےلارے شي نو ته هغهٔ ته اووايه چه زهٔ خو بس يو هوښيارونکے يم -

وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَیُرِیْكُمْ اٰیٰتِهٖ فَتَعْرِفُوْنَهَا ۭ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾

او دا هُم اووايه چه هُم الله دَ ټولو تعريفونو مستحق دے هغه به تاسو ته خپل نښانات ښائي ترهغے چه تاسو هغوله او پيژنئ او ستاسو رب ستاسو دَ عملونو نه غافل نهٔ دے -




سورة القصص - دا سورة مکی دے اوبسم الله سره دَ دے ۸۹ نهه اتیا آیتونه او ۹ نهه رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (1)

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

طٰسٓمّٓ (2)

طاهر (پاک)، سمیع (دَ دعا کانو اوریدُونکے) مجید (دَ ډیر لوئے شان خاوند خدائے دَ دے سورة نازله وونکے دے)۔

تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ (3)

دا (یعنی دَ دے سورة آیتونه) دَ یو مدلل کتاب آیتونه دی

نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ مُوْسٰى وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (4)

دَ مومن قام دَ فائدے دَ پاره مونږ دَ موسٰیؑ او فرعون صحی حالات تا ته اوروُو۔

اِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْاَرْضِ وَجَعَلَ اَهْلَهَا شِيَعًا يَّسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ (5)

فرعون (زچپل) ملک کښے دَ ډیر کبر نه کارا خستے وه او دَ هغے اوسیدُونکی ئے برخے برخے کړی وُو۔ هغهٔ په هغوی کښے یو ټولئ کمزورے کول غوښتل (دا شان چه) دَ هغوی ځامن به ئے قتلول او دَ هغوی جینکئ به ئے ژوندئ پریخودے په تحقیق سره هغه فساد یالونه وُه۔

وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا فِي الْاَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ (6)

او مونږ اراده کړے وه چه کوم خلق ملک کښے کمزوری ګڼړے شوی وُو په هغوی احسان اوکړو او هغوی له سرداری ورکړو او هغوی (دَ ټولو نعمتونو) وارثان کړو۔

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ (7)

او هغوی ته ملک کښے مضبوطی (تمکنت) ورکړو او فرعون او هامان او دَ هغوی لښکرونو ته دَ هغوئ هغه څه ورا وښایو چه دَ هغے نه هغوی په ویره وُو۔

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى اَنْ اَرْضِعِيْهِ ۚ فَاِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَاَلْقِيْهِ فِي الْيَمِّ وَلَا تَخَافِيْ وَلَا تَحْزَنِيْ ۚ اِنَّا رَآدُّوْهُ اِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ (8)

او مونږ دَ موسٰیؑ مور ته وحی کړے وه چه په هغهٔ (یعنی موسٰیؑ) پئ څکوه او بیا هرکله چه دَ هغهٔ پحقله اویریږیے نو هغه په دریاب کښے واچوه او مهٔ یریږه او مهٔ دَ څه

تیرے شوے واقعے له کبله غم کوه مونږ به هغه تاته واپس راولو او هغه به رسولانو کښے یو رسول جوړوو ربیا دَ موسیٰ مور دَ دے وحی مطابق عمل اوکړو اوموسیٰ ئے دریاب کښے واچولو)۔

فَالْتَقَطَهٗۤ اٰلُ فِرْعَوْنَ لِیَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّ حَزَنًا ؕ اِنَّ فِرْعَوْنَ وَ هَامٰنَ وَ جُنُوْدَهُمَا كَانُوْا خٰطِـِٕیْنَ ﴿٩﴾

بیا دے نه پس هغه (موسیٰ) دَ فرعون دَ کورنی نه چاوَ حت کړو چه نتیجه ئے دا اوشوه چه یوه ورځ هغه دَ پاره دښمن ثابت شو او دَ غم سوب اوګرزیدو۔ فرعون او هامان او دَ هغوی دواړو لښکرونه په غلطه وُو۔

وَ قَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَیْنٍ لِّیْ وَ لَكَ ؕ لَا تَقْتُلُوْهُ ۖۗ عَسٰۤی اَنْ یَّنْفَعَنَاۤ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا وَّ هُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿١٠﴾

او دَ فرعون (دَ کورنی یوے) ښځے اوویل دا به ستا دَ پاره اوځما دَ پاره دَ سترګو دَ یخولو سوب ګرزی۔ دے مهٔ قتلوه۔ ممکنه ده چه یوه ورځ هغه مونږ ته فائده اورسوی یا مونږ هغه ځوی جوړ کړو او هغوی ته اصل حقیقت ښکاره نهٔ وُه۔

وَ اَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰی فٰرِغًا ؕ اِنْ كَادَتْ لَتُبْدِیْ بِهٖ لَوْ لَاۤ اَنْ رَّبَطْنَا عَلٰی قَلْبِهَا لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿١١﴾

او دَ موسیٰ دَ مور زړهٔ (دَ غمه) خلاص شونږدے وه کچرے مونږ دَ هغے زړه په ایمان مضبوط کړے نهٔ وے نو هغے به دَ دے واقعے ټول حقیقت ښکاره کړے وے۔

وَ قَالَتْ لِاُخْتِهٖ قُصِّیْهِ ؗ فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ جُنُبٍ وَّ هُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿١٢﴾

او هغے (یعنی دَ موسیٰ مور) دَ هغهٔ (یعنی موسیٰ) خور ته اوویل چه دهٔ نه روستو روستو زه بیا هغے هغه ته دَ لرے نه کتل او هغوی (یعنی فرعونیان) بے خبره وو۔

وَ حَرَّمْنَا عَلَیْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰۤی اَهْلِ بَیْتٍ یَّكْفُلُوْنَهٗ لَكُمْ وَ هُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ ﴿١٣﴾

او مونږ په هغهٔ (یعنی موسیٰ) دے نه آګاهو پی ورکونکے (ښځے) حرامے کړے بیا هغے (یعنی دَ موسیٰ خور اوویل) چه آیا زهٔ تاسو ته دَ یو داسے کور دَ خلقو خبر درکړم چه دے تاسو دَ پاره اوپالی او هغوی دَ ده ښیګړه غوښتونکی ثابت شی۔

فَرَدَدْنٰهُ اِلٰۤی اُمِّهٖ كَیْ تَقَرَّ عَیْنُهَا وَ لَا تَحْزَنَ وَ لِتَعْلَمَ

دا شان مونږ هغه دَ هغهٔ مور ته واپس کړو دے دَ پاره

اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝۱۳ ع ۲

چه دَ هغې سترګې یخې شي او هغه غم ونکړي او پوه شي چه دَ الله وعده پوره کیږي ولے ناپوهانو کښے) ډیر خلق نۀ پوهیږي۔

وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰٓى اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا ۚ
وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ۝۱۴

او هرکله چه هغه دَ خپلې ځوانۍ پوخ عمرته اورسیده او (په خپلوا علیٰ اخلاقو) مضبوط او درید ونو مونږ هغهٔ له حکم او علم ورکړو او مونږ محسنانو ته داسے بدله ورکوو

وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا
فَوَجَدَ فِيْهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلٰنِ ۖ هٰذَا مِنْ شِيْعَتِهٖ
وَهٰذَا مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِىْ مِنْ شِيْعَتِهٖ
عَلَى الَّذِىْ مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى فَقَضٰى عَلَيْهِ ۖ
قَالَ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ۗ اِنَّهٗ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِيْنٌ ۝۱۵

او (یوه ورځ) هغه ښار ته داسے وخت کښے راغے چه خلق دَ غفلت په حال وُو هغهٔ هغه ښار کښے دوه سړي اولیدل چه خپلو کښے په جنګ وُو۔ یو دَ هغهٔ دَ دوستانو دَ ډلې نه وه او بل دَ هغهٔ دَ دښمنانو نه وه بیا هغه څوک چه دَ هغهٔ دَ جماعت وه دَ هغهٔ سړي خلاف چه دَ هغهٔ دَ دښمنانو نه وُه دَ هغهٔ (موسیٰ) نه مدد اوغوښتو او په دے موسیٰ هغه دښمن یو سُوک اووهلو او دے (سُوک) دَ هغهٔ فیصله اوکړه بیا موسیٰ اووئیل دا کار دَ شیطان په لمسه شوے دے (هغه شیطان دَ مومن) دښمن او (هغهٔ له دَ امن دَ لارے نه) ښکاره ښکاره بے لارے کوونکے دے۔

قَالَ رَبِّ اِنِّىْ ظَلَمْتُ نَفْسِىْ فَاغْفِرْ لِىْ فَغَفَرَ لَهٗ ۗ
اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝۱۶

بیا موسیٰ دعا اوکړه چه یه ځماربه! ما خپل ځان په تکلیف کښے اچولے دے بیا نو ته ځما په دے کار پرده واچوه۔ نو هغهٔ په دے کار پرده واچوله هغه ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

قَالَ رَبِّ بِمَآ اَنْعَمْتَ عَلَىَّ فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِيْرًا
لِّلْمُجْرِمِيْنَ ۝۱۷

بیا موسیٰ عرض اوکړو چه یه ځماربه! هرکله چه تا په ما انعام کړے دے زۀ به کله هُم په مجرمانو کښے دَ چا مجرم مدد نۀ کوم۔

فَاَصْبَحَ فِى الْمَدِيْنَةِ خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ فَاِذَا الَّذِى
اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ ۚ قَالَ لَهٗ مُوْسٰٓى
اِنَّكَ لَغَوِىٌّ مُّبِيْنٌ ۝۱۸

دے نه پس هغه ښار کښے دَ سحر په وخت دښمنانو نه په ویره (ویره) او اخوا دیخوا یه کتو او ونو ناڅاپه ګوري چه چا پرون دۀ نه مدد غوښتے وه هغه بیا هغهٔ نه مدد

ګلیا دے غواړې ـ په دے موسیٰ هغهٔ ته اووئیل په تحقیق سره تهٔ بنکاره بنکاره بےلارے یې ـ

فَلَمَّآ اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِىْ هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ۙ قَالَ يٰمُوْسٰٓى اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِىْ كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا ۢ بِالْاَمْسِ ۖ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا فِى الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ⑲

بیا هر کله چه هغهٔ اراده اوکړه چه هغه سړے اونیسی چه دَ دے دواړو دښمن وُه نو هغهٔ اووئیل یه موسیٰ! آیا تهٔ غواړے چه ما قتل کړے څنګه چه تا پرون یو بل سړے قتل کړے وه تهٔ بس دا غواړے چه کمزوری په ملک کښے زندے کړے او اصلاح کوونکو کښے شاملیدل ستا غرض نهٔ دے ـ

وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى ۡ قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّىْ لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ ⑳

او هغه وخت یو سړے ښار کښے دَ لرے نه په منډه منډه راغے او وے وئیل یه موسیٰ! (دَ ملک) رئیسان مشوره کوی چه تا قتل کړی بیا زر خما خبره واوره او) دے ښار نه اُوزه ـ زهٔ ستا ښیګړه غوښتونکو کښے یم ـ

فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ ۡ قَالَ رَبِّ نَجِّنِىْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ㉑ ع ۲

بیا هغه دَ هغه ښار نه په ویره اووتو او په تلو کښے ئے په هوښیارتیا اخوا دیخوا کتل ـ هغه وخت هغهٔ دُعا اوکړه چه یه خما ربه! ما دَ ظالم قام نه بچ کړے ـ

وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّىْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِىْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ㉒

او هر کله چه هغه دَ مدین ښار طرف ته لاړو نو هغه اووئیل زهٔ اُمید لرم چه خما رب به ما ته نیغه لار اوښائی ـ

وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۙ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۖ قَالَتَا لَا نَسْقِىْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ۖ وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ㉓

او هر کله چه هغه دَ مدین ښار دَ څښنے خوا ته ورغے نو هغهٔ په هغے دَ خلقو یو ټولۍ ولاړ اولیده وچه رڅپلو څارو له) ئے اوبه ورکولے او دَ هغوی نه اخوا روستو ولاړے ئے دوه ښځے اولیدے چه خپل څاروی ئے ردَ کنرے نه) اخوا کول ـ موسیٰ هغوی ته اووئیل چه ستاسو دَ دواړو څه ضروری کار دے ـ دَ دے په اوریدو ښځو اووئیل مونږ او به نشو څکولے ترڅو پورے چه نور ګډبانهٔ لا رنشی اوخمونږ پلار ډیر بوډا دے ر دے

دَ پاره مونږ سره را نغلے شو)۔

فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّىْ لِمَآ
اَنْزَلْتَ اِلَىَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿۲۴﴾

بیا هغهٔ دَ هغه دوارو له مخه (څاروُ) له اوبه ورکړے بیا سیوری ته نحوا (ته شو۔ بیا ئے اووئیل یَه څما ربه! دَ خپل خیر نښیګړے نه چه څه تهٔ ماله را کړے دَ هغے زهٔ محتاجه یم۔

فَجَآءَتْهُ اِحْدٰىهُمَا تَمْشِىْ عَلَى اسْتِحْيَآءٍ ۡ قَالَتْ اِنَّ
اَبِىْ يَدْعُوْكَ لِيَجْزِيَكَ اَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ؕ فَلَمَّا
جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفْ ٙ نَجَوْتَ
مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۵﴾

دے نه پس هغو دوارو جینکو کښے یوه ربه حیا حیا راغله او هغه شرمیده له او هغے اووئیل څما پلار ناغواړی دے دَ پاره چه څمونږ په ځائے (څاروته) دَ اوبوورکولو اجر درکړی بیا هرکله چه هغه هغهٔ (یعنی دَ جینکو پلار) له راغے او دَ هغهٔ وړاندے ئے (خپله) ټوله واقعه بیان کړه نو هغهٔ اووئیل مهٔ ویریږه تهٔ اوس دَ ظالم قام نه بچ شوے ئے۔

قَالَتْ اِحْدٰىهُمَا يٰٓاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ ۡ اِنَّ خَيْرَ مَنِ
اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِىُّ الْاَمِيْنُ ﴿۲۶﴾

بیا (هغو دوارو جینکو) کښے یوے او وئیل یَه څما پلاره! دے تهٔ نوکر کړه دے چه څوک تهٔ نوکر کړے هغوی کښے به دَ ټولو نه ښهٔ هغه سړے وی چه مضبوط هُم وی او امانت دار هُم۔

قَالَ اِنِّىْٓ اُرِيْدُ اَنْ اُنْكِحَكَ اِحْدَى ابْنَتَىَّ هٰتَيْنِ
عَلٰٓى اَنْ تَاْجُرَنِىْ ثَمٰنِىَ حِجَجٍ ۚ فَاِنْ اَتْمَمْتَ عَشْرًا
فَمِنْ عِنْدِكَ ۚ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اَشُقَّ عَلَيْكَ ؕ سَتَجِدُنِىْٓ
اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۲۷﴾

بیا هغه سړی اووئیل (یَه موسیٰ!) زهٔ غوارم چه په دے شرط دے دوو خپلو لونړو کښے دَ یوے تا سره نکاح اوکړم چه تهٔ اتهٔ کاله څما خدمت اوکړے بیا کچرے تهٔ (دَ اتو په ځائے) په لسو خپله وعده پوره کړے نو دا به ستا احسان وی او زهٔ په تا پیټنیٔ غورزول نهٔ غوارم کچرے الله اوغوښتل نو تهٔ به ما ښه معامله کُوونکو نه مومے۔

قَالَ ذٰلِكَ بَيْنِىْ وَبَيْنَكَ ؕ اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ قَضَيْتُ فَلَا
عُدْوَانَ عَلَىَّ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ﴿۲۸﴾ ع

(دَ دے په اورېدو موسیٰ) اووئیل دا خبره څما او ستا ترمنځه پخه شوه په دے دوارو مودو کښے چه کومه زهٔ

پوره کړم په ما به الزام نه وی او چه څه مونږ وایو الله په دے ګواه دے.

فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ وَسَارَ بِاَهْلِهٖۤ اٰنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًاۚ قَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْۤا اِنِّیْۤ اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّیْۤ اٰتِیْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ۝۲۹

هرکله چه موسیٰ مقرره وخت پوره کړو او د خپل کورنخلقو سره روان شونو هغه د طور په طرف یو اور اولیدو (او) د خپل کورنخلقوته ئے اوویل تاسو دلته اودرېږئ. ما یو اور لیدلے دے، کیدے شی چه زهٔ هغه ځائے نه تاسو د پاره څه (ضروری) خبر راوړم یا د اور څه سروټکه راوړم چه تاسو ورته تودهٔ شئ.

فَلَمَّاۤ اَتٰىهَا نُوْدِیَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْاَیْمَنِ فِی الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ اَنْ یّٰمُوْسٰۤى اِنِّیْۤ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ۝۳۰

بیا هرکله چه هغه هغے (اور) ته اورسیدو نو د مبارک ځائے د لوے مبارکے برخے نه یوے ونے سره هغه ته آواز شو چه یه موسیٰ! زهٔ الله یم د ټولو جهانونو رب.

وَاَنْ اَلْقِ عَصَاكَؕ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ یُعَقِّبْؕ یٰمُوْسٰۤى اَقْبِلْ وَلَا تَخَفْ اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِیْنَ۝۳۱

او دا چه ته خپله امسا اوغورزوه بیا هرکله چه هغهٔ (امسا) په خوزیدو اولیده لکه چه یو وړوکے مار دے، هغهٔ په شا منډه کړه او روستو ئے او نهٔ کتل (بیا هغهٔ ته اووئیلے شول) یه موسیٰ! وړاندے شه او مهٔ ویریګه ته سلامتی مونډونکو خلقو کښے ئے.

اُسْلُكْ یَدَكَ فِیْ جَیْبِكَ تَخْرُجْ بَیْضَآءَ مِنْ غَیْرِ سُوْٓءٍ٘ وَّاضْمُمْ اِلَیْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۠ىٕهٖؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِیْنَ۝۳۲

(او) خپل لاس خپل ګرِیوان کښے واچوه، هغه به بے د څهٔ بیمارئ سپین (راُوزی) او خپل لاس د ویرے له کبله په زور را خکلو سره (خپل بدن سره) یو ځائے کړه - دا دواړه دلیلونه (سره د نورو دلیلونو) دی چه فرعون او د هغهٔ درباریانو ته ستا د رب نه رالیږلی شوی دی. وے چه هغوی اطاعت نه وتونکی خلق دی.

قَالَ رَبِّ اِنِّیْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ یَّقْتُلُوْنِ۝۳۳

(موسیٰ) اوویل یه څما ربه! ما د فرعون په قام کښے یو سړے قتل کړے وه بیا زهٔ ویریګم چه هغه ما قتل نکړی (او ستا پیغام او نهٔ رسی).

وَاَخِیْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّیْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِیَ
رِدْاً یُّصَدِّقُنِیْٓ ۡ اِنِّیْٓ اَخَافُ اَنْ یُّکَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾

او ځما ورور هارون خبره کولو کښے ځما نه زیات (فصیح) صفا دے۔ بیا هغه ما سره دَ مددګار په حیث واستوه۔ دے دَ پاره چه هغه ځما تصدیق اوکړی زهٔ ویریږم چه هغوی ځما انکار اونکړی۔

قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِیْكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطٰنًا
فَلَا یَصِلُوْنَ اِلَیْكُمَا ۚ بِاٰیٰتِنَآ ۚ اَنْتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا
الْغٰلِبُوْنَ ﴿۳۵﴾

عند المتقدمین

وے فرمائیل، مونږ به ستا ورور سره ستا مټے مضبوطے کړو او تاسو دواړو دَ پاره به دَ غلبے سامان پیدا کړو بیا هغوی به تاسو ته اونشی رسیدے۔ تاسو دواړه او چه څوک ستاسو منونکی وی به ځمونږ دَ آیتونو په سوب غالب وی۔

فَلَمَّا جَآءَهُمْ مُّوْسٰی بِاٰیٰتِنَا بَیِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَآ
اِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًی وَّمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِیْٓ اٰبَآئِنَا
الْاَوَّلِیْنَ ﴿۳۶﴾

بیا هرکله چه موسیٰ ځمونږ ښکاره ښکاره آیتونو سره راغے نو فرعونیانو اووئیل، دا خو لو فریب دے چه جوړ کړے شوے دے مونږ دَ خپلو زړیکولو نه دا سے خبره کله هُم نهٔ ده اوریدلے۔

وَقَالَ مُوْسٰی رَبِّیْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰی مِنْ
عِنْدِهٖ وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا یُفْلِحُ
الظّٰلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾

او موسیٰ اووئیل، ځما رب هغه څوک چه دَ هغهٔ دَ طرف نه هدایت راوړی ښهٔ پیژنی او هغه هُم چه دَ چا انجام ښهٔ وی۔ حقه دا ده چه ظالم کله هُم مراد ته نهٔ رسی۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ یٰٓاَیُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ
اِلٰهٍ غَیْرِیْ ۚ فَاَوْقِدْ لِیْ یٰهَامٰنُ عَلَی الطِّیْنِ فَاجْعَلْ
لِّیْ صَرْحًا لَّعَلِّیْٓ اَطَّلِعُ اِلٰٓی اِلٰهِ مُوْسٰی ۙ وَاِنِّیْ لَاَظُنُّهٗ
مِنَ الْكٰذِبِیْنَ ﴿۳۸﴾

او فرعون اووئیل چه درباریانو! ما ته دَ خپل ځان نه سوا بل څوک ستاسو معبود معلومه نهٔ دے۔ بیا اے هامان! ماله په لمده خټه اور اولګوه (یعنی خښتے په چا جوړے کړه) بیا ما دَ پاره یوه قلعه جوړه کړه کیدے شی چه زهٔ په دے اوخیژم (او) دَ موسیٰ خدائے معلوم کړم اوزهٔ خو هغه دَ دروغژنو نه ګڼړم۔

وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُوْدُهٗ فِی الْاَرْضِ بِغَیْرِ الْحَقِّ وَ
ظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اِلَیْنَا لَا یُرْجَعُوْنَ ﴿۳۹﴾

او هغه هُم او دَ هغهٔ لښکرو نو هُم ناحقه ملک کښے کبر اوکړو او خیال ئے اوکړو چه هغوی به ځمونږ په طرف واپس نشی راوستلے۔

فَأَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٠﴾

بیا مونږ هغه هُم او دَ هغهٔ لښکرے هُم اونیولے او هغوی موسمندر کښے اوغورزول ، بیا اوګوره چه دَ ظالمانو انجام څنګه شو؟

وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿٤١﴾

او مونږ هغوی (فرعونیانو) له سرداری ورکړے وه چه (دَ خپلے سردارئ په نشه کښے) خلق دَ دوزخ په طرف بلل او دَ قیامت په ورځ به دَ هغوی هیڅ مدد نشی کیدے۔

وَاَتْبَعْنٰهُمْ فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ هُمْ مِّنَ الْمَقْبُوْحِيْنَ ﴿٤٢﴾

او په دے دنیا کښے مونږ په هغوی لعنت واستولو او دَ قیامت په ورځ به هغوی بدحاله خلقو نه وی۔ ع

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِ مَاۤ اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰى بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٣﴾

او مونږ موسیٰ له دَ ړومبنو قامونو دَ هلاکت نه پس کتاب ورکړو دَ هغے تعلیم خلقو ته رُوحانی بصیرت ورکولو او هغه دَ هدایت او رحمت موجب وه (او) په دے غرض (ورکړے شوے وه) چه هغوی نصیحت واخلی۔

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ اِذْ قَضَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسَى الْاَمْرَ وَمَا كُنْتَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٤٤﴾

او ته (دَ طور) غر پرلوا ته طرف ته نهٔ وے هرکله چه مونږ موسیٰ ته (دَ رسالت) کار سپارلے وه او ته (د هغهٔ وخت) ګواهانو نه یو ګواه وے۔

وَلٰكِنَّاۤ اَنْشَاْنَا قُرُوْنًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۚ وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا فِيْۤ اَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۙ وَلٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ﴿٤٥﴾

وے مونږ ډیر قامونه پیدا کړل بیا په هغوی عمرونه اوږد شول (او هغوی خپلے پیش خبرئ هیرے کړے) او ته دَ مدین خلقو سره نهٔ اوسیدے چه هغوی ته دِ څمونږ نشانات اورولے وے ولے هُم مونږ رسولان استوونکی یو۔

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا وَلٰكِنْ رَّحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّاۤ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٦﴾

او ته دَ طور په طرف نهٔ وے هرکله چه مونږ (موسیٰ) ته آواز کړے وه۔ ولے دا هرڅه ستا دَ رب دَ طرف نه رحمت دے۔ دے دَپاره چه ته هغه قام او ویروے چاله چه تا نه آګا هوڅوک هوښیارونکے راغلے نهٔ وه

څکه چه هغوی نصیحت و اخلی ۔

وَلَوْلَآ اَنْ تُصِيْبَهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَيَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝۴۷

او کچیرے دا خیال نهٔ وے چه هغوی به دَ خپلو عملونو له کبله دَ څه مصیبت په راتلو وائی یه څمونږ ربه! تا مونږ ته څوک رسول ولے را او نهٔ لیږلو دے دَ پاره چه مونږ ستا آیتونه خلے وے او مومنانو نه وَے رلوکیدے شی چه مونږ ته دَ رسول په حیث نهٔ وے استولے وے په کافرانو حُجّت پوره کول ضروری وُو ) ۔

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْا لَوْلَآ اُوْتِيَ مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى ۚ اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا بِمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى مِنْ قَبْلُ ۚ قَالُوْا سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا ۟ وَقَالُوْٓا اِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُوْنَ ۝۴۸

بیا هرکله چه هغوی له څمونږ دَ طرف نه حق راغے نو هغوی او وئیل چه ولے دهٔ ته (یعنی محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته) هُم هغسے تعلیم را نغلے څنګه چه موسٰیؑ ته حاصل وه آیا هغوی دَ دے نه آ کا هُو دَ موسٰی دَ تعلیم نه انکار کړے نهٔ وه ؟ هغوی خو دا وئیلی وُو چه دا دوه غټ جادوګردی چه دَ یو بل مدد کوی او وئیلی وو چه مونږ دوی کښے دَ هر یو دَ دعوے نه انکاریان یُو۔

قُلْ فَأْتُوْا بِكِتٰبٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَآ اَتَّبِعْهُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝۴۹

ته ٔ ادوایه چه کچیرے موسٰیؑ او هارونؑ او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ تولو خبرے دروغ دی او ( کچیرے تاسو رښتونی یئ نو دَ الله دَ خوا نه یو داسے کتاب راوړئ چه دَ دے دواړو کتابونو نه زیات هدایت ورکوی ۔ دے دَ پاره چه زهٔ هغه اومنم ۔

فَاِنْ لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكَ فَاعْلَمْ اَنَّمَا يَتَّبِعُوْنَ اَهْوَآءَهُمْ ۚ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝۵۰ ع ۸

بیا که هغوی څه جواب در نکړی نو پوهـ شه چه هغوی بس خپلو غوښتنو پسے زی او هغهٔ نه زیات څوک بے لارے دے چه دَ الله هدایت نه مخ اړولو سره خپل خواهش پسے زی ۔ په تحقیق سره الله ظالم قام ته دَ کامیابی لارے نهٔ ښائی۔

وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۱﴾

او مونږ هغوی د پاره پر له پسې وحی را واستوله دے د پاره چه هغوی نصیحت واخلی۔

ع

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾

هغه خلق چاله چه مونږ دے (قرآن) نه آګاهو کتاب ورکړے وه هغوی په دے (قرآن) د زړهٔ نه ایمان لری۔

وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ ﴿۵۳﴾

او هر کله چه هغه (قرآن) د هغوی وړاندے لوستلے شی نو هغوی وائی چه مونږ په دے ایمان راوړو۔ دا څمونږ د رب برحق کلام دے۔ مونږ خو دے نه وړاندے مسلمانان وُو۔

اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوْا وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۵۴﴾

هغوی ته به د هغوی بدله د صبر له کبله دوه ځله ورکیدے شی او هغوی نیکئ سره د بدی مقابله کوی او چه څه مونږ هغوی له ورکړی دی هغه لګوی۔

وَاِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ اَعْرَضُوْا عَنْهُ وَقَالُوْا لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِى الْجٰهِلِيْنَ ﴿۵۵﴾

او ریهودیانو نه مسلمانان جوړیدونکی چه هر کله) څه فضول خبره اوری نو هغے نه ډډه کوی او وائی په کافرانو! څمونږ عملونه څمونږ د پاره دی او ستاسو عملونه ستاسو د پاره دی په تاسو دِ سلامتی وی (یعنی خدائے دِ ستاسو ایمان نصیب کړی) مونږ جاهلانو سره تعلق ساتل نهٔ خوښوُو۔

اِنَّكَ لَا تَهْدِىْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۵۶﴾

تهٔ په خپله خوښه چاله هدایت نشے ورکولے وے الله چه چاله او غواړی هدایت ورکوی او هغه هدایت موندونکی ښهٔ پیژنی۔

وَقَالُوْٓا اِنْ نَّتَّبِعِ الْهُدٰى مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ اَرْضِنَا ۭ اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىْءٍ رِّزْقًا مِّنْ لَّدُنَّا وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۷﴾

او هغوی وائی کچرے مونږ د دے هدایت چه په تا نازلیګی اتباع اوکړو نو خپل ملک کښے به په ټونګو ټونګو هلاک کړے شو (ته او وایه) آیا مونږ هغوی له محفوظ او امن لرونکی مقام کښے ځائے نهٔ دے ورکړے چرته چه هر قسم میوے راوړے شی دا څمونږ ورکړه ده وے هغوی کښے ډیر څخه نهٔ

پو هیګی۔

وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا ۖ فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَن مِّن بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا ۖ وَكُنَّا نَحْنُ الْوَارِثِينَ ﴿58﴾

او ډیر کلی دی چه مونږ هلاک کړل چه دَ خپل معیشت (دَ ژوند سامانونو) په زیاتی (زیاتوالی) له کبله کبرجن شوی وو. بیا (او ګوره) دا دَ هغوی کلی دی چه پکښې دَ هغوی نه پس هیڅوک پاتې نشول او مونږ دَ هغوئ وارثان شو۔

وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَىٰ حَتَّىٰ يَبْعَثَ فِي أُمِّهَا رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ۚ وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرَىٰ إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَالِمُونَ ﴿59﴾

او ستا رب چه کله پورے په یو مرکزی کلی کښې داسے رسول رانه استوی چه هغوی ته څمونږ آیتونه واوروی نو دَ هغې کلو ګنړه (یعنی ملک) نشو هلاکولے روے چه دا دَ انصاف نه خلاف ده) او مونږ کله هُم کلی نهٔ هلاکوو سوا دَ دے چه دَ هغې اوسیدُونکی ظالمان شی۔

وَمَا أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا ۚ وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿60﴾ ع

او چه څه تاسوله درکوے شی هغه لس دَ دنیاوی ژوند سامان دے او دَ هغې ځائښت دے او چه څه الله سره دی هغه ډیر ښهٔ او باقی پاتے کیدُونکی دی آیا تاسو دَ عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

أَفَمَن وَعَدْنَاهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيهِ كَمَن مَّتَّعْنَاهُ مَتَاعَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْمُحْضَرِينَ ﴿61﴾

آیا هغه سړے چا سره چه مونږ ښهٔ یعنی دَ آخرت دَ ژوند دَ کامیابئ وعده کړی وی او هغه (یقین سره) هغه مونډونکے وی دَ هغه چا په شان کیدے شی چه ورله مونږ دَ دنیاوی ژوند سامان ورکړے وی بیا هغه دَ قیامت په ورځ (دَ خدائے وړاندے جواب ورکولو دَ پاره) پیش کیدُونکے وی۔

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿62﴾

او ریاد کړئ) کومه ورځ چه به هغه (الله) هغوی راغونډوی بیا به تپوس کوی چه څما هغه تاسو جوړ کړی شریکان چرته دی چه تاسو څما په مقابل معبودان ګرزول۔

قَالَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَغْوَيْنَا أَغْوَيْنَاهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۖ تَبَرَّأْنَا إِلَيْكَ ۖ مَا كَانُوا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ ﴿63﴾

(بیا به) چه په چا څمونږ دَ عذاب خبر پوره شوے وی وائی یه څمونږه ربه! دا هغه خلق دی چه مونږ دوئی غلولی وُو۔ مونږ هغوی داسے غلولی وو څنګه چه مونږ خپله

غولیدلی وُو۔ نن مونږ تاسره دَ خپلے گمراهئ نه دَ برئ کیدلو اظهار کوُو۔ هغوی څمونږ عبادت کوُونکی نهٔ وُو ربلکه خپلو خیالاتو پسے روان وو)۔

وَقِيلَ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَرَأَوُا الْعَذَابَ ۚ لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا يَهْتَدُونَ ﴿٦٤﴾

او او به وئیلے شی تاسو خپل شریکان را اوغواړئ بیا به هغوی هغوله راوغواړی وَلے هغی به دَ هغوی جواب نهٔ ورکوی او رشرکان به) مقررشوے عذاب اووینی کاش که هغوی هدایت مونده ے۔

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَا أَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِينَ ﴿٦٥﴾

اوهغه ورځ هُم رایاده کړئ هرکله به چه خدائے هغوی ته آواز کړی او وائی به چه تاسو دَ رسُولانو ردَ وعظ) څهٔ جواب ورکړے وُه ؟

فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنْبَاءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَاءَلُونَ ﴿٦٦﴾

بیا هغه ورځ به ټول دلیلونه هغوی نه هیرشی اوهغوی به یوبل نه هیڅ تپوس اونکړے شی۔

فَأَمَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَعَسَىٰ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ ﴿٦٧﴾

بیا چه څوک توبه اوکړی او ایمان راوړی اومناسب دَ حال عمل اوکړی نزدے به وی چه هغه مراد ته رسیدُونکی خلقو کښے شامل شی۔

وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ ۗ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٨﴾

او ستارب چه څه غواړی هغه پیدا کوی او چه چا له غواړی خوښوی هغوی ته په دے خقله هیڅ اختیار نشته۔ الله پاک دے او دَ هغوی دَ شرک دَ خبرونه بالا دے۔

وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٦٩﴾

او ستارب هغه هُم پیژنی چه هغوی ئے سینو رزړونو) کښے پټوی او هغه هُم چه هغوی ئے ښکاره کوی۔

وَهُوَ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْأُولَىٰ وَالْآخِرَةِ ۖ وَلَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٧٠﴾

او حقیقت دا دے چه دَ الله ذات دا سے دے چه دَ هغهٔ نه سوا دَ عبادت لائق بل څوک نشته دَ پیدا او په شروکښے هُم هغه دَ تعریف لائق وه او آخرت کښے به هُم هغه دَ تعریف مستحق وی۔ ټوله بادشاهی دَ

هغهٔ قبضه کښې ده او تاسو ټولو له به هغهٔ ته واپس تلل وی -

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ﴿۷۱﴾

تهٔ (هغوی ته) اووایه ما ته خواو وائي کچرے الله ستاسو دَ پاره شپه دَ قیامت دَ ورځے پورے اوږده کړی نو دَ الله نه سوا نور څوک دی چه تاسو له به رڼا راولی؟ آیا تاسو نهٔ اورئ ؟

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۷۲﴾

تهٔ اووایه ما ته اوښووائ کچرے الله دَ قیامت دَ ورځے پورے ورځ اوږده کړی نو دَ الله نه سوا څوک معبود دے چه تاسو له شپه راولی چه پکښې تاسو سکون اومومئ - آیا تاسو گورئ نا -

وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾

او دا دَ هغهٔ رحمت دے چه هغهٔ تاسو دَ پاره شپے او ورځے جوړے کړی دی چه هغے (شپه) کښې تاسو سکون حاصل کړئ او (ورځ کښې) تاسو دَ هغه فضل اولټوئ دے دَ پاره چه تاسو شکر کوونکی شئ -

وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ اَيْنَ شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۷۴﴾

او کله به چه هغه هغوئ ته آواز کړی او او به وائی چه کوم ځائے دی هغه ما سره په دروغه نیولی شریکان چه تاسو ورله (معبودان گڼړل) -

وَنَزَعْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا فَقُلْنَا هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ فَعَلِمُوْٓا اَنَّ الْحَقَّ لِلّٰهِ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۷۵﴾ ع

او مونږ به هر امّت نه یو گواه اوودرووبیا به اووایُو خپل دلیل راوړئ بیا به هغوی پوهه شی چه کامل حق هُم دَ الله سره دے او دَ هغوی ټول دروغ تړل به هغوی نه ورک کړے شی -

اِنَّ قَارُوْنَ كَانَ مِنْ قَوْمِ مُوْسٰى فَبَغٰى عَلَيْهِمْ ۪ وَاٰتَيْنٰهُ مِنَ الْكُنُوْزِ مَآ اِنَّ مَفَاتِحَهٗ لَتَنُوْٓاُ بِالْعُصْبَةِ اُولِى الْقُوَّةِ ۗ اِذْ قَالَ لَهٗ قَوْمُهٗ لَا تَفْرَحْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ

قارون (په اصل کښې) دَ موسیٰ دَ قام نه وه وے هغه هُم دَ هغوی خلاف په ظلم رضا شو او مونږ هغه له دومره خزانے ورکړے وے چه دَ هغوی چابیانے یو مضبوط جماعت دَ پاره هُم اوچتول گران وُو (یا دلړئ)

الْفَرِحِيْنَ ﴿٧٦﴾

هرکله چه دَ هغهٔ قام هغهٔ ته اووئیل چه (دومره) فخر مهٔ کوه په تحقیق سره الله فخر کوُونکی نهٔ خوښوی۔

وَابْتَغِ فِيْمَآ اٰتٰىكَ اللّٰهُ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ مِنَ الدُّنْيَا وَاَحْسِنْ كَمَآ اَحْسَنَ اللّٰهُ اِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِى الْاَرْضِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٧٧﴾

او چه څه الله تاله درکړی دی دے سره دَ آخرت دَ ژوند کور اولټوه او دنیوی ژوند نه چه څه برخه تاته حاصله ده هغه هُم مهٔ هېروه (مونږ تا ته څه حده پورے دَ دُنیا دَ آسانو دَ استعمال نه نهٔ منع کوُو) او څنګه چه الله په تا احسان کړے دے ته هُم په خلقو احسان کوه او په ملک کښے دَ فساد کولو کوشش مهٔ کوه په تحقیق سره الله فساد کوُونکی نهٔ خوښوی۔

قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ عِنْدِىْ اَوَلَمْ يَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَهْلَكَ مِنْ قَبْلِهٖ مِنَ الْقُرُوْنِ مَنْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَّاَكْثَرُ جَمْعًا وَلَا يُسْئَلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٧٨﴾

(قارون) اووئیل دا ټوله مرتبه ما ته دَ یو داسے علم له کبله حاصله ده چه بس هُم ما ته حاصله ده آیا هغهٔ ته معلومه نهٔ وه چه دے نه آګاهو الله ډیر نسلونه چه دَ هغهٔ نه ډیر طاقتور او هغهٔ نه زیات مال دارُوو هلاک کړی وو او مجرمانو له (چه کله عذاب ورکیدے شی نو) دَ هغوی دَ ګناهونو پحقله هغوی نه پوښتنه نهٔ کیګی۔

فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ فِىْ زِيْنَتِهٖ قَالَ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا يٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ قَارُوْنُ اِنَّهٗ لَذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿٧٩﴾

یو ورځ داسے اوشوه چه هغه دَ خپل قام ورانډے خپل زینت (یعنی خپل باډی ګارډ) سره اووتو دَ دے په لیدو هغه خلقو چه دَ دنیا سامان ئے خوښتو اووئیل کاش! مونږ ته هُم هغه هرڅه حاصل وے چه قارون ته ورکړے شوی دی هغهٔ ته خو (دَ دُنیا یوه) غټه برخه حاصله ده۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّمَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا وَلَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا الصّٰبِرُوْنَ ﴿٨٠﴾

او کوم خلقو ته چه علم ورکړے شوے وه هغوی اووئیل یه بیړی چیو، دَ الله دَ طرف نه مونډونکی جزا دَ مومن او دَ ایمان سره مناسب عمل کوُونکو دَ پاره ډیره ښه دی

او دا (جزا) بس د صبر کوونکو ته ورکول کېږي (؟) — او دا (جزا) بس د صبر کوونکو تهٔ ملاوېږي.

فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴿۸۱﴾

بيا مونږ هغه او د هغهٔ قبيله په ناروا (کارونو کښې) اخته کړل او هيڅ يو ټولۍ داسې را اونهٔ وتو چه د الله نه سوائې د هغهٔ مدد کړې وې او هيڅ يو ته بيرهُم هغه (د خپل دښمن نه) بچ نکړې شو.

وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ بِالْاَمْسِ يَقُوْلُوْنَ وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ ۚ لَوْلَآ اَنْ مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ۖ وَيْكَاَنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۲﴾

او هغه خلق چه پرونه پورې د هغهٔ د مرتبې خواهش ئې کولو کيا شول چه تهٔ تباه شې په تحقيق سره الله خپلو بنديانو کښې چه د چا د پاره غواړي رزق زياتوي او چه د چا د پاره غواړي تنګوي او کچرې په مونږ الله احسان نهٔ وې کړې نو مونږ دِهُم په مصيبتونو اړولې وې.
تهٔ تباه شې (خبره دا ده چه) کافران هيڅکله مراد ته نهٔ رسي.

تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۸۳﴾

دا (د آخرت ژوند چه دې) دا مونږ هُم هغوی د پاره ساتو چه ملک کښې ناجائزه غلبه او فساد نهٔ غواړي او انجام د متقيانو (ښه) وي.

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۸۴﴾

څوک چه ښهٔ عمل اوکړي هغهٔ ته به د هغې ښه بدله حاصليګي او څوک چه بد عمل اوکړي نو د بدو کارونو کوونکو ته به د هغوی د خپلو عملونو برابر جزا ورکيدې شي.

اِنَّ الَّذِيْ فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ ۚ قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى وَمَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۸۵﴾

هغه خدائې چا چه په تا دا قرآن فرض کړې دې په خپل ذات قسم خوړلو سره وائي چه هغه به تا هغه ځائې ته واپس راولي چرته چه خلق بيا بيا رازي - تهٔ اووايه ځما رب (هغهٔ نه هُم) خبر دې چه په هدايت وي او (هغهٔ نه هُم) چه په ښکاره ګمراهۍ کښې اخته وي.

وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْٓا اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً

او تا (هيڅ) اميد نهٔ لرلو چه په تا به يو مکمل کتاب نازليګي

مِّن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكَافِرِينَ ﴿٨٦﴾

وے ستا دَ رب دَ رحمت په طور دا سے اوشول بیا ته دَ کافرانو کله هُم مددګار مهٔ جوړیګه۔

وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ آيَاتِ اللَّهِ بَعْدَ إِذْ أُنزِلَتْ إِلَيْكَ ۖ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ۖ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٨٧﴾

او دے نه پس چه په تا دَ الله آیتونه نازل شول دَ هغو نه تا هیڅوک منے نکړی او ته دَ خپل رب په طرف (خلق) رابله او مشرکانو کښے شامل نشے۔

وَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ ۘ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ ۚ لَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٨٨﴾

او دَیه او ریدونکیه! (الله نه سوا دَ بل معبود نه مدد) مهٔ غواړه دَ هغهٔ نه سوا هیڅوک دَ عبادت لائق نشته هر یو څیز هلاکیدونکے دے سوا دَ هغے چه ورته رَ دَ الله) مخه وی۔ حُکم دَ هغهٔ په اختیار کښے دے او تاسو ټول به دَ هغهٔ په طرف واپس بوتلے شئ۔

سُوْرَةُ الْعَنْكَبُوْتِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة العنکبوت - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اویا آیتونه او اوه رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ② | زهٔ الله دَ ټولونه زیات علم لرونکے یم۔

اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ ③ | آیا (دَ دے زمانے) خلقو دا خیال کړے دے چه دَ هغوی دا وینا چه مونږ ایمان راوړے دے (به کافی وی) او هغوی به پریښوے شی او دَ هغوی به آزمینبت نهٔ کیګی۔

وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ④ | حال دا چه څوک هغوی نه آګاهُو تیر شوی دی هغوی مونږ آزمائیلی دُو (او اوس هُم به هغه هُم داسے کوی) بیا نو الله به ښکاره کړی هغوی هُم چا چه رښتیا اووئیل او چا چه دروغ اووئیل۔

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ⑤ | آیا چه کوم خلق بدی کوی هغوی خیال کوی چه هغوی به څمونږ دَ سزا نه بچ شی دَ هغوی فیصله ډیره بده ده۔

مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ ؕ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ⑥ | څوک چه الله سره دَ لیدو اُمید لری (ربایه چه هغه نه معلومه وی چه) دَ الله مقرر کړے وخت خامخا راتلونکے دے او هغه ډیر اوریدونکے (او) ډیر خبردار ده دے۔

وَمَنْ جَاهَدَ فَاِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ⑦ | او څوک چه دَ خدائے دَ پاره کوشش کوی په حقیقت کښے هغه هُم خپل ذات دَ پاره کوی الله دَ ټولو جهانونو نه بے نیازه دے او دَ هغوی دَ عبادت محتاجه نهٔ دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَحْسَنَ الَّذِيْ | او کوم خلقو چه ایمان راوړو او دَ ایمان سره سم هغوی کارونه اوکړل مونږ به دَ هغوی بدئ دَ هغوی نه لرے

كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝٨

کړو او چه کوم کارونه هغوی کول دَ هغے مطابق چه کومه ښه جزا به هغوی ته حاصلیدے شی هغه به هغوی ته ورکوو۔

وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِنْ جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۚ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ۝٩

مونږ انسان ته خپل مور پلار سره دَ ښهٔ سلوک کولو حکم ورکړے دے او (ورته مو وئیلی دی چه) کچرے هغوی دواړه تا سره په په دے خبره کښے بحث کوی چه ته ځما شریک جوړ کړه او په حقیقت کښے دَ هغے تا ته څه علم نهٔ وی نو دَ هغوی دواړو مهٔ منه دے چه تاسو ټولو له ما ته واپس راتلل دی او زهٔ به دَ عمل (دَ نیکئ بدئ) نه تاسو خبر کړم۔

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ ۝١٠

او کوم خلقو چه ایمان راوړے دے او دَ هغے سره سم هغوی عمل کړے دے مونږ به هغوی ښو بندیانو کښے شامل کړو۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ فَإِذَا أُوذِيَ فِي اللَّهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللَّهِ وَلَئِنْ جَاءَ نَصْرٌ مِنْ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ۚ أَوَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِمَا فِي صُدُورِ الْعَالَمِينَ ۝١١

او په خلقو کښے (بعضے داسے هُم وی) چه وائی مونږ په الله ایمان راوړے دے بیا هرکله چه دَ الله په لاره کښے هغوی ته تکلیف ورکیدے شی نو هغوی دَ خلقو عذاب دَ الله دَ عذاب په شان ګڼړی او کچرے ستا دَ رب دَ طرف نه څه مدد راځی نو هغوی وائی (په حقیقت کښے) مونږ هُم تاسو سره وُو آیا چه دَ دنیا جهان دَ خلقو په زړونو کښے چه څه دی هغے نه الله ښه خبر نه دے؟

وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ ۝١٢

او الله به خامخا ښکاره کوی هغوی هُم چه ایمان ئے راوړو او هغوی هُم چه منافق دی۔

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ وَمَا هُمْ بِحَامِلِينَ مِنْ خَطَايَاهُمْ مِنْ شَيْءٍ ۖ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ۝١٣

او کافران مومنانو ته وائی تاسو مونږ پسے راځئ مونږ به ستاسو ګناهونه اوچتوُو۔ حقیقت کښے هغی دَ هغوی ګناهونه هډو اوچتولے نشی په تحقیق سره هغوی دروغژن دی۔

وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ۖ وَلَيُسْأَلُنَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَمَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿١٣﴾

حقیقت دا دے چه هغوی به خپل پیتی هُم اوچتوی او دَ خپلو پیټو نه سوا به دَ نورو خلقو پیتی هُم اوچتوی رچاله چه هغوی دهوکه ورکوی ) او دَ قیامت په ورځ به دَ هغوی نه دَ دے دروغو پخقله تپوس کولے شی۔ ع ١٣

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلٰى قَوْمِهِ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا فَأَخَذَهُمُ الطُّوفَانُ وَهُمْ ظٰلِمُونَ ﴿١٤﴾

او مونږ نوحؑ دَ هغهٔ دَ قام په طرف استولے وه بیا هغه هغوی کښے نهٔ نیم سوه ٩٥٠ کاله پاتے شو بیا دَ هغهٔ دَ قام خلق طوفان اونیول او هغوی ظالمان وُو۔

فَأَنْجَيْنٰهُ وَأَصْحٰبَ السَّفِينَةِ وَجَعَلْنٰهَا آيَةً لِّلْعٰلَمِينَ ﴿١٥﴾

بیا مونږ هغه او دَ هغهٔ په کشتیٔ کښے ناست ملګری بچ کړل او مونږ دا واقعه دَ ټولو جهان دَ خلقو دَ پاره نشان اوګرزوله۔

وَإِبْرٰهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوهُ ۖ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٦﴾

او (مونږ) ابراهیمؑ (هُم دَ رُسول په حیث استولے وه) هرکله چه هغه خپل قام ته وئیلی وُو چه دَ الله عبادت کوئ او دَ هغهٔ تقویٰ کوئ که چرے تاسو پوهیږئ نو دا تاسو دَ پاره ډیره ښه ده۔

إِنَّمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ أَوْثَانًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا ۚ إِنَّ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوا عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوهُ وَاشْكُرُوا لَهُ ۖ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿١٧﴾

تاسو دَ الله نه سوا دَ نورو وجودُونو عبادت کوی او (دَ مذهب پخقله) په دروغه خبرے جوړوئ۔ هغوی دَ چا چه دَ الله نه سوا تاسو عبادت کوی تاسو ته رزق نشی درکولے بیا دَ الله نه خپل رزق غواړئ او دَ هغهٔ عبادت کوئ او دَ هغهٔ شُکر کوئ۔ تاسو به هُم دَ هغهٔ په طرف واپس بوتللے شئ۔

وَإِنْ تُكَذِّبُوا فَقَدْ كَذَّبَ أُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ۖ وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِينُ ﴿١٨﴾

او که چرے تاسو ځما خبره په دروغه ګڼړئ نو (دا ځهٔ نوے خبره نهٔ ده) تاسو نه وړومبنو قامونو هُم (دَ خپلو رُسولانو) انکار کړے وه او دَ رُسول کار خو لیس په ښکاره ښکاره رسول وی (په زور په چا منل نهٔ وی)۔

أَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۚ

آیا هغوی ته معلومه نهٔ ده چه الله دَ عالمونو پیدا وښت

اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿٢٠﴾

ځنګه په رومبنی ځل شروکوی بیا هغه بیابیا واپس کوی- دا کار دَ الله دَ پاره ښهٔ آسان دے-

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢١﴾

تهٔ اووایه ملک کښے څلورواړه طرف ته اوګرزئ بیا اوګورئ چه دَ مخلوقاتو پید اوښت ځنګه شروکړے وه بیا دَ مرګ نه پس ئے هغوی بیا ځنګه ژوندی کول- الله په هر یو څیز قادر دے-

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ ﴿٢٢﴾

هغه چه چاله غواړی عذاب ورکوی اوپه چاچه غواړی رحم کوی او هُم هغه ته به تاسو واپس بوتللے شئ-

وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ؗ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿٢٣﴾ ع

اوتاسو نهٔ په زمکه نهٔ په آسمان خدائے دَ هغه دَ رضا خلاف مجبوروَلے شئ اودَ خدائے نه سوا څوک ستا دوست شته او نهٔ څوک مددګار-

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖۤ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٢٤﴾

او هغه خلق دَ الله دَ نښانانو او هغهٔ سره دَ ملاقات کیدلو نه انکارکوی هغه خلق داسے دی چه څما دَ رحمت نه ناامیده شوی دی او هُم هغوی دی چاته به چه دردناک عذاب رسی-

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٢٥﴾

بیانو دَ هغهٔ (یعنی دَ ابراهیمؑ) دَ قام جواب دَ دے نه سوا څهٔ نهٔ وُه چه هغوی اووئیل دے قتل کړئ یا دے اوسوزوئ (بیانو هغوی هغه اور کښے واچولو) ولے الله هغه دَ اور نه اوساتلو- په تحقیق سره دے کښے دَ مومن قام دَ پاره لوئے نښانات دی-

وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ؗ وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٢٦﴾

(ابراهیمؑ) اووئیل تاسو دَ الله نه سوا بُتانو سره تعلق جوړ کړے دے (اوستاسو دا کار) دُنیا دی ژوند کښے نورو مشرکانو سره دَ مینے زیاتولو دَ پاره (دے) بیا دَ قیامت په ورځ به تاسو کښے بعضے دَ بعضو انکارکوی او تاسو کښے به بعضے په بعضو لعنت اچوی اوستاسو ځائے

به دوزخ وی او څوک چه تاسو مدد دکار کنړئ هغوی کښے به
څوک ستاسو مدد له نهٔ رازی -

فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ اِنِّیْ مُهَاجِرٌ اِلٰی رَبِّیْ ؕ اِنَّهٗ
هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ﴿۲۶﴾

دے (نصیحت) نه پس لوطؑ په هغه ایمان راوړو (او
ابراهیمؑ) او وئیل زهٔ خو دخپل رب په طرف هجرت کوونکے
یم - په تحقیق سره هغه غالب (او) د لوئے حکمت څاوند
دے -

وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ وَجَعَلْنَا فِیْ ذُرِّیَّتِهِ
النُّبُوَّةَ وَالْکِتٰبَ وَاٰتَیْنٰهُ اَجْرَهٗ فِی الدُّنْیَا ۚ وَاِنَّهٗ فِی
الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِیْنَ ﴿۲۷﴾

او مونږ هغه له اسحاقؑ او یعقوبؑ ورکړل او د هغهٔ
اولاد سره مونبوت او کتاب مخصوص کړو او مونږ هغهٔ
ته دُنیا کښے هُم د هغهٔ اجر ورکړو او آخرت کښے به هُم
هغه نیکانو کښے شامل وی -

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اِنَّکُمْ لَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ ۫ مَا
سَبَقَکُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۲۸﴾

او لوطؑ هُم (مونږ د رسُول په حیث اولیږلو) هر کله
چه هغهٔ خپل قام ته او وئیل چه تاسو یوه داسے بدی
کوی چه هغه په دنیا کښے تاسو نه آګا هو چا نهٔ وه کړے -

اَئِنَّکُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِیْلَ ۙ۬ وَ
تَاْتُوْنَ فِیْ نَادِیْکُمُ الْمُنْکَرَ ؕ فَمَا کَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ
اِلَّاۤ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ کُنْتَ مِنَ
الصّٰدِقِیْنَ ﴿۲۹﴾

آیا تاسو (د ښځو په ځائے) سړو له رازئ او دا کے اچوئ
او خپلو محفلو نو کښے ناخوښه حرکتونه کوئ د دے په
او ریدو د هغهٔ د قام جواب بس دے نه سوا هیڅ نهٔ
وه چه هغوی او وئیل چه کچرے ته رښتینو خلقو کښے
ئے نو د الله عذاب په مونږ نازل کړه -

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِیْ عَلَی الْقَوْمِ الْمُفْسِدِیْنَ ﴿۳۰﴾

د دے په او ریدو لوطؑ او وئیل یه ځما ربه! د فسادی قام
خلاف ځما مدد او کړه -

وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَاۤ اِبْرٰهِیْمَ بِالْبُشْرٰی ۙ قَالُوْۤا اِنَّا
مُهْلِکُوْۤا اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْیَةِ ۚ اِنَّ اَهْلَهَا کَانُوْا
ظٰلِمِیْنَ ﴿۳۱﴾

او هر کله چه ځمونږ رُسولانو ابراهیمؑ له زیرئ راوړو نو هغوی
او وئیل مونږ د دے کلی خلق هلاکوونکی یو ولے چه د دے
اوسیدُونکی ظالمان دی -

قَالَ اِنَّ فِیْهَا لُوْطًا ؕ قَالُوْا نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَنْ فِیْهَا ۫ لَنُنَجِّیَنَّهٗ وَاَهْلَهٗۤ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۫ کَانَتْ مِنَ

(ابراهیمؑ جواب کښے) او وئیل چه دے (کلی) کښے خو لوطؑ
هُم اوسی - هغوی او وئیل مونږ د دے (کلی) اوسیدُونکی)

الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

بنځه پېژنو. مونږ به هغه (يعنې لوطؑ) او د هغه د کور خلق سوا د هغه د ښځې چه روستو پاتې کېدونکو کښې به شامله شي بچ کړو.

وَلَمَّآ اَنْ جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوْطًا سِيْٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَّ قَالُوْا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ اِنَّا مُنَجُّوْكَ وَ اَهْلَكَ اِلَّا امْرَاَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۳﴾

او هر کله چه څمونږ رسولان لوطؑ له راغلل نو د هغوئ په سوب هغهٔ ته تکليف اورسيدو او ورسره د هغوی له کبله د هغه زړهٔ تنګ شو او (د هغهٔ د دے حال په ليدو هغو پيغام راوړونکو) اووئيل په څه (راتلونکې) خبره مهٔ ويرېږه او مهٔ په څه تېره شوے واقعه افسوس کوه. مونږ تاله او ستا د کور خلقو له سوا ستا د ښځې نه چه روستو پاتې کېدونکو کښې به شامله شي، نجات درکوونکي يو.

اِنَّا مُنْزِلُوْنَ عَلٰٓى اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۳۴﴾

مونږ په خلقو د (دے کلي د هغوی د نافرمانۍ له کبله عذاب راوستونکي يو.

وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ اٰيَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۳۵﴾

او مونږ د دے کلي (د دواقعے په سوب) د ښکاره عبرت سامان د عقل د خاوندانو د پاره روستو پرېښے دے.

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۙ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۳۶﴾

او د مدين په طرف مونږ د هغوی رور شعيبؑ د رسول په حيث استولے وه (هر کله چه هغه راغے نو) هغهٔ اووئيل يه څما قامه! د الله عبادت کوئ او د آخرت د ورځے وخت يادساتئ او دا سے د فساد کارونه مهٔ کوئ چه ملک کښے ستاسو د کارونو له کبله فساد خور شي.

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿۳۷﴾

د دے په اوريدو هغوی د هغهٔ انکار اوکړو او ئے تر کوونکي عذاب هغوی اونيول چه د هغے په نتيجه کښے هغوی خپلو کورونو کښے (زنګنو سره) انختی په انختی پاتے شول.

وَعَادًا وَّ ثَمُوْدَا۠ وَقَدْ تَّبَيَّنَ لَكُمْ مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَ كَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ﴿۳۸﴾

او عاد هُم او ثمود هُم (څمونږ د طرف نه يو ئے تر کوونکي عذاب اونيول) او (ئيه د ملکے خلقو!) په تاسو د هغوی د کلو حال ښکاره دے او شيطان هغوی ته د هغوی عملونه ښـــهٔ

ورښکاره کړل او هغهٔ (شيطان) هغوی (دَ الله) دَ لارے نه منع کړل، حال دا چه هغوی ښهٔ پوهيدل۔

وَقَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ ۟ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ وَمَا كَانُوْا سٰبِقِيْنَ ۝۳۹

او قارون او فرعون او هامان (مونږ عذاب کښے اخته کړل)، او موسٰی هغوی له ښکاره ښکاره نښانانو سره راغلے وه بيا هُم (هغوی او نهٔ منودل بلکه) هغوی ملک کښے کبر او کړو او (خمونږ دَ عذاب نه) په تيښته بچ نشول۔

فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝۴۰

بيا مونږ هغوی کښے هر يو دَ هغهٔ دَ ګناه په سوب اونيوه بيا نو هغوی کښے څوک خو داسے وه چه مونږ په هغهٔ دَ کانړو باران اوورولو او څوک داسے وه چه هغه موږه بل سخت عذاب او نيوه او څوک داسے وه چه مونږ هغه ملک کښے ذليل کړو او څوک داسے وه چه مونږ هغه غرق کړل او الله په هغوی ظُلم کونکے نهٔ وه بلکه هغوی خپله په خپلو ځانونو ظلم کولو۔

مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ ۖۚ اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ۗ وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝۴۱

دَ هغو خلقو حال چا چه دَ الله په ځائے نور دوستان جوړ کړل دَ جولا دَ حال په شان دے چا چه (خپل ځان دَ پاره) يو کور جوړ کړو وے کورونو کښے دَ ټولو نه کمزورهُم دَ جولا وی، کاش! دوئ پوهيدئ۔

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۴۲

الله تعالیٰ پيژنی هر هغه څيز کوم چه دا خلق ئے دَ هغهٔ نه سوا (خپل مدد له) غواړی او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝۴۳

او دا مثالونه دی چه مونږ ئے خلقو دَ پاره بيانوو وے عالمانو نه سوا څوک ئے هُم خپل پلو سره نهٔ تړی۔

خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝۴۴

الله آسمانونه او زمکه خاص مقصد دَ پاره پيدا کړی دی دے کښے دَ مومنانو دَ پاره يو لوئے نښان دے۔ ع

اُتْلُ مَآ اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ﴿٤٥﴾

دےکتاب (یعنی قرآن) نه څه چه تا ته وحی کیږی هغه لوله (او خلقو ته ئے اوروه) اولمونځ (دَ دے ټولو شرطونو سره) کوه - په تحقیق سره لمونځ دَ ټولو بدو او ناخوښه خبرونه منع کوی او دَ الله (تعالیٰ) یاد په تحقیق سره (دَ نورو ټولو کارونونه) لوئے دے او الله ستاسو دَ عملونو علم لری -

وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِالَّذِیْٓ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَاِلٰهُنَا وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿٤٦﴾

او اهل کتابو سره هیچرے بحث مهٔ کوئ وے دَ اعلیٰ او کوټلو دلیلونو سره سوا دَ هغه خلقوچه په هغوی کښے ظلم کوُونکی وی (هغوی ته الزامی جواب ورکولے شئ) او هغوی ته اووایه چه څه په مونږ نازل شوی دی مونږ په دے هُم ایمان راوړو او څه چه په تاسو نازل شوی دی په هغے هُم. او څمونږ او ستاسو خدائے یو دے او مونږ دَ هغهٔ حُکم منُونکی یُو -

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ﴿٤٧﴾

او هُم دا شان مونږ په تا دا مکمل کتاب نازل کړے دے - بیا نو هغه خلق چه چاله مونږ دا کتاب ورکړے دے هغوی په دے ایمان راوړی او دَ هغو خلقو نه (یعنی دَ کتاب دَ منُونکو نه هُم) څنے په دے ایمان راوړی او څمونږ دَ آیتونو نه په ضد انکار بس هُم کافران کوی -

وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِكَ اِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿٤٨﴾

او دَ دے (یعنی قرآن) دَ نازلیدو نه آګاهو نهٔ تا څه کتاب لوستلو نهٔ دے خلقو ته اورولو او نهٔ دے خپل ښے لاس سره لیکلو - کچرے دا سے وے نو انکار کوُونکی په شک کښے پریوتے وے -

بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِیْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٩﴾

وے دا (قرآن) خوښکاره نښانات دی دَ هغه خلقو په زړونو کښے چاله چه علم ورکړے شوے دے او ظالمانو نه سوا څمونږ دَ نښانانو څوک انکار نهٔ کوی -

وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَاتٌ مِّن رَّبِّهِ ۖ قُلْ إِنَّمَا
الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥١﴾

او هغوی وائی چه ولے د ده د رب له اړخه په ده باندے څه نښانات را کوز شوی نه دی او وایه چه نښانات خو خدائے سره دی (هر کله چه هغه فائده وینی را کوزوی) او زه خو یو ښکاره ښکاره هوښیاروونکے یم۔

أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ۚ
إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحْمَةً وَذِكْرَىٰ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٢﴾ ع

آیا هغوی له (دا نښان) کافی نه وه چه مونږ په تا یو کامل کتاب (یعنی قرآن) نازل کړو چه هغوی ته اوروے شی دے خبره کښے د مومنانو د پاره خو د لوئے رحمت او نصیحت سامان دے۔

قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ شَهِيدًا ۖ يَعْلَمُ مَا فِي
السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوا
بِاللَّهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٥٣﴾

ته او وایه څما او ستاسو تر منځه د ګواه په طور فیصله کوونکے بس هم الله کافی دے۔ او څه چه آسمانونو او زمکه کښے دی هغے له هغه پیژنی او څوک چه په ناحقو عمل کوی او د الله (تعالیٰ) د حکمونو انکار کوی هم هغوی نقصان کښے پرېوتونکی دی۔

وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ ۚ وَلَوْلَا أَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَاءَهُمُ
الْعَذَابُ وَلَيَأْتِيَنَّهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٥٤﴾

او هغوی تا نه د عذاب د زر راوستو غوښتنه کوی او که چرے یو ټاکلے وخت نه وے نو عذاب به دوی له راغلے وے۔ او اوس هم به هغه هغوی له ناڅاپه راځی او) ناسا په راځی۔ په داسے حال چه هغوی به پوهېګی هم نه۔

يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ﴿٥٥﴾

(او) هغوی تا نه د عذاب د زر راوستو مطالبه کوی او په تحقیق سره دوزخ کافرانو له تباه کوونکے دے۔

يَوْمَ يَغْشَاهُمُ الْعَذَابُ مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ
أَرْجُلِهِمْ وَيَقُولُ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٥٦﴾

کومه ورځ به (چه د دوزخ عذاب کافران ګیر کړی او تباه به ئے کړی) دا به هغه ورځ وی چه خدائی عذاب به هغوی د پورته نه هم پټ کړی او د هغوی د پښو د لاندے نه به هم په وتلو هغوی را ګیر کړی او (خدائے) به وائی د خپلو عملونو نتیجه او څکئ۔

يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾

یه ځما مومنانو بندیانو! ځما زمکه خوره ده بیانو تاسو هُم ځما عبادت کوئ۔

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ﴿۵۷﴾

هر دَ ساه څیز دَ مرګ خوند اخستونکے دے۔ بیا هُم مونږ ته به تاسو (ټول) واپس ګرزولے شئ۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۵۸﴾

او څوک چه ایمان راوړی او دَ هغے سره سم عمل هُم کوی مونږ به هغوی له په جنت کښے په بالاخانو کښے ځائے ورکوو۔ (د اسے جنت کښے) چه دَ هغے دَ رسیو (ونو) لاندے به نهرونه بهیګی۔ هغوی (یعنی مومنان) به هغه جنتونو کښے تل ترتله اوسی۔ او دَ ښهٔ عمل کوونکو اجر ډیر ښه وی۔

اَلَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۵۹﴾

دَ هغو (مومنانو) چه څوک (په خپله عقیده او عمل باندے) ټینګ ولاړ وی او په خپل رب توکل کوی۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا اللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۶۰﴾

په دے دنیا کښے ډیر ځناور هُم شته چه خپل ځان سره (لکه دَ انسانانو) خپل رزق نهٔ ګرزوی۔ هُم الله هغوی له رزق ورکوی او تاسو له هُم او هغه ډیرے دعاګانے اوریدونکے (او) دَ حالاتو نه ښهٔ خبر دے۔

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۶۱﴾

او که تهٔ دغه خلقو نه تپوس اوکړے چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی او نمر او سپوږمئی (ربے دَ مزدورئ) چا دَ انسانانو په خدمت کښے لګولی دی؟ نو هغوی به اووائی چه الله (ربیا هر کله چه هغوی ته دا معلومه ده) نو کوم خوا هغوی غلولے شی۔

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۶۲﴾

هُم الله خپلو بندیانو کښے چه چاله غواړی رزق زیاتوی او چاله چه غواړی کموی په تحقیق سره الله (تعالیٰ) دَ هر څیز نه ښهٔ خبر دے۔

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ

او که تهٔ هغوی نه تپوس اوکړے چه دَ وریځو نه چا

الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۶۳﴾

اوبهٔ ورولے دی ؟ او بیائے په هغے زمکه دَ هغے دَ مرګ نه پس ژوندئ کړے ده ؟ نو هغوی به وائی په تحقیق سره الله، ته اووایه چه ټول تعریفونه هُم الله لره دی۔ وَلے هغوی (یعنی انسانانو) کښے ډیرُخنے نهٔ پوهیګی۔

وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ؕ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۴﴾

او دا دَ دُنیا ژوند بس دَ غفلت او دَ لوبو سامان دے۔ او دَ آخرت دَ ژوند کور بس په رښتیا دَ اصلی ژوند کور بللے شی۔ کاش چه هغوی ته معلومه وے۔

فَاِذَا رَكِبُوْا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۶۵﴾

اوکله چه هغوی په کشتئ کښے سوریګی نو خالص الله (تعالیٰ) سره خپل تعلق ښکاره کولو نه پس دَ هغهٔ نه دعاغواړی وَلے هرکله چه هغه هغوی بچ کولو سره اوچے ته اورسوی نو ناسا په بیا شرک کول شروکړی۔

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۚۙ وَلِيَتَمَتَّعُوْا ۫ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۶﴾

دَ پاره دَ دے چه څه مونږ هغوی له ورکړی دی دَ هغے انکار اوکړی (او هغه انعام دَ خُدائے نه سوا نورو شریکانو سره اوتړی) او دَ هغے (ونخښیزے توبے) نتیجه دا وی چه (الله تعالیٰ هغوئ پریږدی او) هغوئ څه مودے پورے دَ دنیا دَ سامانونو نه فائده اوچتوی بیا نو (ریوه ورځ به دا بخښنه ختمه شی او) هغوی به (خپله اصلی جزا) اوګوری۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ ﴿۶۷﴾

آیا هغوی ته معلومه نهٔ ده چه مونږ حرم (یعنی مکه) دَ امن ځائے جوړ کړے دے او دَ هغوئ ګیرچاپیره (یعنی بهر دَ مکے نه) خلق په شوغو اوچتولے شی نو آیا هغوی په دروغږنو ایمان راوړی او دَ الله (تعالیٰ) دَ نعمت نه انکار کوی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۶۸﴾

او چه کوم سړے په الله (تعالیٰ) دروغ تړی دَ هغهٔ نه زیات ظالم څوک کیدے شی یا (دَ هغهٔ نه) څوک

چه دَ رښتیا خبرے هغه وخت انکار کوی هر کله چه هغه هغهٔ له راشی - آیا دَ داسے کافرانو ځائے په دوزخ کښے نهٔ دے پکار۔

وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ ع

او هغوی (خلق) څوک چه مونږ سره دَ لیدو تکل کوی مونږ به خامخا هغوی ته دَ خپلو لارو په طرف دَ راتلو وس ورکوو - او الله (تعالیٰ) په تحقیق سره دَ محسنانو ملګرے دے۔

## سُوْرَةُ الرُّوْمِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اِحْدٰى وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةُ رُكُوْعَاتٍ

سورۃ روم دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے یو شپیتنه آیتونه او شپږ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(زه) دَ الله په نوم (لولم) چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ②

زه الله دَ ټولونه زیات علم لرم۔

غُلِبَتِ الرُّوْمُ ③

دَ روم خلق (یعنی دَ قیصر ملګری) په نزدے یو ځوکاله

فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ④

کښے یو ځل بیا غالب شی۔ دَ دے پیښے نه وړاندے به هُم

فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۬ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ

دَ الله حکومت وی او روستو به هُم (دَ هغهٔ حکومت

وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑤

وی) او هغه ورځ به مومنان دَ الله په مدد ډیر خوشحاله وی۔

بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ⑥

الله چه څوک خوښوی دَ هغه مدد کوی او هغه غالب (او) بیا بیا فضل کوونکے دے۔

وَعْدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ⑦

دَ الله وعده (ښهٔ یاد لرئ او) الله خپلے وعدے دروغ نه ګرزوی وَلے ډیر خلق په دے خبره نهٔ پوهیګی۔

يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۖۚ وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ⑧

هغه خلق دَ دے دنیا دَ ژوند ظاهر (یعنی دَ دے شان او شوکت) خوښهٔ پیژنی وَلے دَ آخرت دَ ژوند نه دَ سره ناخبره دی۔

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۫ مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكٰفِرُوْنَ ⑨

آیا هغوی چرے خپل زړونو کښے دا غور نهٔ دے کړے چه آسمانونه او زمکه او څه چه دَ هغو ترمنځه دی خدائے څه حکمت سره او دَ یو ټاکلی شوی وخت دَ پاره پیدا کړی دی۔ وَلے خلقو کښے ډیر دَ خپل رب دَ ملاقات نه انکاریان دی۔

اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاَثَارُوا

آیا هغوئ په زمکه نهٔ دی ګرزیدلی او دا ئے نهٔ دی لیدلی چه څوک دَ هغوی نه وړاندے وُو دَ هغوی انجام څهٔ شوے

الْاَرْضَ وَعَمَرُوْهَآ اَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا وَجَآءَتْهُمْ
رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ
كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۰﴾

وُو ، هغوی د هغو نه زیات طاقت لرونکی وُو او هغوی زمکه ښه اړولې (یعنې قُلبه کړې) وه او هغه ئې د دې نه زیاته آباده کړې وه څهٔ چه هغوی کړی دی او د هغوی رسولان هغوی له سره د دلیلونو راغلی وُو ځکه چه د الله شان سره نهٔ جوړیده چه په هغوی ئې ظلم کړې وے - ولې هغه خلقو په خپلو ځانونو خپله زیاتی کولو۔

ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِيْنَ اَسَآءُوا السُّوْٓاٰى اَنْ كَذَّبُوْا
بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَكَانُوْا بِهَا يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۱﴾ ع

بیا د هغه خلقو چا چه بد کارونه کړی وُو د الله د آیتونو نه د انکار په سوب عاقبت خراب شو او هغوی د الله آیتونو سره خندا کوله۔

اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۱۲﴾

الله د عالمونو پیدا او ښت شروکوی هُم او دا ئې بیا بیا کوی هُم۔ بیا تاسو ټول به د هغهٔ په طرف واپس کړزوے شئ۔

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۱۳﴾

او چه په کومه ورځ به قیامت شی مجرمان به نااُمیده شی۔

وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ شُفَعٰٓؤُا وَكَانُوْا
بِشُرَكَآئِهِمْ كٰفِرِيْنَ ﴿۱۴﴾

او چه کوم هغوی د خدائے شریک جوړول هغوی کښې به څوک هُم د هغوی شفاعت کوونکے نهٔ جوړیګی او هغوی به د خپلو (جوړ کړو) شریکانو انکار اوکړی۔

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ ﴿۱۵﴾

او چه په کومه ورځ به قیامت شی هغه ورځ به ټول (مشرکان) ځان ځان له شی۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَهُمْ فِيْ رَوْضَةٍ
يُّحْبَرُوْنَ ﴿۱۶﴾

بیا هغه خلق چا چه ایمان راوړو او چا چه د خپل ایمان سره سم عمل هُم اوکړو هغوی ته به د اوچت شان باغ کښې خوشحالی رسولے شی۔

وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ
فَاُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ﴿۱۷﴾

او هغه (خلق) به چا چه کفر اوکړو او زمونږ د آیتونو او د آخرت د ژوند د حاصلیدو انکار ئې اوکړو د عذاب وړاندے راوستلے شی۔

فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ﴿۱۸﴾

بیانو د الله ثنا صفت بیانوئ هرکله چه په تاسو ماښام

شی یا سحر شی۔

وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ﴿١٩﴾

او آسمانونو او زمکه کښے هُم دَ هغهٔ تعریف دے او دَ غرمے نه پس هُم دَ هغه ثنا صفت بیانوئ او هُم دا شان دَ (سرے) غرمے هُم۔

يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿٢٠﴾ ع

هغه ژوندی دَ مړی نه اوباسی او مړی دَ ژوندی نه را اوباسی او زمکه دَ هغے دَ مرګ نه پس را ژوندۍ کوی او هُم دا شان تاسو به هُم را اوباسلے شئ۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ اِذَآ اَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ ﴿٢١﴾

او دَ هغهٔ دَ نښانانو نه (یو) دا (نښان) هُم دے چه هغهٔ تاسو دَ خاورے نه پیدا کړئ بیا دَ دے پیدا وښت له کبله تاسو لښر جوړ شئ او (ټوله زمکه کښے) خوارهٔ شئ۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢٢﴾

او دَ هغهٔ دَ نښانانو نه (یو) دا (نښان) هُم دے چه هغه ستاسو دَ قِسم نه تاسو له جوړے پیدا کړی دی ځکه چه تاسو هغوی نه په (قُربت) سکُون او مومئ او ستاسو ترمنځه ئے دَ مینے او رحم تعلق پیدا کړے دے۔ دے کښے فکر کوُونکی قام دَ پاره ډیر نښانات دی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْعٰلِمِيْنَ ﴿٢٣﴾

او دَ هغهٔ په نښانانو کښے دَ آسمانونو او زمکے پیدا کول او ستاسو دَ ژبو او ستاسو دَ رنګونو اختلاف هُم دے۔ دے کښے ټولو علم لرونکو دَ پاره ډیر نښانات دی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَابْتِغَاۗؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ﴿٢٤﴾

او دَ هغهٔ په نښانانو نه دَ شپے او دَ ورځے ستاسو اودهٔ کیدل او دَ هغهٔ دَ فضل دَ حاصلولو دَ پاره خواری کول هُم دی۔ دے کښے دَ اوریدُونکی قام دَ پاره ډیر نښانات دی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاۗءِ مَاۗءً فَيُحْيٖ بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿٢٥﴾

او دَ هغهٔ نښانانو نه دا هُم دے چه هغه تاسو ته دَ بجلۍ پړق دَ ویرے او طمعے پیدا کولو دَ پاره ښائی او ورېځے نه اوبهٔ وروی بیا هغے سره زمکه دَ هغے دَ مرګ نه پس

را ژوندی کوی۔ دے کښے د عقل د خاوندانو د پاره نښانات دی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ بِاَمْرِهٖ ؕ ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً ۖ مِّنَ الْاَرْضِ ۖ اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ ﴿۲۵﴾

او د هغهٔ د نښانانو نه د آسمانونو او زمکے د هغهٔ په حکم او دریدل هُم دی۔ بیا ر د هغهٔ د انسان په هُم ښکاره کیګی چه ) کله به هغه تاسو نه د زمکے نه د راوتو د پاره یو آواز درکړی نو ناساپه به تاسو د زمکے نه راوتل شرو کړئ۔

وَلَهٗ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۲۶﴾

او آسمانونو او زمکه کښے ر او سیدُونکی ) ټول ځیرزونه د هغهٔ حُکم منوُونکی دی۔

وَهُوَ الَّذِىْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾

او هغه د ر عالمونو ) پیدا وخت شرو کوی هُم او بیا بیا د اسے کوی هُم۔ او دا کار د هغهٔ د پاره ډیر آسان دے او آسمانونو او زمکه کښے هُم د هغهٔ شان د ټولونه اوچت دے۔ او هغه غالب ر او ) د ډیر حکمت خاوند دے۔

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ؕ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِىْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾

هغه ستاسو لپوهولو د پاره هُم ستاسو د جنس یو حالت بیان کړے دے رچه هغه دا دے ) چه هغه د کوم خلقو ستاسو ښی لاسونه مالکان وی آیا په هغوی کښے څوک په هغے رمال ) کښے چه کوم مونږ تاسو له درکړے دے ستاسو هومره شریک هُم وی۔ دا سے چه تاسو ټول رمالک او غلام ) په هغه رمال او دولت ) کښے برابر شئ او د هغو مړیو نه دا سے ویریګئ څنګه چه تاسو د خپل شان نه ویریګئ۔ دا شان مونږ د عقل لرونکی قام د پاره نښانات صفا صفا بیانوُو۔

بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ فَمَنْ يَّهْدِىْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾

و لے ر ښتیا دا دی چه ) ظالمان بے د څه عمله خپلو غوښتنو پسے روان شوی دی او څوک چه الله بے لارے کړی هغه څوک په لاره کولے شی ر او ) د هغوی رخلقو)

به څوک مددګار نهٔ وی.

فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۭ فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِىْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۭ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ڎ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۱﴾

بیا نو ته ځپله تهوله توجه دین ته کړه په داسے دول چه تا کښے هیڅ کږی نهٔ وی (نهٔ) دَ الله په (پیدا کړی) فطرت شه (هغه فطرت) چه په څه باندے الله خلق پیدا کړی دی. دَ الله په پیدا وښت کښے هیڅ تبدیلی نشی کیدے. هُم دَ الله پاتے کیدونکے دین دے ولے ډیر خلق نهٔ پوهیږی.

مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۳۲﴾

(بیا نو) تاسو دَ هغهٔ (خدائے) په طرف ما تید وسره دَ فطرت دین خپل کړئ او دَ هغهٔ تقویٰ اوکړئ او نمونځ دَ هغے دَ شرطونو سره کوئ او دَ مشرکانو نه مهٔ کیږئ.

مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا ۭ كُلُّ حِزْبٍۢ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ﴿۳۳﴾

یعنی دَ هغو (مشرکانو) نه چه چا خپل دین ناکاره کړو او (دین ئے برخے کولو سره) بیلو بیلو فرقو کښے شول او هره یوه ډله په دے خیال خوشحاله ده چه کومه برخه موږ اخستے ده هُم هغه ښه ده.

وَاِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَآ اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۴﴾

او چه کله انسانانو ته څه تکلیف اورسی نو هغوی خپل رب هُم هغهٔ ته په تېتيدو بلی. بیا چه دَ هغهٔ له خوا نه هغوی ته څه رحمت اورسی نو هغوی کښے یوه ډله دَ خپل رب خلاف شریک جوړول شروکړی.

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۭ فَتَمَتَّعُوْا ۣ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۵﴾

چه دَ هغے نتیجه دا وی چه څهٔ مونږ (خدائے) هغوئ له ورکړی وی هغوی عمل سره دَ هغے نه انکار شروکړی (نو بیا) هغوی ته او وئیلے شی دُنیا نه چه څهٔ فائده اوچتول دی او چته ئے کړئ ځکه چه تاسو به ژر خپل انجام اووینئ.

اَمْ اَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۶﴾

آیا مونږ هغوی له (دَ شرک) څهٔ دلیل راکوز کړے دے چه هغه هغوی ته هغه خبرے کوی چه کومے هغوی دَ شرک پهقله بیانوی.

وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوا۟ بِهَا ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ
سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ ۳۶

چه کله مونږ خلقو سره دَ رحم سلوک کوُدلو هغوی په دے خوشحاله شی او کچرے هغوی ته دَ خپلو وړاندینو عملونو له کبله څه تکلیف اورسی نو هغوی ناساپه مایُوسه شی۔

أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَ
يَقْدِرُ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ
يُؤْمِنُونَ ۳۷

آیا هغوی نهٔ دی لیدلی چه الله چه چاله غواړی رزق زیاتوی او چه چاله اوغواړی کموی۔ دے کښے ایمان راوړونکو دَ پاره ډیر نښانات دی۔

فَـَٔاتِ ذَا ٱلْقُرْبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلْمِسْكِينَ وَٱبْنَ ٱلسَّبِيلِ ۚ
ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ ٱللَّهِ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ
هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ۳۸

بیا نو پکار دهٔ چه هر کله خدائے رزق زیات کړی نو یه دَ قرآن لوستونکیه) خپل مسکین او مسافر ته دَ هغهٔ حق ورکړه۔ دا خبره ډیره ښه دهٔ هغه خلقو له چه څوک دَ الله رضا حاصلول غواړی۔ او هُم هغه خلق مراد مُوندُونکی دی۔

وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَا۟ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ فَلَا
يَرْبُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ ۖ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن زَكَوٰةٍ تُرِيدُونَ
وَجْهَ ٱللَّهِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُضْعِفُونَ ۳۹

او چه کومه پیسه تاسو دَ سُود حاصلولو دَ پاره ورکوئ دَ پاره دَ دے چه هغه دِ دَ خلقو په مالونو کښے زیاته شی نو هغه پیسه دَ الله په وړاندے نهٔ زیاتیگی او څهٔ چه تاسو دَ الله دَ رضا حاصلولو دَ پاره دَ زکوٰة په طور ورکوئ نو یاد لرئ چه هُم دا قِسم خلق دَ خدائے سره (پیسه) زیاتوی۔

ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ
يُحْيِيكُمْ ۖ هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَفْعَلُ مِن ذَٰلِكُم
مِّن شَىْءٍ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۴۰ ع

الله هغه دے چه چا تاسو پیدا کړی یُ بیا هغهٔ تاسو له رزق درکړے دے۔ بیا به هغه تاسو وژنی بیا به هغه تاسو ژوندی کوی۔ آیا ستاسو (تجویز کړو) شریکانو کښے څوک هُم داسے شته چه دَ دے کارڅه برخه هُم کوی؟ هغه دَ هغوئ دَ شرک نه پاک او اوچت شان لرُونکے دے۔

ظَهَرَ ٱلْفَسَادُ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِى
ٱلنَّاسِ لِيُذِيقَهُم بَعْضَ ٱلَّذِى عَمِلُوا۟ لَعَلَّهُمْ
يَرْجِعُونَ ۴۱

ردے زمانه کښے) په اوچه اولمده دَ خلقو دَ کارونو له کبله فساد ښکاره شوے دے چه نتیجه به ئے داوی چه خدائے به خلقو ته دَ هغوی دَ عملونو دَ څه برخے سزا ردے دُنیا کښے) ورکوی۔ دے دَ پاره چه هغوی (دَ خپلے نافرمانئ نه) راوگرزی۔

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ ﴿۴۲﴾

ته او وايه - ملک کښې اوګرزئ او اوګورئ چه کوم خلق تاسو نه وړاندے وُو د هغوی انجام څهٔ شوے وهٔ - هغوئ کښے ډیر مشرکان وُو -

فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ ﴿۴۳﴾

بیا نو ته خپل پام تل پاتے کیدُونکی دین ته واړوه دے نه اګا هو چه هغه ورځ راشی چه د کومے د لرے کولو د پاره د الله د خوا نه هیڅ علاج نهٔ دے راکوز شوے په کومه ورځ به چه هغوئ (کافران او مومنان) یو بل نهٔ بیل شی -

مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ ﴿۴۴﴾

چا چه کفر اوکړو په هغهٔ به د هغهٔ د کفر بیستئ وی او چا چه د خپل ایمان سره سم عمل اوکړو هغه د خپل ځان د ښیګړے د پاره تیاری لګیا دے کوی -

لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۴۵﴾

دے د پاره چه خدائے مومنانو او د خپل ایمان سره سم عمل کُوونکو ته په خپل فضل جزا ورکوی - په تحقیق سره هغهٔ انکاریانو سره مینه نهٔ کوی -

وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۴۶﴾

او د هغه په نښانانو کښے یو نښان د هوا کانو زیری سره راستول هُم دے او هغه ځکه داسے کوی چه هغه په تاسو (مینه د) رحمت اوڅکوی - او کشتئ د هغه په حکم روانے شی او تاسو د هغهٔ فضل حاصل کرئ او تاسو شکرګزار ولې شئ -

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا اِلٰى قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا ؕ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۷﴾

او مونږ تا نه وړاندے ډیر رسُولان د هغوئ قامونو ته استولی وُو بیا هغوئ هغوله ښکاره ښکاره نښانونه راوړل او مونږ د مجرمانو نه مناسب بدله واخسته او د مومنانو مدد کول ځمونږ فرض دی -

اَللّٰهُ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَيَبْسُطُهٗ فِي السَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ وَيَجْعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ فَاِذَآ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ

الله هغه دے چه بادُونه راستوی بیا هغه بادونه د وریځو په شکل کښے هوا ړاوچتوی بیا هغه چه څنګه غواړی آسمان کښے ئے خوروی او هغه ټکړے ټوټے

عِبَادِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۴۹﴾

کوی او تهٔ باران وینے چه دَ هغے روریځے ) نه راځی - بیا هرکله چه خدائے هغه وریځه خپلو بندیانو کښے چاله خوښوی هغهٔ ته ئے رسوی نو ناساپه هغوی خوشحاله شی۔

وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ﴿۵۰﴾

سره دَ دے چه هغوی دَ دے ( یعنی باران ) دَ نازلیدو نه وړاندے دَ سره نا اُمیده شوی وُو۔

فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۵۱﴾

بیا ( یه اوربیدُونکیه ! ) دَ الله دَ رحمت نښانو ته گوره چه هغه څنگه زمکه دَ مرگ نه پس راژوندی کوی - او هغه په هر څیز قادر دے۔

وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ﴿۵۲﴾

او که چرے مونږ هوا راولو او دا خلق هغه ( یعنی پټی ) زیړ زیړ اووینی نو دَ دے نه ارے نه پس ( یه ځائے دَ نصیحت حاصلولو ) په ناشکره شی۔

فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۵۳﴾

( بیا تهٔ هغوی دے ته پریږده ) ځکه چه نهٔ خو تهٔ مړو ته اورولے شے او نهٔ کڼرو تهٔ هغه وخت ( خپل ) آواز اورولے شے هرکله چه هغوئ په شا اوگرزی۔

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۵۴﴾ ع

او نهٔ تهٔ ړاندهٔ دَ کږے لارے نه په راړولو په لاره کولے شے تهٔ بس هغوی ته اورولے شے چه څوک زمونږ په آیتونو ایمان راوړی او هغوی منُونکی جوړ شی۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَيْبَةً ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ﴿۵۵﴾

الله هُم هغه دے چا چه تاسو دا سے حال کښے پیدا کړئ چه تاسو کښے کمزوری وه بیا دَ کمزورئ نه پس ئے تاسو له توان درکړو بیا دَ توان نه پس ئے ناتوانی او بوډاتوب درکړو هغه چه څه څیز اوغواړی پیدا کوی او هغه ( پیر علم لرُونکے راو ) دَ قدرت خاوند دے۔

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ؕ كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴿۵۶﴾

او چه کومه ورځ به تاکلے وخت راشی مجرمان به قسمونه خوری چه هغوی دَ یو لږ وخت نه سوا ( دنیا کښے ) نهٔ دی پاتے شوی - هغوی هُم دا شان گډے وډے خبرے جوړوی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ
فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَ
لٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۵۶﴾

او هغه خلق به چا ته چه علم او ایمان ورکړے شوے دے وائي تاسو د الله په حساب تر دے ورځے پاتے يئ چه کومه ستاسو راپورزیدو مقرره وه- او زیادلری چه) هم دا د بیا راپورزیدو ورځ ده- وے تاسو نه پوهیدئ-

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ
يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿۵۷﴾

بیا نو به ظالمانو ته د هغوی هیڅ عذر ګټه نه ورکوی او نه به هغوی ته معافئ سره تړلیږی د راتلو بخت ورکیدے شی-

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ
مَثَلٍ وَلَئِنْ جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ لَّيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا
اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُبْطِلُوْنَ ﴿۵۸﴾

او مونږ د خلقو له مخه دے قرآن کښے د هر قسم خبرے صفا صفا بیان کړی دی او که چرے ته هغوی له څه اشان راوړے نو کافران به خامخا وائی چه تاسو خلق خو بس د دروغو خبرے وړاندے کوونکی يئ-

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۹﴾
فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِيْنَ
لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۶۰﴾

هم دا شان الله د بے علمه خلقو په زړونو مهر لګوی-

ربیا په د قرآن اوریدو نکیه!) په ټینګه ربه خپل ایمان)
ع ۶ ولاړ اوسه - د الله وعده به خامخا پوره کیګی او بکار ده
چه کوم خلق یقین نه لری هغوی تا په دهوکه ر د خپل ځائے
نه) لرے نکړی-




سورۃ لقمان - دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے پنځه دیرش ۳۵ آیتونه او څلور ۴ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١
(شروکوم) دَ الله په نوم چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ۝٢
زه الله دَ هر څه نه ښهٔ پوهیږم۔

تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ۝٣
دا (یعنې دَ دے سورۃ آیتونه) دَ هغه کامل کتاب آیتونه دی چه ډیر حکمتونه لری۔

هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ۝٤
(او) خپل فرضونه په صحی ډول ادا کوونکو دَ پاره هدایت او رحمت دے۔

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝٥
هغه خلق چه نمونځ (دَ دے دَ شرطونو سره) ادا کوی او (غریبانو او مسکینانو ته) زکوٰۃ ورکوی او دَ آخرت په ژوند یقین لری۔

اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝٦
دا خلق دَ خپل رب نه په راتلونکی هدایت هُم تینګ ولاړ دی او هُم دا سے خلق به (په هر میدان کښے) مراد ته رسی۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۚ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝٧
او خلقو کښے څنے داسے دی څوک چه (خپلے پیسے بے ځایه لګولو سره) دَ لوبو توکو خبرے اخلی (اخلی دَ پاره دَ دے چه بے دَ څه علمه خلق دَ الله دَ لارے نه منع کړی. او هغه (یعنی دَ الله لاره) خندنئ کړی دا سے خلقوله به دَ ذلت نه ډک عذاب وی۔

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا كَاَنَّ فِيْٓ اُذُنَيْهِ وَقْرًا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝٨
او هر کله چه دَ دا سے سړی وړاندے زمونږ آیتونه لوستے شی نو هغه کبر سره شا کړی. لکه چه هغهٔ هغه هډو اوریدلی نه دی (هغه تردے حده بے پروا هم کوی) لکه چه دَ هغهٔ په غوږونو کښے کونړوالی دے بیا نهٔ هغهٔ ته دَ یو دردناک عذاب ضروری خبر وا وروه۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ ﴿٩﴾

په تحقیق سره هغه خلق چا چه ایمان راوړو او چا چه دَ هغے مناسب عمل اوکړو هغوی ته به دَ نعمتونو نه ډک باغونه حاصلیګی۔

خَالِدِينَ فِيهَا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٠﴾

چه په هغو کښے به هغوی اوسیګی دا دَ الله کړے پخه وعده ده او هغه غالب (او) دَ ډیر حکمت خاوند دے۔

خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ۖ وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ ۚ وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿١١﴾

هغهٔ آسمان بے دَ څه ستنو پیدا کړے دے څنګه چه تاسو وینئ او زمکه کښے ئے غرونه دَ دے ویرے اچولی دی چه هغه سره تاسو په سخته زلزله کښے آخته نشی۔ او دے کښے دَ هر قسم ځنا ورخوارهٔ کړل او دَ وریځونه ئے اوبهٔ وروے دی بیا دے کښے ئے هر قسم خالسته جوړے پیدا کړے دی۔

هَٰذَا خَلْقُ اللَّهِ فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ الَّذِينَ مِن دُونِهِ ۚ بَلِ الظَّالِمُونَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿١٢﴾ ع

دا دَ الله پیدا اوښت دے بیا تاسو ما ته اوښائی چه دَ هغهٔ نه سوا څوک چه تاسو شریک ګرزوئ هغوی څهٔ پیدا کړی دی (هیڅ نا) ولے حقه دا ده چه ظالمان ښکاره په غلطه دی۔

وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ أَنِ اشْكُرْ لِلَّهِ ۚ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ ۖ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿١٣﴾

او مونږ لقمانؑ ته حکمت ورکړے وه او (ورته مو) وئیلی وُو چه دَ الله شکر کوه او چه څوک شکر کوی دَ هغهٔ دَ شکر کولو ګټه هُم هغهٔ ته رسی او څوک چه ناشکری کوی (هغه دِ یاد اوساتی چه) الله دَ ټولو شکرونو نه بے نیازه دے او دَ ډیر ثنا صفت لائق دے۔

وَإِذْ قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴿١٤﴾

او (یاد کړئ) هرکله چه لقمانؑ خپل ځوئ ته نصیحت کولو سره او وئیل یه ځما ځویه! الله سره څوک هُم شریک مهٔ ګرزوه په تحقیق سره شرک ډیر لوئے ظُلم دے۔

وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ

او مونږ دے وینا سره چه ځما او دَ خپل مور پلار شکر کوه۔ انسان ته دَ خپل مور پلار پحقله (دَ احسان کولو) په کلکه

اِلَیَّ الْمَصِیْرُ ﴿۱۵﴾

حُکم ورکړے وه راو) دَهغهٔ مورهغه دَکمزورئ رلوے
مودے نه) پس دَکمزورئ ربل دور) کښے اوچت کړے وه
اودَهغهٔ شودهٔ پرېخودل دَ دوو کالومودهٔ کښے وو -
ریاد لره چه) هُم ماله به رستا) راګرزیدل وی۔

وَاِنْ جَاهَدٰكَ عَلٰۤى اَنْ تُشْرِكَ بِیْ مَا لَیْسَ لَكَ بِهٖ
عِلْمٌ ۙ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِی الدُّنْیَا مَعْرُوْفًا ۖ
وَّاتَّبِعْ سَبِیْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَیَّ ۚ ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُكُمْ
فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

اوکه هغوی دواړهٔ تاسره بحث اوکړی چه ته څوک ما
سره شریک اونړه دَچا چه تا ته هیڅ علم نشته نودَهغوی
دواړو خبره مهٔ منه او دَ دُنیا کارونو کښے هغوی سره
ښهٔ تعلقات ساته اوهغه سړی پسے زه څوک چه ما ته
تهیتیکی اوستاسو دَ ټولو واپس راګرزیدل هُم ما ته دی
هغه وخت به زهٔ تاسوستاسو دَعمل نه خبردارهٔ کړم۔

یٰبُنَیَّ اِنَّهَاۤ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِیْ
صَخْرَةٍ اَوْ فِی السَّمٰوٰتِ اَوْ فِی الْاَرْضِ یَاْتِ بِهَا اللّٰهُ ؕ
اِنَّ اللّٰهَ لَطِیْفٌ خَبِیْرٌ ﴿۱۷﴾

رلقمان اووئیل چه) یه ځما ځوئیه! خبره داده چه که یوعمل
دَ غوښتو دَ دانے برابر هُم وی بیا هغه ردَغوښتو دَ
دانے برابرعمل چرته) کا نړی کښے یا آسمانونو کښے یازمکه
کښے پټ وی نو الله به هغه ښکاره کړی۔ الله دَباریک
نه باریک رازمونډونکے او ډیرخبرداره دے۔

یٰبُنَیَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ
وَاصْبِرْ عَلٰى مَاۤ اَصَابَكَ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴿۱۸﴾

یه ځما ځویه! نمونځ ردَټولو شرطونو سره) کوه اودَ ښو
خبروحُکم ورکوه او دَ ناخوښو خبرونه منع کوه اوچه څهٔ
رګرانه سختنه) تا ته اورسی په هغے صبرکوه - دا خبره په
تحقیق سره ډیره دَهمت دَ کارونونه ده۔

وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِی الْاَرْضِ مَرَحًا ؕ
اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ﴿۱۹﴾

اوخپل ننګی رځُله) دَخلقو په وړاندے رپه قهر) مه
پړسوه او زمکه کښے کبرسره مهٔ ګرزه - الله په تحقیق سره
دَ ځان لوئ کوونکی او فخرکوونکی سره مینه نهٔ کوی۔

وَاقْصِدْ فِیْ مَشْیِكَ وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ ؕ اِنَّ
اَنْكَرَ الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ ﴿۲۰﴾ ع ۲

اوخپل تګ منځو مانه ساته اوخپل آوازتهیت ساته رځکه
چه) په آوازونو کښے دَټولو نه زیات ناخوښه آوازدَخر
آواز دے رچه ډیر اوچت وی)۔

اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَاَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ﴿۲۰﴾

آیا تاسو (خلقو) نهٔ دی لیدلی چه الله هرڅه چه آسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی ستاسو په خدمت لګولی دی او په تاسوئے خپل نعمتونه که هغه ښکاره وی که پټ دَ اوبو په شان بهولی دی او خلقو کښې څوک داسې دی چه بے دَ څه علمه او بے دَ څه هدایة او بے دَ څه روښانه کتاب دَ دلیل نه دَ الله په حقله بحث کوی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطٰنُ يَدْعُوْهُمْ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿۲۲﴾

او چه کله هغوی ته او وئیلے شی چه څه الله نازل کړی دی هغے پسے زئ نو وائی نا! مونږ به هغے پسے زُو چه په کومه مونږ خپل پلار نیکونه لیدلی وُو۔ آیا که شیطان (دَ هغوی دَ پلار نیکونو په سوب) هغوئ دَ دوزخ عذاب په طرف غواړی (بیا به هُم هغوی داسے کوی)۔

وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗۤ اِلَى اللّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ؕ وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ﴿۲۳﴾

او چه څوک سړے خپل عمل کښے هُم ښهٔ محتاط دے نو هغه داسے دے چه (لکه چه) هغهٔ یوه مضبوطه دسته نیولے ده او هُم دَ الله په طرف دَ ټولو کارونو انجام کرزی۔

وَمَنْ كَفَرَ فَلَا يَحْزُنْكَ كُفْرُهٗ ؕ اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۲۴﴾

او څوک چه کفر اوکړی دَ هغوی کُفر دےتا غمژن نکړی هغوی ته به آخر هُم ځمونږ په طرف راګرزیدل وی بیا به مُونږ هغوی دَ هغوی دَ عملونو دَ حقیقت نه خبروُو
الله په تحقیق سره دَ سینے دننه ټولو خبرونه خبر دے۔

نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ اِلٰى عَذَابٍ غَلِيْظٍ ﴿۲۵﴾

مونږ به هغوی ته څه موده پورے دَ دُنیا فائده رسوُو بیا به مونږ هغوی په مجبورئ دَ ډیر سخت عذاب په طرف بوُزو۔

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾

او که ته هغوی نه تپوس اوکړے چه آسمان او زمکه چا پیدا کړی دی نو هغوی به خامخا وائی چه الله۔ ته هغوی ته او وایه (صحی ده) ټول تعریف دَ الله دے ولے هغو منکرانو کښے ډیر دَ دے خبرے علم نهٔ لری۔

لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۷﴾

آسمانونو او زمکه کښې چه هرڅه دی دَ الله دی۔ الله په تحقیق سره هغه (ذات) دے چه څوک (دَ هر عبادت او ستائنے نه) بے پرواه دے (او دے سره سره) هغه دَ ټولو تعریفونو لائق دے۔

وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۸﴾

او کچرے زمکه کښې چه څومره ونے دی دَ هغے نه قلمونه جوړ شی او سمندر (دَ سیاهئ نه ډک وی۔ داشان) اوه نور دَ سیاهئ سمندرونه دے کښې ګډ کړے شی نوبیا به هم دَ الله نښانونه ختم نشی۔ الله په تحقیق سره غالب (او) دَ ډیرو حکمتونو خاوند دے۔

مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ ۗ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ ۢ بَصِيْرٌ ﴿۲۹﴾

ستاسو دَ ټولو پیدا ونت او ستاسو ژوندی اوچتول بس دَ یو سړی دَ پیدا ونت په شان دی الله په تحقیق سره ډیر اوریدونکے (او) ډیر کتونکے دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۡ كُلٌّ يَّجْرِيْۤ اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۳۰﴾

آیا تا نهٔ دی لیدلی چه الله شپه په ورځه کښې داخلوی او ورځ په شپه کښې داخلوی۔ او نمر او سپوږمئ هغهٔ په خدمت لګولی دی۔ دے کښې هر یو تر یو مقرره مودے پورے روان دی۔ او الله ستاسو دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے۔

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الْبَاطِلُ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۳۱﴾ ع

دا هرڅه دے دَ پاره کیږی چه دَ الله ذات رښتونے او قائم پاتے کیدونکے دے او دے دَ پاره چه څوک هغوی دَ هغهٔ نه سوا مدد له غواړی هغوی دروغژن او فنا کیدونکی دی۔ او الله په تحقیق سره ډیر اوچت او لوئے شان لرونکے دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿۳۲﴾

آیا تا نهٔ دی لیدلی چه کشتئ دَ الله نعمت سره سمندر کښې ګرزی دَ پاره دَ دے چه هغه تاسو ته خپل نښانات اوښائی۔ دے کښې دَ هر یو ښه صبر کوونکی او هر یو ښهٔ شکر کوونکی بنده دَ پاره ډیر نښانات دی۔

وَاِذَا غَشِيَهُمْ مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۗ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ﴿۳۲﴾

او هرکله چه هغوی لوه چپه لکه دَ سیوری په شان پټ کړی نو هغوی عبادت بس الله له خاص کولو سره هغهٔ نه مدد غواړی بیا چه کله هغه هغوی له دَ اوچے په طرف نجات ورکړی نو هغوی کښے څه خلق ......ما نه اوسی راوڅه بیا هُم هغه شان ظُلم اوشرک شروړی) او څمونږ دَ آیتونو انکار بس بد عهده اوناشکره کوی۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ ۖ وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا ۚ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۳۳﴾

یَه خلقو! دَخپل رب تقویٰ اوکړئ او دَ هغه ورځے نه اوویریګئ چه په کومه ورځ به یو پلار دَ خپل ځوئے په کار رانشی او نهٔ څوک ځوئے به دَ خپل پلار په کار راتلے شی۔ دَ الله وعده خامخا پوره کیږی بیا دَ دُنیا ژوند تاسو دهوکه نکړی او نهٔ دهوکه ورکونکے شیطان تاسو دَ الله پحقله دهوکه کړی۔

اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ ۗ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۗ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌۢ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۳۴﴾

ع ۴ / ۱۲

دَ قیامت (یا دَ یوقام آخری فیصلے) علم خو بس الله ته دے او هُم هغه باران نازلوی او دَ رمو ریالو یه) کیږو وکښے چه څه دی دَ هغے علم لری او دَ چا علم نشته چه صبا به هغه څهٔ عمل کوی او نهٔ څوک سړے پوهیګی چه هغه به په کومه زمکه مری۔ هُم الله په تحقیق سره علم لرونکے (او) خبر داره دے۔




سورة السجدة-دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے یو دیرش (۳۱) آیتونه او درے (۳) رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه د الله چه ډیر زیات مهربانه (او) بیابیا رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ②

زهٔ الله یم چه هرڅانه زیات علم لرم۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ③

د دے کتاب (چه دا یو سورة دے) عالمونو د رب د خوا نه راکوزیدل یو یقینی خبره ده چه پکښے هیڅ شک نشته۔

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۚ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ④

آیا هغه خلق وائی چه دے سړی (یعنی محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) دا د ځانه جوړ کړے دے۔ دا سے نهٔ ده بلکه دا کتاب ستا د رب نه نازلیدونکے (او قائم پاتے کیدونکے) دے۔ دے د پاره چه ته هغه قام هوښیار کړے چاله چه تا نه وړاندے هیڅ یو رسول نهٔ دے راغلے۔ دے د پاره چه هغوی هدایت اوموی۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۭ مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا شَفِيْعٍ ۭ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ⑤

الله هغه دے چا چه آسمانونه او زمکه او څه چه د دے دواړو ترمنځه دی دا ټول شپږو وختونو کښے پیدا کړل د هغے نه پس هغه د حکومت په عرش ټینګ قائم شو ستاسو د هغهٔ (خدائے) نه سوا بل څوک حقیقی دوست شته او نهٔ سفارشی، آیا تاسو نصیحت نهٔ آخلئ۔

يُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَاۗءِ اِلَى الْاَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗٓ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ⑥

هغه به آسمان نه تر زمکے پورے خپل حکم د خپل تدبیر سره سم قائموی بیا به هغه د هغے په طرف یو داسے وخت کښے چه د هغے شمیر زر کاله دے چه د هغے سره سم تاسو دنیا کښے شمیر کوئ۔ ختل شروکړی۔

ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ⑦

دا د غیبو او حاضر علم لرونکے (خدائے) دے څوک چه

غالب (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

الَّذِیۡۤ اَحۡسَنَ کُلَّ شَیۡءٍ خَلَقَهٗ وَبَدَاَ خَلۡقَ الۡاِنۡسَانِ مِنۡ طِیۡنٍ ۚ ﴿۸﴾

چا چه څه هُم پیدا کړی دی دَ اعلیٰ طاقتونو نه یئے پیدا کړی دی او انسان ئے دَ لمدے خاورے نه پیدا کړے دے۔

ثُمَّ جَعَلَ نَسۡلَهٗ مِنۡ سُلٰلَةٍ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِیۡنٍ ۚ ﴿۹﴾

بیا دَ هغهٔ نسل یئے دَ یوے بے قدره لهٔ قسم څیز دَ خلاصے (یعنی منی) نه پیدا کړے دے۔

ثُمَّ سَوّٰىهُ وَنَفَخَ فِیۡهِ مِنۡ رُّوۡحِهٖ وَجَعَلَ لَکُمُ السَّمۡعَ وَالۡاَبۡصَارَ وَالۡاَفۡـِٕدَةَ ؕ قَلِیۡلًا مَّا تَشۡکُرُوۡنَ ﴿۱۰﴾

بیائے هغهٔ له کامل طاقتونه ورکړل او هغے کښے ئے دَ خپل طرف نه ساه واچوله او تاسوله ئے غوږونه او سترګے او زړونه جوړ کړل۔ ولے تاسو هلاو شُکر نهٔ کوئ۔

وَقَالُوۡۤا ءَاِذَا ضَلَلۡنَا فِی الۡاَرۡضِ ءَاِنَّا لَفِیۡ خَلۡقٍ جَدِیۡدٍ ؕ بَلۡ هُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّهِمۡ کٰفِرُوۡنَ ﴿۱۱﴾

او هغوی وائی چه آیا کله مونږ په زمکه کښے ورک شُو نو مونږ به دَ یو نوی مخلوق په شکل او دربیے شُو ردا خلق دَ دے نوی پیدا اوښت منکرنهٔ دی) بلکه دَ خپل رب دَ ملاقات نه منکر دی۔

قُلۡ یَتَوَفّٰىکُمۡ مَّلَکُ الۡمَوۡتِ الَّذِیۡ وُکِّلَ بِکُمۡ ثُمَّ اِلٰی رَبِّکُمۡ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۲﴾ ع ۱۳/۱۴

تهٔ او وایه چه هغه دَ مرګ فرښته څوک چه په تاسو مقرره ده خامخا به ستاسو روحُونه اخلی بیا به تاسو خپل رب ته واپس ګرزولے شئ۔

وَلَوۡ تَرٰۤی اِذِ الۡمُجۡرِمُوۡنَ نَاکِسُوۡا رُءُوۡسِهِمۡ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؕ رَبَّنَاۤ اَبۡصَرۡنَا وَسَمِعۡنَا فَارۡجِعۡنَا نَعۡمَلۡ صَالِحًا اِنَّا مُوۡقِنُوۡنَ ﴿۱۳﴾

او که تا ته هغه حال معلوم شی کله چه به مجرمان دَ خپل رب په وړاندے ښکته سرُونه ولاړ دی او وائی به یه ځمونږه ربه! مونږ (چه تا څه وئیلی وُو) اولیدل او واوریدل بیا تهٔ مونږه واپس کړه دَ پاره دَ دے چه ستا دَ حُکم سره سم عمل اوکړو۔ مونږه اوس ستا په خبره پوره یقین کړے دے۔

وَلَوۡ شِئۡنَا لَاٰتَیۡنَا کُلَّ نَفۡسٍ هُدٰىهَا وَلٰکِنۡ حَقَّ الۡقَوۡلُ مِنِّیۡ لَاَمۡلَـَٔنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الۡجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجۡمَعِیۡنَ ﴿۱۴﴾

او که مونږ غوښتے نو هر سړی له به مو مناسب دَ هغه دَ حال هدایت ورکړے وے۔ ولے ځما خبره پوره شوه چه

زه به خامخا دوزخ د جناتو او انسانانو ډکوم.

فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ إِنَّا نَسِينٰكُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٤﴾

بیا د دن ورځے ملاقات د هیرولو په سوب او د خپلو عملونو له کبله د اوږد عذاب خوند واخلئ او (یاد لرئ چه) مونږ هم (دن) تاسو د خپل ذهن نه غورځولی یئ (یعنی ستاسو پروا کول مو پریخودی دی).

إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ إِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿١٥﴾ السجدة

ځمونږ په آیتونو خو هم هغه خلق ایمان راوړی چه هرکله هغوی ته د هغوی پحقله وریادکړے شی نو هغوی سجده کښے په مزکه پریوزی او د خپل رب ثنا او صفت کوی او کبر نه کوی.

تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۫ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿١٦﴾

(او) د هغوی (یعنی مومنانو) اړخونه د هغوی د لبسترونه بیل شی (یعنی تهجد و د پاره ) او هغوی خپل رب ته د هغه د عذابونو نه بچ کیدو د پاره او د هغهٔ د رحمتونو د حاصلولو د پاره فریاد کوی او څه چه مونږ هغوی له ورکړی دی. د هغے نه د خدائے په لاره کښے لګوی.

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٧﴾

او (حقیقت دا دے چه) هیڅوک علم نهٔ لری چه هغوی (مومنانو) د پاره د هغوی د عملونو په بدل کښے څه څه سترګے یخونکی څیزونه پټ ساتلی شوی دی.

أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا ۭ لَا يَسْتَوٗنَ ﴿١٨﴾

آیا چه څوک مومن وی د هغه په شان کیدے شی چه نافرمانه وی. دا دے خلق چرے نشی برابریدے.

أَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَأْوٰى ۫ نُزُلًا بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾

هغه خلق چا چه ایمان راوړے دے او د هغے سره سم هغوی عملونه کړی دی. هغوی ته به د استوګنے د جنتونه حاصلیګی. دا به د هغوی د عملونو سره میلمستیا وی.

وَأَمَّا الَّذِيْنَ فَسَقُوْا فَمَأْوٰىهُمُ النَّارُ ۖ كُلَّمَآ أَرَادُوْآ أَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَآ أُعِيْدُوْا فِيْهَا وَقِيْلَ لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿٢٠﴾

او څوک چه اطاعت نه وتلی دی. هغوئ له به استوګنے د پاره دوزخ وی. هرکله به هم چه د هغے نه د وتو اراده اوکړی هم هغے ته به واپس کوے شی او هغوی ته به وئیلے

شی چه اوس دَ دوزخ هغه عذاب اوڅکئ چه تاسو ترے انکار کولو۔

وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُوْنَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٢٢﴾

او دَ هغه لوئے عذاب نه وړاندے به مونږ (دے دُنیا کښے) دَ وړوکی عذاب خوند هُم په هغوی اخلو۔ دے دَ پاره چه هغوی راوګرزی (او توبه اوکړی او دَ آخرت دَ عذاب نه بچ شی)۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ۭ
اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ مُنْتَقِمُوْنَ ﴿٢٣﴾ ع ۲ ۱۱ ۱۵

او چا ته چه دَ هغهٔ دَ رب آیتونه ور یاد کړے شی بیا هغه مخ واړوی دَ هغهٔ نه زیات ظالم څوک کیدے شی۔ مونږ به خامخا دَ مجرمانو نه بدل اخلو۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَاۗىِٕهٖ وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ﴿٢٤﴾

او مونږ موسیٰ ته کتاب ورکړے وه بیا تهٔ هُم دَ لو کامل کتاب دَ حاصلیدو په حقله شک مهٔ کوه۔ او مونږ هغه (کتاب) دَ بنی اسرائیلو دَ پاره هدایت جوړ کړے وه۔

وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ڜ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿٢٥﴾

او مونږ هغوی نه امامان جوړ کړی وُو چا به چه څمونږ په حُکم خلقو ته هدایت ورکولو۔ په دے سوب چه هغوی ټینګ او دریدل او هغه خلقو څمونږ په آیتونه مکمل یقین لرلو۔

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٢٦﴾

ستا رب خو هغه دے چه (دَ دے دَ خدائے کلام رسُونکو او) دَ هغوئ (منکرانو) ترمنځه به دَ قیامت په ورځ فیصله کوی۔ دَ هر هغه کار په حقله چه په کښے هغوئ اختلاف کولو۔

اَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ ۭ اَفَلَا يَسْمَعُوْنَ ﴿٢٧﴾

آیا هغوی ته دے خبرے هدایت ورنکړو چه مونږ دَ ډیرو زمانو خلق دَ هغوی نه آ کا هو هلاک کړی وو۔ (او اوس) دا خلق هُم دَ هغوی په کورونو کښے ګرزی راګرزی دے کښے په تحقیق سره ډیر نښانات دی ولے آیا هغوی اوری نا؟

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنفُسُهُمْ ۖ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿٢٧﴾

آیا هغوی نهٔ دی لیدلی چه مونږ د لوے ویجاړے زمکے په طرف اوبهٔ ورشړُو بیا د هغے (اوبو) له کبله فصلونه را اوباسو د څه نه چه د هغوی څاروی هُم خوری او خپله هُم خوری۔ آیا هغوی وینی نا؟

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٨﴾

او هغوی وائی چه دا فتح چه تاسو ئے ذکر کوئ کچرے تاسو رښتونی یئ نو او وائی چه کله به وی۔

قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾

تهٔ اووایه چه د هغے فتح په ورځ به کافرانو ته د هغوی ایمان فائده نهٔ ورکوی او نهٔ به هغوی ته ډهیل ورکیدے شی۔

فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانتَظِرْ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾

بیا تهٔ هغوی نه مخ واړوه او (د هغوی د انجام) انتظار کوه۔ هغوی به هُم څهُ موده پورے لږ لږ انتظار کوی۔




سورۃ احزاب - دا سورۃ مدنی دے او لبسم اللہ سرہ دَ دے ۷۴ څلور اویا آیتونه او ۹ نهه رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ②

اے نبی! دَ الله تقویٰ اوکړه او دَ کافرانو او منافقانو خبره مهٔ منه۔ په تحقیق سره الله ډیر علم لرونکے (او) دَ ډیر حکمت خاوند دے۔

وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ③

او (پس) هغه وحی منه چه کومه ستا دَ رب دَ خوا نه په تا نازلیږی۔ الله ستاسو دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے۔

وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ④

او په الله توکل کوه او الله دَ کارجوړئ په لحاظ کافی دے۔

مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ الّٰٓـئِيْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ ⑤

الله دَ چا سړی په سینه کښے دوه زړونه نهٔ دی جوړ کړی او نهٔ ئے ستاسو ښځے چا نه چه تاسو (کله کله) مورا ووائی ستاسو موریانے جوړے کړی دی او نهٔ ئے ستاسو وینی ځامن ستاسو ځامن جوړ کړی دی۔ دا ټولے ستاسو دَ خولے خبرے دی او هُم الله رښتیا خبره وائی او هُم هغه نیغه لار ښائی۔

اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا اٰبَآءَهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ فِي الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ ؕ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ اَخْطَاْتُمْ بِهٖ ۙ وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ⑥

(بکارده چه) هغوی (وینی ځامن) دَ هغوی دَ پلارانو ځامن او بللے شی۔ دا دَ الله په نزد انصاف ته زیات نزدے ده او کچرے تاسو ته معلومه نهٔ وی چه دَ هغوی پلار ان څوک دی نو (بیا هُم) هغوی ستاسو دینی رونړه دی او دینی دوستان دی۔ او څه چه تاسو په خطا ورانده کړی دی دَ هغے پخقله په تاسو هیڅ ګناه نشته۔ ولے دَ کومے خبرے چه ستاسو زړونو پخه اراده کړی وی (هغه دَ سزا قابله ده) او الله هرلو توبه کوونکی دَ پاره) ډیر بخښونکے (او) بیا بیا

فضل کوونکے دے۔

اَلنَّبِیُّ اَوۡلٰی بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ مِنۡ اَنۡفُسِهِمۡ وَاَزۡوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمۡ ؕ وَاُولُوا الۡاَرۡحَامِ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلٰی بِبَعۡضٍ فِیۡ کِتٰبِ اللّٰهِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَالۡمُهٰجِرِیۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ تَفۡعَلُوۡۤا اِلٰۤی اَوۡلِیٰٓئِکُمۡ مَّعۡرُوۡفًا ؕ کَانَ ذٰلِکَ فِی الۡکِتٰبِ مَسۡطُوۡرًا ﴿۶﴾

نبي مومنانو ته دَ هغوی دَ خپلو ځانونو نه هُم زيات نزدے دے او دَ هغه بيبيانے دَ هغوی مورياني دی او دَ وينے خپلوانو کښے دَ الله دَ کتاب سره سم بعضے دَ بعضو نه زيات نزدے دی۔ په مقابله دَ (پردو) مومنانو او مهاجرو او ستاسو دَ خپلو دوستانو سره ښه سلوک کول رجائز دی) دا خبره قرآن کښے ليکلے شوے ده۔

وَاِذۡ اَخَذۡنَا مِنَ النَّبِیّٖنَ مِیۡثَاقَهُمۡ وَمِنۡکَ وَمِنۡ نُّوۡحٍ وَّاِبۡرٰهِیۡمَ وَمُوۡسٰی وَعِیۡسَی ابۡنِ مَرۡیَمَ ۪ وَاَخَذۡنَا مِنۡهُمۡ مِّیۡثَاقًا غَلِیۡظًا ﴿۷﴾

او (ياد کړئ) هر کله چه مونږ دَ نبيانو نه په هغوی ايښوے شوے دَ ليوے ځانے خبرے وعده اخستے وه او تا نه هُم (وعده اخستے وه) او نوحٌ او ابراهيمٌ او موسیٰ او عيسیٰ ابن مريم نه هُم۔ او مونږ دَ هغوی ټولو نه يوه پخه وعده اخستے وه۔

لِّیَسۡـَٔلَ الصّٰدِقِیۡنَ عَنۡ صِدۡقِهِمۡ ۚ وَاَعَدَّ لِلۡکٰفِرِیۡنَ عَذَابًا اَلِیۡمًا ﴿۸﴾ ع

دے دَ پاره چه الله رښتونو نه دَ هغوی دَ رښتيا پحقله سوال اوکړی او کافرانو دَ پاره هغهٔ يو دردناک عذاب تيار کړے دے۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوا اذۡکُرُوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ عَلَیۡکُمۡ اِذۡ جَآءَتۡکُمۡ جُنُوۡدٌ فَاَرۡسَلۡنَا عَلَیۡهِمۡ رِیۡحًا وَّجُنُوۡدًا لَّمۡ تَرَوۡهَا ؕ وَکَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرًا ﴿۹﴾

يه مومنانو! دَ الله هغه نعمت ياد کړئ چه هغهٔ په تاسو هغه وخت اوکړو چه کله په تاسو څه لښکرے راختلے وے او مونږ دَ هغوی په طرف يوه هوا استولے وه او داسے لښکرے مو استولے وے چه تاسو نهٔ ليدے او الله ستاسو عملونه ښه وينی۔

اِذۡ جَآءُوۡکُمۡ مِّنۡ فَوۡقِکُمۡ وَمِنۡ اَسۡفَلَ مِنۡکُمۡ وَاِذۡ زَاغَتِ الۡاَبۡصَارُ وَبَلَغَتِ الۡقُلُوۡبُ الۡحَنَاجِرَ وَتَظُنُّوۡنَ بِاللّٰهِ الظُّنُوۡنَا ﴿۱۰﴾

(او هغه وخت را ياد کړی) چه کله ستاسو مخالف ستاسو دَ پورته نه هُم (يعنی دَ غر دَ طرف نه) او لاندے نه هُم (يعنی دَ ژور دَ طرف نه هُم) راغلی وو او چه کله سترګے دَ ويرے نه کږے شوے وے او زړونه په درزا تالو ته راغلی وُو او تاسو دَ الله پحقله په قسما قسم ګمانونو کښے اخته شوی وئ۔

هُنَالِکَ ابۡتُلِیَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَزُلۡزِلُوۡا زِلۡزَالًا شَدِیۡدًا ﴿۱۱﴾

هغه وخت مومنان يو رغښت) آزميښت کښے اچولی شوی

وُو او بنهٔ خوزولی شوی وُو۔

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا ﴿۱۲﴾

او (هغه وخت هُم رایادکړئ) چه کله دَ منافقانو او دَ هغه خلقو چه دَ چا زړونو کښے رنځ وه وئیل شروکړی وو چه الله او دَ هغهٔ رسُول مونږ سره بس دَ دروغو وعده کړے وه۔

وَإِذْ قَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا ۚ وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ۖ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿۱۳﴾

او چه کله دَ هغوی نه یوے ډلے دا هُم وئیل شروکړی وُو چه یه دَ مدینے خلقو! (اوس) تاسو دَ پاره هیڅ ځائے نشته بیا (اسلام نه) مرتد شئ او هغوی کښے یو ډلے دَ نبی نه اجازت غوښتل شروکړی وُو او وئیل ئے چه ځمونږ کورونه دَ دښمن مخے ته دی۔ حال دا چه هغه دَ دښمن مخے ته نهٔ وُو۔ هغوی بس دَ تیښتے اراده کوله۔

وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴿۱۴﴾

او کچرے دَ مدینے دَ بیلو بیلو اړخونو نه په هغوی (فوځونه) ور داخل کړے شی او بیا هغوی ته (دَ کافرانوله اړخه) دَ مُرتد کیدو او وئیلے شی نو دوئ به خامخا هغه مطالبه او منی۔ وے هغوی به دے (یعنی مدینه) کښے (دَ هغے نه پس) لږه موده پاتے شی۔

وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ ۚ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا ﴿۱۵﴾

او (حقیقت دا دے چه) دے نه وړاندے هغوی (منافقانو) الله سره لوظ کړے وه چه هغوی به چرے هُم په شا نهٔ گرزی (او تینګ به ولاړوی) او الله سره دَ تړلی لوظ پحقله به خامخا پوښتنه کیږی۔

قُل لَّن يَنفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِن فَرَرْتُم مِّنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۱۶﴾

تهٔ هغوی ته اووایه چه کچرے تاسو دَ مرګ یا قتل نه او تختئ نو ستا سو تختید ل به تاسو له دَ سره فائده نهٔ درکوی۔ او هغه حال کښے به تاسو هیڅ فائده نهٔ اوچتوی۔

قُلْ مَن ذَا الَّذِي يَعْصِمُكُم مِّنَ اللَّهِ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ۚ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم

تهٔ اووایه هغه څوک دے چه تاسو به دَ الله دَ نیولے نه کچرے هغه تاسو له سزا درکول او غواړی بچ کوی۔

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۸﴾

یا کچرے هغه په تاسو رحم کول او غواړی (نو دَ هغے نه تاسو لرے او ساتلے شی) هغوی به دَ الله نه سوا ځان له نهٔ څوک حقیقی دوست او مومی او نهٔ مددګار (یعنی چه کله به هُم په کار رازی خدائے تعالیٰ به رازی)۔

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَلَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۹﴾

الله ته هغه خلق ښهٔ معلوم دی چه چا تاسو کښے نور (دَ جهاد نه) روستو کول او خپلو رونړو ته ئے وئیل چه مونږ له راشی (او جهاد کښے ګډون مهٔ کوی) او هغوی به خپله هُم دښمن سره هډو جنګ نهٔ کولو۔

اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖ فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۗ اُولٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ ۗ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۲۰﴾

هغوی ستاسو په مقابله ډیر بخل لرونکی دی (یعنی چرے هُم دا نهٔ غواړی چه تاسو ته څه ښیګړه او رسی) او چه کله په هغوی دَ ویرے څه وخت راشی نو ته به هغوی وینے چه هغوی تا ته داسے ګوری چه دَ هغوی دَ سترګو کاتی داسے ګرزی لکه دَ هغهٔ چه په ځنکدن کښے وی۔ بیا چه کله دَ ویرے هغه وخت تیر شی نو هغوی په تا دَ تورو په شان پریکوونکے ژبے خوزوی۔ هغوی دَ هر خیر په مقابله بخیل دی۔ (او غواړی چه تاسو ته حاصل نشی) دے خلقو (اصل کښے) ایمان هډو (او ړے نهٔ وُه دے دَ پاره الله دَ هغوی ټول کوششونه توئے کړل (چه هغوی دَ اسلام خلاف کول) او په الله دا خبره ډیره آسانه وه۔

يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا ۚ وَاِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِي الْاَعْرَابِ يَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ ۖ وَلَوْ كَانُوْا فِيْكُمْ مَّا قٰتَلُوْٓا اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۲۱﴾ ع

(او) دا خلق خو اوس هُم اُمید لری چه (کاش دَ کافرانو) لښکر او س تلے نهٔ وے کنی کچرے (دَ کافرانو) لښکر واپس شی نو (دَ هغوی دَ راتلو دَ خوشحالیٔ په ځائے) دوئ به خواهش کوی چه کاش هغوی په ځنګلی خلقو کښے اوسیدے (او په مومنانو) ستاسو په مقابله به ئے (خلقو نه) تپوس کولو (چه لا ژوندی دی یا تباه شوی دی) او کچرے دوئ (دَ

ضرورت په وخت) تاسو سره پاتے وے نو بيا به هُم ستاسو له اړخه دَ سره نهٔ جنګيدلے۔

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴿٢١﴾

ستاسو دَ پاره (يعني هغه خلقو دَ پاره) چه څوک الله او دَ آخرت ورځے ليدو اُميد لري او دَ الله ډير ذکر کوي دَ الله په رسُول کښے يوه اعلیٰ نمونه ده (څه ډول چه دوی له تلل پکار دي)۔

وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا ﴿٢٢﴾

بيا نو (راوګورئ) چه کله حقيقي مومنانو حمله کوونکي لښکرے اوليدے نو وے وئيل دا خو هُم هغه (لښکرے) دي دَ کومو چه الله او دَ هغهٔ رسُول مونږ سره وعده کړے وه او الله او دَ هغهٔ رسُول هم رښتيا وئيلي وو۔ او هغوی دے خبرے په ايمان او اطاعت کښے زيات کړل (کمزوری ئے نهٔ کړل)۔

مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾

هغه مومنانو کښے څه خلق داسے دي چا چه هغه وعدهٔ چه هغوی الله سره کړے وه رښتيا کړه بيا څنے خو داسے دي چا چه خپل نيتونه پوره کړل (يعني جنګ کولو کښے مړهٔ شول) او هغوی کښے څنے داسے هُم دي څوک چه لا پورے انتظار کوي او خپله اراده کښے هيڅ کمزوري هغوی نهٔ ده راوستے۔

لِّيَجْزِيَ اللَّهُ الصَّادِقِينَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ إِن شَاءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٤﴾

دَدے نتيجه به دا وي چه الله به داسے صادقانو له دَ هغوی دَ صدق بدله ورکوي او که اوغواړي نو منافقانو له به عذاب ورکړي يا به په هغوی رحم اوکړي۔ او الله په تحقيق سره ډير بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

وَرَدَّ اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوا خَيْرًا وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا ﴿٢٥﴾

او (حقيقت دا دے چه) الله کافران دَ هغوی دَ تو لے غصّے سره مدينے نه واپس کړل او هيڅ فائده هغوی نه اونهٔ رسيده۔ او الله دَ مومنانو له اړخه خپله جنګ اوکړو

او الله ډیر طاقتور (او) غالب دے۔

وَاَنْزَلَ الَّذِيْنَ ظَاهَرُوْهُمْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ صَيَاصِيْهِمْ وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ وَتَاْسِرُوْنَ فَرِيْقًا ﴿۲۶﴾

او هغه (یعنی الله) هغه اهل کتاب چه چا د هغو (حمله کوونکو مشرکانو) مرسته کرے وه د خپلو قلعونه راکوز کړل او د هغوی په زړونو کښے ئے رعب واچولو۔ تر دے چه تاسو هغوی کښے د یوے برخے د وژلو او د یوے برخے په بندی کولو قادر شوئ۔

وَاَوْرَثَكُمْ اَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ وَاَرْضًا لَّمْ تَطَـُٔوْهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿۲۷﴾ ع

او د هغوی د زمکو او د هغوی د کورونو او د هغوی د مالونو ئے تاسو وارثان کړئ۔ د دے سره سره د هغه زمکے هم چه په کومه تر اوسه ستاسو قدمونه نه دی پرېوتی۔ او الله په هر څیز قادر دے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَاُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿۲۸﴾

اے نبی! خپلو بیبیانو ته اووایه چه کچرے تاسو دُنیا او د دے زینت غواړئ نو راشئ زۀ به تاسو له څه د دُنیا سامان درکړم او تاسو به په ښۀ شان رُخصت کړم۔

وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾

او کچرے تاسو الله او د هغۀ رسُول او د آخرت د ژوند کور غواړئ نو الله تاسو نه په اسلام ټینګ ولاړو د پاره لوئے انعام ایښے دے۔

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

یه د نبی بیبیانو! کچرے تاسو کښے څوک د اعلیٰ ایمان خلاف خبره اوکړی نو د هغے عذاب به یو په دوه کیږی او دا خبره الله ته آسانه ده۔

وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ ۙ وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا ﴿۳۱﴾

او تاسو کښې چه څوک هُم دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول حُکم منی او دَ هغې (دَ منلو دَ شان) سره سم کار هُم کوی نو مونږ به هغهٔ له انعام هُم یو په دوه ورکوو او مونږ ه هرے دا سے (بی بی) دَ پاره دَ عزت رزق تیار کړے دے۔

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿۳۲﴾

یه دَ نبی بیبیانو! کچرے تاسو خپل مقام او پیژنی نو تاسو دَ عامو زنانو په شان نهٔ یئ۔ بیا په مکیز مکیز خبرے مهٔ کوئ دے دَ پاره چه هسے نه چه دَ چا په زړهٔ کښې مرض دے هغه ستاسو پخقله څه بده اراده اوکړی۔ او مدام خلقو ته نیکے خبرے کوئ۔

وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۭ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا ﴿۳۳﴾

او خپلو کورونو کښې ناستے اوسئ او دَ زړے زمانے دَ جاهلیت (دَ طریقو) په شان خپل ځان ُست (په پردو خلقو) مهٔ ښکاره کوئ او نمونځ (سره دَ دے دَ شرطونو) کوئ او زکوٰة ورکوئ او دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول منئ۔ یه اهل بیت! الله تاسو نه هر قسمه ناپاکی لرے کول او تاسو په کامل ډول صفا کول غواړی۔

وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ وَالْحِكْمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا ﴿۳۴﴾ ع

او څه چه ستاسو په کورونو کښې دَ الله دَ آیتونو او دَ حکمت دَ خبرو تلاوت کیږی هغه یاد لرئ الله ډیر مهربان (او) خبر لرونکے دے۔

اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْقٰنِتٰتِ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالصّٰدِقٰتِ وَالصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰبِرٰتِ وَالْخٰشِعِيْنَ وَالْخٰشِعٰتِ وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقٰتِ وَالصَّآئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ ۙ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا

په تحقیق سره کامل مسلمان سړی او کاملے مسلمانے ښځے او کامل مومنان سړی او کاملے مومنانے ښځے او کامل حُکم منونکی سړی او کاملے حُکم منونکے ښځے او کامل رښتنے سړی او کاملے رښتنے ښځے او کامل صبر کوونکی سړی او کاملے صبر کوونکے ښځے او کامل عاجزی ښودونکی سړی او کاملے عاجزی ښودونکے ښځے او کامل صدقه ورکوونکی سړی او کاملے صدقه ورکوونکے ښځے او کامل روژه نیوونکی سړی

عَظِیْمًا ﴿۳۵﴾

اوکاملے روژه نیونکے ښځے اوپوره پوره دَخپلو دَحیادَځایونو حفاظت کوونکی سړی اولوره پوره دَخپلو دَحیادځایونو حفاظت کوونکے ښځے او دَ الله ډیرذکرکوونکی سړی اودَ الله ډیر ذکرکوونکے ښځے۔ دے ټولوله الله دَ بخښنے سامان او لوئے انعام تیار کړے دے۔

وَ مَا کَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَی اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗۤ اَمْرًا اَنْ یَّکُوْنَ لَهُمُ الْخِیَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ؕ وَمَنْ یَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِیْنًا ﴿۳۶﴾

او دَ چا مومن سړی یا مومنے ښځے دَپاره دا جائزنهٔ دی چه کله الله او دَ هغهٔ رسول دَڅه خبرے فیصله اوکړی نو هغوی ربیا هُم ) دَخپلے خبرے پخپله مرضئ فیصله اوکړی اوڅوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول حُکم نهٔ منی هغه په ښکاره ښکاره بے لارے شی۔

وَاِذْ تَقُوْلُ لِلَّذِیْۤ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاَنْعَمْتَ عَلَیْهِ اَمْسِكْ عَلَیْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللّٰهَ وَتُخْفِیْ فِیْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِیْهِ وَتَخْشَی النَّاسَ ۚ وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشٰىهُ ؕ فَلَمَّا قَضٰی زَیْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنٰکَهَا لِکَیْ لَا یَکُوْنَ عَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ حَرَجٌ فِیْۤ اَزْوَاجِ اَدْعِیَآئِهِمْ اِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ؕ وَکَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿۳۷﴾

او ريه نبي ! يادکړه ) چه کله تا هغه سړی ته چه په چا الله او تا انعام کړے وه وئیل چه خپله ښځه الیساره کړه ( او طلاق مهٔ ورکوه ) او دَ الله تقویٰ اوکړه او تا خپل زړهٔ کښے هغه خبره پټوله کومه چه الله ښکاره کوونکے وه او تهٔ خلقو نه ویریدے حال دا چه الله زیات حق لری چه تهٔ هغهٔ نه او ویریږے۔ بیا چه زید دَ هغے ربنځے ) پخپله خپل ارمان پوره کړو ( یعنی طلاق ئے ورکړو ) مونږ دَ هغے ربنځے ) تاسره واده اوکړو۔ دے دَپاره چه دَ مومنانو په زړونو کښے دَخپلو دینی ځامنو دَ ښځو سره دَ نکاح کولو پخپله هغوی ته دَ طلاق ورکولو په حال څه شک پاتے نشی او دَ خدائے فیصله خوخامخا پوره کیدونکے وه۔

مَا کَانَ عَلَی النَّبِیِّ مِنْ حَرَجٍ فِیْمَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ؕ سُنَّةَ اللّٰهِ فِی الَّذِیْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ؕ وَکَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُوْرَا ۨ ﴿۳۸﴾

په نبي هغه خبره کښے چه په هغهٔ الله فرض کړے ده هیڅ الزام نشته هُم دغه لار الله وړاندینو خلقو کښے روانه کړے وه او دَ خدائے حُکم خولو فیصله شوے

ښيز دے (څوک هغه لرے کولے نشي) .

الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَ يَخْشَوْنَهٗ وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿۳۹﴾

(هُم دا سُنت په وړاندے تېر شوو پېغمبرانو کښے جاری وه) چا چه د الله پېغام خلقو ته ورکولو او د هغهٔ نه وېرېدل او د الله نه سوا د بل هيچا نه نهٔ وېرېدل اوحساب اخستو کښے الله کافي دے.

مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَاۤ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۴۰﴾ ع

نهٔ محمد صلی الله علیه وسلم تاسو کښے د چا سړی پلار وه نهٔ دے (نهٔ به وی) ولے د الله رسُول دے. ولے (د دے نه زيات) د نبيانو مهر دے او الله هر يو څيز نه بنهٔ خبر دے.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ۙ ﴿۴۱﴾

یه مومنانو! د الله ډېر ذکر کوئ.

وَّ سَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّ اَصِيْلًا ﴿۴۲﴾

او صبا ماښام د هغهٔ ثنا صفت بیانوئ.

هُوَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَ مَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ وَ كَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ﴿۴۳﴾

هُم هغه دے چه په تاسو خپل رحمتونه را سنوی او د هغهٔ فرښتے هُم تاسو ته دعا کانے کوی. دے د پاره چه (د هغے نتيجه دا اوزی چه) هغه تاسو د تيرو نه د نُور په طرف بوزی او هغه په مومنانو باندے رحم کوونکے دے.

تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ۖۚ وَ اَعَدَّ لَهُمْ اَجْرًا كَرِيْمًا ﴿۴۴﴾

هغوی ته به، چه کله به هغوی هغهٔ سره ملاقات کوی د دُعا تحفه د سلامتئ په شکل کښے حاصلیګی او هغه په هغوی د پاره لوه ډېره د عزت بدله تیاروی.

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا ۙ ﴿۴۵﴾

یه نبی! مونږ ته دا سے حال کښے لیږلے ئے چه (د دَنیا) نګران هُم یے (مومنانو ته) زیرے ورکوونکے هُم او (کافرانو له) یروُنکے هُم یئے.

وَّ دَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَ سِرَاجًا مُّنِيْرًا ﴿۴۶﴾

او ورسره د الله په حُکم د هغهٔ په طرف بلنه ورکوونکے او یو ځلنده نمرئے (لیږلے ئے).

وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ﴿۴۷﴾

او مومنانو ته زیرے ورکړه چه هغوی ته به د الله د

طرف نه ډیرلوئے فضل حاصلیږی۔

وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ۴۹

او د کافرانو اومنافقانو خبره مهٔ منه اود هغوئ زړهٔ ازارولو ته مخ مهٔ اړوه او په الله توکل کوه۔ او الله په کارجوړئ کښے کافی دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا ۚ فَمَتِّعُوْهُنَّ وَسَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ۵۰

ئے مومنانو! چه کله تاسو مومنانو ښځوسره وادهٔ اوکړئ بیا هغوی ته د نزدے ورتلونه آ کا هو طلاق ورکړئ نو ستاسو هیڅ حق نشته دے چه د هغوی نه د عدّت مطالبه اوکړئ. بیا رپکار ده چه) هغوی ته څه دنیاوی سُودمنه او رسوئ او هغوی په ښه طریقه رُخصت کړئ۔

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّاۤ اَحْلَلْنَا لَكَ اَزْوَاجَكَ الّٰتِيْۤ اٰتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ مِمَّاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ عَمّٰتِكَ وَبَنٰتِ خَالِكَ وَبَنٰتِ خٰلٰتِكَ الّٰتِيْ هَاجَرْنَ مَعَكَ ؗ وَامْرَاَةً مُّؤْمِنَةً اِنْ وَّهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ اِنْ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا ۗ خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيْۤ اَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۵۱

ئے نبی! ستا موجوده بیبیانو نه هغه چه چا ته تا د هغوی حق مهر ورکړے دے مونږ تاله حلالے کړی دی۔ هُم دارنګ وړاندے هغه ښځے هُم چا د چا مالک ستا ښے لاس شوے دے چه الله ستا په قبضه کښے د جنګ نه روستو راوستے دی او هُم دغه رنګ ستا د تره لوُنړه او د ترور لوُنړه او ستا د ماما لوُنړه او ستا د مور د طرفه ترورپانو لوُنړه چا چه تا سره هجرت کړے دے او داسے مومنانے ښځے هُم چه چا خپل ځان د نبی د پاره وقف کړو ولے هله چه نبی هغے سره د نکاح اراده اوکړی۔ دا حُکم خاص تا د پاره دے باقی مومنانو د پاره نهٔ دے۔ مونږ د هغے چه مونږ په هغوی رمسلمانانو) د هغوی د ښځو پحقله او د هغوی د وینځو پحقله فرض کړی دی ښهٔ علم لرُو۔ دے د پاره چه په څه تا واجب بندش نهٔ وی او الله ډیر بخښونکے راو) بیا بیا فضل کوُونکے دے۔

تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُـْٔوِيْٓ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ؕ
وَ مَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ؕ ذٰلِكَ
اَدْنٰٓى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ وَ لَا يَحْزَنَّ وَ يَرْضَيْنَ بِمَآ
اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ؕ وَ كَانَ
اللّٰهُ عَلِيْمًا حَلِيْمًا ﴿٥١﴾

ته هغوی (بیبیانو) کښې چه چاله غواړے بیله کړه او چه چاله غواړے ځان سره اوساته او هغه ښځو کښې کوم چه تا بیلې کړی دی څوک ځان له راوسے نو په تا هیڅ ګناه نشته دے. دا خبره دے خبرے ته ډیره نزدے دے چه دَ هغوی سترګے یخے شی او هغوی غم اونکړی او څه چه تا هغوی ته ورکړی دی په هغے ټولے رضا شی او الله ستاسو دَ زړونو دَ هرے خبرے علم لری (او) هغه ډیر خبردار او دَ پوهے نه کار اخستونکے دے.

لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْۢ بَعْدُ وَ لَآ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ
مِنْ اَزْوَاجٍ وَّ لَوْ اَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ اِلَّا مَا مَلَكَتْ
يَمِيْنُكَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيْبًا ﴿٥٢﴾ ع

ستا دَ پاره (نورے) ښځے دے نه پس حلالے نه دی او نه دا حلال دی چه دا ښځے بدلے کړے نورے اوکړے کچرے دَ هغوی حُسن ستا هرڅومره خوښ هُم وی. سوا دَ هغه ښځو چه دَ چا مالک ستا ښے لاس شو او الله دَ هرڅیز نګران دے.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّاۤ اَنْ
يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ ۙ وَ لٰكِنْ
اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَ
لَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي
النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ ۫ وَ اللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ ؕ
وَ اِذَا سَاَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ؕ
ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَ قُلُوْبِهِنَّ ؕ وَ مَا كَانَ لَكُمْ
اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ لَاۤ اَنْ تَنْكِحُوْۤا اَزْوَاجَهٗ مِنْۢ
بَعْدِهٖۤ اَبَدًا ؕ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا ﴿٥٣﴾

یه مومنانو! دَ نبی کورونو ته سوا دَ دے چه تاسو ډوډئ له اوبللے شئ مه ځئ ځکله مه ورزئ هغه هُم په دے شرط چه دَ ډوډئ دَ پخلی په انتظار کښې مه کینئ. او نه دَ خبرو کولو په شوق کښې ناست اوسئ. هن چه تاسو او غوښتے شئ نو ضامخا ورزئ. بیا چه ډوډئ اوخورئ نو خپلو خپلو کورونو ته لاړشئ. دے کار (یعنی بے فائدے کینا ستل یا روښی راتلل) نبی ته تکلیف ورکولو وے هغه (ستاسو دَ جذباتو په خیال) ستاسو (دَ منع کولو) نه حیا کوله. ولے خدائے دَ رښتیا خبرے دَ کولو نه (دَ خلقو دَ خیالاتو په سوب) نه الیسارینږی. او (پکاره ده چه) کله تاسو دَ هغوی (یعنی دَ نبی بیبیانو) نه دَ کور څه څیز او غواړئ نو دَ پردے

پښا غوارئ د اخبره ستاسو زړونو او د هغوی زړونو له ډیره ښه ده۔ او د الله رسُول ته تکلیف ورکول تاسو له جائز نهٔ دی او نهٔ دا جائز ده چه تاسو د هغهٔ نه پس د هغهٔ ښځو سره چرے هُم واده اوکړئ۔ دا خبره د الله د فیصلے له مخه ډیره بده ده۔

اِنۡ تُبۡدُوۡا شَيۡـًٔا اَوۡ تُخۡفُوۡهُ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمًا ﴿٥٥﴾

کهٔ تاسو څه څیز ښکاره کړئ یا پټ ئے کړئ نو الله هر څیز نه ښهٔ خبر دے۔

لَا جُنَاحَ عَلَيۡهِنَّ فِىۡۤ اٰبَآئِهِنَّ وَلَاۤ اَبۡنَآئِهِنَّ وَلَاۤ اِخۡوَانِهِنَّ وَلَاۤ اَبۡنَآءِ اِخۡوَانِهِنَّ وَلَاۤ اَبۡنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ وَلَا نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُنَّ‌ ۚ وَاتَّقِيۡنَ اللّٰهَ‌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدًا ﴿٥٦﴾

په دوئ (یعنې د نبي صلی الله علیه وسلم په بیبیانو) د خپلو پلارانو یا د خپلو ځامنو یا د خپلو رونړو یا د خپلو وریرونو یا د خپلو سیالانو ښځو یا د خپل لاس لاندے وینځو نه مخ نه راتلو کښے هیڅ بندش نشته او د الله تقویٰ اوکړئ۔ الله هر څیز لکیا دے وینی۔

اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوۡنَ عَلَى النَّبِىِّ‌ ؕ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا صَلُّوۡا عَلَيۡهِ وَسَلِّمُوۡا تَسۡلِيۡمًا ﴿٥٧﴾

الله په تحقیق سره په دے نبیؐ خپل رحمت لکیا دے نازلوی او د هغهٔ فرښتے هُم (په تحقیق سره هغهٔ له دعا کانے کوی بیا) یه مومنانو! تاسو هُم په دے نبی درُود واستوئ او هغهٔ له دُعا کانے کوئ او (ښه په جوش) هغهٔ له سلامتی غواړئ۔

اِنَّ الَّذِيۡنَ يُؤۡذُوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِى الدُّنۡيَا وَالۡاٰخِرَةِ وَاَعَدَّ لَهُمۡ عَذَابًا مُّهِيۡنًا ﴿٥٨﴾

هغه خلق چه څوک الله او د هغهٔ رسُول ته تکلیف ورکوی الله هغوی (رد دے) دُنیا کښے او آخرت کښے د خپل قربت نه باتے کوی او هغهٔ هغوی د پاره رسوا کوونکے عذاب تیار کړے دے۔

وَالَّذِيۡنَ يُؤۡذُوۡنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتِ بِغَيۡرِ مَا اكۡتَسَبُوۡا فَقَدِ احۡتَمَلُوۡا بُهۡتَانًا وَّاِثۡمًا مُّبِيۡنًا ﴿٥٩﴾ ع

هغه خلق چه څوک مومنانو سره او مومنانو ښځو ته بے د دے چه هغوی څه قصور کړے وی تکلیف ورکوی هغهٔ خلقو د خطرناک دروغو او د ښکاره ښکاره گناه پیټئ په سر کړے دے۔

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ؕ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۵۹﴾

يه نبيٌّ ! خپلو بيبيانو او لُونړو او دَ مومنانو ښځو ته اووايه چه (کله هغوى بهرته ځى) خپل لوئے څادرونه دے په سرونو اچولو سره ترخپلو سينو راولى دا کار به دا خبره ممکنه کړى چه هغوى او پيژندے شى او هغوى ته تکليف ورنکړے شى او الله ډير بخښونکے او بيا بيا رحم کوونکے دے

لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْمُرْجِفُوْنَ فِي الْمَدِيْنَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ فِيْهَآ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۶۰﴾

کچرے منافق سړى او هغه خلق دَچا په زړونو کښے چه مرض دے او هغه خلق چه څوک مدينه کښے دَ دروغو افواهګانے خورولى را خوروى منے نشى نو مونږ به تا دَ هغوى خلاف (پاڅولو ورځ) او درولو. بيا به هغوى تا سره دے ښار کښے ډير لږ وخت په کاوند کښے تيروى.

مَّلْعُوْنِيْنَ ۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا ﴿۶۱﴾

هغوى چه چرته هُم ستاسو لاس ته راشى. پکار ده چه او نيولے شى او اوژلے شى ځکه چه هغوى دَ خدائے دَ رحم نه محرومه شوى دى.

سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ﴿۶۲﴾

دَ الله دا سُنت (خپل کړئ) چه هغه خلقو کښے جارى شوے وه چه څوک تاسو نه وړاندے تير شوى دى او ته به چرے هُم دَ الله په سُنت کښے بدلى او نه مومے.

يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا ﴿۶۳﴾

خلق تا نه دَ خاتمه کوونکى وخت پخقله تپوس کوى ته ووايه چه دَ هغے علم بس الله ته دے. او تا سو ته راخبره څۀ معلومه ده چه کيدے شى هغه وخت ډير نزدے وى.

اِنَّ اللّٰهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَاَعَدَّ لَهُمْ سَعِيْرًا ﴿۶۴﴾

په تحقيق سره الله کافران دَ خپل قرب نه محرومه کړى دى او هغوى له ئے دَ غرغنډو دَ اور عذاب تيار کړے دے.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۶۵﴾

چه پکښے به هغوى تل تر تله (وسيږى راوهلته) به نۀ څوک دوست مومى او نۀ ملا تړ.

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُوْلُوْنَ يٰلَيْتَنَآ اَطَعْنَا اللّٰهَ وَاَطَعْنَا الرَّسُوْلَا ﴿۶۶﴾

کومه ورځ به چه دَ هغوى لوئے خلق په اور اړولے را اړولے شى. او هغوى به وائى يه کاش ! مونږ دَ الله او

دَ هغهٔ دَ رسُول منلے وے۔

وَقَالُوا رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا ۝۶۷

او (عام خلق) به وائی يه څمونږه ربه! مونږ دَ خپلو سردارانو او مشرانو او منله۔ بيا هغوی مونږ دَ (نيغے) لارے نه بے لارے کړو۔

رَبَّنَآ ءَاتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ۝۶۸ ع

يه څمونږه ربه! هغوی له يو په دوه عذاب ورکړه او هغوی دَ خپل رحم نه لرے کړه۔

يَآأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ ءَاذَوْا مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ اللَّهُ مِمَّا قَالُوا ۚ وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا ۝۶۹

يه مومنانو! تاسو دَ هغهٔ خلقو په شان مهٔ جوړيږی چا چه موسٰی ته تکليف ورکړے وه۔ په دے الله هغه دَ هغوی دَ خبرو نه بری کړے وه او هغه دَ الله سره اوچت شان لري۔

يَآأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ۝۷۰

يه مومنانو! دَ الله تعالٰی تقوٰی اوکړئ او هغه خبره کوئ چه ول پيچے نهٔ وی (بلکه رښتيا وی)۔

يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ۝۷۱

(کچرے تاسو داسے اوکړئ) نو الله به ستاسو عملونه صحی کړی او ستاسو ګناهونه به اوبخښی او چه څوک دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول او منی هغه لو يه کاميابي حاصلوی۔

إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ ۖ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ۝۷۲

مونږ کامل امانت (يعنی شريعت) آسمانونو زمکے او غرونو ته وړاندے کړے وه وے هغوی دَ دے دَ اوچتولو نه انکار اوکړو او دَ دے نه او ويريدل وے انسان هغه اوچت کړو هغه په تحقيق سره ظلم کوونکے (او) دَ نتائجو نه بے پروا وه۔

لِّيُعَذِّبَ اللَّهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ وَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ۝۷۳ ع

(څمونږ دَ دے شريعت دَ پيټی دَ اوچتولو) نتيجه دا اوشوه چه منافقانو سره او منافقانو ښځو له او مشرکانو سره او مشرکانو ښځو له الله عذاب ورکړو۔ او په مومنانو سره او په مومنانو ښځو الله فضل اوکړو۔ او الله خو دے ډير بخښونکے (او) بيا بيا فضل کوونکے۔




سورة سبا - دا سورة مکی دے او سره د بسم الله د دے پنځۀ پنځوس آيتونه او شپږ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

زه د الله په نوم (لولم) چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْاٰخِرَةِ ۭ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ②

هر قسم ثنا صفت هُم د الله دے (او) څه چه آسمانونو او زمکه کښے دی (ټول) د هغهٔ دی او (څنګه چه هغه په شروع کښے د تعریف لائق دے) په آخر کښے به هُم هغه د تعریف لائق وی او هغه د لویو حکمتونو مالک دے (او) د هر څیز نه خبردار دے۔

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْاَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاۗءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيْهَا ۭ وَهُوَ الرَّحِيْمُ الْغَفُوْرُ ③

او څه چه زمکه کښے ننوزی هغه هُم هغه ته معلوم دی او څه چه هغے نه اوزی د هغے هُم علم لری۔ ورسره هغه هُم چه څه آسمان نه نازلیږی او هغه هُم چه څه آسمان ته خیژی او هغه بیا بیا رحم کوونکے (او) ډیر بخښونکے دے۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَاْتِيْنَا السَّاعَةُ ۭ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَاْتِيَنَّكُمْ ۙ عٰلِمِ الْغَيْبِ ۚ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ وَلَآ اَصْغَرُ مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْبَرُ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ④

او کافرانو اووئیل چه څمونږ د قام د تباهئ آخری ساعت به مونږ نهٔ ویښو۔ ته اووایه دا سے نهٔ ده څما په (هغه) رب قسم چه د غیبو علم لری او آسمانونو او زمکه کښے هر څیز که د یو سُور میږی هومره وی یا د هغهٔ نه هُم وړوکے یا د هغهٔ نه هُم غټ د هغهٔ د نظر نه نهٔ پټیږی دا ساعت به تاسو خامخا وینئ ولے چه هغه په یو ښکاره کوونکی لیک کښے محفوظ دے۔

لِّيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ⑤

(د هغه ساعت راتلل دے د پاره ضروری دی) چه الله مومنانو او د ایمان سره سم عمل کوونکو ته د هغوی د ایمان او عمل سره سمه جزا ورکړی په تحقیق سره هغوئ دا سے دی چه هغوی ته به د خدائے له اړخه بخښنه

او دَعزت رزق تل تر تله رسی۔

وَالَّذِيْنَ سَعَوْ فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ
مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ⑥

او هغه خلق چه څوک ځمونږ دَ نښانونو پحقله رځمونږ ) دَ پاتے راوستلوخواری کوی هغوی ته به ردَ هغوی دَگناه په سوب ) دردناک عذاب رسی۔

وَيَرَى الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ
رَّبِّكَ هُوَ الْحَقَّ ۙ وَيَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ
الْحَمِيْدِ ⑦

او هغه خلق چاله چه علم ورکړے شوے دے هغه څيز ره چه کوم تا ته ستا دَرب له اړخه نازل شوے دےحق گنړی او دا رځم پوهيګی ) چه رهغه تعليم ) دَغالب او دَ تعريفونو دَ خدائے په طرف بوزی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ
اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ اِنَّكُمْ لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ⑧

او هغه رخلق ) چا چه کفر کړے دے وائی چه رَيه خلقه ! ) آيا مونږ تا سو ته دَيو داسے سړی خبر درکړو چه څوک تاسو ته داوائی چه کله به تا سو ردَمرګ نه پس ) ذرے ذرے کړے شئ نو بيا به را ليوځائے شئ او تا سو به يو نوی مخلوق په صورت کښے بدليګئ۔

اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ ؕ بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ
بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ⑨

آيا هغه سړے په الله دروغ تړی يا هغه ليونے دے۔ داسے نهٔ ده وسے څوک چه په آخرت ايمان نهٔ راوړی هغوی ردَ داسے بدو خيالاتو له کبله اوس نه رعذاب او خطرناکه ګمراهئ کښے آخته شوی دی۔

اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَآءِ
وَالْاَرْضِ ؕ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ
عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ
مُّنِيْبٍ ⑩ ع ١٠

آيا هغوی دَ هغه څيز په طرف نهٔ دی کتلی چه کوم دَآسمان او زمکے نه دَ هغوی دَمخے نه او دَ هغوی دَ شاله اړخه هغوی راګير کړی دی۔ کچرے مونږ اوغواړو نو هغوی به هُم دَ هغوی په زمکه په مصيبتونو کښے آخته کړو يا په هغوی به دَ وريځو يو ټوټو ټوټے نازلے کړو۔ دے کښے دَخدائے په لور تيښتيدُونکی هر بنده له يو نښان دے۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا ۭ يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَ
الطَّيْرَ ۚ وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ ۙ ⑪

او مونږ داوٗد ته دَ خپل طرف نه فضل ورکړے وه ر او وَرته مو وئيلی وُوچه ) يَه دَ غرونو او سيدُونکو ! تاسو هُم

اوَيه مارغانو تاسوهُم دۀ سره سره دَخدا ئے ثناصفت بيانوی اوموږ هغۀ له اوسپنه نرمه کړے وه۔

اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۚ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۱۱)

راو ورته مو وئيلي وُو ) چه پوره په ناپ زغرے جوړوئ او دَ هغو کړے وړُوکے جوړوی او رَيه دَ داؤدٌ ملګروا) دَخپل ايمان سره سم عمل کوئ زۀ ستاسو عمل ته ګورمه۔

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۚ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ ۗ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۗ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ (۱۲)

او (موږه) سليمانٌ ته دا سے هوا (روږکړے وه) چه دَ هغے دَسحر چليدل به دَ يو ے مياشتے هومره وُو او دَماښام چليدل ئے هُم دَمياشتے هومره وُو او موږ هغه له دَ تانبے چينه وِبلے کړے وه او موږ هغۀ له دَ جنّاتو لو تولئ هُم ورکړے وه چا به چه دَ هغۀ دَرب په حُکم دَ هغۀ په وړاندې کارکولو راو داموهُم ورته وئيلي وو) چه دوی کښے به چه څوک زموږ دَ حُکم نه مخ اړوی موږ به هغۀ ته دَغږغنه وړ دَ اور عذاب رسوُو۔

يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَاۗءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ۭ اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا ۭ وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ (۱۳)

هغه به چه څه غوښتل جنّاتو (يعني دَسرکش قامونو سردارانو) به هغۀ له جوړول يعني جماتونه او په لاس جوړکړے شوی مجسمے او لوئے لوئے ښانګونه چه دَ تالابونو هومره به وُو او درانۀ درانۀ ديګونه چه هروخت به په نغرو پراتۀ وُو ر اوموږ اووئيل ) يَه دَ داوُدٌ دَ خاندان خلقو! شکر ادا کولو سره عمل کوی او ځما بنديانو کښے ډيرکم خلق شُکر کوُونکی وی۔

فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰي مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَاۗبَّةُ الْاَرْضِ تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ۚ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ (۱۴)

بيا هرکله چه موږ دَ هغۀ دَ مرګ فيصله اوکړه نو هغوی (يعني سرکش قامونو) ته دَ هغۀ دَ مرګ بس دَ زمکے يوچينجي خبر ورکړو چاچه دَ هغۀ (امسا رحکومت) خوړه بيا هرکله چه هغه پرليوتو نو په جنّاتو ښکاره شوه چه کچرے هغوی ته معلومه وے نو هغوی به دَ ذلّت عذاب کښے

پراته نهٔ وے۔

لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِيْ مَسْكَنِهِمْ اٰيَةٌ ۚ جَنَّتٰنِ عَنْ يَّمِيْنٍ
وَّشِمَالٍ ۬ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ
طَيِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ۞۱۶

دَسبا دَپاره دَهغوی په خپل ملک کښے یولوئے نشان موجود وه (او هغه) دَ دوه باغونو په صورت کښے (وه) چه هغوکښے یو په ښی اړخ وه او یو په کس اړخ (وه او مونږ هغوی ته وئیلی وو چه) دَ خپل رب رزق خورئ او دَ هغهٔ شکر کوئ۔ ستاسو ښار یو خائسته ښار دے او (ستاسو) رب ډیر بخښونکے دے۔

فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنٰهُمْ
بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ
مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ ۞۱۷

بیا هُم هغوی (دَ حقو نه) مخ واړولو۔ بیا مونږ (دَ هغوی دَ حق مونډونه دَ نا اُمیده کید لوله کبله) په هغوی داسے سیلاب راواستولو چه هرڅیز ئے تباه کولو۔ او مونږ هغوی ته دَ هغوی دَ دوه اعلیٰ باغونو په ځائے هغوی ته دوه داسے باغونه ورکړل چه میوه ئے بےخونده وه او چه پکښے جاړے بوټے یاڅه لږے بیرے وے۔

ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ۞۱۸

داسزا مونږ هغوی ته دَ هغوی دَ ناشکرئ په سبب ورکړے وه او ناشکره خلقو ته مونږ هُم داسے بدل ورکوُو۔

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا
قُرًى ظَاهِرَةً وَّقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا
لَيَالِيَ وَاَيَّامًا اٰمِنِيْنَ ۞۱۹

او مونږ دَ هغوی ترمینځه او دَ هغو کلو ترمینځه چه ورله مونږ برکت ورکړے وه (یعنی فلسطین چه دَ سلیمان ملک وه) ډیر کلی آباد کړی وُو۔ چه یو بل ته مخامخ او نزدے (نزدے) وُو۔ او مونږ دَ یو کلی نه بل کلی پورے دَ تلو سفر لنډ کړے وه او وئیلی موُو چه دَ شپو هُم او دَ ورځو هُم دے کښے امن سره سفر کوئ۔

فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا وَظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ
فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ اِنَّ فِيْ
ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۞۲۰

(وے دَ شکر په ځائے) هغوی (دا) او وئیل چه "یه زمونږ ربه! زمونږ سفرونه او بږده کړه (دے دپاره چه دَ سیل خوند واخلو) او هغوی خپلو ځانونو باندے

ظلم اوکړو بیا مونږ ه دَ هغوی نوم ورک کړو او هغوی مو دَ پخوا زمانے افسانے کړے او په تباهئ مو ذرے ذرے کړل - دے کښے دَ هر صبر کوونکی او ډیر شکر کوونکی بنده دَ پاره ډیر نشانات دی -

وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٠﴾

او ابلیس دَ هغوی په حقله خپل خیال رښتیا کړو او دَ مومنانو دَ ټولی نه سوا باقی خلقو (یعنی کافرانو) دَ هغهٔ اومنله -

وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ ۗ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٢١﴾ ع

حال دا چه دَ هغهٔ (یعنی دَ شیطان) په هغوی هیڅ قبضه نهٔ وه (دا بس دے دَ پاره اوشول) چه مونږ دَ هغوی چه په آخرت ایمان راوړونکی دی دَ هغوی په مقابله کښے چه څوک آخرت کښے شک کوی په غوره کولو دَ هغوی دننه حقیقت پرانیزو او ستا رب دَ هر څیز نګران دے -

قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ ۖ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿٢٢﴾

تهٔ اووایه چه چا ته تاسو دَ خپل خیال سره سم دَ الله نه سوا مدد او غوارئ هغوی (خپل مدد دَ پاره) راوبلئ هغوی په آسمانونو او زمکه کښے دَ یو وړوکی میږی هومره دَ څیز هُم مالکان نهٔ دی او دَ دے دواړو (په واک اختیار) کښے هغوی ته (هیڅ) شراکت نهٔ دے حاصل او نهٔ دَ هغهٔ هغوی کښے څوک ملا تړ دے -

وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ ۚ حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ ۖ قَالُوا الْحَقَّ ۖ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٢٣﴾

او دَ هغهٔ (یعنی الله) په وړاندے دَ هغه سړی دَ شفاعت نه سوا چاله چه الله اجازه ورکړے وی (یا چه دَ چا په حقله الله دَ شفاعت کولو اجازه ورکړے وی) دَ هیڅ یو سړی شفاعت فائده نهٔ رسوی - تر هغے چه هرکله هغه دَ شفاعت اجازت موندونکی ټولی دَ زړونو نه رعب په تلوښتو نو نورخلق هغوی ته وائی چه اوس ستاسو رب تاسو ته څهٔ وئیلی وُو دَ دے په اورېدو هغوی جواب

درکوی چه څه ئې دېلي وُو رښتيا ئې وئيلي وو او هغه اوچت شان لرونکے او دَ لوئے اختيار خاوند دے۔

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ قُلِ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۵﴾

(راو) نهٔ اووايه رچه په خلقه!) دَ آسمانونو او زمکے نه څوک تاسو له رزق درکوی؟ (راو بيا پخپله دَ دے سوال په ځواب کښے) اووايه الله (دَ نور څوک) او زه يا تاسو يا خو په هدايت يُو يا په ښکاره ښکاره ګمراهۍ کښے آخته يُو۔

قُلْ لَّا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّآ اَجْرَمْنَا وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۶﴾

نهٔ اووايه کچرے مونږ ستاسو په خيال مجرمان يُو نو ځمونږ دَ جرمونو پحقله به تاسو نه تپوس نهٔ کيږی او نهٔ به تاسو نه ځمونږ دَ عملونو پحقله تپوس کيږی۔

قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ ۭ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ ﴿۲۷﴾

او دا هُم اووايه چه ځمونږ رب به زيوه ورځ) تاسو او مونږ ه رد جنګ يو ميدان کښے) راغونډ وی بيا به په حق او انصاف ځمونږ دواړو ترمينځه فيصله اوکړی او هغه دَ ټولو نه لوئے (راو) ښهٔ فيصله کوونکے دے۔ او په هره خبره ښهٔ پوهيګی۔

قُلْ اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَاۗءَ كَلَّا ۭ بَلْ هُوَ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۸﴾

او وايه چه ما ته خو او ښائی چا لره چه تاسو هغهٔ سره شريک جوړوئ ردَ هغه څوک شريک جوړول) دَ سره صحی نهٔ دی وے حق دا دے چه الله غالب (راو) دَ لويو حکمتونو خاوند دے۔

وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا كَاۗفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۹﴾

او مونږ ته دَ ټولو انسانانو په طرف رچا کښے چه يُو هُم ستا دَ رسالت دَ حلقے نه بهر پاتے نشی) دا سے رسول ليږے يئے چه رمومنانو ته) زيرے درکوی او دکافرانو) هوښياروی وے انسانانو کښے ډيرځنے دَ دے حقيقت نه واقف نهٔ دی۔

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۳۰﴾

او هغوی رچه په جوش کښے راشی نو) وائی دا رتولے

دُنیا ته دَ رسالت پیغام ورکولو ) وعده به کله تاسو رښتونی یئ کله پوره کیږی ؟

قُلْ لَّكُمْ مِّيْعَادُ يَوْمٍ لَّا تَسْتَاْخِرُوْنَ عَنْهُ سَاعَةً وَّلَا تَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿٣١﴾

ته اووایه چه ستاسو دَ پاره دَ یوے ورځے میاد مقرر دے نه خو تاسو دَ هغے نه یو ساعت روستو کیدے شئ نه به یو ساعت مخکښے کیدے شئ.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَلَا بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ۭ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ مَوْقُوْفُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ښ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضِ ۨالْقَوْلَ ۚ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لَوْلَآ اَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٢﴾

او کافران وائی چه نه خو مونږ دا قرآن منو او نه هغه پیش خبری چه دَ دے نه مخکښے شوی دی او کچرے ته دا ظالمان هغه وخت اووینے چه کله به هغوی دَ خپل رب وړاندے اودرولے شی او هغوی کښے به بعضے دَ بعضو سره تکیاوی بحث کوی او کمزورے ډله به کبرجنے ډلے ته وائی چه که تاسو نه وے نو مونږ به ضرور ایمان راوړے وے.

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْٓا اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٣٣﴾

( نو بیا ) کبرجنه ډله به ځواب کښے کمزورے ډلے ته او وائی چه هر کله هدایت تاسو له راغلے وُه نو آیا مونږ تاسو دَ هغے نه منع کړی وئ ؟ ( هیڅکله نه ) ولے تاسو پخپله مجرمان وئ.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ وَنَجْعَلَ لَهٗٓ اَنْدَادًا ۭ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ۭ وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْٓ اَعْنَاقِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٣٤﴾

او هغه خلق څوک چه ضعیف گڼلے شوی وُو به هغه خلقو ته څوک چه کبرجن وُو اووائی ( مونږ خو دا سے مجرمان شوی نه وو ) ولے ستاسو دَ شپو او ورځو تدبیرونو مونږ دا سے جوړ کړو. هر کله به چه تاسو مونږ ته دَ الله دَ حکمونو نه دَ انکار او هغه سره دَ شریک جوړولو تعلیم راکولو او هر کله چه ( دَ دے نافرمانئ په نتیجه کښے ) هغوی یو خطرناک عذاب اولیدونو ( چا چه ځان لوئے گڼړلو ) هغوی ( دَ خپل زړه ) شرم پټول شروع کړل او مونږ به په هغوی کښے دَ ټنو کافرانو په ستونو کښے پړی اچوُو

(او دا سزا به دَ هغوی دَ بد عملئ نه زیاته نهٔ وی- آیا هغوی پوهیګی نا چه) هغوی ته به کومه سزا ورکیږی هغه به دَ هغوی دَ عمل سره سمه وی-

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِیْ قَرْیَةٍ مِّنْ نَّذِیْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ ۙ اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ۳۵

او مونږ هیڅ یو کلی ته څوک هوښیارُونکے (یعنی نبی) نهٔ دے لیږلے چه دَ هغے شتهٔ منو دا اونهٔ وئیل چه (ای رسولانو!) مونږ ستاسو دَ رسالت انکاریان یُو-

وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۙ وَّمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِیْنَ ۳۶

ورسره هغوی دا هُم کلیا دی وائی چه مونږ تاسو نه په مال او اولاد کښے زیات یُو او په مونږ به چرے هُم عذاب نهٔ راځی -

قُلْ اِنَّ رَبِّیْ یَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ یَّشَآءُ وَیَقْدِرُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ ۳۷ ع

ته او وایه - څما رب چه چاله اوغواړی (ور) دَ رزق پرانزی او چه چاله غواړی کموی ئے ولے خلقو کښے ډیر څخه نهٔ پو هیګی -

وَمَآ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ بِالَّتِیْ تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفٰٓی اِلَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ؗ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوْا وَهُمْ فِی الْغُرُفٰتِ اٰمِنُوْنَ ۳۸

او ستاسو مالونه او ستاسو اولاد څه داسے څیز نهٔ دے چه تاسو مونږه ته نزدے کړی - هن څوک چه ایمان راوړی او هغے سره مناسب عمل کوی (هُم هغه مونږ ته نزدے وی) او هُم داسے خلقو ته به دَ هغوی دَ ښو عملونوله کبله زیاتے بدلے حاصلیګی او هغوی به په بالا خانو کښے په امن ژوند تیروی-

وَالَّذِیْنَ یَسْعَوْنَ فِیْٓ اٰیٰتِنَا مُعٰجِزِیْنَ اُولٰٓئِكَ فِی الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ۳۹

او هغه خلق څوک چه دا کوششونه کوی چه څمونږ دَ نښانانو په چقله مونږ پاتے راولی هغوی به سخت عذاب ته وړا ندے کولے شی -

قُلْ اِنَّ رَبِّیْ یَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَیَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَهُوَ یُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَیْرُ الرّٰزِقِیْنَ ۴۰

(او) ته او وایه څما رب په خپلو بند یانو کښے چه دَ چا رزق او غواړی زیاتوی او چه دَ چا رزق او غواړی کموی او څه چه هُم تاسو اولګوئ هغه به دَ هغے نتیجه خامخا را او باسی هغه دَ ټولو رزق ورکوونکونه ښهٔ (او کامل) دے-

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ أَهٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا يَعْبُدُونَ ﴿٤٠﴾

اوچه په کومه ورځ به هغه (یعنی الله) هغوی ټول راغونډ کړی بیا به هغه فرښتو ته اووائی - آیا دے خلقو ستاسو عبادت کولو ؟

قَالُوا سُبْحٰنَكَ أَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُونِهِمْ ۚ بَلْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْجِنَّ ۖ أَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُؤْمِنُونَ ﴿٤١﴾

هغوی به اووائی چه ته پاک ئے دوئ نه سوا بس ته څمونږ دوست ئے (بیا داسے نهٔ ده څنګه چه دا کافران وائی) بلکه حقیقت دا دے چه هغوی د خیالی او پټ وجودونو عبادت کولو او هغوی کښے ډیرو په هغه وجودونو ایمان راوړو-

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا ۖ وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿٤٢﴾

بیا به هغوی ته اووئیلے شی نن به تاسو کښے څخے څنو ته نه فائده اورسوئ (او) نهٔ ضرر- او مونږ به ظالمانو ته اووایو چه د دے دوزخ (هغه) عذاب اوڅکئ چه تاسو ئے انکار کولو-

وَإِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوا مَا هٰذَآ إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَنْ يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُكُمْ ۚ وَقَالُوا مَا هٰذَآ إِلَّآ إِفْكٌ مُفْتَرًى ۚ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ ﴿٤٣﴾

او هرکله چه هغوی ته څمونږ ښکاره ښکاره نښانات تلاوت کیګی نو هغوی وائی چه دا سړے بس داسے کس دے چه څوک تاسو د هغو (وجودونو) د عبادت نه منے کوی چه د څه عبادت ستاسو پلار نیکونو کولو او وائی دا (قرآن خو بس) دروغ دی چه د خپله ځانه جوړ کړے شوے دے او چه هرکله کامله ریښتنی هغوی له راشی نو کافر په مجبورئ داسے وائی چه دا خو یو ښکاره ښکاره فریب دے-

وَمَآ اٰتَيْنٰهُمْ مِنْ كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا وَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَذِيرٍ ﴿٤٤﴾

او مونږ ه هغوی له څه (آسمانی) صحیفے نهٔ دی ورکړی چه هغوئ ئے لولی او (هغوی کښے داسے فضول خبرے لیکلے وی) او نهٔ مونږ د هغوی په طرف ستا نه وړاندے څوک (داسے) یرونکے لیږلے دے (چه هغهٔ داسے فضول خبرے هغوی ته ښودلی وی)-

وَكَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۙ وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ

اوڅوک چه دوئ نه وړاندے وُو هغوی هُم (د خپلو

مَآ اٰتَيْنٰهُمْ فَكَذَّبُوْا رُسُلِيْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿٤٥﴾

ع رُسولانونه) انکار کړے وه - او دَ دے زمانے خلقوته دَ هغه طاقت لسمه برخه نهٔ ده حاصله چه مونږ دَ دوی نه پرومبنو خلقوته ورکړے وه وے دے خلقو رهُم سره دَ پرومبنو خلقو دَ ذلت او دَ هغوی سزا لیدلو) خُمونږ دَ رُسولانو انکار اوکړو نو راوس گورئ چه دے حالاتو کښے) خُما دَ انکار نتیجه (یعنی عذاب) څنګه وی.

قُلْ اِنَّمَآ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ ۚ اَنْ تَقُوْمُوْا لِلّٰهِ مَثْنٰى وَفُرَادٰى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا ۚ مَا بِصَاحِبِكُمْ مِّنْ جِنَّةٍ ۭ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ ﴿٤٦﴾

تهٔ او وایه زهٔ تاسو ته دَ یوے خبرے نصیحت کوم (کم نه کم هغه خو او منئ) هغه دا ده چه دَ الله په وړاندے دوه دوه او یوازے یوازے او دریږئ - بیا فکر اوکړئ (نو خامخا هُم دا نتیجه به راوُزی) چه ستاسو دا رُسول مجنون نهٔ دے هغه خو بس ستاسو دَ راتلونکی سخت عذاب نه هوښیارونکے (سرے) دے.

قُلْ مَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ۭ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿٤٧﴾

تهٔ او وایه ما تاسو نه (دَ رسالت دَ تبلیغ په بدل کښے) چه څه اجرت غوښتے وی هغه هُم تاسو واخلئ. خُما حق په الله دے او هغه هر څیز ګیا دے وینی.

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَقْذِفُ بِالْحَقِّ ۚ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿٤٨﴾

(بیا هغوی ته) او وایه چه په تحقیق سره خُما رب دَ حقو په سوب (دروغ) تو تے کوی. او هغه دَ هر غیب ښهٔ علم لری.

قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ ﴿٤٩﴾

(او) او وایه چه کامل حق راغلے دے او باطل هیڅ څیز نهٔ پیدا کوی او نهٔ څه مړ څیز واپس راوستے شی.

قُلْ اِنْ ضَلَلْتُ فَاِنَّمَآ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِيْ ۚ وَاِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوْحِيْٓ اِلَيَّ رَبِّيْ ۭ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ ﴿٥٠﴾

تهٔ او وایه چه کچرے زه بے لارے یم نو خُما دَ ګمراهئ زور به بس ماله وی او کچرے زهٔ په هدایت یم نو بس دَ هغے وحی له کبله چه خُما رب په ما نازله کړے ده هغه په تحقیق سره دعا ګانے اوریدونکے (او) بنده سره موجود او سیدونکے دے.

وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ فَزِعُوْا فَلَا فَوْتَ وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ﴿٥١﴾

او کچرے ته هغه حالت اووینے چه کله به دوی (دَ خدائے دَ عذابونو په سوب) وارخطا شی او ژدّ دوی به دَ تښتیدو لارنهٔ وی) او دَ یو نزدے کور نه به هغوی اونیولے شی (نو تا ته به معلومه شی چه دوی څومره په زړهٔ کمزوری دی)۔

وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍۢ بَعِيْدٍ ﴿٥٢﴾

اووائی به مونږ په دے (کلام) ایمان راوړوے هغوی ته دَ هغے (یعنی ایمان) حاصلیدل دومره لرے په تلوځنګه نصیب کیدے شی۔

وَّقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ۚ وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍۢ بَعِيْدٍ ﴿٥٣﴾

او هغوی دے نه اګاهو دَ هغے انکار کړے دے او بے دَ غور او فکرئے دَ لرے نه بے ځایه اعتراضونه کول۔

وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا فِيْ شَكٍّ مُّرِيْبٍ ﴿٥٤﴾ ع

او دَ هغوی او دَ هغوی دَ غوښتو ترمینځه بند شونه واچولے شول هُم هغه شان ځنګه چه دَ هغوی په شان خلقو سره دَ هغوی نه وړاندے شوی وُو۔ هغوی هُم یو داسے شک کښے اخته وُوځه چه بے آرامی پیدا کوونکے وه (او دوئ هُم)۔




سورۃ فاطر۔ دا سورۃ مکّی دے او بسم اللہ سرہ دَ دے شپږ ۴۶ څلویښت آیتونہ او پینځهٔ ۵ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (١)

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیابیا رحم کوونکے دے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ جَاعِلِ
الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا اُولِيْٓ اَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۭ
يَزِيْدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ
قَدِيْرٌ (٢)

ټول تعریفونه هُم الله له دی چه آسمانونو او زمکه ردَ یونوی نظام مطابق) پیدا کوونکے دے او فرښتو له په دا سے حال کښے دَ رسول په حیث راستوونکے دے چه کله دَ هغوی دوه دوه وزرے وی کله درے درے او کله څلور څلور (او دَ دے فرښتو دَ وزرونو په) پیدا ونبت کښے هغه (یعنی الله) څومره چه غواړی زیاتے کوی۔ الله په هر څیز قادر دے۔

مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ
وَمَا يُمْسِكْ ۙ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ
الْحَكِيْمُ (٣)

دَ رحمت څه سامان چه الله خلقو له پیدا کړی هغه څوک بند ولے نشی۔ او دَ رحمت څه سامان چه هغه بند کړی هغه له دَ خدائے دَ فضل نه پس څوک جاری کوونکے نشته او هغه ډیر غالب (او) دَ لوئے حکمت خاوند دے۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ۭ هَلْ
مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۭ
لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ڮ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ (٤)

یه خلقه! دَ الله چه کوم نعمت په تاسو نازل شوے دے هغه یاد کړئ۔ آیا دَ الله نه سوا بل خالق شته، څوک چه دَ آسمان او زمکے نه تاسو ته رزق درکوی؟ دَ هغهٔ نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته۔ بیا تاسو چرته په دهوکه بوتلے شئ۔

وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ ۭ وَ
اِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ (٥)

(که چرے دا خلق ستا انکار کوی نو رخفهٔ او شول) تا نه وړاندے چه څومره رسولان تیر شوی دی دَ هغوی هُم انکار شوے وه او ټولے خبرے به (دَ فیصلے دَ پاره) الله ته وړاندے کیږی۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۥ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ۝۵

يه خلقه! په تحقيق سره دَ الله وعده رښتو نے ده بيا تاسو دَ دنيا ژوند دهوكه نكړى او څوک دهوكه ورکوونکے تاسو ته دَ الله پخقله دهوكه درنكړى.

اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ۭ اِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا مِنْ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ۝۶

په تحقيق سره شيطان ستاسو دښمن دے بيا هغه هُم دښمن گنړئ. هغه خپل ملګرى لس دے دَ پاره غواړى چه هغوئ دوزخيان شى.

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ڛ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۝۷ ع ۱۳

هغه خلق چا چه كُفر كړے دے هغوى له سخت عذاب بيګلے دے او هغه خلق چا چه ايمان راوړو او دَ ايمان سره هغوى عمل هُم اوكړو دَ هغوى په برخه بخښنه او ډير لوئے انعام دے.

اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْۗءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ حَسَنًا ۭ فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ ڮ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۝۸

آيا چه چا ته دَ هغهٔ بد عملى خائسته ورښودلى شوى وى او هغه هغې له ښه ګنړى (هغه هدايت موندلے شى؟) بيا ياد لرئ چه الله چه چاله غواړى (يعنى دَ دے لائق ګنړى) هغه هلاكوى او چه چاله غواړى (يعنى لائق يې ګنړى) هغهٔ ته دَ كاميابۍ لاره ښائى بيا ستا ځان دِ دَ هغوى له كبله دَ حسرت او غم په سوب هلاک نشى الله دَ هغوى عملونه ښهٔ پيژنى (بيا دَ خدائے سزا دَ عمل سره سمه وى بے سوبه نهٔ وى).

وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَسُقْنٰهُ اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَحْيَيْنَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ ۝۹

او الله هغه ذات دے چه هوا ګانے راستوى چه ورېځے اوچتوى بيا مونږ هغه يو مړ ملک ته ورشړو او دَ هغې په سوب زمكه دَ هغې دَ ويجاړئ نه پس آباد دَو. هُم داشان دَ مرګ نه پس دَ پاسيدو قانون مقرر دے.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا ۭ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ ۭ وَالَّذِيْنَ يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۭ

څوک چه عزت غواړى هغهٔ دے ياد لرى چه عزت ټول دَ الله لاس كښے دے. پاكے خبرے هُم دَ هغهٔ په طرف ورخيژى او دَ ايمان سره سم عمل هغوى له

وَمَكْرُ أُولٰٓئِكَ هُوَ يَبُوْرُ ⑩

او چتوی او څوک چه (ستاسو خلاف) بد تدبیرونه کوی. هغوی له سخت عذاب (مقرر) دے او هُم دَ دے خلقو تدبیر تباه کیدُونکے شے دے (نهٔ چه دَ ستاسو).

وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ
أَزْوَاجًا ۚ وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثٰى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهٖ ۚ
وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖٓ إِلَّا
فِيْ كِتٰبٍ ۚ إِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ⑪

او الله تاسو دَ خاورے نه پیدا کړی یئ. دَ هغے نه پس دَ نطفے نه بیائے دَ جوړه په شکل کښے جوړ کړی یئ او چا ښځے ته حمل نهٔ کیږی او نهٔ هغه ماشوم راوړی دَ هغه دَ خدائے دَ علم مطابق وی او نهٔ څوک لوئے عمر لرُونکے لوئے عمر مومی او نهٔ دَ چا په عمر کښے کمے کیږی دے هغه دَ یو قانون مطابق ده. دا خبره الله دَ پاره خامخا آسانه ده.

وَمَا يَسْتَوِى الْبَحْرٰنِ ۖ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ
شَرَابُهٗ وَهٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ۖ وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُوْنَ
لَحْمًا طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْنَ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَ
تَرَى الْفُلْكَ فِيْهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَ
لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ⑫

او دا دوه سیندونه (یا دریابونه) هیڅکله نشی برابر کیدے چه (هغوی کښے) یو خوږ او خوښیدُونکے وی او دَ هغے اوبهٔ په آسانئ دَ مرئ نه کوزیږی او یو (بل) مالګین مرئ سوزُونکے وی او تاسو (سره دَ دے) دے دواړو سیندونو (یا دریابونو) نه تازه تازه غوښه خورئ او هغو نه دَ کالو په طور استعمال کښے راوستُونکی ګاڼے هم را اوباسی (یعنی ملغلرے او داسے نور) چه تاسوئے اچوئ. او تاسو کشتئ وینئ چه (سیندونو) کښے دَ چپو په شلولو روانے وی. دے دَ پاره چه تاسو دَ هغهٔ (یعنی دَ خدائے) دَ فضل تلاش اوکړئ او دے دَ پاره چه تاسو شُکر کوُونکی شئ.

يُوْلِجُ الَّيْلَ فِى النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِى الَّيْلِ ۙ
وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِىْ لِأَجَلٍ
مُّسَمًّى ۚ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۚ وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ
مِنْ دُوْنِهٖ مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ ⑬

او هغه شپه په ورځ کښے داخلوی او نمر او سپوږمئ هغه (دَ ټول مخلوق) په خدمت کښے لګولی دی. هغوی کښے هر یو دَ یو ټاکلی وخته پورے ټاکیا دے روان دے دا دے ستاسو رب. بادشاهت هُم دَ هغهٔ دے. او

دَچا نه چه تاسو دَ هغهٔ نه سوا مدد غواړئ هغوی دَ کجهورے کتکی کښے دَ منځ دَ پوستکی هومره هُم دَ څه څیز مالکان نهٔ دی۔

اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا یَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ ۚ وَ لَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ ؕ وَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ یَكْفُرُوْنَ بِشِرْكِكُمْ ؕ وَ لَا یُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِیْرٍ ﴿۱۴﴾

کچرے تاسو هغوئ اوغواړئ نو هغوی به چرے هُم ستاسو دَ سُود منے دَ پاره یه هغه قبلولے نشی او دَ قیامت په ورځ به ستاسو دَ شرک نه انکار اوکړی۔ او تاته دَ خبردار (خدائے) زیات بنهٔ خبر څوک نشی درکولے۔

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَ اللّٰهُ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ ﴿۱۵﴾

یَه خلقه! تاسو دَ الله محتاج یئ او الله دَ چا محتاج نهٔ دے بلکه دَ ټولو تعریفونو مالک دے (یعنی دَ نورو حاجتونه پُوره کوی)۔

اِنْ یَّشَاْ یُذْهِبْكُمْ وَ یَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِیْدٍ ﴿۱۶﴾

کچرے هغه اوغواړی نو تاسو ټول به تباه کړی۔ او یو نوے مخلوق به پیدا کړی۔

وَ مَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِیْزٍ ﴿۱۷﴾

او په الله دا خبره هډو گرانه نهٔ ده۔

وَ لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ وَ اِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ اِلٰى حِمْلِهَا لَا یُحْمَلْ مِنْهُ شَیْءٌ وَّ لَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ؕ اِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِیْنَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَیْبِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَ مَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا یَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ الْمَصِیْرُ ﴿۱۸﴾

او څوک پیټئ او چتونکے هډو پیټی نشی اوچتولے۔ او څوک دَ پیټی لاندے کیږ دَ خپل پیټی دَ اوچتولو دَ پاره دَ چا مدد اوغواړی نو دَ هغهٔ لږ پیټئ به هُم نشی اوچتولے که هغه ډیر نزدے هُم وی ته خو بس هغه خلق هوښیاروے څوک چه دَ خپل رب نه ځان له هُم یریږی۔ او نمونځونه (دَ شرطونو سره) ادا کوی او څوک سرئ چه پاکیږی هغه بس دَ خپل ځان دَ فائدے دَ پاره پاکیږی او آخر کښے دَ ټولو هُم الله ته واپس گرزیدل دی۔

وَ مَا یَسْتَوِی الْاَعْمٰى وَ الْبَصِیْرُ ﴿۱۹﴾

او ړُوند او بینا نشی برابریدے۔

وَ لَا الظُّلُمٰتُ وَ لَا النُّوْرُ ﴿۲۰﴾

او نهٔ تیرے او نور (برابریدے شی)۔

وَ لَا الظِّلُّ وَ لَا الْحَرُوْرُ ﴿۲۱﴾

او نهٔ سیورے او نمر (برابریدے شی)۔

وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ
مَنْ يَشَاءُ ۖ وَمَا أَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَنْ فِي الْقُبُورِ ۝۲۲

او نهٔ ژوندئ او مړئ (برابرېدے شی)۔ الله په تحقيق سره چه چاته او غواړی اورولے شی وے ته هغوی ته نشے اورولے څوک چه قبرونو کښے پروت دی۔

إِنْ أَنْتَ إِلَّا نَذِيرٌ ۝۲۳

ته خو بس يو هوښيارُونکے يئے۔

إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ۚ وَإِنْ مِنْ أُمَّةٍ
إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ۝۲۴

مونږ ته يو قائم پاتيکيدُونکے صداقت سره يو زيرے ورکوُنکے او هوښيارُونکے ليږلے يئے۔ او هيڅ يو قام داسے نشته دے۔ چه پکښے (دَ خدائے دَ طرف نه) څوک هوښيارُونکے نهٔ وی راغلے۔

وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ
جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ
الْمُنِيرِ ۝۲۵

او کچرے دا خلق ستا انکار کوی نو هغه خلقو هُم چه دَ هغوی نه وړاندے تېر شوی وُو (دَ خپل وخت دَ رسُولانو) انکار کړے وه۔ هغوئ له هُم دَ زمانے رسُولان دليلونو سره او بعضے تعليماتو سره راغلی وُو۔ او (هغوی کښے بعضے) دَ روښانه کوُونکی کتاب سره (هُم راغلی وُو)

ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ۝۲۶ ع۳ ۱۵

بيا ما کافران دَ هغوی دَ انکار په سوب (په عذاب) اونيول۔ بيا نو (او گورئ چه دے حالاتو کښے) زما دَ انکار نتيجه (يعنی عذاب) څنګه وی۔

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهِ
ثَمَرَاتٍ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا ۚ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ
وَحُمْرٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ ۝۲۷

آيا تا ليدلی نهٔ دی چه الله دَ وريځو نه اوبه راورولے دی۔ بيا مونږ دے سره دَ مختلفو رنګونو ميوے پيدا کړی دی۔ او په غرونو کښے دَ مختلفو رنګونو غرونه وی (چه دَ يو بل نه غوره وی) بعضے سپين او بعضے سرهٔ دَ مختلفو رنګونو او تک تور هُم۔

وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ
كَذَٰلِكَ ۗ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ ۗ إِنَّ
اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ ۝۲۸

او خلقو او ځاروُو او څناورو کښے هُم بعضے داسے وی چه هغوی کښے دَ هر يو رنګ دَ بل نه جدا وی حقيقت هُم داسے دے (او) دَ الله بنديانو کښے بس عالمان هغهٔ نه ويريږی۔ الله ډير غالب (او) ډير بخښوُنکے دے۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ
اَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً
لَّنْ تَبُوْرَ ﴿۲۹﴾

هغه خلق څوک چه دَ الله کتاب لولی او لمونځ ربه جمع ) کوی او څه چه مونږ هغوی ته ورکړی دی دَ هغے نه په پټه هُم او په ښکاره هُم خرڅ کوی۔ هُم هغوی دَ داسے تجارت په تمون کښے لګیا دی چه کله به هُم نۀ تباه کیږی۔

لِيُوَفِّيَهُمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ
غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۳۰﴾

ولے چه دَ دے نتیجه به داوی چه الله به هغوی له دَ هغوی دَ عملونو پوره پوره اجر ورکوی او ( دَ هغوی دَ عملونو دَ اجر نه سوا ) دَ خپل فضل نه به نور هُم زیات ورکوی ( چه دَ هغے له کبله به دَ هغوی حال دَ دے دُنیا نه په زرګونو ښۀ وی ) دَ دے دَ پاره چه هغه ( خُدائے ) ډیر بخښونکے ( او ) ډیر قدر کوونکے دے۔

وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا
لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهٖ لَخَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ﴿۳۱﴾

او هغه خبره څه چه مونږ دے قرآن نه په تا وحی سره استولے ده دَ سره ریښتیا ده او خامخا پوره کیدُونکے ده او دے نه وړاندے چه څه وحی راغلے ده هغے له پوره کوونکے ده۔ الله دَ خپلو بندیانو نه په تحقیق سره خبردے ( او ) دَ هغوی حال وینی۔

ثُمَّ اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ
فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ وَمِنْهُمْ
سَابِقٌۢ بِالْخَيْرٰتِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ
الْكَبِيْرُ ﴿۳۲﴾

بیا ( حقیقت دا دے چه دَ وحی نازلیدو نه پس ) مونږ دَ خپل کتاب ( نزول عمر ) هُم هغه خلق وارثان کړی دی څوک چه مونږ خپلو بندیانو کښے خوښ کړل۔ بیا هغوی کښے څوک نه څوک سړے نو داسے اوختو چه په خپل ځان ترجده ظلم کوونکے وه او څوک هغوی کښے داسے اوختو چه مینځوما نه حال تلونکے وه۔ او څوک نه څوک داسے اوختو چه په نیکو کښے دَ الله به حُکم دَ نورو نه وړاندے وتونکے وه دا ( دَ الله ) لوئے فضل دے۔

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ

( دَ دے مقام بدل به ) دَ تل عمری استو ګنے هغه جنتونه

مِنْ ذَهَبٍ وَّ لُؤْلُؤًا ۚ وَ لِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ﴿۳۳﴾

وی چه به پکښې هغوی (خلق) دا خلیګی (راو) هغه کښې به هغوی ته د سرو کړے اچوے شی او د ملغلرو (کالی) هُم او د هغوی جامے به هغه کښې د (ریښمو زنه جوړے) وی۔

وَ قَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ؕ اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرُ ﴿۳۴﴾

او هغوی به وائی چه هر قسم تعریف هُم د الله دے چا چه ځمونږ غم لرے کړو۔ ځمونږ رب په تحقیق سره ډیر بخښونکے (او) ډیر قدردان دے۔

الَّذِيْٓ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا نَصَبٌ وَّ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا لُغُوْبٌ ﴿۳۵﴾

هغه (خدائے) چا چه په خپل فضل مونږ د ایساریدو د پاره یو داسے ځائے کښے ساتلی یُو چه په کښې نهٔ خو مونږ ته څه تکلیف رسی او نهٔ ستړو الے۔

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا وَ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ كُلَّ كَفُوْرٍ ﴿۳۶﴾

او هغه خلق چا چه کفر کړے دے هغوی به د دوزخ اور سوزوی نهٔ خو به هغوی باندے د مرګ فیصله کیږی چه هغوی مړهٔ شی او نهٔ به د دوزخ په عذاب کښے د هغوی په خاطر څهٔ کمئ کیګی۔ مونږ هر یو ناشکره سره هُم داسے کوُو۔

وَ هُمْ يَصْطَرِخُوْنَ فِيْهَا ۚ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَ لَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَ جَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ﴿۳۷﴾

او هغوی به هغے (یعنی دوزخ) کښے کریکے وهی (او وائی به) یه ځمونږه ربه! مونږ د دے دوزخ نه اوباسه نو مونږ به (د مومنانو په رنګ) نیک کارونه کوُو۔ د هغے نه په بل شان چه څه به مونږ په رومبنی ژوند کښے کول (مونږ به هغوی ته او وایو) آیا مونږ تاسو ته دومره عمر نهٔ وهٔ درکړے چه پکښې نصیحت اخستونکے نصیحت او مومی او تاسو له هوښیاروُنکی (هُم) راغلی وُو۔ (نیا تاسو د هغوی خبره ونهٔ منله) بیا راوس (دا) عذاب او څکئ (روے) چه د ظالمانو هیڅوک مددګار نهٔ وی۔

اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ

الله د آسمانونو او د زمکے د غیب علم لری۔ هغه د زړونو

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿٣٨﴾

دَ خبرونه هُم ښهٔ خبر دے۔

هُوَ الَّذِیْ جَعَلَکُمْ خَلٰٓئِفَ فِی الْاَرْضِ ؕ فَمَنْ کَفَرَ
فَعَلَیْهِ کُفْرُهٗ ؕ وَلَا یَزِیْدُ الْکٰفِرِیْنَ کُفْرُهُمْ عِنْدَ
رَبِّهِمْ اِلَّا مَقْتًا ۚ وَلَا یَزِیْدُ الْکٰفِرِیْنَ کُفْرُهُمْ اِلَّا
خَسَارًا ﴿٣٩﴾

هُم هغه دے چه چا تاسو دنیا کښے ردَ پرومبنو خلقو په ځائے راوستیٔ بیا ځوک چه انکار اوکړی دَ هغهٔ دَ انکار سزا به دَ هغهٔ په سَروی او دَ کافرانو کُفر هغوی دَ هغوی دَ رب په نظر کښے بس خفګان کښے زیاتوی او دَ کافرانو کفر هغوی لبس هُم نقصان کښے زیاتوی۔

قُلْ اَرَءَیْتُمْ شُرَکَآءَکُمُ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ
اللّٰهِ ؕ اَرُوْنِیْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْکٌ
فِی السَّمٰوٰتِ ۚ اَمْ اٰتَیْنٰهُمْ کِتٰبًا فَهُمْ عَلٰی بَیِّنَتٍ مِّنْهُ ۚ
بَلْ اِنْ یَّعِدُ الظّٰلِمُوْنَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا اِلَّا غُرُوْرًا ﴿٤٠﴾

تهٔ او وایه ماته اوخووائی خپل (تاسو خیالی) شریکان چا نه چه تاسو دَ الله نه سوا مدد غواړئ (او کېږے هغوی نهٔ ښکاری نو) ماته دَ هغوی هغه مخلوق اوښائي چه هغوی زمکه کښے پیدا کړے دے یا آیا دَ هغوی دَ آسمانونو په جوړولو کښے څه شراکت شته؟ آیا مونږ هغوی ته څهٔ کتاب ورکړے دے؟ چه هغوی دَ هغے بیان کړے څه دلیل خپل ځان سره لری (او وایه دا سے هیڅ یے نهٔ دہ) بلکه ظالمان خپلو کښے دَ یو بل سره بس دهوکه ورکوونکے وعدے کوی۔

اِنَّ اللّٰهَ یُمْسِکُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَنْ تَزُوْلَا ۚ وَ
لَئِنْ زَالَتَآ اِنْ اَمْسَکَهُمَا مِنْ اَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اِنَّهٗ
کَانَ حَلِیْمًا غَفُوْرًا ﴿٤١﴾

هُم الله آسمانونه او زمکه دَ دے خبرے نه منع کړے دی چه هغوی خپل ځائے نه انخوا شی او کېږے هغوی بے ځایه شی نو دَ هغے نه روستو به ځوک هغوی (دَ تباه کیدو نه) منع نکړے شی په تحقیق سره هغه دَ لوے خاوند (او) ډیر معاف کوونکے دے۔

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَیْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَهُمْ نَذِیْرٌ
لَّیَکُوْنُنَّ اَهْدٰی مِنْ اِحْدَی الْاُمَمِ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ
نَذِیْرٌ مَّا زَادَهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا ﴿٤٢﴾

او هغوی دَ الله پا خهٔ قسمونه خوری چه کېږے هغوی ته ځوک نبي راشی نو هغوی به تولو امتونو کښے دَ هر چا نه زیات هدایت موندُونکی شی وے هر کله چه هغوی له نبي راغے نو دَ هغهٔ راتلل هغوی له بس په نفرت کښے دَ زیاتولو سوب شول۔

اِسْتِكْبَارًا فِي الْاَرْضِ وَمَكْرَ السَّيِّئِ ۚ وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ اِلَّا بِاَهْلِهٖ ۚ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا سُنَّتَ الْاَوَّلِيْنَ ۚ فَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَحْوِيْلًا ﴿٤٣﴾

ولے چه هغوی زمکه کښے لويي غوښته او بد تد بيرونه ئې کول غوښتل - او بد تد بير هُم دَ هغے کوونکی ملا کوی. بيا آيا هغوی لس دَ وړاندينو دَ سُنت (يعني عذاب) انتظار خو نهٔ کوی (او کچرے نهٔ غور او کړے) نو دَ الله په سُنت کښے به چرے بدلی او نهٔ موے او نهٔ به چرے دَ الله سُنت په اوړيدو اووينے -

اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَكَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعْجِزَهٗ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ ۚ اِنَّهٗ كَانَ عَلِيْمًا قَدِيْرًا ﴿٤٤﴾

آيا هغوی زمکه کښے نهٔ دی گرزيدلی (کچرے داسے يے کړے وے) نو ليدلی به ئے وُو چه دَ هغوی نه دَ وړاندينو خلقو څه انجام او شو؟ سره دَ دے چه دوی نه طاقت کښے زيات وُو او هيڅ څيز الله په آسمانونو او زمکه کښے په خپله اراده کښے پاتے نشی راوستے - هغه په تحقيق سره ډير علم لرونکے (او) لوئے قدرت لرونکے دے -

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوْا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيْرًا ﴿٤٥﴾

او کچرے الله خلق دَ هغوی دَ کارونو په سوب نيول شرو کړے وے نو دَ زمکے په مخ به ئے يو ساه لرونکے نهٔ وے پريخودے. ولے هغه هغوی ته يو مياد پورے ډيل (موت) ورکوی بيا چه کله دَ هغوی اجل راشی نو رټا به شی چه الله خپل بنديان ښهٔ ليدل -

ع




سورة يٰسٓ - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے څلوړ ۸۴ اتیا آیتونه او پنځهٔ ۵ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

يٰسٓ ②

اے سیّد ! مونږ حکمت لرُونکے قرآن (ستا دَ سیّدکیدو)

وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ③

په شهادت کښے وړاندے کوُو۔

اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ④

په تحقیق سره تهٔ دَ رُسولانو نه یئے۔

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ⑤

او په نیغه لاره ریئے)

تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ⑥

(او قرآن) دَ غالب (او) بے حده رحم کوُونکی (خدائے) دَ طرف نه نازل کړے شوے دے۔

لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ غٰفِلُوْنَ ⑦

په دے غرض چه تهٔ هغه قام هوښیار کړے په دَ چا پلار نیکونه هوښیار کړے شوی نهٔ وُو او هغوی غافل پراتهٔ وو۔

لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑧

ځمونږ دعوىٰ هغوی کښے دَ ډیروځنو بچقله پوره شوه بیانو هغوی ایمان نهٔ راوړی۔

اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا فَهِيَ اِلَى الْاَذْقَانِ فَهُمْ مُّقْمَحُوْنَ ⑨

مونږ دَ هغوی په مروکښے پړی اچولی دی او هغه دَ هغوی زنوته ختلی دی او هغوی (دَ تکلیف نه دَ ځان سا تلو دَ پارهٔ خپل) سرونه اوچتوی۔

وَجَعَلْنَا مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَاَغْشَيْنٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ⑩

او مونږ دَ هغوی وړاندے هُم یو بند جوړ کړے دے او دَ هغوی روستو هُم یو بند جوړ کړے دے او هغوی موپټ کړی دی بیا هغوی نشی لیدلے۔

وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑪

او ستا یرول یا نهٔ یرول هغوی دَ پاره برابر دی هغوی (چه تر څو خپلو زړونو کښے تبدیلی پیدا نکړی) ایمان به نهٔ راوړی۔

اِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ

تهٔ خو بس هغه سړے هوښیار وے شے څوک چه

فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَّاَجْرٍ كَرِيْمٍ ⑪

یادکیرنه منی اورحمٰن (خدائے) نه ځان له هُم ویریږی۔ بیا داسے کس ته ته دَیوے عظیم الشان معافئ او دَعزت لرُونکی بدلے خبرداورده۔

اِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوْا وَاٰثَارَهُمْ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ اَحْصَيْنٰهُ فِيْٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ ⑫

هُم مونږ مړی ژوندی کوُو اوچه څهٔ هغوی دَراتلُونکی ژوند دَ پاره وړاندے استوی هغه هُم سمبال ساتو اوځه عملونه چه هغوی دنیا کښے کړی دُو دَ هغو به چه ځهٔ نتیجے راوزی هغه هُم مونږ سمبال ساتو او هرڅیز مونږ په یو ښکاره کتاب کښے شمیر کړے دے۔

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا اَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ ۘ اِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُوْنَ ⑬

اوتهٔ دَ هغوی په وړاندے دَیوکلی دَ خلقوحال بیان کړه چه هرکله څمونږ رسُولان راغلل۔

اِذْ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوْهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوْٓا اِنَّآ اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ ⑭

یعنی ځه وخت چه مونږ رومبیٔ خو هغوی ته دوه رسولان واستول وے هغوی دَ هغو دواړو انکاراوکړو په دے مونږ هغه رومبنو دواړوته دَیو دریم رسُول په استولوطاقت ورکړو۔ بیا هغوی ټولو په یو ځائے خپل قام ته اووئیل چه مونږ ستاسو په طرف یو پیغام سره ستاسو دَرب دَطرف نه رالیږلی شوی یُو۔

قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۙ وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ ۙ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَكْذِبُوْنَ ⑮

هغوی ورته (جواب) کښے اووئیل چه تاسو څمونږ په شان سړی یئ او رحمان خدائے هیڅ څیز (دَ الهام په طور) نهٔ دے راکوُز کړے تاسو بس دروغ وائیٔ۔

قَالُوْا رَبُّنَا يَعْلَمُ اِنَّآ اِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُوْنَ ⑯

هغوی اووئیل چه څمونږ رب دَ دے خبرے علم لری چه مونږ ستاسو په طرف رسُولان رالیږلی شوی یُو۔

وَمَا عَلَيْنَآ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ⑰

اوڅمونږ کار بس دا دے چه مونږ په ډاګه تبلیغ اوکړو۔

قَالُوْٓا اِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا لَنَرْجُمَنَّكُمْ

په دے کافرانو اووئیل مونږ خو ستاسو په نحپل طرف راتلل

وَلَيَمَسَّنَّكُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١٩﴾

سپيرۀ كړزوو. كچرے تاسو دَ خپلو دے خبرونه منے نشوئ نو مونږ به تاسو په كاڼړو اولو او تاسو ته به ځمونږ دَ لاسه دردناك عذاب اورسى.

قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ۭ اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿٢٠﴾

هغوى اووئيل چه ستا سو عمل تاسو سره دے (تاسو چه چرته يئ ستاسو دَ عملونو بده نتيجه به اوزى) آيا تاسو دا خبره دے له كوئ چه مونږ تاسو ته ښه كارونه ياد وُو بلكه حقه دا ده چه تاسو دَ حد نه وتونكے قام يئ ردے دَ پاره خامخا به سزا مومئى).

وَجَآءَ مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى قَالَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٢١﴾

او دَ ښار بل سرنه يو سړے په منډه منډه راغلو او هغهٔ اووئيل چه يَه خما قامه ! دَ رسولانو منئ.

اتَّبِعُوْا مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ اَجْرًا وَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٢٢﴾

دَ هغوى منئ څوك چه تاسو نه هيڅ اجر نهٔ غوا ړى او هغوى په هدايت دى.

وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۲۲﴾

اودا په ما څهٔ شوی دی چه زهٔ دَ هغهٔ (خدائے) عبادت اونکړم چا چه زهٔ پیدا کړے یم او تاسو ټول په هغهٔ ته واپس کولے شئ۔

ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً إِن يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغْنِ عَنِّي شَفَٰعَتُهُمْ شَيْـًٔا وَلَا يُنقِذُونِ ﴿۲۳﴾

آیا زهٔ دَ هغهٔ نه سوا نور معبودان څپلولے شم۔ کچرے رحمان (خدائے) ما ته څه نقصان رسول اوغواړی نو دَ دوی (معبودانو) شفاعت ما ته څه فائده نشی رسولے او نهٔ هغه ما دَ هغه دَ ضرر نه بچ کولے شی۔

إِنِّيٓ إِذًا لَّفِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿۲۴﴾

(کچرے زهٔ داسے اوکړم) نو زهٔ به په تحقیق سره په ښکاره ګمراهئ کښے اخته یم۔

إِنِّيٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ ﴿۲۵﴾

ما ستاسو په رب ایمان راوړے دے بیا نو زما خبره واورئ۔

قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ قَالَ يَٰلَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ ﴿۲۶﴾

(بیا هغهٔ ته دَ خدائے دَ طرف نه) اووئیلے شول، جنت ته ورزئ (دَ دے په اوریدو هغهٔ) اووئیل، کاش! زما قام ته (زما انجام) معلومه وے۔

بِمَا غَفَرَ لِي رَبِّي وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُكْرَمِينَ ﴿۲۷﴾

چه څنګه زما رب زهٔ بخښلے یم او زهٔ ئے دَ عزت مندو تولی کښے شامل کړے یم۔

۞ وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنۢ بَعْدِهِۦ مِن جُندٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ ﴿۲۸﴾

او مونږ دے نه پس دَ هغهٔ په قام دَ آسمان نه دَ هغوی دَ تباه کولو دَ پاره څه لښکر راکوز نهٔ کړو او نهٔ مونږ داسے لښکر راکوزوو۔

إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَإِذَا هُمْ خَٰمِدُونَ ﴿۲۹﴾

بس یو خطرناک عذاب په هغوی راغے او هغوی خپل ټول شان وشوکت نه لاس او وینځلو۔

يَٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ ۚ مَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿۳۰﴾

افسوس (په انکار کوونکو) بندیانو چه هرکله هغوی ته رسُول راشی هغوی هغهٔ ته په سپک نظر کتل شروع کړی (او ورپورے خندا کوی)۔

أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ

آیا هغوی لیدلی نهٔ دی چه دَ هغوی نه مخکښے څومره

اِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۳۱﴾

کلی مونږ هلاک کړی دی راودا هُم چه څوک هلاک کړے شوی وُو ) هغوی واپس نهٔ راځی۔

وَاِنْ كُلٌّ لَّمَّا جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ ﴿۳۲﴾ ع

او ټول خلق به خامخا مونږ ته حاضریګی۔

وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۚۖ اَحْيَيْنٰهَا وَاَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَاْكُلُوْنَ ﴿۳۳﴾

او دَ هغوی (کافرانو) دَ پاره مړه زمکه هُم یو نښان دے مونږ هغه را ژوندئ کړے ده او هغے نه مو غله او باطے ده بیا دوئ هغے نه خوری۔

وَجَعَلْنَا فِيْهَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ وَّفَجَّرْنَا فِيْهَا مِنَ الْعُيُوْنِ ﴿۳۴﴾

او مونږ په زمکه کښے دَ کجهورو او انګورانو باغونه هُم پیدا کړی دی او دے کښے مو چینے راویستے دی۔

لِيَاْكُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖ ۙ وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ ؕ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۵﴾

دے دَ پاره چه هغوی دَ دے (یعنی باغ) دَ میوے نه (دَ ضرورت هومره) اوخوری او دا (باغ) دَ هغوی لاسونو نهٔ دے جوړ کړے (بلکه مونږ پیدا کړے دے) آیا هغوی شُکر نهٔ کوی ؟

سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾

پاک دے هغه ذات چا چه هر قسم جوړے پیدا کړی دی هغے نه هُم څه چه زمکه توکوی او خپله دَ هغوی دَ نوعونو (ځانونو) نه هُم او دَ هغو څیزونو نه هُم کوم چه هغوی نهٔ پیژنی۔

وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ ۚۖ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾

او هغوی دَ پاره شپه هُم یو لوئے نښان دے چه هغے نه مونږ په ورځ را اوباسو چه هغے نه پس هغوی تیره کښے پاتے شی۔

وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۳۸﴾

او نمر دَ یو مقرر شوی ځائے په طرف روان دے۔ دا دَ غالب (او) علم لرونکی (خدائے) مقرر کړے قانون دے۔

وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ﴿۳۹﴾

او سپوږمئ ته (اوګورئ چه) مونږ دَ هغے دَ پاره هُم منزلونه مقرر کړی دی تر هغے پورے چه هغه رپه دے منزلونو باندے په تلو تلو) دَ یو پخوانی ښاخ په رنګ بیا واپس راځی۔

لَا الشَّمْسُ يَنۢبَغِيْ لَهَآ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا
الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ ۭ وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ۝۴۰

نهٔ خو نمر طاقت لري چه هغه په خپله کلیزه دوره کښے تهٔ ونخت سپوږمئ ته اورسي (وسے چه که داسے وي نو ټول نظام شمسي به تباه شي) او نهٔ د شپے (یعنې سپوږمئ دا) طاقت دے چه هغه په وړاندے کیدلو ورځ (یعنې نمر) اونیسي بلکه دوی ټول په یوه مقرره لاره ښه په مزه روان دي زي۔

وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝۴۱

او د هغوی د پاره دا هُم نښان دے چه مونږ د هغوی نسلونه په ډکو کشتو کښے سواره کړزوو۔

وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝۴۲

او مونږ به د هغوی د پاره دا قسم نور (څیزونه) هُم پیدا کُړو چه هغو نه به هغوئ د سورلۍ کار آخلي۔

وَاِنْ نَّشَاْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيْخَ لَهُمْ وَلَا هُمْ
يُنْقَذُوْنَ ۝۴۳

کچرے مونږ او غواړو نو هغوی به هلاک کړو بیا به څوک د هغوی فریاد اوریدُنکے نهٔ وی او نهٔ به مونږ د رحمت نه سوا په بله سوب هغوی بچ کړے شي۔

اِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ۝۴۴

او هغوی به لږ څهٔ موده پورے دُنیاوی فائدے اوچتوی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّقُوْا مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ
لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝۴۵

او هرکله چه هغوی ته اوویلے شي چه څه ستاسو وړاندے راتلونکي دي (یعنې نه ځان او ساتئ) او چه کوم عملونه تاسو روستو پریخے دي د هغے د جزا نه هُم د بچ کیدلو کوشش کوئ دے د پاره چه په تاسو رحم اوشي (نو هغوی د نصیحت اخستو په ځائے د هغے سپکاوئ کوی او فائده نهٔ اوچتوی)۔

وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا
عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ۝۴۶

او د هغوی د رب په نښا نو کښے چه کوم ا هم نښان ښکاره کیږي هغوی د هغے نه هُم مخ اړوي۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ۙ قَالَ
الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَاۗءُ

او هرکله چه هغوی ته اوویلے شي چه څه تاسوله خدائے درکړي دي هغے نه خرچ کوئ نو کافران مومنانو ته

| | |
|---|---|
| اللّٰهُ اَطْعَمَهٗٓ ۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٧﴾ | وائی چه آیا مونږ به هغوی اوخورو چاله چه الله غوښتلے نو خپله ئے هُم پرے خوړولے شوه تاسو (زمونږ د خدائے د خوښے خلاف په تعلیم ورکولو) په ښکاره ښکاره ګمراهئ کښے اخته یئ۔ |
| وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٤٨﴾ | او هغوی وائی کچرے تاسو رښتونی یئ نو مونږ ته اووائی چه هغه (د عذاب) وعده به کله پوره کیږی۔ |
| مَا يَنْظُرُوْنَ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً تَاْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ ﴿٤٩﴾ | هغوی لس د یو ناساپی عذاب (د را تلو) انتظار کیا دی کوی چه هغوی به راونیسی او هغوی به کیا وی بحثونه به کوی۔ |
| فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ تَوْصِيَةً وَّلَآ اِلٰٓى اَهْلِهِمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٥٠﴾ | هغه وخت به نهٔ خو هغوی یو بل ته نصیحت اوکړے شی او نهٔ به د خپلے خپل ځانے په طرف (د هغوی د پوهولو د پاره) واپس تللے شی۔ |
| وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَاِذَا هُمْ مِّنَ الْاَجْدَاثِ اِلٰى رَبِّهِمْ يَنْسِلُوْنَ ﴿٥١﴾ | او بگل به اوغږولے شی او هغوئ به ناسا په د قبرونو نه اوزی (او) د خپل رب په طرف به په منډه شی۔ |
| قَالُوْا يٰوَيْلَنَا مَنْۢ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا ۜ هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٢﴾ | (او یو بل ته) به وائی غرق شو! مونږ د قبرونو نه چا په او باسلو اُودرولی یُو۔ دا هُم هغه خبره ده چه رحمٰن (خدائے) یے مونږ سره وعده کړے وه۔ او رسولانو چه څه وئیلی وُو رښتیا ئے وئیلی وُو۔ |
| اِنْ كَانَتْ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمْ جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ ﴿٥٣﴾ | دا به (بس) یو ناساپی عذاب وی چه د څه په نتیجه کښے به هغوئ ټول یو ځائے مونږ ته حاضر کړے شی۔ |
| فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَّلَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٥٤﴾ | او هغه ورځ به په چا پُو تئ قدرے هُم ظُلم نهٔ کیګی او تاسو ته به ستاسو د عملونو سره سم جزا درکولے شی۔ |
| اِنَّ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِيْ شُغُلٍ فٰكِهُوْنَ ﴿٥٥﴾ | جنتیان به هغه ورځ یو ضروری کار (یعنی د الله ذکر) کښے لګیا وی او د خپل حال په لیدو) به خوشحالی نه ځاندی۔ |
| هُمْ وَ اَزْوَاجُهُمْ فِيْ ظِلٰلٍ عَلَى | هغوئ به هُم او د هغوئ ملګری به هُم په چهپرکټونو اړے |

الْاَرَآئِكِ مُتَّكِــُٔوْنَ ﴿۵۶﴾

وهلی ناست وی (او دَ خدائے دَ رحمت) سیورو لاندے (به وی)۔

لَهُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّلَهُمْ مَّا يَدَّعُوْنَ ﴿۵۷﴾

هغوی دَ پاره به هغو جنتو نو کښې میوے رَسوے شی او چه څه به هغوی غواړی هغوئ ته به ورکیدے شی۔

سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ ﴿۵۸﴾

(او) هغوئ ته به سلام ویلے شی چه دَ بیا بیا کرم کوونکی رب دَ طرف نه به دَ هغوئ په طرف پیغام وی۔

وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۵۹﴾

(او مونږ به دا هُم وايُو چه) یه مجرمانو! نن تاسو دَ مومنانو نه بیل شئ۔

اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَيْكُمْ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اَنْ لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطٰنَ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۶۰﴾

یه بنی آدمه! آیا ما په تا دا ذمه واری ایخودے نهٔ وه چه دَ شیطان عبادت مهٔ کوه هغه ستاسو ښکاره ښکاره دښمن دے۔

وَّاَنِ اعْبُدُوْنِيْ ۚ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۶۱﴾ ربع

او بس ځما عبادت کوه چه هُم دا نیغه لاره ده۔

وَلَقَدْ اَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيْرًا ۚ اَفَلَمْ تَكُوْنُوْا تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۲﴾

او شیطان خو ډیر څه مخلوق هلاک کړے دے آیا "نهٔ په دے نهٔ پوهیږئ؟

هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۶۳﴾

(او گورئ) دا جهنم دے چه دَ هغے به تاسو سره وعده کیده۔

اِصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۶۴﴾

دَ خپل کفر له کبله نن دے کښې داخل شئ۔

اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۶۵﴾

هغه ورځ به مونږ (دَ هغوی دَ انکار له کبله) دَ هغوی په خولو مهر وهو (یعنی دَ ویناء حاجت به نهٔ وی) او دَ هغوی لاسونه به مونږ سره خبرے کوی او دَ هغوی پښے به دَ هغوی په بدو کارونو گواهی ورکوی۔

وَلَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلٰٓى اَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى يُبْصِرُوْنَ ﴿۶۶﴾

او که چیرے مونږ اوغواړو نو دَ هغوی سترگے به ړندے کړو بیا به هغوی بے کتو بے لیدو دَ لوے لارے په لټون کښې روان شی ولے په دغه حال کښې هغوی (نیغه لاره) څنگه لیدے شی۔

وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنٰهُمْ عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مُضِيًّا وَّلَا يَرْجِعُوْنَ ۶۷

او که چیرے مونږ اوغواړو نو چه چرته هغوی دی هُم هلته به دَ هغوی شان ختم کړو بیا خو به نهٔ هغوی دَ وړاندے تلو طاقت اوموهی او نهٔ دَ واپس تلو لاره۔

وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِی الْخَلْقِ ۚ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ ۶۸

اوچه دَ چا مونږ عمر ډیرزیات او ږدوو دَ هغهٔ بدنی قوتونه ورسره کمزوری کوُو۔ آیا هغوی نهٔ پوهیګی۔

وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِیْ لَهٗ ۚ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ ۶۹

او مونږ دهٔ (یعنی محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) ته شعر وئیل نهٔ دی ښودلی او نهٔ دا کار دَ دهٔ شان سره سم وَه - دا قرآن خو لس یو نصیحت دے او بیا بیا دَلوستو یو کتاب دے چه (دلیلونه ورسره ورسره بیانوی)۔

لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَيًّا وَّيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۷۰

څکه چه څوک (په زړهٔ) ژوندے دے هغه هوښیار کړی او دَ کافرانو پخقله دَ خدائے فیصله پوره شی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ ۷۱

آیا هغوی نهٔ ګوری چه مونږ هغوی دَ پاره په خپل خاص قدرت څاروی جوړ کړی دی او هغی دَ هغو مالکان دی۔

وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ وَمِنْهَا يَاْكُلُوْنَ ۷۲

او مونږ هغه څاوری دَ هغوئ دَ حکم لاندے راوستی دی بیا نو په هغو کښے په څنو خو هغوی سوریګی او څنے هغوی خوری۔

وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ ۚ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ۷۳

او دَ هغوی نه ډیرقسمه فائدے آخلی او دَ څکلو سامان هُم پوره کوی۔ آیا هغوی شُکر نهٔ کوی؟

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لَّعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ ۷۴

او هغوی دَ الله نه سوا نور معبودان جوړ کړی دی چه کیدے شی څه وخت دَ هغوی مدد اوکړے شی۔

لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ ۙ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ ۷۵

هغی (معبودان) دَ هغوی هیڅ مدد نشی کولے (او هغی ربه دَ هغوی څه مدد کوی) البته به تهول دَ هغوی خلاف دَ یو لښکر په شکل کښے ګواهی ورکوی۔

فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۷۶

بیا دَ هغوی خبرے دِ تا غمژن نکړی مونږ ته هغه هُم معلوم دی چه هغوی ئے پټوی او هغه هُم چه هغوی ئے

ښکاره کوی۔

اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ﴿۷۷﴾

آیا انسان ته معلومه نهٔ ده چه مونږ هغه (د یوے سپکے) قطرے نه پیدا کړے دے بیا (هرکله چه) هغه پیدا شی نو ناساپی سخت جهګړمار شی۔

وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ۭ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ ﴿۷۸﴾

او ځمونږ د ذات په حقله خبرے جوړول شروع کړی او خپل پیدا ونبت هیر کړی او وائی چه هرکله هډوکی وراستهٔ پاستهٔ شی نو هغه به لا څوک ژوندی کوی۔

قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۭ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُۨ ﴿۷۹﴾

ته ورته او وایه چه دا سے هډوکی به هُم هغه ژوندی کوی چا چه هغه په ړومبی ځل پیدا کړی وُو او هغه د هر مخلوق د حال نه ښهٔ واقف دے۔

الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ ﴿۸۰﴾

هغه (ذات) چا چه تاسو د پاره د شنو ونو نه اور پیدا کړے دے بیا تاسو هغے سره اور بلوئ۔

اَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓي اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ۭ بَلٰى ۤ وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۱﴾

آیا هغه چا ته آسمانونه او زمکه پیدا کړی دی په دے خبره قادر نهٔ دے چه د هغے په شان نور مخلوق پیدا کړی دا سے خیال (چه هغه پیدا کولے نشی) صحیح نهٔ دے بلکه هغه ډیر پیدا کوونکے (او) ډیر پوهه دے۔

اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَـيْـــًٔا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۸۲﴾

د هغهٔ خبره خو دا سے ده چه هرکله هغه دا اراده اوکړی چه فلانے کار دِ اوشی هغه د هغے په حقله وائی چه دا سے دِ اوشی او هغه شان اوشی۔

فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

بیا پاک دے هغه چه د چا په واک اختیار کښے د هر څیز بادشاهی ده او چه د چا په طرف به تاسو ټول واپس بوتللے شئ۔




سورة الصّآفّات - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے يوسل درے آتيا ۱۸۳ آيتونه او پنځه ۵ رکوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکے دے ۔

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ۝٢
(رزهٔ) دَ شهادت په طور وړاندے کوم هغه نوُسونه چه (دَ صداقت دَ دښمنانو مخامخ) صفونه تړلی ولاړ دی۔

فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ۝٣
او چه په کار کوُونکی رټي ۔

فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ۝٤
او چه دَ الله ذکر (يعنی قرآن) تلاوت سره اوروي۔

اِنَّ اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ۝٥
په تحقيق سره ستا معبود ايکی يو معبود دے ۔

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ ۝٦
دَ آسمانونو هُم رب دے، او دَ زمکے هُم او څه چه دَ دے دواړو ترمنځه دی دَ هغے هُم او دَ هغو ټولو ځايونو هُم چه رنړا خوروی۔

اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِزِيْنَةِ ِالْكَوَاكِبِ ۝٧
او مونږ لاندينئي آسمان په ستورو روښانه کړے دے۔

وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ مَّارِدٍ ۝٨
او مونږ هغه دَ هر سرکش شيطان نه محفوظ کړے دے ۔

لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ۝٩
هغه (سرکش شيطان) دَ پورتنو اوچتو هستو (ملائکو) خبرهٔ نهٔ آوری او هر طرف نه هغوی (په سختئ وهلو سره) لرے کولے شی۔

دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ ۝١٠
هغوی دَ پاره يو مستقل عذاب دے۔

اِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ۝١١
ولے هغوی کښے چه څوک څه خبرهٔ دَ شرارت په طور اوتختوی هغهٔ پسے دَ ثاقب ستورے شی۔

فَاسْتَفْتِهِمْ اَهُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمْ مَّنْ خَلَقْنَا ۭ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِيْنٍ لَّازِبٍ ۝١٢
بيا تهٔ هغوی نه تپوس اوکړه چه آيا دَ پيدا اوښت په لحاظ دَ هغوی پيدا کول زيات ګران دی يا (دَ هغوی نه سوا دَ دُنيا نظام) چه مونږ جوړ کړے دے؟ مونږ هغوی دَ لوے سريښناکے خاورے (نه) جوړ کړی دی۔

بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُوْنَ ⑫
بلکه حقیقت دا دے چه ته د هغوی په خبرو حیرانیګے او هغوی (ستا خبرے) پیکے ګنړی۔

وَاِذَا ذُكِّرُوْا لَا يَذْكُرُوْنَ ⑬
او هرکله چه هغوی ته نصیحت کیګی نو نصیحت نهٔ اخلی۔

وَاِذَا رَاَوْا اٰيَةً يَّسْتَسْخِرُوْنَ ⑭
او هرکله چه ځه نشان وینی نو هغے پورے خندا کوی۔

وَقَالُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ⑮
او وائی چه دا خو لو ښکاره ښکاره مکر (جادو) دے۔

ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّ عِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ⑯
آیا چه هرکله مونږ مړهٔ شُو او خاورے شو او هډوکی شُو۔ مونږ به بیارا اوچتولے شُو؟

اَوَ اٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ ⑰
او (دا شان) ځمونږ پلار نیکونه هُم؟

قُلْ نَعَمْ وَاَنْتُمْ دَاخِرُوْنَ ⑱
تهٔ اووایه او! (او!) بلکه تاسو به ذلیل شئ۔

فَاِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا هُمْ يَنْظُرُوْنَ ⑲
هغهٔ وخت خو بس (په مثال) د یوے رټنے دے چه ځنګه هغه ټینه اوشی) هغوی به (را ژوندی) په کتو شی۔

وَقَالُوْا يٰوَيْلَنَا هٰذَا يَوْمُ الدِّيْنِ ⑳
او وائی به، افسوس په مونږ! هُم دا خو د جزا سزا ورځ ده۔

هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ㉑ ع ۵
(او د خدائے د طرف نه به آواز راشی) دا د هغے فیصلے ورځ ده چه تاسو ئے انکار کولو۔

اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ ㉒
(مونږ به فرښتو ته وایو چه) چا چه ظُلم کړے وو هغوی هُم او د هغوی ملګری هُم۔

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ ㉓
او د الله نه سوا چه د چا هغوی عبادت کولو هغوی هُم ژوندی کړی او دروئ، بیا هغوی ټول د جهنّم د لارے په طرف بوزئ۔

وَقِفُوْهُمْ اِنَّهُمْ مَّسْـُٔوْلُوْنَ ㉔
بیا (هلته بوتلو نه پس) هغوی اودروئ هلته به هغوی نه ځه تپوسونه کیګی۔

مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُوْنَ ㉕
هغوی نه به تپوس کیږی په تاسو ځهٔ شوی دی چه تاسو د یو بل مدد نهٔ کوئ؟

بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ ㉖
حقیقت دا دے چه (مدد کول خو ځان له) هغوی به هغه

ورځ دَ سره وسله اوغورزوي.

وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿٢٨﴾

او هغوى كښې به يو تهولئ بل سره بحث كوي.

قَالُوْٓا اِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ ﴿٢٩﴾

(او) هغهٔ ته به مخ كړي او وائي به چه تاسو به مدام څمونږ دَ نبي طرف نه راتلى.

قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٠﴾

(دَ هغوى هغه په دروغه معبودان به جواب كښې) وائي داسې نهٔ ده حقيقت دا دے چه تاسو كښې خپله (پو تئ قدرسے) ايمان نهٔ وه.

وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ ۚ بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ ﴿٣١﴾

او څمونږ په تاسو اختيار نهٔ وه بلكه تاسو يو سركش قام وئ.

فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ۖ اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ ﴿٣٢﴾

بيا نن څمونږ دَ ټولو په حقله څمونږ دَ رب خبره پوره شوه چه مونږ (عذاب) څكونكي يو.

فَاَغْوَيْنٰكُمْ اِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ ﴿٣٣﴾

او دا صحي ده چه مونږ تاسو بے لارے كړي وئ ولے مونږ خپله هُم بے لارے وُو.

فَاِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ﴿٣٤﴾

بيا (دَ دے نتيجه به دا وي چه) هغه ورځ به هغوى ټول عذاب كښے وي.

اِنَّا كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿٣٥﴾

مونږ مجرمانو سره هُم داسې سلوك كوُو.

اِنَّهُمْ كَانُوْٓا اِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۙ يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٣٦﴾

هركله به چه هغوى ته دا وئيلے شول چه دَ الله نه سوا هيڅوک دَ عبادت لائق نشته نو هغوى به كبر كولو.

وَيَقُوْلُوْنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوْٓا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ ﴿٣٧﴾

او وئيلے به، آيا مونږ خپل معبودان دَ يو شاعر او مجنون په وينا پريږدُو.

بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٣٨﴾

حقيقت دا دے چه هغه (يعني محمد صلى الله عليه وسلم) پوره رښتنئ سره راغلے دے. او دَ وړاندې ټولو رسُولانو تصديق كوي.

اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ ﴿٣٩﴾

(ىَه منكرانو!) په تحقيق سره تاسو دردناک عذاب څكونكي يئ.

وَمَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۹﴾
او نه چه تاسو کول دَ هغې سره سمه سزا به مومئ.

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۴۰﴾
وے چه څوک دَ الله خوښ بندیان دی (هغوی ته به دردناک عذاب نهٔ رسی).

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ ﴿۴۱﴾
(بلکه) هغوئ ته به معلوم رزق رسی.

فَوَاكِهُ ۚ وَهُمْ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۴۲﴾
(یعنی) دَ میوو دَ قسمه او د هغوی به دَ نعمتونو ډکو

فِیْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۴۳﴾
باغونو کښے عزت کیږی.

عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ ﴿۴۴﴾
هغوی به په چپرکټونو مخامخ کینی.

يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿۴۵﴾
(دَ چینو) دَ اوبو نه ډک کلاسونه به هغوی ته راوړے شی.

بَيْضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿۴۶﴾
چه سپینے به وی او دَ څکونکو دَ پاره به خوندناکے وی.

لَا فِيْهَا غَوْلٌ وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ ﴿۴۷﴾
نهٔ به هغے سره سرخوږئ وی او نهٔ به هغوی دَ هغو په سوب بے خوده کیږی.

وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِيْنٌ ﴿۴۸﴾
او هغوی سره به دَ غټو غټو سترګو لاندے کتونکے ښځے وی.

كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿۴۹﴾
لکه چه هغوی صفا محفوظے اګئ دی.

فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿۵۰﴾
بیا به هغوی کښے بعضے دَ بعضو په طرف دَ پوښتنے دَ پاره مخ کری.

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ اِنِّیْ كَانَ لِیْ قَرِيْنٌ ﴿۵۱﴾
او څوک سړے به هغوی کښے دا اووائی چه (زما) څما یو ملګرے وه.

يَّقُوْلُ اَئِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِيْنَ ﴿۵۲﴾
هغهٔ به وئیلے چه آیا ته هُم (دَ حشرنشر) په منونکو کښے ئے.

ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَدِيْنُوْنَ ﴿۵۳﴾
(او ګورے دا خبره د دلو او وایه چه) هرکله چه مونږ مړهٔ شو او خاورے هډوکی شُو نو کنی بیا به مونږ ته څمونږ دَ عملونو جزا راکیدے شی؟

قَالَ هَلْ اَنْتُمْ مُّطَّلِعُوْنَ ﴿۵۴﴾
بیا به هغه (مومن) سړے او وائی آیا تاسو کښے څوک دا سے شته چه او چت اوګوری چه دَ هغه (سړی) څهٔ

حال دے۔

فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِيْ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ﴿۵۵﴾
بیا به هغه خپله دَ حال معلومولو کوشش کوی او (هغه) خپل دَ دُنیا ملګرے به جهنّم کښے پروت اووینی۔

قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِيْنِ ﴿۵۶﴾
بیا به هغهٔ ته اووائی، قسم په خدائے! تا خوزهٔ هُم ځان سره تباه کړے وُم۔

وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿۵۷﴾
او که چرے ځما دَ رب فضل نهٔ وے نو نن به زهٔ هُم دوزخ ته مخامخ راوستی شوی خلقو کښے وُم۔

اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ﴿۵۸﴾
اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۵۹﴾
(په دوزخی!) اوس خو اووایه آیا دَ رومبی مرګ نه سوا مونږ دَ پاره بل ځه مرګ نشته؟ او مونږ ته به ځه عذاب نشی راکیدے؟

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۰﴾
دا (دَ مومن حال) بے شکه چه لویه کامیابی ده۔

لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ ﴿۶۱﴾
او عمل کوُونکو له دَ دے مقام حاصلولو دَ پاره کوشش پکار دے۔

اَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا اَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ﴿۶۲﴾
آیا دا میلمستیا ښه ده یا دَ ټهوهرونه۔

اِنَّا جَعَلْنٰهَا فِتْنَةً لِّلظّٰلِمِيْنَ ﴿۶۳﴾
مونږ دا دَ ظالمانو دَ پاره دَ یو آزمیښت سوب جوړه کړے ده۔

اِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِيْٓ اَصْلِ الْجَحِيْمِ ﴿۶۴﴾
هغه یوه داسے ونه ده چه دَ دوزخ په بیخ کښے ټوکیږی۔

طَلْعُهَا كَاَنَّهٗ رُءُوْسُ الشَّيٰطِيْنِ ﴿۶۵﴾
دَ هغے میوه داسے وی لکه دَ مارانو سرُونه۔

فَاِنَّهُمْ لَاٰكِلُوْنَ مِنْهَا فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿۶۶﴾
بیا نو هغوی به دغے ونے نه خوری او هغے سره به خیټے ډکوی۔

ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿۶۷﴾
او دے نه سوا به دَ هغوی (دَ څکلو) او لو کښے سخت تودے اوبه اچولے شی۔

ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِلَى الْجَحِيْمِ ﴿۶۸﴾
بیا هغوی ټول به دوزخ ته واپس بوتللے شی۔

اِنَّهُمْ اَلْفَوْا اٰبَآءَهُمْ ضَآلِّيْنَ ﴿۶۹﴾
هغوی خپل پلار نیکو نه بے لارے اولیدل۔

فَهُمْ عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ يُهْرَعُوْنَ ﴿۷۰﴾
او هغوی هُم هغی پسے په منډه لاړل۔

وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ اَكْثَرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۷۱﴾
او دَ هغوی نه رومبئ ډیرخلق قامونه بے لارے شوی دی

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا فِيْهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿۷۲﴾
او مونږ په هغوی کښے رسُولان آستو لی دی۔

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿۷۳﴾
بیا اوګورئ ځوک چه ویروے شوی وُو دَ هغوی ځهٔ
انجام شو؟

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۷۴﴾
ع ۲ سوا دَ الله دَ مخلصو بندیانو۔

وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ ﴿۷۵﴾
او مونږ ته (رسُولانو کښے) نوحؑ هُم فریاد کړے وه اومونږ
ډیرښه ځواب ورکُونکی یُو۔

وَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۷۶﴾
او مونږ هغه هُم او دَ هغهٔ اهل هُم دَ ډیرے وارخطائی نه
بچ کړے وه۔

وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِيْنَ ﴿۷۷﴾
او تش دَ هغهٔ اولاد مونږ دُنیا کښے پاتے کړے وه۔

وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِى الْاٰخِرِيْنَ ﴿۷۸﴾
او دَ هغهٔ نه پس راتلُونکی قامُونو کښے مو دَ هغهٔ ښه ذکر
پریخودے وه۔

سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۹﴾
دَ ټولو قامونو دَ طرف نه نوحؑ ته دَ سلامتئ دُعا کیا دے
کیږی۔

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۰﴾
مونږ محسنانوله داشان جزا ورکوُو۔

اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸۱﴾
هغه ځمونږ مومنانو بندیانو کښے وه۔

ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿۸۲﴾
او نور خلق مونږ غرق کړی وُو۔

وَاِنَّ مِنْ شِيْعَتِهٖ لَاِبْرٰهِيْمَ ﴿۸۳﴾
ثلثه او دَ هغهٔ په جماعت کښے ابرا هیمؑ هُم وه۔

اِذْ جَآءَ رَبَّهٗ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ ﴿۸۴﴾
هرکله چه هغه خپل رب له یو داسے زړهٔ سره راغلے
وه چه (دَ هر قسم کُفر او شرک نه) پاک وه۔

اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَاذَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۸۵﴾
او هغه وخت هغهٔ خپل پلار نه هُم او دَ خپل قام نه هُم
تپوس کړے وه چه تاسو دَ ځهٔ عبادت کوئ۔

اَئِفْكًا اٰلِهَةً دُوْنَ اللّٰهِ تُرِيْدُوْنَ ﴿۸۶﴾
آیا دَ دروغو؟ یعنی دَ الله نه سوا نور معبودان غواړئ۔

فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۷﴾
بیا او وائی ستاسو دَ رب العالمین په حقله ځهٔ خیال دے؟

فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ ﴿۸۹﴾
بیا هغهٔ ستورو ته اوکتل۔

فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴿۹۰﴾
او وے وئیل زهٔ ناجوړه کیدونکے یم۔

فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِينَ ﴿۹۱﴾
بیا هغوئ هغه پریخودو ولاړل۔

فَرَاغَ إِلَىٰ آلِهَتِهِمْ فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿۹۲﴾
او هغهٔ هُم دَ هغوی معبودانو په طرف غلے غوندے لاړو
او دَهغوی په لیدو ئے اووئیل آیا تاسو څه نهٔ خورئ؟

مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُونَ ﴿۹۳﴾
بیائے غلے غوندے په ښی لاس هغوی له یو سخت

فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِينِ ﴿۹۴﴾
گوزار وورکړو۔

فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ ﴿۹۵﴾
هرکله چه خلقو ته معلومه شوه نو هغوی په منډه دَ هغهٔ
په طرف راغلل۔

قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ﴿۹۶﴾
(ابراهیمؑ هغوی ته) اووئیل آیا تاسو دَ خپل لاس جوړکړو
(بُتانو) عبادت کوئ۔

وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ ﴿۹۷﴾
حال دا چه الله تاسو هُم پیدا کړی ئی او ستاسو عمل هُم۔

قَالُوا ابْنُوا لَهُ بُنْيَانًا فَأَلْقُوهُ فِي الْجَحِيمِ ﴿۹۸﴾
هغوی ټولو اووئیل (خلقو!) دهٔ نه گیرچاپیره یو دیوال
اودروئ (او دے کښے اور بل کړئ) بیا دے په دغه
سور اُنگار کښے واچوئ۔

فَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَسْفَلِينَ ﴿۹۹﴾
او هغوی هغهٔ سره لویه چالاکی کول غوښتل و لے مونږ هغوی
ډیر رسوا کړل۔

وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ ﴿۱۰۰﴾
او ابراهیمؑ اووئیل زهٔ به خپل رب له زم هغه به ما ته
خامخا دَ کامیابئ لار ښائی۔

رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿۱۰۱﴾
(او وے وئیل) یَه څمارب! ما ته نیک اولاد راکړه۔

فَبَشَّرْنَاهُ بِغُلَامٍ حَلِيمٍ ﴿۱۰۲﴾
بیا مونږ هغهٔ ته دَ یو حلیم ځوئے زیرے ورکړو۔

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَىٰ فِي
الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرَىٰ ۚ قَالَ
يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ۖ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ
بیا هرکله چه هغه هلک هغهٔ سره په منډه منډه دَتلو
شو۔ نو هغهٔ اووئیل یَه څما ځویه! ما ته خوب کښے لیدلے
شُے چه (لکه چه) زهٔ تا حلالوم بیا ته فیصله اوکړه چه
دے کښے ستا څهٔ صلاح ده (هغه وخت ځوئے اووئیل)

مِنَ الصّٰبِرِیْنَ ﴿۱۰۲﴾
یه ځما پلاره! ځه چه تا ته خدائے وائی هُم هغه اوکړه تهٔ به که خدائے ته منظوره دی ما په ایمان ټینګ ولاړ وینې۔

فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِیْنِ ﴿۱۰۳﴾
بیا هرکله چه هغوی دواړه په حُکم منلو رضا شول او هغهٔ (پلار) هغه (یعنی صلاح شوے ځوئے) د تندی په طرف را اوغورزولو۔

وَنَادَیْنٰهُ اَنْ یّٰۤاِبْرٰهِیْمُ ﴿۱۰۴﴾
نو مونږ هغهٔ (یعنی ابراهیمؑ) ته آواز کړو اے ابراهیمؑ!

قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْیَا ۚ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۰۵﴾
تا خپل خوب سرته اورسولو مونږ د غه شان محسنانو له بدله ورکوو۔

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِیْنُ ﴿۱۰۶﴾
په تحقیق سره دا یو ښکاره ښکاره آزمینښت وه۔

وَفَدَیْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِیْمٍ ﴿۱۰۷﴾
او مونږ د هغهٔ (یعنی اسمٰعیلؑ) فدیه د یوے لوئے قربانی په ځائے ورکړه۔

وَتَرَكْنَا عَلَیْهِ فِی الْاٰخِرِیْنَ ﴿۱۰۸﴾
او په راتلونکو قامونو کښے مو د هغه نیک ذکر پریخودو۔

سَلٰمٌ عَلٰۤی اِبْرٰهِیْمَ ﴿۱۰۹﴾
په ابراهیمؑ دِ سلامتی وی۔

كَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۱۰﴾
مونږ محسنانو له دا شان بدله ورکوو۔

اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۱۱۱﴾
په تحقیق سره هغه ځمونږ مومن بندیانو کښے وُه۔

وَبَشَّرْنٰهُ بِاِسْحٰقَ نَبِیًّا مِّنَ الصّٰلِحِیْنَ ﴿۱۱۲﴾
او مونږ هغهٔ ته د اسحٰقؑ خبر ورکړے وه چه نبی وه او صالحینو کښے وُه۔

وَبٰرَكْنَا عَلَیْهِ وَعَلٰۤی اِسْحٰقَ ۗ وَمِنْ ذُرِّیَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَّظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِیْنٌ ﴿۱۱۳﴾ ع
او مونږ په هغهٔ (یعنی ابراهیمؑ) او په اسحٰاق برکتونه نازل کړل او د هغوی په اولاد کښے هُم ځه خلق پوره حُکم منونکی وُو او بعضے په خپلو ځانونو ښکاره ښکاره ظلم کوونکی وُو۔

وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰی مُوْسٰی وَهٰرُوْنَ ﴿۱۱۴﴾
او مونږ په موسٰیؑ او هارونؑ هُم احسان کړے وه۔

وَنَجَّیْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِیْمِ ﴿۱۱۵﴾
او مونږ هغوی دواړه او د هغوی قام د یوے لوئے ورځے د غم او پیښي نه خلاص کړی وُو۔

وَ نَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾
او مونږ دَ هغوی تولو مدد اوکړو چه دَ هغې نتیجه دا شوه چه هغوی غالب شول۔

وَ اٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾
او مونږ هغوی له یو کامل کتاب ورکړو چه ټول حُکمونه ئې ښکاره بیانول۔

وَ هَدَيْنٰهُمَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾
او مونږ هغوی دواړو ته نیغه لاره اوښودله۔

وَ تَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾
او راتلونکی قامونو کښې مو دَ هغوی دَ پاره ښهٔ ذکر پرېخودے وه۔

سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَ هٰرُوْنَ ﴿۱۲۰﴾
په موسٰی او هارونؑ دِ ټل ترټله سلامتی وی۔

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾
مونږ دا شان محسنانو ته بدله ورکوو۔

اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۲﴾
هغوی دواړه څمونږ مومن بندیان وو۔

وَ اِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۲۳﴾
او په تحقیق سره الیاسؑ رسولانو کښې وه۔

اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۱۲۴﴾
(یاد کړه) هرکله چه هغهٔ خپل قام ته اووئیل آیا تاسو تقوٰی نهٔ کوئ۔

اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّ تَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ ﴿۱۲۵﴾
آیا تاسو بعل بُت ته مدد غواړئ؟ او چه څوک تولو نه ښهٔ پیدا کوونکے دے (یعنی الله) هغه پرېږدئ۔

اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَ رَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۲۶﴾
چه ستاسو هُم رب دے او ستاسو دَ وړمبنو پلارنیکونو هُم رب دے۔

فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾
(دَ دے په اورېدو) دَ هغهٔ قام دَ هغه انکار اوکړو بیا په تحقیق سره هغوی به عذاب دَ پاره وړاندے کولے شی۔

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۲۸﴾
سوا دَ الله دَ مخلصو بندیانو (چه هغوی سره دا کار نهٔ کیږی)۔

وَ تَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۲۹﴾
او مونږ دَ هغهٔ (یعنی الیاسؑ) دَ پاره آخری قامونو کښې ښهٔ ذکر پرېښودو۔

سَلٰمٌ عَلٰۤى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿۱۳۰﴾
په الیاسینؑ دِ ټل ترټله سلامتی وی۔

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۱﴾
مونږ دغه شان محسنانو ته جزا ورکوو۔

اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۲﴾
هغه (یعنی رومبنئ الیاسؑ) ځمونږ مومن بندیانو کښے وه۔

وَاِنَّ لُوْطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۳۳﴾
او لوطؑ هُم په تحقیق سره مرسلانو کښے وه۔

اِذْ نَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۳۴﴾
اِلَّا عَجُوْزًا فِى الْغٰبِرِيْنَ ﴿۱۳۵﴾
(ربیانو یاد کړئ هغه وخت) هرکله چه مونږ هغه او دَ هغهٔ اهل هُم سره ټول سوا دَ یوے بوډهئ ښځے چه روستو پاتے کیدُونکو کښے وه بچ کړل۔

ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۶﴾
بیا مونږ باقی ټول تباه کړل۔

وَاِنَّكُمْ لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ مُّصْبِحِيْنَ ﴿۱۳۷﴾
او تاسو په (علاقه دَ) هغوئ کله سحر او کله ماښام تیرېږئ۔

وَبِالَّيْلِ ۚ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ ع
آیا بیا هُم تاسو عقل نه کار نهٔ اخلئ۔

وَاِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۳۹﴾
او په تحقیق سره یونسؑ هُم رسولانو کښے وَه۔

اِذْ اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿۱۴۰﴾
(یاد کړئ) هرکله چه هغه په تیخته دَ یوے داسے کشتئ په طرف لاړو چه ډکیدُونکے وه۔

فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ﴿۱۴۱﴾
(او طوفان هغوئ را ګیر کړل او دَ ډوبیدو خطره پیدا شوه) بیا هغوی (رانی) ټولو سورلو په یوځائے پچه واچوله او کله چه پچه دَ هغهٔ په نوم اووته (هغه زدَ پچے له مخه) په دریاب کښے غورزونکے شُو۔

فَالْتَقَمَهُ الْحُوْتُ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿۱۴۲﴾
بیا داسے هغه یو غټ کب تیر کړو۔ په دے حال چه هغه خپل ځان ملامته کولو۔

فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ﴿۱۴۳﴾
او که چرے هغه تسبیح کوُونکے نهٔ وے۔

لَلَبِثَ فِىْ بَطْنِهٖٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿۱۴۴﴾ النصف
نو دَ هغه مهی په خیټه کښے به تر قیامته پروت وے (یعنی مړ به وے)۔

فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾
بیا مونږ هغه په ویړ میدان کښے اوغورزولو حال دا چه هغه بیمار وه۔

وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ ﴿۱۴۶﴾
او مونږ دَ هغه په خوا کښے دَ کدُو یوه زیلئ اوټوکوله۔

وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ ﴿۱۴۷﴾
او مونږ هغه دَ یو لکه نه څه زیاتو خلقو په طرف رسول اولیږلو۔

فَاٰمَنُوْا فَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰی حِیْنٍ ﴿۱۴۸﴾

بیا هغوی ټولو ایمان راوړو او مونږه ترډیرے مودے هغوی ته دُنیاوی فائدے او رَسولے۔

فَاسْتَفْتِهِمْ اَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ ﴿۱۴۹﴾

بیا ته هغوی نه تپوس اوکړه چه آیا ستا سو دَ رب خو لُونړه دی او دَ هغوی ځامن دی ؟

اَمْ خَلَقْنَا الْمَلٰٓئِكَةَ اِنَاثًا وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ ﴿۱۵۰﴾

آیا مونږ فرښتے دَ ښځینه په شکل پیدا کړے او هغوی دَ هغو دَ پیدا اوښت ګواه دی ؟

اَلَآ اِنَّهُمْ مِّنْ اِفْكِهِمْ لَيَقُوْلُوْنَ ﴿۱۵۱﴾

ښهٔ په غور واورئ هغوئ دَ خپله ځانه په دروغـه دا خبرے کوی۔

وَلَدَ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۵۲﴾

چه دَ الله هُم اولاد شته دے هغوی بیخی دروغژن دی۔

اَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِيْنَ ﴿۱۵۳﴾

آیا هغه دَ ځامنو په ځائے لونړه خوښے کړی دی۔

مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

په تاسو څهٔ اوشول چه تاسو داسے دَکم عقل نو ب فیصلے کوئ۔

اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۱۵۵﴾

آیا تاسو نهٔ پوهیږئ۔

اَمْ لَكُمْ سُلْطٰنٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵۶﴾

آیا تاسو سره څه ښکاره ښکاره دلیل شته ؟

فَاْتُوْا بِكِتٰبِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۵۷﴾

کچرے تاسو رښتُونی یئ نو خپل هغه کتاب راوړئ چه په کښے دا لیکلی دی۔

وَجَعَلُوْا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا ۭ وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ اِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

او دا خلق دَ هغه ( یعنی دَ خدائے ) او دَ جنّا تو ترمنځه خپلوی جوړوی حال دا چه دَ جن دَ قوم مستحق تمام ( لوئے سری او غرور نو کښے او سیدُونکی ) ښهٔ پوهیږی کچرے هغه هُم دَ حقو په دین قائم نهٔ وی نو هغے ته به هُم دَ عذاب کیفیت ښو دے شی۔

سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۱۵۹﴾

الله دَ هغوی دَ بیان کړو خبرو نه پاک دے ( یعنی فرښتے لُونړه نهٔ دی بلکه عبادت کُونکی بندیان دی )۔

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۶۰﴾

سوا دَ الله دَ مخلصو بندیانو نه ( چه هغوی داسے نهٔ کوی )

فَاِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۶۱﴾

بیا رواورئ چه ) تاسو او چه دَ چا تاسو عبادت کوئ۔

مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفٰتِنِيْنَ ۝۱۶۲
دَ خدائے خلاف څوک نشئ غلولے۔

اِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيْمِ ۝۱۶۳
سوا دَ هغه بدقسمة چه جهنم کښے داخلیدونکے دے۔

وَمَا مِنَّآ اِلَّا لَهٗ مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ ۝۱۶۴
او مونږ ټولو دَ پاره یو مقرر ځائے دے۔

وَّاِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ ۝۱۶۵
او مونږ ټول دَ خدائے وړاندے صف تړلی ولاړیو۔

وَاِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُوْنَ ۝۱۶۶
او مونږ ثنا صفت بیانونکی یو۔

وَاِنْ كَانُوْا لَيَقُوْلُوْنَ ۝۱۶۷
او کله به دے خلقو (یعنی دَ مکے خلقو) وئیل۔

لَوْ اَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ۝۱۶۸
(چه) کچرے دَ رومبنو قامونو په شان مونږ له هُم رسول راتلے۔

لَكُنَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ۝۱۶۹
نو مونږ به هُم دَ الله نیکان بندیان وے۔

فَكَفَرُوْا بِهٖ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ۝۱۷۰
بیا هغوی دَ هغهٔ (الله) انکار اوکړو او هغوئ به ډیر زر په خپل انجام پوهٔ شی۔

وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ۝۱۷۱
او څمونږ فیصله څمونږ بندیانو یعنی رسولانو دَ پاره رومبی تیره شوے ده۔

اِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ ۝۱۷۲
(چه دا ده) چه دَ هغوی مدد به کیدے شی۔

وَاِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ۝۱۷۳
او څمونږ لښکر (یعنی دَ مومنانو ټولئ) به غالب وی۔

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ۝۱۷۴
بیا نو ته دَ هغوئ نه څه مودے دَ پاره مخ واړوه۔

وَّاَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ۝۱۷۵
او هغوی ته ښه گوره هغوئ به هُم ډیرزر (خپل انجام) اووینی۔

اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ۝۱۷۶
آیا دا خلق څمونږ عذاب زر غواړی۔

فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ ۝۱۷۷
بیا هر کله چه هغه (عذاب) دَ هغوی په غولو نازل شی نو هغه قام چه ویروے شوے دے دَ هغهٔ سحر به ډیر افسوسناک وی۔

وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ۝۱۷۸
او (مونږ بیا وایو چه) هغوی نه څه مودے دَ پاره مخ واړوه۔

وَّاَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ۝۱۷۹
او دَ هغوئ حال گوره او هغوی به هُم په تحقیق سره

رخپل (انجام) اووینی۔

سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۱۸۰ ستا رب چه دَ هرقسم لوئی مالک دے دَ هغوی دَ بیان کړو خبرونه پاک دے۔

وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۱۸۱ او په رُسولانو به تَل ترتَله سلامتی نازلیږی۔

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۱۸۲ ع ۵ او هرقسم تعریف الله لره دے چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔




سورة صٓ - دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے نهٔ اتیا آیتونه او پنځه رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

صٓ وَالْقُرْاٰنِ ذِي الذِّكْرِ ②

دا قرآن صادق خدائے راکوز کرے دے مونږ دَ دے دعوے په ثبوت کښے دَ شهادت په طور قرآن پیش کوو چه دَ هر قسم نصیحتونو نه ډک دے۔

بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ③

وے چا چه کفر کرے دے هغوی کبر کښے اخته دی او دَ (خپلو دروغو دَ رښتیا کولو دَ پاره) اختلاف کول دَ هغوی عادت دے۔

كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّلَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ ④

مونږ څومره قامونه هغوی نه آګا هُو هلاک کری دی چه په هغے هغوی فریاد اوکړو وَلے داوخت دَ خلاصی نهٔ وی۔

وَعَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ وَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ⑤

او هغوی حیران دی چه هغوی له هُم دَ هغوی دَ قام نه هوښیار وُنکے راغے او کافروائی چه دا خویوفریبي او دروغژن دے۔

اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ⑥

آیا هغهٔ ډیر معبودانو نه یو ځد لئے جوړ کرے دے؟ دا ډیره عجیبه خبره دهٔ۔

وَانْطَلَقَ الْمَلَاُ مِنْهُمْ اَنِ امْشُوْا وَاصْبِرُوْا عَلٰٓى اٰلِهَتِكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ يُّرَادُ ⑦

او هغوی کښے نویو خلقو او ویل چه دے ځائے نه زئ او په خپلو معبودانو ټینګ ولاړ اوسئ - دا (خبره یعنی دَ قرآن دعویٰ) په تحقیق سره داسے خبره دهٔ چه دے کښے څه منصوبه دهٔ (یعنی دَ څه غرض دَ پاره وئیلے شوے دهٔ)

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۚ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

مونږ دَ دے (قسم خبرے) ذکر دَ خپل ځان نه وړاندے

اخْتِلَاقٌ ﴿۷﴾
قام کښے چرے نۀ دے اوریدلے، دا هسے یو دروغ دی۔

ءَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْ ذِكْرِي ۖ بَلْ لَمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ﴿۸﴾
آیا څمونږ په ټول قام کښے په دۀ ذکر نازل شوے دے؟ حقیقت دا دے چه دوئ ته څما دَ طرف نه ذکر نازلید و کښے شک دے (اصل کښے دا شک نۀ دے چه په دے سړی ذکر نازل شو یا نا) بلکه (اصل خبره دا ده چه) هغوی اوسه پورے څما عذاب نۀ دے څکلے (دےلے دَ یاره زړۀ ورشوی دی)

أَمْ عِنْدَهُمْ خَزَائِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ﴿۹﴾
ستا رب چه غالب (او) بخښونکے دے آیا دَ هغه دَ رحمت خزانے هغوئ سره دی (چه او غواړی ورکړی یا ورنکړی)

أَمْ لَهُمْ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ﴿۱۰﴾
آیا دَ آسمانونو او زمکے او چه څه دَ هغو ترمنځه دَ هغو ټولو بادشاهی دَ هغوی په قبضه کښے ده؟ که چرے دا سے ده نو پکار دی چه په پړو پورته اوخیژی (او څه خدائی شهادت یعنی لیکلے کتاب راوړی چه کافران ئے اولولی لکه چه څنګه هغوی دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه غوښتو)۔

جُنْدٌ مَا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِنَ الْأَحْزَابِ ﴿۱۱﴾
دَ یو (غیرمنتقی) منظم لښکر (مونږ خبردرکوو چه دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم به مقام به حمله کوی وے) آخر به هغه ځائے نه اوتختی۔

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴿۱۲﴾
ددئ نه آګاهُو دَ نوح قام او عاد او فرعون (هُم) چه دَ لوئے طاقت خاوند وه انکار کړے وه۔

وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ ۚ أُولَٰئِكَ الْأَحْزَابُ ﴿۱۳﴾
دا شان ثمود او دَ لوط قام او دَ ایکه خلقو هُم انکار کړے وه دا (غیرمنتقی) منظم ډلے وے۔

ع
إِنْ كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ﴿۱۴﴾
بیا ددئ کښے هر یو دَ رسولانو انکار کړے وه بیا آخر څما عذاب نازل شو۔

وَمَا يَنْظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً مَا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ﴿۱۵﴾
او دا خلق لس دَ یو ناساپی راتلونکی عذاب انتظار کیا دے کوی چه هغے کښے به هیڅ موت نۀ وی۔

وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿١٦﴾

اووائي په څمونږه ربه اِ څمونږه برخه چه هرڅه ده مونږ له په تادي دَحساب دَ وخت نه رومبئ راکړے۔

اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِۚ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿١٧﴾

څه چه هغوی وائي ته په هغے دَصبر نه کار واخله اوځما بنده داوّد یاد کړه چه دَلوئے طاقت مالک وه په تحقیق سره هغه بیا بیا خدائے ته رجوع کیدو۔

اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَ الْاِشْرَاقِۙ ﴿١٨﴾

اومونږ دَغرونو اوسیدونکی دَ هغه تابع کړی وُو۔ اوهغوی به سحر ماښام ثنا صفت کښے اخته وُو۔

وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةًؕ كُلٌّ لَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿١٩﴾

او اوچت الوتونکی انسانان هُم مونږ یوځائے هغه سره په کارلګولی وُو۔ هغوی ټول خدائے ته رجوع کیدونکی وُو۔

وَشَدَدْنَا مُلْكَهٗ وَاٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿٢٠﴾

او مونږ دَ هغهٔ حکومت مضبوط کړے وه او هغهٔ ته موحکمت او پوخ دلیل ورکړے وه۔

وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِۘ اِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَۙ ﴿٢١﴾ اِذْ دَخَلُوْا عَلٰى دَاوٗدَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوْا لَا تَخَفْۚ خَصْمٰنِ بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ ﴿٢٢﴾

او آیا تاسو ته دَ هغو دښمنانو خبر شوے دے هرکله هغوی په دیوال را او ریدلی وُو۔ کله چه هغوی داوّد له راغلل نو هغهٔ دَ هغوی له کبله وارخطا شو، هغوی اووئیل مهٔ ویریږه (مونږ دواړه) دوه جهګړمار یُو مونږ کښے یو په بل زیاتئ کوی بیا ته څمونږ ترمنځه په انصاف فیصله اوکړه او زیاتئ مهٔ کوه او مونږ نیغے لار ته سم کړه۔

اِنَّ هٰذَآ اَخِيْ لَهٗ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِيَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا وَعَزَّنِيْ فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾

دا ځما رور دے دَ دهٔ یو کم ۹۹ سل ګډے دی او ځما یوه ګډه ده بیا هُم هغه وائي چه خپله ګډه ماله راکړه او بحث کښے مارا لاندے کوی۔

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰى نِعَاجِهٖؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِيْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَقَلِيْلٌ مَّا هُمْؕ وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّاَنَابَ ﴿٢٤﴾ السجدة

دَ دے په اوریدو (داوّد) اووئیل ستا دَ غوښتو دهٔ زیاتے کړے دے او ډیر شریک خوارهٔ داسے وی چه په یو بل ظُلم کوی سوا دَ مومنانو او دَ هغه چا چه دَ ایمان سره سم عمل کوی او هغه خلق لږ دی او دَ داوّد یقین راغے چه مخه مونږ په آزمیښت کښے

اچولے دے (یعنی دَ دښمنانو سر اوچتولو له کبله) بیا هغه خپل رب نه بخښنه غوښتل شروکړل او اطاعت ئحرګندولو سره په زمکه پرېوتو او دَ خدائے په طرف) ورمات شو۔

فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ ۚ وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿۲۶﴾

بیا مونږ دَ هغهٔ په ټولو کمزورو پرده واچوله وے چه په حقیقت کښے داؤد مونږ ته نږدے وه او دَ هغهٔ به مونږ سره ښه ځائے وی۔

يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِى الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ ﴿۲۷﴾ ع

(بیا مونږ هغهٔ ته اووئیل) اے داؤد! مونږ ته په زمکه خلیفه کړے ئے بیا ته په انصاف دَ خلقو فیصله کوه او نیله خوښه مهٔ کوه هغه به تا دَ الله دَ لارے نه واړوی۔ هغه خلق چه دَ الله دَ لارے نه واوړی هغوی سخت عذاب مومی ځکه چه هغوی دَ حساب ورځ هیروی۔

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ۚ ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ ﴿۲۸﴾

او مونږ آسمانونه او زمکه او څه چه دَ دے دواړو ترمنځه دی هسے بے کاره نهٔ دی پیدا کړی۔ دا ګمان دَ هغه خلقو دے چه کافردی. بیا په کافرانو دَ اور دَ عذاب په سوب هلاکت نازلیدونکے دے۔

اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِى الْاَرْضِ ۖ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ ﴿۲۹﴾

آیا مونږ مومنان او دَ ایمان سره سم عمل کوونکو لره په زمکه دَ فساد کوونکو برابر اوګڼو یا مونږ نیکان دَ بدو برابر اوګڼو۔

كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْٓا اٰيٰتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۳۰﴾

دا (قرآن) یو کتاب دے چه مونږ ستا په طرف نازل کړے دے دَ ټولو خولو نه ډک دے. دے دَ پاره چه هغوی دَ هغهٔ (الله) په خبرو غور اوکړی او ځکه چه عقل مند خلق نصیحت واخلی۔

وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۚ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿۳۱﴾

او مونږ داؤد له سلیمان ورکړو هغه ډیر ښه بنده وه هغه خدائے ته ډیر ټیټیدونکے وه۔

اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ۝۳۱

او ریاد کړه ) هرکله چه دَ هغهٔ وړاندے ماښام دَ اوچتے درجے آسونه راوستے شول۔

فَقَالَ اِنِّيْٓ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝۳۲

نو هغهٔ اووئیل زهٔ دَ دنیا ښهٔ څیزونه ځکه خوښوم چه هغه ماته خما رب را یادوی تر هغے چه هرکله هغه آسونه پناه شول۔

رُدُّوْهَا عَلَيَّ ۭ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ ۝۳۳

هغهٔ اووئیل هغه بیا ماله راولئ رهرکله چه هغه راغلل ) نو هغهٔ دَ هغوی پنډئ اوسټونه ټپول شروکړل۔

وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ وَاَلْقَيْنَا عَلٰي كُرْسِيِّهٖ جَسَدًا ثُمَّ اَنَابَ ۝۳۴

او مونږ دَ سلیمان آزمینښت اوکړو او دَ هغهٔ په تخت موږ ساه څیز دَ کینولو فیصله اوکړو ربیا هرکله چه دا نظاره هغهٔ په کشف کښے اولیده ) نو هغه خپل رب ته تمبیت شو۔

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَهَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْۢبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِيْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ ۝۳۵

او هغه رسلیمانؑ ) دَ رخپل ځوئ حقیقت دَ خدائے نه معلومولو نه پس ) اووئیل چه یَه خمارَبّ! خما عیبونه پټ کړه او ماته داسے بادشاهت راکړه چه خما نه پس را تلونکی اولاد ته میراث کښے پاتے نشی په تحقیق سره تهٔ ډیر بخښونکے یئے۔

فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖ رُخَاۗءً حَيْثُ اَصَابَ ۝۳۶

او مونږ هوا دَ هغهٔ په خدمت اولګوله چه دَ هغه په حکم به چه چرته هغوی تلل غوښتل په قلار په هغه خوا روانیده۔

وَالشَّيٰطِيْنَ كُلَّ بَنَّاۗءٍ وَّغَوَّاصٍ ۝۳۷

دا شان مونږ سرکش شیطانان یعنی هغوی کښے تهول انجنیران او معماران راو ) دا شان غوطه خور دَ هغهٔ په خدمت لګولی وُو۔

وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ ۝۳۸

او څه نور خلق هُم چه په زنجیرونو به تړلی وُو۔

هٰذَا عَطَاۗؤُنَا فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝۳۹

دا خمونږ بے حسابه ورکړه ده بیا که تهٔ په هغوتامولو احسان کوے او که څومره سختی مناسب وی هغوئ

سره کوے۔

وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿۴۰﴾

او هغهٔ (يعني سليمانٌ) مونږ ته ډير نزدے دے او مونږ سره دَ هغهٔ ډيرښه ځائے دے۔

وَاذْكُرْ عَبْدَنَآ اَيُّوْبَ ۘ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الشَّيْطٰنُ بِنُصْبٍ وَّعَذَابٍ ﴿۴۱﴾

او زمونږ بنده ايوبٌ ياد وه هرکله چه هغهٔ خپل رب ته داسے فرياد اوکړو چه ما ته يو کافر دښمن ډير تکليف او عذاب راکړے دے۔

اُرْكُضْ بِرِجْلِكَ ۚ هٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ ﴿۴۲﴾

(مونږ هغهٔ ته اووئيل چه) خپلے سورلۍ له پُونده ورکړه (دا روړاندے) دَ لاندنبلو اوبهٔ دی چه يخے هُم دی او دَ څکلو هُم (يعني صفا دی)۔

وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرٰى لِاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۴۳﴾

او مونږ هغهٔ له دَ هغهٔ اهل هُم ورکړو او دَ هغوی په رنګ نور هُم په خپل رحم ورکړه او دَ عقل دَ خاوندانو دَ پاره دَ يو نصيحت سامان هُم ورکړو۔

وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِبْ بِّهٖ وَلَا تَحْنَثْ ۗ اِنَّا وَجَدْنٰهُ صَابِرًا ۗ نِعْمَ الْعَبْدُ ۗ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿۴۴﴾

او (ايوبٌ ته اووئيل چه) خپل لاس کښے دَ کجهورے يوه بوچړداره څانګه اونيسه او دَ دے په مدد په تيزئ سفر کوه (يعني په دے دَ سوارۍ څناور په وهلو وهلو زغلوه) او دَ حقو نه دَ باطل په طرف مهٔ تيښته مونږ هغه (يعني ايوبٌ) صابره موندلے وه هغه ډير ښه بنده وه۔ په تحقيق سره هغه ډير ډير تيښتيدونکے وه۔

وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ ﴿۴۵﴾

او يادکړه زمونږ بنديان ابراهيمٌ او اسحٰق او يعقوبٌ چه ډير زيات فعّال (کار کوونکے) او دوراندیشه وه۔

اِنَّآ اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ ۚ ﴿۴۶﴾

مونږ هغوی يو خالصے خبرے له خوښ کړی وُو او هغه دَ اصل کور (يعني دَ آخرت) ياد وه۔

وَاِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْاَخْيَارِ ﴿۴۷﴾

او هغوی ټول زمونږ په نزد نازولی او ډير دَ خير (رسېکړے) خلق وُو۔

وَاذْكُرْ اِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ ۖ وَكُلٌّ مِّنَ

او اسمٰعيلٌ او يسعٌ (يعني يسعياه) او ذوالکفل (يعني

الْاَخْيَارِ ﴿٤٨﴾
حزقیل) یاد وه او دا ټول ځمونږ په ډیرو نیکو بندیانو کښې وُو۔

هٰذَا ذِكْرٌ ۚ وَاِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ لَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿٤٩﴾
دا (بیان) د هغو خلقو په لاره د تللو د پاره یو یادګیرنه ده او متقیانو د پاره په تحقیق سره ډیرے او ښے ورجے ځائے مقرر دے۔

جَنّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْاَبْوَابُ ﴿٥٠﴾
(یعنی) تل ترتله د اوسیدو باغونه چه د هغو دروازے به مدام د هغوئ د پاره پرانستی پرتے وی۔

مُتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا يَدْعُوْنَ فِيْهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ وَّشَرَابٍ ﴿٥١﴾
هغوی به هغے کښے ډډے وهلے ناست وی هغوی به هغے کښے هر قسم میوه چه ډیره به وی، غواړی او دا شان د څکلو څیز هُم۔

وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ اَتْرَابٌ ﴿٥٢﴾
او هغوی سره به سترګے ټیټے ساتونکے هُمځولے ښځے وی۔

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿٥٣﴾
دا هغه خبرے دی چه د قیامت په ورځ ځئ تاسو سره د لیدو وعده کیږی۔

اِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهٗ مِنْ نَّفَادٍ ﴿٥٤﴾
دا ځمونږه رزق دے چه چرےلښی ختمیدلے۔

هٰذَا ۗ وَاِنَّ لِلطّٰغِيْنَ لَشَرَّ مَاٰبٍ ﴿٥٥﴾
دا (د مومنانو سره وعده کړے شوے څیز دے) ولے سرکشانو د پاره ډیر بد ځائے (مقرر) دے۔

جَهَنَّمَ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۚ فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٥٦﴾
یعنی جهنم چه هغے کښے به هغوی ورننوزی او هغه د استوګنے بد ځائے دے۔

هٰذَا ۙ فَلْيَذُوْقُوْهُ حَمِيْمٌ وَّغَسَّاقٌ ﴿٥٧﴾
(دا کافرانو سره وعده کړے شوے څیز دے) بیا پکاردی چه هغی دا اوڅکی یعنی یشیدلے اوبۀ او د زخمونو ناوۀ۔

وَّاٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖٓ اَزْوَاجٌ ﴿٥٨﴾
او د دے دے په رنګ یو بله ډله به وی (چه د هغوی عملونه به ځیلو کښے یو شان وی)۔

هٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ ۚ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ ۗ اِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿٥٩﴾
(هغوی کښے به یو جماعت یو بل جماعت ته په اشاره او وائی) دا هُم یوه ډله ده چه ستاسو سره به جهنم کښے

داخلیګی (او) دوئ ته به ستړی مشی و یُونکی څوک نهٔ وی۔ هغوی به خامخا جهنم کښے داخلیګی۔

قَالُوْا بَلْ اَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿۶۱﴾

(دَ دے په اوریدو به) هغه ډله (رچا ته چه به داخبره کیګی) او وائی څمونږ ذکر پریږدئ تاسو هُم دا سے خلق یئ چا ته چه څوک سترے مشی و یُونکے نشته۔ تاسو (مونږ په غولولو) دا (دوزخ) مونږ دَ پاره وړاندے استولے وُه او هغه ډیر بد ځائے دے۔

قَالُوْا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِى النَّارِ ﴿۶۲﴾

(دَ دے په اوریدو به) هغه ډله (رچا ته چه به هغوی داخبره کوی) او وائی یه څمونږه ربه! چه چا (هُم ستا په نظر کښے) مونږ دَ پاره دا دوزخ وړاندے رالیږلے دے (یعنی مونږ دَ پاره ئے ممکن جوړ کړے دے) ته هغوله اورکښے زیات نه زیات عذاب ورکړه۔

وَقَالُوْا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْاَشْرَارِ ﴿۶۳﴾

او (هغه وخت به دوزخیان) وائی په مونږ څهٔ او شول چه مونږ تن هغه خلق نهٔ وینو چه مونږ به بد ګنړل۔

اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ ﴿۶۴﴾

آیا مونږ هغوی (رهسے په خپل خیال) سپک ګنړل یا دے وخت څمونږه سترګے کږے شوے دی او (هغوی دے وخت مونږ ته په نظر نهٔ رازی)۔

اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ اَهْلِ النَّارِ ﴿۶۵﴾ ع

دَ دوزخیانو دا جهګړه یوه رښتونے خبره ده او دا به کیږی۔

قُلْ اِنَّمَآ اَنَا مُنْذِرٌ ۖ وَّمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۶۶﴾

ته (هغوی ته او وایه) چه زهٔ خو لِس یو هوښیارُونکے یم۔ الله نه سوا څوک دَ عبادت لائق نشته۔ هغه واحد (او) غالب دے۔

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ﴿۶۷﴾

دَ آسمانونو او زمکے رب دے او څه چه دَ دواړو ترمنځه وی دَ هغے هُم۔ هغه (غالب) او سره دَ دے بخښونکے دے۔

قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيمٌ ﴿٦٧﴾

ته او وایه دا لوئے خبر دے۔

اَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿٦٨﴾

(وے) تاسو دے نه مخ اړوئ۔

مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰٓى اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٦٩﴾

ما ته دَ اوچت شان لرُونکو فرښتو هیڅ علم نهٔ وو هرکله چه هغوی (دا) بحث کولو (چه دے زمانه کښے هدایت ورکولو دَ پاره څوک سړے مناسب دے)۔

اِنْ يُّوْحٰٓى اِلَيَّ اِلَّآ اَنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧٠﴾

ما ته خو بس دا وحی کیږی چه زهٔ په ښکاره بیانوونکے نذیر (یعنی نبی) یم۔

اِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ ﴿٧١﴾

(یاد کړئ) هرکله چه ستا رب فرښتو ته اووئیل زهٔ دَ لمدے خاورے نه یو بشر پیدا کوونکے یم۔

فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ﴿٧٢﴾

بیا هرکله چه زهٔ هغه مکمل کړم او هغهٔ کښے خپل کلام واچوم نو تاسو خلق حُکم منو لو سره دَ هغه وړاندے تیت شئ۔

فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿٧٣﴾

بیا ټولو ملائیکو دَ هغهٔ حُکم اومنلو۔

اِلَّآ اِبْلِيْسَ اِسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٧٤﴾

سوا دَ ابلیس نه چا چه کبر اوکړو او هغه رومبئ نه کافر وه۔

قَالَ يٰٓاِبْلِيْسُ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ اَسْتَكْبَرْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِيْنَ ﴿٧٥﴾

(الله) اوفرمائیل اے ابلیس! تهٔ چا دے خبرے نه ایسار کړے۔ چه ځه ما په دواړو لاسونو جوړ کړی وو دَ هغهٔ حُکم دے منو دلے وے۔ آیا تهٔ خپل ځان ته غاوړه شوے یا تهٔ په حقیقت کښے ځما دَ حکم منلو نه بالائے۔

قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ﴿٧٦﴾

شیطان اووئیل چه زهٔ کم نه کم دے سړی نه (یعنی آدم) نه ښه یم۔ تا زهٔ دَ اور نه پیدا کړے یم او دے دِلمدے خاورے نه پیدا کړے دے۔

قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِيْمٌ ﴿٧٧﴾

په دے (الله) اوفرمائیل دے (ځائے) نه اوزه وځه چه تهٔ ځما دَ دره رټلے شوے یئے۔

وَّاِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِيْٓ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ﴿٧٨﴾

او دَ جزا سزا دَ ورځے پورے به په تا ځمونږ لعنت وریږی۔

قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ

په دے هغهٔ اووئیل یه ځما ربّه! (کچرے دا سے کول دی)

يُبْعَثُوْنَ ۝٨٠
نوما نه هغه وخته پورے مولت راکړه کومه پورے چه به دوئ بیا ژوندی را پا سولے شی۔

قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ۝٨١
په دے (الله) او فرمائیل (دغه غوارے) نو خپل ځان مولت موندونکو نه اوګنړه۔

اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝٨٢
دا (مولت) به یو معلوم وخت پورے وی۔

قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝٨٣
بیا هغهٔ اووئیل ځما دِ ستا په عزت قسم وی! زهٔ به دوئ ټول۔

اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ۝٨٤
سوا دَ خاصو بندیا نو بے لارے کوم۔

قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ اَقُوْلُ ۝٨٥
بیا (الله) او فرمائیل چه حقیقت دادے او زهٔ هُم حقیقت بیانوم۔

لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝٨٦
چه زهٔ به جهنّم تا نه او هغو نه چه تا پسے زی ټولو نه ډکوم۔

قُلْ مَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ ۝٨٧
تهٔ اووایه چه زهٔ په دے (تبلیغ) تاسو نه څه اجر نهٔ غوارم او نهٔ زهٔ په تکلّف دَ خبرے کولو عادت یم۔

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝٨٨
دا (قرآن) خو دَ ټولو جهانونو دَ پاره دَ نصیحت یو کتاب دے۔

وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَاَهٗ بَعْدَ حِيْنٍ ۝٨٩
ع ۵ ۲۴ ۱۴ او تاسو به څه موده پس دَ دے خبر واورئ۔




سورة زمر - دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے شپږ اویا آیتونه او اته رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ②

دَ دے کتاب راکوزیدل دَ الله دَ طرف نه دی چه غالب (او) تهول کارونه حکمتونو سره کوونکے دے۔

اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ③

مونږ ستا په طرف دا کتاب (یعنی قرآن) پوره رښتنو سره راکوز کړے دے- بیا ته خالص دَ الله اطاعت کولو سره دَ هغهٔ عبادت کوه۔

اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ۚ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۘ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ۗ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ④

وا وره اطاعت خالص دَ الله حق دے او کوم خلق چه دَ هغهٔ نه سوا نور وجودونه په دوستئ نیسی (ردے وئیلی سره) چه مونږ دَ هغوئ عبادت لس دے دَ پاره کوو چه هغوی مونږ الله ته نزدے کړی - الله به دَ هغوئ ترمنځه دَ دے خبرو چه پکښے هغوی اختلاف لری، فیصله اوکړی په تحقیق سره الله دروغژن او ناشکره ته دَ کامیابئ لار نهٔ ښائی۔

لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۙ سُبْحٰنَهٗ ۗ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ⑤

کچرے الله دَ ځوئ جوړولو اراده لرلے نو خپل مخلوق کښے به ئے چه څوک غوښتلے خوښ کړے وے هغه (دَ حقیقی ځوئے دَ نقص نه) پاک دے - خبره دا ده چه الله یو دے (او) غالب دے -

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۗ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ

هغه آسمانونه او زمکه پوره مصلحت سره پیدا کړی دی - هغه شپه په ورځ اچوی او ورځ په شپه او نمر او سپوږمئ هغهٔ (دَ قانون دَ نه) په یو کار لګولی دی، دوا ړه یو معلومه موده پورے په یوه

الْغَفَّارُ ⑥

لاره روان دی۔ واورئ! هغه ډیر غالب (او) ډیر بخښونکے دے۔

خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ يَخْلُقُكُمْ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ⑦

تاسو هغه دَ یو وجود نه پیدا کړی یئ۔ بیا هغې نه ئے دَ هغې جوړه پیدا کړه او تاسو له ئے دَ څاروانه اته جوړے سازے کړی دی، هغهٔ تاسو دَ میاندو په خیټو کښے پیدا کوی (یعنی) دَ یو پیدا وښت نه پس بل پیدا وښت کښے بدلولو سره درے تیرو کښے په تیرولو۔ دا الله ستاسو رب دے۔ بادشاهت دَ هغهٔ په قبضه کښے دے۔ بس هُم هغه یو معبود دے بیا تاسو کوم خوا ته ګرزئ۔

اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ وَاِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ لَكُمْ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ⑧

کچرے تاسو انکار اوکړئ نو الله ستاسو محتاجه نهٔ دے او هغه خپلو بندیانو دَ پاره انکار کله نهٔ خوښوی او کچرے شُکر اوکړئ نو هغه هغهٔ ستاسو دَ پاره خوښوی او هیڅ یو پیټئ او چتُونکے وجود دَ بل چا پیټئ نشی اوچتولے او تاسو ټولو ته به دَ خپل رب په طرف تلل وی۔ بیا هغه به تاسو ستاسو دَ عملونو نه خبروی هغه دَ سینو (دَ زړونو) ذنه دَ پټو خبرو علم لرُونکے دے۔

وَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهٗ مُنِيْبًا اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ نِعْمَةً مِّنْهُ نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوْٓا اِلَيْهِ مِنْ قَبْلُ وَجَعَلَ لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيْلًا اِنَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ⑨

او هرکله چه انسان ته څه تکلیف اورسی نو هغه خپل رب ته په ورماتید و فریاد کوی۔ بیا هرکله چه هغه انسان ته دَ خپل طرف نه نعمت ورکوی نو انسان دا غرض هیروی چه څه دَ پاره هغهٔ خدائے ته فریاد کولو او خدائے سره شریکان جوړوی۔ دے دَ پاره چه دَ هغهٔ دَ لارے نه (خلق) بے لارے کړی۔ تهٔ اووایه (ربه انسانه) څه وخته پورے دَ خپل انکار له کبله فائده واخله آخر تهٔ به دوزخ کښے پریوتُونکے یئے۔

اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّ قَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۗ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۰﴾

آیا کوم سړے چه د شپې په وختونو کښې په سجده او په ولاړه د حُکم منولو نمونځ ښائی او آخرت نه ویریګی او د خپل رب نه د رحمت اُمید لری رهغه د نهٔ منُونکی په شان کیدے شی) تهٔ او وایه آیا علم لرُونکی خلق جاهلانو سره برابریدے شی؟ نصیحت خو لبس د عقل خاوندان اخلی۔

قُلْ يٰعِبَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۗ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۗ وَاَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ ۗ اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۱۱﴾

ردا شان او وایه په ځما مومن بندیانو!) د خپل رب تقویٰ کوئ هغه خلق چه دے دُنیا کښې ردَ الله) حُکمونه په پوره دول ادا کوی هغوی د پاره رپل جهان کښې) ښه بدله شته دے او د الله زمکه ډیره ویره ده۔ صبر کوُونکو ته به د هغوی اجرپے حسابه پوره پوره ورکیدے شی۔

قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ﴿۱۲﴾

تهٔ او وایه چه ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ د الله دا شان عبادت اوکرم چه اطاعت لبس هُم هغهٔ د پاره مخصوص کرم۔

وَاُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۳﴾

او ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ د ټولو نه زیات حُکم مُنونکے جوړ شم۔

قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۴﴾

او وایه کچرے زهٔ د خپل رب نافرمانی اوکرم نو زهٔ د لوے لوئے ورځے د عذاب نه ویریګم۔

قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهٗ دِيْنِيْ ﴿۱۵﴾

راو بیا) او وایه! چه زهٔ د خپل رب عبادت خپل اطاعت لبس هغهٔ سره په ترلو کوم۔

فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ ۗ قُلْ اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ اَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۶﴾

رباقی پاتے شوئی تاسو) بیانو تاسو د الله نه سوا چه د چا غواړئ عبادت کوئ راو دا هُم) او وایه چه ډیر نقصان اوچتوُنکی خلق هغوی دی چه چا خپل ځانونه او خپل خپلوان هُم د قیامت په ورځ نقصان کښې وا چول۔

و اوری! هُم دا ښکاره ښکاره نقصان دے۔

لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ؕ ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ؕ يٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ ﴿۱۶﴾

دَ هغوی دَ پاسه به هُم دَ اور سیوری وی او ورلاندے به هُم دَ اور سیوری وی۔ دا هغه څیز دے څه نه چه الله خپل بندیان ویروی۔ یه څما بندیانو! څما تقویٰ اوکړئ۔

وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْۤا اِلَى اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿۱۷﴾

او کوم خلق چه دَ سرکشه وجودونو دَ حُکم منلونه ځانونه ساتی او الله ته تپتیدنګی هغوی دَ پاره لوئے زیرے دے بیا ته څما هغو بندیانو ته زیرے ورکړه۔

الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِكَ هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۸﴾

چه څمونږ خبره اوری او بیا دے کښے دَ تولونه ښهٔ حُکم پسے زی۔ هُم هغه دی چا ته چه الله هدایت ورکړو او هُم هغه خلق عقلمند دی۔

اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ؕ اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِى النَّارِ ﴿۱۹﴾

آیا هغه سړے به چا چه دَ عذاب پیش خبری پوره شوه رهغه څوک بچ کولے شی؟ او) آیا ته اور کښے پرتو ټولکی بچ کولے شے۔

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ ۙ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ وَعْدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِيْعَادَ ﴿۲۰﴾

ولے هغه خلق چه دَ خپل رب تقویٰ کوی هغوی ته به څو څو منزله کورونه ورکیدے شی چه دَ هغے دَ پاسه به نور منزلونه ښه به کلکه جوړ شوی وی۔ دَ هغو لاندے به نهرونه بهیګی۔ دا دَ الله یو پوخ لوظ دے (او) الله خپلے وعدے نهٔ ماتوی۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَلَكَهٗ يَنَابِيْعَ فِى الْاَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهٗ حُطَامًا ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِاُولِى الْاَلْبَابِ ﴿۲۱﴾ ع

آیا تا سونهٔ دی لیدلی چه الله دَ آسمان نه اوبهٔ راورولی دی بیا هغه ئے زمکے نه دَ چینو په شان روانے کړے دی بیا هغه دَ هغے په سوب دَ بیلو بیلو رنګونو فصلونه پیدا کوی۔ بیا هغه په پخید و راشی نو ته وینے چه هغه زیړ زیړ روی بیا الله هغه دَ خس وخشاک په شان کړی دے کښے دَ عقل خاوندانو دَ پاره لوئے نصیحت دے۔

أَفَمَنْ شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِ ۚ فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٢٢﴾

آیا چه دَ چا سینه الله دَ حُکم منلو دَ پاره پرانزی او هغهٔ ته دَ خپل رب دَ طرف نه نُور هُم حاصل وی (هغه دَ هغه چا برابر کیدے شی چه داسے نهٔ وسے) بیا افسوس په هغو چه دَ چا زړونه دَ الله دَ ذکر نه سختی محسوسوی هغوی په غټے او ښکاره گمراهی کښے دی۔

اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٢٣﴾

الله هغه دے چا چه دَ ښه نه ښه خبره یعنی هغه کتاب را کوز کړے دے چه متشابه هُم دے او دَ هغے مضامین ډیر زیات اوچت دی۔ کوم خلق چه دَ خپل رب نه ویریګی دَ هغے په لوستلو دَ هغوی دَ بدنونو ویښتهٔ او درېګی بیا دَ هغوی څرمنے او زړونه نرم شی دَ الله ذکر ته مات شی دا (قرآن) دَ الله هدایت دے (یعنی قرآن چه دَ کوم هدایت مالک دے هغه دَ الله هدایت دے) چه دَ هغے په سوب هغه چه چا له غواړی هدایت ورکوی او چه څوک الله بے لارے کړی هغهٔ ته څوک هدایت نشی ورکولے۔

أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٢٤﴾

آیا هغه سړے څوک چه خپل مخ دَ قیامت په ورځ دَ سخت عذاب (یعنی دوزخ) نه ساتلو دَ پاره ډهال جوړوی۔ (هغه جنت ته دَ تلونکو خلقو برابر کیدے شی؟) او ظالمانو ته به اووئیلے شی دَ خپلو عملونو دَ نتیجے خوند واخلئ۔

كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٥﴾

دَ هغوی نه رومبنو خلقو هُم انکار کړے دے (بیا دَ دے په سوب) په هغوی داسے ناڅاپه عذاب راغے چه هغوی نهٔ پوهیدل۔

فَأَذَاقَهُمُ اللَّهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾

او الله هغوی له دَ دنیا دَ ژوند ذلت هُم ورکړو او آخرت کښے چه به کوم عذاب راځی ګړے هغوی پوهیګی

نو هغه به دے نه هُم لوئے وی۔

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ
كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ یَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۸﴾

او مونږ دے قرآن کښے هر قسم خبرے بیان کړی دی
دے دَ پاره چه هغوی (یعنی کافران) نصیحت واخلی۔

قُرْاٰنًا عَرَبِیًّا غَیْرَ ذِیْ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ یَتَّقُوْنَ ﴿۲۹﴾

مونږ دا قرآن جوړ کړے دے چه خپل مطلب ښکاره
بیانونکے دے۔ دے کښے هیڅ کږی نشته (دا دے دَ
پاره نازل شوے دے) چه خلق تقویٰ اوکړی۔

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِیْهِ شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوْنَ
وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ یَسْتَوِیٰنِ مَثَلًا اَلْحَمْدُ
لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾

الله دَ هغه سړی حال (دَ عبرت دَ پاره) بیانوی چه دَ
هغه ډیر مالکان دی چه خپلو کښے اختلاف هُم لری او
یو سړے پوره پوره دَ یو سړی په قبضه کښے دے۔ آیا
دا دواړه سړی خپل حال کښے برابر کیدے شی؟ ټول
تعریف هُم دَ الله دے۔ ولے هغوی کښے ډیر څخ نهٔ
پوهیګی۔

اِنَّكَ مَیِّتٌ وَّ اِنَّهُمْ مَّیِّتُوْنَ ﴿۳۱﴾

تهٔ به هُم یوه ورځ مرے او هغوی به هُم مری۔

ثُمَّ اِنَّكُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ ﴿۳۲﴾ ع

بیا به تاسو ټول دَ قیامت په ورځ خپل رب ته خپلے خپلے
عقیدے او عملونه وړاندے کوئ۔

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ اِذْ جَآءَهٗ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

اودَ هغهٔ نه زيات ظالم څوک کيدے شي چه په الله دروغ اوتړي او د خدائے د طرف نه د را تلو (رښتني) هر کله چه هغه هغهٔ له راشي انکار اوکړي - آيا د کافرانو ځائے جهنم نهٔ دے -

وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۳۳﴾

او (هر) هغه سړے چه د خدائے د طرف نه د حقو تعليم راوړي او (هر) هغه سړے چه د دا سے تعليم تصديق اوکړي هُم دا سے خلق متقيان وي -

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۴﴾

هغوی به چه څه غواړي هغوی ته به خپل رب سره حاصل شي - د محسنانو بدله هُم دا سے وي -

لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۳۵﴾

دے د پاره چه الله د هغوئ د عملونو بد اړخونه پټ کړي او د هغوی بدله د هغوی عملونو کښے چه د ټولو نه ښهٔ عملونه وي د هغو سره سمه ورکړي -

اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۶﴾

آيا الله خپل بنده له کافي نهٔ دے؟ او هغوئ تا د هغو نه ويروي چه د هغهٔ (خدائے) نه سوا دي او چاله چه الله بے لارے اوکړي هغهٔ ته هدايت ورکوونکے هيڅوک نشته -

وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّضِلٍّ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِعَزِيْزٍ ذِي انْتِقَامٍ ﴿۳۷﴾

او چاله چه الله هدايت ورکړي هغهٔ هيڅوک بے لارے کولے نشي آيا الله غالب (او) په بدل اخستو قادر نهٔ دے؟

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ اَرَادَنِيَ اللّٰهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ ضُرِّهٖٓ اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۳۸﴾

او کچرے ته هغوئ نه تپوس اوکړے چه آسمانونه او زمکه چا پيدا کړي دي؟ نو هغوی به خامخا وائي چه الله. ته اووايه آيا تا ته معلومه ده چه تاسو د الله نه سوا څوک (مدد له) غواړئ؟ کچرے الله ما ته نقصان رسول غواړي نو آيا هغوی (د دروغو معبودان) د هغهٔ نقصان لرے کولے شي؟ ته اووايه ماله الله کافي دے. ټول

(بنیتونی) توکل کوونکی په هغهٔ توکل کوی۔

قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾

ته او وایه، په څما قامه! تاسو په خپل خپل ځائے عمل کوئ. زهٔ به هُم (په خپل ځائے) عمل کوم. بیا به تاسو خامخا پوهه شئ۔

مَنْ يَّأْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۴۰﴾

(چه) چاله دا سے عذاب راځی چه هغه رسوا کوی او په چا هغه عذاب راځی چه تل تر تله وی۔

اِنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰى فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۴۱﴾

په تحقیق سره مونږ په تا (ردا) کتاب د خلقو د فائدے د پاره حق او حکمت سره نازل کړے دے بیا چا چه هدایت او موند و د هغهٔ گټه به هُم د هغهٔ د ځان وی او چه څوک بے لارے شو د هغهٔ گمراهی به هُم د هغهٔ وی۔ او ته په هغوی د کارجوړی په طور مقرر شوے نهٔ یئے

اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا ۚ فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰٓى اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾

الله د هر سړی ساه د هغهٔ د مرگ په وخت آخلی او چه د چا مرگ نهٔ دے راغلے (د هغهٔ ساه) د هغهٔ د خوب په وخت راخلی) بیا هغه چه د چا د مرگ حکم ئے جاری کړے وی د هغهٔ ساه ایساره ساتی او بل ته د یو سے تا کلے وخته پورے واپس کوی۔ دے کښے د فکر کوونکی قام د پاره نښانات دی۔

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ ۚ قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا لَا يَمْلِكُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۴۳﴾

آیا هغوئ د الله نه سوا شفاعت کوونکی مقرر کړی دی؟ او وایه کهٔ چرے د هغوئ په وس او طاقت نهٔ وی او نهٔ هغوئ (د څهٔ قسم) پوهه لری (بیا به هُم تاسو هغوئ شفاعت کوونکی گرزوی)۔

قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيْعًا ۗ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۴۴﴾

ته او وایه چه د شفاعت اختیار ټول د الله په لاس کښے دے (چا ته چه غواړی د ا اختیار ورکوی) د زمکے او د آسمانونو بادشاهت هُم د هغه دے او تاسو به د هغهٔ په طرف واپس کیږئ۔

وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ۖ وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِينَ مِنْ دُونِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿۴۵﴾

او هرکله چه دَ ایکی یو خدائے ذکر کیګی نو هغه خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی دَ هغوئ زړونه (دَ داسے وعظ) نه نفرت کول شروکړی او هرکله چه دَ هغو (بُتانو) چه دَ خدائے په مقابله دَ سره بے حقیقة دی، ذکر کیګی نو هغوئ یودم خوشحاله شی۔

قُلِ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِي مَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۴۶﴾

تهٔ اووایه۔ یه الله! (ربه) دَ زمکے او آسمانونو پیدا کوونکیه دَ غیب او دَ ظاهر علم لرُونکیه! هُم تهٔ دَ خپلو بندیانو ترمنځه دَ دے ټولو خیزونو فیصله کوُونکے یئے څه کښے چه هغوئ اختلاف کوی۔

وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ مِنْ سُوءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ وَبَدَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ ﴿۴۷﴾

او زمکه کښے چه څه دی ټول که دَ ظالمان دَ هغے مالکان وے بلکه دومره نور هُم هغوئ سره وے نو هغوی به دَ قیامت په ورځ دَ عذاب نه ځان ساتلو دَ پاره دا دَ فدیے په طور ورکړے وے او دَ الله دَ طرف نه به په هغوئ هغه څه ښکاره شی چه دَ هغے هغوی ته ګمان هُم نهٔ وُه۔

وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا وَحَاقَ بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿۴۸﴾

او په هغوئ به دَ هغوی دَ اعمالو بدی ښکاره شی او چه کوم عذاب پورے هغوئ خندا کوله (هغه به هُم) هغوئ دَ هر طرف نه ګیر کړی۔

فَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ إِذَا خَوَّلْنَاهُ نِعْمَةً مِنَّا قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ ۚ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۴۹﴾

او هرکله چه انسان ته څه نقصان رسی نو هغه مونږ ته فریاد کوی۔ بیا هرکله چه مونږ هغهٔ له دَ خپلے خوا نه نعمت ورکوُو هغه وائی ما ته دا نعمت ځما دَ علم له کبله حاصل شوے دے۔ (دا صحی نهٔ ده) بلکه دَ دے ورکړه یو آزمیښت دے۔ ولے دوئ کښے ډیرځنے نهٔ پوهیګی۔

قَدْ قَالَهَا الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۵۰﴾

دغه (خبره) دوئ نه وړومبنو خلقو هُم کړے وه بیا هُم دَ هغوی عملونه دَ هغوئ په کار نشول۔

فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا ۚ وَالَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْ هَٰؤُلَاءِ سَيُصِيبُهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِينَ ﴿٥١﴾

بلکه دَ هغوی دَ عملونو دَ بدو (جزا) هغوئ اونیول او دَ دے زمانے خلقو کښے چه څوک ظالمان دی هغوئ به هُم دَ هغوئ دَ عملونو بدئ اونیسی او هغوئ به خدائے دَ هغهٔ دَ ارادے نه عاجز نکړے شی۔

أَوَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٢﴾ ع ۵

آیا هغوئ ته معلومه نهٔ ده چه الله چه دَ چادَپاره غواړی رزق زیاتوی او (چه دَچادَپاره غواړی رزق) تنګوی۔ او دے کښے مومن قام دَپاره لوئے نشانات دی۔

قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿٥٣﴾

تهٔ (هغوئ ته څمونږ دَطرف نه) او وایه یَه څما بندیانو! چا چه په خپل ځان زګناه کولو سره ظُلم کړے دے۔ دَالله دَرحمت نه دِ نا اُمیده نهٔ وی۔ الله ټول ګناهونه بخښی۔ هغه بخښونکے (او) بیا بیا رحم کُوونکے دے۔

وَأَنِيبُوا إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا لَهُ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ﴿٥٤﴾

او تاسو ټول خپل رب ته ټیټیګئ او پروړے دَ دے نه چه په تاسو داسے عذاب نازل شی چه دَ هغے دَنازلیدو نه پس ستاسو دَ مدد دَپاره څوک نشی را رسیدلے دَ هغهٔ پوره حُکم منُوونکی شئ۔

وَاتَّبِعُوا أَحْسَنَ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴿٥٥﴾

او څه چه ستاسو په طرف نازل دی هغے کښے (دَخپل حال سره سم) دَ ټولو نه ښهٔ حُکم منئ۔ آګاهو دَ دے نه چه په تاسو ناساپه عذاب راشی او تاسو نه پته هُم نهٔ وی۔

أَنْ تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطْتُ فِي جَنْبِ اللَّهِ وَإِنْ كُنْتُ لَمِنَ السَّاخِرِينَ ﴿٥٦﴾

هسے نه چه داسے وی تاسو کښے څوک سړے دا او وائی چه چه دَ الله پحقله مونږ کمئ کړے دے دَ هغے له کبله په ما افسوس! او ما خو (الهٰی وحی) سپکه ګڼړله۔

أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ هَدَانِي لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٥٧﴾

یا څوک دا اونهٔ وائی چه کچرے الله ما ته (جبراً) هدایت راکړے وے نوزهٔ به هُم متقیانو نه وے۔

أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِي كَرَّةً فَأَكُونَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾

یا هرکله چه عذاب اوګوری نو او وائی چه کچرے ما ته دَ والیس تلو موقع راکړے وے، نوزهٔ به په محسنانو

کښې شامل وے۔

بَلٰى قَدْ جَآءَتْكَ اٰيٰتِيْ فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ وَكُنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ۝۶۰

(دا سے) هيڅکله نشي کيدے) بلکه تا له زمونږ نښانات راغلي وُو بيا هُم تا دَ هغو انکار اوکړو او کبر دِ اوکړو او کافرانو کښې شامل شوے۔

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ۝۶۱

او دَ قيامت په ورځ به تهٔ هغه خلق اوګورے چا چه په الله دروغ تړلي وُو چه دَ هغوئ مخونه به تور وي۔ آيا دَ کبرجنو ځائے جهنم کښې نهٔ دے۔

وَيُنَجِّي اللّٰهُ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ ۡ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْٓءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝۶۲

او الله به متقيان دَ هغوی دَ شان سره سم کاميابي ورکولو سره دَ هر قسم غم نه خلاص کړي۔ نهٔ خو به هغوی ته تکليف رسي او نهٔ به هغوئ (په تير شوي غفلت) غم کوي۔

اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۡ وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ۝۶۳

الله دَ هر څيز پيدا کوونکے دے او هغه هر يو کار دَ پاره کافي دے۔

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝۶۴ ع

دَ آسمانونو او زمکے چابيانے هغهٔ سره دي او څوک چه دَ الله دَ آيتونو انکار کوي، هُم هغه نقصان کښې پريوزي۔

قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ ۝۶۵

تهٔ او وايه، يه جاهلانو! آيا تاسو ما ته حکم راکوئ چه دَ الله نه سوا زهٔ دَ بل ذات عبادت اوکړم۔

وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝۶۶

حال دا چه خپله دَ خدائے دَ طرف نه ستا په طرف او تا نه دَ رومبنو (نبيانو) په طرف وحي شوے ده (او هر يو نبي ته وئيلي شوي وُو چه) که چرے تهٔ شرک اوکړے نو ستا ټول عملونه به توئے شي او تهٔ به دَ هغو خلقو نه ئے چه نقصان کښې پريوزي۔

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝۶۷

(بيا دا سے مهٔ کوه) بلکه دَ الله عبادت کوه او شکر کوونکي بنديانو کښې شامل شه۔

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ۖ وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۶۸﴾

او هغه خلقو دَ الله دَ صفاتو صحي جاج نهٔ دے آخستے حال دا چه زمکه ټوله دَ هغهٔ ده او آسمان (او زمکه دواړه) به قيامت په ورځ دَ هغهٔ ښي لاس کښے راغونډ وي۔ هغه پاک دے او دَ هغوئ دَ شرک دَ عقيدونه ډير بالا دے۔

وَنُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ؕ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ ﴿۶۹﴾

او بګل کښے به پوک وهلے شي نو چه آسمانونو او زمکه کښے هرڅه دي هغوی به بے خوده غوندے شي سوا دَ هغهٔ چا لره چه الله اوغواړي (چه بچ کړي) بيا به په دوئم ځل بګل کښے پوک وهلے شي او ناسابه به هغوئ ټول (دَ خپل ځان دَ فيصلے) په انتظار کښے اودريږي۔

وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتٰبُ وَجِآئَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ وَقُضِىَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۷۰﴾

او زمکه به دَ خپل رب په نُور روښانه شي او کتاب به وړاندے کيخودے شي او نبيان او نور ګواهان به حاضر کړے شي۔ بيا به دَ هغو ټولو انسانانو ترمنځه پوره پوره په حقه فيصله اوکړے شي او په هغوی به ظُلم نهٔ کيږي۔

وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۱﴾ ع

او هر نوس به چه څه کړي وي دَ هغے سره سمه به هغهٔ ته پوره پوره بدله ورکړے شي او هغه (الله) دَ هغوی دَ اعمالونه په ښهٔ شان واقف دے۔

وَسِيْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا ؕ حَتّٰىٓ اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۲﴾

او کافران به دَ جهنّم په طرف ټولی ټولی ورشړلے شي ترهغے پورے چه هرکله هغوئ هغے ته او رسي نو دَ هغے دروازے به پرانستے شي او هغوئ (کافرانو) ته به دَ هغے (دوزخ) داروغے وائي آيا تاسو ته هُم ستاسو دَ قام نه رسُولان نهٔ وُو راغلي چه تاسو ته ئے ستاسو دَ رب آيتونه تلاوت کول او دَ نن ورځے دَ ملاقات نه ئے تاسو هوښيارولے؟ هغوئ به وائي او! هُم داسے شوے وه۔ ولے په کافرانو دَ عذاب پيش خبري پوره کيدونکے وه (يعني موږ کافران وُو موږ رسُولان ځنګه

ملے شول) ۔

قِيلَ ادْخُلُوٓا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِينَ فِيهَا ۖ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٢﴾

هغوی ته به اوويلے شی چه دَ جهنم په دروازو کښے ننه شئ په دے حال چه تر ډیرے مودے به تاسو له اوسیدل وی بیانو دَ کبرجنو ځائے ډیر بد دے۔

وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ۖ حَتّٰىٓ إِذَا جَآءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خٰلِدِينَ ﴿٧٣﴾

او کوم خلقو چه تقویٰ کوله هغوئ به دَ جنت په طرف ټولی ټولی ټیله کولے شی۔ تر هغے چه هر کله هغوئ جنت ته اورسی نو دَ هغے دروازے به پرانستے شی او دَ هغے داروغے به هغوی ته وائی په تاسو دِ تل تر تله سلامتی وی تاسو ډیر ښهٔ حال ته رارسیدلی یئ۔ بیا دے (جنت) کښے ننه شئ دے فیصلے سره چه تاسو به تل تر تله دے کښے اوسئ۔

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ۖ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعٰمِلِينَ ﴿٧٤﴾

او هغوئ به وائی۔ هر قسم تعریف دَ الله دَ پاره دے چا چه مونږ سره خپله وعده پوره کړه او دَ دے ځائے ئے مونږ وارثان کړو په جنت کښے چه چرته مونږ غواړو اوسو به۔ بیا (ښتا بته شوه چه) په پوره ډول دَ عمل کوونکو انعام ډیر ښه وی۔

وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّينَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۖ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْحَقِّ وَقِيلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿٧٥﴾ ع ٨

او ته به هغه ورځ ملائیکے وینے چه دَ عرش نه گیرچاپیره به دَ خپل رب ثنا صفت کوی او دَ هغوی فیصله به په پوره انصاف کیګی او ویلے به شی چه هر قسم تعریف الله لره دے چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔




سورة مومن دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ ۸۶ اتیا آیتونه او نهه ۹ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیابیا رحم کوونکے دے۔

حٰمٓ ②

دا سورة دَ خدائے حمد او شان ثابتوی۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ③

دا کتاب دَ غالب (او) دَ علم لرونکی الله دَ طرف نه نازل شوے دے۔

غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ④

چه دَ گناهونو بخښونکے او توبه قبلونکے دے (او له دے کبله دَ ثنا صفت حق لری) سزا ورکولو کښے سخت دے ډیر احسان کوونکے دے او دَ هغهٔ نه سوا بل دَ عبادت لائق نشته۔ هُم دَ هغهٔ په طرف واپس تلل دی۔

مَا يُجَادِلُ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ ⑤

دَ کافرانو نه سوا دَ الله دَ آیتونو په حقله هیڅوک چه جهګړه بحث نهٔ کوی۔ بیا دَ هغوئ مختلفو ملکونو کښے (تجارت او دا سے نورو کارونو دَ پاره په آزادئ) ګرزیدل تا دهوکه نکړی (وے چه دَ هغوی عملونه هُم دَ هغوئ دَ تباهئ سوب دی)۔

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّالْاَحْزَابُ مِنْۢ بَعْدِهِمْ وَهَمَّتْ كُلُّ اُمَّةٍۢ بِرَسُوْلِهِمْ لِيَاْخُذُوْهُ وَجٰدَلُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ فَاَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ⑥

ددئ نه وړومبنی قامونو هُم دَ خپلو رسُولانو انکار کړے وه۔ دَ نوحؑ قام هُم او دَ هغوی نه روستو نورو مختلفو قامونو (چا چه دَ خپلو نبیانو خلاف پرے چلے جوړے کړے) او هر قام دَ خپل رسول په حقله اراده اوکړه چه هغه بندی کړو او دَ دروغو دلیلونو سره بحث کول ئے شروکړل دے دَ پاره چه غلط بحث سره حق دَ خپل ځائے نه اوښوروی۔ بیا ما هغوی اونیول۔ اوس اووایه ځما سزا څنګه وه؟

وَكَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ⑦

او دا شان ستا د رب فیصله د کافرانو پحقله پوره شوه (یعنی دا) چه هغوی دوزخیان دی۔

اَلَّذِيْنَ يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهٗ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا سَبِيْلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ⑧

هغه فرښتې چه عرش ئے اوچت کړے دے او چه د هغے نه گیر چاپیره دی هغوی د خپل رب ثنا صفت سره د هغهٔ پاکی بیانوی او په دے (رحمه) پوره ایمان لری او د مومنانو د پاره بخښنه غواړی او وائی یه خمونږه ربه! ستا رحمت او علم د هر څیز نه چاپیره دے. بیا توبه کوونکی او پخپله لار تلونکی معاف کړه او هغوی د دوزخ د عذاب نه اوساته۔

رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ جَنّٰتِ عَدْنِ ِۨالَّتِيْ وَعَدْتَّهُمْ وَمَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ⑨

یه خمونږه ربه! او هغوئ او د هغوئ پلار نیکونه او د هغوئ ښځې او د هغوئ اولاد کښے چه نیکان دی هغوی همیشه تل عمری جنتونو کښے داخل کړه چه د کوموتا هغوی سره وعده کړے ده۔ ته غالب (او) د لوئے حکمت خاوند یئے۔

وَقِهِمُ السَّيِّاٰتِ ۭ وَمَنْ تَقِ السَّيِّاٰتِ يَوْمَىِٕذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ ۭ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑩

او ته هغوئ د ټولو تکلیفونو نه اوساته او چه چاله ته هغه ورځ د تکلیفونو نه اوساتے په تحقیق سره تا په هغهٔ رحم اوکړو او دا لویه کامیابي ده۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ فَتَكْفُرُوْنَ ⑪

او په تحقیق سره (د مرگ نه پس) کافرانو ته به اووئیلے شی چه نن تاسو څومره خپل ځانونو ته د کرکے په نظر گورئ د الله کرکه (چه هغه ئے تاسو نه کوی) دے نه زیاته ده۔ (زیاده کړئ) هر کله به چه تاسو د ایمان په طرف بللے شوئ نو تاسو به انکار کولو۔

قَالُوْا رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا فَهَلْ اِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ ⑫

هغوی به وائی چه یه خمونږه ربه! تا مونږ دوه ځله اووژلو او دوه ځله دِ ژوندی کړو. بیا نو مونږ د خپلو غلطو اقرار کوو. بیا (ته او وایه چه) اوس (د دے سختئ نه) د وتلو څه لار هم شته۔

ذٰلِكُمْ بِاَنَّهٗۤ اِذَا دُعِيَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ كَفَرْتُمْ ۚ وَاِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ تُؤْمِنُوْا ۚ فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ ﴿۱۲﴾

ستاسو دا حال ځکه دے چه هرکله به نس الله مدد له بللے شونو تاسو به انکارکولو او هرکله به چه دَ هغهٔ څوک شریک مقرر کړے شو او تاسو به ایمان راوړو۔ بیا رنن ثابته شوه چه) ټول حکومت هُم دَ اوچت شان او دَ لوئے ملک لرونکی الله دے۔

هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ وَيُنَزِّلُ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ رِزْقًا ۚ وَمَا يَتَذَكَّرُ اِلَّا مَنْ يُّنِيْبُ ﴿۱۳﴾

هُم هغه تاسو ته خپل نښانات ښائی او آسمان نه تاسو دَ پاره رزق راکُوزوی او نصیحت بس هُم هغه اخلی چه خدائے ته ټیټیګی۔

فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾

بیا خپل اطاعت خالص هغهٔ دَ پاره کولو سره الله نه مدد غواړئ هرڅوکه کافران دا ناخوښه کړی۔

رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ ۚ يُلْقِي الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿۱۵﴾

(هغه) دَ اوچتو درجو خاوند (دے) دَ عرش مالک دے په خپل حُکم خپلو بندیانو کښے چهٔ په چا غواړی خپل کلام نازلوی۔ دے دَ پاره چه هغه (دَ خدائے بنده) دَ ملاقات دَ ورځے نه خلق اوویروی۔

يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ۗ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۗ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۱۶﴾

کومه ورځ به چه هغوئ ټول خدائے ته مخامخ حاضر شی دَ هغوئ هیڅ څیز به الله نه پټ نهٔ وی۔ هغه ورځ به بادشاهت دَ چا وی؟ (بس) دَ الله چه واحد دے (او) په ټولو غالب دے۔

اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ۗ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۷﴾

هغه ورځ به هرچاله دَ هغهٔ دَ عمل جزا ورکیدے شی او هغهٔ ورځ به هیڅ قسم ظُلم نهٔ وی۔ الله دیر زر حساب اخلی۔

وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كٰظِمِيْنَ ۚ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّلَا شَفِيْعٍ يُّطَاعُ ﴿۱۸﴾

او تهٔ هغوی دَ هغے ورځے نه اوویروه چه نزدے نه نزدے کیګی۔ هرکله به چه زړونه دَ غم نه ډک روی او) تر ځُلے به راشی۔ هغه ورځ به دَ ظالمانو نهٔ څوک دوست وی او نهٔ شفیع چه دَ چا خبره او منودے شی۔

يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ ﴿۲۰﴾

الله د سترګو خيانت قدر له پيژني او هغه هُم چه سينو يا زړونو پټ کړی دی۔

وَاللّٰهُ يَقْضِيْ بِالْحَقِّ ۭ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ﴿۲۱﴾ ع

او الله تل په انصاف فيصله کوی او چا له چه دا خلق د خدائے نه سوا مدد له غواړی هغوی هيڅ فيصله نهٔ کوی۔ په تحقيق سره الله ډير اوريدونکے (او) ډير ليدونکے دے۔

اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ كَانُوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِي الْاَرْضِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ﴿۲۲﴾

آيا دا خلق زمکه کښے نهٔ دی ګرځيدلی چه اوګوری چه د هغوئ نه د مخکښو خلقو انجام څهٔ شوے وه؟ هغه خلق د هغوی نه د طاقت او روستو پاتے نښانو له مخه لوئے وُو۔ بيا په سوب د هغوی د ګناهونو الله هغوی تباه کړل او د الله د ګرفت نه هغوئ له د بچ کولو د پاره څوک هُم پيدا نشو۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۳﴾

دا د بے آسرے حال ځکه وُو چه هغوی له به د هغوی رسولان سره د نښانانو راتلل او هغوئ به هروخت انکار کولو۔ بيا الله هُم هغوی هلاک کړل هغه ډير مضبوط دے (او) د هغهٔ عذاب سخت دے۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۴﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَقَارُوْنَ فَقَالُوْا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿۲۵﴾

او موږ موسیٰ هُم خپلو نښانانو سره او ښکاره ښکاره غلبے سره فرعون او هامان او د قارون په طرف ليږلے وه ولے هغوئ او وئيل دا اسرے فريبی (او) دروغژن دے

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوْٓا اَبْنَآءَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ وَاسْتَحْيُوْا نِسَآءَهُمْ ۭ وَمَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ﴿۲۶﴾

بيا هرکله چه هغه موسیٰ ځمونږ د طرف نه حقو سره هغوی له راغے نو هغوئ او وئيل کومو خلقو چه ايمان راوړو (او) هغهٔ سره شوی دی د هغوی ځامن اووژنئ او د هغوئ ښځے ژوندئ پريږدئ او د کافرانو تدبير مدام اپوته کيګی۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِيْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى وَلْيَدْعُ

او فرعون او وئيل ما پريږدئ چه زهٔ موسیٰ قتل کړم او

رَبَّهٗ ۚ اِنِّیْۤ اَخَافُ اَنْ یُّبَدِّلَ دِیْنَكُمْ اَوْ اَنْ یُّظْهِرَ فِی الْاَرْضِ الْفَسَادَ ﴿۲۶﴾

پکار دی چه هغه خپل رب ته فریاد اوکړی.زۀ دے خبرے نه ویریږم چه هغه ستاسو دین بدل نکړی یا ملک کښے فساد پیدا نکړی۔

وَ قَالَ مُوْسٰۤی اِنِّیْ عُذْتُ بِرَبِّیْ وَ رَبِّكُمْ مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا یُؤْمِنُ بِیَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۲۷﴾ ع

(دَ دے په اوریدو) موسیٰ اووئیل، زۀ دَ خپل رب نه دَ هر کبرجن دَ شرارت چه دَ حساب کتاب په ورځ ایمان نۀ راوړی پناه غواړم۔

وَ قَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ ۖۗ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ یَكْتُمُ اِیْمَانَهٗۤ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ یَّقُوْلَ رَبِّیَ اللّٰهُ وَ قَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَیِّنٰتِ مِنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَ اِنْ یَّكُ كَاذِبًا فَعَلَیْهِ كَذِبُهٗ ۚ وَ اِنْ یَّكُ صَادِقًا یُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِیْ یَعِدُكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَهْدِیْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴿۲۸﴾

او آل فرعون نه یو سړی چه ایماندار وو، وخپل ایمان ئے پټولو اووئیل .یه خلقو! آیا تاسو یو سړے بس دے دَ پاره وژنئ چه هغهٔ وائی چه الله زما رب دے او هغهٔ ستاسو دَ رب نه نښانات هُم راوړی دی اوکچرے هغه دروغژن وے نو دَ هغهٔ دروغ به دَ هغه په سر وی اوکچرے هغه رښتونے وے نو دَ هغهٔ ځنے (یرووُنکے) پیش خبرئ به ستاسو پخقله پوره شی۔ الله حد نه وتے او ډیر دروغژن کله هُم مراد ته نهٔ رسوی۔

یٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْیَوْمَ ظٰهِرِیْنَ فِی الْاَرْضِ ؗ فَمَنْ یَّنْصُرُنَا مِنْۢ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا ؕ قَالَ فِرْعَوْنُ مَاۤ اُرِیْكُمْ اِلَّا مَاۤ اَرٰی وَ مَاۤ اَهْدِیْكُمْ اِلَّا سَبِیْلَ الرَّشَادِ ﴿۲۹﴾

یه زما قامه! نن ستاسو دا سے حکومت دے چه تاسو په ملک غالب یئ.بیا اووایئ چه دَ الله دَ عذاب په مقابله کښے کچرے هغه په مونږ نازل شو نو څوک مونږ مدد به څوک کوی؟ فرعون اووئیل زۀ تاسو ته هُم هغه وایم چه خپله ما ته صحی ښکاری. او زۀ تاسو ته بس دَ هدایت لاره ښایم۔

وَ قَالَ الَّذِیْۤ اٰمَنَ یٰقَوْمِ اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ مِّثْلَ یَوْمِ الْاَحْزَابِ ﴿۳۰﴾

او هغه سړے چه (په حقیقت کښے ئے) ایمان راوړے وو هغه اووئیل چه یه زما قامه! دَ پخوانو لویو لویو دَ هلاکت دَ ورځے په شان زۀ ستاسو دَ هلاکت دَ ورځے نه هُم ویریږم۔

مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ وَ الَّذِیْنَ

څنګه چه دَ نوح په قام او په عاد او ثمود تیره شوه۔

مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۭ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ۳۱

او کوم خلق چه هغوئ نه پس تیر شو ل او الله په خپلو بندیا نو ظلم کول نهٔ غواړی۔

وَيٰقَوْمِ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ ۳۲

او په څما قامه! زهٔ په تاسو دَ هغې ورځې نه ډیر یریږم کومه ورځ به چه خلق دَ یو بل مدد غواړی۔

يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ۳۳

کومه ورځ به چه تاسو په شا ردَ خدائے دَ منکرو نو ورانده) زغلئ او دَ الله په مقابله کښے به څوک ستاسو بچ کوونکے نهٔ وی۔ او الله چه چاله بے لارے کړی هغهٔ ته هیڅوک هدایت نشی ورکولے۔

وَلَقَدْ جَاۗءَكُمْ يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَاۗءَكُمْ بِهٖ ۭ حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا ۭ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابُۨ ۳۴

او دے نه اگاهو یوسف تاسو له دلیلونو سره راغلے دے وے تاسو دَ هغهٔ بحقله چه څهٔ هغهٔ تاسو له راوړی وُو شک کښے پاتے شوئ؟ تر هغے چه کله هغه وفات شو نو تاسو (په نا اُمیدئ) وئیل شروکړل چه الله به هغهٔ نه پس څوک رسُول نهٔ راستوی۔ دا شان الله دَ هر حدنه وتونکی هر کس له (راو) شک کوونکی له بے لارے کرزوی۔

الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ ۭ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۭ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰي كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ۳۵

کوم خلق چه دَ الله په آیتونو کښے بے دلیله چه هغوی له ردَ الله دَ طرف نه) راغلے وی بحثونه کوی (هغوی ته دِ معلومه وی چه) دا دَ الله په نزد او دَ مومنانو په نزد ډیره بده ده۔ دا شان الله دَ کبرجن انسان په زړه پوره پوره مهر لګوی۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ ۳۶
اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَاَطَّلِعَ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى وَاِنِّىْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ۭ وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوْۗءُ عَمَلِهٖ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيْلِ ۭ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِيْ تَبَابٍ ۳۷ ع

او فرعون او وئیل، اے هامان! ما له یو محل جوړ کړه دَ پاره دَ دے چه زهٔ په هغو لارو اورسم۔

چه دَ آسمان لارے دی او دا شان دَ موسیٰ په خدائے خبر شم دے چه زهٔ هغه دروغژن ګنړم او دا شان دَ فرعون په نظر کښے دَ هغهٔ دَ عملونو بدئ خائسته ورښو دے شوے دے او هغه ردَ خپلو نافرمانو له کبله) دَ حقیقی

لارے نه منکرے شوے وه او دَ فرعون تدبیر دَ ناکامئ په شکل ښکاره کیدُونکے وه۔

وَقَالَ الَّذِیْٓ اٰمَنَ یٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ اَهْدِكُمْ سَبِیْلَ الرَّشَادِ ﴿۳۸﴾

او هغه سړے چه ایمان ئے راوړے وه او وئیل یَه ځما قامه اِما پسے زئ زهٔ به تاسو ته دَ هدایت لاره اوښایم۔

یٰقَوْمِ اِنَّمَا هٰذِهِ الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا مَتَاعٌ ۫ وَّاِنَّ الْاٰخِرَةَ هِیَ دَارُ الْقَرَارِ ﴿۳۹﴾

یَه ځما قامه! دا دَ دنیا ژوند لبس دَ لږ څو ورځو فائده ده او په تحقیق سره هُم دَ آخرت ژوند تَل عُمری ځائے دے۔

مَنْ عَمِلَ سَیِّئَةً فَلَا یُجْزٰٓی اِلَّا مِثْلَهَا ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰی وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ یَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ یُرْزَقُوْنَ فِیْهَا بِغَیْرِ حِسَابٍ ﴿۴۰﴾

څوک به چه بد عمل کوی هغهٔ ته به دَ هغے سره سمه نتیجه رسی او څوک به چه دَ ایمان سره سم عمل کوی که سړے وی یا ښځه وے شرط دا چه په ایمان کښے رښتونے وی هغه او دَ هغهٔ دَ ډلے خلق به جنت کښے داخلیگی او هغوئ له به هغے کښے بے حسابه انعام ورکیدے شی۔

وَیٰقَوْمِ مَا لِیْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَی النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِیْٓ اِلَی النَّارِ ﴿۴۱﴾

او یَه ځما قامه! ځما هُم لا څهٔ حال دے چه زهٔ تاسو دَ جنت په طرف غوارم او تاسو ما دَ دوزخ په طرف غوارئ۔

تَدْعُوْنَنِیْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَاُشْرِكَ بِهٖ مَا لَیْسَ لِیْ بِهٖ عِلْمٌ ۫ وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَی الْعَزِیْزِ الْغَفَّارِ ﴿۴۲﴾

تاسو ما په دے غرض غوارئ چه دَ الله انکار اوکړم او دَ هغهٔ شریک هغه چاله اوګرزوم چه دَ چا دَ شریک والی په حقله ما ته هیڅ علم نشته او زهٔ تاسو دَ لوغالب (او) بخښونکی ذات په طرف غوارم۔

لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِیْٓ اِلَیْهِ لَیْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِی الدُّنْیَا وَلَا فِی الْاٰخِرَةِ وَاَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَی اللّٰهِ وَاَنَّ الْمُسْرِفِیْنَ هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ﴿۴۳﴾

دے کښے شک نشته چه تاسو ما دَ هغه ذات په طرف غوارئ چه دَ هغهٔ څهٔ (راشرناک) آواز نهٔ دے دُنیا کښے شته او نهٔ بل جهان کښے او (حقیقت دا دے چه) مونږ ټولو له هُم دَ الله په طرف تلل دی۔ او دا چه دَ حد نه وتونکی خلق دوزخیان دی۔

فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ ۚ وَاُفَوِّضُ اَمْرِیْٓ اِلَی

بیا لو چه څه زهٔ تاسو ته نصیحت کوم هغه به تاسو زریاد

اللّٰهِؕ اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۴۴﴾

کړئ او (زهٔ ستاسو دَ دَپکو نه نهٔ ویریږم) زهٔ خپله معامله الله ته سپارم۔ په تحقيق سره الله په (خپلو) بندیانو نګران دے۔

فَوَقٰىهُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْٓءُ الْعَذَابِۚ ﴿۴۵﴾

په دے الله هغه (مومن سړے) دَ هغوئ (دَ کافرانو) دَ تد بیرونو دَ بدو نتیجو نه اوساتلو او آل فرعون دردناک عذاب ګیر کړو۔ څلورو غاړو نه راګیر کړو۔

اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّاۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۚ اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿۴۶﴾

یعنی اور چه هغے ته هغوی سحر ماښام وړاندے کوے شی او هر کله به چه مقرر شوے وخت راشی (نو فرښتو ته به اوویلے شی چه) دَ فرعون ملګری سخت عذاب کښے داخل کړئ۔

وَاِذْ يَتَحَآجُّوْنَ فِى النَّارِ فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا نَصِيْبًا مِّنَ النَّارِ ﴿۴۷﴾

او رهغه وخت هُم یاد کړئ) هر کله به چه (دَ فرعون ملګری) اور کښے بحث کوی۔ او هغوی کښے به کمزوری لوی خلقو ته وائی چه مونږ ستاسو پسے وُو بیا آیا تاسو مونږ دَ اور دَ عذاب دَ یوے برخے نه بچ کولے شئ؟

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُلٌّ فِيْهَآ ۙ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿۴۸﴾

لوئے خلق به وائی مونږ ټول دے عذاب کښے آخته یو الله دَ خپلو بندیانو ترمنځه چه کومه فیصله کول وه (اوئے کړهٔ)۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ فِى النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوْا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ ﴿۴۹﴾

او دوزخیان به دَ دوزخ دارو غو ته وائی تاسو خپل رب ته فریاد اوکړئ چه دَ عذاب څه وخت مونږ نه کم کړی۔

قَالُوْٓا اَوَلَمْ تَكُ تَاْتِيْكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنٰتِؕ قَالُوْا بَلٰىؕ قَالُوْا فَادْعُوْاۚ وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ ﴿۵۰﴾ ع

هغوئ به وائی چه آیا تاسو له ستاسو رُسولان سره دَ دلیلونو راغلی نهٔ وُو هغوی به وائی او، وے نا! په دے به هغوئ (دَ دوزخ داروغے) او وائی، او تاسو رحِه څو مره غواړئ) فریاد کوئ او دَ کافرانو دُعا ځائے نهٔ نیسی۔

اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

مونږ به دَ خپلو رُسولانو او په هغوئ دَ ایمان راوړونکو

وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ ﴿۵۲﴾

دے دُنیا کښے هُم خامخا مدد کوُو او هغه ورځ هُم هرکله به چه گواهان او دریگی۔

يَوْمَ لَا يَنْفَعُ الظّٰلِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿۵۳﴾

کومه ورځ به چه ظالمانوته دَهغوئ عُذر (هیڅ نفع نهٔ ورکوی او په هغوئ به دَ خدائے تعالیٰ لعنت نازیگی او دَ هغوئ به ردَ استوگنے دَپاره) بد کور وی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْهُدٰى وَاَوْرَثْنَا بَنِیٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ ﴿۵۴﴾

او په تحقیق سره مونږ موسیٰؑ ته هدایت کړے وه او بنی اسرائیل مو دَ (دے) کتاب (یعنی تورات) وارثان کړی وُو۔

هُدًى وَّذِكْرٰى لِاُولِی الْاَلْبَابِ ﴿۵۵﴾

چه دَ عقل دَ خاوندانو دَپاره هدایت او دَ نصیحت سوب وه۔

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ ﴿۵۶﴾

بیا ته صبر کوه۔ دَ الله وعده به خامخا پوره کیگی او چه کوم کناهونه خلقو ستا پحقله کړی دی دَ هغے۔ هُم دَ هغوئ پحقله بخښنه غواړه۔ او دَ خپل رب سحر ماښام حمد وثنا بیانوه۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِیٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰهُمْ اِنْ فِیْ صُدُوْرِهِمْ اِلَّا كِبْرٌ مَّا هُمْ بِبَالِغِيْهِ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ﴿۵۷﴾

هغه خلق چه دَ الله دَ آیتونو پحقله بے څهٔ دلیله چه هغوئ له (دَ خدائے نه) راغلے وی بحث کښے اخته وی دَ هغوی په زړونو کښے لوئے لوئے خواهشات دی چه هغوی ته به هغوئ کله نهٔ رسی۔ بیا دَ الله پناه غواړه۔ هغه ډیر اوریدونکے (او) ډیر لیدونکے دے۔

لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۸﴾

دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا وښت دَ انسانانو دَپیدا وښت نه لوئے کار دے وے ډیر څخه انسانان نهٔ پوهیگی۔

وَمَا يَسْتَوِی الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَلَا الْمُسِیٓءُ قَلِيْلًا مَّا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۹﴾

او ړانده او دَ سترگو خاوندان نشی برابریدے او چا چه ایمان راوړو او دَ ایمان سره سم هغوی کارونه اوکړل هغوی دَ بدکاره خلقو (برابر نشی کیدے) تاسو خلق دَ سره نصیحت نهٔ اخلئ۔

اِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِیَةٌ لَّا رَیْبَ فِیْهَا وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۶۰﴾

او دے کښے هیڅ شک نشته چه دَ تباهئ ساعت خامخا رانلونکے دے ولے ډیرښځ خلق ایمان نۀ راوړی۔

وَ قَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِیْۤ اَسْتَجِبْ لَكُمْ ؕ اِنَّ الَّذِیْنَ یَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِیْ سَیَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِیْنَ ﴿۶۱﴾ ع ۶

او ستاسو رب وائی۔ مانه مدد غواړئ زۀ به ستاسو دُعا او رم۔ څوک چه څمونږ دَ عبادت څخه دَ کبر نه کار اخلی هغوی به خامخا جهنم کښے رسوائی سره داخلیګی۔

اَللّٰهُ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الَّیْلَ لِتَسْكُنُوْا فِیْهِ وَ النَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَشْكُرُوْنَ ﴿۶۲﴾

الله هغه دے چا چه ستاسو دَ پاره شپه پیدا کړے ده دے دَ پاره چه دے کښے تاسو آرام اوکړئ او ورځ ئے دَلیدنے دَ پاره پیدا کړے ده۔ الله په خلقو ډیر فضل کوونکے دے ولے ډیرښځ خلق شُکر نه کوی۔

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَیْءٍ ۘ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؗ فَاَنّٰی تُؤْفَكُوْنَ ﴿۶۳﴾ الربع

دا الله ستاسو هغه رب دے چه دَ هر څیز پیدا کوونکے دے۔ هغۀ نه سوا دَ عبادت لائق څوک نشته۔ بیا اوخو وائی تاسو کوم خوا ته بوتلے شئ۔

كَذٰلِكَ یُؤْفَكُ الَّذِیْنَ كَانُوْا بِاٰیٰتِ اللّٰهِ یَجْحَدُوْنَ ﴿۶۴﴾

دا شان هغه خلق دَ کم عقله خبرو په طرف بوتلے شی چه دَ الله دَ آیتونو په ضد انکار کوی۔

اَللّٰهُ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّ السَّمَآءَ بِنَآءً وَّ صَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَ رَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚۖ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۶۵﴾

رحال دا چه) الله هغه ذات دے چا چه زمکه تاسو دَ پاره دَ قرار ځائے جوړ کړے دے او آسمان ئے دَ یو مکان په شکل رَ دَ حفاظت دَ پاره جوړ کړے دے) او هغه تاسو ته مختلف طاقتونه درکړی دی او بیا ئے هغه طاقتونه دَ ډیرے او چتے درجے او مضبوط جوړ کړی دی او تاسو له ئے پاکیزه رزق درکړے دے۔ دا الله دے چه ستاسو هُم رب دے۔ بیا ډیر دَ برکت خاوند دے الله چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔

هُوَ الْحَیُّ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۶۶﴾

هغه ژوندے راو نورو له ژوند ورکوونکے) دے هغۀ نه سوا هیڅوک دَ عبادت لائق نشته او په اخلاص عبادت کولو سره هُم دَ الله نه مدد غواړئ ټول تعریفونه هُم

دَ هغهٔ دی چه دَ ټولو جهانونو رب دے۔

قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ مِنْ رَبِّي وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٦٧﴾

تهٔ اووایه چه زهٔ دَ دے نه منع کړے شوے یَم چه زهٔ دَهغو عبادت اوکړم څوک چه تاسو دَ الله نه سوا مدد دله غواړئ بیا هرکله چه ما سره څما دَرب دَ طرف نه ښکاره نشانات هُم راغلی دی او ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ لِس دَ ټولو جهانونو دَ رب اطاعت اوکړم۔

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّىٰ مِنْ قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦٨﴾

هُم هغه دے چا چه تاسو (رومبی دَ ورکښے) دَ خاورے نه پیدا کړئ بیا (په بل دور کښے) دَ نطفے نه بیا (دریم دور کښے) دَ وینے یو ټوټے نه بیا (دے نه) تاسو دَ یو ماشوم په شکل راوباسی۔ بیا دَ دے نتیجه داوی چه تاسو خپل بوډاتوب ته رسئ او په تاسو کښے دَ چا ساه دے عمر ته رسیدو نه آګا هو (یعنی دَ بوډاتوب نه رومبئ) اخستلے شی او هغه داسے دے دَ پاره کوی چه تاسو هغه وخت ته اورسئ چه تاسو دَ پاره مقرر شوے دے اوځکه چه تاسو ردَ دے وخت نه فائده اوچتولو سره) عقل نه کار واخلئ۔

هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ ۖ فَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ﴿٦٩﴾ ع

هُم هغه خدائے چه ژوندی کوی او وژنی بیا هرکله چه هغه دَ څه خبرے فیصله اوکړی نو دَ هغے پحقله وائی او دِ شی نو هغه اوشی۔

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٧٠﴾

آیا تا هغه خلق نهٔ دی لیدلی چه دَ الله دَ آیتونو پحقله جهګړے کوی هغوی کوم خواته بوتللے شی۔

الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾

دا (رداسے) خلق دی چاچه څمونږ دَ کتاب هُم او څمونږ دَ رسُولانو چه کوم پیغام راوړے دے دَ هغونه ئے هُم انکار کړے دے۔ بیا به اوس دوئ زر خپل انجام اوویني۔

إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ يُسْحَبُونَ ﴿٧٢﴾ فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ ﴿٧٣﴾

هرکله به چه طوق او زنځیرونه دَ هغوی په غاړو کښے وی او هغوی به ردَ دے زنځیرونو په سوب سوزونکی۔

ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿۷۳﴾

لیشیدلو اولو کښے راښکلے شي بیا به دوزخ کښے ورغو به کولے شي۔

مِن دُونِ اللَّهِ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا مِن قَبْلُ شَيْئًا كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ ﴿۷۴﴾

بیا به هغوی ته او وئیلے شي هغه (معبودان کوم چا ئے دی) چا لره چه به تاسو د الله نه سوا (د خدائے) شریکان جوړول هغوی به وائي دے وخت هغې مونږ نه بے درکه شوی دی (بیا به وائي) داسے نه ده حقیقت دا دے چه مونږ دے نه آګاهو څه څیز خدائے سره شریک نه وجوړولو دا شان الله کافران بے لارے کوی۔

ذَٰلِكُم بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَمْرَحُونَ ﴿۷۵﴾

هُم دا (حقیقت) دے چه د څه په سوب تاسو بے څه دلیله خوشحالی کولے او چه د څه له کبله به تاسو بے دلیله غاوره وئ۔

ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿۷۶﴾

(او س ننوځئ) د جهنم دروازو کښے ورننوځئ روله چه تاسو د پاره فیصله شوے ده چه) تاسو به دے کښے اوسئ او د کبرجنو ځائے ډیر بد دے۔

فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿۷۷﴾

بیا صبر کوئ د الله وعده به خامخا پوره کیګی او کچرے مونږ تا ته هغو خبرو کښے د کوم چه هغوی سره وعده کیګی بعضے رستا وفات پورے) او ښایو (او بعضے پس خبرئ به ستا د وفات نه پس پوره کیږی او دے کښے هیڅ نقصان نشته) ولے چه هغوئ به مونږ ته واپس کولے شي (او هلته به د هغوی انجام هغوی ته ښکاره شي)۔

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ ﴿۷۸﴾ ع

او مونږ تا نه آګاهو ډیر رسولان استولی وُو د څنو ذکر مونږ تا ته کړے دے او د څنو ذکر مونږ تا ته نه دے کړے او د هیڅ یو رسول دا طاقت نشته چه د خدائے د حکم نه سوا څه کلام راوړی او هر کله چه د الله حکم راشي نو د حقو سره سمه فیصله او کړے شي او دروغژن نقصان کښے پریوزی۔

اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَامَ لِتَرْكَبُوا مِنْهَا وَمِنْهَا

الله هُم هغه دے چا چه تاسو د پاره څاروی پیدا کړی دی دے

تَأْكُلُوْنَ ﴿٨٠﴾

دَپاره چه په هغو کښې په ځنو تاسو سوارلی اوکړئ او هغو کښې ځنې اوخورئ۔

وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوْا عَلَيْهَا حَاجَةً فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ﴿٨١﴾

او دے څاروُ کښې تاسو دَ پاره نورے هُم ډیرے فائدے دی اودا (غرض هُم دے) چه تاسو په هغو دَ پیښې او ړولو سره دَ خپلو زړونو حاجت پوره کړئ او په دے (څاروُ) اوکیشتو تاسو سوارولے شئ۔

وَ يُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ ۖ فَاَيَّ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ ﴿٨٢﴾

او هغه (یعنی خدائے) تاسو ته خپل نشانات ښائی۔ بیا تاسو دَ الله نشانانو کښې دَ کوم نشان انکار کولے شئ۔

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْهُمْ وَاَشَدَّ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِي الْاَرْضِ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٨٣﴾

آیا دوئ په زمکه نهٔ دی ګرزیدلی چه لیدلے چه دَ دوئ نه دَ ړومبنو انجام څهٔ وُه؟ هغوی ملک کښې دَ دوی نه په شمیر او طاقت کښې هُم زیات وُو او دَ عمارتونو غوندے فنونو کښې هُم زیات (ماهران) وُو ولے دَ هغوی عملونو هغوی ته هیڅ فائده ورکړے نهٔ وه۔

فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٨٤﴾

او هرکله چه هغوی له دَ هغوی رُسولان سره دَ نشانانو راغلل نو هغوی سره چه څه لږ ډیر علم وو په هغے ئے فخر کول شروکړل او چه کوم (عذاب) پورے هغوی خندا کوله هُم هغے هغوی راګیر کړل۔

فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ﴿٨٥﴾

بیا هرکله چه هغوی ځمونږ عذاب اولیدو نو وے وئیل مونږ په یو الله ایمان راوړو او هغهٔ سره چه کوم څیزونو مونږ شریک ګرزول دَ هغو نه مونږ انکار کوُو۔

فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ۗ سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٨٦﴾ ع

بیا هرکله چه هغوی ځمونږ عذاب اولیدلو دَ هغوی ایمان هغوی له هیڅ فائده ورنکړه۔ هُم دا دَ الله مقرر شوے سُنت دے چه دَ هغهٔ په بندیانو کښې راروان دے او هغهٔ وخت کافران نقصان کښې شول۔ ع ٩ ١٤




سورۃ حٰمٓ السجدۃ ۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سرہ دَ دے پنځۀ پنځوس آیتونه او شپږ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کُوونکے دے۔

حٰمٓ ②

دَ حمید او مجید (خدائے صفتونه دے سورۃ کښے بیان شوی دی)۔

تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ③

دا قرآن دَ بے کچه رحم کُوونکی او بیا بیا فضل کُوونکی (خدائے) دَ طرف نه نازل شوے دے۔

كِتٰبٌ فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ④

(او) داسے کتاب دے چه آیتونه ئے ښۀ په تفصیل سره بیان شوی دی او چه (کوم کتاب) په ښه لوستلے شی (او هغه داسے ژبه کښے دے چه) خپل مطلب خپله په ښکاره بیانوی وے دا کتاب هغوی له فائده ورکوی چه (روحانی) علم لری۔

بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا فَاَعْرَضَ اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ⑤

(نیکانو له) زیرے ورکُونکے او (بدانو له) هوښیارُونکے دے بیا (هُم) هغوی کښے ډیروځنو مخ واړولو او هغوی دَ دے اوریدو ته هُم تیار نۀ دی۔

وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ⑥

او وائی چه دَ کوم څیز په طرف تاسو مونږ غواړئ دَ هغے دَ منلو نه ځمونږ زړونه پردو کښے دی (یعنی هغه ځمونږ په زړونو اثر نشی کولے) او ځمونږ غوږونه کا نړۀ دی (چه دَ هغے له کبله مونږ ستاسو خبرے ههو و اوریدلے نشو) او ځمونږ او ستاسو ترمنځه یوه پرده ده۔ بیا تۀ (دَ خپلے عقیدے مطابق) کار کوه مونږ به دَ خپلے عقیدے سره سم کار کوُو)۔

قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ

تۀ او وایه زۀ هُم ستاسو په شان یو سړے یم ماته وحی

اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوْهُ ؕ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۙ

کيږي چه ستاسو رب بس ايکې يو خدائے دے بيا دَ هغهٔ خيال کولو سره استقلال او بنائي زنيک (وتئ) او دَ هغهٔ نه بخښنه غواړئ (چه پښے مو اونهٔ خوئيږي) او (ياد لرئ چه) مشرکانو دَپاره عذاب (ربيکلے شوے) دے۔

الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝۷

هغه مشرکان چه نهٔ زکوٰة ورکوی او نهٔ په آخرت ايمان راوړی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ۝۸

په تحقيق سره هغوی چا چه ايمان راوړو او دَ دے سره سم هغوی عمل هُم اوکړو هغوی دَپاره يو نهٔ ختميدونکے اجر (ربيکلے شوے) دے۔

ع ۱۵

قُلْ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِيْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗٓ اَنْدَادًا ؕ ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۝۹

تهٔ اووايه آيا تاسو دَ خدائے انکارکوئ چا چه زمکه دَوه دوره کښے پيدا کړے ده او دَ هغه شريکان جوړوئ دا (خدائے خو) دَ ټولو جهانونو رب دے۔

وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا وَبٰرَكَ فِيْهَا وَقَدَّرَ فِيْهَآ اَقْوَاتَهَا فِيْٓ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ ؕ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِيْنَ ۝۱۰

او هغهٔ زمکه کښے دَ هغے دَپاسه غرونه جوړ کړی دی۔ او هغے کښے ډير برکت ايښے دے او هغے کښے دَ اوسيدُونکو دَ خوړلو څکلو دَپاره هر څيز په اندازه جوړ کړے دے دا هر څه ئے څلور دوره کښے کړی دی دا خبره دَ ټولو تپوس کوُونکو دَپاره برابره ده۔

ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلْاَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا ؕ قَالَتَآ اَتَيْنَا طَآئِعِيْنَ ۝۱۱

بيا دَ آسمان په طرف ئے مخ کړو او هغه هسے لو دُهند غوندے وه او هغهٔ هغے ته او زمکے ته اووئيل! دواړه په خپله رضا يا دَ مجبورئ له کبله څما حُکم منلو له راشئ هغوی دواړو اووئيل مونږ دَ حکم منُونکو په حيث راغلی يو۔

فَقَضٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ وَاَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَهَا ؕ وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ ۖۗ وَحِفْظًا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ

بيا هغوی ئے دَ اوهٔ آسمانونو په صورت کښے په دوه دوره کښے جوړ کړل او په هر آسمان کښے چه څه کيدل دَ هغے طاقت ئے هغے کښے کيښو او مونږ لاندنئ آسمان

الْعَلِيْمِ ﴿۱۲﴾

په رنړا کانو خائسته کړو او (خائسته جوړولو نه سوا) دَ حفاظت دَ پاره هُم (هغې کښې سامان پيدا کړو او) دا دَ غالب (او) علم لرُونکی خدائے تقدير دے۔

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ ﴿۱۳﴾

بيا کچرے هغوی مخ واړوی نو هغوی ته اووايه چه ما تاسو دَ دے عذاب نه چه دَ عاد او ثمود غوندے عذاب دے هوښيار کړی يئ۔

اِذْ جَآءَتْهُمُ الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ قَالُوْا لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً فَاِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾

يعنی هرکله چه هغوی له دَ هغوی دَ وړاندے نه هُم او روستو نه هُم رُسولان راغلل (يعنی قامی ژوند کښے پرله پسے رُسولان راغلل) دے وينا سره چه دَ الله نه سوا دَ بل چا عبادت مهٔ کوئ نو هغوی هغو له جواب ورکړو چه کچرے زمونږ رب غوښتلے نو په مونږ به ئے خپله فرښتے نازله کړے وے بيا مونږ دَ دے تعليم نه چه ورسره تهٔ رالیږلے شوے ئے انکار کوُو۔

فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِی الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۱۵﴾

او دَ عاد قام زمکه کښے ناحقه کبر اوکړو او وے وئيل څوک دے آيا هغوی نهٔ دی زمونږ نه زيات قوت کښے ليدلی چه کوم خدائے هغوی پيدا کړی دی هغهٔ دَ هغوی نه زيات طاقتور دے او هغوی زمونږ دَ آيتونو نه په ضد انکار کولو۔

فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِیْٓ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْیِ فِی الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰی وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۶﴾

بيا مونږ په هغوی يوه داسے هوا اوليږله چه ډيره تيزه وه او په سپيرو ورځو کښے راغلے وه۔ دے دَ پاره چه مونږ په هغوی دے دُنيا کښے دَ رسوائی عذاب اوڅکاوُو او دَ آخرت دَ ژوند عذاب دے نه هُم زيات دَ رسوائی دے او (هلته به) په هيڅ رنګ دَ هغوئ مدد نهٔ کيږی۔

وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۱۸

او د ثمود (دا حال وُه چه) مونږ هغوی ته د هدایت لاره ښودلے وه ولے هغوی ګمراهي د هدایت نه غوره کړه بیا نو هغوی د رسوائۍ د لوعذاب په سوب د هغوی عملونو راګیر کړل۔

وَنَجَّيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۱۹

ع ۲ ۱۶ او چه څوک متقیان وُو او مومنان وُو هغوی موا وساتل۔

وَيَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَاۤءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ۲۰

او کومه ورځ به چه د الله دښمنان (یعنی کافران) راټولی کړی د اور په طرف بوتللے شی بیا به هغوی په مختلفو درجو کښے ویشلے شی۔

حَتّٰۤى اِذَا مَا جَاۤءُوْهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۲۱

تر دے پورے چه هر کله هغوی دوزخ ته اورسی د هغوی غوږونه او د هغوی سترګے او د هغوی څرمنے به د هغوی د عمل په سوب د هغوی خلاف ګواهي ورکوی۔

وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ۭ قَالُوْۤا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيْۤ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۲۲

او هغوئ به خپلو څرمنو ته وائی تاسو څمونږ خلاف ګواهي ولے ورکړه؟ او د هغوئ څرمنے به جواب کښے وائی مونږ نه هُم هغه خدائے خبرے اېستلے دی چا چه د هر څیز نه خبرے الیستی دی او هغهٔ تاسو په ړومبی ځل هُم پیدا کړی وئ او بیا به هُم تاسو د هغهٔ په طرف واپس بوتللے شئ۔

وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَاۤ اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ۲۳

او تاسو خپل عیبُونه د دے ویرے نه پټول چه چرته ستاسو غوږونه او ستاسو سترګے او ستاسو څرمنے ستاسو خلاف ګواهئ ورنکړی (بلکه د نورو خلقو د ویرے مو دا کول چه هسے نه هغوی را ته ګوته اونهٔ نیسی) بلکه ستاسو یقین وه چه الله ته خو ستاسو د ډیرو خبرو علم هم ونشته۔

وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِيْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ۲۴

او هُم دا هغه بدګمانی وه چه تاسو د خپل رب په حقله اوکړه چه هغے تاسو هلاک کړئ او تاسو په هر شان نقصان اوچتوونکو نه شوئ۔

فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ ﴿۲۵﴾

بیا که چیرے دا خلق صبر اوکړی نو اور د هغوی ځائے دے او که چیرے دوئ د خدائے وړاندے حاضریدل غواړی نو هغوی ته به د خدائے وړاندے د حاضریدو اجازت نشی ورکیدے۔

وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ فَزَيَّنُوْا لَهُمْ مَّا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِیْۤ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۶﴾

او مونږ هغوی سره څنے داسے کسان ملګری کړل چا چه د هغوی عملونه هغوی ته ښائسته ورا وښودل او په هغوئ هُم هغه حکم جاری شو چه په جناتو او انسانو کښے د هغوی نه ړومبنو تیر شوو قامونو باندے جاری شوے وه (یعنی دا) چه هغوی نقصان اوچتوونکو نه شول۔ ع

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴿۲۷﴾

او کافرانو اووئیل د دے قرآن تعلیم مۀ اورئ او د دے د اوریدو په وخت شور کوئ چه دا شان تاسو غالب شئ۔

فَلَنُذِيْقَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَسْوَاَ الَّذِیْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۸﴾

بیا نو د دے په نتیجه کښے به مونږ کافران خامخا د سخت عذاب په خوند پوهه کړو او د هغوی د ډیر د خرابو عملونو جزا به هغوی ته ورکوو۔

ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ ۚ لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۲۹﴾

(او) د الله د دښمنانو جزا هُم داده یعنی اور، دے کښے به تر ډیرے مودے د استوګنے کور هغوی موږ دا جزا به هغوی ته د دے د پاره ورکیدے شی چه هغوی ځمونږ د آیتونو په ضد انکار کولو۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَاۤ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿۳۰﴾

او کافران به وائی چه یه ځمونږه ربه! ته مونږ ته په جناتو او انسانانو کښے هغه خلق اوښایه چه مونږ ئے بے لارے کړو ځکه چه هغوی مونږ د خپلو پښو لاندے او مخو او د دے په نتیجه کښے هغوی ډیر ذلیل خلق شی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ

هغه خلق چا چه اووئیل چه الله ځمونږه رب دے بیا په

عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۰﴾

کلکه په دے عقیده اودریدل په هغوی په فرښتے نازلیګی دے ویناسره چه مهٔ ویریګئ اودَهیڅ یوے روستنئ غلطئ غم مهٔ کوئ او په دے جنت خوشحاله شئ چه تاسوسره ئے وعده شوے وه۔

نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ﴿۳۱﴾

مونږ په دنیا کښے هُم ستاسو دوستان یُو آخرت کښے به هُم ستاسو دوستان اوسواو دے (جنت) کښے چه څه ستاسو زړهٔ غواړی تاسو ته به رسی او چه څه به تاسو غواړئ هغه به هُم تاسو ته دے کښے رسی۔

نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ﴿۳۲﴾ ع ۴ ۱۸

دا به دَ بخښُونکی (او) دَ بے انتها فضل کوُونکی خدائے دَ طرف نه میلمستیا په طوروی۔

وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۳۳﴾

او دَ دے نه زیاته ښه خبره به دَچا وی چه دَ الله په طرف خلقو ته بلنه ورکوی او دَ ایمان سره ښهٔ عمل کوی او وائی چه زهٔ خو حُکم مُنونکو نه یم۔

وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ۗ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ ﴿۳۴﴾

او نیکی او بدی برابریدے نشی او تهٔ دَ بدئ جواب ډیر ښهٔ سلوک سره ورکوه۔ دَ دے نتیجه به دا وی چه هغه سړے چه دَ هغه او ستا ترمنځه عداوت وی۔ هغه به ستا دَ ښهٔ سلوک له کبله ستا ډیر ښهٔ دوست جوړ شی۔

وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا ۚ وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿۳۵﴾

او (سره دَ ظلمونو زغملو) دَ دے (قسم دَ سلوک) توفیق لس هغوی ته حاصلیګی چه ډیر صبر کوُونکی وی او یا بیا هغوئ ته حاصلیګی چا ته چه (دَ خدائے دَ طرف نه دَ نیکئ) یوه ډیره غټه برخه حاصله وی۔

وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۶﴾

او کچرے شیطان (یعنی دَ حق نه لرے وجود) تا ته تکلیف اورسوی نو رسمدستی دَ هغے بدل اخستو ته مهٔ تیاریږه بلکه) الله نه پناه غواره (چه هغه تا دَ دے ادنیٰ درجے دَ خُلق نه اوساتی) په تحقیق سره الله ډیر اوریدُونکے دے

(او) ډیر علم لرونکے دے۔

وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ؕ لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَهُنَّ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۳۷﴾

او دَ هغهٔ په نښانانو کښے شپه هُم ده او ورځ هُم او نمر هُم او سپوږمئ هُم ده۔ مهٔ نمر ته سجده کوئ او مهٔ سپوږمئ ته، بلکه بس الله ته چاچه دا دواړه پیدا کړی دی سجده کوئ کچرے تاسو یا خه موحّد یئ۔

فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا فَالَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُوْنَ ﴿۳۸﴾ السجدة

بیا کچرے دا خلق کبر اوکړی نو یادلره چه هغه خلق چه ستا رب ته نزدے دی هغوی دَ شپے او ورځے دَ هغهٔ ثنا کوی او هغوی هیڅکله نهٔ ستړی کیږی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً فَاِذَاۤ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ؕ اِنَّ الَّذِيْۤ اَحْيَاهَا لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ؕ اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۳۹﴾

او دَ هغهٔ په نښانانو کښے (یو نښان) دا هُم دے چه تهٔ زمکه په بعضے وختونو کښے ویجاړه وینے بیا هرکله چه مونږ په هغے اوبهٔ ورووُلو هغه به یو نوے ژوند مومی (او سبزئ له) ښه وده ورکوی هغه رخدا ئے) چا چه (دا زمکه) ژوندئ کړے ده هغه به په تحقیق سره مړی هُم ژوندکوی۔ هغه په هرڅیز قادر دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ؕ اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْۤ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ ۙ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۴۰﴾

هغه خلق چه څمونږ آیتونو کښے تاوړا تاوُ غلطے خبرے راوباسی هغوی څمونږ نه پټ نهٔ دی آیا هغه سړے چه دوزخ کښے واچولے شی زیات ښهٔ دے یا هغه چه دَ قیامت په ورځ امن سره رمونږ له) راشی۔ ریه خلقو) څه چه غواړئ کوی الله ستاسو عملونو ته په ښهٔ شان ګیا دے ګوری۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِيْزٌ ﴿۴۱﴾

هغه خلق دَ دے ذِکر (یعنی قرآن) هرکله چه هغه هغوی له راغے انکار کوی حال دا چه هغه ډیر دَ عزت کتاب دے (هغوئ دَ خپلے تباهئ سامان پخپله کوی)

لَّا يَاْتِيْهِ الْبَاطِلُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ ؕ تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ ﴿۴۲﴾

باطل نهٔ دَ دے وړاندے را تللے شی او نهٔ دے نه روستو دَ ډیرو حکمتونو او دَ ډیرو تعریفونو خدائے دَ طرف نه هغه راغلے دے۔

مَا یُقَالُ لَکَ اِلَّا مَا قَدْ قِیْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِکَ ؕ اِنَّ رَبَّکَ لَذُوْ مَغْفِرَۃٍ وَّ ذُوْ عِقَابٍ اَلِیْمٍ ﴿۴۳﴾

تا ته بس هغه خبرے وئیلے شی چه تا نه آګاهو رسولانو ته وئیلے شوے وے. ستا رب ډیر بخښونکے دے او د هغهٔ عذاب هُم دردناک وی.

وَ لَوْ جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِیًّا لَّقَالُوْا لَوْ لَا فُصِّلَتْ اٰیٰتُهٗ ؕ ءَاَعْجَمِیٌّ وَّ عَرَبِیٌّ ؕ قُلْ هُوَ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا هُدًی وَّ شِفَآءٌ ؕ وَ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ فِیْۤ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّ هُوَ عَلَیْهِمْ عَمًی ؕ اُولٰٓئِکَ یُنَادَوْنَ مِنْ مَّکَانٍۭ بَعِیْدٍ ﴿۴۴﴾

ع ۵ ۱۲ ۱۹

کچرے مونږ دا قرآن بله ژبه کښے راستولے نو هغوی (د مکے او سیډونکو خلقو) وئیلے شول چه د دے آیتونه صفا صفا ولے بیان شوی نهٔ دی - آیا بله (عجمی) ژبه او عربی نبی څه هُم مشابهت لری؟ ته اووایه هغه د مومنانو دپاره هدایت او شفا لری (یعنی عربی کښے نازل شوے دے او د مکے خلق په دے پوهیدے شی) او چه څوک هدو ایمان نهٔ راوړی نو د هغوی غوږونه خو کا نړهٔ دی او هغه (یعنی د دے حقیقت) هغوی نه پټ دے هغوی داسے خلق دی لکه چه چا ته د لرئے ځائے نه آواز اوشی.

وَ لَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْکِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِیْهِ ؕ وَ لَوْ لَا کَلِمَۃٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّکَ لَقُضِیَ بَیْنَهُمْ ؕ وَ اِنَّهُمْ لَفِیْ شَکٍّ مِّنْهُ مُرِیْبٍ ﴿۴۵﴾

او مونږ موسیٰ له هُم یو اعلیٰ کتاب ورکړے وه او د دے پخقله هُم اختلاف شوے وه او کچرے یوه خبره ستا د رب د طرف نه رومبئ تیره نهٔ وے نو د هغوئ به پخوا فیصله شوے وه - هغوی د دے (قرآن) پخقله یو داسے شک کښے پراته دی چه د هغوی امن ختموی (یعنی ډیر زیات شکونو کښے اخته دی او په هغے غور نکوی).

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ وَ مَنْ اَسَآءَ فَعَلَیْهَا ؕ وَ مَا رَبُّکَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِیْدِ ﴿۴۶﴾

څوک به چه د ایمان سره سم عمل کوی نو د دے فائده د هغهٔ ځان ته رسی او چه څوک بد عملی کوی د هغهٔ عذاب به هُم په هغهٔ نازلیګی او ستا رب په خپلو بندیانو هیڅ ظُلم نهٔ کوی.

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِن ثَمَرَاتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ ۚ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾

دَ قیامت علم هُم هغهٔ ته دے او هیڅوک نه رهُم (څه میوے نه اوزی او ښځې هُم حاملې نه کیږی او نه وضع حمل کوی هغه الله ته معلومه وی) د څه میوے اوزی او ښځې هُم څه حملونه کوی او نه ئے کیږی ...

وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَدْعُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَظَنُّوا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ﴿٤٨﴾

او دَ کومو (معبودانو) مدد به هغوئ دے نه آکاهُو غوښتلو هغه به هغوئ نه ورک شی او دَ هغوئ به یقین اوشی چه اوس هغوئ دَ پاره چرته دَ تیښتے ځائے نشته۔

لَّا يَسْأَمُ الْإِنسَانُ مِن دُعَاءِ الْخَيْرِ وَإِن مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَئُوسٌ قَنُوطٌ ﴿٤٩﴾

انسان دَ ښو څیزونو په غوښتلو کله هُم نهٔ ستړے کیږی او کچرے هغهٔ ته کله څهٔ تکلیف اورسی نو (دَ رحمت څخه) مایوس او ناامیده شی۔ حال په هیرولو (ناامیده شی)۔

وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِن بَعْدِ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِي وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِندَهُ لَلْحُسْنَىٰ ۚ فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِمَا عَمِلُوا وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٠﴾

او کچرے مونږ هغهٔ ته تکلیف رسولو نه پس دَ رحمت خوند ورکړو نو هغه وائی۔ دا خو زما حق دے او زما یقین دے چه قیامت به نهٔ راځی۔ او کچرے زهٔ خپل رب ته واپس هُم کړے شوم نو هغه سره به زما دَ پاره (دَ دُنیا نه) ښهٔ انعامات وی او مونږ به خامخا کافرانو له دَ هغو عملونو پوره خبر ورکوو او په هغوئ به یو سخت عذاب څکاوو۔

وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنسَانِ أَعْرَضَ وَنَأَىٰ بِجَانِبِهِ وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُو دُعَاءٍ عَرِيضٍ ﴿٥١﴾

او هرکله چه مونږ په انسان انعام کوونو هغه مخ واړوی او څمونږ نه یو طرف ته شی او هرکله چه هغهٔ ته څه تکلیف اورسی نو ډیرے اوږدے اوږدے دُعا کانے کوی۔

قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ اللَّهِ ثُمَّ كَفَرْتُم

ته هغوئ ته اووایه۔ ما ته اوښایئ کچرے دا (قرآن)

بِهٖ مَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِيْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ ﴿۵۲﴾

دَ الله دَ طرف نه وی او تاسو دَ دے انکار اوکړئ نو دَ هغه سړی نه به چه دَ حقو نه ډیر لرے او تختی څوک بے لارے وی؟

سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ وَفِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُ الْحَقُّ ۭ اَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿۵۳﴾

مونږ به هغوئ ته تموله دُنیا کښے هر طرف نه خامخا خپل نشانات ښایو او خپله په ځان هغوی (او دَ هغوئ کُورونو) کښے هُم - تر دے چه دا (خبره) به په هغوئ دَ سره ښکاره شی چه دا (قرآن) حق دے - آیا ستاسو دَ رب په هر څیز نګران کیدل هغوئ دَ پاره کافی نهٔ دهٔ -

اَلَآ اِنَّهُمْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَاۗءِ رَبِّهِمْ ۭ اَلَآ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطٌ ﴿۵۴﴾

ع ۶

خبردار! دا خلق خپل رب سره دَ لیدو یحقله شک کښے پراتهٔ دی - یه پرانستو غوږونو واوره! الله په هر څیز حاوی (او دَ هغے په تباه کولو) قادر دے -




سورۃ شوریٰ - دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سرہ دَ دے څلور پنځوس آیتونه او پینځهٔ رکوع دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه ډیر زیات مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

حٰمٓ ②

(دا سورة) حميد (او) مجيد

عٓسٓقٓ ③

عليم، سميع (او) قدير (خدائے نازل کړے دے).

كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۙ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ④

دا شان الله تا ته هُم وحی کوی او هغوئ ته ئے هُم وحی کړے ده) څوک چه تا نه آګاهو تیر شوی دی)، هغه غالب هُم دے (او) دَ حِکمت خاوند هُم دے.

لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ⑤

په آسمانونو او زمکه کښے چه هرڅه دی ټول هُم دَ هغهٔ دی او هغه دَ اوچت شان خاوند او دَ هغهٔ حکومت په ټولو مخلوقاتو خور دے.

تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِي الْاَرْضِ ۭ اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ⑥

نزدے ده چه آسمانونه پاس نه (دَ غالب ذات په حُکم) اوشلیږی (او) پریوزی سره دَ دے چه ملائکے دَ خپل رب ثنا صفت هُم کیاری کوی او څوک چه په زمکه کښے دی هغوئ دَ پاره استغفار هُم کیادی کوی (ګنی بیا به هُم خدائے خپل عذاب نهٔ ایساروی دے دَ پاره چه هغه مغفرت او رحمت ښکاره شی) واورئ! الله ډیر بخښونکے (او) بے کچه رحم کوونکے دے.

وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءَ اللّٰهُ حَفِيْظٌ عَلَيْهِمْ ڮ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ⑦

هغه خلق چه الله نه سوا بل چاله خپل پناه ورکوونکے ګرزوی الله دَ هغوی خلاف پریوتونکی ټول عملونه محفوظ کړی دی او تهٔ په هغوئ نګران نهٔ ئے (هُم خدائے په هغوئ نګران دے.

وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّتُنْذِرَ اُمَّ

او دا شان (یعنی دَ خپلے نګرانئ په ثبوت کښے) مونږ قرآن

الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ لَا رَيْبَ
فِيْهِ ۭ فَرِيْقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيْقٌ فِي السَّعِيْرِ ⑦

عربي كښې په تا نازل كړے دے. دے د پاره چه ته د مكے د مركز خلق او كيرچاپيره او سيدونكى هوښيار كړے او دے د پاره چه ته ئے د هغه وخت نه اوويروے هركله به چه ټول خلق يو ځائے كوے شى چه د هغے په راتلو كښې هيڅ شك نشته. هغه ورځ به يوه ډله خو جنت ته ځى او بله ډله به دوزخ ته ځى.

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَهُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ
يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ وَالظّٰلِمُوْنَ مَا لَهُمْ
مِّنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ⑧

او كچرے الله خپله رضا كوے (يعنى جبر ئے كوے) نو هغوى ټول به ئے يو جماعت جوړ كړے دے وے هغه چه چاله غواړى خپل رحمت كښې ئے داخلوى او ظالمانو ته نه څوک پناه وركوونكے وى او نه مددګار.

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۚ فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ
وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى ۡ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ⑨ ع

آيا هغوى د الله نه سوا بل چاله پناه وركوونكے تجويز كړے دے؟ بيا ياد دوى چه) هُم الله پناه وركوونكے دے او هُم هغه مړى ژوندى كوى او هغه د ټولے هرے ارادے په پوره كولو قادر دے.

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ۭ
ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ڰ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ⑩

او چه كومه (خبره) كښې تاسو اختلاف كوئ د هغے آخرى فيصله هُم د الله په اختيار كښې ده. دا دے ستاسو الله چه زما هُم رب دے ما په هغهٔ توكل كړے دے او هُم د هغهٔ په طرف زهٔ رجوع كوم.

فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ
اَزْوَاجًا وَّمِنَ الْاَنْعَامِ اَزْوَاجًا ۚ يَذْرَؤُكُمْ فِيْهِ ۭ
لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ⑪

هغه د آسمانونو او زمكے پيدا كوونكے دے هغه هُم ستاسو د جنس نه ستاسو ملګرى جوړ كړى دى او د څاروے هُم جوړے پيدا كړى دى او دا شان هغه تاسو په زمكه كښې زياتوى. د هغهٔ په شان هيڅ يو څيز نشته او هغه ډير اوريدونكے (او) ليدونكے دے.

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَبْسُطُ الرِّزْقَ
لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۭ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ⑫

د آسمانونو چابئ هُم د هغهٔ په لاس كښې دى او د زمكے هُم هغه چه چاله غواړى رزق زياتوى او چه چاله

او غواړي رزق کموي او هغه د هرې یوې خبرې په ښهٔ شان علم لري۔

شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ
اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى
وَعِيْسٰٓى اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ ۭ كَبُرَ
عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ۭ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ
اِلَيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ ﴿۱۳﴾

هغهٔ (الله) تا ته (په اصولی اور) هُم هغه دین در کړے دے چه د هغې تاکید هغهٔ نوحؑ ته کړے وو او چه مونږ اوس په تا (د قرآن په ذریعه) نازل کړے دے او چه د څه تاکید مونږ په ابراهیمؑ او موسیٰؑ او عیسیٰؑ کړے وو او هغه دا وو چه (د الله) اطاعت دنیا کښے قائم کړه او د دے دین په حقله اختلاف کله هُم مهٔ کوه۔ په مشرکانو هغه (تعلیم ډیر) ګران دے چه د کوم په طرف تهٔ هغوی راغواړے۔ حال دا چه د الله په نظر کښے چه څه ښهٔ وی هغهٔ د دے (دین) د پاره خوښوی او دا تعلیم هغه چا ته حاصلیګی چه مدام د خدائے په طرف تیتیګی۔

وَمَا تَفَرَّقُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَاۗءَهُمُ الْعِلْمُ
بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ۭ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ
اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۭ وَاِنَّ الَّذِيْنَ
اُوْرِثُوا الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۱۴﴾

او کافرانو د دین په حقله اختلاف اونکړو ولے دے نه پس هغوی له یو کامل علم (یعنی قرآن) راغے او دا اختلاف هغوی (د څه عقلی دلیل په سوب اونکړو بلکه) خپلو کښے د کینے او حسد له کبله شے کړے دے او که چرے ستا د رب نه د یو مقرر شوی وخت پورے د یوے خبرے فیصله نهٔ وے شوے نو د دے کافرانو تباهی به پخوا شوے وه۔ او هغه خلق څوک چه د هغوی (د روستنو خلقو) نه پس د کتاب وارثان جوړ کړے شوی دی هغوی د دے کتاب په سوب په یو داسے شک کښے اخته دی چه د هغوی په زړونو کښے قبض پیدا کوی۔

فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ
اَهْوَاۗءَهُمْ ۚ وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ
وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۭ اَللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۭ

بیا تهٔ (د دے دین په طرف) خلق راغواړه او تهٔ (د دا شان په دین) ټینګ اوسه څنګه چه تا ته وئیلے شوی دی او د هغوی د خوښنو پسے مهٔ زه او وایه چه الله خپل

لَنَآ اَعۡمَالُنَا وَ لَكُمۡ اَعۡمَالُكُمۡ‌ؕ لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا وَ بَيۡنَكُمُ‌ؕ اَللّٰهُ يَجۡمَعُ بَيۡنَنَا‌ۚ وَ اِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُؕ ﴿۱۵﴾

کتاب نه څه نازل کړی دی په هغې ایمان راوړم او ما ته حُکم شوے دے چه زهٔ ستاسو ترمنځه په انصاف فیصله اوکړم الله څمونږ هُم رب دے او ستاسو هُم رب (دے) څمونږ عملونه مونږ سره دی او ستاسو عملونه ستاسو سره (دی) او څمونږ ترمنځه هیڅ جګړه نشته الله به مونږ (یوه ورځ) یوځائے کوی او د هغهٔ په طرف مونږ ټولو له تلل دی۔

وَ الَّذِيۡنَ يُحَآجُّوۡنَ فِى اللّٰهِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا اسۡتُجِيۡبَ لَهٗ حُجَّتُهُمۡ دَاحِضَةٌ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ وَ عَلَيۡهِمۡ غَضَبٌ وَّلَهُمۡ عَذَابٌ شَدِيۡدٌ ﴿۱۶﴾

او هغه خلق چه د الله په حقله بحثونه کوی هرکله چه (ګڼرو شمیره خلقو) د هغهٔ آواز قبول کړے دے د هغوی دلیل د هغوی د رب په نزد ماتیدونکے دے په هغوی به غضب نازلیګی او هغوی د پاره سخت عذاب (ریکلے شوے) دے۔

اَللّٰهُ الَّذِىۡۤ اَنۡزَلَ الۡـكِتٰبَ بِالۡحَـقِّ وَالۡمِيۡزَانَ‌ ؕ وَمَا يُدۡرِيۡكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيۡبٌ‏ ﴿۱۷﴾

الله هُم هغه ذات دے چا چه حقو سره (د اکامل کتاب (قرآن) او میزان راکوز کړے دے۔ او تا سو ته چا ونیلی دی چه مقرر شوے وخت راغلے دے۔

يَسۡتَعۡجِلُ بِهَا الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِهَا‌ ۚ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مُشۡفِقُوۡنَ مِنۡهَا ۙ وَيَعۡلَمُوۡنَ اَنَّهَا الۡحَـقُّ‌ ؕ اَلَاۤ اِنَّ الَّذِيۡنَ يُمَارُوۡنَ فِى السَّاعَةِ لَفِىۡ ضَلٰلٍۢ بَعِيۡدٍ‏ ﴿۱۸﴾

او چه څوک په دے ایمان نهٔ راوړی هغوی د دے د زر راوستلو غوښتونکی دی او مومنان خو دے نه ویریګی او یقین لری چه هغه کیدونکے ده۔ واورئ! څوک چه د قیامت په حقله شک کوی هغوی یولاعلاجه ګمراهئ کښے اخته دی۔

اَللّٰهُ لَطِيۡفٌۢ بِعِبَادِهٖ يَرۡزُقُ مَنۡ يَّشَآءُ‌ ۚ وَهُوَ الۡقَوِىُّ الۡعَزِيۡزُ ﴿۱۹﴾

الله د خپلو بندیانو د پټو رازونو علم لری چاله چه غواړی ډیر رزق ورکوی او چه د چا په حقله غواړی رزق کښے کمی کوی۔ هغه ډیر زیات طاقت لرونکے (او) غالب دے۔

مَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ حَرۡثَ الۡاٰخِرَةِ نَزِدۡ لَهٗ فِىۡ حَرۡثِهٖ‌

څوک چه د آخرت پټی غواړی مونږ د هغهٔ (د آخرت)

وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَ
مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ ﴿۲۱﴾

یتی هغهٔ ډ پاره ورسره ورسره ذیاتوو او څوک چه ډ دے
دُنیا پټی غواړی مونږ هغه نه (یعنی ډ دے دُنیا پټی نه)
ډ هغهٔ برخه ورکوُو (یعنی ډ دُنیا مال و اسباب هغهٔ ته
حاصل شی) او آخرت کښے به ډ هغهٔ هیڅ برخه نهٔ وی۔

اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْۢ
بِهِ اللّٰهُ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۚ وَ
اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۲﴾

آیا هغوی ډ پاره څوک دا سے شریکان شته چا چه ډ هغوی
دا سے دینی تعلیم تجویز کړے دے چه ډ هغے حکم الله
نهٔ دے ورکړے او کچیرے ډ الله ډ طرف نه آخری فیصله
شوے نهٔ وے نو ډ هغوی ترمنځه به فیصله شوے وے
او په تحقیق سره ظالمانو ته به دردناک عذاب رسی۔

تَرَى الظّٰلِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا وَهُوَ وَاقِعٌۢ
بِهِمْ ۗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ
الْجَنّٰتِ ۚ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ ذٰلِكَ هُوَ
الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۲۳﴾

تهٔ ظالمان وینے چه هغوی ډ خپل عمل په سوب ویریګی
حال دا چه هغه (وعده کړے شوے) عذاب په هغوی
خامخا راتلونکے دے۔ او هغه خلق چا چه ایمان راوړو
او ایمان سره سم عمل ئے او کړو هغوی به په ګنړو باغونو
کښے وی (او) ډ هغوی رب سره به ډ هغوی ډ پاره هر څه
وی (چه څه ته به ډ هغوی زړهٔ کیږی) هُم دا لوئے
فضل دے۔

ذٰلِكَ الَّذِيْ يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا
الصّٰلِحٰتِ ۗ قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا اِلَّا الْمَوَدَّةَ
فِي الْقُرْبٰى ۗ وَمَنْ يَّقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهٗ فِيْهَا
حُسْنًا ۗ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۲۴﴾

هُم دا هغه خبر دے چه ډ هغے الله خپلو مومن بندیانو
ته زیرے ورکوی۔ دا سے مومن بندیان چه ایمان سره
سم عمل هُم کوی۔ تهٔ او وایه زهٔ ډ خپل خدمت په بدل
کښے تاسو نه څه اجرتهٔ غواړم۔ سوا ډ هغه مینے کومه
چه خپله ډیرو نزدے خپلوانو سره کیږی او څوک چه
ډ نیکئ څه کار کوی مونږ ډ هغهٔ نیکی ډ هغه ډ پاره
نوره ډیره ښائسته جوړوُو الله ډیر بخښونکے (او)
قدردان دے۔

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۚ فَاِنْ يَّشَاِ اللّٰهُ

آیا هغوی وائی چه دے سړی (یعنی محمد صلی الله علیه

يَخْتِمْ عَلٰى قَلْبِكَ ۗ وَيَمْحُ اللّٰهُ الْبَاطِلَ وَيُحِقُّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ ۗ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۲۵﴾

وسلم) په خدائے دروغ تړلی دی۔ بیا کچرے الله اوغواړی نو ستا په زړهٔ به مهر اولګوی او الله تل باطل ختموی او حق دَ خپلو نښانانو په سوب قائموی هغه دَ زړونو دَخبرو نه خبر دے۔

وَهُوَ الَّذِيْ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ وَيَعْفُوْا عَنِ السَّيِّاٰتِ وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۲۶﴾

هُم هغه دے چه دَ خپلو بندیانو توبه قبلوی او دَ هغوئ غلطئ معاف کوی او څه چه تاسو کوئ هغے نه خبر دے۔

وَيَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۗ وَالْكٰفِرُوْنَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ﴿۲۷﴾

او دَ مومنانو او دَ ایمان سره سم عمل کُونکو دُعا کانے قبلوی او چه خپل فضل رچه دَ څو مره بدلے هغوی حق لری هغے نه هُم) زیات هغوی له ورکوی او کافرانو دَ پاره سخت عذاب مقرر دے۔

وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ۗ اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ﴿۲۸﴾

او کچرے الله دَ خپلو بندیانو دَ پاره رزق ډیر زیات کړے وے نو هغوی به ملک کښے ډیر زیاتئ شروکړے وے ولے څه چه هغه غواړی دَ اندازے سره سم ئے راکوزوی هغه دَ خپلو بندیانو دَ حالاتو نه خبر راو) دَ هغوی دَ حالات لیدُونکے دے۔

وَهُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَيَنْشُرُ رَحْمَتَهٗ ۗ وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۹﴾

او هُم هغه دے چه دَ نا اُمیدئ نه پس باران وروی او خپل رحمت خوروی او هُم هغه رپه ریښتیا) پناه ورکُونکے راو) دَ ټولو تعریفونو مالک دے۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيْهِمَا مِنْ دَآبَّةٍ ۗ وَهُوَ عَلٰى جَمْعِهِمْ اِذَا يَشَآءُ قَدِيْرٌ ﴿۳۰﴾ ع

او دَ آسمانونو او زمکے پیدا وښت او چه څه دَ دے دواړو ترمنځه دَ ساه دَ څیزونو دَ قسم نه هغهٔ خوارهٔ کړی دی دَ هغهٔ په نښانانو کښے دی او هرکله به چه هغه اوغواړی دَ هغو ټولو په راټولو ځائے کولو به قادر دی۔

وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ﴿۳۰﴾

او هر یو مصیبت چه تاسو ته اورسی هغه ستاسو دَ عملونو په سوب وی او الله ستاسو ډیرے څنے غلطئ معاف کوی۔

وَمَآ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ فِى الۡاَرۡضِ ۚۖ وَمَا لَكُمۡ
مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مِنۡ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيۡرٍ ۝۳۲

اوتاسو (الله) دَ هغهٔ په اراده کښې چرته هُم په زمکه پاتې نشئ راوستلې او دَ الله نه سوا تاسوله څوک پناه درکوُونکې نشته ـ نهٔ څوک ستاسو مددګار شته ـ

وَمِنۡ اٰيٰتِهِ الۡجَوَارِ فِى الۡبَحۡرِ كَالۡاَعۡلَامِ ۝۳۳

او دَ هغه په نشانانو کښې دَ غرونو په شان په سمندر کښې تلوُنکې کشتئ دی (یعنې چه ډیرې اوچتې دی)۔

اِنۡ يَّشَاۡ يُسۡكِنِ الرِّيۡحَ فَيَظۡلَلۡنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهۡرِهٖ ؕ
اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّـكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوۡرٍ ۝۳۴

کچرې هغه اوغواړی نو هوا به اودروی او هغه به دَ سمندر دَ پاسه ولاړې په ولاړې پاتې شی دے کښې دَ هرصبرکوُونکی قدردان دَ پاره نشانات دی۔

اَوۡ يُوۡبِقۡهُنَّ بِمَا كَسَبُوۡا وَيَعۡفُ عَنۡ كَثِيۡرٍ ۝۳۵

یا کچرې هغه اوغواړی نو دَ کشتئ خلق به دَ هغوی دَعملونو په سوب هلاک کړی او هغه ډیرښې ګناهونه معاف کوی۔

وَّيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ يُجَادِلُوۡنَ فِىۡۤ اٰيٰتِنَا ؕ مَا لَهُمۡ مِّنۡ
مَّحِيۡصٍ ۝۳۶

او هغه هغهٔ خلق پیژنی چه څمونږه په نشانانو کښې بحث کوی هغوی دِ اوګنړی چه هغوی دَپاره تیښتې هیڅ ځائے نشته۔

فَمَاۤ اُوۡتِيۡتُمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ فَمَتَاعُ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۚ
وَمَا عِنۡدَ اللّٰهِ خَيۡرٌ وَّاَبۡقٰى لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَلٰى
رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُوۡنَ ۚ ۝۳۷

او چه څه هُم تاسو ته درکړے شوی دی هغه دَ دنیاوی ژوند سامان دے او چه څه الله سره دی هغه دَمومنانو او په خپل رب توکل کوُونکو دَ پاره زیات ښه او زیات باقی پاتې کیدُونکی دی۔

وَالَّذِيۡنَ يَجۡتَنِبُوۡنَ كَبٰٓئِرَ الۡاِثۡمِ وَالۡفَوَاحِشَ وَاِذَا
مَا غَضِبُوۡا هُمۡ يَغۡفِرُوۡنَ ۚ ۝۳۸

او هغوی دَ پاره چه دَ غټو ګناهونو او دَ بدکارئ نه ځان اوسی او هرکله چه هغوی غصّه شی نو معاف کوی۔

وَالَّذِيۡنَ اسۡتَجَابُوۡا لِرَبِّهِمۡ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ۖ وَاَمۡرُهُمۡ
شُوۡرٰى بَيۡنَهُمۡ ۖ وَمِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ۚ ۝۳۹

او چه دَ خپل رب آواز قبلوی او نمونځونه باجماعت کوی او دَ هغوی طریقه داده چه خپل هرکار خپلو کښې په مشوره کوی او چه څه مونږ هغوی ته ورکړی دی هغې نه لګوی ـ

وَالَّذِيۡنَ اِذَاۤ اَصَابَهُمُ الۡبَغۡىُ هُمۡ يَنۡتَصِرُوۡنَ ۝۴۰

او هرکله چه په هغوی ظُلم کیږی نو هغوی بدل خو آخلی روسے دا یادلری)۔

وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۚ فَمَنْ عَفَا وَاَصْلَحَ
فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ۝۴۰

چه دَ بدئ بدل هُم هغه هومره بدی وی او چه څوک معاف کړی او دَ اصلاح خیال ترنظره ساتی نو هغه ته بدل ورکول دَ الله په ذمه وی ـ هغه (الله) ظالمان نهٔ خوښوی ـ

وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ
سَبِيْلٍ ۝۴۱

او کوم خلق چه په خپل ځان دَ ظلم کیدلو نه پس مناسب بدل اخلی په هغوی هیڅ قسم اعتراض نشی کیدے ـ

اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ وَيَبْغُوْنَ
فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝۴۲

اعتراض خو بس په هغو خلقو وی چه په ظلم (او حمله) کښے شروکوی او په زمکه کښے ناحقه زیاتی کوی ـ داسے خلقو ته به دردناک عذاب رسی ـ

وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ۝۴۳ ع

او چا چه صبر او کړو او معافی ئے ورکړه نو (دَ هغهٔ) دا (کار) ډیر دَ همت په کارونو کښے دے ـ

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ وَّلِيٍّ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ۭ
وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ يَقُوْلُوْنَ هَلْ
اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ ۝۴۴

او چه الله چا ته بے لارے کړی نو دَ هغهٔ (الله) په ځائے دَ هغهٔ څوک مددګار نشی کیدے او ته به ظالمان وینے چه هرکله به هغوئ عذاب په راتلو وینی نو وائی به چه آیا دَ دے عذاب دَ واپس کولو څهٔ تدبیر هُم شته ـ

وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا خٰشِعِيْنَ مِنَ الذُّلِّ
يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ۭ وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا
اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ
يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اَلَآ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِىْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ ۝۴۵

او ته به هغوئ وینے چه هغوئ به دے عذاب ته وړاندے کولے شی او دَ ذلت له کبله به سرونه ټیټ او سترګے لاندے نیولے کوری او مومنان به وائی چه اصل نقصان اوچتونکی هُم هغه دی چا چه په خپلو ځانونو او خپل ځانه دَ قیامت په ورځ په نقصان کښے واچولو ـ په پرانستو غوږونو واورئ! ظالمان به یو قائم پاتے کیدُونکی عذاب کښے وی ـ

وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ
اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ ۝۴۶

او هغوئ ته به پناه ورکوُنکے هیڅوک نهٔ وی چه دَ الله په مقابله کښے دَ هغوئ مدد اوکړے شی او الله چه څوک

بے لارے کنږی هغهٔ له په سمه لار د راوستو هیڅ تدبیر نشته۔

اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَىِٕذٍ وَّمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ ﴿۴۸﴾

تاسو د رب د آواز (رحمه سره) جواب ورکوئ رومبئ د دے چه هغه ورځ راشی چه د هغے د روستو کولو د الله په مقابله کښے هیڅوک نشته۔ هغه ورځ به تاسو د پاره د انکار هیڅ ځائے نهٔ وی۔

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا اِنْ عَلَيْكَ اِلَّا الْبَلٰغُ وَاِنَّآ اِذَآ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَاِنَّ الْاِنْسَانَ كَفُوْرٌ ﴿۴۹﴾

بیا هُم کچرے هغوی مخ واړوی نو (راړوئ دے) مونږ نهٔ یه هغوی نگران نهٔ ئے لیږلے۔ په تا لس د خبرے رسول فرض دی او هرکله چه مونږ انسان ته د خپلے خوا نه څه رحمت رسوُو نو هغه په دے خوشحاله شی او کچرے د هغهٔ د څه عمل له کبله (څمونږ د خوا نه) هغهٔ ته څه تکلیف اورسی نو انسان ناشکره شی (او د رومبنو تیرو فضلوُنو انکار کوی)۔

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ﴿۵۰﴾

هُم د الله د پاره د ځمکے او د آسمان بادشاهی ده څه چه غواړی پیدا کوی۔ چاله چه غواړی جینکئ ورکوی چاله چه غواړی هلکان ورکوی۔

اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا وَيَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿۵۱﴾

یا هلکان او جینکئ دواړه ورکوی (یعنی جینکئ هُم پیدا کیگی او هلکان هُم) او چه چاله غواړی شنده ئے کړی۔ هغه ډیر علم لرُونکے (او) د قدرت خاوند دے۔

وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَآءُ اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ ﴿۵۲﴾

او د چا سړی دا حیثیت نشته چه الله سره د وحی نه سوا یا د پردے په شا د خبرو نه سوا په بل شان خبرے اوکړی یا (د هغهٔ په طرف فرښتے د) رسول (په حیث) واستوی چه د هغهٔ په حُکم څهٔ چه هغه وائی خبره اورسوی۔ هغه اوچت شان لرُونکے (او) د حکمتونو نه واقف دے۔

وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ۚ مَا كُنْتَ تَدْرِىْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِىْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ۚ وَاِنَّكَ لَتَهْدِىْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۵۲﴾

او دا شان مونږ ستا په طرف په خپل حُکم کلام نازل کړے دے۔ تا ته علم نۀ وه چه کتاب څه څيز دے او نۀ درته دا معلومه وه چه ايمان څۀ څيز دے ولے مونږ دا (ستا وحی) نُور جوړ کړے دے۔ دے سره خپلو بنده يانو کښے چه چاله غواړو مونږ هدايت ورکوُو او په تحقيق سره ته خلق سمے لارے ته راولے۔

صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِىْ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ۗ اَلَآ اِلَى اللّٰهِ تَصِيْرُ الْاُمُوْرُ ﴿۵۳﴾

ع ۵

دَ الله دَ لارے په طرف چه دَ هغے هُم مالک دے چه آسمانونو کښے دی او دَ هغے هُم چه زمکه کښے دی واورئ! ټولے خبرے هُم دَ خدائے په طرف زی (يعنې دَ ټولو خبرو شرو او انجام هُم دَ خدائے په لاس کښے دی)۔

سُورَةُ الزُّخْرُفِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة زخرف - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے لس کم نُہ اویا آیتونه او اوۀ رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ﴿۱﴾ (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

حٰمٓ ﴿۲﴾ دَ حمید او مجید (خدائے) دَ طرف نه دا سورة نازل شوے دے) -

وَالْكِتٰبِ الْمُبِیْنِ ﴿۳﴾ مونږ دَ دے کتاب قسم خورو (یعنی دا دَ شهادت په طور وړاندے کوو چه خپل مضمون په ښکاره بیانوونکے دے۔

خلاصة القرآن

اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِیًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۴﴾ مونږ دا کتاب قرآن جوړ کړے دے او قرآن داسے چه عربي دۀ دَ پاره دَ دے چه تاسو پوهه شئ۔

وَاِنَّهٗ فِیْۤ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَیْنَا لَعَلِیٌّ حَكِیْمٌ ﴿۵﴾ او هغه (یعنی قرآن) اُم الکتاب کښے دے او څمونږ په نزد ډیر شان لرونکے (او) دَ ټولو حکمتونو نه ډک دے۔

اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِیْنَ ﴿۶﴾ آیا مونږ تاسو ته دَ ذکر (یعنی دَ کتاب) بیانول بس دے دَ پاره پریږدو چه تاسو دَ حد نه اوړیدلی قام یئ۔

وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِیٍّ فِی الْاَوَّلِیْنَ ﴿۷﴾ او مونږ په رومبنو قامونو کښے ډیر څخه نبیان لیږلی دی۔

وَمَا یَاْتِیْهِمْ مِّنْ نَّبِیٍّ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۸﴾ او هغوی له به هیڅ یو نبی نۀ راتلو چه هغوی به هغۀ پورے خندا نۀ کوله (بیا هُم مونږ دَ هغوی په طرف وحی نازله کړه -

فَاَهْلَكْنَاۤ اَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَّمَضٰى مَثَلُ الْاَوَّلِیْنَ ﴿۹﴾ او مونږ دَ هغوی نه زیات طاقتور خلق دَ انکار په سوب هلاک کړی وُو (بیا دَ دُوی هلاکول څۀ گران دی) او دَ دے خلقو نه وړاندے دَ رومبنو خلقو حالات تیر شوی دی۔

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَیَقُوْلُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِیْزُ الْعَلِیْمُ ﴿۱۰﴾ او که چرے تۀ هغوی نه تپوس اوکړے چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی نو هغوی به وائی غالب (او) دَ

دیر علم لرونکی ذات هغه پیدا کړی دی۔

الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ مَهْدًا وَّ جَعَلَ لَكُمْ فِیْهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰﴾

هغه (ذات) چا چه زمکه تاسو له فرش کړه او دے کښے ئے تاسو دپاره لارے جوړے کړی دی دپاره ددے چه تاسو هدایت اوموموئ۔

وَالَّذِیْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ ۚ فَاَنْشَرْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّیْتًا ۚ كَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿۱۱﴾

او هغهٔ د ورېځے نه په یوه انداز اوبه راکوزے کړے دی بیا هغے سره ئے یوه مړه زمکه را ژوندئ کړے ده دا شان به تاسو هم ژوندی کړی را اوباسلے شئ۔

وَالَّذِیْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْفُلْكِ وَالْاَنْعَامِ مَا تَرْكَبُوْنَ ﴿۱۲﴾

او هغهٔ تاسو دپاره هر قسم جوړے پیدا کړی دی او دا شان څاروی ئے پیدا کړی دی او کشتئ ئے جوړے کړی دی چه په هغو تاسو سوریږئ۔

لِتَسْتَوٗا عَلٰی ظُهُوْرِهٖ ثُمَّ تَذْكُرُوْا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ اِذَا اسْتَوَیْتُمْ عَلَیْهِ وَتَقُوْلُوْا سُبْحٰنَ الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِیْنَ ﴿۱۳﴾

هر کله چه تاسو په ښهٔ شان په هغو کیښنئ نو بیا د خپل رب نعمت یادوئ او دا وایئ چه پاک دے هغه خدا ئے چا چه مونږ له په دوئ قبضه راکړے ده۔ په حقیقت کښے مونږ په خپل زور هغوی خپل حکم لاندے نشول راوستلے۔

وَاِنَّآ اِلٰی رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ ﴿۱۴﴾

او په تحقیق سره مونږ یوه ورځ خپل رب په طرف واپس تلونکی یو۔

وَجَعَلُوْا لَهٗ مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا ۭ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۱۵﴾ ع ۱۶

(وے حال دا دے چه) هغوی د هغهٔ (خدائے) دپاره د هغهٔ په بندیالو کښے یوه برخه (یعنی لونړه) تجویز کړی دی په تحقیق سره انسان په ښکاره ښکاره ناشکره دے۔

اَمِ اتَّخَذَ مِمَّا یَخْلُقُ بَنٰتٍ وَّاَصْفٰكُمْ بِالْبَنِیْنَ ﴿۱۶﴾

(هغوی نه خو تپوس اوکړئ چه) آیا هغه په خپل مخلوق کښے څان دپاره خو لونړه جوړے کړے او تاسو له ئے څامنو سره لوئ درکړه؟

وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمٰنِ مَثَلًا

او هر کله چه هغوی کښے چا له د هغے څیز خبر ورکړے شی

ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ۝١٧

نو لره چه هغوی ته د رحمان (خدای) په طرف نسبت ورکوی نو د هغهٔ مخ تور شی او هغه د قهر نه ډک شی۔

اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا فِى الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِى الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِيْنٍ ۝١٨

آیا هغه چه کالو (زیوراتو) کښے پائی او په جهګړه کښے د خپل خیال اظهار په ښهٔ شان نشی کولے (هغه د خدائے په برخه راځی او غالب را تلونکے سړے د انسان په برخه کښے)۔

وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا ؕ اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ ؕ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ وَيُسْـَٔلُوْنَ ۝١٩

او هغوی ملائیکو له چه د رحمان (خدائے) بندیان دی ښځے ګرزولی دی آیا هغوی د هغو د پیدا وښت په وخت موجود وُو؟ ځکه دا خبره ده نو د هغوی شهادت به خامخا لیکلے شی او هغوی نه به (د قیامت په ورځ) په دے حقله تپوس کیږی۔

وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ ؕ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۗ اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ۝٢٠

او هغوی وائی ځکه رحمان (خدائے) غوښتے نو مونږ به د هغهٔ نه سوا د نورو معبودانو پرستش نهٔ کولو دا خبره هغوی نن په توره وائی د دے هغوی ته حقیقی علم د سره نشته۔

اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا مِّنْ قَبْلِهٖ فَهُمْ بِهٖ مُسْتَمْسِكُوْنَ ۝٢١

آیا مونږ هغوی له د دے (قرآن) نه آ کا څوڅه داسے کتاب ورکړے دے (چه په کښے دا خبره لیکلے ده) چه هغوی هغے سره دلیل جوړوی۔

بَلْ قَالُوْٓا اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝٢٢

دا سے نهٔ ده بلکه حقیقت دا دے چه هغوئ په دے خبره اصرار کوی چه مونږ خپل پلار نیکونه په یوه لاره موندلی وُو او مونږ به هُم هغوئ پسے ځُو۔

وَكَذٰلِكَ مَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِىْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ ۙ اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ مُّقْتَدُوْنَ ۝٢٣

او (یه رسوله!) تا نه آ کا هو مونږ هیڅ یو کلی ته هُم رسول نهٔ دے لیږلے چه د دوئ په رنګ د هغے شتهٔ منو دا نهٔ وُو وئیلی چه مونږ خپل پلار نیکونه په یوه طریقه موندلی وُو او مونږ به هغوی پسے ځُو۔

قٰلَ اَوَلَوْ جِئْتُكُمْ بِاَهْدٰى مِمَّا وَجَدْتُّمْ عَلَيْهِ
اٰبَآءَكُمْ ۗ قَالُوْٓا اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۲۵﴾

(په دے هر رسول) جواب ورکړو چه آیا که چرے زهٔ تاسوله دے نه ښهٔ تعلیم راوړم چه پرے تاسو خپل پلارنیکو نه موندلی وُو (بیا به هُم تاسو اصرار کوئ؟) نو هغوی جواب ورکړو چه کوم تعلیم سره تهٔ رالیږلے شوے ئے مونږ د دے مُنکر یو۔

فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ
الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۶﴾

ع ۸ النصف

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖٓ اِنَّنِيْ بَرَآءٌ
مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ ﴿۲۷﴾

او (یاد کړه) هرکله چه ابراهیمؑ خپل پلار ته او خپل قام ته وئیلی وُو چه د چا تاسو عبادت کوئ زهٔ د هغونه، سوا د هغهٔ (خدائے) چا چه زهٔ پیدا کړے یم ویزاره یم، او هغه به ما ته خامخا هدایت راکوی۔

اِلَّا الَّذِيْ فَطَرَنِيْ فَاِنَّهٗ سَيَهْدِيْنِ ﴿۲۸﴾

وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۹﴾

او ابراهیمؑ هغه تعلیم خپل نسل کښے یو مستقل یادګار پریخودو د پاره د دے چه هغوی (شرک نه) منے شی۔

بَلْ مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ
وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ﴿۳۰﴾

حقیقت دا دے چه ما هغه خلقو ته او د هغوی پلارنیکو نو ته دُنیاوی فائده او رَسوله تر دے پورے چه هغوی له حق هُم او په ډاګه بیانوونکے رُسول راغے۔

وَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ
كٰفِرُوْنَ ﴿۳۱﴾

او هرکله چه هغوی له حق راغے نو هغوی اووائیل دا خو هسے زړهٔ راښکونکے اثر ناکے خبرے دی او مونږ د دے نه مُنکر یو۔

وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ
عَظِيْمٍ ﴿۳۲﴾

او دائے هُم اعتراض اوکړو چه دا قرآن په دوو لویو ښارونو کښے څرته په لوئے سړی وے نازل نشو؟

اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ۗ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ
مَّعِيْشَتَهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ
فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا ۗ
وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿۳۳﴾

آیا هغوی ستا د رب رحمت ویشی؟ (دا څنګه کیدے شی؟) مونږ د هغوی ترمنځه دنیاوی ژوند سره تړلی د هغوی د ژوند سامانونه تقسیم کړی دی او هغوی کښے مو بعضے په بعضو غوره کړی دی چه د هغے په نتیجه کښے هغوی کښے بعضے (لوئے خلق) بعضے (کمزوری خلق) سپک ګڼیا دی ګڼړی او ستا د رب رحمت د هغه ټول مال او

ساما نونو نه چه هغوی ئے جمع کوی بنهٔ دے.

وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَنْ يَّكْفُرُ بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُوْنَ ۝۳۳

او کچرے دا ویرہ نهٔ وے چه ټول په یوه لاره شی نو مونږ به دَ رحمان (خدائے) دَ انکار کوونکو خلقو چتونه او پوړۍ چه هغوی پرے خیژی دَ سپینو جوړ کړے وے.

وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔوْنَ ۝۳۴

او دَ هغوی دَ کورونو ورونه به هُم (دَ سپینو جوړ کړے وے) او (دا شان) هغه چپرکټ چه هغوی پرے تکیے لګوی دَ سپینو جوړے کړے وے.

وَزُخْرُفًا ۭ وَاِنْ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ وَالْاٰخِرَةُ عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِيْنَ ۝۳۵ ع

بلکه دَ سرو زرو به مو جوړے کړے وے. ولے دا هرڅه دَ دُنیا دَ ژوند سامان دے او دَ آخرت (آرام) ستا دَ رب دَ فیصلے سره سم نیکانو له خاص دے.

وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ۝۳۶

او څوک چه دَ رحمٰن (خدائے) دَ ذِکر نه مخ واړوی مونږ یو شیطانی خصلت وجود هغهٔ پسے کوُو او هغه دَ هغهٔ دَ هروخت ملګرے شی.

وَاِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝۳۷

او هغوی (شیطانان) هغوی دَ کاڼلے (او ربښتونے) لارے نه منع کوی ولے سره دَ دے هغوی ګمان کوی چه هغوی په سمه لاره روان دی.

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَنَا قَالَ يٰلَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِيْنُ ۝۳۸

ولے (دا هغه وخت کیږی ترڅو پورے چه دا سے انسان ژوندے دی) هرکله چه هغه مونږ له راشی نو (دَ هغهٔ ټولے غلطے اندازے لرے شی او هغه) ګویا شی، اے کاش! ما کښے او (دَیه شیطانه) تا کښے دَ نمرخاته او نمرپرېواته هومره فاصله وے، بیا (خپله دَ انسان دَ ګواهۍ نه ثابته شوه چه) هغه (یعنی شیطان) ډیر خراب ملګرے دے.

وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ اِذْ ظَّلَمْتُمْ اَنَّكُمْ فِى الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ۝۳۹

او (مونږ به هغه ورځ انسانانو ته وایُو چه) هرکله چه تاسو ظُلم کړے دے نو دا خبره چه تاسو او ستاسو غولونکی

عذاب کښې شریک یې تاسو ته هیڅ سُود منه نشي درکولے۔

اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ اَوْ تَهْدِی الْعُمْیَ وَمَنْ كَانَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۴۰﴾

آیا ته کُوڼو ته اورولے شے او ړُوند ته لاره ښودے شے او دا شان چه په ښکاره ګمراهئ کښې اخته وی (هغه ته لاره ښودے شے)۔

فَاِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَاِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ ﴿۴۱﴾

بیا کچرے تا مونږ د دے دُنیا نه واخلو هُم (یعنی وفات درکړو) نو بیا به هُم مونږ هغوی نه خامخا بدل اخلو۔

اَوْ نُرِیَنَّكَ الَّذِیْ وَعَدْنٰهُمْ فَاِنَّا عَلَیْهِمْ مُّقْتَدِرُوْنَ ﴿۴۲﴾

یا به مونږ تا ته هغه څیز اوښایُو چه د هغے مونږ هغوی سره وعده کړے ده (یاد لرئ) مونږ په هغوی په پوره ډول اختیار لرو۔

فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِیْٓ اُوْحِیَ اِلَیْكَ اِنَّكَ عَلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۴۳﴾

او ته دا کلام چه تا ته وحی شوے دے په ټینګه اونیسه وے چه ته په سمه لاره ئے۔

وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْئَلُوْنَ ﴿۴۴﴾

او دا (کلام) تا د پاره هُم د شرف او عزت موجب دے او ستا د قام د پاره هُم او تاسو نه به خامخا ستاسو د عملونو پحقله تپوس کیږی۔

وَسْئَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً یُّعْبَدُوْنَ ﴿۴۵﴾ ع

او چه کوم رسولان مونږ تا نه وړاندے را لیږل هغوی نه تپوس اوکړه۔ آیا مونږ د رحمٰن (خدائے) نه سوا د نورو معبودانو هُم (څپلو کښے) ذکر کړے وه؟ د چا چه عبادت کیدلو۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰی بِاٰیٰتِنَآ اِلٰی فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّیْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۴۶﴾

او مونږ موسٰیٰ څپلو نښانانو سره فرعون او د هغهٔ درباریانو ته لیږلے وه۔ او هغهٔ (هغوی له په ورتلو) وئیلی وُو چه زهٔ د ټولو جهانونو د رب د خوا نه رسُول راغلے یم۔

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِاٰیٰتِنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا یَضْحَكُوْنَ ﴿۴۷﴾

بیا هرکله چه هغه هغوی ته څمونږ نښانانو سره راغے نو هغوئ هغو په اوریدو هغهٔ پورے خندا شروکړه۔

وَمَا نُرِیْهِمْ مِّنْ اٰیَةٍ اِلَّا هِیَ اَكْبَرُ مِنْ اُخْتِهَا وَاَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۴۸﴾

او مونږ چه هغوی ته څه نښان ښودلو هغه به د ړومبنی نښان نه لوئے وه او مونږ هغوی په عذاب کښې اخته کړی

دُو دَ پاره کَدے چه هغوئ (دَ خپلو بدو عملونه) واپس شي۔

وَقَالُوْا يٰٓاَيُّهَ السّٰحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ۚ اِنَّنَا لَمُهْتَدُوْنَ ﴿۵۰﴾

سره دَ دے هغوی به هُم داوئیل چه یه جادوګره! خپل رب نه څمونږ په حق کښے هغه ټولے وعدے وریادے کړه او دُعا اوکړه چه کومے (وعدے) هغهٔ تا سره کړی دی (کچرے عذاب لرے شو) نو مونږ به خامخا هدایت اوموند۔

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ﴿۵۱﴾

بیا هرکله چه مونږ هغوی نه عذاب لرے کړو نو هغوی سمدستی لوظ ماتول شروع کړل۔

وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِيْ قَوْمِهٖ قَالَ يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِيْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۵۲﴾

او فرعون خپل قام کښے دا اعلان اوکړو چه یه څما قامه! آیا دَ مصر حکومت څما قبضه کښے نهٔ دے؟ او دا دریابونه (او ګـودئ) څما دَ اختیار لاندے روان دی آیا تاسو نهٔ وینئ؟

اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ مَهِيْنٌ ۙ وَّلَا يَكَادُ يُبِيْنُ ﴿۵۳﴾

آیا زهٔ دَ دے سړی نه چه ذلیل دے او صفا خبره هُم نشی کولے ښهٔ یم (یا هغه ښهٔ دے؟)

فَلَوْلَآ اُلْقِيَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ ﴿۵۴﴾

(بیا کچرے هغه ښهٔ دے) نو په هغهٔ دَ سرو زرو کړے ولے نازلے نشوے یا هغهٔ سره فرښتے ولے رانغلے چه دَ هغهٔ نه ګیرچاپیره (دَ هغهٔ دَ حفاظت دَ پاره) جمع وی۔

فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۵۵﴾

بیا داشان هغهٔ خپل قام اوغلولو او هغوی دَ هغهٔ خبره اومنوه دله هغه خلق دَ خدائے لوظ ماتوونکی وُو۔

فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۵۶﴾

بیا هرکله چه هغوی مونږ له قهر راوستلو نو مونږ هغوی نه بدل واخستو او هغوی مو ټول غرق کړل۔

فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ ﴿۵۷﴾ ع

او مونږ هغوئ نه (لوه تیره شوے) قیصّے جوړه کړه او ورسره مو روستو راتلونکو خلقو دَ پاره دَ عبرت یوه ذریعه (هُم) جوړه کړل۔

وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا اِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ

او کله هُم چه دَ ابن مریمؑ واقع (قرآن کښے بیانیکی) نو ستا

يَصِدُّوْنَ ۝٥٧
قام په دے (خبره) شور کیاوی کوی۔

وَقَالُوْٓا ءَاٰلِهَتُنَا خَيْرٌ اَمْ هُوَ ۭ مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ اِلَّا جَدَلًا ۭ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ۝٥٨
او دا هُم وائی چه آیا ځمونږ معبودان ښهٔ دی یا هغه (یعنی عیسیٰ) ښهٔ دے۔ هغوی دا خبره ستا و راندے هسے دَجھگړے په غرض کوی حقیقت دا دے چه دے قام کښے دَحقو خلاف دَ بحثونو کولو عادت دے۔

اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ اَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنٰهُ مَثَلًا لِّبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ۝٥٩
هغه (یعنی عیسیٰ) خولس یو بنده وه چه په چا مونږ انعام کړے وه او هغه مو دَ بنی اسرائیلو دَ پاره دَ عبرت په طور پیدا (جوړ) کړے وه۔

وَلَوْ نَشَاۗءُ لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَّلٰۗىِٕكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ ۝٦٠
او کچرے مونږ غوښتلے نو تاسو کښے به مو هُم بعضے ملائیک جوړ کړے وے چه په زمکه به ستاسو په ځائے آباد وے۔

وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝٦١
او هغه (قرآن) دَ آخری وخت علم ورکوی بیا تاسو دَ وخت په حقله شک مهٔ کوی (او په خلقو) تاسو ما پسے زئ۔ هُم دا نیغه لاره ده۔

وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝٦٢
دَ حق نه لرے و تُونکے سرے دِ تا دَ نیغے لارے نه منع نکړی هغه ستا ښکاره ښکاره دښمن دے۔

وَلَمَّا جَاۗءَ عِيْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُمْ بِالْحِكْمَةِ وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۝٦٣
او هرکله چه به عیسیٰ (په دونم ځل) نښانانو سره راڅی نو هغه به وائی چه زهٔ تاسو ته دَ حِکمت خبرو سره راغلے یم او ځکه راغلے یم چه تاسو په بعضو هغو خبرو پوهه کړم چه په کښے تاسو اختلاف کوئ۔ بیا دَ الله تقویٰ اوکړئ او ځما اومنئ۔

اِنَّ اللّٰهَ هُوَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝٦٤
الله ځما هم او ستاسو هُم رب دے بیا هُم دَ هغهٔ عبادت کوئ هُم دا نیغه لاره ده۔

فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَيْنِهِمْ ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ اَلِيْمٍ ۝٦٥
بیا دَ دے په اوریدو دَ هغهٔ مخالفے ډلے خپلو کښے مختلفے خبرے شروع کړے بیا چا چه ظُلم اوکړو دَ لوی تکلیف ورکونکی وخت دَ عذاب په سوب هغوی دَ پاره هلاکت

مقرر دے۔

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّ هُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٦٦﴾

هغوی خولس دَ قیامت انتظار کیا دی کوی چه دَ هغې ناساپی راتلل بیګی شوی دی، دے هغوی په دے نهٔ پو هیګی۔

اَلْاَخِلَّاۗءُ يَوْمَىِٕذٍۢ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ ﴿٦٧﴾ ع ۱۴

ویرځنے دوستان چه هغه ورځ به خپلو کښے دَ یو بل دښمنان وی، سوا دَ متقیانو۔

يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَآ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ﴿٦٨﴾

(چه هغوی ته به خدائے وائی) ”په ځما بندیانو نن ستاسو هیڅ ویره نشته او نهٔ څه په روستنئ غلطئ غم کښے تاسو اخته کیدے شئ۔

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ﴿٦٩﴾

(دا انعام موندونکی به هغه خلق وی) چه ځمونږ په آیتونو ایمان راوړے وه او چا چه دَ حکم منونکو غوندے ژوند تیر کړے وه۔

اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُوْنَ ﴿٧٠﴾

(الله به هغوی ته وائی) تاسو هم او ستاسو ملګری هم په خوشحالو جنت ته زئ۔

يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ وَّ اَكْوَابٍ ۚ وَفِيْهَا مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ ۚ وَاَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٧١﴾

هغوی له به دَ سرو زرو مجمے او کوزے بیا بیا راوړے شی او دے (جنت) کښے به ئے چه څه زړهٔ غواړی او په څه به ئے چه سترګے خوږیګی موجود وی او راو به وئیلے شی چه) تاسو به دے کښے تل تر تله اوشی۔

وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٧٢﴾ لَكُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٧٣﴾

او دا به هغه جنت وی چه تاسو به ئے ستاسو دَ عملونو په سوب وارثان کیږئ، تاسو دَ پاره به دے کښے ډیرے میوے وی چه هغے نه به تاسو دَ ضرورت هومره خورئ۔

اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ﴿٧٤﴾

په تحقیق سره مجرمان به دَ جهنم په عذاب کښے په مودو پراته وی۔

لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ ﴿٧٥﴾

دَ هغوی په عذاب کښے به دمه نشی راوستلے او هغوی به دے کښے مایوسه شی۔

وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْا هُمُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧٦﴾

او مونږ په هغوی ظلم او نکړو، ولے هغوی خپله په خپلو

ځانونو ظُلم کولو۔

وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ؕ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ ﴿۷۷﴾

او هغوی به نارے کړی چه اے مالک! (یعنیٰ دَ دوزخ افسره) ستا رب له پکار دی چه مونږ له مرګ راکړی. هغه به وائی تاسو به تر ډیرے مُودے دے کښے اوسئ۔

لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۸﴾

(خدائے تعالیٰ وائی) مونږ تاسو له حق راوړے وه وے تاسو کښے ډیرځنو دَ حق نه نفرت کولو۔

اَمْ اَبْرَمُوْٓا اَمْرًا فَاِنَّا مُبْرِمُوْنَ ﴿۷۹﴾

آیا هغوئ خلقو (په رسول الله صلی الله علیه وسلم) دَ ځلے کولو څهٔ فیصله کړے ده (کچرے داسے ده) نو مونږ هُم دَ هغوی دَ تباهئ فیصله کړے ده۔

اَمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَ نَجْوٰىهُمْ ؕ بَلٰى وَ رُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُوْنَ ﴿۸۰﴾

آیا هغوی داګمان کوی چه مونږ دَ هغوی پټے خبرے او پټے مشورے نهٔ اورُو۔ دا خبرہ نهٔ ده بلکه ځمونږ رسُولان دَ هغوی خوا کښے ناست دی لیکی۔

قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ ﴿۸۱﴾

تهٔ او وایه چه کچرے دَ رحمٰن (خدائے) ځوک ځوئے وے نو ما به دَ هغهٔ دَ ټولو نه وړومبئ عبادت کولو۔

سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۸۲﴾

دَ آسمانونو او زمکے رب او دَ عرش رب دَ دے ټولو (شرک دَ خبرو) نه پاک دے چه مشرکان ئے بیانوی۔

فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَ يَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۸۳﴾

بیا (اے پیغامبره!) تهٔ هغوی پریږده چه په غلطه سروی او تر هغه وخته لوبګی چه هغوی ځپل دَ هغه عذاب وخت او مومی چه دَ هغے هغوی سره وعده شوے ده۔

وَ هُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّ فِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ ؕ وَ هُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۴﴾

او هُم هغه (خدائے) په آسمانونو او زمکه کښے یوازے دَ عبادت لائق دے او هغه دَ ډیرو لویو حِکمتونو خاوند او ډیر علم لرُونکے دے۔

وَ تَبٰرَكَ الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ۚ وَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۵﴾

او دَ ډیرو برکتونو بخښونکے هغه ذات چه دَ آسمانونو او زمکے او چه څه دَ دوئ ترمنځه دی دَ دغو ټولو دَ

بادشاهت مالک دے او دَ قیامت علم بس هغهٔ ته دے او دَ هغهٔ په طرف به تاسو والیس کولے شئ۔

وَلَا يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَن شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾

او چا نه چه دا خلق دَ خدائے نه سوا مددګاری هغوی دَ شفاعت مالکان نهٔ دی۔ وے هغه دَ شفاعت حق لری چه دَ رښتیا ګواهی ورکړی او هغوی (یعنی کافران په دے حقیقت) ښهٔ پوهیدے شی۔

وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٨٧﴾

او کچرے ته هغوئی نه تپوس اوکړے چه هغوی چا پیدا کړی دی؟ نو هغوی به خامخا وائی الله۔ بیا هغوی په کوم طرف په غلولو تګیا دی بوتللے شی۔

وَقِيلِهِ يَا رَبِّ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او ځمونږ قسم دے دَ دهٔ (رسول) په دے خبره! هرکله چه هغهٔ وئیلی وُو چه ځما ربه! دا قام خو داسے دے چه په هیڅ قسم (یقینسټتئ) ایمان نهٔ راوړی۔

فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَامٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٨٩﴾

بیا (مونږ هغهٔ ته جواب ورکړے وه چه) دوئ معاف کړه او بس دومره دُعا کوه چه په تا دَ خدائے سلامتی نازله وی نو دَ دے نتیجه به دا راوزی چه هغوی به (په حقو) پوهیدل شروشی۔

# سُوْرَةُ الدُّخَانِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتُّوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورة دخان - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے شپیته آیتونه او درے رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

حٰمٓ ②
(دا) دَ حمید او مجید (خدائے) دَ طرف نه نازل شوے سورة دے)۔

معانقة ۱۲ عند المتقدمین

وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ③
مونږ (دَ دے ریښتنی ثبوت دَ پاره دَ دے ښکاره) بیانونکی کتاب قسم خورو (یعنی دا دَ شهادت په طور وړاندے کوو)

اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ④
مونږ دا (کتاب) په پوره برکت ناکے شپه کښے نازل کړے دے ولے چه مونږ گمراهان تل او ښیار کړی دی۔

فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ ⑤
په هغه شپه کښے دَ حِکمت هره لوه خبره بیانیګی۔

اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا ۭ اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ⑥
هره هغه خبره چه دَ هغے مونږ دَ خپلے خوا نه حُکم ورکړے دے مونږ په دا سے وخت کښے تل عمر رسُولان لیږو۔

رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ⑦
دا ستا دَ رب دَ خوا نه دَ رحمت په طور وی هغه دَ دُعا کانو ډیر او ریدُونکے (او) دَ زړونو دَ حالاتو علم لرُونکے دے۔

معانقة ۱۲ عند المتأخرین

رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۘ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ⑧
(یعنی) دَ هغه رب دَ خوا نه چه دَ آسمانونو او دَ زمکے او څه چه دَ هغوی ترمنځه دی دَ هغو رب دے ولے شرط دا چه ستا سو نیت دَ باور کولو دی۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۭ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَاۗىِٕكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ⑨
دَ هغه نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته هغه ژوندے کوی هُم او وژنی هُم۔ هغه ستا سو هُم رب دے او ستاسو دَ ړومبنو پلارنیکونو هُم رب وُه۔

بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ ⑩
ولے هغوی په شک کښے اخته دی (او) لګیا دی لوبے کوی۔

فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاْتِي السَّمَاۗءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ ⑪
بیا تهٔ دَ هغے ورځے انتظار کوه کله به چه په آسمان یو

بنکاره بنکاره لوګے ښکاره شي۔

یَّغْشَى النَّاسَؕ هٰذَا عَذَابٌ اَلِیْمٌ ⑪

چه په ټولو خلقو به خوره شي دا به دردناک عذاب وي۔

رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ ⑫

(خلق به د دے په لیدو وائي) یه څښتن زمونږ ربه! مونږ نه دا عذاب لرے کړه مونږ ایمان راوړو۔

اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَ قَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِیْنٌ ⑬

هغه ورځ به د ایمان راوړو توفیق هغوی کوم ځائے نه مومي حال دا چه هغوی لره یو رسول حقیقت په بنکاره بیانوونکے راغلے دے (چه هغه هغوی او نهٔ منو)۔

ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ ⑭

او هغوی په شاله رل او وئیل ئے دا چا لوده کړے لیونے (پاګل) دے۔

اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِیْلًا اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ ⑮

مونږ به عذاب لږ وخت د پاره لرے کړو ولے تاسو به بیا هم هغه (نارو ا) کول شروکړئ۔

یَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰىۚ اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ ⑯

کله به چه مونږ تاسو په سخته اونیسو (په تاسو به بنکاره شي چه) مونږ په بدل اخستو قادر یو۔

وَ لَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِیْمٌ ⑰

او مونږ هغوی نه رومبئ د فرعون قام هُم آزما ئیلے وه او هغوی له یو د عزت ور رسول راغلے وه۔

اَنْ اَدُّوْۤا اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِؕ اِنِّیْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ ⑱

(او هغه رسول هغوئ ته وئیلي وُو) چه د خدائے بندیان ما سره کړئ زهٔ ستاسو په طرف د یو امانت دار رسول په حیث رالیږلے شوے یم۔

وَّ اَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِؕ اِنِّیْۤ اٰتِیْكُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ⑲

دے حکم سره رالیږلے شوے یم چه د خدائے په کار کښے زیاتي نه کار مهٔ اخلي (او ځما په راوړي دلیلونو غور اوکړئ) په تحقیق سره زهٔ ستاسو په طرف یو بنکاره دلیل راوړونکے یم۔

وَ اِنِّیْ عُذْتُ بِرَبِّیْ وَ رَبِّكُمْ اَنْ تَرْجُمُوْنِ ⑳

او زهٔ د خپل رب او ستاسو د رب نه پناه غواړم چه هسے نه چه په تاسو کښے ما په کانړو اونهٔ لئ۔

وَ اِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا لِیْ فَاعْتَزِلُوْنِ ㉑

او که چرے تاسو په ما ایمان نهٔ راوړئ نو (کم نه کم دا خو

اوکړئ چه) ما په تلاړخان ته پر بېږدئ.

فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ ﴿۲۲﴾

بیا نو موسیٰ خپل رب ته فریاد اوکړو او وے وئیل چه دا قام خو مجرم دے (په ما ایمان راوړونکے نهٔ ښکاري)

فَاَسْرِ بِعِبَادِيْ لَيْلًا اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ﴿۲۳﴾

بیا (خدائے) اووئیل، ته څما بندیان شپه په شپه (دے ملک نه) اوباسه بوزه او دا خیال ساته چه دَ فرعون قام به تا پسے وی.

وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا اِنَّهُمْ جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۴﴾

او سمندر (کښے په ډیکو ډیکو واوړه تیرشه. هغه (یعنی دَ فرعون) لښکر خو به ډوبیګی.

كَمْ تَرَكُوْا مِنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۲۵﴾
وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿۲۶﴾
وَّنَعْمَةٍ كَانُوْا فِيْهَا فٰكِهِيْنَ ﴿۲۷﴾
كَذٰلِكَ وَاَوْرَثْنٰهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ﴿۲۸﴾

هغوی (یعنی دَ فرعون قام) دَ څان نه روستو ډیر باغونه او چینے او پټی او ډیر دَ آرام ځایونه او داسے دَ استوګنے ځایونه چه په کښے به ډیر خوشحاله او سیدل پریخوده. داسے اوشول او مونږ دَ هغو ټولو څیزونو وارث یو بل قام کړو.

فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ وَمَا كَانُوْا مُنْظَرِيْنَ ﴿۲۹﴾

بیا آسمان او زمکه په هغوی او نهٔ ژړیدل او هغوی ته مولت ورنکړے شو.

وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ﴿۳۰﴾

او مونږ بنی اسرائیل دَ فرعون نه دَ رسیدونکی رسواکوونکی عذاب نه خلاص کړی وُو.

مِنْ فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾

او هغه (یعنی فرعون) ډیر کبرجن وُه او حدنه اوړیدلے وُو.

وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰى عِلْمٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۲﴾

او مونږ بنی اسرائیل دَ خپلے زمانے په ټولو قامونو دَ هغوی دَ حالاتو په بِنا غوره کړی وُو.

وَاٰتَيْنٰهُمْ مِّنَ الْاٰيٰتِ مَا فِيْهِ بَلٰٓؤٌا مُّبِيْنٌ ﴿۳۳﴾

او مونږ هغوی ته داسے نښانانو کښے یو نښان لیږلے وه چه په کښے دَ هغوی ډیرلوئے آزمینښت وه.

اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَيَقُوْلُوْنَ ﴿۳۴﴾

دا خلق (یعنی دَ مکے اوسیدونکی) وائی.

اِنْ هِيَ اِلَّا مَوْتَتُنَا الْاُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُنْشَرِيْنَ ﴿۳۵﴾

مونږ له یس رومبئ مرګ دے او مونږ به بیا ژوندی

کړی نشو او دروے -

فَأْتُوا بِآبَائِنَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۳۶﴾
بیا که چیرے تاسو رښتونی یئ نو څمونږ پلاړنیکونه یوځل بیا دے دُنیا ته راولئ۔

أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ أَهْلَكْنَاهُمْ إِنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ ﴿۳۷﴾
آیا هغوی ښهٔ دی یا دَ تبع قام او هغه خلق چه دَ تبع نه پرومبی وُو (دنیاوی طاقت کښے هغوی نه ښه وُو) مونږ هغوی ټول هلاک کړل. په تحقیق سره هغه خلق مجرمان وُو۔

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ ﴿۳۸﴾
او آسمانونه او زمکه او چه څه دَ هغوی ترمنځه دی مونږ هے په لوبو کښے نهٔ دی پیدا کړی۔

مَا خَلَقْنَاهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۳۹﴾
مونږ هغوی بس دَیو مستقل مقصد دَپاره پیدا کړی وُو، وے هغوی کښے ډیرځنے نهٔ پوهیږی۔

إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ مِيقَاتُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۴۰﴾
دَ فیصلے ورځ دَ هغوی ټولو سره وعده کړے شوے وخت دے۔

يَوْمَ لَا يُغْنِي مَوْلًى عَن مَّوْلًى شَيْئًا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿۴۱﴾
کومه ورځ به چه هیڅ یو دوست دَبل دوست ضرورت نشی پوره کولے او نهٔ به هغے کښے دَچا مدد کیدے شی۔

إِلَّا مَن رَّحِمَ اللَّهُ إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿۴۲﴾
(بس دَهغهٔ مدد به کیږی) په چا به چه الله رحم کوی۔ هغه غالب (او) بے انتها فضل کوونکے دے۔

إِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّومِ ﴿۴۳﴾ طَعَامُ الْأَثِيمِ ﴿۴۴﴾
په تحقیق سره زَقم ونه دَ ګناهګار خوراک دے۔

كَالْمُهْلِ يَغْلِي فِي الْبُطُونِ ﴿۴۵﴾
دَ تو په شان بدخونده چه په خیټه کښے لکه دَ ویلے کړے شوے تانبے راخوټیږی۔

كَغَلْيِ الْحَمِيمِ ﴿۴۶﴾
څنګه چه ایشیدلے اوبه خوټیږی۔

خُذُوهُ فَاعْتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَاءِ الْجَحِيمِ ﴿۴۷﴾
او مونږ به فرښتو ته وایو دا ګناهګار اونیسئ او دَ دوزخ ترمنځه ئے په راښکلو بوزئ۔

ثُمَّ صُبُّوا فَوْقَ رَأْسِهِ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ ﴿۴۸﴾
بیا دَ دهٔ په سر دیرے ایشیدلے اوبهٔ واچوئ چه هغے سره به دهٔ ته دَ سختے ګرمئ عذاب اورسی۔

ذُقْ ۚ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ ﴿۵۰﴾

(او مونږ به هغه سړی ته وایو) ته دا عذاب اوڅکه ته (په خپل خیال) غالب (او) د عزت څاوند وے.

إِنَّ هٰذَا مَا كُنْتُمْ بِهِ تَمْتَرُونَ ﴿۵۱﴾

(بیا به وایو) هُم دغه خو دے چه د څه په حقله تاسو شک کولو.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ ﴿۵۲﴾

په تحقیق سره نیکان به د امن ځائے کښې اوسی.

فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿۵۳﴾

یعنی جنتونو او چینو کښې.

يَلْبَسُونَ مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَقَابِلِينَ ﴿۵۴﴾

هغوی به ریښم او زربفت آغوندی - او یو بل سره به مخامخ ناست وی.

كَذٰلِكَ وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ ﴿۵۵﴾

(هُم داسے به وی) او مونږ به هغوی له د ملگری په طور د غټو غټو تورو سترگو ښځے ورکوو.

يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ آمِنِينَ ﴿۵۶﴾

هغوی به په هغه جنتونو کښې هر قسم میوے راغواړی او په امن به (زړونه) تېروی.

لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ ۖ وَ
وَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿۵۷﴾

هغوی له به هغو (جنتونو) کښې مرگ نه راځی سوا د ړومبی مرگ (چه د آخری ژوند نه ړومبی راغلے دے) او الله به هغوی د دوزخ د عذاب نه ساتی.

فَضْلًا مِنْ رَبِّكَ ۚ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿۵۸﴾

دا به هُم ستا د رب نه د فضل په طور وی (نه چه د حق په طور) او دا لوه ډیره لویه کامیابی ده.

فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿۵۹﴾

بیا نو دا وره چه مونږ دا قرآن ستا په ژبه آسان کړے دے د پاره د دے چه دا خلق (یعنی عربیان) دے نه نصیحت واخستے شی.

فَارْتَقِبْ إِنَّهُمْ مُرْتَقِبُونَ ﴿۶۰﴾

ع ۳ ۱۷ ۱۶ بیا ته هُم د انجام انتظار کوه هغوی به هُم انتظار کوی.




سورة جاثیه دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اته دیرش (۳۸) آیتونه او څلور (۴) رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

حٰمٓ ②

حمید او مجید (خدائے دَ دے سورة نازلوونکے دے)۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ③

دَ غالب او دَ حکمت لرونکی الله دَ طرف نه دا کتاب نازل شوے دے۔

اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ④

آسمانونو او زمکه کښے مومنانو دَ پاره ډیر نشانات دی۔

وَفِيْ خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِنْ دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ⑤

او دا شان ستاسو په پیدا ونبت کښے او دے کښے چه هغه (الله) دَ ساه په ځیږونو کښے (په زمکه) خوروی۔ دَ یقین کوونکی قام دَ پاره نشانات دی۔

وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ⑥

او دَ شپے او ورځے په وړاندے روستو تلو راتلو کښے هُم او چه الله دَ رزق موجب (او به) دَ وریځے نه راکوزے کړے دی بیا دے سره ئے زمکه دَ هغے دَ مرګ نه پس راژوندۍ کړے ده (دے کښے هُم) او دَ هوا ګانو اخوا دیخوا بونلو کښے هُم دَ عقل لرونکی قام دَ پاره ډیر نشانات دی۔

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۢ بَعْدَ اللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ⑦

دا ټول دَ الله نشانات دی چه مونږ ئے ستا وړاندے په صداقت بیانوو (بیا اوخو وایه) دَ الله او دَ هغهٔ دَ نشانانو نه پس به هغوی په څهٔ ځیز ایمان راوړی۔

وَيْلٌ لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ⑧

دَ هر یو دروغژن او ګناهګار دَ پاره عذاب لیکلے شوے دے۔

يَّسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتْلٰى عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ⑨

چه هغه آیتونه چه دَ هغهٔ وړاندے بیانولے شی اوری بیا کبر سره پخپله هره یوه خبره اصرار کوی لکه چه هغهٔ دَ خدائے نشانات هیڅ اوریدلے نهٔ دی۔ بیا داسے سړی ته دردناک عذاب خبر ورکړه۔

وَإِذَا عَلِمَ مِنْ اٰيٰتِنَا شَيْـًٔا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۚ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿۱۰﴾

او هر کله چه هغه سړی څمونږ آیتونو کښې دَ چا خبر هو مې نو هغهٔ پورے تو کے کوی۔ دا سے خلقو ته به رسوا کوونکے عذاب رسی۔

مِنْ وَّرَآئِهِمْ جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ مَّا كَسَبُوْا شَيْـًٔا وَّلَا مَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۱﴾

دَ هغوی وړاندے دوزخ دے او دَ هغوی عملونه به هغوی ته هیڅ فائده ورنکړی۔ او نهٔ به هغه معبودان رفائده ورکړی) څوک چه هغوی دَ الله نه سوا جوړکړی دی۔ او هغوی ته به ډیر لوئے عذاب رسی۔

هٰذَا هُدًى ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ﴿۱۲﴾

دا (رښتونے هدایت دے) او چاچه دَ خپل رب دَ آیتونو انکار کړے دے هغوی ته به دَ بُتانو دَ پرستش په سوب دردناک عذاب رسی۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيْهِ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۳﴾

الله هُم هغه دے چا چه سمندر ستاسو په کار لګولے دے دَ پاره دَ دے چه دَ هغهٔ په حُکم دے کښې کشتئ روانے شی او څکه چه تاسو (دَ دے په سوب) دَ هغهٔ فضل اولټوئ او دَ پاره دَ دے چه تاسو شُکر اوکړئ۔

وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مِّنْهُ ۚ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۱۴﴾

او څه چه آسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی تول هغهٔ ستاسو په کار لګولی دی۔ دے کښې دَ فکر کوونکی قام دَ پاره لوئے نښانات دی۔

قُلْ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَغْفِرُوْا لِلَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ اَيَّامَ اللّٰهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا ۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۵﴾

ته مومنانو ته او وایه چه څوک دَ الله دَ سزا نه ډیر یګي هغوی معاف کړئ دَ دے نتیجه به دا وی چه خدائے به (خپله) دا سے قام له دَ هغوی دَ عملونو جزا ورکړی۔

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا ۚ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ ﴿۱۶﴾

څوک چه دَ ایمان سره سم عمل دَ دے فائده هُم هغهٔ ته رسی او څوک چه بد کارونه کوی دَ دے نقصان (هُم) هغهٔ ته رسی۔ بیا به تاسو دَ خپل رب په طرف واپس بوتللے شئ۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ

او مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب او حکمت او نبوت ورکړے

وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۷﴾

ده او پاکیزه څیزونو نه مو رزق ورکړے وه او د خپلے زمانے په خلقو مو هغوی غوره کړی وُو۔

وَاٰتَيْنٰهُمْ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْاَمْرِ فَمَا اخْتَلَفُوْٓا اِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۸﴾

او مونږ هغوی ته ښکاره ښکاره شریعت ورکړے وه او بنی اسرائیلو هغه وخت د دے په حقله اختلاف اوکړو۔ هرکله چه هغوی له کامل علم (قرآن) راغے (دا اختلاف) د هغوی خپلو کښے د سرکشئ له کبله وه۔ ستا رب به د قیامت په ورځ د هغوی ترمنځه د هغوی د اختلافی خبرو په حقله فیصله کوی۔

ثُمَّ جَعَلْنٰكَ عَلٰى شَرِيْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۹﴾

او مونږ ته د شریعت په یوه لاره مقرر کړے ئے بیا ته د دے پسے ځه او د هغو خلقو غوښتلو پسے مه ځه چه علم نۀ لری۔

اِنَّهُمْ لَنْ يُّغْنُوْا عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۰﴾

او هغوی د الله په مقابله کښے تا ته هیڅ فائده نشی درکولے او ظالمان خپلو کښے یو بل ته پناه ورکونکی دی او الله نیکانو ته پناه ورکونکے دے۔

هٰذَا بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۲۱﴾

دا (تعلیمات) خلقو د پاره عقلی دلیلونه دی او یقین لرونکی قام د پاره هدایت او د رحمت سوب دی۔

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۲۲﴾ ع ۲ ۱۸

آیا کومو خلقو چه بدئ کړی دی هغوی خیال کوی چه مونږ به هغوی ته د مومنانو او د ایمان سره سم عمل کوونکو غوندے درجه ورکوو۔ تر دے چه د هغوی د واړو ژوند او مرګ برابر شی۔ هغوی ډیره بده فیصله کوی۔

وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۢ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۳﴾

او الله آسمانونه او زمکه د یو ابدی قانون سره سم پیدا کړی دی او د دے نتیجه به دا دی چه هر سړی ته به د هغۀ د عمل سره سمه جزا رسی او هغے کښے به په چا ظلم نۀ کیږی۔

اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٣﴾

آیا تا دَ هغه سړی په حال هُم غور کړے دے چا چه دَخپل نفس غوښتنه خپل معبود جوړ کړے دے او الله هغه دَ (خپل) کامل علم په بنیاد بے لارے کړے دے او دَ هغهٔ په غوږونو او دَ هغهٔ په زړهٔ ئے مهر لګولے دے او دَ هغهٔ په سترګو ئے پرده اچولے ده بیا نو اوس به دَ الله (دَ دے فعل) نه پس هغهٔ ته څوک هدایت ورکوے شی؟ آیا تاسو نصیحت نهٔ اخلئ؟

وَقَالُوْا مَا هِیَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَاۤ اِلَّا الدَّهْرُ ۚ وَمَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿٢٤﴾

او هغوی وائی چه دا دَ دُنیا ژوند څمونږ په قسمت دے - دے ژوند تیرولو سره به مونږ مړو او دَ دے په خوندمزه به مونږ ژوندی یُو او هُم زمانه به مونږ (په خپل اثر) وژنی - وے هغوی ته دَ دے خبرے هیڅ حقیقی علم نشته - هغوی بس ګمان کوی -

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآئِنَاۤ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٢٥﴾

او هرکله چه هغوی ته څمونږ ښکاره ښکاره آیتونه اوروے شی نو دَ دے نه سوا دَ هغوی څه جواب نهٔ وی چه هغوی وائی کچرے تهٔ رښتونے ئے نو څمونږ پلارنیکونه هُم راوله (را ژوندی کړه) -

قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٢٦﴾

تهٔ او وایه چه هُم الله تاسو ژوندی کوی بیا به هُم هغه تاسو وژنی بیا به هُم هغه تاسو دَ قیامت تر ورځے پورے یو ځائے کوی - او په دے کښے هیڅ شک نشته وے ډیرځنے خلق دَ دے علم نهٔ لری -

ع ٣ / ١٩

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿٢٧﴾

او دَ آسمانونو او زمکے بادشاهت هُم دَ خدائے دے او څه وخت چه هغه تاکلے وخت راشی هغهٔ ورځ به دروغژن په نقصان کښے وی -

وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً ۟ كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰۤى اِلٰى

او تهٔ به هر یو اُمّت اووینے چه هغه به په زمکه په

كِتٰبِهَا ؕ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۹﴾

کو د دو غور زیدلے وی۔ هر یو قام به د خپل شریعت په طرف رابللے شي۔ هغه ورځ به تاسو ته ستاسو د عملونو سره سمه جزا درکیږی۔

هٰذَا كِتٰبُنَا يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۰﴾

(او مونږ به وایو اوګورئ) دا ځمونږ کتاب دے چه ستاسو خلاف په حقه ګواهی ورکوی۔ څه چه تاسو عمل کولو مونږ به هغه ورسره ورسره لیکلو۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ﴿۳۱﴾

بیا چه کوم خلق مومنان وُو او چا چه نیک عملونه کړی وُو هغوی به د هغوی رب د خپل رحمت (د سیوری) لاندے ساتی او هُم دا ښکاره ښکاره کامیابی ده۔

وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۟ اَفَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾

او هغه خلق چه کافران شوی وُو (هغوی ته به او وئیلے شی چه) آیا ځما آیتونه تاسو ته نشو اوروسے وسے (سره د دے) تاسو کبر کولو او تاسو مجرم قام کښے ورګډ شوی وئ۔

وَاِذَا قِيْلَ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيْهَا قُلْتُمْ مَّا نَدْرِيْ مَا السَّاعَةُ ۙ اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِيْنَ ﴿۳۳﴾

او هرکله چه هغوی ته دا او وئیلے شی چه د الله وعدهٔ خو رښتونے ده او (د دنیا) آخری تباهی خامخا راتلونکے ده۔ دے کښے هُم شک نشته۔ نو د دے په اوریدو هغوی وائی چه مونږ ته معلومه نهٔ ده چه قیامت څهٔ څیز دے؟ مونږ ته خو د هغے یقله ګمان غوندے دے او ځمونږه په دے یقین نشته۔

وَبَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۳۴﴾

او هغه وخت به په هغوی د هغوی د عملونو خرابئ ښکاره شی او څه پورے به چه هغوی خندا کوله (یعنی د هغو انکار ئے کولو) هغه به هغوی راګیر کړی (او په رښتیا به د هغوی سترګو وړاندے راشی)۔

وَقِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰىكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۳۵﴾

او هغوی ته به او وئیلے شی چه نن مونږ تاسو دا شان بے مرستے پریږدو ځکه چه تاسو د دے ورځ د ملاقات

خیال پرېخودے وه او ستاسو ځائے به اور وی او هیڅوک به ستاسو مدد کوونکے نهٔ وی۔

ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّ غَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ مِنْهَا وَ لَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿٣٥﴾

دا به دے دَ پاره وی چه تاسو دَ الله نښانات دَ خندا موجب گرزولی وُو او دَ دُنیا ژوند تاسو غلولی وئ۔ بیا نو نن به نهٔ خو هغوی دَ دے عذاب نه او باسلے شی او نهٔ به دَ هغوی دَ طرف نه دَ خدائے دَ رضا کولو کوشش قبلولے شی۔

فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَرَبِّ الْاَرْضِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٣٦﴾

بیا نو الله چه دَ آسمانونو او زمکے رب دے او دَ ټولو جهانو رب دے ټول تعریفونه هُم دَ هغهٔ دی۔

وَ لَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۪ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٣٧﴾ ع

او په آسمانونو او زمکه کښے ټوله لوئی دَ هغهٔ ده او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔




سورة احقاف۔ دا سورة مکی دے او بسم اللہ سرہ دَ دے شپږ دیرش ۳۶ آیتونه او څلور ۴ رکوع دی۔

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

حٰمٓ ②

حمید او مجید (خدائے دا سورة نازل کړے دے)۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ③

الله (یعنی غالب او دَ حکمت لرونکی ذات دَ طرف نه دا کتابِ (مجید) نازل شوے دے۔

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ ④

(او هغه وائی چه) مونږ آسمانونه او زمکه او چه څهٔ دَ دے ترمنځه دی هیڅ بے هیڅه نهٔ دی پیدا کړی او نهٔ بے دَ څه مودے دَ مقرر کولو مو پیدا کړی دی۔ او هغه خلق چا چه انکار کړے دے هغوی دے خبر نه ډډه کوی څه نه چه هغوی ویروے شوی دی۔

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمٰوٰتِ ۖ اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَآ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ⑤

(تهٔ هغوی ته) اووایه چه ما ته اوخووائی چه څوک تاسو دَ خدائے نه سوا (مدد له غواړئ هغوی دَ زمکے کوم کوم څیز پیدا کړے دے؟ یا دَ هغوی دَ آسمان په پیدا وښت کښے څهٔ دخل شته - کچرے تاسو دے دعویٰ کښے رښتونی یئ نو دَ دے نه دَ مخکښے څه کتاب دلیل راوړئ یا کچرے (څه کتاب نهٔ وی او) تاسو په حقه یئ نو څه علمی دلیل راوړاندے کړئ۔

وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ

او دَ هغهٔ نه زیات بے لارے څوک کیدے شی چه

لَا يَسْتَجِيْبُ لَهٗٓ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ ۝۵

دَ الله نه سوا هغه (ذاتونه) مدد له غواړی چه ترقیامته پورے دَ هغهٔ څه دعا نشی قبلولے بلکه هغوی دَ هغو دَ دعا گانو نه دَ سره ناخبره دی۔

وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً وَّكَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ كٰفِرِيْنَ ۝۶

او هرکله چه به خلق په دوئم ځل راژوندی کړے شی (نو) هغوی (دَ دروغو معبودان) به دَ هغوی دښمنان شی او دَ هغوی دَ عبادت نه به انکار اوکړی۔

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۷

او هرکله چه هغوی ته څمونږ ښکاره ښکاره آیتونه اوروسے شی نو کافران دَ حقو دَ خبرو په اوريد و وائی چه دا خو لیو ښکاره ښکاره جادو دے (بیا مونږ دا ولے اومنو)۔

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَلَا تَمْلِكُوْنَ لِيْ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ؕ كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًا ۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ؕ وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝۸

آیا هغوی دا وائی چه دا (قرآن) هغهٔ دَ خپله ځانه جوړ کړے دے۔ ته هغوی ته اووایه کچرے ما دا دَ خپله ځانه جوړ کړے دے نو زهٔ دَ خدائے دَ سزا مستحق یم او) تاسو ما دَ خدائے دَ عذاب دَ هیڅ یوے برخے نه هُم نشئ ساتلے هغه دَ هغو خبرو ښه علم لری چه تاسو ئے بے مطلبه لگیا یئ کوئ هغه ستاسو او څما ترمنځه دَ گواه په طور کافی دے او هغه ډیر بخښونکے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ اَدْرِيْ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ ؕ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ وَمَآ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۹

ته هغوی ته اووایه چه زهٔ دُنیا کښے رومبنئ رسول خو نه یم (غلط ئما نه آگاهو نور ډیر رسولان تیر شوی دی) او زهٔ نهٔ پوهیگم چه ما سره به خدائے څه کوی او نهٔ دا پوهیگم چه تاسو سره به څه کوی۔ زه خو لس هغے وحی پسے ځم چه په ما نازله

شوے دہ او زۂ خو بس یو ښکارہ ویرونکے یم ۔

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَكَفَرْتُمْ بِهٖ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ فَاٰمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰﴾ ع

تۂ او وایه ما ته او نخو وائی چه کچرے دا وحی دَ خدائے دَ طرفه شوه او تاسو دَ دے انکار او کړو سره دَ دے چه بنی اسرائیلو کښے یو گواه (یعنی موسیٰ) گواهی ورکړے ده چه دَ هغهٔ په شان به یو سړے ښکارہ کیږی (نو آیا دا به عجیبه خبرہ نۂ وی چه هغه څوک چه ړومبی تیر شوے وُه) هغه خو ایمان راوړو او تاسو (دَ چا په زمانهٔ کښے چه هغه راغلے دے) دَ کبر نه کار آخلئ الله ظُلم کوونکو ته کله هُم دَ هدایت لاره نۂ ښائي ۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُوْنَآ اِلَيْهِ ؕ وَاِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَآ اِفْكٌ قَدِيْمٌ ﴿۱۱﴾

او کافران مومنانو ته وائی چه کچرے قرآن څهٔ ښه تعلیم وے نو دوئ (مومنانو) به مونږ نه آگاهو په دے ایمان نۂ راوړے او هر کله چه په دوئ (کافرانو) دَ دے صداقت نۂ دے ښکارہ شوے ۔ هغوی به دَ نا مرادئ او قهر نه هُم دا وائی چه دا خو یو پخوانی دروغ دی (چه ړومبنو خلقو هُم دَ خدائے په حقله وئیلی دی)۔

وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰٓى اِمَامًا وَّرَحْمَةً ؕ وَهٰذَا كِتٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۖ وَبُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲﴾

حال دا چه دے نه آگاهُو دَ موسیٰ کتاب تیر شوے دے چه لاره ښودُونکے هُم وه او رحمت هُم وُه ۔ او دا (قرآن) یو داسے کتاب دے چه دَ خپل ځان نه دَ ړومبنو کتابونو تصدیق کوی او په عربئ ژبه دے دَ پاره دَ دے چه چا ظُلم کړے دے هغه او ویره وی او کوم خلق

چه دَ خدائے دَ حُکم مطابق کارکوی هغوئ ته زیرے ورکړی۔

إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٣﴾

ریعنی ، هغه خلق چه دا وائی چه هُم الله څمونږ رب دے بیا هغوی په دے دعویٰ په تینګه اودریګی نو داسے خلقوته نهٔ دَ څهٔ را تلُونکی خبرے ویره وی اونهٔ تیره شوے زمانه کښے په پاتے را تلو ورته غم وی۔

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٥﴾

دا خلق جنت ته تلُونکی دی هغوی به دے کښے دَ خپلو تیروشوُ عملونو دَ بدل په طور اوسی۔

وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا ۖ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۖ وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا ۚ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِي أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ وَأَصْلِحْ لِي فِي ذُرِّيَّتِي ۖ إِنِّي تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّي مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿١٦﴾

او مونږ انسان ته خپل مور پلار سره دَ احسان کولو تعلیم ورکړے وه وے چه دَ هغه مور هغه تکلیف سره په خیټه اوچت کړے وه او بیا په تکلیف ئے زیګولے (راوړے) وه او دَ هغهٔ دَ اوچتولو او دَ هغهٔ دَ سینے نه په پریکولو دیرش میاشتے لګیدلے وے بیا هرکله چه دا انسان خپلے پوره ځوانئ یعنی څلویښتو کالوته اورسیدو هغهٔ اووئیل یه ځما ربه! ماته دَ دے خبرے توفیق راکړه چه زهٔ ستا دَ دے نعمت شُکر اوکړم چه تا په ما او ځما په مور پلار کړے دے او دَ دے خبرے هُم توفیق راکړه ) چه زهٔ داسے کارونه اوکړم چه ته ئے خوښ کړے او ځما اولاد کښے هُم دَ نیکئ بنیاد کیږده ۔ زهٔ ستا په طرف تیښیګم او زهٔ ستا حُکم منونکو بندیانو کښے یم۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّئَاتِهِمْ فِي أَصْحَابِ الْجَنَّةِ ۖ وَعْدَ

رڅوک چه به داسے کوی ، هُم هغه خلق به داسے وی چه دَ چا ښهٔ عملونه به مونږ قبلوؤ او دَ هغوی

الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿۱۶﴾

بدئ به مونږ معاف کوو۔ دا خلق به جنت ته ځي دا يوه رښتونے وعده ده چه دَ شروع (دَ آدم دَ پيدا وښت) نه مومنانو سره کړيا دے کيګي۔

وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ اَتَعِدٰنِنِيْٓ اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِيْ ۚ وَهُمَا يَسْتَغِيْثٰنِ اللّٰهَ وَيْلَكَ اٰمِنْ ۗ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ فَيَقُوْلُ مَا هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۷﴾

او (يو) داسے سړے (هُم وي) چه خپل مور پلار ته وائي افسوس په تاسو! آيا تاسو ما ته دا خبر په کلکه را کوئ چه زه به ژوندے زمکے نه را او باسلے شم او صدئ په صدئ (زمانې) تيرے شوي دي ولے هغو کښے څوک ژوندے (را نغے) او دَ هغهٔ (دواړه) (مور او پلار) به الله ته په فرياد وائي يَه بچيه! افسوس په تا، په خدائے ايمان راوړه دَ الله وعده به خامخا پوره کيږي دَ دے په اوريدو به هغه هغوي ته جواب ورکوي دا خولې دَ پخوانو خلقو قصئ دي۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۱۸﴾

هُم دا شان خلق وي په چا چه هغه امتونو کښے چه دَ هغوي نه مخکښے تير شوي دي چه په جنّاتو کښے وُو يا انسانانو کښے وُو دَ عذاب پيش خبري پوره شوه۔ هغه خلق نقصان اوچتوونکي وُو۔

وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ۚ وَلِيُوَفِّيَهُمْ اَعْمَالَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۹﴾

او هغوي ټولو ته به دَ هغوي دَ عملونو له کبله درجے ورکيدے شي او دا به دے دَ پاره وي چه الله هغوي ته دَ هغوي دَ عملونو پوره بدله ورکړي او په هغوي ظُلم او نشي۔

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ۭ اَذْهَبْتُمْ طَيِّبٰتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا ۚ فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَفْسُقُوْنَ ﴿۲۰﴾ ع ۲

او کومه ورځ چه به کافران دوزخ ته مخامخ راوستے شي (او او به ويلے شي) تاسو دَ دنيا په ژوند کښے ټول انعامات ختم کړي دي او دَ دُنيا دَ ژوند نه چه څومره فائده اوچتول وُو (تاسو) اوچته کړے ده - بيا نن به تاسو ته په زمکه کښے ناحقه دَ کبر کولو او دَ حُکم

نهٔ منلو له کبله دَ رسوائی عذاب درکولے شی۔

وَاذْكُرْ اَخَا عَادٍ ۭ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖٓ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ۭ اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿٢٢﴾

او (ای نبی!) دَ عاد ورور (هود) هُم یادکړه هرکله چه هغه خپل قام احقاف (دَ شګو اوچته ډیګه) کښے ویروله او دَ هغهٔ (هود) نه وړمبی هم ډیر نبیان تیرشوی وُو او دَ هغهٔ نه پس هُم ښکاره شول او هغوی کښے هریو دا تعلیم ورکړو چه دَ الله نه سوا دَ چا عبادت مهٔ کوئ۔ زهٔ په تاسو دَ لوے لوئے ورځے دَ عذاب په راتلو ویریږم۔

قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِتَاْفِكَنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿٢٣﴾

هغوی اوویل آیا ته مونږ له دے دَ پاره راغلے ئے چه مونږ دَ خپلو معبودانو نه واړوے۔ کچرے داسے ده نو دَ خپل صداقت په خاطر چه دَ کوم څیز ته مونږ سره وعده کوے هغه مونږ له راوړه۔

قَالَ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ڮ وَاُبَلِّغُكُمْ مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَلٰكِنِّىْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿٢٤﴾

(هُود) اوویل چه حقیقی علم خو الله سره دے زهٔ خو بس هغه تعلیم تاسو ته رسوم چه دَ څه دَ رسولو ذمه واری خدائے په ما اچولے ده وے زهٔ وینم چه تاسو یو جاهل قام یئ۔

فَلَمَّا رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ ۙ قَالُوْا ھٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ۭ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ ۭ رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٢٥﴾

بیا هرکله چه هغه قام هغه عذاب دَ لوے ورېځے په شکل دَ وادو په طرف په وړاندے کیدو اولیدو نو هغوی اوویل دا یوه وریځ ده چه په مونږ به باران وروی۔ (مونږ اوویل) نا، دا هغه (عذاب) دے چه تاسو زر غوښتلو (دا) یوه هوا ده چه پکښے دردناک عذاب پټ دے۔

تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍۢ بِاَمْرِ رَبِّهَا فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰٓى اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٢٦﴾

دا هوا دَ خپل رب په حُکم هر څیز تباه کوی۔ بیائے نتیجه دا شوه چه په هغوی داسے سحر راغلو چه بس دَ هغوی کورونه په نظر راتلل (نور ټول قام شکه کښے ننخ شو)

دا شان مونږ مجرم قام له جزا ورکوو۔

وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِيْهِ وَجَعَلْنَا
لَهُمْ سَمْعًا وَّاَبْصَارًا وَّاَفْئِدَةً ۖ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ
سَمْعُهُمْ وَلَآ اَبْصَارُهُمْ وَلَآ اَفْئِدَتُهُمْ مِّنْ شَيْءٍ
اِذْ كَانُوْا يَجْحَدُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا
بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٢٧﴾ ع

او مونږ هغوی ته هغه طاقت ورکړے وه چه کوم طاقت مونږ تاسو ته نهٔ دے درکړے او مونږ هغوی له ستاسو په شان غوږونه سترګے او زړونه ورکړی وُو (ولے هغوی هُم ستاسو په شان (دا څیزونه په کار را نهٔ وستل) بیا دَ هغوی غوږونو او سترګو او زړونو هغوی ته څه فائده ورنکړه۔ ولے چه هغوی دَ الله دَ آیتونو نه په انکار اصرار کولو او چه کوم عذاب پورے هغوی ټوکے کولے هغے هغوی څلور واړه طرف نه راګیر کړل۔

وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى وَصَرَّفْنَا
الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٢٨﴾

او مونږ هغه کلی هُم هلاک کړی دی چه ستاسو څوا اوشا دی او مونږ نشانات بیا بیا (او په ښکاره ښکاره) بیان کړی دی۔ دَ پاره دے چه (دَ دے آیتونو اوریدُونکی) دَ خپل ضد نه منع شی۔

فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا
اٰلِهَةً ۭ بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ۚ وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا
يَفْتَرُوْنَ ﴿٢٩﴾

بیا دے هغو خلقو چا لره چه هغوی دَ الله نه سوا دَ قُرب دَ پاره معبودان جوړ کړی وُو چه هغوی هغو له خدائے ته نزدے کړی دَ هغوی مدد اونکړو بلکه هغوی په موقع دَ هغوی (دَ سترګو نه پټ شول) او دا دَ هغوی دَ دروغو او دَ افترا نتیجه ده۔

وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۚ
فَلَمَّا حَضَرُوْهُ قَالُوْٓا اَنْصِتُوْا ۚ فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا اِلٰى
قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿٣٠﴾

او هرکله چه مونږ جِنّاتو کښے څنے خلق تا ته راواګرزول چه دَ قرآن دَ اوریدو خواهش ئے لرلو بیا هرکله چه هغوی (دَ قرآن خوانئ په محفل کښے) حاضر شول نو هغوی یو بل ته اوویل چپ شئ۔ بیا هرکله چه دَ قرآن تلاوت ختم شو نو هغوی دَ خپل قام په طرف واپس شول او هغوی کښے ئے دَ اسلام خوروِل شروع کړل۔

قَالُوْا يٰقَوْمَنَآ اِنَّا سَمِعْنَا كِتٰبًا اُنْزِلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى
مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ وَاِلٰى
طَرِيْقٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٣١﴾

(او) خپل قام ته ئے اوویل، "یه څمونږ قامه! مونږ یو داسے کتاب اوریدلے دے چه دَ موسیٰ نه پس نازل شوے دے او چه کوم کتابونه دے نه آګاهو نازل شوی دی دَ هغے

تصدیق کوی او دَ حقو او سمے لارے ښودنه کوی۔

يٰقَوْمَنَآ اَجِيْبُوْا دَاعِيَ اللّٰهِ وَ اٰمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَ يُجِرْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝۳۱

یه ځمونږه قامه! دَ الله دَ طرف نه دَ نوی کتاب دَ راوړونکی بلنه قبوله کړئ او په هغهٔ ایمان راوړئ نتیجه به ئے دا وی چه الله به ستاسو گناهونه معاف کړی او تاسو ته به دَ یو دردناک عذاب نه پناه درکړی۔

وَ مَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ وَ لَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءُ ؕ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝۳۲

او څوک چه دَ الله په طرف دَ بلنه ورکوونکی خبره نهٔ قبلوی هغه له په دُنیا کښے مانړے نشی ورکولے او دَ خدائے نه سوا هغهٔ ته پناه ورکوونکے هیڅوک نشته دا سے خلق ښکاره گمراهئ کښے اخته وی۔

اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ لَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ؕ بَلٰٓى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝۳۳

آیا هغوئ نهٔ وینی چه خدائے چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړی دی او دَ هغوی دَ پیدا وښت نه ستړے نشو هغه په دے هُم قادر دے چه مړی ژوندی کړی هغه دَ هرے یوے ارادے په پوره کولو قادر دے۔

وَ يَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ؕ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَ رَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ۝۳۴

او کومه ورځ چه به کافران اور ته مخامخ کړے شی او به وئیلے شی آیا دا حقه نهٔ ده؟ هغوی به وائی او، او ځمونږ دِ په خپل ربّ قسم وی! (دا دَ سره رښتیا ده) بیا به (الله) او فرمائی ښه ده نو تاسو دَ خپل کفر په سوب عذاب اوڅکئ۔

فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ وَ لَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ ؕ كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوْعَدُوْنَ لَمْ يَلْبَثُوْٓا اِلَّا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ ؕ بَلٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝۳۵ ع ۴

بیا (اے نبیؐ!) ته هُم (دا شان) صبر او کړه څنگه چه دَ کلکے ارادے لرونکی رسولانو (زَ نانه آکاهو) صبر کړے دے۔ او هغوی دَ پاره دا دُعامه کوه چه په هغوی زر عذاب راشی۔ کومه ورځ به چه هغوی هغه موعود عذاب او وینی دَ هغوی حال به داسے وی چه لکه هغوی دے دنیا کښے دِ یو لږ وخت پاتے دی دا خبره (دَ هغو کافرانو دَ پاره) هسے دَ یو نصیحت په طور وئیلے شوے ده او دَ فاسق قام نه سوا هیڅوک نشی هلاکیدلے۔




سورة محمّد - دا سورة مدنی دے او لسبم الله سره دَ دے یو کم څلویښت (٣٩) آیتونه او څلور رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے -

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ②

هغه خلق چا چه انکار او کړو او دَ الله دَ لارے نه ئے (خلق) منع کړل الله دَ هغوی عملونه تباه کړل -

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۙ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ③

او چا چه ایمان راوړو او هغوی دَ ایمان سره سم کارونه او کړل او چه څه په محمّد (رسول الله صلی الله علیه وسلم) نازل شول په هغے ئے ایمان راوړو او هُم هغه دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه حق دے - الله به دَ هغوی په بدو پرده اچوی او دَ هغوی حالات به سموی -

ذٰلِكَ بِاَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۭ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ ④

دا دے دَ پاره او شول چه چا انکار کړے وه هغوی دروغو پسے تلی وُو - او چا چه ایمان راوړے وه هغوی دَ خپل رب دَ طرف نه راتلونکی حق پسے تلی وُو الله دا شان دَ خلقو وړاندے دَ هغوی (اصل) حال بیانوی -

فَاِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَضَرْبَ الرِّقَابِ ۭ حَتّٰٓى اِذَآ اَثْخَنْتُمُوْهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ ۤ ۙ فَاِمَّا مَنًّۢا بَعْدُ وَاِمَّا فِدَاۗءً حَتّٰى تَضَعَ الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا ۚ ذٰلِكَ ړ وَلَوْ يَشَاۗءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ وَلٰكِنْ لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ۭ وَ

معانقة ١٢ عند المتقدمین

بیا (ریکار دی چه هر کله) تاسو دَ جنګ په میدان دَ کافرانو سره مخ شئ نو ستونه ئے پریکوئ تر دے چه هر کله تاسو دَ هغوی وینه توئ کړئ نو قیدے ورله کلکے او تړئ بیا دے نه پس یا خو احسان سره (هغوی پریږدئ) یا دَ جنګ تاوان سره ئے (پریږدئ) تر دے چه جنګ خپله وسله کیږدی (یعنی ختم شی) دا

الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ⑤

هرڅه دَ حالاتو سره شوی دی او کچرے الله غو ښتے نوخپله به ئے دَ هغوی نه بدله اخستے وے وَلے هغهٔ اوغوښتل چه تاسو کښے بعضے دَ بعضو په ذریعه اُوزمائی کوم خلق چه دَ الله په لاره کښے اووژلے شول الله به دَ هغوی عملونه کله هُم نهٔ تولوی۔

سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ⑥

هغه به هغوی ځا مخامراد ته رسوی او دَ هغوی حالات به سموی۔

وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ⑦

او هغوی به جنتونو ته بوزی کوم چه هغهٔ هغوی ته رومبئ نه ښود لی دی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ⑧

یه مومنانو ! کچرے تاسو به دَ الله مدد کوئ نو هغه به ستاسو مدد کوی او ستاسو قدمونه به ټینګوی۔

وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ⑨

او چا چه انکار کړے دے په هغوی افسوس دے او خدائے به دَ هغوی عملونه تولوی۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ⑩

ولے چه هغوی دَ الله نازل کړے (کلام) ناخوښه کړے دے بیا خدائے هُم دَ هغوی عملونه تو ئے کړل۔

أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ۖ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا ⑪

آیا هغوی په زمکه نهٔ دی ګرزیدلی چه کتلے ئے وے څوک هغوی نه رومبئ تیر شوی دی دَ هغوی انجام څه اوشو الله په هغوی عذاب نازل کړے وه او (دَ نن صبا) دَ کافرانو به هُم دَ هغوی په شان حال وی۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ ⑫ ع

دا (به دے دَ پاره وی) چه الله دَ مومنانو مددګار دے او دَ کافرانو هیڅوک مددګار نشته۔

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ⑬

الله به مومنان او دَ ایمان سره سم عمل کوونکی داسے باغونو ته بوزی چه دَ هغے لاندے به نهرونه بهیکی او چا چه انکار کړے دے هغوی به څه دَ دُنیا فائده اوچتوی او دا شان به خوری څنګه چه څاروی خوری

څکې او دوزخ به د هغوی ځائے وی۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ اَشَدُّ قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ
الَّتِيْٓ اَخْرَجَتْكَ ۚ اَهْلَكْنٰهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴿۱۳﴾

او ډیر کلی داسے وو چه ستا د دے کلی نه چا چه ته اوباسلے، زیات طاقتور وو بیا هُم (مونږ (سره د هغوی د زوره) هغوی هلاک کړی وُو او څوک د هغوی مددګار جوړ نشو۔

اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ
عَمَلِهٖ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ ﴿۱۴﴾

آیا هغوی چه د خپل رب نه په یو (مضبوط) دلیل قائم وی د هغوی په شان کیدے شی چه د چا بد عملونه هغوی ته ښائسته ورښکاره کړے شوی وی او چه خپلو غوښتنو پسے روان وی۔

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ۭ فِيْهَآ اَنْهٰرٌ
مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ
طَعْمُهٗ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ڬ وَاَنْهٰرٌ
مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۭ وَلَهُمْ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ
وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ۭ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ
وَسُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ اَمْعَآءَهُمْ ﴿۱۵﴾

متقیانو سره چه د کوم جنتونو وعده شوے ده هغو کښے به د اوبو داسے نهرونه وی چه د خرابیدو به نهٔ وی او داسے نهرونه به وی چه هغے کښے به داسے شودهٔ بهیګی چه د هغے خوند به کله نهٔ آوړی (یعنی هغه به هُم نهٔ خرابیګی) او د داسے شرابو نهرونه به وی چه څکونکو ته به خوندناک ګلی او د شاتو پاک او صفا نهرونه به هُم وی او هغوی ته به هغو جنتونو کښے د هرقسم میوے هُم ورکیدے شی او د خپل رب د طرف نه به بخښنه هُم وی (آیا دا جنتیان) د هغو خلقو په شان کیدے شی چه تر ډیره وخته اور کښے د اوسیدو ګرزولے شوی دی او چه په چا داسے ایشیدلے اوبه څکولے شی چه د هغوی قولمے به پریکوی۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ حَتّٰٓى اِذَا خَرَجُوْا مِنْ
عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا ۣ
اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا

او هغو کښے ځنے داسے هُم وی چه په ښکاره تا ته غوږ نیسی وے هر کله چه هغه تا نه لاړ شی نو هغه خلقو ته چا ته چه علم ورکړے شوے دے

اَهْوَآءَهُمْ ⑰

وائی۔ دهٔ (رسُول) اوس څه وئیلی وُو۔ هغه خلق داسے دی چه دَ چا په زړونو الله مُهر لګولے دے او هغوی خپلو غوښتنو پسے روان دی۔

وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ ⑱

او هغه خلق چه هدایت مومی الله هغوی په هدایت کښے زیاتوی او هغوی ته دَ هغوی دَ حال مناسب تقویٰ ورېخښی۔

فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ⑲

بیا هغوی بس دَ آخری فیصلے دَ وخت انتظار کیا دی کوی چه هغه هغوی له ناساپه راشی بیا نو دَ هغے نښے خوښکاره شوی دی او هرکله چه دَ هغے (اصل حقیقت په هغوی ته اوسی نو (او وایه) هغه وخت به هغوی ته څه تمیز فائده ورکوی؟

فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۗ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوٰىكُمْ ⑳ ع ۲

او پوهه شه چه دَ الله نه سوا هیڅوک دَ عبادت لائق نشته او ستا پخقله چه رستا مُنکر قام) کناهونه کړی دی هغوی دَ پاره خدائے نه معافی غواړه او دَ مومنانو سړو او دَ مومنانو ښځو پخقله هُم معافی غواړه چه الله دَ هغوی کمزورئ معاف کړی او الله تعالیٰ ستاسو اخوا دیخوا ګرزیدو او څړته دَ ایساریدو نه ښهٔ خبر دے۔

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ ۙ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۗ فَاَوْلٰى لَهُمْ ㉑

او مومنان وائی چه ولے ربه رهٔ) څه داسے سورة نهٔ نازلیګی (چه پکښے دَ جنګ حُکم وی) بیا هرکله چه داسے پوخ (راحکام لرُونکے) سورة نازلیګی او دے کښے دَ جنګ ذکر وی نو تهٔ هغه خلق چه دَ چا په زړونو کښے بیماری ده وینے چه هغوی ستا په طرف دَ داسے سړی په شان ګوری چه پرے دَ مرګ تیارهٔ (ربے هوشی) وی۔ بیا دَ هغوی دَ پاره دَ خدائے دَ طرف

نه هلاکت دے۔

طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ فَإِذَا عَزَمَ الْأَمْرُ فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴿۲۱﴾

دَ هغوی اصل طریقه دا پکار وه چه هغوی وئیلے چه مونږ ته دَ تادئ ضرورت نشته څمونږ کار خو منو دل دی (او خلقو ته) ښے خبرے اورول دی بیا هرکله چه خبره پخه وے (یعنی جنګ شرو وے) نو کچرے هغوی دَ الله په حضور کښے رښتونی وے (یعنی چه دَ اطاعت کومه وعده ئے کرے وه هغه ئے پوره کرے وے) نو دا به هغوی دَ پاره ښه وه۔

فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوْا أَرْحَامَكُمْ ﴿۲۲﴾

بیا آیا دا خبره نزدے نهٔ ده چه کچرے تاسو په شاشئ (نو بیا به هُم) زمکه کښے دَ فساد کولو موجب شئ او خپلوئ به پریکرئ۔

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمٰٓى أَبْصَارَهُمْ ﴿۲۳﴾

هُم دا هغه خلق دی په چاچه الله لعنت کرے دے او هغوی ئے کانړه کری دی او دَ هغوی دَ سترګو نړا ئے ختمه کرے ده۔

أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ أَمْ عَلٰى قُلُوْبٍ أَقْفَالُهَا ﴿۲۴﴾

آیا هغوی په قرآن غور نهٔ کوی آیا دَ هغوی زړونو ته داسے تالے دی چه دَ هغوئ زړونو پیدا کری دی۔

إِنَّ الَّذِيْنَ ارْتَدُّوْا عَلٰٓى أَدْبَارِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى ۙ الشَّيْطٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ ۭ وَأَمْلٰى لَهُمْ ﴿۲۵﴾

هغه خلق چه دَ هدایت په ښکاره کیدو روستو شول شیطان هغوی ته دَ هغوئ عملونه ښائسته کری دی او هغوی ته ئے (په دروغه) اُمیدونه ورکری دی۔

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ كَرِهُوْا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ سَنُطِيْعُكُمْ فِيْ بَعْضِ الْأَمْرِ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ﴿۲۶﴾

دا دے دَ پاره (شوی) دی چه هغوی هغه خلقو ته چه دَ خدا ئے تعلیم ته دَ ناخوښئ په نظر کوری کتیا دی وائی چه مونږ به بعضو خبرو کښے ستاسو منو او الله دَ هغوئ دَ رازداری نه خبر دے۔

فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ

بیا هغه وخت به څه حال وی هرکله به چه فرښتے

وَاَدْبَارَهُمْ ﴿۲۸﴾

دَ هغوی ساه کالے (خلی (او) دَ هغوی په مخونو او شاکانو به دُرے (کوړے) لګوی۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَآ اَسْخَطَ اللّٰهَ وَ كَرِهُوْا رِضْوَانَهٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ﴿۲۹﴾ ع ۳

دا به دے دَ پاره وی چه کومه خبره الله ناخوښه کړه هغوی هغے پسے روان شول او دَ خدائے دَ رضا (لیتون) ئے ناخوښه کړو بیا نو خدائے هُم دَ هغوی عملونه تویے کړل۔

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ ﴿۳۰﴾

آیا هغه خلق چه دَ چا په زړونو کښے بیماری ده خیال کوی چه الله به دَ هغوی دَ زړونو پټے کینے کله هُم نهٔ ښکاره کوی۔

وَلَوْ نَشَآءُ لَاَرَيْنٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ؕ وَ لَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۱﴾

او که چرے مونږ اوغواړو نو دَ هغوی وجود به په تا ښکاره کړو او ته به هغوئ دَ هغوی دَ مخونو او پیژنے (او اوس هُم) ته هغوی دَ هغوی دَ خبرو دَ ول نه پیژنے او الله ستاسو عملونو نه خبر دے۔

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَ الصّٰبِرِيْنَ ۙ وَنَبْلُوَاۡ اَخْبَارَكُمْ ﴿۳۲﴾

او مونږ به خامخا ستاسو آزمینت کوُو ترهغه وخته چه مونږ تاسو کښے دَ خدائے په لاره کښے جهاد کوُونکی او صبر کوُونکی معلوم کړو او مونږ به ستاسو دَ دننه دَ حالاتو خامخا آزمیښت کوُو۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ صَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ شَآقُّوا الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدٰى ۙ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْــًٔا ؕ وَ سَيُحْبِطُ اَعْمَالَهُمْ ﴿۳۳﴾

کوم خلق چه انکار کړے دے او دَ الله دَ لارے نه (خلق) منع کوی او رسُول سره دَ هدایت دَ ښکاره کیدو نه پس اختلاف کوی۔ دا خلق به الله ته هیڅ نقصان نهٔ رسوی بلکه هغه (الله) به دَ هغوی عملونه توئ کړی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَلَا تُبْطِلُوْۤا اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۴﴾

په ایماندارو! دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول منئ او خپل عملونه مهٔ تو یوئ۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ مَاتُوْا وَ هُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴿۳۵﴾

په تحقیق سره چا چه کفر کړے دے او دَ الله دَ لارے نه ئے خلق منع کړی دی بیا هغوی په دے حال کښے

مرهٔ هُم شول چه هغوی کافران نهٔ وُو نو الله به هغوی هيڅکله نهٔ معاف کوی۔

فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ ۳۵

بيا يَه مومنانو! سُست نشئ چه دَ هغے په نتيجه کښے دَ صلح په طرف بلنه ورکول شروکړی۔ آخر به هُم تاسو غالب يئ او الله تاسو سره دے او کله به هُم ستاسو په عملونو کښے کمئ نهٔ راولی۔

إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ۳۶

دا دَ دُنيا ژوند هسے لوبه لوبه او دَ غفلت سامان دے او کچرے تاسو ايمان راوړئ او تقویٰ اوکړئ نو الله به ستاسو اجر تاسو له درکړی او هغه ستاسو مالونه تاسو نه نهٔ غواړی۔

إِن يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ ۳۷

کچرے هغه ستاسو مالونه تاسو نه اوغواړی او (په دے) تاسو نه اصرار اوکړی نو تاسو دَ بُخل نه کار اخستے شئ او هغه به خامخا ستاسو کينے ستاسو دَ زړونو نه اوباسی۔

هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ وَمَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنتُمُ الْفُقَرَاءُ وَإِن تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُم ۳۸

واورئ! تاسو هغه خلق يئ چه درته دے دَ پاره بلنه درکيدے شی چه تاسو دَ الله په لاره کښے خرچ اوکړئ او تاسو کښے بعضے داسے دی چه بُخل نه کار اخلی او چه څوک هُم بُخل نه کار واخلی هغه هُم دَ خپل ځان په مقله دَ بُخل نه کار اخلی کنی نو الله بے نيازه دے او هُم تاسو محتاجه يئ۔ او کچرے تاسو روستو شئ نو هغه به ستاسو په ځائے يو بل قام راولی او هغوی به ستاسو په شان رُستی کوونکی) نهٔ دی۔

## سُوْرَةُ الْفَتْحِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ ثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعَةُ رُكُوْعَاتٍ

سورۃ فتح - دا سورۃ مدنی دے او بسم الله سره دَ دے دیرش ۳۰ آیتونه او څلور ۴ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا ②

مونږ تاله یوه ښکاره ښکاره فتح درکړے ده۔

لِّيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْۢبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ③

چه دَ هغے نتیجه به دا وی چه الله به ستا ټول هغه ګناهونه هم چه اول شوی دی پرده واچوی او چه تراوسه شوی نهٔ دی روبے دے نه پس ئے دَ کیدو امکان دے) په هغو به هم پرده واچوی او په تا به خپل نعمت پوره کړی او تا ته به سمه لار او ښائی۔

وَّيَنْصُرَكَ اللّٰهُ نَصْرًا عَزِيْزًا ④

او الله تعالیٰ به ستا په ډیر ښه شان مدد کوی۔

هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ ۭ وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ⑤

هُم هغه (ذات) دے چا چه دَ مومنانو په زړونو تسلی نازله کړه دَ پاره دَ دے چه کوم ایمان دَ هغوی رومبی نصیب وُه هغے سره نور ایمان هُم هغوئ ته حاصل شی او دَ الله په آسمانونو کښے هُم لښکرے دی او په زمکه هُم او الله ډیر علم لرونکے او دَ لوئے حکمت خاوند دے۔

لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ ۭ وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِيْمًا ⑥

دَ مومنانو ایمان زیاتول به دے دَ پاره وی چه هغه (الله) مومنان سړی او مومنانے ښځے داسے جنتونو ته بوزی چه دَ هغو لاندے به نهرونه بهیګی۔ هغوی به په هغو کښے تل تر تله اوسی او دے دَ پاره چه هغه (الله) دَ هغوی ګناهونه ختم کړی او دَ الله په نزد هُم دا لویه کامیابی ده۔

وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَ

او دَ پاره دَ دے چه منافق سړو او منافقو ښځو او

الْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ۭ عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۚ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ۭ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝٦

مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو له چه په الله بدګمانی کوونکی دی، عذاب ورکړی. دَ مصیبت چکر به هُم په هغوی راځی او الله په هغوی غضب نازل کړو او دَ خپله دره ئے هغوی لرے کړل او هغوی دَ پاره هغه جهنّم تیار کړے دے چه ډیر بد ځائے دے.

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝٧

او دَ آسمانونو او زمکے لښکرے هُم دَ الله دی او الله ډیر غالب (او) حکمت لرونکے دے.

اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۝٨

مونږ ته دَ خپلو صفاتو دَ پاره) ګواه (او دَ مومنانو دَ پاره) زیرے ورکوونکے او (دَ کافرانو دَ پاره) هوښیارونکے لیږلے ئے.

لِّتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُعَزِّرُوْهُ وَتُوَقِّرُوْهُ ۭ وَتُسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۝٩

دَ پاره دَ دے چه دَ دے په سوب تاسو په الله او دَ هغهٔ په رسُول ایمان راوړے او دَ هغهٔ مدد کوه او دَ هغه عزت کوه او سحر ماښام دَ هغه ثنا صفت بیانوه.

اِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ ۭ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ ۚ فَمَنْ نَّكَثَ فَاِنَّمَا يَنْكُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَوْفٰى بِمَا عٰهَدَ عَلَيْهُ اللّٰهَ فَسَيُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ۝١٠ ع

هغه خلق چه ستا بیعت کوی هغوی لس دَ الله بیعت کوی دَ الله لاس دَ هغوی په لاس دے بیا څوک چه دا لوظ ماتوی نو دَ دے دَ ماتولو بیتئ به هُم په هغه پریوزی او څوک به چه دا لوظ، کوم چه هغهٔ خدائے سره کړے ده پُوره کوی الله به هغهٔ له دَ دے ډیر لوئے اجر ورکوی.

سَيَقُوْلُ لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ شَغَلَتْنَآ اَمْوَالُنَا وَاَهْلُوْنَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۭ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا ۭ بَلْ

په اعرابو کښے (یعنی دَ کلو بانډو او سیدُونکو) چه څوک روستو پریخوے شوی وُو. به خامخا وائی چه څمونږ مالُونه او څمونږ خپل ځائے مونږ مشغول اوساتلو ( دے دَ پاره مونږ په دے سفر کښ نهٔ پرو) بیا تهٔ څمونږ دَ پاره استغفار اوکړه هغوی په خپلو ژبو

كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۲﴾

هغه خبره کوی چه دَ هغوی په زړونو کښے نشته ـ نهٔ اووایه چرے الله تاسو ته څه نقصان رَسول اوغواړی یا تاسو ته څه سود منه درکول اوغواړی نوڅوک دے چه دَ هغهٔ خلاف ستاسو څه هُم مدد کولے شی ؟ داسے هیڅکله نهٔ دهٔ بلکه الله ستاسو دَ عملونو نه خبردار دے۔

بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰٓى اَهْلِيْهِمْ اَبَدًا وَّ زُيِّنَ ذٰلِكَ فِىْ قُلُوْبِكُمْ وَ ظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۚۖ وَكُنْتُمْ قَوْمًاۢ بُوْرًا ﴿۱۳﴾

حقیقت دا دے چه تاسو گُمان کړے وهٔ چه رسُول او مومنان به کله هُم خپلے خپل خانے ته سلامت واپس نهٔ راځی او دا خبره ستاسو په نظر خائسته کړے شوے وه ( او تاسو په زړونو کښے ډیر خوشحاله وئ ) او تاسو ( دَ مومنانو په حقله او دَ خدائے په حقله مو ) بدگمانونه کول ( په حقیقت کښے مومنان نا ) بلکه تاسو خپله هلاکیدُونکو خلقو کښے شامل شوی وئ۔

وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَاِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا ﴿۱۴﴾

او څوک سړے چه په الله او دَ هغهٔ په رسُول ایمان نهٔ راوړی ( هغه دے یاد اوساتی چه ) مونږ کافرانو دَ پاره دَ غرغنډو عذاب ساتلے دے ـ

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۵﴾

او دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهت هُم دَ الله په قبضه کښے دے چاله چه غواړی معاف کوی ئے او چاله چه غواړی عذاب ورکوی او الله ډیر معاف کوُونکے ( او ) بیا بیا رحم کوُونکے دے ـ

سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ ۚ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ ۚ قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ ۚ فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ تَحْسُدُوْنَنَا ۚ بَلْ

هر کله چه به تاسو دَ غنیمت دَ مالونو دَ راغونډولو دَ پاره ځینو روسنو پاتے خلق به وائی چه مونږ له اجازت راکړه چه مونږ هُم تاپسے زُو هغوی به غواړی چه دَ الله فیصله بدله کړی ـ نهٔ اووایه تاسو هیڅکله مونږ پسے نشی راتلے ـ هُم دا ستاسو په حقله

كَانُوْا لَا يَفْقَهُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿١٥﴾

فیصله دا چه الله دے نه اکاهُو ورکړے دا۔ دَ دے
په اوریدو به هغوی وائی په اصل کښے تاسو مونږ سره
حسد کوئ ورے حقیقت دا دے چه هغوی هډو پوهه
نهٔ لری۔

قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ اِلٰى قَوْمٍ اُولِىْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ فَاِنْ تُطِيْعُوْا يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ اَجْرًا حَسَنًا ۚ وَاِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٦﴾

اعرابو کښے چه کوم خلق روستو پاتے شوی دیٔ نهٔ هغوئ
ته اووایه چه تاسو به خامخا دَ لو داسے قام سره جنګ
کولو دَ پاره رابللے شئ چه دَ جنګ په فنونو کښے ډیر
ماهر دے تاسو به هغوی سره تر هغے جنګ کوئ چه
هغوی مسلمانان شی۔ بیا کچرے تاسو رهغه وخت
دَ خدائے خبره ) او منئ نو تاسوله به الله ډیر ښه
اجر درکړی او کچرے تاسو رحُکم نه) مخ واړوئ څنګه
چه دے نه وړاندے مو رمخ اړولے) وُه نو الله
به تاسوله دردناک عذاب درکړی۔

لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ ۗ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٧﴾

نهٔ خو په چا ړوند سختی دا او نهٔ په ګډ شل سختی
دا او نهٔ په رنځور سختی دا رچه هغه سره دَ معذورئ
په جنګ کښے شامل شی ) او چه څوک دَ الله او دَ هغهٔ
ع ٢ دَ رسُول او منی هغه به هغهٔ له داسے جنتونو ته
ورننه باسی چه دَ هغے لاندے به نهرونه بهیګی او چه
څوک به رد څه حُکم نه مخ اړوی الله به هغهٔ ته
دردناک عذاب ورکوی۔

لَقَدْ رَضِىَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِىْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿١٨﴾

الله مومنانو نه هغه وخت ښه خوشحاله شو هر کله چه
هغوی دَ ونے لاندے بیعتونه کول او هغهٔ هغه
رایمان ) چه دَ هغوی زړونو کښے وه ښه اوپیژندو
بیائے دَ هغے په نتیجه کښے تسلی نازله کړه او هغوی
ته ئے یوه نزدے را تلُونکے فتح ورکړه۔

وَّمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّأْخُذُوْنَهَا ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ⑲

او دَ غنیمت ډیر مالونه ئے هُم ورکړل چه هغوله هغوی قبضه کښے راوستل او الله غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ ۚ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ⑳

الله تاسو سره دَ ډیرو غنیمتونو وعده کړے ده چه تاسو به ئے خپله قبضه کښے راوړئ او دا موجوده مالِ غنیمت ئے تاسو ته هغو وعدو کښے په تادئ درکړے دے او دَ خلقو لاسونه ئے تاسو نه منع کړل وُو دَ پاره دَ دے چه دا (واقعات) دَ مومنانو دَ پاره یو نښان جوړ شی او چه هغه (الله) تاسو ته په دے په سوب نیغه لار اوښائی۔

وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ㉑

او دَ دے نه سوا یوه بله هُم (فتح) ده چه تاسو ته تراوسه حاصله شوے نهٔ ده الله دَ هغے فیصله کړے ده او الله دَ خپلے ارادے په پوره کولو پوره قادر دے۔

وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ㉒

او کچرے کافران (دَ حدیبیه دَ صلحے په وخت) تاسو سره جنګیدے نو هغوی به هغه وخت په شا تختیدے او نهٔ به ئے څوک پناه ورکوونکے موندے او نهٔ ملاتړ۔

سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ㉓

دَ الله هغه سنت یاد کړئ چه پخوا راسے را روان دے او نهٔ به کله هُم دَ الله په مقرر شوے طریقه کښے څه تبدیلی اونهٔ مومے۔

وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْۢ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ㉔

او هغه هُم خدائے دے چا چه دَ هغوی لاسونه تاسو نه او ستاسو لاسونه دَ هغوی نه دَ مکے په وادئ کښے منع کړل پس له دے چه تاسو دَ حالاتو مطابق په هغوی غلبه موندلے وه او الله ستاسو عملونو ته کتل (او پوهیدو چه تاسو دَ جنګ نه نهٔ ویریږئ)

هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

هُم هغوی (ستاسو دښمنان وُو) چا چه کُفر اوکړو

وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ؕ وَلَوْلَا رِجَالٌ
مُّؤْمِنُوْنَ وَ نِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ
تَطَـُٔوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ
لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا
لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۲۵﴾

(او تاسو ئے دَ مسجدِ حرام (دَ زیارت) نه منع کړئ او دا شان قربانئ چه (دَ مکے دَ پاره) وقف شوے وے (دے خبرے نه ئے منع کړئ چه) هغه خپل دَ رسیدو ځائے ته اورسی ۔ او که چرے (مکه کښے) څه مومنان سړی داسے نهٔ وے او نهٔ مومنانے ښځے داسے وے څوک چه تاسو نهٔ پیژنئ او دا خطره نهٔ وے چه تاسو به هغوی په ناپوهئ پښبولاندے کړئ او دَ دے په نتیجه کښے تاسو ته کوته اوښیوے شی (نو مونږ به تاسو جنګ ته پریخودے وے ولے خدائے ایسار اوساتلئ) دَ پاره دَ دے چه الله چاله خوښوی هغه خپل رحمت کښے داخل کړی که چرے (دا مومنان) چرته اخوا دیخوا شوے وے نو هغوی (دَ مکے اوسیدونکو نه به) چه څوک کافران وُو مونږ به هغوی ته دردناک عذاب رسولے وے۔

اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ
الْجَاهِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَ
عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَ اَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْٓا
اَحَقَّ بِهَا وَ اَهْلَهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۲۶﴾ ع

هغه وخت یاد کړئ هر کله چه کافرانو په خپلو زړونو داسے دَ پرے جنبے روح اولوکلو چه دَ جاهلیت دَ پرے جنبے روح وُه په دے الله دَ خپل طرف نه نازلیدونکے سکینت دَ خپل رسول په زړهٔ او دَ مومنانو په زړونو نازل کړو او دَ تقوی په لاره ئے دَ هغوی قدمونه مضبوط کړل او هُم هغوی دَ دے زیات حق لرلو او دَ دے اهل وُو او الله دَ هر څیز علم لری

لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ ۚ لَتَدْخُلُنَّ
الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ۙ مُحَلِّقِيْنَ
رُءُوْسَكُمْ وَ مُقَصِّرِيْنَ ۙ لَا تَخَافُوْنَ ؕ فَعَلِمَ مَا لَمْ
تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾

الله خپل رسُول ته دَ هغه رُویا (خوب) مضمون په ښه شان په رښتیا وراوښودلو (چه په کښے دا بیان وُه چه تهٔ به مسجد حرام ته که چرے خدائے اوغوښتل امن سره ځامخا ورزے را او (خپل سر به دِ خریلے یا به دِ ولینته

وارہ کړی وی چا نهٔ ویرېږے بیانو الله ته هر هغه څه معلوم شول چه تاسو ته معلومه نهٔ وُو او هغه دے نه اخوا لوه بله فتح ایخو دے ده۔

هُوَ الَّذِیۡۤ اَرۡسَلَ رَسُوۡلَهٗ بِالۡهُدٰی وَدِیۡنِ الۡحَقِّ لِیُظۡهِرَهٗ عَلَی الدِّیۡنِ کُلِّهٖ ؕ وَکَفٰی بِاللّٰهِ شَهِیۡدًا ﴿٢٩﴾

هغه هُم خدائے دے چا چه خپل رسُول هدایت او دَ حقو دین سره لیږلے دے دَ پاره دَ دے چه په ټولو دینونو ئے غالب کړی او هُم الله کافی گواه دے۔

مُحَمَّدٌ رَّسُوۡلُ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِیۡنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَی الۡکُفَّارِ رُحَمَآءُ بَیۡنَهُمۡ تَرٰىهُمۡ رُکَّعًا سُجَّدًا یَّبۡتَغُوۡنَ فَضۡلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضۡوَانًا ۫ سِیۡمَاهُمۡ فِیۡ وُجُوۡهِهِمۡ مِّنۡ اَثَرِ السُّجُوۡدِ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُهُمۡ فِی التَّوۡرٰىةِ ۚۖۛ وَمَثَلُهُمۡ فِی الۡاِنۡجِیۡلِ ۚ۫ۛ کَزَرۡعٍ اَخۡرَجَ شَطۡـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسۡتَغۡلَظَ فَاسۡتَوٰی عَلٰی سُوۡقِهٖ یُعۡجِبُ الزُّرَّاعَ لِیَغِیۡظَ بِهِمُ الۡکُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنۡهُمۡ مَّغۡفِرَةً وَّاَجۡرًا عَظِیۡمًا ﴿٣﴾

معانقه ١٥ عند المتأخرین

ع ٤ ١٢

محمّد دَ الله رسُول دے او کوم خلق چه هغه سره دی هغوی دَ کافرانو خلاف ډیر جوش لری دوی خپلو کښے یو بل سره نرمی کوُونکی دی هر کله به چه ته هغوی وینے هغوی به دَ شرک نه پاک او دَ الله منُونکی وینے هغوی دَ الله دَ فضل او رضا په لټون کښے وی دَ هغوی پیژنگلی دَ هغوی په مخونو دَ سجدو دَ نخونه کیږی دا دَ هغوی حالت په تورات کښے بیان شوے دے او په انجیل کښے دَ هغوی حالت داسے بیان دے چه هغوی به دَ بوټی په شان روی) چه هغے رومبئ خوخپل ټوک (شینکئ) راوخکو بیا هغه ئے (دَ آسمانی او دَ زمکے خوراک سره) مضبوط کړو او هغه شینکئ نور هُم مضبوط شو بیا هغه په خپلو جرړو ټینگ اودریدو ترهغے چه زمیندار خوش کړو۔ دَ دے نتیجه به دا راوزی چه کافران به دَ هغے په لید و سوزی۔ الله مومنانو او دَ ایمان سره سم عمل کوُونکو سره داوعده کړے ده چه هغوی له به بخښنه او لوئے اجر ورکیدے شی۔




سورۃ حجرات - دا سورۃ مدنی دے او بسم اللہ سرہ دَ دے نولس ۱۹ آیتونه او دوہ ۲ رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیابیا رحم کوُونکے دے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ②

یَه مومنانو! دَ الله او دَ هغهٔ دَ رُسول وړاندے په مشروتیٔ خبرے مهٔ کویٔ او دَ الله تقویٰ کویٔ - الله ډیر اوریدُونکے (او) علم لرُونکے دے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْۤا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ③

یَه مومنانو! دَ نبیؐ دَ آواز نه خپل آواز مهٔ اوچتویٔ او مهٔ په اوچت آواز دَ هغهٔ وړاندے داشان خبرے کویٔ لکه چه تاسو خپلو کښے دَ یو بل وړاندے په زوره خبرے کویٔ - هسے نه چه ستاسو عملونه تویٔ شی او تاسو ته هم معلومه نهٔ وی -

اِنَّ الَّذِيْنَ يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ④

هغه خلق چه خپل آوازونه دَ رسُولؐ وړاندے لاندے ساتی هُم هغه دی چه دَ چا دَ زړونو الله دَ تقویٰ دَ پاره په پوره شان جاج اخستے دے او هغوی دَ پاره بخښنه او لوئے اجر دے -

اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ⑤

هغه خلق چه دَ کوټو دَ دیوالونو په شا تا ته آوازونه کوی هغوی کښے ډیرئے احمق دی -

وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑥

کچرے هغوی دَ هغه وخت انتظار کولے چه تهٔ دَ هغوی په طرف بهر راوتے نو دا به هغوی دَ پاره ښه وه او الله ډیر بخښونکے (او) بیابیا رحم کوُونکے دے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌ ۢ بِنَبَاٍ

یَه مومنانو! کچرے تاسو له څوک فاسق څه اهم

فَتَبَيَّنُوْٓا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًاۢ بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوْا
عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْنَ ⑥

خبر راوړی نو دَ هغې تحقیق کوی هسې نه چه تاسو په
ناپوهئ کښې په یو قام حمله اوکړئ او بیا په خپلو کړو
پښیمانه شئ۔

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۭ لَوْ يُطِيْعُكُمْ فِيْ
كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ لَعَنِتُّمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ
الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ
وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ
هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ⑦

او پوهه شئ چه دے وخت دَ الله رسول تاسو کښې
موجود دے کچرے په ډیرو خبرو کښې هغه ستاسو
رضا اوکړی نو تاسو به تکلیف کښې پریوزئ ولے الله
په تاسو ایمان خوږ کړے دے او ستاسو په زړونو
کښې ئے داخالُسته کړے دے او ستاسو په خیال ئے
کفر او دَ اطاعت نه بهر وتل او حُکم نهٔ منل ناخوښه
کړی دی۔ (کوم خلق چه دَ دے آیت مصداق دی)
هُم هغه خلق په سمه لار دی۔

فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ۭ وَاللّٰهُ
عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ⑧

(داخولس) دَ الله فضل او نعمت سره ده او الله بنهٔ
علم لرُونکے (او) دَ حکمت خاوند دے۔

وَاِنْ طَاۗىِٕفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا
بَيْنَهُمَا ۚ فَاِنْۢ بَغَتْ اِحْدٰىهُمَا عَلَى الْاُخْرٰى فَقَاتِلُوا
الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى تَفِيْۗءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَاۗءَتْ
فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَاَقْسِطُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ
يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ⑨

او کچرے دَ مومنانو دوهٔ ټولی خپلو کښې په جنګ شی
نو هغوی دواړو کښې روغه کوئ بیا کچرے دَ دوی
نه یو هغوی کښې یو په بل حمله اوکړی نو تاسو
ټول په یو ځائے دَ هغه حمله کوُونکی خلاف جنګ
کوئ تر هغې پورے چه هغوی دَ الله دَ حُکم په طرف
والپس راشی۔ بیا کچرے هغوی دَ الله دَ حُکم په طرف
والپس راشی نو په انصاف هغوئ (دواړو ډلو) کښې
روغه اوکړئ او انصاف تر نظره اوساتئ الله انصاف
کوُونکی خوښوی۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ
وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ⑩ ع

دَ مومنانو خپلوی خپلو کښې سره دَ رونړو ده بیا نو تاسو
دَ خپلو دوُو رونړو تر منځه چه خپلو کښې په جنګ
وی روغه کوئ او دَ الله تقویٰ کوئ دَ پاره دَ دے

چه په تاسو رحم اوشي۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰۤى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰۤى اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ ۚ وَلَا تَلْمِزُوْۤا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ ؕ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿١١﴾

يه مومنانو! هيڅ يو قام دِ بل يو قام پورے دَ هغهٔ دَ سپک کنړلو په سوب خندا نهٔ کوی۔ ممکنه ده چه هغوی نه ښهٔ وی او نهٔ (دِ دَ يو قام) ښځے دَ بل (قام) ښځو پورے په سوب دَ هغوی دَ سپکو کنړلو خندا کوی ممکنه ده چه هغوی (دَ بل قام يا دَ حالاتو ښځے) هغوی نه ښے وی او مهٔ تاسو يو بل ته پيغور کوئ او مهٔ يو بل ته نا خوښه نومونه اخلئ وے چه دَ ايمان نه پس دَ اطاعت نه وتل دَ ډير بد نوم جوګه ګرزوی (يعنی فاسق) او څوک هُم چه توبه اونکړی هغه به ظالم وی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ ۫ اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ؕ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢﴾

يه دَ ايمان خاوندانو! دَ ډيرو ګمانونو نه ځان ساتئ وے چه بعضے ګمانونه ګناه کښے رازی (او رڅا پسے ګوتے مهٔ وهئ) او په تاسو کښے بعضے دَ بعضو غيبت مهٔ کوئ او تاسو کښے به څوک دَ خپل مړ رور غوښه خوړل خوښوی (کچرے تاسو پورے دا خبره اوتړلے شی نو) تاسو به دا نهٔ خوښوئ او دَ الله تقوىٰ کوئ الله ډير توبه قبلوونکے (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا ؕ اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿١٣﴾

يه خلقو! مونږ تاسو دَ يو سړی او ښځے نه پيدا کړی يئ او تاسو مو ډيرو ډلو او قبيلو کښے ويشلی يئ۔ دَ پاره دَ دے چه تاسو يو بل اوپيژنئ۔ دَ الله په نزد تاسو کښے دَ ټولو نه عزت مند هُم هغه دے چه دَ ټولو نه زيات نيک دے په تحقيق سره الله ډير علم لرونکے (او) ډير خبردار دے۔

قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ؕ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْۤا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ؕ وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾

(اعراب (کلي وال) وائي چه مونږ ايمان راوړو ته ورته ووايه چه تاسو په حقيقت کښې ايمان نهٔ دے راوړے ولے تاسو دا وائي چه مونږ په ښکاره حُکم منو دل قبول کړي دي ولے رجه يه کلي والو!) لا پورے ايمان ستاسو زړونو کښې په حقيقت کښې داخل شوے نهٔ دے او يه مومنانو! کچرے تاسو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول په رښتيا اطاعت اوکړئ نو هغه به ستاسو عملونو کښې هيڅ يو عمل هُم نهٔ نوږوی۔ الله دېر بخښونکے (او) بيا بيا رحم کوُونکے دے۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ﴿۱۵﴾

مومنان هُم هغه وی چه په الله او دَ هغه په رُسول ايمان راوړی بيا شک کښې نهٔ اخته کيږی او دَ خپلو مالونو او دَ خپلو ځانونو له کبله دَ الله په لاره کښې جهاد کوی۔ هُم داخلق رښتونی دی۔

قُلْ اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۶﴾

ته او وايه آيا تاسو الله ته خپل دين ښيائی او الله خو هغے نه هُم خبر دے چه په آسمانونو کښې دی او په زمکه کښې دی او الله ز دَ دے نه سوا هُم) دَ هر يو څيز نه خبر دے۔

يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ؕ قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَيَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۷﴾

دوئی (اعراب) دَ خپل اسلام راوړو په تا احسان کوی ته او وايه دَ خپل اسلام راوړو په ما احسان مهٔ کوئ حقيقت دا دے چه الله دَ ايمان په طرف تاسو ته دَ هدايت ورکولو احسان په تاسو لری۔ کچرے تاسو (دے دعوٰی کښې) رښتونی يئ (چه ايمان مو راوړے دے نو دا حقيقت قبول کړئ)۔

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾ ع

الله دَ آسمانونو دَ غيب هُم علم لری او دَ زمکے هُم او الله ستاسو عملونو ته په ښهٔ شان کتلے دے کوری۔




سورة قٓ ـ دا سورة مکي دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ څلویښت [۴۶] آیتونه او درے رکوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۱

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۝۲

قادر خدائے دَ دے سورة راکوونکے دے مونږ ته دا او چت شان لرونکے قرآن دَ دے سورة په صداقت دَ شهادت په طور وړاندے کوو۔

بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ۝۳

وے دا خلق حیران دی چه دوئ له هُم دوئ نه یرونکے (او) هوښیاروونکے یو سړے راغلے دے او کافران وائی دا څه عجیبه غوندے ښکاری۔

ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۝۴

آیا چه مونږ کله مړهٔ شو او خاورے شُو (نو بیا به په دوئم ځل راژوندی شو) دا واپس کیدل خو (دَ عقل نه) لرے دی۔

قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ ۝۵

مونږ ته ښهٔ معلومه دی هغه هُم چه زمکه ئے دوئ کښے کموی او (هغه هُم چه ئے زیاتوی) او مونږ سره داسے کتاب دے چه هر څیز محفوظ ساتی۔

بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝۶

خبره دا ده چه دے خلقو دَ حقو انکار او کړو هر کله چه هغه هغوی له راغے۔ دے دَ پاره هغوی په یو داسے خیال کښے پراتهٔ دی چه گډوډ دے (یعنی رښتیا او دروغ دَ هغوی په خیال کښے راټول شوی دی)۔

اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنٰهَا وَزَيَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ۝۷

آیا هغوی دَ ځان دَ پاسه آسمان نهٔ دے لیدے چه مونږ هغه څنگه جوړ کړے دے او هغه موښائسته

کړے دے او هغے کښے څهٔ قسم چاوُد نشته۔

وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۸

او زمکه موغوړولے ده او دے کښے موغرونه جوړکړی دی۔ ورسره مونږ دے کښے هر قسم ښائسته جوړے سازے کړی دی۔

تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۹

څومونږ طرف ته هرلوتیتیدُونکی بنده ؤ دَپاره دے خبروکښے بصیرت او نصیحت دے۔

وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الْحَصِيْدِ ۱۰

او مونږ وریځے نه دَ برکت اوبهٔ راکوزے کړے دی بیا دے سره مونږ باغونه پیدا کوُو او دَهغه فصل (پټئ) دانے هُم چه ریبلے شی۔

وَالنَّخْلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ ۱۱

او دَ کجهورے اوږدے اوږدے ونے هُم پیدا کوُو) چه پکښے دَ میوو وږی لګی چه ښهٔ په یو بل ختلی وی۔

رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۙ وَاَحْيَيْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا ۭ كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ ۱۲

مونږ بندیانو ته رزق ورکولو دَپاره (دا سے کړی دی) او مونږ دے (اوبو) سره مړه زمکه راژوندئ کوُو۔ دا شان به دَ مرګ نه پس راوتل هُم وی۔

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُوْدُ ۱۳

دَ دوئ نه آګاهو دَ نوحؑ قام او دَ کوئ خلقو او ثمود۔

وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ۱۴

او عاد او فرعون او دَ لوطؑ رونړو۔

وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۭ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ۱۵

او دَ ځنګل او سیدُونکو او دَ تبع قام (یعنی دَ یمن خلقو) څومونږ دَ رسُولانو انکار کړے وه۔ آخر هُم څومونږ دَ عذاب وعده پوره شوه۔

اَفَعَيِيْنَا بِالْخَلْقِ الْاَوَّلِ ۭ بَلْ هُمْ فِيْ لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۱۶ ع (۱ / ۱۶ / ۱۵)

آیا مونږ دَ ړومبنی پیدا اوښت نه ستړی شوی یُو؟ (نا) ولے حقیقت دا دے چه هغوی په دوئم ځل دَ پیدا اوښت پمقله په شک کښے پراته دی۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهٖ نَفْسُهٗ ښ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ ۱۷

او مونږ انسان پیدا کړے دے او چه څه وسوسے دَ هغهٔ نفس پیدا کوی دے نه ښهٔ خبر یُو او مونږ

دہ (یعنی انسان) تہ دَ شارگ نہ ھُم زیات نزدے یو۔

إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴿١٨﴾

ھرکلہ چہ نیسی او کس طرف تہ ناست دوہ گواھان دَ دہٗ ټول حرکتونہ محفوظہ وی۔

مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ﴿١٩﴾

او انسان ھیڅ یوہ خبرہ نہٗ کوی چہ ھغہٗ سرہ دَ ھغہٗ څوک نگران یا محافظ نہٗ وی۔

وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ ﴿٢٠﴾

او دَ مرگ بے ھوشی بہ خامخا رازی او ھغہ وخت بہ مونږ دہٗ (یعنی غافل انسان) تہ وایُو چہ دا ھغہ حال دے چہ تا ترے ځان ساتل غوښتل۔

وَنُفِخَ فِي الصُّورِ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيدِ ﴿٢١﴾

او پہ شپیلئ کښے بہ پُوک وھلے شی، دا دَ عذاب دَ وعدے ورځ دہ۔

وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَائِقٌ وَشَهِيدٌ ﴿٢٢﴾

او ھر نفس بہ (دا سے حال کښے) رازی چہ ھغہٗ سرہ بہ یو شړونکے ھُم وی او یو گواہ ھُم۔

لَّقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ ﴿٢٣﴾

(او مونږ بہ وایُو) تہٗ دے (ورځ) نہ غفلت کښے پروت وے۔ بیا نو آخر مونږ ستا پردہ اوچتہ کړہ او نن ورځ ستا نظر ډیر تیز دے (او تہٗ ھر څہٗ لگیا ئے وینے)۔

وَقَالَ قَرِينُهُ هَٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ ﴿٢٤﴾

او دَ ھغہٗ ملگرے بہ وائی لږہ دا ھُم اوگورئ چہ ما سرہ دہ (یعنی دَ ھغہٗ اعمال نامہ)۔

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٢٥﴾
مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴿٢٦﴾

بیا بہ مونږ ھغو دواړو (یعنی شړونکی او گواہ) تہ وایو ھر انکار کوُونکی دَ حقو دښمن، دَ نیکئ نہ منع کوُونکی دَ حد نہ وتوُنکے او شک کوُونکی لہ تاسو دواړہ دوزخ کښے واچوئ۔

الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ ﴿٢٧﴾

چا چہ اللہ سرہ نور دَ عبادت لائق جوړ ولو بیا نو تاسو نن ھغہ سخت عذاب کښے واچوئ۔

قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ وَلَٰكِن كَانَ فِي

او دَ ھغہٗ ملگرے بہ وائی یہ حمونږہ ربّہ! ما پہ ھغہٗ

ضَلٰلٍۭ بَعِيْدٍ ۝۲۸

نافرمانی نهٔ وه کړے بلکه هغه خپله ډیره زیاته ګمراهئ کښے اخته وه۔

قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَیَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَیْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ۝۲۹

دَ دے په اوریدو به (خدائے) اوفرمائی چه ما خوا کښے جنګ مهٔ کوئ او یاد ساتئ چه ما تاسو ته اګاهو نه دَ عذاب خبر استولے دے۔

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَیَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۝۳۰ ع

او ماسره هیڅ لوړ خبره په بل شان نشی پیش کیدے او نهٔ زهٔ په خپلو بندیانو کښے په چا ظلم کوونکے یم۔

يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَاْتِ وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ۝۳۱

هغه ورځ به مونږ جهنم ته وایو آیا ته ډک شوے؟ او هغه به وائی چه آیا څهٔ نور هم شته۔

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ۝۳۲

او هغه ورځ به جنت نیکانو ته داسے را نزدے کړے شی چه هغه به هغوی محسوسوی۔

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ ۝۳۳

او او به ویلے شی چه تاسو کښے هر تهیتهدُونکی او دَ شرلیعت حفاظت کوُونکی سره دَ دے انعام وعده شوے وه۔

مَنْ خَشِیَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبِ ۝۳۴

(یعنی هغهٔ سره) څوک چه دَ رحمٰن (خدائے) نه به پټه ویریدو او تهیتهدُونکی زړهٔ سره هغهٔ ته راغلے وه۔

اِدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ۝۳۵

(مونږ به وایُو چه) تاسو ټول په سلامتئ جنت کښے داخل شئ۔ دا هغه دَ برکت ورځ ده چه کله به نهٔ ختمیګی۔

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ۝۳۶

هغوی به چه څه هغے کښے غواړی ټول به هغوی ته حاصلیګی او مونږ سره دے نه هُم زیات هغوی ته دَورکولو دَپاره شته دے۔

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِی الْبِلَادِ هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ۝۳۷

او مونږ هغوی نه اګاهو ډیر قامونه هلاک کړی دی هغوی دَ دے نه زیات دَ نیوکے طاقت لرلو، وے (هر کله چه عذاب راغے نو) هغوی دَ ملک په هرګُټ کښے حفاظت دَپاره سُرنګونه اوغوړول۔ وے (ښکاره ده چه) دَخدائے

دَ عذاب نه کوم ځائے بچکیدے شی۔

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ ﴿٣٨﴾

دے کښې هر سړي دَ پاره چه څوک سوچ کوونکے زړه لري یا دَ اوریدو دَ پاره غوږ نیسی او غور هُم کوی نصیحت دے۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ۖ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴿٣٩﴾

او مونږ په آسمانونو او زمکه او چه څه دَ هغوی ترمنځه دی هغه ټول شپږو وختونو کښې پیدا کړل او مونږه هیڅکله نهٔ ستړی کیږو۔

فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ۚ ﴿٤٠﴾
وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ ﴿٤١﴾

بیا چه څه هغوی وائی په دے صبر کوه او دَ نمر دَ ختونه رومبئ او دَ ډوبیدونه رومبئ دَ خپل رب ثنا صفت کوه۔ او دَ شپے هُم دَ هغهٔ تسبیح کوه او دَ هر لو عبادت په آخر کښې هُم (دا سے کوه)۔

وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٤٢﴾

او (اے نبی) واوره چه یوه ورځ به نارہ کوونکے دَ نزدے ځائے نه نارے کړی۔

يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ﴿٤٣﴾
إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿٤٤﴾

کومه ورځ به چه ټول خلق دَ لوړ لوړه کیدونکی عذاب آواز واوری۔ دا ورځ به دَ ژوندی راپاسیدو ورځ وی۔ هُم مونږه ژوندی کوُو او وژنو هُم او خمونږ په طرف واپس راتلل دی۔

يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ۚ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿٤٥﴾

هغه ورځ چه زمکه به دَ هغوی دَ شرارتونو له کبله اوشلیگی (هغه یاد کړه او) هغوی به دے نه په تادئ تادئ اوزی۔ دا دَ مړو ژوندی کول مونږ ته آسانه دہ۔

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ ۖ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ ۖ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴿٤٦﴾ ع

مونږ دَ هغوی دَ خبرونه ښهٔ خبریُو۔ او تهٔ په هغوی دَ لوجابر (بادشاه) په طور مقرر شوے نهٔ ئے بیا نو تهٔ قرآن سره بس هغهٔ ته نصیحت کوه چه ځما دَ عذاب دَ پیش خبرونه ویریګی۔




سورة الذاريات - دا سورة مكي دے او لبسم الله سره د دے يو شپيته آيتونه او درے ركوع دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۱
(شروع كوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ۲
مونږ هغه (هوا گانے) د شهادت په طور وړاندے كوو چه (وريځے) شړى را شړى۔

فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ۳
بيا (د باران) پيټے اوچتوى۔

فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ۴
بيا په روزى۔

فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ۵
او آخر څه مونږ حكم (يعنى باران په زمكه) ويشى

اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ ۶
تاسو سره چه كومه وعده كيږى هغه به خامخا پوره كيږى۔

وَّاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ۷
او جزا سزا به خامخا وى۔

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ۸
د دے په ثبوت كښے مونږ هغه آسمان وړاندے كوو چه پكښے د ستورو لارے دى۔

اِنَّكُمْ لَفِيْ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۹
تاسو ټول يو اختلافى خبره كښے آخته يئ۔

يُّؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ اُفِكَ ۱۰
چه د هغے له كبله هم هغه سړے د حقونه اړولے شى د چا چه د حقونه د اړولو حكم كيږى۔

قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ۱۱
بے توكه خبرے كوونكى هلاك شول۔

الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ غَمْرَةٍ سَاهُوْنَ ۱۲
چه د گمراهئ په كندو كښے پراته حق هيروى۔

يَسْـَٔلُوْنَ اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ ۱۳
هغوى تپوس كوى چه د جزا سزا وخت به كله راځى۔

يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُوْنَ ۱۴
(ته او وايه) هغه وخت (به راځى) هركله چه به هغوى د اور په عذاب كښے آخته كړے شى۔

ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ ؕ هٰذَا الَّذِیْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۱۴﴾

(او به ورته ویلې شي چه) خپل عذاب اوڅکئ دا هُم هغه (عذاب دے) چه تاسو به په تادئ غوښتو۔

اِنَّ الْمُتَّقِیْنَ فِیْ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوْنٍ ﴿۱۵﴾

نیکان به باغونو او چینو کښے اوسی۔

اٰخِذِیْنَ مَاۤ اٰتٰىهُمْ رَبُّهُمْ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِیْنَ ﴿۱۶﴾

(او) دَ هغوی رب به چه څه هغوی ته ورکوی هغه به آخلی هغوی دے نه آګاهُو په پوره ډول ګُکمونه سرته رسُونکی وُو۔

كَانُوْا قَلِیْلًا مِّنَ الَّیْلِ مَا یَهْجَعُوْنَ ﴿۱۷﴾

دَ شپو به لږ اوده کیدل۔

وَ بِالْاَسْحَارِ هُمْ یَسْتَغْفِرُوْنَ ﴿۱۸﴾

او دَ سحر په وخت به هغوی استغفار کولو۔

وَ فِیْۤ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآىِٕلِ وَ الْمَحْرُوْمِ ﴿۱۹﴾

او دَ هغوی په مالونو کښے دَ غوښتُونکو هُم حق وه — او چه چا به نشو غوښتلے دَ هغوی به هُم (حق وه)۔

وَ فِی الْاَرْضِ اٰیٰتٌ لِّلْمُوْقِنِیْنَ ﴿۲۰﴾

او په زمکه کښے دَ باور کوُونکو دَ پاره ډیر نښانات دی۔

وَ فِیْۤ اَنْفُسِكُمْ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۲۱﴾

او ستاسو خپلو ځانونو کښے هُم، آیا تاسو نهٔ وینئ؟

وَ فِی السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَ مَا تُوْعَدُوْنَ ﴿۲۲﴾

او په آسمان کښے ستاسو رزق هُم دے او چه رزدے نه سوا) دَ څهٔ وعده کیږی هغه هُم (دے)۔

فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَاۤ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿۲۳﴾

بیانو قسم په آسمانونو او دَ زمکے په رب (چه هرکله دا خبر لوره شی نو معلومه به شی چه) دا (قرآن) دا شان یو حقیقت دے څنګه چه ستاسو خبرے کول۔

هَلْ اَتٰىكَ حَدِیْثُ ضَیْفِ اِبْرٰهِیْمَ الْمُكْرَمِیْنَ ﴿۲۴﴾

آیا تا ته دَ ابراهیمؑ دَ عزتمندو میلمنو خبر رسیدلے دے۔

اِذْ دَخَلُوْا عَلَیْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ؕ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿۲۵﴾

هرکله چه هغوی هغهٔ له (را) غلل نو هغوی اوویل (مونږ په تا) سلام (وایو) هغه اوویل زهٔ هُم وایم چه) تاسو دَ پاره (دَ خدائے دَ طرف نه) دِ تل عمری سلامتی وی (او په زړهٔ کښے اوویل چه) دا

خلق نا آشنا معلومیګی۔

فَرَاغَ اِلٰۤى اَهۡلِهٖ فَجَآءَ بِعِجۡلٍ سَمِيۡنٍۙ ۲۶

بیا هغه غلی غوندے دَ خپل کور خلقوته ورغلو اولیو سُور کړے سخیٔ ئے راوړو۔

فَقَرَّبَهٗۤ اِلَيۡهِمۡ قَالَ اَلَا تَاۡكُلُوۡنَ ۲۷

او هغه ئے دَ هغوی مخے ته کیخودو (بیا ئے) اووئیل، آیا تاسو څه نهٔ خورئ؟

فَاَوۡجَسَ مِنۡهُمۡ خِيۡفَةً ‌ؕ قَالُوۡا لَا تَخَفۡ‌ ؕ وَبَشَّرُوۡهُ بِغُلٰمٍ عَلِيۡمٍ ۲۸

او (زړهٔ کښے) هغوی نه تجه قدرے اووېریدو (بیا هغوی په دے پوهه شول) او وے وئیل مهٔ وېریګه او هغه له ئے دَ یو علم لرونکی ځوئے زیرئ ورکړو۔

فَاَقۡبَلَتِ امۡرَاَتُهٗ فِىۡ صَرَّةٍ فَصَكَّتۡ وَجۡهَهَا وَقَالَتۡ عَجُوۡزٌ عَقِيۡمٌ ۲۹

دے کښے دَ هغهٔ بی بی راوړاندے شوه چه دَ هغے په مخ دَ شرم نخښے وے۔ بیا هغے په زوره خپل لاسونه په مخ راواچول او وے وئیل زهٔ خو یوه شنډه بوډۍ یم۔

قَالُوۡا كَذٰلِكِ ۙ قَالَ رَبُّكِ‌ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الۡحَكِيۡمُ الۡعَلِيۡمُ ۳۰

(هغوی) اووئیل دا (بشتیا ده چه) همداسے سے وے ستا رب (هُم هغه) وئیلی دی (چه مونږ وئیلی دی) په تحقیق سره هغه دَ ډیرو حکمتونو خاوند (او) ډیر علم لرونکے دے۔

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۳۱﴾

(دَ دے پہ اوریدو ابراهیمؑ) اوویل اے رسولانو! ستاسو پہ غاړه څه لوے کار دے۔

قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾

هغوی اوویل مونږ دَ یو مجرم قام پہ طرف رالیږلی شوی یُو۔

لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ ﴿۳۳﴾

دَ پاره دَ دے چہ پہ هغوی دَ لمدے خټے نہ جوړ شوی کنکرے (بړلہ پسے) اووروُو۔

مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۴﴾

چہ پہ هغو ستا دَ رب دَ طرف نہ حد نہ وتونکو نہ سزا ورکولو دَ پاره نښان لګولے شوے دے۔

فَاَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيْهَا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۳۵﴾

او مونږ پہ دے کلی کښے چہ څومره مومنان وُو هغوی اوباسل۔

فَمَا وَجَدْنَا فِيْهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۳۶﴾

او مونږ پہ دے کلی کښے دَ خپل حُکم منونکو لس یو کور او موندلو۔

وَتَرَكْنَا فِيْهَآ اٰيَةً لِّلَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۳۷﴾

او مونږ پہ دے (کلی) کښے یو داسے نښان پریخودو چہ تل تر تلہ بہ دَ هغوی پکار رازی چہ دَ دردناک عذاب نہ بہ ویریدونکی وی۔

وَفِيْ مُوْسٰٓى اِذْ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰى فِرْعَوْنَ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾

او دَ موسیٰؑ پہ واقعہ کښے (دیر نښانات وُو) هر کلہ چہ مونږ هغه دَ فرعون پہ طرف یو ښکاره ښکاره دلیل سره اولیږلو۔

فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَقَالَ سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿۳۹﴾

او هغه (یعنی فرعون) خپلے بُت خانے نہ پہ شا لاړو او وے ویل (چہ موسیٰؑ) دیرے اثرناکے خبرے کوُونکے او مجنون دے۔

فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿۴۰﴾

پہ دے مونږ هغه او دَ هغهٔ لښکرے (پہ خپل قهر) اونیولے او هغوی ټول موسمند (کښے او غورزول او (تر ننه پورے) پہ هغهٔ ملامت کیږی۔

وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ

او دَ عاد پہ واقعہ کښے هُم (مونږ دیر نښانات پریخے

الْعَقِيْمَ ۝۴۱

دی هغه وخت ) هر کله چه مونږ په هغوی باندی سخته سیلئ راولیږلے وه۔

مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ اَتَتْ عَلَيْهِ اِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيْمِ ۝۴۲

هغه به چه په کوم څیز تیریده هغه به ئے زړباره کولو او هغه به ئے ) د وړستو هډوکو په شان کولو۔

وَ فِيْ ثَمُوْدَ اِذْ قِيْلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوْا حَتّٰى حِيْنٍ ۝۴۳

او ثمود کښے هُم رمونږ نښان پریخودو ) هر کله چه هغوی ته او وئیلے شو چه تر څه موده پورے فائده اوچتوئ۔

فَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ۝۴۴

او هغوی د خپل رب حُکم اونۀ منورو او هغوی باندی عذاب اونیول او هغوی غریدے سترگے باندی شول۔

فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِيَامٍ وَّمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ ۝۴۵

او نۀ خو د بچکیده د پاره اودریدے شول او نۀ هغوی د چا مدد حاصل کړے شو۔

وَ قَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝۴۶ ع ۲

او هغوی نه آګا هو د نوحؑ قام هُم رمونږ هلاک کړے وه ) هغه د هدایت نه وتونکے قام وه۔

وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ۝۴۷

او آسمانونه هُم مونږ ډیر صفتونه سره جوړ کړی دی او مونږ ډیر لوئے طاقت لرونکی یُو۔

وَ الْاَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ ۝۴۸

او زمکه مونږ د لوفرش په شان جوړه کړے ده او مونږه ډیر ښه فرش جوړونکی یُو۔

وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝۴۹

او هر یو څیز مونږ نر او ماده جوړ کړی دی د دے د پاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔

فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۵۰

بیا ( پکار دی چه ) تاسو د الله په طرف منډه کړئ زۀ د هغۀ د طرف نه تاسو ته په اوچت آواز هوښیارونکے راغلے یم۔

وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ؕ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۵۱

او تاسو الله سره هیڅ لره د عبادت لائق مۀ جوړوئ۔ زۀ د هغۀ د خوا نه ستاسو په طرف لوښکاره ښکاره هوښیارونکے یم۔

كَذٰلِكَ مَآ اَتَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿۵۲﴾

دا شان د دوئ نه آگاهو چه کوم رُسولان راتلل هغوی ته خلقو هُم دا وئیل چه هغوی اثرناکے خبرے جوړونکی یا مجنونان دی۔

اَتَوَاصَوْا بِهٖ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿۵۳﴾

آیا هغوی د دے (د خبرے د وئیلو) یو بل ته وصیت کړے وُه (هیڅکله نا) بلکه هغوی ټول سره سرکشان خلق دی (ځکه یو قسم ناپاک خیالات د هغوی په زړونو کښے راځی)۔

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴿۵۴﴾

بیا (اے نبی!) ته هغوی نه مخ واړوه او په تا به (د هغوی د کارونو له کبله) هیڅ ملامت نهٔ کیګی۔

وَّذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۵۵﴾

او وریادوه وے چه وریادول مومنانو ته فائده ورکوی۔

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾

او ما جنّات او انسان بس د خپل عبادت د پاره پیدا کړی دی۔

مَآ اُرِيْدُ مِنْهُمْ مِّنْ رِّزْقٍ وَّمَآ اُرِيْدُ اَنْ يُّطْعِمُوْنِ ﴿۵۷﴾

نهٔ زهٔ د هغوی نه څه رزق غواړم او نهٔ زهٔ د هغوی نه دا غواړم چه هغوی په ما اوخوروی۔

اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِيْنُ ﴿۵۸﴾

هُم الله په ټولو خوړونکے (دے او) ډیر زبردست طاقت لرونکے دے۔

فَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذَنُوْبًا مِّثْلَ ذَنُوْبِ اَصْحٰبِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿۵۹﴾

بیا چه چا ظلم کړے دے هغوی د پاره هُم هغه شان بدلے دی څنګه چه هغوی د ملګرو د پاره بدلے وے بیا پکار دی چه هغوی ما نه عذاب غوښتلو کښے تادئ اونکړی۔

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ يَّوْمِهِمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۶۰﴾ ع ۳

اوکوم خلقو چه کفر کړے دے هغوی د پاره هغه ورځ چه د هغے هغوی سره وعده کیږی هلاکت نازلیدونکے دے۔

# سُوْرَةُ الطُّوْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورة طُور۔ دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① — (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالطُّوْرِ ② — زهٔ طور دَ شهادت په طور پیش کوم۔

وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ③ — او (هغه) لیکلے شوے کتاب هُم۔

فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ④ — (چه) په پراخ نسکو کاغذونو (لیکلے شوے دے)۔

وَّالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ⑤ — او خانه کعبه چه په تل ترتله آباده وی۔

وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ⑥ — او هغه چت چه په تل ترتله اوچت وی۔

وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ⑦ — او جوش وهونکے سمندر۔

اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ⑧ — ستا دَ رب دَ طرف نه په عذاب خامخا نازلیګی۔

مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ⑨ — هغے له هیڅوک لرے کوونکے نشته۔

يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا ⑩ — کومه ورځ به چه ورېځے چپے وهی۔

وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ⑪ — او غرونه به په خپل پوره رفتار روان وی۔

فَوَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ⑫ — بیا هغه ورځ به په انکار کوونکو عذاب نازلیږی۔

الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ ⑬ — (یعنی په هغو خلقو) چه ناپاکئ له به ئے هوا ورکوله۔

يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ⑭ — کومه ورځ به چه هغوی تهول دَ جهنّم دَ اور په طرف په تهیلو (تهیلو) ور بوتلے شی۔

هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ⑮ — (او ورته به ویلے شی) هُم دا هغه اور دے چه تاسو به ئے انکار کولو۔

اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ⑯ — آیا دا هسے خالسته کړے خبره ده یا آیا تاسو په حقیقت کښے اوس هُم نهٔ وینئ۔

اِصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۚ — دکېږے دا لس یو خیال دے نو بے صرفے) دے

إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٦﴾

کښے داخل شئ او (کچرے) صبر اوکړئ یا اونکړئ تاسو دَ پاره برابره ده څه چه کیدل دی هغه به کیږی تاسو ته به لس ستاسو دَ عملونو سزا درکیږی۔

إِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّ نَعِيْمٍ ﴿١٧﴾

متقیان به جنتونو کښے او نعمتونو کښے وی۔

فٰكِهِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمْ رَبُّهُمْ ۚ وَوَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ﴿١٨﴾

(او) څه چه به دَ هغوی رب هغوی له ورکوی په هغے به خوشحاله وی او دَ هغوی رب به هغوی دَ دوزخ دَ عذاب نه ساتی۔

كُلُوْا وَ اشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾

(او وائی به چه) خورئ او څکئ (څه چه تاسو ته درکیدے شی) هغه به ستاسو دَ عملونو په سوب تاسو دَ پاره برکت ناک وی۔

مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى سُرُرٍ مَّصْفُوْفَةٍ ۚ وَ زَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ ﴿٢٠﴾

هغوی به هغه ورځ قطار په قطار غوړیدلی چپر کټونو باندے اړے لګولی ناست وی او مونږ به هغوی ته دَ غټو غټو او تورے سترګے لرونکے ښځے دَ جوړے په طور ورکوو۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۚ كُلُّ امْرِئٍۢ بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ ﴿٢١﴾

او کوم خلقو چه ایمان (راوړے دے او دَ هغوی اولاد هُم دَ ایمان په حقله هغوی پسے تللے دے مونږ به هغوی سره په اوچتو جنتونو کښے دَ هغوی اولاد هُم یوځائے کوو او دَ هغوی (دَ پلار نیکونو) عملونو کښے به هُم څه کمئ نه کوو۔ هر یو سړے دَ خپلو عملونو په بدل کښے تړلے دے۔

وَاَمْدَدْنٰهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَّلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٢٢﴾

او مونږ به هغوی ته دَ هغوی دَ خوښتنو سره سمے قسم قسم میوے او قسم قسم غوښے ورکوو۔

يَتَنَازَعُوْنَ فِيْهَا كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ ﴿٢٣﴾

او هغوی به هغے کښے دَ داسے پیالو په حقله جنګ کوی چه دَ هغے نتیجه به نهٔ بے کاره خبرے وی او نهٔ ګناه (کول وی)۔

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ ﴿۲۴﴾
او ځوانان نوكران به هر وخت دَ هغوی په خدمت كښے حاضروی ـ لكه چه هغوی په پردو كښے اَنغښتے ملغلرے دی ـ

وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴿۲۵﴾
او هغوی به يو بل ته مخامخ خپلو كښے سوال جواب كوی ـ

قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ﴿۲۶﴾
او وائی به چه مونږ خلق رومبیٔ خپلو خپلوانو كښے خپل انجام نه ويريدُو ـ

فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ ﴿۲۷﴾
ولے الله په مونږ احسان اوكړو او مونږ ئے دَ لُو دَعذاب نه اوساتلو ـ

إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ ﴿۲۸﴾
مونږ خو رومبیٔ نه هغه رخدائے) رابللو هغه ډير نيك سلوك كُوونكے (او) بے انتها مهربانه دے ـ

فَذَكِّرْ فَمَا أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ ﴿۲۹﴾
بيا رائے رسوله) ته (خلقوته) نصيحت كوه ځكه چه ته دَ خپل رب دَ احسان نه نهٔ خو كاهن ئے او نهٔ مجنون ـ

أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴿۳۰﴾
آيا هغوی دا وائی چه دا سړے شاعر دے (او) مونږ دَ زمانے دَ تباهئ هغهٔ دَپاره انتظار كوُو ـ

قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴿۳۱﴾
نهٔ او وايه ! انتظار كوئ ولے چه زهٔ هُم تاسو سره تكيا يم انتظار كوم ـ

أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ۚ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿۳۲﴾
آيا هغوی ته دَ هغوی عقلونه دا خبره ښائی يا هغه سركش قام دے ـ

أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ ۚ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿۳۳﴾
يا هغوی دا وائی چه هغه دَ خپله ځانه خبره جوړه كړے ده حقيقت دا دے چه هغوی (دَ وحی په نزول) ايمان هم وَنهٔ راوړی ـ

فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴿۳۴﴾
كچرے هغوی رښتونی دی نو دا (قسم بل كلام دِ راوړی ـ (دَپاره دَ دے چه دُنيا فيصله اوكړے شی چه

دوارہ یوشان کلام دے)۔

ک اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَیْرِ شَیْءٍ اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿۳۵﴾
آیا هغوی بے مطلبه پیدا کرے شوی دی یا هغوی خپله خپل خالقان دی؟

اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بَلْ لَّا یُوْقِنُوْنَ ﴿۳۶﴾
آیا هغوی آسمانونه او زمکه پیدا کړی دی؟ (نا) بلکه حقیقت دا دے چه دوی (د زمکے او آسمانونو په خالق) د سره هیڅ یقین نۀ لری۔

اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَیْطِرُوْنَ ﴿۳۷﴾
آیا هغوی سره ستا د رب خزانے دی؟ یا هغوی داروغه کان دی۔

اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ یَّسْتَمِعُوْنَ فِیْهِ فَلْیَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ﴿۳۸﴾
آیا هغوی سره پوړۍ ده چه په هغے ختو سره هغوی (د خدائے خبرے) آوری۔ بیا پکار دی چه د هغو (خبرو) اوریدونکے (محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان) څه ښکاره دلیل وړاندے کړی۔

اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ﴿۳۹﴾
آیا د خدائے د پاره خولونړه دی او ستاسو د پاره ځامن؟

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ﴿۴۰﴾
آیا تۀ د هغوی نه څه اجر غواړے؟ بیا هغوی خامخا پیستی لاندے کیږی؟

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَیْبُ فَهُمْ یَكْتُبُوْنَ ﴿۴۱﴾
آیا هغو ته د غیبو علم دے چه هغه هغوی لیکی؟

اَمْ یُرِیْدُوْنَ كَیْدًا فَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا هُمُ الْمَكِیْدُوْنَ ﴿۴۲﴾
آیا هغوی ستا خلاف څه تدبیر کول غواړی؟ بیا یاد ساتۀ چه هُم د دغو کافرانو خلاف به (خدائی) تدبیرونه کیږی۔

اَمْ لَهُمْ اِلٰهٌ غَیْرُ اللّٰهِ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا یُشْرِكُوْنَ ﴿۴۳﴾
آیا د الله نه سوا د هغوی بل څوک د عبادت لائق شته (یاد لری) د هغوی د شرک نه الله پاک دے۔

وَاِنْ یَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا یَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿۴۴﴾
او کچرے هغوی د وریځے څه برخه په هوا کښے یاس نه په وریدو اووینی نو وائی دا خو (هسے) لوړه کوړه وریځ ده۔

فَذَرْهُمْ حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿۴۵﴾

بيا ته هغوى (دَ هغوى په بے وقوفئ كښے) پريږده ترهغے پورے چه هغوى خپله هغه مقرره ورځ اووينى چه هغے كښے به (په هغوى عذاب نازليږى او) هغوى به دَ ويرے له كبله بے هوشه كړے شى۔

يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۶﴾

كومه ورځ به چه دَ هغوى تدبير هغوى ته هيڅ فائده نهٔ وركوى اونهٔ به دَ هغوى مدد كيدے شى۔

وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۷﴾

او ظالمانو خلقو ته به نور هُم عذابونه رسى ولے هغوى كښے ډيرځنے نهٔ پوهيږى۔

وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ﴿۴۸﴾

او تهٔ دَ خپل رب په حُكم قائم اوسه ولے چه تهٔ زمونږ دَ سترګو وړاندے (زمونږ په حفاظت كښے) يے او پكار دى چه هركله تهٔ عبادت دَ پاره (او دريږے نو زمونږ تعريف سره سره ثناء هُم كوه۔

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿۴۹﴾

ع او دا شان (هركله چه تهٔ) دَ شپے (د لا ړئے نو) دَ هغهٔ (يعنى خدائے) ثنا وايه او هركله چه ستورى په شاشى (يعنى شپه په ختميدو وى) بيا هُم۔




سورة نجم - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے درۍ شپیته ۶۳ آیتونه او درے ۳ رکوع دی -

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے - |
| وَالنَّجْمِ اِذَا هَوٰى ② | زۀ د ثریا ستورے هرکله چه به هغه په معنوی دول لاندے راشی - د دے خبرے د شهادت د پاره وړاندے کوم - |
| مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى ③ | چه ستا ملګري نۀ لاره هیره کړے ده او نۀ بےلارے شوے دے - |
| وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ④ | هغه د خپل نفس د غوښتنے سره سم کلام نۀ کوی - |
| اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ⑤ | بلکه هغه (یعنی د هغۀ دړاندے کړے کلام قرآن مجید) بس د خدائے د خوا نه نازلیدونکے وحی ده - |
| عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ⑥ | دۀ ته (دا کلام) د لوئے قوتونو خاوند (یعنی خدائے) ښودلے دے - |
| ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى ⑦ | چه د چا قوتونه بیا بیا ښکاره کیدونکی دی او چه دے وخت د خپلو طاقتونو د اظهار د پاره په خپل عرش مضبوط او دریدلے دے - |
| وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى ⑧ | او هر بالغ نظر لرونکی ته د آسمان په غاړه د هغۀ د ظهور علامتونه په نظر رازی - |
| ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ⑨ | او هغه (یعنی محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د بند یالو د دے اضطراب په لیدو او په هغوی د رحم کولو او خدائے سره لیدو د پاره) هغۀ ته نزدے شو او هغه (یعنی خدائے) هم د د محمد رسول الله |

صلی الله علیه وسلم د ملاقات په شوق ) پورته نه لاندے راغے۔

فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ ⑩
اوهغوی دواړه د دوو لوښاځے لیندود ونړ په شکل کښے بدل شول اوکیدهٔ کیدهٔ چه دے نه هُم زیات نزدے شول۔

فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ⑪
بیا هغهٔ خپل بندهٔ ته هغه وحی اوکړه چه د هغے هغهٔ فیصله کړے وه۔

مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ ⑫
( د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ) زړهٔ چه څه لیدلی وُو هغه ئے بیان کړل۔

أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ ⑬
آیا تاسو هغه سړی د دے نظارے ( ننداره ) په مقله بحث کوئ او چه هغه ( یعنی محمد رسول الله په آسمان ) لیدلے وه۔

وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ ⑭
حال دا چه هغه دا ( نظاره ) یو ځلے نهٔ وه لیدلے بلکه دوه ځلے ئے لیدلے ده۔ ( یعنی یو ځل هغه وخت هرکله چه هغوئ خدائے سره د نزدیکت کوشش کولو په دویم ځل هغه وخت هرکله چه خدائے د هغوی په طرف نزول اوکړو )۔

عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ ⑮
عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَىٰ ⑯
( یعنی ) د لیو دا سے بیرے سره چه په آخری مقام ده۔ هغے سره جنت الماوی دے۔

إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ⑰
او دا نظاره ئے لیدلے هُم هغه وخت وه چه بیره هغه څیز پټه کړے وه چه په دا سے وخت ئے پټوی ( یعنی الهی تجلی )۔

مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ ⑱
نهٔ خو د هغه سترګه کږه شوه اونهٔ وړاندے اووته۔

لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ ⑲
هغه وخت هغه د خپل رب لویو نښانو کښے یو لوئے نښان اولیده۔

أَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى ﴿٢٠﴾

ته هُم دَ لات او عزیٰ حال واوروه (آیا دَ هغوی هُم داشان دے؟)

وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرٰى ﴿٢١﴾

او دریم دَ منات هُم چه دَ هغونه سوا دے۔

أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنْثٰى ﴿٢٢﴾

آیا تاسو دَ پاره خو ځامن دی او دَ هغه دَ پاره لونړه؟

تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزٰى ﴿٢٣﴾

دا خو ډیر زیات ناقصه ویش دے۔

إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنْ رَبِّهِمُ الْهُدٰى ﴿٢٣﴾

دا خو څه نُومُونه دی چه تاسو او ستاسو پلار نیکونو ایښودی دی (کنې نو دے کښے خو حقیقت هیڅ هُم نشته) الله دَ دوئ (یعنې بتانو) دَ پاره هیڅ دلیل نهٔ دے رالیږلے هغوی پس یو وهم او دَ نفسانی خواهش پسے ځی او هغوی له دَ هغوی دَ رب دَ خوا نه هدایت راغلے دے (ولے بیا هُم نهٔ پوهیګی)۔

أَمْ لِلْإِنْسَانِ مَا تَمَنّٰى ﴿٢٤﴾

آیا چه انسان څه غواړی هغه ته حاصلیګی۔

فَلِلّٰهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولٰى ﴿٢٥﴾

ع بیا نو یاد دِ وی چه دَ آخرت او دَ دُنیا نعمتونه دَ الله په اختیار کښے دی۔

وَكَمْ مِنْ مَلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا إِلَّا مِنْ بَعْدِ أَنْ يَأْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَرْضٰى ﴿٢٦﴾

او په آسمان کښے ډیرے فرښتے دی چه دَ هغوی شفاعت (چا ته) څه فائده نهٔ رسوی سوا دَ دے چه الله دَ دا کولو دَ هغه سری په حقله اجازه ورکړی څوک چه هغه دَ خپلے مرضیٔ سره سم مومی او خوښوی۔

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ لَيُسَمُّونَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْأُنْثٰى ﴿٢٧﴾

کوم خلق چه په آخرت ایمان نهٔ راوړی هغوی دَ فرښتو نومونه دَ ښځو غوندے ږدی۔

وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴿٢٨﴾

او هغوی ته دَ دے په حقله هیڅ هُم علم نشته هغوی پس یو وهم کښے اخته دی او وهم دَ حق په مقابله کښے هیڅ هُم فائده نهٔ ورکوی۔

فَأَعْرِضْ عَنْ مَنْ تَوَلّٰى عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿٢٩﴾

او کوم سړے چه زمونږه دَ ذکر نه مخ اړوی او دَ دُنیا دَ ژوند نه سوا نور څه نهٔ غواړی ته هُم دَ هغهٔ

نهٔ مخ واړوه او هغهٔ پسے مهٔ ګرځه۔

ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۙ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ۝۳۰ ع

دا دَ دے خلقو دَ علم انتها ده۔ په تحقیق ستا رب هغه سړے ښهٔ پیژنی چه دَ هغهٔ دَ لارے نه بے لارے شی۔ او هغه هُم پیژنی چه نیغه لار غیلوی۔

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۙ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَسَاۗءُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى ۝۳۱ۚ

او په آسمانونو او په زمکه کښے چه څه دی ټول دَ الله په قبضه کښے دی دَ دے دا نتیجه وی چه چا بدی اوکړه هغه دَ هغوی دَ عمل سره سمه هغوی ته بدله ورکوی او چا چه نیکی اوکړه هغوی ته ښے بدلے ورکوی۔

اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰۗىِٕرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ ۭ اِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ۭ هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ اِذْ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ وَاِذْ اَنْتُمْ اَجِنَّةٌ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ فَلَا تُزَكُّوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى ۝۳۲ۧ ع

یعنی دا سے خلق چه دَ غټو غټو ګناهونو او دَ ښکاره بدونه ځان ساتی۔ وړے دا چه پوټنۍ غونډے ګناه ترے اوشی (بیا پښیمانه شی) ستا رب ډیر زیات بخښونکے دے هغه هغهٔ وخت نه تاسو پیژنی مرکله چه هغهٔ تاسو دَ زمکے نه پیدا کړئ اوکله چه تاسو دَ میانډو په خیټو کښے پټ وئ بیا خپل ځانونه پاک مهٔ ګرځوئ۔ الله متقیان ښهٔ پیژنی۔

اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى ۝۳۳ۙ

آیا تهٔ هغه سړے پیژنے چا چه (رښتا دَ وحی نه) مخ واړولو۔

وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى ۝۳۴

او (دَ خدائے په لاره کښے) لږ څه ورکړل او بیا ئے دَ بخل نه کار واخستو۔

اَعِنْدَهٗ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرٰى ۝۳۵

آیا هغهٔ سره دَ غیبو علم دے ؟ او هغه خپل انجام ګکیا دے وینی۔

اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ بِمَا فِيْ صُحُفِ مُوْسٰى ۝۳۶ۙ وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى ۝۳۷ۙ

آیا هغهٔ ته دَ موسیٰ او دَ وفادار ابراهیمؑ په کتابونو کښے چه څه دی دَ هغے علم نهٔ دے ورکړے شوے ؟

أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى ﴿۳۸﴾

(چه دا دے چه) هیڅ یو پیټئ اوچتوونکے ځیز د بل پیټئ نشی اوچتولے۔

وَأَنْ لَّيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعٰى ﴿۳۹﴾

او انسان ته هغه څه حاصلیږی چه څه له هغه کوشش کوی۔

وَأَنَّ سَعْيَهٗ سَوْفَ يُرٰى ﴿۴۰﴾

(ودسره په هغه صحیفو کښے لیکلی دی) هغه انسان به د خپل کوشش نتیجه خامخا وینی۔

ثُمَّ يُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْأَوْفٰى ﴿۴۱﴾

او هغه ته به پوره جزا رسی۔

وَأَنَّ إِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾

او دا هم چه (د تیروشوو او موجوده ټولو شیانو) آخری فیصله ستا د رب په لاس کښے ده۔

وَأَنَّهٗ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكٰى ﴿۴۳﴾

او دا چه هم هغه خندوی او هم هغه ژړوی

وَأَنَّهٗ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴿۴۴﴾

او هم هغه وژنی او هم هغه ژوندئ کوی۔

وَأَنَّهٗ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى ﴿۴۵﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ إِذَا تُمْنٰى ﴿۴۶﴾

او هم هغه د نطفے نه رهر کله چه هغه د مور په خیټه کښے غورزولے شی۔ د ټول ساه ځیزونه) د نر او ښځے په صورت کښے پیدا کړی دی۔

وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ الْأُخْرٰى ﴿۴۷﴾

او دا چه دوباره پیدا کول هم د هغهٔ په ذمه دی۔

وَأَنَّهٗ هُوَ أَغْنٰى وَأَقْنٰى ﴿۴۸﴾

او دا چه هم هغه غنی جوړوی او هم هغه غریب جوړوی۔

وَأَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰى ﴿۴۹﴾

او هم هغه د شعرا (ستوری) مالک دے۔

وَأَنَّهٗٓ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولٰى ﴿۵۰﴾

او هم هغه ټولو نه آګاهو د عاد قام هلاک کړے وه۔

وَثَمُوْدَاْ فَمَآ أَبْقٰى ﴿۵۱﴾

او د هغوی نه پس ثمود هم (چه د عاد د قام یوه برخه وُو) او (عذاب د هغوی چه پریښی وُو۔

وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغٰى ﴿۵۲﴾

او د هغه نه آګاهو د نوحؑ قام هم۔ هغوی ډیر ظلم کولو او هغوی ډیر سرکشان وُو۔

وَالْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوٰى ﴿۵۳﴾

اوپه سټ اړولی شوی کلی هُم هغهٔ دَ پاس نه لاندے کړی وُو۔

فَغَشّٰهَا مَا غَشّٰى ﴿۵۴﴾

بیا هغوی هغهٔ څیز پټ کړی وُوچه په داسے حالاتو کښے پټوی۔

فَبِأَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾

بیا به ته دَخپل رب په نعمتونو کښے په کوم کوم شک کوئے۔

هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُوْلٰى ﴿۵۶﴾

دا څمونږ رسُول هُم دَ ړومبنو رسُولانو په شان یو رسُول دے۔

أَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ﴿۵۷﴾

(دَ دے قام دَ فیصلے) وخت را نزدے شوے دے۔

لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿۵۸﴾

دَالله نه سوا هیڅوک هُم دا لنټی اخوا کولے۔

أَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ﴿۵۹﴾

آیا تاسو په دے حیرانیګئ؟

وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿۶۰﴾

او خاندئ او ژاړئ نا۔

وَأَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿۶۱﴾

او تاسو حیران ولاړیئ (هیڅوک په صحی فیصله کولو قادر نهٔ دے)۔

فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿۶۲﴾ السجدة

(بیا پاسئ) او دَ الله وړاندے سجده اوکړئ او دَ هغهٔ عبادت اوکړئ۔

---




سورة قمر- دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے شپږ پنځوس آیتونه او درے رکوع دی-

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکے دے-

اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ②

(د عرلو) د تباهئ وخت راغلے دے او سپوږمئ شلیدلے ده-

وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ③

او که چرے هغوی څه نشان اوګوری نو خامخا به پرده کوی او وائی به چه دا خو لس لویه دهوکه ده چه پخوا نه را روانه ده-

وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ وَكُلُّ اَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ ④

او هغوی انکار اوکړو او خپلو خواهشاتو پسے لاړل او د هر کار د پاره یو وخت مقرر وی-

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مِّنَ الْاَنْۢبَآءِ مَا فِيْهِ مُزْدَجَرٌ ⑤

او هغوی ته داسے حالات رسیدلی دی چه پکښے د ویروونکے سامان موجود وه-

حِكْمَةٌۢ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ⑥

ورسره د داسے د حکمت خبرے هم وے چه اثر کوونکے وے (ولے افسوس چه) ویرونکی هغوی ته څه فائده او نهٔ رسوله-

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ اِلٰى شَيْءٍ نُّكُرٍ ⑦

بیاتهٔ هغوی نه مخ واړوه او د هغه وخت انتظار کوه چه یو بلنه ورکوونکے د یو ناخوښه څیز (یعنی عذاب) په طرف هغوی اوغواړی-

خُشَّعًا اَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ كَاَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنْتَشِرٌ ⑧

د هغوی سترګے به ښکتے وی- هغوی به د قبرونو نه پاسی- داشان لکه چه ملخ نس پراګنده کړی دی-

مُّهْطِعِيْنَ اِلَى الدَّاعِ يَقُوْلُ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا

د بلنے ورکوونکی په طرف په منډه منډه زی او کافر

يَوْمٌ عَسِرٌ ۹

په دا هُم وائي چه دا ډير ډېره دَ تکليف ورځ ده.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَّازْدُجِرَ ۱۰

مخکې له دوی نه ړومبئ دَ نوحؑ قام انکار اوکړو اوځمونږ بنده له ئې دروغژن اووئيل او ووئيل چه دا ليونئ دے او زمونږ دَ بُتانو دَ طرف نه دَهٔ باندے لعنت وريدلے دے.

فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ ۱۱

آخر هغهٔ خپل رب ته دعا اوکړه او وے وئيل چه په ما دښمن غلبه شوے دے بيا تهٔ ځما بدل واخله.

فَفَتَحْنَآ اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ۱۲

په دے مونږ دَ ورېځې دروازے په جوش بهيدونکي اولوسره پرانستے.

وَّفَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا فَالْتَقَى الْمَآءُ عَلٰٓى اَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ۱۳

اوپه زمکه هُم مونږ چينے را اوخټکولے بيا (دَ آسمان) اوبهٔ (دَ زمکے اولوسره) دَ يوے داسے خبرے دَ پاره يوځائے شوے چه دَ هغې فيصله شوے وه.

وَحَمَلْنٰهُ عَلٰى ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ۱۴

او مونږ هغه (يعنې نوحؑ) دَ تختو او دَ ميخونو نه جوړ شيز (يعنې کشتئ) کښے اوچت کړو.

تَجْرِيْ بِاَعْيُنِنَا ۚ جَزَآءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ ۱۵

هغه ځمونږ دَ سترګو وړاندے (زمونږ په نګرانئ) کښے روانه وه. دا دَ هغهٔ سرى جزا ده چه دَ چا انکار شوے وه.

وَلَقَدْ تَّرَكْنٰهَآ اٰيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۱۶

او مونږ دا واقعه دَ يو نښان په طور (روستنو قامونو دَ پاره) پريخوده. بيا آيا څوک نصيحت اخستونکے شته؟

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ۱۷

او اوګورئ! ځما عذاب او ځما ويرونه څنګه (سخته او صحي) وه.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۱۸

مونږ قرآن دَ عمل دَ پاره آسان کړے دے بيا آيا څوک نصيحت آخستونکے شته؟

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ۱۹

عاد هُم (دَ خپل رسول) انکار کړے وه بيا اوګوره

چه څما عذاب او څما ویرول څنګه وُو؟ (یعنې عذاب څنګه سخت وه او ویرول څنګه رښتونی وُو)

إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِي يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿۲۰﴾

مونږ په هغوی یوه داسې هوا اولیږله چه ډیره تیزه تلونکې وه او تر ډیره وخته پاتې کیدونکې منحوس وخت کښې روانه کړې شوې وه۔

تَنْزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ ﴿۲۱﴾

هغې به خلق داسې ډ مونږه غورزول لکه چه هغوی ډ کجهورې داسې ونې دي چه ډننه مغز ئې خوړلې شوې وه۔

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿۲۲﴾

بیا اوګورئ چه څما عذاب (څنګه سخت) او څما ویرول څنګه (رښتونی) وُو۔

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۲۳﴾

او مونږ قرآن ډ عمل کولو ډ پاره آسان جوړ کړې دې بیا آیا څوک نصیحت اخستونکې شته؟

ع ۱ ۲۳ ۸

كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴿۲۴﴾

ثمود هُم ډ نبیانو انکار کړې وه۔

فَقَالُوٓا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّفِي ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ ﴿۲۵﴾

او وئیلې ئې وُو چه آیا مونږ ډ خپل ځان غوندې یو سړی (چه مونږ ته رالیږلې شوې دې) پسې لاړ شو؟ کچرې مونږ داسې او کړو نو ډیرې لوئې ګمراهئ او سوزونکی عذاب کښې به پریوزو۔

أَءُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴿۲۶﴾

آیا ډ خدائې وحی مونږ کښې (ربس) په هغه نازله کړې شوې ده۔ حقیقت دا دې چه هغه ډیر دروغژن او کبرجن دې۔

سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ ﴿۲۷﴾

(مونږ اووئیل) هغوی ته به صباله (یعنې راتلونکې زمانه) کښې معلومه شي چه څوک دروغژن او کبرجن دې۔

إِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿۲۸﴾

(مونږ هغوی ته اووئیل چه) مونږ یوه اُوښه ډ هغوی ډ آزمیښت ډ پاره راستوونکی یو (بیا اې صالح!) ډ هغوی ډ انجام انتظار کوه او صبر نه کار آخله۔

وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿٢٨﴾

او هغوی ته او وایه چه اوبه دَ هغو او ستا ترمنځه تقسیم شوی دی - هره یوه دله دِ دَ خپلو ځکلو په وخت راځی -

فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴿٢٩﴾

په دے هغوی خپل سردار اوغوښتو هغه راغے او دَ اوښے پښے ئے پریکړے -

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٠﴾

بیا اوګورئ ځما عذاب او ځما ویرول څنګه وُو؟ (یعنی ځما عذاب څنګه سخت وُو او ځما ویرول څنګه رښتونی وُو) -

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ﴿٣١﴾

مونږ په هغوی هُم یو عذاب نازل کړو او هغوی دَ یو پناه ځائے دَ جوړُونکی (دَ ونو) نه دَ راغورزو لو شوُو چوُرے په شان شول -

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٣٢﴾

او مونږ قرآن دَ عمل کولو دَ پاره آسان کړے دے بیا آیا څوک نصیحت اخستوُنکے شته؟

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴿٣٣﴾

دَ لوطؑ قام هُم دَ نبیانو انکار کړے وه -

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا إِلَّا آلَ لُوطٍ نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ ﴿٣٤﴾

مونږ دَ هغوی دَ تباه کولو دَ پاره هُم دَ کنکرو نه ډکه هوا اوچلوله (چاچه دَ آلِ لوط نه سوا ټول تباه کړل) هن سحر (چه هغه عذاب راغے) مونږ دَ لوط خپل خانه بچ کړه -

نِّعْمَةً مِّنْ عِندِنَا كَذَٰلِكَ نَجْزِي مَن شَكَرَ ﴿٣٥﴾

دا ځمونږ دَ طرف نه یو نصیحت وه، څوک چه شکر کوی مونږ هغهٔ له دا شان جزا ورکوُو -

وَلَقَدْ أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿٣٦﴾

او هغهٔ (یعنی لوطؑ) هغوی ته ځمونږ دَ عذاب پخقله دَ وړاندے نه خبر ورکړے وه ولے هغوی نبیانو سره بحث کول شروکړل -

وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٧﴾

او هغوی هغه دَ خپلو میلمنو خلاف غلول اوغوښتل او مونږ دَ هغوی په سترګو پرده

وا چوله او اومو وئیل څما د عذاب او څما د ویرولو خوند واخلئ۔

وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿٣٨﴾

او سحر سحر په هغوی یو داسے عذاب راغلے چه خامخا را تلونکے وه۔

فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٩﴾

(او مونږ هغوی ته اووئیل چه) څما د عذاب او څما د ویرولو خوند واخلئ۔

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٤٠﴾

مونږ قرآن د عمل کولو د پاره آسان کړے دے بیا نو آیا څوک نصیحت آخستونکے شته؟

وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿٤١﴾

او آل فرعون ته هم نبیان راغلی وو۔

كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا فَأَخَذْنَاهُمْ أَخْذَ عَزِيزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٤٢﴾

وے آل فرعون څمونږ د ټولو آیتونو انکار اوکړه چه په دے هغوی مونږ د یو غالب طاقتور په شان په عذاب اونیول۔

أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُم بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿٤٣﴾

(په د مکے خلقو!) آیا تاسو کښے انکارکوونکی د هغو رومبنو خلقو نه ښه دی یا رومبنو کتابونو کښے تاسو د پاره د عذاب نه حفاظت لیکلے شوے دے۔

أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴿٤٤﴾

آیا هغوی وائی چه مونږ یوه ډله یو چه خامخا به غالب رازو۔

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿٤٥﴾

د هغوی جماعت ته به ډیر زر ماتے ورکیدے شی او هغوی به په شا تختی۔

بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴿٤٦﴾

بلکه د هغوی د تباهی وعده شوے وه او هغه د وعدے وخت به ډیر زیات تباه کوونکے او سخت وی۔

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٤٧﴾
يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾

مجرمان به ګمراهئ او سوزونکی عذاب کښے اخته وی کومه ورځ به چه هغوی خپلو سردارانو سره اور کښے راښکلے شی او (هغوی ته به اووئیلے شی)

چه دَ دوزخ عذاب اوڅکئ۔

إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَٰهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾

مونږ هر څیز دَ اندازے سره سم پیدا کړے دے۔

وَمَآ أَمْرُنَآ إِلَّا وَٰحِدَةٌ كَلَمْحٍۭ بِٱلْبَصَرِ ﴿٥٠﴾

او څمونږ حُکم دَ سترګو په رپ کښے یو دم پوره کیږی۔

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَآ أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٥١﴾

او مونږ ستاسو غوندے خلق (رومبنی) هم هلاک کړی دی (او آیا دَ خبریدو نه پس) څوک نصیحت اخستونکے شته؟

وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِى ٱلزُّبُرِ ﴿٥٢﴾

او هر کار چه هغوی کړے دے هغه کتابونو کښے شته دے۔

وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴿٥٣﴾

او هره یوه وړه او لویه خبره لیکلے شوے ده۔

إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى جَنَّٰتٍ وَنَهَرٍ ﴿٥٤﴾

او (مومنان) به جنتونو کښے او قسم قسم آسانو کښے وی۔

فِى مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍۭ ﴿٥٥﴾

یو داسے مقام کښے چه تل ترتله به وی (او هغوی به) دَ قدرت لرونکی بادشاه سره (وی یعنی هغوی ع ۳ / ۱۰
به کله هم دَ رسوائی او دَ لاندے پرلیو مخ نهٔ وینی۔




سورة رحمان - دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے یوکم ۷۹ اتیا آیتونه او درے رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①
رشروکوم ) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه راو) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اَلرَّحْمٰنُ ②
رهغه ) هُم رحمان رخدائے ) دے۔

عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ③
چا چه قرآن ښودلے دے۔

خَلَقَ الْاِنْسَانَ ④
هغهٔ انسان جوړ کړو۔

عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ⑤
او هغهٔ ته ئے فصاحت او بیان او بخښلو۔

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ⑥
نمر او سپوږمئ دَ یوے مقررهٔ قاعدے سره سم روان دی۔

وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ⑦
او وارهٔ بوټی او ونے هُم دَ خدائے وړاندے په سجده دی۔

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ⑧
او آسمان هغهٔ اوچت کړے دے او ردَ بنی نوع انسان دَ پاره ) ئے دَ توازن ربرابرئ) اُصول مقرر کړے دے۔

اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ⑨
ردے دپاسره ) چه دَ عدل تله کله هُم مهٔ تیتهوئ۔

وَاَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ⑩
او وزن انصاف سره کوئ او تول مهٔ کموئ۔

وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا لِلْاَنَامِ ⑪
او هغهٔ رخدائے ) زمکه دَ ټول مخلوق دَ فائدے دَ پارهٔ جوړهٔ کړے دهٔ۔

فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ ⑫
دے کښے میوے هُم دی او دَ کجهورو هغه ونے هُم چه غلاف لرونکے میوے لری۔

وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ⑬
او دے رزمکه ) کښے دانے هُم دی چه پرے دَ پاسه پوستکے وی او خوشبو دار ګلونه هُم دی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ⑭
بیا او خو وائی تاسو دواړه رلیعنی جن او انس ) دَ خپل

رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ۔

خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿۱۴﴾

انسان هغهٔ کړنګیدے اوچے خاورے نه پیدا کړے دے۔

وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ ﴿۱۵﴾

او جنّات ئے دَ اور دَ شُغلے نه پیدا کړی دی۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۱۶﴾

بیا اوخو وائی، چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ۔

رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ﴿۱۷﴾

هُم هغه دَ دواړو نمرختیزو او دَ دواړو نمرپریواتیزو رب دے۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۱۸﴾

اوس او وائی چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوی۔

مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ﴿۱۹﴾

هغهٔ دواړه سمندرونه داسے روان کړی دی چه هغه به یو وخت کښې یو ځائے شی۔

بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَا يَبْغِيَانِ ﴿۲۰﴾

(فی الحال) دَ دوئ ترمنځه یوه پرده ده چه دَ هغے له کبله دوی یو بل کښې نشی داخلیدے۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۲۱﴾

اوس او وائی چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ څهٔ څهٔ انکار کوئ۔

يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿۲۲﴾

دے دواړو سمندرونو نه ملغلرے او مرجان اُوزی۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۲۳﴾

بیا او وائی تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ څهٔ څهٔ انکار کوئ۔

وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴿۲۴﴾

(او دَ هغهٔ جوړے کړے کشتئ هُم دی) او (دَ هغهٔ جوړ کړی) جهازونه هُم دی چه په سمندرونو کښې دَ غرونو په شان ښکاری۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۲۵﴾ ع

بیا او وائی چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ۔

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿۲۶﴾

په دے (یعنی زمکه) چه هرڅه هُم دی آخر

هلاک کیدونکی دے۔

وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿٢٨﴾

او بس هغه پاتے کیګی چا ته چه ستا د جلال او عزت لرونکی خدائے پام وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٩﴾

اوس او وائی چه تاسو دواړه به د خپل رب په نعمتونو کښے د کوم کوم انکار کوئ۔

يَسْـَٔلُهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ ﴿٣٠﴾

په آسمانونو او زمکه کښے چه څۀ هم دی هغه هم د هغۀ نه خپل ضرورونه غواړی۔ هغه هروخت یو نوے حال کښے وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣١﴾

بیا او وائی چه تاسو دواړه به د خپل رب په نعمتونو کښے د کوم کوم انکار کوئ۔

سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ﴿٣٢﴾

یه دواړو زبردستو طاقتونو! مونږ تاسو دواړو ته او زګاریګو۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٣﴾

بیا او وائی چه تاسو دواړه به د خپل رب په نعمتونو کښے د کوم کوم انکار کوئ۔

يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا ۭ لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿٣٤﴾

اے د انس وجنس ډلو! که چرے تاسو طاقت لرئ د آسمانونو او د زمکے د غاړو نه بهر او تختئ نو دا وتل او بنا یئ تاسو بے دلیله هیڅکله نشئ وتلے۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٥﴾

بیا او وائی چه تاسو دواړه به د خپل رب په نعمتونو کښے د کوم کوم انکار کوئ۔

يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ڏ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ ﴿٣٦﴾

په تاسو به د اور لوړه شغله او غورزولے شی او تانبا به هم را او غورزولے شی) بیا تاسو دواړه هیڅکله بر نشئ راتللے۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٧﴾

اوس او وائی چه تاسو دواړه به خپل رب په نعمتونو کښے د کوم کوم انکار کوئ۔

فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٨﴾

هر کله به چه آسمان اوشلیږی او د سرے څرمنے په

شان شي رهغه به دَ آخري فیصلې وخت وي.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۸﴾

اوس او وایئ تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖٓ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ ﴿۳۹﴾

دَ هغې فیصلې په ورځ به نه دَ انسان نه دَ هغو گناه پُحقله تپوس کیږي او نهٔ دَ جنّ نه.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۰﴾

اوس تاسو او وایئ چه تاسو به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ بِسِيْمٰهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِيْ وَالْاَقْدَامِ ﴿۴۱﴾

مجرمان دَ خپلو مخونو دَ علامتونو نه پیژندلے شي او دَ خپلو تندو دَ ویښتو او دَ قدمونو نه به نیولے شي.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۲﴾

اوس تاسو او وایئ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

نصف الربع

هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۴۳﴾

دا هغه جهنّم دے چه دَ هغې مجرمان انکار کوي.

يَطُوْفُوْنَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيْمٍ اٰنٍ ﴿۴۴﴾

(هرکله چه به دے کښې دَ ورتلو ورځ راشي) هغوي به دَ دے دوزخ ترمنځه او دَ لیشیدلو اوبو ترمنځه گرزي.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۵﴾

ع ۲

اوس او نو وایئ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ﴿۴۶﴾

او کوم سړے چه دَ خپل رب دَ شان نه ویریږي هغه دَ پاره دوه جنتونه دي (دَ دنیا هُم او دَ آخرت هُم).

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۷﴾

بیا او نو وایئ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

ذَوَاتَآ اَفْنَانٍ ﴿۴۸﴾

دواړه جنتونه به دَ ډیرو څانګو وي (یعني دَ هغې ونې به ډیرے گنړے وي).

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۹﴾

بیا او نو وایئ تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښې دَ کوم کوم انکار کوئ.

| | |
|---|---|
| فِيْهِمَا عَيْنٰنِ تَجْرِيٰنِ ﴿٥١﴾ | په دے دواړو کښے به دوه چينے (دېرو او لوسرو) بهيگي۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٢﴾ | بيا اوخو وائي چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ ۔ |
| فِيْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجٰنِ ﴿٥٣﴾ | په دے دواړو کښے به دَ هر قسم ميوے دوه دوه قسمه وی۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٤﴾ | بيا او وائي چه تاسو دواړه به دَ خپل په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔ |
| مُتَّكِـِٔيْنَ عَلٰى فُرُشٍۢ بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ؕ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٥﴾ | (جنتيانو به) په فرش (دا سے) اړے لگو لی وی چه دَ هغے استرونه به دَ زربفتو وی او دَ دواړو باغونو ميوے به ( دَ درونند والی نه ) راټيټے وی ۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٦﴾ | بيا او وائي چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ ۔ |
| فِيْهِنَّ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ ۙ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٥٧﴾ | په دے جنتونو کښے به نظر لاندے ساتونکے ښځے وی چا سره به چه دوی (جنتيانو نه) آګاهُونه انسانانو تعلق ساتلے وی نه جناتو۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٨﴾ | بيا اوخو وائي تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔ |
| كَاَنَّهُنَّ الْيَاقُوْتُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٩﴾ | لکه چه هغه ښځے ياقوت او مرجان وی ۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٠﴾ | بيا او وائي تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ ۔ |
| هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ﴿٦١﴾ | آيا دَ احسان جزا دَ احسان نه سوا نور څه هُم کيدے شی ؟ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٢﴾ | بيا اوخو وائي چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ ۔ |
| وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتٰنِ ﴿٦٣﴾ | او دَ دے دواړو جنتونو نه سوا به دوه نور جنتونه هُم وی۔ |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٤﴾ | بيا اوخو وائي چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔ |

مُدْهَآمَّتٰنِ ۝۶۴
(دا دواړه جنتونه به) شوخ شنهٔ وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۶۵
بیا اوخو وائیٔ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

فِيْهِمَا عَيْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ ۝۶۶
په دے دواړو (جنتونو) کښے به دوه چینے په ډیر جوش راخوټیګی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۶۷
بیا اوخو وائیٔ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

فِيْهِمَا فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ ۝۶۸
دے کښے به میوے هُم وی او کجهورے او انار هُم وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۶۹
بیا اوخو وائیٔ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

فِيْهِنَّ خَيْرٰتٌ حِسَانٌ ۝۷۰
دے باغونو کښے به نیکے او ښائسته ښځے وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۷۱
بیا اوخو وائیٔ تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

حُوْرٌ مَّقْصُوْرٰتٌ فِي الْخِيَامِ ۝۷۲
هغه ښځے به تورے سترګے لری (او) دَ خیمو دننه به وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۷۳
بیا اوخو وائیٔ تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ۝۷۴
نهٔ خو به (هغوی په جنت کښے ورتلونکو جنّ او انس نه) مخکښې بل څوک انسان هغوی ته ورنزدے شوے وی او نهٔ جِنّ۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۷۵
بیا اوخو وائیٔ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَّعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ۝۷۶
هغوی (جنتیان به) دَ خیمے مخے ته په شنو فرشونو چه ډیر اعلیٰ به وی او ښائسته به وی اوړے وهلی ناست وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۷۷
بیا اوخو وائیٔ چه تاسو دواړه به دَ خپل رب په نعمتونو کښے دَ کوم کوم انکار کوئ۔

تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ۝۷۸ ع
ثنا دَ جلال او عزت لرونکی رب نوم ډیر برکت ناک دے۔




سورة واقعة - دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے د ۹۷ کم سل آیتونه او د ۳ رکوع دی -

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | رشروکوم ) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے - |
| اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ② | هرکله چه هغه رخبره) چه دَ هغے دَ خامخا کیدو فیصله ده، اوشی - |
| لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ③ خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ④ | دَ دے دَ کیدلو دَ خپل وخت نه دَ روستو کولو څه رځیز) نشته - هغه بعضو له لاندے کوونکے او بعضو له اوچتوونکے ده - |
| اِذَا رُجَّتِ الْاَرْضُ رَجًّا ⑤ | کومه ورځ چه به ملک وخوزولے شی - |
| وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ⑥ | اوغرونه به ریزه ریزه کرے شی - |
| فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا ⑦ | نو هغوی به داسے شی لکه په هوا کښے څلورو اړه طرف ته الوتونکی باریک بڅری - |
| وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ⑧ | او تاسو به د ۳ ډلو کښے تقسیم شئ - |
| فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ⑨ | یو خو به دَ ښی طرف وی او تا ته څهٔ معلوم چه دَ ښی لاس خلق به څنګه وی؟ |
| وَاَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ⑩ | او یو به دَ کس طرف وی او تا ته څهٔ معلوم چه دَ کس طرف خلق به څنګه وی؟ |
| وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ⑪ | او یوه ډله به رایمان او عمل کښے) دَ وړاندے والونکو بیا نو هغوی خو به دَ نورو نه وړاندے وی - |
| اُولٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ ⑫ | او هغه خلق به ردَ خدائے) نیازبین وی - |
| فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ⑬ | دَ نعمت په جنتونو کښے ربه اوسی) - |
| ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ⑭ | ره مبنی ایمان راوړونکو کښے به دَ هغوی شمیر |

زیات وی۔

وَ قَلِيْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿١٥﴾

او روستو ایمان راوړونکو کښې به د هغوی شمیر لږ وی۔

عَلٰى سُرُرٍ مَّوْضُوْنَةٍ ﴿١٦﴾

هغوی به په کل دار وچپرکټونو۔

مُّتَّكِـِٕيْنَ عَلَيْهَا مُتَقٰبِلِيْنَ ﴿١٧﴾

اړے وهلی مخامخ ناست دی۔

يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ﴿١٨﴾

هغوی له به د خدمت د پاره ډیر زیات ځوانان خادمان رازی چه تل ترتله به په خپله نیکۍ تهینګ او دروے شی۔

بِاَكْوَابٍ وَّ اَبَارِيْقَ ۙ وَ كَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿١٩﴾

هغوی به کلاسونو او کوزو او د چینو (د اولو) نه ډکو کاسو سره رازی۔

لَّا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَ لَا يُنْزِفُوْنَ ﴿٢٠﴾

(په هغو پیالو او کاسو کښې په څکلو به) نهٔ خوجنتیان نشه کیږی او نهٔ به هغوی لغو خبرے کوی۔

وَ فَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ ﴿٢١﴾

(او دا شان ځوانان خادمان) به هغوی (یعنی جنتیانو) له د داسے میوو مجمے راوړی چه هغه به هغوی خوښوی۔

وَ لَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٢٢﴾

او په مارغانو د هغو مارغانو غوښه چه کومه به هغوی (جنتیان) خوښوی۔

وَ حُوْرٌ عِيْنٌ ﴿٢٣﴾

او د غټو تورو تورو سترګو ښځے به وی۔

كَاَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُوْنِ ﴿٢٤﴾

چه د محفوظو ملغلرو په شان به وی (چه د خپل زیات قیمت له کبله پټے ایخولے شی)۔

جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٥﴾

دا هرڅه به د مومنانو د عملونو په سوب د جزا په طور ورکیدے شی۔

لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّ لَا تَاْثِيْمًا ﴿٢٦﴾

هغوی (مومنان) به جنتونو کښې نه څه فضول او نه د ګناه خبره اوری۔

اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ﴿٢٧﴾

سوا د داسے قول نه چه سلام (یعنی د سلامتۍ دعا) به وی۔

وَاَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ ۙ مَآ اَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ ﴿۲۷﴾

او (ته) دَ ښي طرف دَ سرو حال هُم واوره ـ تا ته څهٔ معلومه ده چه دَ ښي طرف خلق څوک دي؟

فِيۡ سِدۡرٍ مَّخۡضُوۡدٍ ۙ﴿۲۸﴾

هغوي به دَ بے ازغو بيرو باغونو کښے اوسي ـ

وَّ طَلۡحٍ مَّنۡضُوۡدٍ ۙ﴿۲۹﴾

او دَ کيلو (په باغونو) کښے چه دَ هغے ميوے به په يوبل نښتلے وي ـ

وَّ ظِلٍّ مَّمۡدُوۡدٍ ۙ﴿۳۰﴾

او په داسے سيورو کښے چه ډير اوږدهٔ به وي ـ

وَّ مَآءٍ مَّسۡكُوۡبٍ ۙ﴿۳۱﴾

او په داسے اوبو کښے چه راغورزولے به شي ـ

وَّ فَاكِهَةٍ كَثِيۡرَةٍ ۙ﴿۳۲﴾

او په ډيرو ميوو کښے ـ

لَّا مَقۡطُوۡعَةٍ وَّ لَا مَمۡنُوۡعَةٍ ۙ﴿۳۳﴾

نهٔ خو به هغه پريکولے شي او نهٔ به هغونه هغوي (يعني جنتيان) منع کولے شي (يعني هغه به هُم دَ هغوي ملکيت گرزولے شي) ـ

وَّ فُرُشٍ مَّرۡفُوۡعَةٍ ؕ﴿۳۴﴾

او دَ ډيرو ښو بسترو سره به اوسي ـ

اِنَّآ اَنۡشَاۡنٰهُنَّ اِنۡشَآءً ۙ﴿۳۵﴾

هُم مونږ هغوي جوړے کړي دي ـ

فَجَعَلۡنٰهُنَّ اَبۡكَارًا ۙ﴿۳۶﴾

او پيغلے مو پيدا کړي دي ـ

عُرُبًا اَتۡرَابًا ۙ﴿۳۷﴾

ډيرے خائسته او دَ جنتيانو همزولے ـ

لِّاَصۡحٰبِ الۡيَمِيۡنِ ؕ﴿۳۸﴾ ع

(چه هغوئ) دَ ښي طرف والے دَ پاره پيدا کړے شوي دي ـ

ثُلَّةٌ مِّنَ الۡاَوَّلِيۡنَ ۙ﴿۳۹﴾

دا خلق به شروکښے ايمان راوړونکو خلقو کښے هُم زيات وي ـ

وَ ثُلَّةٌ مِّنَ الۡاٰخِرِيۡنَ ؕ﴿۴۰﴾

او په آخر کښے ايمان راوړونکو کښے به هُم ډير وي ـ

وَ اَصۡحٰبُ الشِّمَالِ ۙ مَآ اَصۡحٰبُ الشِّمَالِ ؕ﴿۴۱﴾

او دَ کس طرف (دَ خلقو هُم حال واوره) او تا ته څهٔ معلومه ده چه دَ کس طرف خلق به څنگه وي؟

فِيۡ سَمُوۡمٍ وَّ حَمِيۡمٍ ۙ﴿۴۲﴾

هغوي به په تودَو هواگانو او تودو اوبو کښے اوسي ـ

وَّ ظِلٍّ مِّنۡ يَّحۡمُوۡمٍ ۙ﴿۴۳﴾

او په داسے سيورو کښے به اوسي چه دَ تور لوگي په شان به وي ـ

لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾
نه به هغه يخ وى او نه به هغے لاندے اوسيدل عزت وركوى۔

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾
هغوى به دے نه اګاهُو په دُنيا کښے ډير په مزو کښے اوسيدل۔

وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنثِ الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾
او په غټه ګناه (يعنى شرک) به ئے ضد کولو۔

وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّ
عِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾
هغوى به وئيل هر کله چه مونږ مړهٔ شو او خاورے هډوکى شو نو آيا مونږ به بيا راژوندى کولے شو۔

أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾
بيا څمونږ پلار نيکو نو سره به هُم داسے کار کيږى۔

قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾
ته اووايه چه ړومبنى به هُم او روستنى هُم۔

لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٥٠﴾
ټول په يوهٔ معلومه ورځ دَ وعدے په طرف يو ځائے بوتلے شى۔

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ﴿٥١﴾
بيا اے انکار کوونکو، بے لارو!

لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿٥٢﴾
دَ زقوم دَ ونے نه به خورئ!

فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ ﴿٥٣﴾
دے نه به ختيټه ډکوئ۔

فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ ﴿٥٤﴾
بيا به په دے تودے اوبهٔ څکئ۔

فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ ﴿٥٥﴾
او لکه دَ تږى اوښ په شان به يو مخيزے څکئ۔

هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ ﴿٥٦﴾
دا به دَ هغوى دَ جزا سزا په ورځ ميلمستيا۔

نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُونَ ﴿٥٧﴾
مونږ تاسو پيدا کړى يئ بيا ولے تاسو څمونږ دَ خبرے تصديق نهٔ کوئ۔

أَفَرَأَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴿٥٨﴾
او دَ هغه څيز حال څو اووايئ چه تاسو ئے دَ ښځے په ختيټه کښے غورزوئ۔

أَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ ﴿٥٩﴾
آيا تاسو هغه پيدا کوئ يا مونږ؟

نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ
بِمَسْبُوقِينَ ﴿٦٠﴾
مونږ ستاسو تر منځه دَ مرګ سلسله پيدا کړے ده او مونږ نه څوک وړاندے نشى وتے۔

عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنشِئَكُمْ فِي مَا
او څوک سرے په دے هغله چه مونږ ستاسو په ځائے

لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾

او ستاسو غوندے قامونه راولو مونږ په داسے شی
راوستے را ونۀ مو دے خبرے نه پاتے راوستے شی )
چه مونږ تاسو په داسے صورت پیدا کړو چه هغه
تاسو ته معلومه نۀ ده۔

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۶۳﴾

او تاسو ته رومبنئ پیدا وښت خو معلومه دے
بیا په تاسو څۀ شوی دی چه تاسو نصیحت نۀ اخلئ۔

اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ ﴿۶۴﴾

آیا تاسو ته معلومه ده چه څۀ تاسو کرئ۔

ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ ﴿۶۵﴾

آیا تاسو هغه پیدا کوئ یا مونږ هغه پیدا کوُو۔

لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ ﴿۶۶﴾

کچرے مونږ غوښتے نو هغه به مونږ بیخی سوزیدلی
چوره چوره کړے وے۔ بیا به تاسو خبرے
جوړولے۔

اِنَّا لَمُغْرَمُوْنَ ﴿۶۷﴾

او وئیل به موچه دا په مونږه جرمانه پرېوتے ده۔

بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴿۶۸﴾

بلکه حقه دا ده چه مونږه د خپل محنت د میوے
نه بیخی محرومه شوی یُو۔

اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِیْ تَشْرَبُوْنَ ﴿۶۹﴾

هغه اوبو ته خولږ اوګورئ چه تاسوئے څکئ۔

ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ ﴿۷۰﴾

آیا تاسو هغه د وریځے نه راکوزے کړی دی یا مونږه
هغه راکوزوُو۔

لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۱﴾

کچرے مونږ غوښتے نو هغه به موتریخے کړے وے
بیا تاسو شُکر ولے نۀ کوئ۔

اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِیْ تُوْرُوْنَ ﴿۷۲﴾

د هغۀ اور لږ حال خو اووایئ چه تاسوئے بلوئ۔

ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ ﴿۷۳﴾

آیا تاسو د دے ( اور ) ونه پیدا کړے ده یا مونږ
دا پیدا کوُو؟

نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ ﴿۷۴﴾

او مونږ دا نصیحت او د مسافرانو د فائدے د پاره
جوړه کړے ده۔

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿۷۵﴾ ع

بیا ته د خپل عظمت لرونکی رب د نوم ثنا بیانوه۔

فَلَآ اُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ ۝۷۵
بیا زهٔ دَ ستورو چودنه دَ شهادت په طور وړاندے کوم۔

وَ اِنَّهٗ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِیْمٌ ۝۷۶
کچیرے تاسو پوهیږئ نو دا شهادت ډیر لوے (شهادت) دے۔

اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِیْمٌ ۝۷۷
په تحقیق سره دا قرآن ډیر لوئے عظمت لرُونکے دے۔

فِیْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ ۝۷۸
او په یو پټ کتاب کښے موجود دے۔

لَّا یَمَسُّهٗۤ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ۝۷۹
دا شان دَ دے (قرآن) حقیقت هُم هغه خلق مومی چه پاک وی۔

تَنْزِیْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝۸۰
دَ دے راکوزیدل دَ رب العالمین دَ خوا نه دی۔

اَفَبِهٰذَا الْحَدِیْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ۝۸۱
آیا تاسو دَ دے کلام په حقله دَ مداهنت نه کار نهٔ اخلئ۔

وَ تَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ۝۸۲
او خپله برخه تاسو لس دا جوړه کړے ده چه تاسو تکذیب کوئ۔

فَلَوْلَاۤ اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ ۝۸۳
بیا ولے او نشول چه هرکله ساه مومرئ ته راغله۔

وَ اَنْتُمْ حِیْنَىٕذٍ تَنْظُرُوْنَ ۝۸۴
او تاسو هغه وخت په مایوسئ څلور واړه طرف ته کتل (چه تاسو دَ ځان دَ خلاصئ څه سامان اوکړے شئ)۔

وَ نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ مِنْكُمْ وَ لٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ۝۸۵
او (هغه وخت په تاسو اوستاسو په خپلوانو ښکاره شول چه) مونږ دَ دے مړکیدُونکی دَ ځان نه خپله ستاسو دَ ذات په نسبت هُم زیات نزدے یُو۔ ولے په تاسو دا حقیقت روښئ ښکاره نهٔ وُه۔

فَلَوْلَاۤ اِنْ كُنْتُمْ غَیْرَ مَدِیْنِیْنَ ۝۸۶
بیا کچیرے تاسو ته څه جزا حاصلیدل نهٔ وُو او تاسو دے دعوی کښے رښتونی یئ نو ولے داسے اونشول۔

تَرْجِعُوْنَهَاۤ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ۝۸۷
چه تاسو هغه حالت (چه دَ مرگ په وخت رازی) واپس کړے شو۔

فَاَمَّاۤ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِیْنَ ۝۸۸
بیا چه څوک دَ خدائے مقرب دے۔

فَرَوْحٌ وَّ رَيْحَانٌ ۥ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ﴿٨٩﴾

هغه دَ پاره خو آرام او آسانتیا ده او د اشان دَ نعمتونو جنت -

وَ اَمَّآ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩٠﴾

اوکه هغه سړے دَ ښی طرف خلقو کښے دے -

فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩١﴾

نو هغه ته به ویلے شی چه یه دَ ښی طرف دَ ډلے سړیه! په تا دِ تل ترتله سلامتی وی -

وَ اَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿٩٢﴾

او کچرے هغه مړ کیدُونکے دَ صدا اقت دَ انکار کوُونکو او بے لارے خلقو نه وی -

فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٩٣﴾

نو دَ داسے سړی میلمستیا به ایشیدلو اوبو سره کیږی -

وَّ تَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ ﴿٩٤﴾

او دَ استوګنے په طور هغه ته به جهنم ورکیدے شی -

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٩٥﴾

دا (خبره) دَ حق الیقین سره سمه ده -

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿٩٦﴾

ع بیا ته دَ خپل عظمت لرُونکی رب دَ نوم سره ثنا وایه -




سورة حدید - دا سورة مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے دیرش آیتونه او څلور رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے -

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢﴾

په آسمانونو او زمکه کښے چه هرڅه دی هغه دَ خدائے ثنا وائی او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے -

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٣﴾

دَ آسمانونو او زمکے بادشاهی هُم دَ هغهٔ ده هغه ژوندی کوی او وژنی هُم او هغه په هرڅیز قادر دے -

هُوَ الْاَوَّلُ وَ الْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٤﴾

هغه اول هُم دے او آخر هُم او ظاهر هُم دے او باطن هُم او هغه دَ هرڅیز نه خبر دے -

هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ ۚ یَعْلَمُ مَا یَلِجُ فِی الْاَرْضِ وَمَا یَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا یَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا یَعْرُجُ فِیْهَا ۚ وَهُوَ مَعَكُمْ اَیْنَ مَا كُنْتُمْ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ ٥

هُم هغه آسمانونه او زمکه شپږو ورځو کښې پیدا کړی دی بیا هغه په عرش په کلکه قائم شو۔ هغه هغه نه هُم خبر دے چه زمکه کښې ننوزی او هغه نه هُم چه هغه نه راوزی۔ او هغه نه هُم چه آسمان نه راکوزیږی او هغه نه هُم چه دَ هغه په طرف خیژی او تاسو چه چرته زئ هغه تاسو سره وی۔ او الله ستاسو دَ عملونه ښه واقف دے۔

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَی اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ٦

او دَ آسمانونو بادشاهی هُم دَ هغهٔ ده او دَ زمکے هُم (دَ هغهٔ) په طرف به ټول خبرے (دَ فیصلے دَ پاره) واپس کیږی۔

یُوْلِجُ الَّیْلَ فِی النَّهَارِ وَیُوْلِجُ النَّهَارَ فِی الَّیْلِ ۚ وَهُوَ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ٧

هغه شپه په ورځ کښې داخلوی او ورځ په شپه کښې داخلوی او هغه دَ زړونو دَ خبرونه ښهٔ خبر دے۔

اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِیْنَ فِیْهِ ۚ فَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ اَجْرٌ كَبِیْرٌ ٨

ای خلقو! په الله او دَ هغهٔ په رسُول ایمان راوړئ او چه دَ کومو رجائداد ونو ئے دَ روسې قامونو نه پس) تاسو مالکان جوړ کړی ئې هغه نه خرڅ کوئ او تاسو کښې چه څوک مومنان دی او دَ خدائے په لاره کښې خرڅ کوی دَ هغوی به ډیر لوئے اجروی۔

وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوْلُ یَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ اَخَذَ مِیْثَاقَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ ٩

او دا په تاسو څهٔ شوی دی چه تاسو په الله (او دَ هغه په رسُول) ایمان نهٔ راوړئ او (دَ الله) رسُول خو تاسو لس دے دَ پاره غواړی چه تاسو په خپل رب ایمان راوړئ (او) کچرے تاسو مومنان ئې نو خدائے تاسو نه لوه وعده (خستے) ده۔

هُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ عَلٰی عَبْدِهٖۤ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ لِّیُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوْرِ ۚ وَاِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوْفٌ

هُم هغه (الله) دے چه په خپل بنده ښکاره ښکاره نښانات راکوزوی چه نتیجه ئے دا وی چه هغه

رَّحِیۡمٌ ﴿۹﴾

دَ دے نښانانو په سوب تاسو دَ تیاروِنه دَ نوُر په طرف بوزی او په تحقیق سره الله ډیر شفقت کوُونکے (او) ډیر مینه کوُونکے او بیا بیا مهربانی کوُونکے دے۔

وَ مَا لَکُمۡ اَلَّا تُنۡفِقُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ وَ لِلّٰہِ مِیۡرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ لَا یَسۡتَوِیۡ مِنۡکُمۡ مَّنۡ اَنۡفَقَ مِنۡ قَبۡلِ الۡفَتۡحِ وَ قٰتَلَ ؕ اُولٰٓئِکَ اَعۡظَمُ دَرَجَۃً مِّنَ الَّذِیۡنَ اَنۡفَقُوۡا مِنۡۢ بَعۡدُ وَ قٰتَلُوۡا ؕ وَ کُلًّا وَّعَدَ اللّٰہُ الۡحُسۡنٰی ؕ وَ اللّٰہُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرٌ ﴿۱۱﴾ ع

او په تاسو څۀ شوی دی چه تاسو دَ الله په لاره کښے خرڅ نۀ کوئ حال دا چه دَ آسمان او دَ زمکے میراث هُم دَ الله دے۔ یه مومنانو! دَ فتح نه روړمبے چا چه دَ خدائے په لاره کښے خرڅ اوکړو او دَ هغۀ په لاره کښے ئے جنګ اوکړو۔ هغه دَ هغۀ چا برابر نۀ شی کیدے چا چه دَ فتح نه پس خرڅ اوکړو او دَ فتح نه پس ئے جنګ اوکړو دَ فتح نه روړمبے خرڅ کوُونکی او جنګ کوُونکی په درجه کښے ډیر زیات دی او الله دَ دواړه قسمه خلقو سره دَ نیکئ وعده کړے ده او الله ستاسو دَ عملونو نه په ښه شان واقف دے۔

مَنۡ ذَا الَّذِیۡ یُقۡرِضُ اللّٰہَ قَرۡضًا حَسَنًا فَیُضٰعِفَہٗ لَہٗ وَ لَہٗۤ اَجۡرٌ کَرِیۡمٌ ﴿۱۲﴾

آیا څوک شته چه الله ته (دَ خپل مال) یو ښه برخه بیله کړی (ورکړی) دَ پاره دَ دے چه هغه هغے له دَ هغۀ دَ پاره زیاته کړی او هغۀ دَ پاره دَ عزت یوه بدله ده۔

یَوۡمَ تَرَی الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَ الۡمُؤۡمِنٰتِ یَسۡعٰی نُوۡرُہُمۡ بَیۡنَ اَیۡدِیۡہِمۡ وَ بِاَیۡمَانِہِمۡ بُشۡرٰىکُمُ الۡیَوۡمَ جَنّٰتٌ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَا ؕ ذٰلِکَ ہُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴿۱۳﴾

کومه ورځ به چه تۀ مومنان سړی او مومنانے ښځے اووینے چه دَ هغوی نوُر به دَ هغوی وړاندے او دَ هغوی په ښی طرف ځغلی (او خدائے او فرښتے به وائی) نن تاسو ته دَ قسم قسم باغونو زیرے درکیدے شی۔ (دا سے باغونه چه دَ هغے لاندے به نهرونه بهیږی) دا (زیری مونډونکی) خلق به هغه جنتونو کښے اوسی۔ او دا ډیره لویه کامیابی ده۔

یَوۡمَ یَقُوۡلُ الۡمُنٰفِقُوۡنَ وَ الۡمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِیۡنَ اٰمَنُوا

کومه ورځ به چه منافق سړی او منافقے ښځے مومنانو

انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ۗ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ۗ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿۱۳﴾

ته وائی چه لږ غونډ شئ مونږ هم انتظار اوکړئ چه مونږ ستاسو نور نه رڼا حاصله کړو هغه وخت به هغوی ته او وئیلے شی په خپله شا واپس شئ او هلته لا ړشی نور اولټوئ - بیا به (د الله د طرف نه) د هغوی او د مومنانو ترمنځه یو دیوال اودرولے شی چه پکښے به یوه دروازه وی د هغے دننه به د رحمت نداره وی او د هغے نه بهرا طرف ته به عذاب مخامخ په نظر رازی -

يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۗ قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ حَتّٰى جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۱۴﴾

هغوی (یعنی منافق) به مومنانو ته نارے کړی آیا مونږ تاسو سره نهٔ وُو ؟ هغوی (یعنی مومنان) به جواب ورکړی، او، او - وے تاسو خپل ځانونه خپله عذاب کښے واچول او تاسو تکیا وئ (حمونږ د تباهئ) انتظار موکولو او د شک او شُبے نه موکار اخستو - ستاسو غوښتنے تاسو ته تر هغه وخته دهوکه درکوله چه د الله فیصله راغله او د الله (د تهولو کارولو) پحقله شیطان تاسو ته دهوکه درکوله -

فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۗ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ۗ هِيَ مَوْلٰىكُمْ ۗ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾

بیا نن ورځ (یه منافقانو!) نهٔ به تاسو نه اونهٔ به د کافرانو نه څه فدیه قبلیګی ستاسو د تهولو ځائے دوزخ دے - هُم هغه ستاسو د تل عمری تعلق ځیز دے او هغه بد ځائے دے -

اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ وَلَا يَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۱۶﴾

اوس مونږ مومنانو ته والُو چه آیا اوسه پورے د هغوی زړونه د الله د ذکر د پاره او د هغه د کلام د پاره چه حق (او حکمت) سره راکوز دے تهیټیګئ نا؟ او (مومنانوله) پکار دی چه هغوی د هغه خلقو په شان نشی چاله چه هغوی نه وړاندے

کتاب ورکړے شوے وه - وسے (دَ خدائے دَ فضل دَ نزول) زمانه هغوی دَ پاره اوږده شوه چه دَ هغے په نتیجه کښے دَ هغوی زړونه سخت شول او په هغوی کښے ډیر ځنے فاسقان شول -

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ⑱

یاد ساتئ چه الله زمکه دَ هغے دَ مرګ نه پس ژوندئ کوی - مونږ ستاسو دَ پاره خپل نشانات په ښکاره بیان کړی دی - دَ پاره دَ دے چه تاسو دَ عقل نه کار واخلئ -

اِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَاَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ⑲

په تحقیق سره صدقه ورکونکی سړی او صدقه ورکوونکے ښځے او هغه خلق چا چه الله دَ پاره دَ خپل مال نه یوه ښه برخه بیله کړے ده دَ هغوی مالونه به دَ هغوی له مخه زیاتولے شی او هغوی ته به دَ عزت بدله ورکیدے شی -

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖٓ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ڰ وَالشُّهَدَاۗءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَنُوْرُهُمْ ۭ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ⑳

او څوک به چه په الله او دَ هغهٔ په رسولانو ایمان راوړی هُم هغوی دَ خپل رب په نزد دَ صدیقانو او دَ شهیدانو درجه موندونکی دی - هغوی ته به دَ هغوی پوره پوره اجر ورکیږی او دا شان دَ هغوی نُور به هغوی ته حاصلیګی - او هغه خلق چا چه انکار اوکړو او څمونږ دَ آیتونو تکذیب ئے اوکړو هغوی به دوزخیان وی -

ع ۲ ۹ ۱۸

اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ ۭ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ حُطٰمًا ۭ وَفِي الْاٰخِرَةِ

یَه خلقو! پوهـ شئ چه دَ دنیا ژوند هسے یوه لوبه ده او مشغولا ده او دَ زینت حاصلولو او خپلو کښے دَ فخر کولو او دَ یو بل په مال او اولاد کښے دَ لوئے والی زیاتولو سوب ده - دَ هغے حال دَ ورښے نه دَ پیدا کیدونکی پټی (یعنی فَصل) غوندے دے چه دَ هغے

عَذَابٌ شَدِيدٌ ۙ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللهِ وَرِضْوَانٌ ۚ
وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿٢١﴾

توکیدل زمیندار ډیرخوښوی او هغه ښهٔ په وده وی وسے آخر هغه دَ زیړدئ په حال وینی ـ بیا زدے نه پس) هغه ورسته چُوره جوړه شی او آخرت کښے (دَ دا سے دنیا دارو دَ پاره) سخت عذاب دے او دَ بعضو دَ پاره دَ الله دَ طرف نه بخښنه او دَ الله رضا ده او دا دَ دُنیا ژوندخو لس هسے دَ دهوکے سامان دے ـ

سَابِقُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا
كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۙ اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
بِاللهِ وَرُسُلِهٖ ۚ ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ
وَاللهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٢٢﴾

(په خلقو!) تاسو دَ خپل رب دَ طرف نه دَراتلُونکی مغفرت او دَ یو دا سے جنت په طرف په منډه زئ چه دَ هغے قیمت دَ ټولو آسمانونو او دَ زمکے دَ قیمت هومره دے او چه په الله او دَ هغهٔ په رُسول دَ ایمان راوړُونکو دَ پاره په کوته شوے دے ـ دا دَ الله فضل دے ـ هغه ئے چه چاله خوښوی ورکوی او الله ډیر فضل کوُونکے دے ـ

مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِى الْاَرْضِ وَلَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ
اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا ۭ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى
اللهِ يَسِيْرٌ ﴿٢٣﴾

په زمکه هیڅ یو مصیبت نهٔ رازی او نهٔ په تاسو څه مصیبت رازی وے دَ هغے دَ راتلو نه هُم وړاندے هغه مونږ مقرر کړے وی دا خبره دَ الله دَ پاره ډیره آسانه ده ـ

لِّكَيْلَا تَاْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰىكُمْ ۭ
وَاللهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِ ﴿٢٤﴾

دَ پاره دَ دے چه په خپل پاتے راتلو تاسو نه افسوس نهٔ وی او نهٔ په دے تاسو خوشحاله شئ چه الله ئے تاسو له درکړی او الله هر لوړانے وهُونکے او کبرجن نهٔ خوښوی ـ

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ۭ وَمَنْ
يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿٢٥﴾

دا سے خلق چه خپله هُم بُخل نه کار اخلی او نورو ته هُم دَ بخل تعلیم ورکوی او کوم سړے چه دَ نصیحت نه مخ واړوی نو یاد دِ او لری چه هُم

الله حقیقي بے نیازه او په رښتیا د تعریف لائق دے۔

لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ بِالْغَيْبِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۶﴾ ع ۳ ۱۹

مونږ خپل رسولان ښکاره نښانانو سره رالیږلي دي او هغوي سره مو کتاب او میزان هم راکوز کړے دے د پاره د دے چه خلق انصاف اوکړي او مونږه اوسپنه هم نازله کړے ده چه په کښې د سخت جنګ سامان دے او خلقو د پاره پکښې نورے هم ډیر قسمه سودمنے دي او دا ټول مو دے د پاره پیدا کړي دي چه الله ته معلومه شي چه د هغه او د هغه د رسولانو په پټه څوک مدد کوي او الله د ډیر زیات قوت خاوند (او) غالب دے۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا وَّاِبْرٰهِيْمَ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۷﴾

او مونږ نوح او ابراهیم هم رسولان لیږلي وُو او د هغوي نسل سره مو نبوت او کتاب تړلے وه بیا بعضے خو هغوي کښې هدایت موندُونکي وُو او ډیر خلق هغوي کښې فاسقان (د خدائے نافرمان) وُو۔

ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ ۙ وَجَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ۭ وَرَهْبَانِيَّةَ ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۸﴾

بیا مونږ د هغوي یعني د نوح (د ابراهیم اولاد) نه پس خپل رسولان هغوي پسے (هم هغه تعلیم سره) رااستول۔ او عیسی بن مریم هم مونږ د هغوي د لیښو په نخو واستولو او هغهٔ له مو انجیل ورکړو او څوک چه د هغهٔ منونکي شول مونږ د هغوي په زړونو کښې نرمي او رحمت پیدا کړو او هغوي د جرګه اوسیدو لار اوښوده۔ چه هغه هغوي پخپله خوښه نیولے وه۔ مونږ دا حکم په هغوي فرض کړے نهٔ وه (هرڅوکه) هغوي د الله د رضا د پاره دا لاره خپله کړے وه۔ ولے د دے ئے

پوره خیال اونهٔ ساتلو۔ بیا هغوی کښې چه څوک مومنان وُو هغوی له مونږ دَهغوی دَ حال مناسب اجر ورکړو او هغوی کښې ډیر څخه فاسقان (نافرمان) وو۔

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَءَامِنُوا۟ بِرَسُولِهِۦ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِۦ وَيَجْعَل لَّكُمْ نُورًا تَمْشُونَ بِهِۦ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٩﴾

(ای ایمان دارو!) دَ الله تقویٰ اوکړئ او دَ هغهٔ په رُسول ایمان راوړئ بیا به الله تاسوله دَ خپل رحمت نه لو په دوه اجر درکړی او تاسو دَ پاره به نُور مقرر کړی چه دَ هغې په مدد به تاسو زئ او ستاسو ګناهونه به معاف کړی او الله ډیر بخښونکے اوبے کچه فضل کوونکے دے۔

لِّئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ ٱلْكِتَٰبِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَىْءٍ مِّن فَضْلِ ٱللَّهِ ۙ وَأَنَّ ٱلْفَضْلَ بِيَدِ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٣٠﴾ ع ۴

او مونږ دا دے دَ پاره وائیو چه دَ کتاب خاوندان (یعنی اهل کتاب) دا اونهٔ ګنړی چه مسلمانانو ته دَ الله دَ فضل نه هډو څه حاصل نهٔ دی بلکه دا اوګنړی چه فضل الله په لاس کښې دے چا دَ پاره چه غواړی ورکوی او الله دَ ډیرو فضلونو مالک دے۔




سورة مجادله - دا سورة مدنی دے او بسم الله سره دَ دے ۲۳ آیتونه او در ۳ رکوع دی-

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① ع

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے-

قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا وَتَشْتَكِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ②

الله دَ هغے ښځے دُعا واوریده، چه دَ خپل خاوند په حقله تا سره بحث کولو او الله ته ئے فریاد کولو او الله ستاسو دَ دواړو بحث اوریدو- په تحقیق سره الله ډیر اوریدونکے (او) لیدونکے دے-

اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَاۗىِٕهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ۭ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰۗىِٕيْ وَلَدْنَهُمْ ۭ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ③

(بیا یاد لرئ چه) تاسو کښے کوم خلق خپلو ښځو ته مور اووائی نو دَ دہ په دا سے وینا هغوی دَ هغو میاندے نه جوړیګی- دَ هغوی میاندے هُم هغه وی چا چه هغوئ راوړی دی او زخه چه هغوی په غلطی اووائی دَ هغے په حقله هُم دا اووئیلے شی چه) هغوئ لوه ناخوښه او دروغه خبره وائی او په تحقیق سره الله ډیر معاف کوونکے (او) ډیر بخښونکے دے-

وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَاۗىِٕهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَاۗسَّا ۭ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ④

اوکوم خلق چه خپلو ښځو ته مور اووائی بیا دے نه پس (سره دَ خدائے دَ منع کولو) چه څه هغوی وئیلی وُو- دَ هغے په طرف واپس راځی هغوی دَ پاره ضروری دہ چه رومبئ دَ دے نه چه هغوئ دواړه (یعنی ښځه خاوند) یو بل ته نزدے شی یو مرئ آزاد کړی- دا هغه (خبره) دہ چه تاسو ته ئے نصیحت کیږی او الله ستاسو دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے-

فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ

اوکوم سرئ چه (مرئ) اونهٔ مومی هغه به پرله

قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ؕ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝

پسے دوه میاشتے روژے ساتی روهبیٔ دَ دے چه هغوی دواړه یو بل ته نزدے شی او چه دَ چا دا طاقت هُم نهٔ وی نو په شپیتو مسکینانو ډوډیٔ اوخوروی - دا (حُکم) دے دَ پاره زورکړے شوے دے)چه تاسو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول خبره منیٔ او دا دَ الله حدُونه دی او دَ کافرانو دَ پاره دردناک عذاب دے -

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝

کوم خلق چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول خلاف زی هغوی به ذلیل کړے شی څنګه چه رومبنی خلق ذلیل کړے شول اومونږ خپل ښکاره حکمونه نازل کړی دی اوکوم خلق چه به (دَ دے ښکاره حُکمونو)انکارکوی هغوی ته به رسوا کوونکے عذاب رسی -

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ شَهِيْدٌ ۝ ع

کومه ورځ به چه الله هغوی ټول په یو ځائے اوچتوی او دَ هغوی دَ هغوعملونوخبر به ورکوی چه الله خو شمیرلی دی وسے هغه هغوی هیر کړی دی او الله په هر څیز نګران دے -

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ اَيْنَ مَا كَانُوْا ۚ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ۝

آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده چه آسمانونو او زمکه کښے چه څه هُم دی الله هغے ته خبردے په دنیا کښے هیڅ درے کسان ځان له مشوره کوونکی نهٔ وی چه پکښے هغه دَ هغوی څلورم نهٔ وی اونهٔ پنځه مشوره کوونکی وی چه پکښے هغه دَ هغوی شپږم نهٔ وی اونهٔ دَ دے شمیرنه کم وی اونهٔ زیات چه هغه (په هرصورت) هغوی سره وی - هرڅوکه هغوی چرته هُم (په مشوره) وی بیا به هغه هغوی دَ هغوی دَ عملونو دَ قیامت په ورځ خبروی - الله دَ هر لوخبرعلم لروُنکے دے -

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ

آیا تا هغوی (یعنی خلق) نهٔ دی لیدلی چه هغوی دَ پټو

بِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَيَتَنٰجَوْنَ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ
وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَاِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا
لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ وَيَقُوْلُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا
يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا
فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٩﴾

سازشونو نه منع کړے شوی دی هغوی دَ دے منع کړے شوی څیز په طرف بیا بیا واپس کیږی۔ او دَ ګناه او دَ زیاتیٔ او دَ رسُول دَ نافرمانیٔ دَ خبرو پټقله مشوره کوی او هرکله چه هغوی تا له راځی نو تا ته په داسے ټکو کښے دُعا درکوی چه هغو (ټکو) کښے خدائے دُعا نهٔ ده درکړے او په خپلو زړونو کښے وائی چه ولے الله څمونږ دَ (منافقانه) قول له کبله مونږ ته عذاب نهٔ راکوی۔ جهنّم هغو خلقو له بس دے هغوی به هغے کښے داخلیګی او هغه ډیر بد ځائے دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا
بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَتَنَاجَوْا
بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ
اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿١٠﴾

یَه مومنانو! هرکله چه پټه مشوره کوئ نو دَ ګناه او دَ زیاتیٔ په خبره پټے مشورے مهٔ کوئ او مهٔ دَ رسُول دَ نافرمانیٔ په خبرو، بلکه دَ نیکیٔ او دَ تقویٰ په خبرو مشوره کوئ او دَ الله تقویٰ کوئ دَ چا په طرف به چه تاسو ټول (ژوندی کړی) واپس کولے شئ۔

اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَعَلَى اللّٰهِ
فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١١﴾

دَ پټے مشورے طریقه دَ شیطان دَ طرف نه راغلے ده او دَ دے غرض دا دے چه مومنان غم کښے اخته کړی او هغه هغو ته دَ الله دَ حکم نه سوا څه هُم نقصان نشی رسولے او پکار دی چه مومنان بس په الله توکل اوکړی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي
الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ وَاِذَا قِيْلَ
انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ
وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ
خَبِيْرٌ ﴿١٢﴾

یَه مومنانو! هرکله چه تاسو ته دا اووئیلے شی چه په محفلونو کښے په فاصله کینئ نو په فاصله کینئ۔ الله به هُم ستاسو دَ پاره دَ وسعت سامان پیدا کړی او هرکله چه تاسو ته اووئیلے شی چه پاسئ نو پاسئ۔ الله به هغوی چه مومنان دی او حقیقی علم لرونکی دی په درجو کښے زیاتوی او الله ستاسو

دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ۭ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ ۭ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑫

يه ايمان دارو! هركله چه تاسو دَ رسُول نه بيله مشوره كول غواړئ نو دَ خپلے مشورے نه آ كا هو صدقه وركوئ دا به تاسو دَپاره ښه وى او دَ زړهٔ دَ پاكولو موجب به وى۔ ولے زدا حُكم دَ هغوى دَپاره دے چه دَ چا وس رسى) كچرے تاسو رهيڅ څيز دَ صدقے دَپاره) اونهٔ مومئ نو رمهٔ ويريګئ) الله ډير بخښونكے او) بيا بيا رحم كوُونكے دے

ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقٰتٍ ۭ فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۭ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ⑬ ع

آيا تاسو دَ مشورے كولو نه آ كا هُو صدقے نه اوويرېدئ؟ بيا نو هركله چه تاسو دا سے اونكړل او الله په تاسو فضل اوكړو۔ بيا نو تاسو لمونځونه كوئ او زكاتونه وركوئ او دَ الله او دَ هغه دَ رسُول اطاعت كوئ او چه څه تاسو كوئ الله هغے نه ښهٔ خبر دے۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ۭ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ ۙ وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ⑭

آيا تا هغه خلق هُم ليدلى دى چا چه داسے قام سره دوستى اوكړه په چا چه خدائے غضب نازل كړے وه داسے خلق نهٔ تاسو نه دى او نهٔ هغوى نه دى او هغوى سره دَ پوهے په دروغه قسمونه خورى۔

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ۭ اِنَّهُمْ سَاۗءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ⑮

الله دَ هغوى دَپاره سخت عذاب تيار كړے دے دَ هغوى عملونه ډير خراب دى۔

اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ⑯

هغوى خپل قسمونو نه ډهال جوړ كړے دے او هغوى دَ الله دَ لارے نه ردَ دے قسمونو سره) منع كول كوى بيا به هغوى ته رسوا كوُونكے عذاب رسى۔

لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـــًٔا ۭ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۭ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ⑰

نهٔ به دَ هغوى مال او نهٔ به دَ هغوى اولاد دَ الله په مقابله كښے څه سُود منه وركړے شى۔ دا خلق دوزخيان دى، هغوى به دے كښے تل تر تله اوسى۔

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ كَمَا

كومه ورځ به چه الله دوئ ټول په يو ځائے اوچتوى

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ۭ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ۝١٩

نو دَ هغهٔ ورانده به هُم هغه شان قسمونه خوری څنګه چه ستا سو وړانده قسمونه خوری او خیال به کوی چه هغوی ډیر په پوخ (او معقول) اصول ولاړ دی۔ واوری! دا خلق (سره دَ خپلو قسمونو) دروغژن دی۔

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ۭ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝٢٠

شیطان په هغوی غلبه شوے دے او هغهٔ دَ الله ذِکر هغوی نه هیر کړے دے دا خلق دَ شیطان ټولیٔ دے او واوریٔ چه دَ شیطان ډله آخر نقصان اوچتوونکے ده۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَاۗدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اُولٰۗىِٕكَ فِي الْاَذَلِّيْنَ ۝٢١

په تحقیق سره چه کوم خلق دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول مخالفت کوی هغوی به ډیر زیات ذلیل خلقو کښے ګڼړلے شی۔

كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۝٢٢

الله فیصله کړے ده چه زهٔ او څما رسُول به غالب راځی۔ په تحقیق سره الله طاقت ور (او) غالب دے۔

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَاۗدُّوْنَ مَنْ حَاۗدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَاۗءَهُمْ اَوْ اَبْنَاۗءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ۭ اُولٰۗىِٕكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ وَاَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ ۭ وَيُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ اُولٰۗىِٕكَ حِزْبُ اللّٰهِ ۭ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝٢٢ ع

تهٔ به داسے هیڅ یو قام او نهٔ مومے چه په الله او په ورځ دَ آخرت هُم ایمان راوړی او دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسُول په سخته مخالفت کوونکی سره هُم مینه لری۔ هرڅوکه داسے خلق دَ هغوی پلاران وی یا دَ هغوی ځامن وی یا رونړه وی یا دَ هغوی دَ خاندان نه وی۔ هُم دا (مومنان) دی چه دَ چا په زړو لو کښے الله ایمان نقش کړے دے۔ او دَ خپل طرف نه ئے کلام (الیږلو سره) دَ هغوی مدد کړے دے او هغه به هغوی په داسے جنتونو کښے داخلوی چه دَ هغو لاندے به نهرونه بهیږی۔ هغی به هغو کښے تل تر تله اوسی۔ الله هغوی نه راضی شو او هغوی الله نه راضی شول هغوی دَ الله دَ ډلے دی (او) واوریٔ چه هُم دَ الله ډله مراد ته رسی۔

ع ٣




سورة حشر- دا سورة مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے پنځویشت ۲۵ آیتونه او درے ۳ رکوع دی-

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے-

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ②

په آسمانونو او زمکه چه څه دی دَ الله ثنا وائی او هغه (یعنی الله) غالب (او) دَ حکمت خاوند دے-

هُوَ الَّذِيْۤ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ؔ مَا ظَنَنْتُمْ اَنْ يَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْۤا اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا ۗ وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَاَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ ۗ فَاعْتَبِرُوْا يٰۤاُولِي الْاَبْصَارِ ③

وقف النبي عليه السلام

هُم هغه (یعنی خدائے) دے چا چه کافران دَ اهل کتابو نه دَ رومبنی جنګ په وخت دَ هغوی دَ کورونو نه اوباسل او تاسو خیال نهٔ کولو چه هغوی به اوزی او هغوی خیال کولو چه دَ هغې قلعه ګانے به دَ الله په مقابله هغوی بچ کړی او الله هغوی له دَ هغه خوا نه راغے چرته نه چه دَ هغوی ګمان هُم نهٔ وه- او دَ هغوی په زړونو کښے هغهٔ رُعب واچولو هغوی خپل کورونه (ړنګ نو) دَ خپل لاسه او (ړنګه) دَ مومنانو دَ لاسه خرابول- بیا اے دَ پوهے خاوندانو! عبرت حاصل کړئ-

وَلَوْلَاۤ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا ۗ وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ④

او که چرے الله په هغوی وطن پریښول فرض کړے نهٔ وے نو هغوی ته به ئے دے دُنیا کښے هُم عذاب ورکوله او آخرت کښے دَ هغوی دَ پاره دَ دوزخ عذاب دے-

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَآقِّ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ⑤

دا هر څه دے دَ پاره اوشول چه هغوی الله او دَ هغهٔ رسُول سره اختلاف اوکړو او څوک چه الله سره اختلاف کوی هغه دِ یاد اوساتی چه په تحقیق

سره دَ الله عذاب سخت دے۔

مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِىَ الْفٰسِقِيْنَ ۝٥

تاسو دَ کجهورے دَ ونے څه جرړه پرے نکړه یا هغه دِ یه جرړو اونهٔ درولٔه وے دا دَ الله یه حُکم وه او دے دَ پاره وه چه نا فرمان رُسوا کرے شی۔

وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٦

اوچه څه الله دَ هغوی (یعنی بے لارو خلقو) دَ مال نه خپل رُسول له ورکړل (تاسو ته معلومه ده چه) تاسو خپل آسونه او اوښان دَ هغے مال دَ ترلاسه کولو دَ پاره زغلولی نه وُو۔ وے الله یه خپلو رُسولانو کښے چه دَ څه غواړی مالک جوړوی او الله یه هرڅیز قادر دے۔

مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ كَىْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ ۚ وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝٧

دَ کلو دَ خلقو چه کوم مال الله خپل رُسول له ورکړو هغه دَ الله او دَ رُسول (دے) او دَ نزدے خپلوانو (دے) او دَ یتیمانو (دے) او دَ مسکینانو (دے) او دَ مسافرانو دے۔ دَ پاره دَ دے چه هغه مال یه تاسو کښے دَ مالدارو ترمنځه چکر اونهٔ خوری۔ اوچه رُسول څه تاسو له درکړی هغه واخلئ اوچه څه نه موښے کړی هغے نه منع شی او دَ الله تقویٰ اوکړئ۔ یه تحقیق سره دَ الله عذاب ډیر سخت وی۔

لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝٨

دا (مال سوا دَ پورته ذکرشوو خلقو نه) دَ غریبانو مهاجرو حق دے څوک چه دَ خپلو کورونو نه او مالونو نه (بے دخله کولو سره) وایستلی شوی وُو۔ هغوئ دَ الله فضل او دَ هغهٔ رضا غواړی او (زیل ترتله) دَ الله (دَ دین) او دَ هغهٔ دَ رُسول مدد کوی۔ هُم هغه خلق (یه ایمان کښے) ریښتونی دی۔

وَالَّذِيْنَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ

او (دا شان هغه مال دَ هغو خلقو دَ ... هُم دے) چه یه مدینه کښے دَ پرومبئ نه ... او (دَ مهاجرینو دَ

حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ
كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۗ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ
فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۚ ﴿١٠﴾

رانلو نه آكا هُوئے ) ايمان راوړے وه او هغوي سره
محبت كولو چا چه دَ هغوي په طرف هجرت اوكړو او
په خپلو زړونو كښے ئے دَ دے مال خواهش نهٔ لرلو
چه هغوي ته وركړے شوے وه او هغوي سره دَ دے
چه خپله غريبان وُو مهاجرين ئے په خپلو نفسونو غوره
گنړل او كوم خلق چه دَ خپل نفس دَ بُخل نه محفوظ
اوساتلے شي داسے ټول خلق مراد ته رسيدُونكي دي۔

وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ
لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا
تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ
رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿١١﴾ ع ١

او كوم خلق چه دَ هغوي دَ زمانے نه پس راغلل هغوي
وائي چه يَه خمونږه ربه ! مونږه او خمونږه مخه رونړه
او بخښے چه مونږ نه آكا هُوئے ايمان راوړے دے
او خمونږ په زړونو كښے مومنانو سره كينه پيدا مهٔ
كړے - يَه خمونږه ربه ! ته ډير مهربانه راو ) بے حده
فضل كوُونكے ئے ۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ
كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ
مَعَكُمْ وَلَا نُطِيْعُ فِيْكُمْ اَحَدًا اَبَدًا ۙ وَّاِنْ قُوْتِلْتُمْ
لَنَنْصُرَنَّكُمْ ۗ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿١٢﴾

آيا تا هغه منافقان اونهٔ ليدل چه اهلِ كتابو كښے خپلو
كافرو رونړو ته وائي چه كچرے تاسو ( دَ مدينے ) نه
اوباسلے شوئ نو مونږ به تاسو سره سم اُوزو او ستاسو
خلاف به چرے دَ چا خبره نهٔ منو او كچرے تاسو سره
جنگ اوشو نو مونږ به ستاسو مدد كوُو او الله گواهي
وركوي چه هغوي دروغژن دي۔

لَئِنْ اُخْرِجُوْا لَا يَخْرُجُوْنَ مَعَهُمْ ۚ وَلَئِنْ قُوْتِلُوْا
لَا يَنْصُرُوْنَهُمْ ۚ وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ۫
ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿١٣﴾

كچرے هغوي ( يعني اهلِ كتاب ) اوباسلے شول نو دوئ
( يعني منافقان ) به هغوي سره كله هُم او نهٔ زي او
كچرے هغوي ( يعني اهل كتابو ) سره جنگ اوشو نو
دوئ ( يعني منافق ) به دَ هغوي كله هُم مدد نهٔ كوي
او كچرے مدد ئے اوكړو هُم نو ( په داسے ناخوانئ به
كوي چه ) جنگ كيدو سره به مخ په شا زغلي او ( هغوي

په دَ هغوی لاڅهٔ مدد کوی دَ خطرے په وخت به) دَ هغوی خپل مدد کوونکے څوک نهٔ وی۔

لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِیْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَفْقَهُوْنَ ﴿۱۳﴾

(به مومنانو!) ستاسو نه ویره دَ هغوی (یعنی منافقانو) په زړونو کښے دَ الله نه هُم ډیره ده۔ دا خبره دے دَ پاره ده چه هغوی یو داسے ټولئ دے چه پوهه نهٔ لری۔

لَا یُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِیْعًا اِلَّا فِیْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ بَاْسُهُمْ بَیْنَهُمْ شَدِیْدٌ تَحْسَبُهُمْ جَمِیْعًا وَّ قُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَعْقِلُوْنَ ﴿۱۴﴾

هغوی به کله هُم تاسو سره جنګ نهٔ کوی سوا دَ دے چه دَ دنګو دنګو او مضبوطو دیوالونو په قلعو کښے دَ دیوالونو په شا ناست وی، دَ هغوی جنګ خپلو کښے ډیر سخت وی ته هغوی یو تام ګنړے وے دَ هغوی زړونه شلیدلی وی۔ دا ځکه چه هغوی دَ داسے قام خلق دی چه عقل نهٔ لری۔

كَمَثَلِ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِیْبًا ذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۱۵﴾

دَ هغوی حال دَ هغو (قامونو) په شان دے چه دَ هغوی نه اګاهو په نږدے زمانه کښے تیر شوی دی هغوی دَ خپلو کارونو انجام اولیدو او هغوی ته دردناک عذاب اورسیدو۔

كَمَثَلِ الشَّیْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّنْكَ اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۱۶﴾ فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَآ اَنَّهُمَا فِی النَّارِ خَالِدَیْنِ فِیْهَا وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِیْنَ ﴿۱۷﴾ ع۶

(ورسره) دَ هغوی (یعنی دَ منافقانو) حال دَ شیطان غوندے دے هر کله چه هغه انسان ته خو داوائی چه انکار اوکړه ولے هر کله چه هغه انکار اوکړو (شیطان) هغهٔ ته وائی زهٔ تا نه ویزاره یم۔ زهٔ دَ الله نه ویریږم چه دَ ټولو جهانونو رب دے بیا نو دَ هغوی دواړو انجام داوی چه هغوی دواړه جهنم کښے پریوزی۔

یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾

یه مومنانو! دَ الله تقوی اوکړئ او پکار دی چه هر یو نفس دَ دے خبرے خیال اوساتی چه هغهٔ دَ پاره څهٔ وړاندے استولی دی او تاسو نول دَ الله تقوی کوئ

الله ستاسو دَ عملونو نه ښهٔ خبر دے۔

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ فَأَنسٰهُمْ أَنفُسَهُمْ ۚ أُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُونَ ﴿۱۹﴾

او دَ هغهٔ خلقو په شان مهٔ جو ړیګئ چا چه الله هیر کړو۔ بیا الله هُم هغوی نه دَ ځیلو ځانونو سُود منه هیر کړه۔ دا خلق دَ اطاعت نه وتونکی دی۔

لَا يَسْتَوِي أَصْحٰبُ النَّارِ وَأَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُونَ ﴿۲۰﴾

دوزخیان او جنتیان برابر نشی کیدے هُم جنتیان کامیاب دی۔

لَوْ أَنزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰى جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خٰشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۚ وَتِلْكَ الْأَمْثٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿۲۱﴾

کچرے دا قرآن مونږ چرته په غر نازل کړے وے نو تا به هغه لیدو چه هغه به دَ ادب نه ټیټیدلے او دَ الله دَ ویرے نه به ټوټے ټوټے وے او دا خبرے کوے چه مونږ ( تا ته ) وایو دا دَ ټولو انسانانو دَ پاره دی دَ پاره دَ دے چه هغوی سوچ اوکړی۔

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهٰدَةِ ۖ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ ﴿۲۲﴾

هُم الله دے چه دَ هغهٔ نه سوا بل دَ عبادت لائق نشته هغه پټ او ښکاره پیژنی۔ هُم هغه بے کچه فضل کوونکے (خدائے) دے او (هُم هغه) بیا بیا رحم کوونکے (خدائے) دے

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ۚ سُبْحٰنَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۲۳﴾

(حقه دا ده چه) الله هغه دے چه دَ هغهٔ نه سوا دَ عبادت لائق هیڅوک نشته هغه بادشاه دے (ځیله) پاک دے او نور پاکوی) ځیله دَ هر عیب نه سلامت دے (او نور سلامت ساتی) ټولو له امن ورکوونکے دے او دَ ټولو نګران دے غالب دے۔ او ټول مات زړونه جوړ وی۔ دَ لوئے شان خاوند دے۔ کوم څیزونه چه دا خلق دَ هغهٔ شریکان ګرزوی دَ هغونه الله پاک دے۔

هُوَ اللَّهُ الْخٰلِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ ۖ لَهُ الْأَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ۚ يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿۲۴﴾

(حقه هُم دا دچه) الله دَ هر څیز پیدا کوونکے او دَ هر څیز (ایجاد کوونکے) هُم دے۔ دَ هغه بے شمیره ښهٔ صفتونه دی۔ آسمانونو او زمکه کښے چه څه دی دَ هغهٔ ثنا وائی او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔ ع ۳

## سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورة ممتحنه - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے څوارلس^١٤ آيتونه او دوه^٢ رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ⓪

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکے دے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ
اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا
جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ
تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ؕ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا
فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ ۖ تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ
بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَاۤ اَخْفَيْتُمْ وَمَاۤ اَعْلَنْتُمْ ؕ
وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ①

(اے مومنانو!) تاسو خپل دښمنان خوارهٔ دوستان مهٔ جوړوئ - تاسو خو هغوی ته دَ مينے پيغامونه استوئ ولے هغوئ دَ هغے حقو انکاريان دی چه تاسو له راغلے دے - هغوی تاسو هُم او رسُول هُم لس دے دَ پاره چه تاسو ټول په الله چه ستاسو رب دے ايمان راوړے دے دَ جنګ دَ پاره (دَ کورونو نه) اوباسی - کچرے تاسو څما په لاره کښے دَ کوشش دَ پاره او څما دَ رضا دَ پاره اوزئ نو په تاسو کښے بعضے پټ په پټه دَ هغوی په طرف دَ مينے پيغامونه استوی او زهٔ ښهٔ خبريم دَ هغے نه چه تاسو ئے پټوئ او چه تاسو ئے ښکاره کوئ او چه څوک په تاسو کښے دا سے کار اوکړی هغه دِ لوه شی چه هغه دَ نيغے لارے نه بے لارے شو -

اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّيَبْسُطُوْۤا اِلَيْكُمْ
اَيْدِيَهُمْ وَاَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَوَدُّوْا لَوْ
تَكْفُرُوْنَ ؕ ②

کچرے دَ هغوی په تاسو وس برشی نو تاسو ته به معلومه شی چه هغوی ستاسو دښمنان دی او ستاسو دَ تباهئ دَ پاره خپلو لاسونو او ژبو سره بيا بيا کوشش کوی او هغوی دا غواړی چه تاسو کافران شئ -

لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ وَلَاۤ اَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ
يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ③

تاسو ته نهٔ ستاسو دَ وينے خپلوئ او نهٔ اولاد دَ قيامت په ورځ سودمنه درکوے شی - هغهٔ ورځ به خدائے فيصله کوی او الله ستاسو عملونو ته په ښه شان ګيا دے

کوری ۔

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ وَالَّذِیْنَ مَعَهٗ ۚ اِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۫ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَیْنَنَا وَبَیْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ اَبَدًا حَتّٰی تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗۤ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِیْمَ لِاَبِیْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَاۤ اَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ ؕ رَبَّنَا عَلَیْكَ تَوَكَّلْنَا وَاِلَیْكَ اَنَبْنَا وَاِلَیْكَ الْمَصِیْرُ ۝

دَ ابراهیم او دَ هغهٔ په ملګرو کښې تاسو دَ پاره یوه ښه نمونه ده ا هرکله چه هغوی خپل قام ته او وئیل چه مونږ دَ تاسو نه او الله نه سوا دَ هغه چا نه چه تاسو ئې عبادت کوئ دَ سره ویزاره یو مونږ ستاسو دَ خبرو انکار کوو او څمونږ او ستاسو ترمنځه عداوت او بغض ترهغه وخته پورې ښکاره شوے دے چه تاسو په خُدائے ایمان راوړئ هغ مونږ دَ ابراهیم وعده چه هغهٔ خپل پلار سره کړے وه دے کښې نهٔ شمیرو۔ هغه داوه چه زهٔ ستا دَ پاره استغفار کوم۔ ولے دَ الله په مقابله کښې زهٔ ستا په هیڅ قسم مدد کولو قادر نهٔ یم او (ابراهیم دا هُم اووئیل چه) مونږ په تا توکل کوو او تا ته تیتمیکو او هُم تا ته څمونږ واپس کیدل دی۔

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ۝

یه څمونږه ربه ! مونږه دَ کافرانو دَ پاره دَ ښندک وهلو موجب مهٔ جوړوه او څمونږ قصور معاف کړه یه څمونږ ربه ! تهٔ ډیر غالب (او) دَ حکمت خاوند ئے۔

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِیْهِمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ یَرْجُوا اللّٰهَ وَالْیَوْمَ الْاٰخِرَ ؕ وَمَنْ یَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ ۝ ع

هغهٔ خلقو کښې تاسو دَ پاره یوه ډیره ښه نمونه ده یعنی هر هغه چا دَ پاره چه دَ الله او دَ آخرت دَ ورځے دَ لیدو اُمید لری او څوک چه مخ واړوی هغه دِ یاد لری چه الله بیخی بے نیازه دے (او) دَ ډیرو تعریفونو لائق دے۔

عَسَى اللّٰهُ اَنْ یَّجْعَلَ بَیْنَكُمْ وَبَیْنَ الَّذِیْنَ عَادَیْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ؕ وَاللّٰهُ قَدِیْرٌ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ۝

نزدے ده چه الله ستاسو او دَ هغه خلقو ترمنځه چه په کافرانو کښې ستاسو دښمنان دی مینه پیدا کړی او الله په دے قادر دے او الله ډیر بخښونکے (او)

بے کچه رحم کوونکی دے۔

لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي
الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ
وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۹

الله تاسو دَ هغو خلقو سره دَ نیکئ کولو او دَ عدل سلوک کولو نه منے کوی چه تاسو دَ دینی اختلاف له کبله او نهٔ جنګیدل او چا چه تاسو دَ خپلو کورونو نه اوخکلی نهٔ یئ۔ الله انصاف کوونکی خوښوی۔

اِنَّمَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ
وَاَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ وَظٰهَرُوْا عَلٰٓي اِخْرَاجِكُمْ
اَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۱۰

الله تاسو لس هغو خلقو سره (دَ دوستیٔ کولو نه) منے کوی چا چه تاسو سره دَ دینی اختلاف له کبله جنګ اوکړو او چا چه تاسو دَ کورونو نه اوباسلئ یا ستاسو په اوباسلو کښے ئے ستاسو دَ نورو دښمنانو مدد اوکړو او څوک هُم چه داسے خلقو سره دوستی اوکړی هغوی ظالمان دی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَاۗءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ
فَامْتَحِنُوْهُنَّ ۭ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ
مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ ۭ
لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ
لَهُنَّ ۭ وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ۭ وَلَا جُنَاحَ
عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ
اُجُوْرَهُنَّ ۭ وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ
وَسْـَٔـلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔـلُوْا مَآ اَنْفَقُوْا ۭ
ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ ۭ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ
عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۱۱

یَه مومنانو! هر کله چه تاسو له مومنانے ښځے په هجرت راشی نو دَ هغوی په ښهٔ شان آزمیښت کوئ الله دَ هغوی دَ ایمان نه ښهٔ خبر دے وے که تاسو هُم پرے ځان خبر کړئ چه هغوی مومنانے ښځے دی نو هغوی کافرانو ته مهٔ والپس کوئ نهٔ هغی هغوی (یعنی کافرانو) دَ پاره روا دی او نهٔ هغوی (یعنی کافران) دَ هغی (یعنی ښځو) دَ پاره روا دی او پکار دی چه کافرانو په هغو (ښځو په نکاح) خرڅ کړے وی هغه هغوی ته والپس کړئ او (هر کله چه تاسو هغه ښځے دَ کافرانو نه خلاصے کړئ نو) دَ هغوی معاوضے (یعنی مهر) ادا کولو په صورت کښے کچرے تاسو هغوی سره واده اوکړئ نو په تاسو څه اعتراض نشته او دَ کافرانو ښځو ننګ وناموس خپل اختیار کښے مهٔ ساتئ او څه چه تاسو په هغوی خرڅ کړی دی (کچرے هغوی په تیښته کافرانو له لاړے شی نو کافرانو نه اوغواړئ) او (کچرے دَ کافرانو ښځے

مسلمانے شی او مسلمانانو له راشی) نو چه څه هغوی (په خپلو نکاحونو) خرڅ کړی دی، دَ مسلمانانو نه دِ او غواړی دا تاسو ته دَ الله حُکم دے هغه ستاسو تر منځه فیصله کوی او الله علم لرونکے (او) دَ حِکمت خاوند دے۔

وَاِنْ فَاتَكُمْ شَیْءٌ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ اِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ فَاٰتُوا الَّذِیْنَ ذَهَبَتْ اَزْوَاجُهُمْ مِّثْلَ مَاۤ اَنْفَقُوْا ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْۤ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿١١﴾

او کچرے ستاسو ښځو کښے څوک کافرانو له لاړے شی او دَ دے نه پس ستاسو لاس ته هُم څوک کافره ښځه (دَ جنګی قیدی په طور) راشی نو تاسو هغه خلقو ته دَ چا ښځے چه په تیښته کافرانو له ورغلی دی دَ هغوی دَ اصل خرڅ هومره کوم چه هغوی په خپلو نکاحونو کړے وه، ورکړئ او دَ الله تقویٰ کوئ چه په چا تاسو ایمان راوړئ۔

یٰۤاَیُّهَا النَّبِیُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ یُبَایِعْنَكَ عَلٰۤى اَنْ لَّا یُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَیْـًٔا وَّلَا یَسْرِقْنَ وَلَا یَزْنِیْنَ وَلَا یَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا یَاْتِیْنَ بِبُهْتَانٍ یَّفْتَرِیْنَهٗ بَیْنَ اَیْدِیْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ وَلَا یَعْصِیْنَكَ فِیْ مَعْرُوْفٍ فَبَایِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿١٢﴾

اے نبیؐ! هر کله چه تاله ښځے دَ مسلمانئ په حیث راشی او بیعت کول او غواړی په دے شرط چه هغوی به الله سره چاله شریک نه کړ زوئ او نهٔ به غلا کوئ او نهٔ به زنا کوئ او نهٔ به اولاد قتلوئ او نهٔ به په دروغو تومت په چا تړئ او په نیکو خبرو کښے به ستا خلاف نهٔ کوی نو دَ هغوی بیعت اخله او هغوی دَ پاره استغفار کوه الله ډیر بخښونکے (او) بے کچه رحم کوونکے دے۔

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ قَدْ یَىٕسُوْا مِنَ الْاٰخِرَةِ كَمَا یَىٕسَ الْكُفَّارُ مِنْ اَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ ﴿١٣﴾

یه مومنانو! چا دا سے قام سره دوستی مهٔ کوئ چا نه چه خدائے خفه دے هغه خلق دَ آخرت ژوند نه دا سے نا اُمیده شوی دی څنګه چه کافران په قبرونو کښے دَ پرتو خلقو نه نا اُمیده شوی دی۔ ع ٢

سُوْرَةُ الصَّفِّ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورۃ صف - دا سورۃ مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے پینځلس آیتونه او دوه رکوع دی۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروع کوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔ |
| سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ② | په آسمانونو او زمکه کښے چه څه هم دی دَ الله ثنا وائی او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔ |
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ③ | اے مومنانو! تاسو هغه خبرے ولے وائی چه نۀ ئے کوئ۔ |
| كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ④ | دَ خدائے په نزد دَ دے خبرے دعوی کول چه تاسو ئے نۀ کوئ، ډیره ناخوښه ده۔ |
| اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ ⑤ | الله خو هغه خلق خوښوی چه دَ هغهٔ په لاره کښے صف تړلی جنګیږی لکه چه هغوی یو دیوال دی چه دَ هغے دَ کلکوالی دَ پاره په هغے ویلے کړے سیسه اچولے شوے وی۔ |
| وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ ۖ فَلَمَّا زَاغُوْۤا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ⑥ | او (یاد کړئ) هر کله چه موسیٰ خپل قام ته اووئیل، اے ځما قامه! تاسو ماله ولے تکلیف راکوئ، حال دا چه تاسو پوهیږئ چه زۀ ستاسو په طرف دَ الله نه دَ رسُول په حیث راغلے یم۔ ولے هر کله چه سره دَ دے هغه خلق دَ نیغے لارے نه بے لارے شول نو الله دَ هغوی زړونه کاږۀ کړل او الله دَ اطاعت نه وتونکو ته دَ کامیابۍ لاره نۀ ښائی۔ |
| وَاِذْ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ يٰبَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ | او (یاد کړئ) هر کله چه عیسیٰ ابن مریم خپل قام ته اووئیل چه اے بنی اسرائیلو! زۀ دَ الله دَ خوا نه ستاسو |

التَّوْرٰىةِ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِي
اسْمُهٗٓ اَحْمَدُ ۭ فَلَمَّا جَاۗءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ قَالُوْا هٰذَا
سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۷

په طرف رسُول راغلے یم ۔کوم (کلام) چه څما د راتلو نه وړاندے نازل شوے دے (یعنی تورات) د هغے پیش خبری زه پوره کوم او د یو داسے رسُول هُم خبر درکوم چه ما نه پس به راځی چه د هغهٔ نوم به احمد وی بیا هر کله چه هغه رسُول دلیلونو سره راغے نو هغوی او وئیل دا خو ښکاره ښکاره فریب دے۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ
يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ
الظّٰلِمِيْنَ ۝۸

او د هغه چا نه ظالم څوک کیدے شی چه په الله دروغ او تړی حال دا چه هغه اسلام ته رابللے شی او الله ظالمانو ته کله هُم هدایت نه ورکوی۔

يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِــــُٔـوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَاللّٰهُ مُتِمُّ
نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝۹

هغوی غواړی چه په خپلو خُلو د الله نور مړ کړی او الله به خپل نُور پوره کوی هر څو که کافران دیر هُم ناخوښه کړی۔

هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ
لِيُظْهِرَهٗ عَلَي الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۙ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ۝۱۰ ع

هغه هُم خدائے دے چا چه خپل رسُول هدایت سره او رښتنی دین سره لیږلے دے د پاره د دے چه دا په ټولو دینونو بر راولی۔ هر څو که مشرکان دا ناخوښوی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰي تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ
مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝۱۱

یه مومنانو! آیا زهٔ تاسو ته د یو داسے تجارت خبر درکړم چه تاسو د یو دردناک عذاب نه اوساتی۔

تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ
بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ ۭ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ
تَعْلَمُوْنَ ۝۱۲

(هغه تجارت دا دے چه) تاسو په الله او د هغهٔ په رسُول ایمان راوړئ او د الله په لاره کښے خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوئ ۔ که چرے تاسو پوهیږئ نو دا ستاسو د پاره ډیره ښه ده۔

يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ
مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ
عَدْنٍ ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝۱۳

(ستاسو په دا سے کولو به) هغه ستاسو ګناهونه معاف کوی او تاسو به هغه جنتونو کښے داخلوی چه هغے لاندے به نهرونه بهیږی او د تل عمری او پاتے کیدونکو

جنتونو پاکو مکانونو کښې ربه تاسو ساتي ) دا لویه کامیابي ده (چه هغه به ئې تاسوله درکوي).

وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ۗ
وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾

دے نه سوا یو بل تحیز هُم دے چه هغه تاسو ډیر غواړئ هغه دَ الله مرسته ده او یوه ډیر زر حاصلیدونکے فتح ده او مومنانوله زیرے ورکړه (چه هغوی ته به یوه بله ذر حاصلیدونکے فتح هُم حاصلیګي).

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ
عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى
اللَّهِ ۖ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ ۖ فَآمَنَت
طَّائِفَةٌ مِّن بَنِي إِسْرَائِيلَ وَكَفَرَت طَّائِفَةٌ ۖ
فَأَيَّدْنَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا
ظَاهِرِينَ ﴿١٥﴾

اَے مومنانو! تاسو دَ الله (دَ دین) مددګار جوړ شئ تحنګه چه عیسیٰ ابن مریم، هرکله چه حواریانو ته اووئیل چه خدائے ته (ننزدے کوونکي) کارونو کښې څما څوک مددګار دے نو هغوی اووئیل مونږ دَ الله دَ دین مددګار یو۔ بیا دَ بني اسرائیل یوے ډلے خو ایمان راوړو او یوے ډلے انکار اوکړو۔ چه په هغے مونږ دَ مومنانو دَ هغوی دَ دښمنانو خلاف مدد اوکړو او مومنان غالب شول۔




سورة الجمعه۔ دا سورة مدني دے او لبسم الله سره دَ دے دولس[١٢] آیتونه او دوه[٢] رکوع دی۔

---

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿١﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ الْمَلِكِ
الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿٢﴾

په آسمانونو او زمکه کښې چه څه هُم دی هغه دَ الله ثنا وائي، دَ هغه (الله) چه بادشاه هُم دے او پاک (هُم دے او دَ ټولو خولو لرونکے) دے او غالب

(او) دَ حکمت خاوند دے۔

هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝۳

هُم هغه خدائے دے چا چه دَ يو نالوستی قام په طرف هغی نه يو سړے دَ رُسول په حيث اوليکلو (سره دَ نالوستیٔ) هغوی ته دَ خدائے احکام اوروی او هغوی پاکوی، او هغوی ته کتاب او حکمت ښائی او هغوی دے نه آګاهو ډير غفلت کښے وُو۔

وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۴

او دَ هغوی نه سوا يو بل قام کښے هُم به هغه هغهٔ له استوی چه لا پورے هغوی سره يو ځائے نهٔ دے او هغه غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝۵

دا دَ الله فضل دے چا له چه غواړی ورکوی او الله ډير فضل کوُونکے دے۔

مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا ۚ بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۚ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝۶

په کومو خلقو چه دَ تورات اطاعت واجب شوے دے وے سره دَدے هغوی په دے عمل او نکړو دَ هغوی مثال دَ خر دے چه هغهٔ ډير کتابونه په شا کړی وی (وے پوهيږی هيڅ نا) دَ الله دَ احکامو انکار کوونکی قام حال ډير بد وی او الله ظالم قام ته دَ کاميابئ مخ نهٔ ښائی۔

قُلْ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا اِنْ زَعَمْتُمْ اَنَّكُمْ اَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝۷

ته اووايه، "يه يهوديانو! کچرے ستاسو دا دعوی ده چه تاسو دَ باقی دُنيا په ځائے دَ الله دوستان يئ او دَ هغهٔ په پناه کښے يئ نو کچرے تاسو (دے دعوی کښے) رښتنی يئ نو مرګ اوغواړئ (يعنی رسول کريمؐ سره مباهله اوکړئ)۔"

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗٓ اَبَدًا ۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ ۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝۸

وے هغوی دَ خپلو تيرو شوو عملونو له کبله کله هُم دَ مباهلے دَ پاره تيار نهٔ وی او الله دَ ظالمانو نه ښـهٔ واقف دے۔

قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ

ته او وايه چه هغه مرګ چه تاسو ترے نه تختئ

ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ
بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩﴾

يوه ورځ به خامخا تاسو را اونيسي بيا به تاسو د پټ
ع اوښكاره علم لرونكي خدائے په طرف واپس كيږی او
هغه به تاسو ستاسو د عملونو نه خبر كړی -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ
الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذٰلِكُمْ
خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿١٠﴾

يه مومنانو! هركله چه تاسو د جمعے په ورځ د
نمونځ د پاره را اوبللے شئ (يعنی د جمعے نمونځ
د پاره) نو د الله د ذكر د پاره په تادئ تادئ زئ او
(راخستل او) خرڅول پريږدئ - كچرے تاسو څه علم
لرئ نو دا تاسو د پاره ښه خبره ده -

فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ
وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا
لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿١١﴾

او هركله چه نمونځ ختم شی نو په زمكه خوارۀ شئ -
او د الله فضل لټوئ او الله ډير يادوئ د پاره د
دے چه تاسو كامياب شئ -

وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْۤا اِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ
قَآئِمًا قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ
التِّجَارَةِ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿١٢﴾

او هركله چه دا خلق د تجارت يا د لوبے خبره وينی
نو تا نه بيل د هغے په طرف ورزی او تا يوازے پريږدی
ع ٢ ١٢ هغوی ته او وايه چه څه الله سره دی هغه د لوبے
د خبرے بلكه د تجارت نه هم ښهٔ دی - او الله ډير
ښه رزق وركونكے دے -

# سُوْرَةُ الْمُنٰفِقُوْنَ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اِثْنَتَا عَشَرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورۃ منافقون - دا سورۃ مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے دولس آیتونه او دوه رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَ اللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ②

هرکله چه تاله منافق رازی نو هغوی وائی چه مونږ په قسم گواهی ورکوو چه ته دَ الله رسول ئے او الله ته معلومه ده چه ته دَ هغهٔ رسول ئے۔ (او سره دَ دے) الله په قسم گواهی ورکوی چه منافقان دروغژن دی۔

اِتَّخَذُوْۤا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ③

هغوی خپل قسمونه (ستا دَ نیولو نه دَ بچ کیدلو دَ پاره) ډال جوړ کړے دے او هغوی دَ الله دَ لارے نه خلق منع کوی۔ څه چه هغوی کوی ډیر بد دی۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ④

دا کار هغوی دَ دے دَ پاره کوی چه هغوی رومبی ایمان راوړو بیا هغوی انکار اوکړو چه دَ هغے په نتیجه کښے دَ هغوی په زړونو مهر اولګولے شو او اوس هغوی نهٔ پوهیږی۔

وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ؕ وَ اِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ؕ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ؕ يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ؕ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۫ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ⑤

هرکله چه ته هغوی وینے نو دَ هغوی مضبوط بدنونه تا ته ښهٔ په نظر رازی او که هغوی څه خبره کوی (نو په داسے ښه طریقه چه) ته دَ هغوی خبره (سره دَ هغوی دَ حالاتو علم لرلو) اورے (هغوی مجلس کښے داسے ناست وی) لکه چه هغوی غټ غټ شهتیرونه دی چه دَ څه (دیوال سره) اډانره

شوی دی - هرکله چه دَ څه عذاب خبر (قرآن کښے) نازل شی نو هغوی خیال کوی چه دا هُم څمونږ پهقله دے - هغوی پاخهٔ دښمنان دی - بیا تهٔ هغوی نه ځان ساته - الله دِ هغوی تباه کړی هغوی کوم ځائے نه په راګرزولو (دَ حقے لارے نه لرے) بو تللے شی -

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ⑤

هرکله چه هغوی ته او وئیلے شی چه راشئ ! دَ الله رُسول تاسو دَ پاره استغفار اوکړی نو هغوی زخپل سرونه په کبراو انکار) اړوی او تهٔ هغوی وینے چه هغوی دَ حقے لارے نه خلق اړوی او هغوی دَ کبر په مرض کښے اخته دی -

سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ⑥

تهٔ که هغوی دَ پاره استغفار کوے یا نهٔ کوے دَ هغوی په حق یو برابر دی - ولے چه الله به هغوی هیڅکله نهٔ معاف کوی (تر څو پورے چه هغوی خپله توبه اونکړی) الله اطاعت نه وتونکی قام ته دَ کامیابی مخ نهٔ ښائی -

هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا ۗ وَلِلَّهِ خَزَائِنُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ ⑦

هُم دغه خلق دی چه وائی چه دَ الله رسُول سره چه کوم خلق اوسی په هغوی خرڅ مهٔ کوئ تر هغے چه هغوی (لوږو نه په تنګه) اونختی - حال دا چه دَ آسمانونو او زمکے خزانے هُم الله سره دی ولے منافقان نهٔ پوهیږی -

يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ ۚ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ⑧

ع ۱ ۱۳

هغوی وائی کچرے مونږ دَ مدینے په طرف واپس شولو دَ مدینے دَ تهولو نه عزت مند سړے به دَ مدینے دَ تهولو نه ذلیل سړے هغے نه اوباسی - او عزت الله او دَ هغهٔ رسُول او مومنانو ته حاصل دے

وے منافقان نۀ پوهيږی ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٠﴾

يَه مومنانو! تاسو دِ ستاسو مالونه او ستاسو اولاد دَ الله دَ ذکر نه غافل نکړی او څوک چه دا سے کوی هغوی نقصان اوچتونکی دی ۔

وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ فَاَصَّدَّقَ وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١١﴾

او يَه مومنانو! څه چه مونږ تاسو ته درکړی دی هغے نه دَ مرګ دَ راتلو نه آګاهو لګوئ هسے نه چه (هرکله مرګ راشی نو خرچ نۀ کووُنکے) په دے وئيلو مجبور شی چه يَه څما ربه! تا ما له وے څه لږ مولت رانکړو (دَ پاره دَ دے چه ما دے مولت کښے) څه صدقه ورکړے وے او نيک جوړ شوے وے ۔

وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ۚ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٢﴾

ع وے هرکله چه دَ چا مرګ راشی نو الله هغهٔ ته مولت نۀ ورکوی او الله ستاسو دَ عملونو نه واقف دے ۔


سُوْرَةُ التَّغَابُنِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورۃ تغابن - دا سورۃ مدنی دے او بسم الله سرۃ دَ دے نولس ١٩ آيتونه او دوه ٢ رکوع دی ۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے کچه مهربانه (او) بيا بيا رحم کووُنکے دے ۔

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ ۖ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢﴾

آسمانونو او زمکه کښے چه څه دی دَ الله ثنا وائی، بادشاهت هُم دَ هغهٔ دے او تعريف هُم دَ هغهٔ دے او هغه په هر څيز قادر دے ۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٣﴾

هُم هغه دے چا چه تاسو پيدا کړی يئ بيا تاسو کښے څوک نخو کافر شی او څوک مومن شی او الله ستاسو عملونو ته کوری ۔

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ

آسمانونه او زمکه هغهٔ په خاص غرض پيدا کړی دی

صُوَرَكُمْ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ③

او هُم هغه ستا سو صورتونه جوړ کړي دي او ستاسو صورتونه ئے ډیر ښهٔ جوړ کړي دي - او هُم دَ هغهٔ په طرف تاسو له واپس تلل دي -

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ④

آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي - هغه هغې نه خبر دے او هغهٔ عمل نه هُم خبر دے چه تاسو ئے پټوئ یا ښکاره کوئ او الله دَ زړهٔ دَ خبرونه هُم خبر دے -

اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ ۫ فَذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ⑤

آیا تاسو ته دَ خان نه دَ وړاندے کافرانو خبرونه نهٔ دي رسیدلی هغوی دَ خپلو عملونو سزا اوخوړه او دَ هغوی دَ پاره دردناک عذاب دے -

ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالُوْا اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا ۫ فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ⑥

دا دے دَ پاره اوشول چه هغوی له رسُولان سره دَ دلیلونو راتلل وے هغوی به هُم دا جواب ورکولو چه آیا هُم دَ انسان په شکل راتلُونکی به مونږ ته هدایت راکوی - (کچرے هدایت ورکول وُونو آسمان نه به فرښتے راکوزیدلے) بیا نو هغوی انکار اوکړو او شاتے کړه او الله هُم دَ هغوی ایمان نه بے نیازی ښکاره کړه او الله دَ هیچا حاجت نهٔ لری (او) دَ ډیرو تعریفونو لائق دے -

زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا ۭ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۭ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ⑦

کافران خیال کوی چه هغوی به کله هُم راژوندی کړی (نشی اوچتولے - "نهٔ" اووایه څنګه چه تاسو خیال کوئ دا سے به نهٔ وی بلکه ځما دِ ځما په رب قسم وی چه تاسو به راژوندی کړے شوی او چتولے شئ بیا به تاسو دَ خپلو عملونو نه خبرولے شئ او دا خبره په الله آسانه ده -

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ۭ وَاللّٰهُ

بیا به خلقو! په الله او دَ هغهٔ په رسُول ایمان

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۸﴾

راوړئ او په دے نور (یعنی قرآن) هُم چه مونږ نازل کړے دے۔ او الله ستاسو عملونه خبر دے۔

يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ۗ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۗ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۹﴾

کومه ورځ به چه تاسو ټول د یو ځائے کولو په ورځ (یعنی د قیامت په ورځ را ژوندی کړی) یو ځائے کوی دا به د ګټے او بیلا ت ورځ وی او چه څوک په الله ایمان راوړی او ورسره سم عمل کوی الله به هُم د هغهٔ بدئ پټوی او هغه به داسے جنتونو ته ورزی چه ورلاندے نهرونه بهیږی هغوی به تر تله هغو کښے اوسی، دا ډیره لویه کامیابی ده۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۗ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۰﴾

او چا چه انکار اوکړو او څمونږ د آیتونو تکذیب ئے اوکړو۔ هغوی دوزخیان دی (او) هغوی به دوزخ کښے تل تر تله اوسی او هغه ډیر بد ځائے دے۔

مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۱﴾

هیڅ یو مصیبت نهٔ رازی ولے د الله په حُکم۔ او څوک چه په الله ایمان راوړی۔ هغه د هغهٔ زړه د کامیابئ د طریقو په طرف اړوی او الله د هر څیز علم لری۔

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۲﴾

او د الله او د رسول اطاعت کوئ ولے کچرے تاسو واوړئ نو څمونږ په رسول بس په ښکاره خبره رسول فرض دی۔

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۗ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۳﴾

د الله نه سوا بل د عبادت لائق نشته او مومنانوله بس په الله توکل کول پکار دی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾

اے مومنانو! ستاسو په ښځو او اولاد کښے ځنے داسے دی چه ستاسو دشمنان دی بیا هغوی نه ځان ساتئ او کچرے تاسو د عفو نه کار واخلئ او مخ واوړئ او اوبخښئ نو الله ډیر معاف کوونکے (او) بے انتها

فضل کوونکے دے۔

إِنَّمَآ أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۚ وَاللَّهُ عِندَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٥﴾

ستاسو مالونه او ستاسو اولادونه دِ لوٓ آزمیښت ذریعه دی او الله سره لوئے اجر دے۔

فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَأَنفِقُوا خَيْرًا لِّأَنفُسِكُمْ ۗ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٦﴾

بیا چه څومره کیدے شی دَ الله تقوی کوئ او دَ هغهٔ خبره اورئ او دَ هغهٔ اطاعت کوئ او خپل مالونه دَ هغهٔ په لاره کښے لګوئ دا به ستاسو دَ پاره ډیره ښهٔ دی او کوم خلق چه خپل زړهٔ دَ بُخل نه ساتلے شی هغوی مراد ته رسی۔

إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾

کچرے تاسو دَ الله دَ پاره دَ خپلو مالونو نه یوه ښه برخه بیله کړئ نو هغه به دا برخه تاسو دَ پاره زیاتوی او ستاسو دَ پاره به دَ بخښنے سامان پیدا کوی او الله ډیر قدردان دے او په هره خبره پوهیدونکے دے۔

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾ ع ۲

هغه دَ حاضر او دَ غیب علم لری او غالب (او) دَ حکمت خاوند دے۔




سورۃ طلاق۔ دا سورۃ مدنی دے او بسم الله سره دَ دے دیارلس ۱۳ آیتونه او دوه ۲ رکوع دی۔

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿١﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ ۖ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَن

اے نبی! (او دَ هغهٔ مؤمنانو) هرکله چه تاسو ښځو له طلاق ورکوئ نو هغوی ته دَ مقرر وخت سره سم ورکوئ او (طلاق نه پس) دَ وخت اندازه ساتئ او دَ الله

يَّأْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۭ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۭ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ①

چه ښتا رب دے، تقوىٰ کوئ - هغوى د خپلو کورونو نه مه اوباسئ اونهٔ دِ هغوى خپله اُوزى سوا د دے چه په ښکاره گناه اوکړى او دا د الله حدونه دى او څوک چه د الله حدونه ماتوى هغه په خپل ځان ظلم کوى (اے طلاق ورکوونکيه !) تا ته معلومه نهٔ ده چه کيدے شى چه الله د دے واقعے نه پس څه نُور ښکاره کړى-

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ۭ ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ②

بيا هر کله چه ښځے د عدت آخرى حد ته اورسى نو هغوى په مناسب ډول حصارے کړئ يا هغې په مناسب ډول پريږدئ او په خپلو کښے انصاف کوونکى گواهان مقرر کړئ او خدائے د پاره رښتونے گواهئ ورکوئ تاسو کښے چه څوک په الله او په ورځ د آخرت ايمان راوړى هغهٔ ته دا نصيحت کيږى يادے او څوک چه داسے تقوىٰ کوى الله به هغه د پاره څه نه څه لار را اوباسى-

وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ۭ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۭ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ③

او هغهٔ ته به هغه ځائے نه رزق ورکوى چرته نه به چه د رزق د راتلو د هغهٔ خيال هم هم نهٔ وى - او چه څوک په الله توکل کوى هغه (الله) هغهٔ د پاره بس دے - په تحقيق سره الله خپل مقصد سر ته رسوى - الله د هر څيز اندازه مقرره کړے ده-

وَالّٰٓـِٔيْ يَىِٕسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَاۗىِٕكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ وَّالّٰٓـِٔيْ لَمْ يَحِضْنَ ۭ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۭ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ④

او ستاسو ښځو کښے (هغه ښځے) چه د حيض د راتلو نه نا اُميده شوى وى کچرے (د هغوى د عدت په مقله) تاسو ته شک وى نو د هغوى عدت درے مياشتے دے او دا شان د هغو هُم چه د ا حيض نهٔ راځى او چه د کومو ښځو په خيټو څهٔ وى (يعنى چه کومے ښځے په اُميد وى) د هغوى عدت د ماشوم

کیدو پورے دے او چه څوک دَ الله تقوىٰ اوکړی الله به خامخا دَ هغهٔ په کار کښے آسانی پیدا کوی۔

ذٰلِكَ اَمۡرُ اللّٰهِ اَنۡزَلَهٗۤ اِلَيۡكُمۡ‌ؕ وَمَنۡ يَّتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرۡ عَنۡهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعۡظِمۡ لَهٗۤ اَجۡرًا ۝

دا دَ الله حُکم دے چه هغه تاسو ته رالیږلے دے او چه څوک دَ الله تقوىٰ کوی هغه (یعنی خدائے) دَ هغهٔ بدئ ختموی او دَ هغهٔ اجر زیاتوی۔

اَسۡكِنُوۡهُنَّ مِنۡ حَيۡثُ سَكَنۡتُمۡ مِّنۡ وُّجۡدِكُمۡ وَلَا تُضَآرُّوۡهُنَّ لِتُضَيِّقُوۡا عَلَيۡهِنَّ‌ؕ وَاِنۡ كُنَّ اُولَاتِ حَمۡلٍ فَاَنۡفِقُوۡا عَلَيۡهِنَّ حَتّٰى يَضَعۡنَ حَمۡلَهُنَّ‌ۚ فَاِنۡ اَرۡضَعۡنَ لَكُمۡ فَاٰتُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ‌ۚ وَاۡتَمِرُوۡا بَيۡنَكُمۡ بِمَعۡرُوۡفٍ‌ۚ وَاِنۡ تَعَاسَرۡتُمۡ فَسَتُرۡضِعُ لَهٗۤ اُخۡرٰى ۝

(اے مسلمانانو! دَ طلاقو شوؤ ښځو حق مهٔ میرئ) او هغوی هُم هلته ساتئ چرته چه تاسو دَ خپل طاقت سره سم اوسئ او هغوی ته هیڅ تکلیف مهٔ ورکوئ دَ پاره دَ دے چه هغوی په تکلیف ورکولو دَ کور نه اوباسئ۔ او کچرے هغوی په اُمید وی نو تر هغهٔ وخته پورے په هغوی خرڅ کوئ چه تر څو پورے دَ هغوی څه اونهٔ شی۔ او کچرے هغوی ستاسو دَ پاره ماشومانو ته پئ ورکوی نو هغوی ته مناسب اُجرت ورکوئ او دَ دے فیصله دَ دستور سره سمه خپلو کښے په مشوره کوئ او کچرے خپلو کښے په اتفاق څه فیصله اونکړے شئ نو بله یوه ښځه دِ دے ماشوم ته پئ ورکوی۔

لِيُنۡفِقۡ ذُوۡ سَعَةٍ مِّنۡ سَعَتِهٖ‌ؕ وَمَنۡ قُدِرَ عَلَيۡهِ رِزۡقُهٗ فَلۡيُنۡفِقۡ مِمَّاۤ اٰتٰٮهُ اللّٰهُ‌ؕ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفۡسًا اِلَّا مَاۤ اٰتٰٮهَا‌ؕ سَيَجۡعَلُ اللّٰهُ بَعۡدَ عُسۡرٍ يُّسۡرًا ۝ ع

پکار دی چه مالدار سړے (پئ ورکونکی ښځے باندے) دَ خپل وس سره سم خرڅ کوی او چه څوک مالدار نهٔ دے هغه دِ دَ الله دَ ورکړی شوی طاقت مطابق خرڅ اوکړی۔ الله چا له داسے حُکمونه نهٔ ورکوی چه دَ هغهٔ دَ طاقت نه زیات وی بلکه هغه داسے حُکمونه ورکوی چه دَ هغے دَ پوره کولو وس ئے هُم هغهٔ ته ورکړے وی بیا نو کچرے څوک سړے دَ خدائے په

حکم عمل کولو سره دَ يۍ ورکوونکے ښځے مزدوری په صحی دول ورکړی نو کچرے هغه په تکليف کښے هُم دے نو الله به دے نه پس دَ هغهٔ لاس ارت کړی۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهٖ فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّعَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ⑨

او ډير کلی دی چا چه دَ خپل رب حُکم او دَ رسُولانو انکار اوکړو په دے مونږ هغوی نه په ډيره سختئ حساب واخستو او په هغوی مو لوئے عذاب نازل کړو۔

فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا ⑩

او هغوی دَ خپلو کړو سزا اوخوړه او دَ هغوی انجام هُم نقصان اوختو۔

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰۤاُولِى الْاَلْبَابِ ۚۛ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۛ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكُمْ ذِكْرًا ⑪

دا سے خلقو دَ پاره الله سخت عذاب مقرر کړے دے بيا په مومنانو کښے دَ عقل خاوندانو! دَ الله تعالیٰ نه اوويريږئ۔ الله تاسو دَ پاره دَ عزت سامان يعنی رسُول رالیږلے دے

رَّسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ مُبَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۚ وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ۚ قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا ⑫

چه تاسو ته دَ الله دا سے آيتونه اوروی چه ښکاره لوه نيکی او بدی) په ډاګه کوی چه نتيجه ئے داوی چه مومنان څوک چه دَ خپل ايمان سره سم عمل کوی هغوی دَ تيرونه بهر لوړ ته راوړی۔ او څوک هُم چه په الله ايمان راوړی او دَ دے ايمان سره سم عمل اوکړی هغه به هغهٔ په دا سے جنتونو کښے داخلوی چه ورلاندے به نهرونه بهيګی۔ هغوی به دے کښے تل ترتله اوسی الله دا سے سړی ته ډيره ښائسته روزی ورکړے ده۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ۚ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا ⑬

الله هغه دے چا چه اووه آسمانونه پيدا کړی دی او زمکے هُم دَ آسمانونو دَ شمير مطابق پيدا کړی دی (دَ دے يعنی آسمانونو او دَ دے زمکو) ترمنځه دَ هغهٔ حُکم نازليږی دَ پاره دَ دے چه تاسو پوهه شئ چه الله په هر څيز قادر دے او دا شان الله په خپل علم دَ هر څيز نه ګيره اچولے ده۔




سورة التحريم:- دا سورة مدنی دے او لبسم الله سره ددے دیارلس ۱۳ آیتونه او دوه ۲ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ۚ تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ اَزْوَاجِكَ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ②

اے نبی ! ته هغه (څیز) ولے حراموے کوم چه ستا د پاره الله حلال کړے دے۔ ته د خپلو بیبیانو خوشحالی غواړے او الله ډیر بخښونکے (او) بے انتها رحم کوونکے دے۔

قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ ۚ وَاللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ③

الله په تاسو د داسے قسمونو پرانستل واجب کړی دی (چه ترے نه فتنه پیدا کیږی) او الله ستاسو آقا دے او هغه ډیر علم لرونکے (او) د حکمت خاوند دے۔

وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا ۚ فَلَمَّا نَبَّاَتْ بِهٖ وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ عَنْۢ بَعْضٍ ۚ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا ؕ قَالَ نَبَّاَنِيَ الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ ④

او یاد کړه هرکله چه نبی خپلو بیبیانو کښے یوے سره یوه پټه خبره اوکړه بیا هرکله چه هغے هغه خبره چا ته اووئیله او الله د دے (کمزورئ) خبر هغه (یعنی نبی) ته ورکړو۔ نو هغهٔ (د خبرے) څه برخه ښکاره ته اوښودله او په څه برخه ئے پرده واچوله بیا هرکله چه هغه د اصل خبرے خبر هغے (بی بی) ته ورکړو نو هغے اووئیل چه تاسو ته دا خبر چا درکړے دے په دے هغهٔ (یعنی نبی) اووئیل چه ما ته د ډیر علم لرونکی (او) خبردار خدا ئے خبر راکړے دے۔

اِنْ تَتُوْبَاۤ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا ۚ وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظَهِيْرٌ ⑤

بیا هغهٔ اووئیل چه که دواړه بیبیانو ! کچرے تاسو خپله غلطئ د الله نه توبه اوکړئ نو د ستاسو دواړو زړونه خو اول نه دے خبرے ته مات شوی دی (او توبے د پاره

تیار دی ) او کچیرے تاسو دَیو بل ملاتړ کښے او درېګئ نو یادلرئ چه الله دَ دے رسُول دوست دے۔ داشان جبرئیل او ټول مومنان او دے نه سوا فرښتے هُم دَ نبی په مرسته دی۔

عَسٰی رَبُّهٗۤ اِنۡ طَلَّقَكُنَّ اَنۡ يُّبۡدِلَهٗۤ اَزۡوَاجًا خَيۡرًا مِّنۡكُنَّ مُسۡلِمٰتٍ مُّؤۡمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبۡكَارًا ۵

دَهغهٔ دَ رب دَ پاره بیخی ممکنه ده چه کچیرے هغه تاسو له طلاق درکړی نو هغه به تاسو نه ډیرے ښے بیبیانے په بدل کښے هغهٔ له ورکړی چه مسلمانے هُم وی مومنانے هُم حُکم منونکی هُم وی، توبه کوونکی عبادت کوونکی روژه نیوُونکی کونډے هُم او پیغلے هُم۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا قُوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ وَاَهۡلِيۡكُمۡ نَارًا وَّقُوۡدُهَا النَّاسُ وَالۡحِجَارَةُ عَلَيۡهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعۡصُوۡنَ اللّٰهَ مَاۤ اَمَرَهُمۡ وَيَفۡعَلُوۡنَ مَا يُؤۡمَرُوۡنَ ۶

یه مومنانو! خپل اهل هُم او خپل ځانونه هُم دَ دوزخ نه اوساتئ چه دَ هغے خشاک به خاص خلق (یعنی کافران) وی او داشان کانړی (چه هغونه بُتان جوړ شول) په دے دوزخ داسے ملائیک مقرر دی چه دَ چا زاری منت اوریدُونکی نهٔ دی بلکه دَ خپل فرض په اداکولو کښے ډیر سخت دی او الله چه هغوی له څه حُکم ورکړے دے دَ هغے هغوی نافرمانی نهٔ کوی او چه څه ورته وئیلے شی هُم هغه کوی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَا تَعۡتَذِرُوا الۡيَوۡمَ ؕ اِنَّمَا تُجۡزَوۡنَ مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ۷

یه کافرانو! نن عُذر مهٔ کوئ۔ تاسو ته به ستاسو دَ عملونو سره سمه جزا درکیګی۔ ع ٢ / ١٩

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا تُوۡبُوۡۤا اِلَى اللّٰهِ تَوۡبَةً نَّصُوۡحًا ؕ عَسٰی رَبُّكُمۡ اَنۡ يُّكَفِّرَ عَنۡكُمۡ سَيِّاٰتِكُمۡ وَيُدۡخِلَكُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ۙ يَوۡمَ لَا يُخۡزِى اللّٰهُ النَّبِيَّ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَعَهٗ ۚ نُوۡرُهُمۡ يَسۡعٰى بَيۡنَ اَيۡدِيۡهِمۡ وَبِاَيۡمَانِهِمۡ يَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَاۤ اَتۡمِمۡ لَنَا نُوۡرَنَا وَاغۡفِرۡ لَنَا ۚ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۸

یه مومنانو! الله ته دَ زړهٔ دَ اخلاصه ورمات شئ (منافقت دِ په کښے دَ سره نهٔ وی) هیڅ دَ حیرانتیا خبره نهٔ ده چه ستاسو رب ستاسو بدئ ختمے کړی او تاسو په داسے جنتونو کښے داخل کړی چه ورلاندے نهرونه بهیګی - هغه ورځ کومه ورځ به چه الله خپل نبی نهٔ رسوا کوی او نهٔ هغه خلق چه هغهٔ سره ئے ایمان راوړے دے - دَ هغوی نُور به دَ هغوی وړاندے وړاندے هُم زغلی او ښی اړخ سره سره هُم، هغوی به وائی چه یه څمونږ

رب! زمونږ نور زمونږ د فائدے د پاره پوره کړه او مونږ معاف کړه، ته په هر څيز قادر يے۔

يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ؕ وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝۱۰

اے نبي! د کافرانو او منافقانو خلاف سخته تبليغ کوه او د هغوی هيڅ اثر مه قبلوه (او زړوره شه چه) د هغوی ځائے جهنم دے او هغه ډير بد ځائے دے۔

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّ امْرَاَتَ لُوْطٍ ؕ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ۝۱۱

الله د کافرانو حال د نوحؑ او د لوطؑ د ښځو په شان بيانوی۔ هغوی دواړه زمونږ د نيکانو بنديانو په نکاح کښے وے ولے هغو دواړو د هغو دواړو (بنديانو) خيانت کړے وه او هغوی دواړه د الهٰی عذاب په وخت د هغو (ښځو) هيڅ په کار رانغلے شول او هغو دواړو ښځو ته وئيلے شوی وو چه جهنم کښے ننوتونکو سره تاسو هم جهنم ته لاړے شئ۔

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ ۘ اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِىْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِى الْجَنَّةِ وَ نَجِّنِىْ مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهٖ وَ نَجِّنِىْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۙ ۝۱۲

او د مومنانو حال الله د فرعون د ښځے په شان بيانوی (هر کله چه هغے خپل رب ته او وئيل چه يه خدايه! ته خپل ځان سره جنت کښے يو کور ما د پاره هم جوړ کړه او ما د فرعون او د هغهٔ د بدو عملونو نه اوساته او دا شان (د هغهٔ) د ظالم قام نه خلاصی راکړه۔

وَ مَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِىْۤ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا وَ صَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَ كُتُبِهٖ وَ كَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ ۝۱۳ ع ۲

او بيا الله د مومنانو حال د مريم په شان بيانوی چه د عمران لور وه۔ چا چه د خپل ناموس حفاظت اوکړو او مونږ هغے کښے خپل کلام اچولے وه او هغے د هغه کلام چه د هغے رب په هغے نازل کړے وه تصديق کړے وه۔ او د هغهٔ (د خدائے) په کتابونو ئے هم ايمان راوړے وه او (ګيدوه کيدوه دا سے حال ته رسيدلے وه چه) هغے د حکم منونکو مقام حاصل کړے وه۔




سورۃ ملك - دا سورۃ مکی دے اوبسم اللہ سرہ دَ دے یو دیرش آیتونہ او دوہ دکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

رشروکوم ) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه راو ) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرُ ②

ډیر برکت لرونکے دے هغه خدائے چه دَ چا په اختیار کښے بادشاهی ده - هغه دَ هرے یوے ارادے په پوره کولو قادر دے۔

الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ③

هغه مرګ او ژوند دے دَ پاره پیدا کړی دی چه هغه تاسو اوزمائی چه تاسو کښے څوک زیات عمل کوونکے دے - او هغه غالب راو) ډیر بخښونکے دے۔

الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ۗ مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ ۗ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ④

هُم هغه دے چا چه اوه آسمانونه درجه په درجه پیدا کړی دی - ته دَ رحمٰن رخدائے ) په پیداوښت کښے هیڅ نقص نهٔ وینے او ته خپله نظر راخوا دیخوا ) اوګرزوه او په ښهٔ شان اوګوره ! آیا ته رد خدائے په مخلوق کښے چرته هُم ) نقص ریا کمے ) ښکاری۔

ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ ⑤

بیا څو څو ځله نظر اوګرزوه هغه به بیا آخر ستا په طرف ناکامه واپس رازی او هغه به ستړے وی راو هیڅ نقص به په نظر نهٔ رازی ) -

وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ وَاَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ ⑥

او مونږ لاندینئ آسمان په ستورو ځائسته کړے دے او دا رستوری) مو دَ شیطانانو دَ پاره دَ ولیشتلو سوب ګرزولی دی او مونږ دوئ رشیطانانو ) دَ پاره یو دَ غرغنډو عذاب مقرر کړے دے۔

وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ ۗ وَبِئْسَ

او کومو خلقو چه دَ خپل رب انکار کړے هغوی ته به

الْمَصِيْرُ ٦

دَ جهنم عذاب رسی او هغه ډیر بد ځائے دے۔

اِذَآ اُلْقُوْا فِيْهَا سَمِعُوْا لَهَا شَهِيْقًا وَّ هِیَ تَفُوْرُ ٧

هرکله به چه هغوی دے رجهنم ) کښې اچولے شی نو هغوی به دے کښې یوه اوچته چغه اوری رکله دَ خر آواز ) او هغه رجهنم به بنهٔ ) په جوش وی۔

تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ ؕ كُلَّمَآ اُلْقِیَ فِيْهَا فَوْجٌ سَاَلَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَذِيْرٌ ٨

نزدے به وی چه هغه دَ قهر نه اوشلیږی کله به هُم چه هغے کښې یو ټولۍ غورزولے شی دَ هغے رلعنی دَ جهنّم ) دربان به هغوی نه تپوس کوی آیا تاسو له ځوک نبی راغلے نهٔ وُه۔

قَالُوْا بَلٰی قَدْ جَآءَنَا نَذِيْرٌ ۙ فَكَذَّبْنَا وَ قُلْنَا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ مِنْ شَیْءٍ ۚۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِیْ ضَلٰلٍ كَبِيْرٍ ٩

هغوی به وائی او مونږ له نبی خامخا راغلے وه ولے مونږ دَ هغهٔ تکذیب کړے وُه او هغهٔ ته مو وئیلی وُو چه الله هیڅ هُم نهٔ دی راکوز کړی رتهول ستاسو دروغ دی ) تاسو په یوه ښکاره ګمراهئ کښې اخته يئ راوخپل خیالات الهام ګنړئ )۔

وَ قَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِیْ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ١٠

او هغو خلقو دا هُم اووئیل کچرے مونږ دَ اوردیدو طاقت لرے یا عقل مو لرلے نو کله به هُم دوزخیان نهٔ جوړیدلے۔

فَاعْتَرَفُوْا بِذَنْۢبِهِمْ ۚ فَسُحْقًا لِّاَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ١١

بیا نو هغوی دَ خپلو ګناهونو اقرار اوکړو ښه نو رَبه فرښتو ) دوزخیانو له لعنت مقرر کړئ۔

اِنَّ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ اَجْرٌ كَبِيْرٌ ١٢

په تحقیق سره هغه خلق چه دَ خپل رب نه ځان له هُم ویریږی دَ هغوی به مغفرت او لوئے اجر وی۔

وَ اَسِرُّوْا قَوْلَكُمْ اَوِ اجْهَرُوْا بِهٖ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ١٣

او رَيه خلقو ! ) تاسو که خپله خبره پټه کړئ یا ښکاره کړئ هغه ( یعنی خدائے ) دَ زړونو دَ خبرو نه هُم ښهٔ خبر دے۔

اَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ؕ وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ١٤

ع ١٥ ١ آیا داسے کیدے شی چه چا پیدا کړی وی هُم هغه دِ دَ دننه دَ حال نه خبر نهٔ وی - په حقیقت کښې هغه

دَ پټ نه پټ رازونو نه واقف او ښهٔ خبردار دے ۔

هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا فَامْشُوْا فِیْ مَنَاكِبِهَا وَكُلُوْا مِنْ رِّزْقِهٖ ۭ وَاِلَیْهِ النُّشُوْرُ ﴿۱۶﴾

هُم هغه دے چا چه ستاسو دَ پاره زمکه دَ اوسیدو قابله جوړه کړے ده بیا چه دَ هغهٔ په وادو کښے چه چرته غواړئ ګرزئ او دَ هغهٔ (یعنی خدائے) دَ رزق نه خورئ او هُم دَ هغهٔ په طرف واپس تلل دی ۔

ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِی السَّمَآءِ اَنْ یَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ فَاِذَا هِیَ تَمُوْرُ ﴿۱۷﴾

آیا تاسو په آسمان کښے دَ اوسیدُونکی ذات نه دَ دے خبرے نه په امن کښے شوی چه هغه تاسو په دُنیا کښے ذلیل کړی او تاسو اوبئ چه هغه (یعنی زمکه) چکرے خوری (او تاسو تباهئ ته نزدے یئ) ۔

اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ فِی السَّمَآءِ اَنْ یُّرْسِلَ عَلَیْكُمْ حَاصِبًا ۭ فَسَتَعْلَمُوْنَ كَیْفَ نَذِیْرِ ﴿۱۸﴾

آیا په آسمان کښے دَ اوسیدُونکی ذات نه تاسو دَ دے خبرے نه امن کښے راغلی یئ چه هغه په تاسو دَ کانړو باران اووروی ۔ بیا نو زر (په هر رنګ کښے چه څما غضب نازلیږی) تاسو ته به معلومه شی چه څما ویرول ډیر سخت وُو ۔

وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَكَیْفَ كَانَ نَكِیْرِ ﴿۱۹﴾

او دَ دوئ نه وړاندینو خلقو هُم دَ رسُولانو تکذیب کړے وُه (هغوی اولیدل یا اونهٔ لیدل) څما عذاب څومره سخت وه ۔

اَوَلَمْ یَرَوْا اِلَی الطَّیْرِ فَوْقَهُمْ صٰٓفّٰتٍ وَّیَقْبِضْنَ ۭؔ مَا یُمْسِكُهُنَّ اِلَّا الرَّحْمٰنُ ۭ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَیْءٍۭ بَصِیْرٌ ﴿۲۰﴾

آیا هغوی پورته الوتونکی مارغان نهٔ دی لیدلی چه هغوی په قطارونو کښے الوزی او کله خپلے وزرے راجوختوی ۔ هُم رحمان (خدائے) هغوی منے کوی هغه دَ هر څیز نه ښهٔ خبر دے ۔

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِیْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ یَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ۭ اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِیْ غُرُوْرٍ ﴿۲۱﴾

آیا هغه خلق چه ستاسو لښکرے بللے شی دَ رحمان (خدائے) په مقابله به ستاسو مدد اوکړے شی ؟ کافران خو بس دهوکه کښے پراتهٔ دی ۔

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِیْ یَرْزُقُكُمْ اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ ۚ بَلْ لَّجُّوْا فِیْ عُتُوٍّ وَّ نُفُوْرٍ ﴿۲۱﴾

آیا هغه ذات چه تاسوله رزق درکوی کچرے خپل رزق حصارکړی (نوڅوک شته دے چه تاسوته رزق درکړی) حقیقت دا دے چه مغوی په سرکشئ دَ حقو نه دَلرے تختیدو (عادت) کښے ورانده وتلی دی۔

اَفَمَنْ یَّمْشِیْ مُكِبًّا عَلٰی وَجْهِهٖۤ اَهْدٰۤی اَمَّنْ یَّمْشِیْ سَوِیًّا عَلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۲۲﴾

آیا هغه سړے چه په پړمخ روان دے په هدایت کښے دَ هغه برابرکیدے شی چه نیغ روان دے ؟ (او) دے هُم په نیغه لاره۔

قُلْ هُوَ الَّذِیْۤ اَنْشَاَكُمْ وَ جَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ الْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِیْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۳﴾

تهٔ اووایه چه هغه هُم خدائے دے چاچه تاسو پیدا کړی یئ او تاسو دَ پاره ئے غوږونه اوسترگے او زړونه جوړکړی دی وَلے تاسو شُکرنهٔ کوئ۔

قُلْ هُوَ الَّذِیْ ذَرَاَكُمْ فِی الْاَرْضِ وَ اِلَیْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۴﴾

تهٔ اووایه چه هُم هغه دے چاچه تاسو په زمکه پیدا کړی یئ او دَ هغهٔ په طرف به تاسو ژوندی کړی بیا بوتلے شئ۔

وَ یَقُوْلُوْنَ مَتٰی هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۲۵﴾

او مغوی وائی کچرے تاسو رښتونی یئ نو دا وعده به کله پوره کیږی۔

قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۪ وَ اِنَّمَاۤ اَنَا نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۲۶﴾

تهٔ اووایه دَ دے علم بس الله ته دے او زهٔ خولیں په ښکاره ښکاره هوښیارونکے یم۔

فَلَمَّا رَاَوْهُ زُلْفَةً سِیْٓـَٔتْ وُجُوْهُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَ قِیْلَ هٰذَا الَّذِیْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ ﴿۲۷﴾

او هرکله به چه دا (یعنی څمونږ عذاب) نزدے په راتلو اووینی نو دَ کافرانو مخونه به وران شی او هغوی ته به اووئیلے شی۔ دا هُم هغه څیز دے چه تاسو بیا بیا غوښتلو۔

قُلْ اَرَءَیْتُمْ اِنْ اَهْلَكَنِیَ اللّٰهُ وَ مَنْ مَّعِیَ اَوْ رَحِمَنَا ۙ فَمَنْ یُّجِیْرُ الْكٰفِرِیْنَ مِنْ عَذَابٍ اَلِیْمٍ ﴿۲۸﴾

تهٔ اووایه ما ته اوخو وائی چه کچرے الله ما او څما ملگری هلاک کړی یا په مونږ رحم اوکړی نو بیا به هُم کافرانوله دردناک عذاب نه څوک پناه ورکوی۔

قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝۲۹

تهٔ اووايه چه د رحمان (خدائے) نه سوا بل هيڅوک نشته - مونږ په هغه ايمان راوړے دے او مونږ هُم په هغهٔ توکل کړے دے بيا به تاسو ته زر معلومه شی چه څوک په ښکاره ښکاره ګمراهئ کښے اخته دے

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ۝۳۰ ع ۲

تهٔ دا هُم اووايه چه ما ته اوخووائی چه کچرے ستاسو اوبهٔ د زمکے په تل کښے اوچے شی نو بهيدونکے اوبهٔ به تاسو د پاره د خدائے نه سوا څوک راولی -




سورة قلم - دا سورة مکی دے او بسم الله سره د دے درپنځوس آيتونه او دوه رکوع دی-

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۱

(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکے دے -

نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ۝۲

مونږ قلم او دوات او هغه چه هغو سره چه ليکلے شی د شهادت په طور وړاندے کولو سره وايو-

مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ۝۳

چه تهٔ د خپل رب په فضل مجنون (ليونئ) نهٔ ئے-

وَاِنَّ لَكَ لَاَجْرًا غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ۝۴

او تا ته به د خدائے د طرف نه يوه داسے بدله حاصليګی چه کله به نهٔ ختميګی -

وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ۝۵

(دے نه سوا مونږ دا هُم قسم خورو چه) تهٔ (په خپل تعليم او عمل کښے) د ډيرے اعلیٰ درجے په اخلاقو قائم يئے-

فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝۶

بيا ډير زر به تهٔ هُم اووينے او هغوی به هُم اووينی (چه د الله د مدد نه تهٔ محرومه پاتے کيګے يا هغوی) او هغوی ته به معلومه شی چه په تاسو دواړو کښے څوک

بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ ۝۷

بے لارے دے-

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿۸﴾

ستا رب ته د هغهٔ هُم علم دے چه د هغهٔ د لارے نه بے لارے شوے دے او د هغهٔ چا هُم چه هدایت موندهٔ ونکی خلقو کښے شامل دے۔

فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِينَ ﴿۹﴾

(او هر کله چه ته د خدائے په هدایت قائم یې او ستا نه منونکی تباه کیدونکی دی نو) ته د دغو انکاریانو خبره مهٔ منه۔

وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ﴿۱۰﴾

دوئ (یعنی کافران) غواړی چه ته خپل دین کښے څه قدرے نرمی اوکړے نو هغوی به هُم (خپله طریقه کښے څه نرمی اوکړی۔

وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ﴿۱۱﴾

او ته د هغهٔ خبره کله هُم مهٔ منه چه قسمونه خوری (روے د خدائے د طرف نه مدد نهٔ موندلو په سوب) هغه (هُم ذلیل) په ذلیل دے۔

هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ ﴿۱۲﴾

د چا چه (تیکا نو ته) پیغور ورکول او (د هغوی) په سر خبرے کول عادت دے۔

مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴿۱۳﴾

چه خلق د ښو کارونو نه منع کوونکے د حد نه اوړیدونکے او گنا هگار دے۔

عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ﴿۱۴﴾

هغه سخت کلا مه هُم دے او د خدائے بنده جوړیدو سره شیطان سره تعلق لرونکے هُم۔

أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ ﴿۱۵﴾

بس په دے سوب چه هغه ډیر مال دار او د هغهٔ اولاد او ملگری ډیر دی۔

إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۶﴾

هر کله چه د هغهٔ وړاندے څمونږ آیتونه تلاوت کیدے شی نو وائی چه دا خو د ړومبنو قصئ دی۔

سَنَسِمُهُ عَلَى الْخُرْطُومِ ﴿۱۷﴾

مونږ به ډیر زر د هغهٔ په پوزه داغ اولگوو (او هغهٔ به د خپل مدد نه محرومه کړو)۔

إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ كَمَا بَلَوْنَا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوا

مونږ هغه دښمنان هُم داسے ابتلاء کښے اچولی دی

| | |
|---|---|
| لَیَصۡرِمُنَّهَا مُصۡبِحِیۡنَ ﴿۱۷﴾ | په کومه ابتلاء کښې هغه د باغونو خاوندان مو اچولی وُو چا چه خپلو کښې یو بل ته په قسم وئیلی وُوچه مونږ به سحر زُو نیچلے میوے به شو کوُو۔ |
| وَلَا یَسۡتَثۡنُوۡنَ ﴿۱۸﴾ | او د خدائے نوم ئے اخستے نهٔ وُو۔ |
| فَطَافَ عَلَیۡهَا طَآئِفٌ مِّنۡ رَّبِّكَ وَهُمۡ نَآئِمُوۡنَ ﴿۱۹﴾ | نتیجه ئے دا شوه چه د شپے د هغو په باغونو ستا د رب عذاب نازل شو هر کله چه هغوی اوده وُو۔ |
| فَاَصۡبَحَتۡ كَالصَّرِیۡمِ ﴿۲۰﴾ | هر کله چه د سحر او لیدے شول نو هغه باغ داسے شوے وه لکه چه پریکړے شوے وی۔ |
| فَتَنَادَوۡا مُصۡبِحِیۡنَ ﴿۲۱﴾ | بیا نو سحر سحر هغوی خپلو کښې یو بل را اوبلل او وے وئیل چه۔ |
| اَنِ اغۡدُوۡا عَلٰی حَرۡثِكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰرِمِیۡنَ ﴿۲۲﴾ | کچرے ستاسو نیت د باغ د میوے د پریکولو دے نو دے وخت خپل باغ ته زئ۔ |
| فَانۡطَلَقُوۡا وَهُمۡ یَتَخَافَتُوۡنَ ﴿۲۳﴾ | بیا نو هغوی لاړل او هغوی به په رو رو دا وئیل۔ |
| اَنۡ لَّا یَدۡخُلَنَّهَا الۡیَوۡمَ عَلَیۡكُمۡ مِّسۡكِیۡنٌ ﴿۲۴﴾ | چه نن ستاسو په وړاندے څوک مسکین باغ کښې داخل نشی۔ |
| وَّغَدَوۡا عَلٰی حَرۡدٍ قٰدِرِیۡنَ ﴿۲۵﴾ | او د سحر د راتلو نه آګاهُو هغوی د بخل فیصله کړے وه۔ |
| فَلَمَّا رَاَوۡهَا قَالُوۡۤا اِنَّا لَضَآلُّوۡنَ ﴿۲۶﴾ | بیا هر کله چه هغوی هغه باغ اولیده نو وے وئیل مونږ خو لاره غلطه کړے ده۔ |
| بَلۡ نَحۡنُ مَحۡرُوۡمُوۡنَ ﴿۲۷﴾ | بلکه حقیقت دا دے چه مونږ خو د سره ( د نیچلے میوے ) نه محرومه شوی یُو۔ |
| قَالَ اَوۡسَطُهُمۡ اَلَمۡ اَقُلۡ لَّكُمۡ لَوۡلَا تُسَبِّحُوۡنَ ﴿۲۸﴾ | هغوی کښې چه کوم ښه سړے وه هغه اووئیل ما تاسو ته وئیلی نهٔ وُو چه تاسو د خدائے ثناوے نهٔ وائی ؟ |
| قَالُوۡا سُبۡحٰنَ رَبِّنَاۤ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِیۡنَ ﴿۲۹﴾ | هغوی اووئیل څمونږ رب د هر عیب نه پاک دے هُم مونږ ظلم کوُونکی وُو۔ |

فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ ﴿۳۱﴾
بیا هغوی یو بل ملامتۀ کول شروکړل۔

قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ ﴿۳۲﴾
او دئیل ئے افسوس دے په مونږ، مونږ سرکشان جوړشو۔

عَسٰى رَبُّنَآ اَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَآ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا رٰغِبُوْنَ ﴿۳۳﴾
نزدے ده چه (کچرے مونږ توبه اوکړو نو) خمونږ رب به د دے نه ښهٔ (باغ) مونږ ته راکړی مونږ به خامخا خپل رب ته تیتیږو۔

كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ۭ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۴﴾ وقف لازم ع ۴/۲۴
هُم دا شان عذاب نازلیږی۔ او کچرے هغوی ته معلومه شی نو د آخرت عذاب د دُنیا د عذاب نه ډیر لوئے دے

اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۳۵﴾
د متقیانو (نیکانو) د پاره به د خپل رب سره د نعمتونو نه ډک باغونه وی۔

اَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِيْنَ كَالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳۶﴾
آیا مونږ به مسلمانان د مجرمانو برابر گنړو؟

مَا لَكُمْ ۣ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۷﴾
په تاسو څهٔ شوی دی، تاسو څنګه فیصله کوئ۔

اَمْ لَكُمْ كِتٰبٌ فِيْهِ تَدْرُسُوْنَ ﴿۳۸﴾
آیا تاسو سره څه (د الٰهی) کتاب شته چه پکښے دا خبره لوئ۔

اِنَّ لَكُمْ فِيْهِ لَمَا تَخَيَّرُوْنَ ﴿۳۹﴾
چه تاسو څه خوښوئ تاسو به مومئ۔

اَمْ لَكُمْ اَيْمَانٌ عَلَيْنَا بَالِغَةٌ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۙ اِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُوْنَ ﴿۴۰﴾ معانقة ۱۰ عند المتقدمین
یا آیا تاسو مونږ نه په قسم وعدے اخستے دی چه ترقیامة به جاری دی او یا دا چه څه تاسو د ځان نه او باسئ هغه به تاسو ته حاصل شی۔

سَلْهُمْ اَيُّهُمْ بِذٰلِكَ زَعِيْمٌ ﴿۴۱﴾
ددئ نه لږ تپوس اوکړه چه د دے خبرے ددئ کښے څوک ذمه دار دی۔

اَمْ لَهُمْ شُرَكَاۗءُ ښ فَلْيَاْتُوْا بِشُرَكَاۗىِٕهِمْ اِنْ كَانُوْا صٰدِقِيْنَ ﴿۴۲﴾
آیا د دے خلقو په حق کښے د خدائے څه د ددئ په خیال جوړکړی شریکان شته؟ بیا کچرے هغوی رښتونی دی نو هغه شریکان دِ راولی۔

يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّيُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿۴۳﴾
کومه ورځ به چه د مصیبت وخت راشی او هغوی به د سجدے په طرف اوبللے شی نو هغوی به د سجدے طاقت نهٔ لری۔

خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ وَقَدْ كَانُوْا يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ وَهُمْ سٰلِمُوْنَ ﴿٤٣﴾

دَ هغوی سترگے به دَ شرم نه ټيټے وی او ذلت به دَ هغوی په مخونو وريگی او ولو وخت هغه وه چه هغوی به سجدو دَ پاره رابللے شول او هغوی ته هيڅ بيماری نهٔ وه (ولے هغوی دَ سجدے نه انکار اوکړو بيا اوس هرکله چه دَ شرک زنگ تر ډيره وخته دَ هغوی په زړونو لگيدلے روان دے دوئ سجده څنګه کولے شی)۔

فَذَرْنِیْ وَمَنْ يُّكَذِّبُ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ ؕ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٤﴾

بيا تهٔ ما او هغوئ چه دَ دے کتاب تکذيب کوئ پريږده (خپله دَ سزا ورکولو فکر مهٔ کوه) مونږ به هغوی پوړئ په پوړئ دَ تباهئ په طرف دَ هغو اطرافو نه راکاږو چه دَ هغو هغوی ته خبر هُم نشته۔

وَاُمْلِیْ لَهُمْ ؕ اِنَّ كَيْدِیْ مَتِيْنٌ ﴿٤٥﴾

او زهٔ هغوی ته مولت ورکوم (يعنی ته دَ هغوی دَ تباهئ دُعا مهٔ کوه) زما تدبير ډير مضبوط دے (هغه به آخر هغوی تباه کړی)۔

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ﴿٤٦﴾

آيا تهٔ دَ هغوی نه څه اجر غواړے او هغوی دَ دے زور له کبله پيټی لاندے پراته دی۔

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ ﴿٤٧﴾

آيا هغوی سره دَ غيب علم شته او هغوی هغه لکيا دے ليکی۔

فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ ۘ اِذْ نَادٰی وَهُوَ مَكْظُوْمٌ ﴿٤٨﴾

بيا تهٔ دَ خپل رب په حُکم قائم اوسه او دَ مهی (کب) دَ سړی غوندے (يعنی حضرت يونسؑ) په شان مهٔ شه هرکله چه هغهٔ خپل رب ته نارے کړے او هغه غم زپلے وه۔

لَوْلَآ اَنْ تَدٰرَكَهٗ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُوْمٌ ﴿٤٩﴾

کچرے دَ هغه دَ رب نعمت دَ هغه تکليف لرے کړے نهٔ وے نو هغه به ئے بے اولو او کيا ه څنګل ته غورزولے وے او دَ هغه به په دُنيا کښے غندنه کيدلے۔

فَاجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۵۱﴾

ولے دَهغهٔ رب هغه خوښ کړو او هغه ئے نیکانو بندیانو کښے شامل کړو۔

وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ﴿۵۲﴾ وقف لازم

نزدے وه چه کافرانو هر کله چه هغوئ تا نه قرآن اوریدلے وه نو دَ قهر نه ډکو خپلو سترګو سره ئے په کتو ته دَ خپل مقام نه غلولے وے او هغوی ګیا دی وائی چه دا سړے خولیونی دے۔

وَمَا هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۵۳﴾ ع ۲ / ۹

په حقیقت کښے دے (قرآن) خو دَ ټولے دنیا دَ پاره عزت راوړے دے۔




سورة حاقه - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے درے پنځوس ۵۳ آیتونه او دوه ۲ رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے -

اَلْحَآقَّةُ ﴿۲﴾

(هغه) پوره کیدونکے خبر (چه قرآن ښودلے دے)۔

مَا الْحَآقَّةُ ﴿۳﴾

آیا تا ته معلومه ده چه هغه څهٔ دے؟

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْحَآقَّةُ ﴿۴﴾

او تا ته څهٔ خبر ښودلی دی چه هغه پوره کیدونکے خبر څهٔ دے؟

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ وَعَادٌۢ بِالْقَارِعَةِ ﴿۵﴾

ثمود او عاد هُم دَ قارعه تکذیب کړے وه (چه کوم دَ هغه زمانے دَ عذاب خبر وه)۔

فَاَمَّا ثَمُوْدُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ﴿۶﴾

(بیا نو دَ دے خبر سره سم) ثمود په یو داسے عذاب هلاک کړے شول چه په سختئ کښے انتها ته رسیدلے وُه۔

وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴿۷﴾

او عاد یو داسے عذاب سره هلاک کړے شول چه دَ هوا په حیث راغلے وه چه یو مخبزه چلیده او سخته تیزه وه۔

سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا فَتَرَى الْقَوْمَ فِيهَا صَرْعٰى كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴿۸﴾

هغهٔ (یعنی الله) هوا یو مخیزه اوهٔ شپے او اته ورځے دَ هغوی دَ تباهئ دَ پاره مقرر کړے وه بیا نو دَ هغے نتیجه تاسو ته معلومه ده چه هغه قام بیخی پرېوتو لکه چه هغه دَ کجهورے دَ یوے ړډے ونے جرړے دی چه هغه تیزے سیلئ راغورزولی وی۔

فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ مِّنْ بَاقِيَةٍ ﴿۹﴾

(یَه اوریدونکیه!) اوس اووایه چه آیا دَ هغوی څه نښان تا ته ښکاری۔

وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهُ وَالْمُؤْتَفِكٰتُ بِالْخَاطِئَةِ ﴿۱۰﴾

او فرعون او هغه خلق چه هغهٔ نه ړومبی وو (دے دنیا کښے) خطا کار راغلل (دَ لوطؑ قام) او هغه کلی هُم چه دَ ګناه له کبله په سټ شوی وُو۔

فَعَصَوْا رَسُولَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ﴿۱۱﴾

(او) هغوی (هُم قصور ونه کړی وُو او) دَ خپل رب دَ رسُول نافرمانی ئے کړے وه بیا هغوی هُم الله په یو داسے عذاب اونیول چه زیاتیدو به (او ډیر سخت وه)۔

إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ حَمَلْنٰكُمْ فِي الْجَارِيَةِ ﴿۱۲﴾

مونږ (دَ نوحؑ په زمانه) هرکله چه اوبه پاس خښل شروشوے نو تاسو خلق مو په یوه کشتئ کښے سوارهٔ کړی وئ۔

لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَآ أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ ﴿۱۳﴾

دَ پاره دَ دے چه دا (واقعه) تاسو دَ پاره یو نښان اوګرزؤ او اوریدونکی غوږونه ئے واوری (او په زړهٔ هغه یاد کړی)۔

فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿۱۴﴾

بیا چه هرکله هم په یو ځل بګل کښے په زوره هوا یوک وهلے شی۔

وَّحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ﴿۱۵﴾

او زمکه او غرونه دَ هغو دَ خپلو ځایونو نه اوچت کړے شی او هغوی ذره ذره شی۔

فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿۱۶﴾

هغه ورځ به مقرر شوے واقع ښکاره شی۔

وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿۱۷﴾

او آسمان به اوشلیږی او هغهٔ به هغه ورځ بوږدی ښکاری۔

| | |
|---|---|
| وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآىِٕهَا ؕ وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَىِٕذٍ ثَمٰنِيَةٌ ﴿۱۷﴾ | او فرښتے به د هغوی په غاړو وی، هغه ورځ به ستا د رب عرش اته فرښتے اوچتوی۔ |
| يَوْمَىِٕذٍ تُعْرَضُوْنَ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿۱۸﴾ | هغه ورځ به تاسو خدائے ته وړاندے کیږئ او هیڅ یوه خبره به تاسو نه پټه نهٔ پاتے کیږی (یعنی ستاسو ټول حساب به ستاسو وړاندے کیخودے شی)۔ |
| فَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ كِتٰبَهٗ بِیَمِیْنِهٖ ۙ فَیَقُوْلُ هَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِیَهْ ﴿۱۹﴾ | بیا چه د چا ښی لاس کښے هغه اعمال نامه ورکړے شی هغه به نورو ملګروته وائی راشئ راشئ! زما اعمال نامه اوګورئ۔ |
| اِنِّیْ ظَنَنْتُ اَنِّیْ مُلٰقٍ حِسَابِیَهْ ﴿۲۰﴾ | زما یقین وه چه زهٔ به یوه ورځ خپل حساب ګورم۔ |
| فَهُوَ فِیْ عِیْشَةٍ رَّاضِیَةٍ ﴿۲۱﴾ | بیا داسے سړے به د زړهٔ خوښه ژوند وړ ورځ کوری۔ |
| فِیْ جَنَّةٍ عَالِیَةٍ ﴿۲۲﴾ | او په اوچتو باغونو کښے به اوسی۔ |
| قُطُوْفُهَا دَانِیَةٌ ﴿۲۳﴾ | د هغے میوے به راټیټے شوی وی۔ |
| كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِیْٓـًٔۢا بِمَآ اَسْلَفْتُمْ فِی الْاَیَّامِ الْخَالِیَةِ ﴿۲۴﴾ | (او هغوی ته به ویلے شی چه) په تیره شوے زمانه کښے چه کوم عملونه تاسو کړی وُو د هغو په نتیجه کښے ښے (میوے) اوخورئ او (د ښیښو) او به څکئ چه هغو کښے هر لوځیز به په تاسو ښهٔ لګی۔ |
| وَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ ۙ فَیَقُوْلُ یٰلَیْتَنِیْ لَمْ اُوْتَ كِتٰبِیَهْ ﴿۲۵﴾ | او چه د چا په کس لاس کښے به د هغهٔ اعمال نامه ورکړے شی هغه به وائی کاش! ما ته زما اعمال نامه نهٔ وے راکړے شوے۔ |
| وَلَمْ اَدْرِ مَا حِسَابِیَهْ ﴿۲۶﴾ | او ما ته نهٔ معلومیدلے چه زما حساب څهٔ دے۔ |
| یٰلَیْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِیَةَ ﴿۲۷﴾ | کاش! زما مرګ زهٔ بیخی ختم کړے وے۔ |
| مَآ اَغْنٰى عَنِّیْ مَالِیَهْ ﴿۲۸﴾ | زما مال ما ته هیڅ فائده رانکړه۔ |
| هَلَكَ عَنِّیْ سُلْطٰنِیَهْ ﴿۲۹﴾ | زما غلبه لاړه۔ |
| خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ﴿۳۰﴾ | (هغه وخت به خدائے فرښتوته وائی) دے اونیسئ |

او په مرۍ کښے ورته پرے وا چوئ ۔

ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ ﴿۳۱﴾
او په جهنّم کښے ئے ورا وغورزوئ ۔

ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ ﴿۳۲﴾
بیا ئے په زنځیر چه په اوږدوالیٔ کښے بے کچه دے کلک اونړئ۔

إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ ﴿۳۳﴾
دهٔ دَ لوئے حکومت مالک الله باندے ایمان نهٔ راوړو۔

وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴿۳۴﴾
او په مسکینانو دَ ډوډئ خوړلو رغبت به ئے (خلقو ته) نهٔ ورکولو۔

فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ ﴿۳۵﴾
بیانو هغه ورځ به دَ هغهٔ هیڅوک دوست نهٔ وی (وے چه دَ خپلو ظلمونو په سوب دَ خلقو همدردی ختمه کړے ده)۔

وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ﴿۳۶﴾
او هغهٔ ته به هیڅ قسم خوراکه نشی ورکیدے سوا دَ زخمونو نوُ (یعنی کوم ظلم چه دهٔ په خلقو کړے دے دَ هغو یاد به ئے نهٔ هیره وی)۔

لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ ﴿۳۷﴾ ع ۵
دا خوراک خطا کار خلق خوری ۔

فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ ﴿۳۸﴾
(بیا په هیڅ قسم دهوکه کښے مهٔ پریوزئ) مونږ دَ شهادت په طور وړاندے کوُو چه څه تاسو وینئ ۔

وَمَا لَا تُبْصِرُونَ ﴿۳۹﴾
او هغه چه تاسوئے نهٔ وینئ (یعنی ظاهری حالت او باطنی جذبات په دے خبره گواه دی چه) ۔

إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿۴۰﴾
دا (قرآن) دَ یو عزت لرُونکی رسُول کلام دے ۔

وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ۚ قَلِيلًا مَا تُؤْمِنُونَ ﴿۴۱﴾
او دَ چا شاعر کلام نهٔ دے وے افسوس چه تاسو ایمان نهٔ راوړئ۔

وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ۚ قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ ﴿۴۲﴾
او نهٔ دا څرنه دَ چا پادری پنډت خبرے دی وے تاسو دَ سره نصیحت نه اخلئ۔

تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۴۳﴾
دا دَ رب العالمین خدائے دَ خوا نه راکوز شوے دے۔

وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ ﴿۴۴﴾
او کچرے دے سړی څمونږ په طرف په دروغه الهام

منسوب کولے که هغه یو هُم وے۔

لَاَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِيْنِ ﴿٤٦﴾ نو په تحقیق سره دے به مونږ دَ ښی لاس نه نیولے وے۔

ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِيْنَ ﴿٤٧﴾ او دَ ده شه رګ به مو پریکړے وے۔

فَمَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ عَنْهُ حٰجِزِيْنَ ﴿٤٨﴾ نو په دا سے حال کښے به تاسو کښے هیڅوک نهٔ وے چه هغه ئے دَ خدائے دَ عذاب نه بچ کولے شوے۔

وَ اِنَّهٗ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٩﴾ او دا (قرآن) خو دَ خدائے نه ویریدُونکو دَ پاره نصیحت (او دَ لویٔ) موجب دے۔

وَ اِنَّا لَنَعْلَمُ اَنَّ مِنْكُمْ مُّكَذِّبِيْنَ ﴿٥٠﴾ او مونږ ښه پوهیګو چه تاسو کښے دَ دے (قرآن) تکذیب کوُونکی هُم شته۔

وَ اِنَّهٗ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٥١﴾ او (دا هُم پوهیګو چه) دَ کافرانو په زړونو کښے دا قرآن حسرت پیدا کوی۔

وَ اِنَّهٗ لَحَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٥٢﴾ او دَ دے رښتنی دَحق الیقین په شان ښکاره ده۔

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿٥٢﴾ ع بیا نو ته دَ خپل لوئے رب نوم سره دَ هغهٔ پاکی بیانوه۔


سُوْرَةُ الْمَعَارِجِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسٌ وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعَانِ

سورۃ معارج۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے پینځهٔ څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾ (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

سَاَلَ سَآئِلٌۢ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ﴿٢﴾ تپوس کوُونکے تپوس کوی (په منکرانو) به نهٔ اخوا کیدُونکے عذاب کله رازی؟

لِّلْكٰفِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ ﴿٣﴾ (ریادلریٔ چه) کافرانو له دَ دے نه بچ کوُونکے هیڅوک نشته۔ (ربیا دَ وخت پحقله سوال بے مطلبه او بے فائدے دے)۔

مِّنَ اللّٰهِ ذِي الْمَعَارِجِ ۝٣
دا (عذاب به) دَ ذوا لمعارج (یعنی درجه په درجه ترقی ورکُونکی) خدائے دَطرف نه رازی.

تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ۝٤
خاصے فرښتے او الٰهی کلام راوړُونکی فرښتے دَهغهٔ (خدائے) دَطرف نه دومره وخت کښے خیژی چه دَ هغے مقدار دَ پینځوس زرو کالو برابر وی.

فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيْلًا ۝٥
بیا تهٔ په ښهٔ شان صبر کوه.

اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا ۝٦
دا خلق هغه (ورځ) ډیره لرے گنړی.

وَّنَرٰىهُ قَرِيْبًا ۝٧
ولے مونږ هغه ډیره نژدے وینُو.

يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ۝٨
هغه ورځ به (دَ ډیرتاو له کبله) آسمان دَ ویلے شوے تانبے په شان شی.

وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ ۝٩
او غرونه به دَ وهلی شوی وړئ په شان شی.

وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا ۝١٠
او هغه ورځ به هیڅ یو دوست دَبل یو دوست پحقله څه سوال نهٔ کوی.

يُّبَصَّرُوْنَهُمْ يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍۢ بِبَنِيْهِ ۝١١
ولے چه هغه ورځ به دَ هر سړی حال دَ هغهٔ دوست ته او ښودلے شی هغه ورځ به مجرم خواهش کوی چه کاش هغه نن ورځ دَخپلو ځامنو،

وَصَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ۝١٢
او دَ خپلے ښځے او دَ خپل رور

وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُـْٔوِيْهِ ۝١٣
او دَ خپلے هغه قبیلے له کبله چا سره به چه هغه پناه اخسته.

وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ ثُمَّ يُنْجِيْهِ ۝١٤
او په دُنیا کښے چه څه هُم دی دَ هغے په قربانئ، خپل ځان دَ عذاب نه بچ کړی.

كَلَّا ؕ اِنَّهَا لَظٰى ۝١٥
واورئ! دا عذاب چه خبرئے ورکړے شوے دے دَ شغلے عذاب دے.

نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى ۝١٦
دَ سر پوړے دَ څرمنے اوباسُونکے عذاب دے.

تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ۝١٧
څوک سړے چه به دے نه تیختنه غواړی او مخ

اړوی هغه به هُم هغه (عذاب) خپل ځان طرف ته غواړی۔

وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ﴿۱۸﴾
او هغه هُم چه ټول عمر به ئے دُنیا کښے مال راغونډولو او دَ لیو غټ مال په راغونډولو کښے کامیاب شو۔

اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ﴿۱۹﴾
دَ انسان فطرت بدلیدُونکے دے۔

اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ﴿۲۰﴾
هرکله چه هغه ته تکلیف اورسی نو وارخطا شی۔

وَّاِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوْعًا ﴿۲۱﴾
او هرکله چه هغهٔ ته فائده اورسی نو بخل کول شروع کړی (نهٔ غواړی چه څوک دَ هغهٔ شریک وی)۔

اِلَّا الْمُصَلِّيْنَ ﴿۲۲﴾
سوا دَ نمونځ کوونکو۔

الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَ ﴿۲۳﴾
چه په خپلو نمونځونو تل قائم وی۔

وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ﴿۲۴﴾
او دَ چا په مالونو کښے چه یوه مقرره برخه دَ غریبانو سوال کرو هُم وی۔

لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۲۵﴾
او دَ هغوی هُم وی چه دَ سوال کولو نه محرومه دی۔

وَالَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۲۶﴾
او کوم خلق چه دَ جزا سزا دَ ورځ تصدیق کوی۔

وَالَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾
او کوم خلق چه دَ خپل رب دَ عذاب نه ویریږی۔

اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾
(او حقیقت دا دے) چه دَ هغوی دَ رب دَ عذاب نه هیڅوک په خپل زور نشی بچ کیدے۔

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴿۲۹﴾
او هغه چه دَ خپلو دَ شرم دَ ځایونو حفاظت کوی۔

اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿۳۰﴾
سوا دَ خپلو ښځو یا دَ وینځو، په هغوی هیڅ ملامته نشته۔

فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۳۱﴾
وے کوم خلق چه دَ دے نه دَ وړاندے تللو خواهش کوی هغوی دَ حد نه وتونکی دی۔

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۳۲﴾
(او دا شان هغه خلق هُم عذاب نه محفوظ دی) چه خپل ځان سره دَ کیخودے شوو اماناتونو او دَ خپلو لوظونو حفاظت کوی۔

وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ ﴿٣٣﴾

او چه په خپلو شهادتونو قائم اوسي (ر ده چا نه په ويره په دروغه شهادتونه نهٔ ورکوي).

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿٣٤﴾

او هغه خلق چه د خپلو نمونځونو حفاظت کوي.

اُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ﴿٣٥﴾ ع

هغوي به جنتونو کښے شان سره ساتلے شي.

فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ ﴿٣٦﴾

بيا په کافرانو څهٔ شوي دي چه ستا په طرف په تهر سرونه اوچت کړي په منډه روان دي.

عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ ﴿٣٧﴾

د ښي طرف نه هم او د کس طرف نه هم ډلے ډلے.

اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ ﴿٣٨﴾

آيا هغوي کښے هر سړے غواړي چه هغه د نعمتونو په جنت کښے داخل کړے شي (که د دنيا دي او که د آخرت).

كَلَّا ۭ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّمَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٩﴾

داسے به هيڅکله نهٔ وي. مونږ هغوي د هغه څيز نه پيدا کړي دي چه هغے نه هغوي خبر دي.

فَلَآ اُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشٰرِقِ وَالْمَغٰرِبِ اِنَّا لَقٰدِرُوْنَ ﴿٤٠﴾

بيا زهٔ (د دے قرآن د نازلولو نکي) د نمر خاتهٔ او پرېواته رب د شهادت په طور وړاندے کوم چه مونږ په دے خبره قادر يو.

عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ ۙ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ ﴿٤١﴾

چه دا تمام تباه کړو او لوبل ښه تمام پيدا کړو او هيڅوک مونږ د دے ارادے نه نشي منع کولے.

فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَيَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿٤٢﴾

بيا تهٔ هغوي پريږده چه دوئ دلچسپئ پورے تمبوبے کوي او په لوبو تهوکو کښے اخته اوسي تر هغه وخته پورے چه هغوي هغه ورځ اووني چه د کومے هغوي سره وعده کيګي.

يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ سِرَاعًا كَاَنَّهُمْ اِلٰى نُصُبٍ يُّوْفِضُوْنَ ﴿٤٣﴾

کومه ورځ به چه هغوي د قبرونو نه ژوندي راپاسي او په تادئ تادئ به ځغلي لکه چه هغوي د خاصو ستنو (رتانو مشرانو) په طرف منډے وهي.

خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۭ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿٤٤﴾ ع

د هغوي سترګے به د شرم نه ټيټے وي او د هغوي په مخونو به ذلت خور شوے وي دا هغه ورځ ده چه د هغے هغوي سره وعده کيدے.




سورة نوح - دا سورة مکی دے او بسم الله سره د دے یوکم ۲۹ دیرش آیتونه او دوه ۲ رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِنَّآ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖٓ اَنْ اَنْذِرْ قَوْمَكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ②

مونږ نوح د هغهٔ د قام په طرف دے حکم سره لیږلے وه چه خپل قام د هغهٔ وخت د راتلو نه ړومبی هوښیار کړی هرکله به چه په هغوی دردناک عذاب راشی۔

قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ③

(هغهٔ خپل قام ته) ورئیلی وو یه خما قامه! زهٔ ستاسو په طرف یو ښکاره ښکاره ویروونکے (نبی) راغلے یم۔

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ وَاَطِيْعُوْنِ ④

(او تاسو ته وایم چه) لس د الله عبادت کوئ او د هغهٔ تقوی کوئ او خما اطاعت کوئ۔

يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرْكُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَاۗءَ لَا يُؤَخَّرُ ۘ لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ⑤

هغه به ستاسو گناهونه معاف کړی او تاسو ته به یو مقرر وخته پورے مولت درکړی او کچرے تاسو علم لرئ نو پوهه شئ چه الله څومره موده چه د یو قام د تباهئ د پاره مقرر دی هرکله چه هغه راشی نو وړاندے روستو نشی کیدلے۔

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ دَعَوْتُ قَوْمِيْ لَيْلًا وَّنَهَارًا ⑥

بیا هغهٔ (خدائے ته) اووئیل، یه خما ربه! ما خپل قام ته د شپے هم نارے کړے او د ورځے هم۔

فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَاۗءِيْٓ اِلَّا فِرَارًا ⑦

ولے خما د تبلیغ په سوب هغوی نور هم لرے اوتختیدهٔ۔

وَاِنِّيْ كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوْٓا اَصَابِعَهُمْ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ وَاَصَرُّوْا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ⑧

او ما چه هرکله هغوی ته تبلیغ اوکړو د پاره د دے چه هغوی اومنی او ته هغوی معاف کړے نو هغوی خپلے گوتے خپلو غوږونو کښے واچولے او خپل څادرونه ئے

رخپلو سرونو) نه تاؤکړل او په انکار ټینګ شول او ډیر زیات کبر ئے اوکړو۔

ثُمَّ اِنِّیۡۤ دَعَوۡتُهُمۡ جِهَارًا ﴿۹﴾

بیا ما هغوی ته په اوچت آواز (یعنی د تقریرونو په ذریعه تبلیغ اوکړو)۔

ثُمَّ اِنِّیۡۤ اَعۡلَنۡتُ لَهُمۡ وَ اَسۡرَرۡتُ لَهُمۡ اِسۡرَارًا ﴿۱۰﴾

بیا ما هغوی په ښکاره پوهولونه پس هغوی ته پټ تبلیغ اوکړو۔

فَقُلۡتُ اسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّکُمۡ ؕ اِنَّهٗ کَانَ غَفَّارًا ﴿۱۱﴾

او ما هغوی ته اوویل خپل رب نه معافی اوغواړئ، ډیر بخښونکے دے۔

یُّرۡسِلِ السَّمَآءَ عَلَیۡکُمۡ مِّدۡرَارًا ﴿۱۲﴾

کچرے تاسو توبه اوکړئ نو هغه به وروونکے وریځ ستاسو په طرف را اوستوی۔

وَّ یُمۡدِدۡکُمۡ بِاَمۡوَالٍ وَّ بَنِیۡنَ وَ یَجۡعَلۡ لَّکُمۡ جَنّٰتٍ وَّ یَجۡعَلۡ لَّکُمۡ اَنۡهٰرًا ﴿۱۳﴾

او په مالونو او اولاد به ستاسو امداد اوکړی او ستاسو د پاره به باغونه را اوتوکوی تاسو د پاره به دریابونه روان کړی۔

مَا لَکُمۡ لَا تَرۡجُوۡنَ لِلّٰهِ وَقَارًا ﴿۱۴﴾

دا په تاسو څهٔ شوی دی چه تاسو د الله نه د حکمت اُمید نهٔ لرئ۔

وَ قَدۡ خَلَقَکُمۡ اَطۡوَارًا ﴿۱۵﴾

په حقیقت کښے هغه تاسو ته د ډیرو ترقو د حاصلولو طاقت درکړے دے۔

اَلَمۡ تَرَوۡا کَیۡفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ﴿۱۶﴾

آیا تاسو نهٔ دی لیدلی چه الله څنګه اووهٔ آسمانونه پیدا کړی دی چه (د تقابل له مخه) د یو بل سره سم دی۔

وَّ جَعَلَ الۡقَمَرَ فِیۡهِنَّ نُوۡرًا وَّ جَعَلَ الشَّمۡسَ سِرَاجًا ﴿۱۷﴾

او هغهٔ سپوږمئ په هغو (آسمانونو) کښے د نور سبب جوړه کړے ده او نمر ئے آسمانونو کښے د ډیوے په حیث جوړ کړے دے۔

وَ اللّٰهُ اَنۡۢبَتَکُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ نَبَاتًا ﴿۱۸﴾

او الله زمکے نه تاسو پیدا کړئ او (ستاسو) نشونما ئے اوکړه۔

ثُمَّ یُعِیۡدُکُمۡ فِیۡهَا وَ یُخۡرِجُکُمۡ اِخۡرَاجًا ﴿۱۹﴾

بیا به هغه تاسو دے ته واپس کوی او تاسو به د دے نه را اوباسی۔

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ بِسَاطًا ۝۲۰

او الله زمکه هواره جوړه کړے ده۔

لِتَسْلُكُوْا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ۝۲۱

ع ۹ دَ پاره دَ دے چه تاسو دَ دے په ارتو بیرتو لارو روان اوسئ۔

قَالَ نُوْحٌ رَّبِّ اِنَّهُمْ عَصَوْنِيْ وَاتَّبَعُوْا مَنْ لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهٗ وَوَلَدُهٗۤ اِلَّا خَسَارًا ۝۲۲

بیا نوحؑ اووئیل یَه څماربه! دوئ څما خبره نهٔ ده منو دے
رڅما په ځائے ) هغهٔ پسے روان شوی دی چه دَ چا مال
او اولاد هغه رُوحانی نقصان کښے زیاتولو۔

وَمَكَرُوْا مَكْرًا كُبَّارًا ۝۲۳

او رڅما خلاف ) دوئ لوئے لوئے تدبیرونه اوکړل۔

وَقَالُوْا لَا تَذَرُنَّ اٰلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَّلَا سُوَاعًا ۙ وَّلَا يَغُوْثَ وَيَعُوْقَ وَنَسْرًا ۝۲۴

او رخپل قام ته به ئے ) وئیل چه تاسو خپل معبودان
مهٔ پریږدئ مهٔ ود، مهٔ سوٰع اومهٔ یغوث او مهٔ
یعوق او مهٔ نسر۔

وَقَدْ اَضَلُّوْا كَثِيْرًا ۚ وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا ضَلٰلًا ۝۲۵

او هغوی ډیر خلق بے لارے کړل او ریَه خدایه ! )
ظالمان بس په ناکامئ کښے زیاتوه۔

مِمَّا خَطِيْٓـٰٔتِهِمْ اُغْرِقُوْا فَاُدْخِلُوْا نَارًا ۙ فَلَمْ يَجِدُوْا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْصَارًا ۝۲۶

هغوی دَ خپلو ګناهونو له کبله غرق کړے شول او اور
کښے واچولے شول او الله نه سوا هغوی خپل ځان
دَ پاره هیڅوک مددګار اونهٔ موندلو۔

وَقَالَ نُوْحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا ۝۲۷

او نوحؑ دا هُم دعا اوکړه چه یَه څماربه! په زمکه
دِ دَ کافرانو هډو یو کور پاتے نشی۔

اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوْا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوْٓا اِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ۝۲۸

کچرے ته هغوی دا شان پریدے نو دوئ به ستا نور
بندیان هُم بے لارے کړی او هغوی به ګناهګارو او
کُفرکوونکو نه سوا هډو ماشوم نهٔ پیدا کوی۔

رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَّلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۗ وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا تَبَارًا ۝۲۹

یَه څماربه ! ما او څما مور پلار او هر هغه څوک چه
څما کور کښے دَ مومن په حیث راڅی هغه او بخښے او
ع ۲ النصف ټول مومنان سړی او ټولے مومنانے بخښے هُم، او دا سے
دِ وی چه ظالمان بس په تباهئ کښے ترقی اوکړی هغوی
رته دے کامیابی نصیب نهٔ وی )۔




سورة الجن - دا سورة مكى دے او لبسم الله سره دَ دے يو كم ٢٩ ديرش آيتونه او دوه ركوع دى -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع كوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے.

قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ①

تهٔ او وايه چه ماته وحى شوے ده چه جناتو كښے څنے كسانو تا نه (قرآن) واوريدو بيا نو (هر كله چه هغوى خپل قام طرف ته واپس شول نو) هغوى خپل قام ته او وئيل چه مونږ يو عجيبه قرآن اوريدلے دے -

يَّهْدِيْٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ۭ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ اَحَدًا ②

چه هغه دَ هدايت په طرف بوزى چه دَ هغے په نتيجه مونږ په هغے ايمان راوړے دے او مونږ به بيا دَ پاره خپل رب سره كله هُم څوك شريك نهٔ كرزوو -

وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ③

او حقه دا ده چه څمونږ رب ډير او چت شان لرونكے دے نهٔ هغه چرے څوك ښځه جوړه كړے ده او نهٔ ئے څوئے جوړ كړے دے -

وَّاَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ④

او دا هُم حقيقت دے چه مونږ كښے احمقانو خلق دَ الله په حقله ناواجبه خبرے كولے -

وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ⑤

او څمونږه دا خيال وه چه انسان او جن دَ الله په حقله خو دروغ نشى وئيلے -

وَّاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ⑥

او بيا دا هُم حقيقت دے چه په انسانانو كښے څه خلق داسے وُو چه په جناتو كښے دَ بعضو كسانو پناه به ئے غوښتله نو دَ دے نتيجه دا او شوه (چه دَ انسانانو دَ جناتو نه پناه غوښتلو) له كبله جنات په كبر كښے نور هُم زيات كړل -

وَّ اَنَّهُمْ ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا ﴿۸﴾

په تحقیق سره هغه (یهودی) جنّاتو هُم یقین لرلو چه څنګه تاسو یقین لرئ چه الله به هیڅوک نبی نهٔ راسنوی۔

وَّاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ فَوَجَدْنٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيْدًا وَّ شُهُبًا ﴿۹﴾

او مونږ آسمان له کوتے یورے (یعنی دَ آسمان دَ علمونو دَ حاصلولو کوشش مو اوکړو) وے مونږ هغه دَ قوی پهرهٔ دارو او دَ شهاب ثاقب نه ډک اومندلو۔

وَّاَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ يَجِدْ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا ﴿۱۰﴾

او مونږ به دے کښے (دَ آسمانی خبرو) دَ اوریدو دَ پاره (راکا هو) ناستنه کوله وے اوس چه څوک (دَ آسمانی خبرو) دَ اوریدو کوشش کوی نو هغه وینی چه یو (رهلاکوونکے) شغله وهوُنکے ستورے دَ هغهٔ په سو کښے دے۔

وَّاَنَّا لَا نَدْرِيْٓ اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿۱۱﴾

او مونږ ته معلومه نهٔ دهٔ چه دَ هغه راتلونکی په ذریعه په زمکه دَ اوسیدونکو خلقو دَ پارهٔ دَ هغوی رب دَ هدایت ورکولو فیصله کړے دهٔ۔

وَّاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ﴿۱۲﴾

او مونږ کښے څه نیکان خلق هُم دی او څوک دَ هغوی خلاف هُم دی مونږ په بیلو بیلو لارو روان وُو۔

وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ فِي الْاَرْضِ وَلَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ﴿۱۳﴾

او مونږ یقین لرلو چه مونږ به دُنیا کښے الله پاتے راوستے نشو او نهٔ مونږ به منډهٔ هغه پاتے راوستے شو۔

وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰٓى اٰمَنَّا بِهٖ فَمَنْ يُّؤْمِنْ بِرَبِّهٖ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا ﴿۱۴﴾

او مونږ خو چه کله دَ هدایت خبرهٔ واوریدهٔ په هغے مو ایمان راوړو او څوک چه په خپل رب ایمان راوړی نو نهٔ دَ څه نقصان نه ویریګی او نهٔ دَ ظلم نه۔

وَّاَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ وَمِنَّا الْقٰسِطُوْنَ فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ﴿۱۵﴾

او مونږ کښے څنے خلق حُکم منوُونکی دی او څنے ظالمان هُم دی او څوک چه حُکم منوُونکی جوړیګی هُم هغه هدایت غوښتوُنکے دی۔

وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ﴿١٥﴾

اوچه څوک ظُلم کوی هُم هغوی دَجهنّم خشاک جوړیګی۔

وَّاَنْ لَّوِاسْتَقَامُوْا عَلَى الطَّرِيْقَةِ لَاَسْقَيْنٰهُمْ مَّآءً غَدَقًا ﴿١٦﴾

او (یَه پیغمبره ما فیصله کړے وه چه) کچرے دا (دکے کافران) څمونږ په ښودلو شوؤ طریقو روان وے نو مونږ به هغوی ته په خلاص مټ اوبه څکولے دے۔

لِّنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ؕ وَمَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴿١٧﴾

دَ پاره دَدے چه دا شان دَهغوی آزمینښت اوکړو اوڅوک چه دَخپل رب دَ ذکرنه ډډه کوی (هغه رخداشے) هغه له دَ داسے عذاب په لاره روانه وی چه زیاتیګی (او هغوی هُم هغه لاره نیولے ده)۔

وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ﴿١٨﴾

او مونږ دا هُم فیصله کړے وه چه جماعتونه دِ تل ترتله دَ الله ملکیت اوګرزولے شی۔ بیا یَه خلقو! تاسو هغوی کښے دَ هغهٔ نه سوا بل څوک مدد له مهٔ غوارئ۔

وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ﴿١٩﴾ ع

او مونږ ته ښکاری چه هرکله دَ الله بنده (محمد صلی الله علیه وسلم) دَ هغه دَ رابللو دَپاره اودریګی نو دوئ (دَکے او سپډونکی) دَ هغه دَ پاسه رادانګی۔

قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖۤ اَحَدًا ﴿٢٠﴾

تهٔ اووایه چه زهٔ خولس خپل رب مدد له غوارم او هیڅوک دَ هغهٔ شریک نهٔ جوړوم۔

قُلْ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا ﴿٢١﴾

اودا هُم اووایه چه تاسو هیڅ قسم دَ ضرر رسولو یا دَ هدایت ورکولو ما کښے طاقت نشته۔

قُلْ اِنِّيْ لَنْ يُّجِيْرَنِيْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ ۙ وَّلَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ﴿٢٢﴾

(بلکه دا هُم) اووایه (چه کچرے الله په ما عذاب نازل کړی نو) دَ الله دَ عذاب نه څما ساتونکے هیڅوک نشته او دَ هغهٔ نه سوا زهٔ هیڅ ځاے نهٔ وینم۔

اِلَّا بَلٰغًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِسٰلٰتِهٖ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴿٢٣﴾

څما کار خولس دا دے چه دَ الله خبره او دَ هغهٔ پیغام اورسوم اوچه کوم خلق دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول خبره نهٔ منی۔ هغوی دوزخ بیا موی۔ هغوی به هغے

کښے تر ډیرے مودے اوسی۔

حَتّٰۤى اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾

او ! هرکله چه به هغوی موعود عذاب او وینی نو پوهه به شی (چه د هغوی او د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د مقابلے ترمنځه) مددګار په لحاظ څوک کمزوری دے او د شمیر په لحاظ څوک لږ دی۔

قُلْ اِنْ اَدْرِيْۤ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ يَجْعَلُ لَهٗ رَبِّيْۤ اَمَدًا ﴿۲۵﴾

ته اووایه چه زۀ نۀ پوهیږم چه ستاسو هغه مقرر شوے وخت نزدے دے یا الله به دے د پاره اوږده موده مقرروی۔

عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖۤ اَحَدًا ﴿۲۶﴾

د غیبو علم لرونکے هُم هغه دے او هغه په خپل غیب هیڅوک نۀ غالب کوی۔

اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ﴿۲۷﴾

سوا د داسے رسُول نه څوک چه هغه دے کار له خوښوی او د دے رسُول داشان دے چه د ده وړاندے او د ده نه ورستو هُم د حفاظت کوونکو فرښتو دستنه روانه ده۔

لِّيَعْلَمَ اَنْ قَدْ اَبْلَغُوْا رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ وَاَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ وَاَحْصٰى كُلَّ شَيْءٍ عَدَدًا ﴿۲۸﴾ ع ۱۲

د پاره د دے چه الله معلومه کړی چه دے رسُولانو د خپل رب پیغام خلقو ته رسولے دے او هغه څه چه هغوی سره دی هغه په ګیره کښے ساتی او هر څیز شمیری۔




سورۃ مزمل - دا سورۃ مکی دے او بسم الله سره دَ دے یو ویشت [21] آیتونه او دوه [2] رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

يٰٓاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ②
یَه په څادر کښے انغښتیه (دَ خدائے دَ رحمت انتظار کوونکیه)۔

قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا ③
دَ شپو پاسه عبادت کوه چه دَ هغے نه څمونږ مقصد دا دے چه دَ شپے ډیره برخه په عبادت کښے تیروه۔

نِّصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا ④
یعنی دَ هغے نیمه یا دَ نیمے نه څهٔ کمه کړه۔

اَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ⑤
یا په هغے څهٔ نوره زیاته کړه او قرآن په ښه آواز لوله۔

اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا ⑥
مونږ په تا یو داسے کلام نازلونکے یو (چه دَ ذمه دارئ له مخه) ډیر درونـد دے۔

اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ هِيَ اَشَدُّ وَطْاً وَّاَقْوَمُ قِيْلًا ⑦
دَ شپے پاسیدل نوس دَ خپلو لیښو لاندے دَ مخلو دَ تولو نه کامیابه نسخه ده۔ او دَ شپے ولیښیو دونکو ته دَ ریښتیا وئیلو عادت هم پریوزی۔

اِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا ⑧
ستا دَ ورځے ډیر کارونه وی۔

وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلًا ⑨
پکار دی چه ته دَ خپل رب صفتونه بیانوے او هم هغهٔ سره زړهٔ تکوے۔

رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا ⑩
هغه دَ نمر خاته هم رب دے او نمر پریواته هم رب دے دَ هغهٔ نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته۔ بیا هم هغه خپل کارساز جوړ روه۔

وَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَ اهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيْلًا ⑪
او چه څه هغوی (ستا مخالفین) وائی په هغے صبر کوه او په ډیر شریفانه طریقه هغوی نه بیل شه۔

وَذَرۡنِیۡ وَالۡمُکَذِّبِیۡنَ اُولِی النَّعۡمَةِ وَمَهِّلۡهُمۡ قَلِیۡلًا ﴿۱۱﴾

او دَ نعمت لرُونکی (یعنی مالدار) منکران او ما لوا زمے پریږده او ته هغوی له څه مولت ورکړه او دَ هغوی دَ زر تباهی دعا مه کوه ززه به خپله هغوی تباه کړم)۔

اِنَّ لَدَیۡنَاۤ اَنۡکَالًا وَّجَحِیۡمًا ﴿۱۲﴾

مونږ سره قسم قِسم بیړئ او جهنم دے۔

وَّطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَّعَذَابًا اَلِیۡمًا ﴿۱۳﴾

او داسے خوراکه هُم دَه چه په مرئ کښے اِنخلی او دردناک عذاب هُم دے۔

یَوۡمَ تَرۡجُفُ الۡاَرۡضُ وَالۡجِبَالُ وَکَانَتِ الۡجِبَالُ
کَثِیۡبًا مَّهِیۡلًا ﴿۱۴﴾

کومه ورځ به چه زمکه او غرونه رپی او غرونه به دَ داسے ډیکو په شان شی لکه چه خپله راخویږی (هغه ورځ به هغه عذاب رازی)

اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلَیۡکُمۡ رَسُوۡلًا ۬ۙ شَاهِدًا عَلَیۡکُمۡ کَمَاۤ
اَرۡسَلۡنَاۤ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ رَسُوۡلًا ﴿۱۵﴾

یَه خلقو مونږ ستاسو په طرف یو داسے رسُول لیږلے دے چه په تاسو نګران دے۔ داشان څنګه چه مو دَ فرعون په طرف لیږلے وه۔

فَعَصٰی فِرۡعَوۡنُ الرَّسُوۡلَ فَاَخَذۡنٰهُ اَخۡذًا وَّبِیۡلًا ﴿۱۶﴾

بیا فرعون دَ هغهٔ رسُول نافرمانی کړے وه او مونږ هغه په لوو بال لرُونکی عذاب نیولے وه۔

فَکَیۡفَ تَتَّقُوۡنَ اِنۡ کَفَرۡتُمۡ یَوۡمًا یَّجۡعَلُ الۡوِلۡدَانَ
شِیۡبَا ﴿۱۷﴾

او اوخووایه کچرے تادَ هغه ورځے انکار اوکړو چه ځوانان زاړهٔ کوی نو ته به څنګه (دَ عذاب نه) بچ شے۔

اِۨلسَّمَآءُ مُنۡفَطِرٌۢ بِهٖ ؕ کَانَ وَعۡدُهٗ مَفۡعُوۡلًا ﴿۱۸﴾

آسمان خپله دَ هغه عذاب نه شلیدُونکے دے او دَ هغهٔ (خدائے) وعده ده چه خامخا به پوره کیګی۔

اِنَّ هٰذِهٖ تَذۡکِرَةٌ ۚ فَمَنۡ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰی رَبِّهٖ سَبِیۡلًا ﴿۱۹﴾ ع

دا (یعنی قرآن) یو نصیحت دے بیا چه څوک غواړی دَ خپل رب طرف تلو نکے لاره دِ اونیسی۔

اِنَّ رَبَّکَ یَعۡلَمُ اَنَّکَ تَقُوۡمُ اَدۡنٰی مِنۡ ثُلُثَیِ الَّیۡلِ
وَنِصۡفَهٗ وَثُلُثَهٗ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ الَّذِیۡنَ مَعَکَ ؕ
وَاللّٰهُ یُقَدِّرُ الَّیۡلَ وَالنَّهَارَ ؕ عَلِمَ اَنۡ لَّنۡ تُحۡصُوۡهُ
فَتَابَ عَلَیۡکُمۡ فَاقۡرَءُوۡا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الۡقُرۡاٰنِ ؕ
عَلِمَ اَنۡ سَیَکُوۡنُ مِنۡکُمۡ مَّرۡضٰی ۙ وَاٰخَرُوۡنَ یَضۡرِبُوۡنَ

ستا رب پوهیګی چه ته دوه برخه شپے نه څهٔ کم نمونځ دَ پاره اودریګے او کله کله دَ نیمے شپے برابر او کله کله دَ دریمے برخے برابر او داشان ستا څه ملګری هُم۔ او الله شپه او ورځ وړه لویه کوی۔ خدائے ته معلومه ده چه تاسو دَ نمونځ دَ وخت

فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ ۙ وَاٰخَرُونَ
يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۙ وَ
اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا
حَسَنًا ۚ وَمَا تُقَدِّمُوا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ
عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرًا وَّاَعْظَمَ اَجْرًا ۚ وَاسْتَغْفِرُوا
اللّٰهَ ۚ اِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٠﴾

اندازه په بنه شان کولے نشئ بیا هغهٔ په تاسو رحم کړے دے بیا یکاردی چه په قرآن کښے څومره کیدے شی هغه هومره تاسو دَ شپے تلاوت کوئ الله پوهیګی چه تاسو کښے څنے بیمار هُم وی او څوک به دَ تجارت دَ پاره په سفر هُم اُوزی - او څنے خلق به تاسو کښے دَ الله دَ پاره جهاد دَ پاره هُم اُوزی - بیا رمونږ بے دَ حد نرلونه والو) چه قرآن نه چه څومره لوستے شئ تلاوت کوئ او نمونځ دَ شرطونو سره سم ادا کوئ او زکوٰة ورکوئ او دَ الله دَ خوشحالولو دَ پاره دَ خپل مال یوه بنه برخه بیلوئ او کومه نیکره هُم چه تاسو دَ خپلو ځانونو دَ پاره اولیږئ هغه به تاسو الله سره بیا مومئ - هغه بنه نتیجه او با سُونکے او زیات نه زیات اجر ورکوُنکے دے او الله نه بخښنه غواړئ دیر معاف کوُنکے (او) بے کچه مهربانه دے -



سُورَةُ الْمُدَّثِّرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سَبْعٌ وَّخَمْسُونَ اٰيَةً وَّرُكُوعَانِ

سورة مدثر - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے او ۵۷ پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ ﴿١﴾
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُنکے دے -

يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ﴿٢﴾
یَه بارانی کوټ کښے اودریدوُنکیه -

قُمْ فَاَنْذِرْ ﴿٣﴾
او دریږه او لرے لارشه خلق هوښیار کړه او دَ خپل

وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴿٤﴾
رب لوئی بیان کړه -

وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴿٥﴾
او ځان سره خوا کښے اوسیدونکی خلق پاک کړه -

وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ﴿٦﴾
او شرک ختم کړه -

| | |
|---|---|
| وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ ﴿٦﴾ | او په دے نیت احسان مهٔ کوه چه دَ دے بدل کښے به تا ته زیات حاصل شی۔ |
| وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ﴿٧﴾ | او (په بزدلئ نا بلکه) دَ خپل رب دَ خوشحالئ دَ پاره صبر نه کار آخله۔ |
| فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ﴿٨﴾ | او هر کله به چه بگل کښے پُک وهلے شی۔ |
| فَذٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَّوْمٌ عَسِيرٌ ﴿٩﴾ | نو دا ورځ به یوه سخته ورځ وی۔ |
| عَلَى الْكٰفِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ﴿١٠﴾ | کافرانو دَ پاره به هیڅکله آسانه نهٔ وی۔ |
| ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا ﴿١١﴾ | (اے رسوله!) ما او هغه څوک چه ما بے یارومددګار پیدا کړے وه یوازے پریږده۔ |
| وَّجَعَلْتُ لَهٗ مَالًا مَّمْدُودًا ﴿١٢﴾ | او ما هغهٔ دَ پاره ډیر مال پیدا کړے وه۔ |
| وَّبَنِينَ شُهُودًا ﴿١٣﴾ | او داسے اولاد هُم چه هر وخت دَ هغهٔ نه وړاندے روستو ګرزیدو |
| وَّمَهَّدْتُّ لَهٗ تَمْهِيدًا ﴿١٤﴾ | او ما هغهٔ دَ پاره دَ ترقیانو ډیر ساما نونه پیدا کړی وُو۔ |
| ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ ﴿١٥﴾ | بیا هُم هغه طمع لری چه زهٔ هغه له دَ دے نه زیات ورکړم۔ |
| كَلَّا إِنَّهٗ كَانَ لِاٰيٰتِنَا عَنِيدًا ﴿١٦﴾ | واوره! هغه څما دَ آیتونو دښمن وَه۔ |
| سَأُرْهِقُهٗ صَعُودًا ﴿١٧﴾ | بیا نو زهٔ به هُم هغه په یو داسے عذاب اخته کړم چه هر وخت به زیاتیګی۔ |
| إِنَّهٗ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿١٨﴾ | هغهٔ (څما آیتونه واوریدل او په هغوئے) غور اوکړو او اندازه ئے اوکړه۔ |
| فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿١٩﴾ | او هغه دے هلاک شی هغهٔ څنګه غلطه اندازه اوکړه۔ |
| ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿٢٠﴾ | بیا مونږ وایو هغهٔ څنګه غلطه اندازه اوکړه۔ |
| ثُمَّ نَظَرَ ﴿٢١﴾ | بیا هغهٔ په دوئم حل فکر اوکړو۔ |
| ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿٢٢﴾ | بیا هغه تندے ګونجے او او رُوز وران کړو۔ |

ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ﴿۲۳﴾
بیا ئے شاکرہ او کبر ئے او کړو۔

فَقَالَ اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ يُّؤْثَرُ ﴿۲۴﴾
او وے وئیل دا خو یو دروغ دی چه ړومبنو نه
نقل شوی دی۔

اِنْ هٰذَآ اِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ﴿۲۵﴾
دا یو انسانی کلام دے۔

سَاُصْلِيْهِ سَقَرَ ﴿۲۶﴾
مونږ به دے (یعنی دغه کس) سقر کښے اچوو۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سَقَرُ ﴿۲۷﴾
او تا ته څهٔ معلومه ده چه سقر څهٔ شے دے۔

لَا تُبْقِيْ وَلَا تَذَرُ ﴿۲۸﴾
هغه (یعنی دوزخ) هیڅ باقی نهٔ پریږدی او دَ عذاب
هیڅ یوه طریقه نهٔ پریږدی۔

لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴿۲۹﴾
هغه څرمن سوزوی۔

عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴿۳۰﴾
په هغے نولس[19] داروغے مقرر دی۔

وَمَا جَعَلْنَآ اَصْحٰبَ النَّارِ اِلَّا مَلٰٓئِكَةً ۙ وَّمَا جَعَلْنَا
عِدَّتَهُمْ اِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۙ لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ
اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا وَّلَا يَرْتَابَ
الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۙ وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ
فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْكٰفِرُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا
مَثَلًا ۭ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ
يَّشَآءُ ۭ وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ ۭ وَمَا هِيَ اِلَّا
ذِكْرٰى لِلْبَشَرِ ﴿۳۱﴾ ع ۳۲/۱۵

او دَ دوزخ داروغے مونږ بس دَ فرښتو نه مقرر
کړی دی او دَ هغوی شمیر مو بس دَ کافرانو دَ
آزمیښت په طور ښودلے دے او دَ دے به دا
نتیجه راوُوزی چه دَ اهلِ کتابو یقین اوشی او مومنان
په یقین کښے زیات شی او نهٔ به اهلِ کتاب شک کوی او
نهٔ مومنان۔ نتیجه به ئے دا وی چه دَ چا په زړونو
کښے مرض دے۔ هغوی او نور کافران به وائی چه دَ دے
خبرے دَ وئیلو نه دَ الله څهٔ منشاء ده دا شان الله
هغه بے لارے کرزوی چه دَ چا په حقله اراده اوکړی
او چه دَ چا په حقله اراده اوکړی هغهٔ ته هدایت ورکړی
او ستا دَ رب دَ لښکرو دَ هغهٔ نه سوا بل چا ته علم
نشته او دا (یعنی قرآن) انسان دَ پاره خو بس یو
نصیحت دے۔

كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴿۳۲﴾
واورئ! مونږ سپوږمئ دَ شهادت په طور وړاندے
کوو۔

| | |
|---|---|
| وَالَّيْلِ اِذْ اَدْبَرَ ٣٣ | او تیارهٔ هرکله چه هغه په شاشی ۔ |
| وَالصُّبْحِ اِذَآ اَسْفَرَ ٣٤ | او سحر هرکله چه هغه روښانه شی ۔ |
| اِنَّهَا لَاِحْدَى الْكُبَرِ ٣٥ | چه دا (ساعت چه ذکرئے شوے دے) دَ ډیرو لوئے لوئے څیزونو نه دے ۔ |
| نَذِيْرًا لِّلْبَشَرِ ٣٦ | انسان له ویرونکے دے ۔ |
| لِمَنْ شَآءَ مِنْكُمْ اَنْ يَّتَقَدَّمَ اَوْ يَتَاَخَّرَ ٣٧ | هغه انسان چه غواړی چه څه دا سے نیکی اوکړی چه چه په بل جهان کښے دَ هغهٔ پکار راشی یا دَ څهٔ بدئی نه چه دَ هغهٔ عادت شوے وی روستو شی (او دَ هغے دَ کولو نه خلاص شی) ۔ |
| كُلُّ نَفْسٍۢ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ ٣٨ | هر نوس چه څه کړی دی هغه دَ هغے په بدل کښے کانړه دے ۔ |
| اِلَّآ اَصْحٰبَ الْيَمِيْنِ ٣٩ | سوا دَ ښی طرف دَ خلقو نه ۔ |
| فِيْ جَنّٰتٍ ۛ يَتَسَآءَلُوْنَ ٤٠ | چه هغوی به په جنتونو کښے وی او مجرمانو نه به تپوس کوی ۔ |
| عَنِ الْمُجْرِمِيْنَ ٤١ | |
| مَا سَلَكَكُمْ فِيْ سَقَرَ ٤٢ | چه تا سو څه څیز دَ دوزخ په طرف وروستئ ؟ |
| قَالُوْا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ٤٣ | هغوی به جواب ورکوی چه مونږ لمونځونه نهٔ کول ۔ |
| وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ ٤٤ | او په مسکینانو مو ډوډی نهٔ خوړوله ۔ |
| وَكُنَّا نَخُوْضُ مَعَ الْخَآئِضِيْنَ ٤٥ | او بے حکمته خبرے کوونکو سره مو بے حکمته خبرے کولے ۔ |
| وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ٤٦ | او مونږ دَ جزا سزا دَ ورځے انکار کولو ۔ |
| حَتّٰۤى اَتٰىنَا الْيَقِيْنُ ٤٧ | ترهغے چه مونږ له مرګ راغے ۔ |
| فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشّٰفِعِيْنَ ٤٨ | بیا داسے خلقو ته به دَ شفاعت کوونکو شفاعت فائده نهٔ ورکوی ۔ |
| فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ ٤٩ | په دے خلقو څهٔ شوی دی چه دَ نصیحت نه داسے مخ اړوی ۔ |

معانقة ١٢ عند المتقدمين

كَاَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنْفِرَةٌ ﴿٥٠﴾
لکه چه هغوی ویرو لی خرهٔ وی۔

فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾
چه د زمری په لید وتختی۔

بَلْ يُرِيْدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّؤْتٰى صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴿٥٢﴾
حقیقت دا دے چه دوئ کښے هر سړے غواړی چه د هغهٔ په لاس کښے پرانستے کتاب ورکړے شی۔

كَلَّا بَلْ لَّا يَخَافُوْنَ الْاٰخِرَةَ ﴿٥٣﴾
دا اُمید پوره کیدونکے نهٔ دے بلکه حقیقت دا دے چه هغوی آخرت نه ویریګی۔

كَلَّآ اِنَّهٗ تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾
واورئ! دا کلام یو نصیحت دے۔

فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ﴿٥٥﴾
بیا چه څوک غواړی دے نه دِ نصیحت واخلی۔

وَمَا يَذْكُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ هُوَ اَهْلُ التَّقْوٰى وَاَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾
او منکران به کله هُم بے د الله د اراده نه نصیحت وانخلی راو دا څه لرے خبره هُم نهٔ ده وے چه) هغه الله تقویٰ هُم ورکوی او بخښنه هُم ورکوی۔




سورة قیامة - دا سورة مکی دے او بسم الله سره د دے یو څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿١﴾
(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ﴿٢﴾
زهٔ د قیامت د ورځے قسم خورم (یعنی دا د شهادت په طور پیش کوم)۔

وَلَآ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ﴿٣﴾
او زه نفس لوّامه د شهادت په طور پیش کوم۔

اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَلَّنْ نَّجْمَعَ عِظَامَهٗ ﴿٤﴾
آیا انسان خیال کوی چه مونږ د هغهٔ هډوکی نهٔ را غونډوُو۔

بَلٰى قٰدِرِيْنَ عَلٰٓى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ ﴿٥﴾
ناِنا! مونږ خو په دے قادر یُوچه د هغهٔ هر یو بند بیا د سره جوړ کړو۔

بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ ﴿٦﴾
حقیقت دا دے چه انسان غواړی چه بیا د پاره هُم

گناه کښې اخته وی۔

يَسْـَٔلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ ﴿٧﴾ هغه تپوس کوی چه قیامت به کله وی؟

فَاِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ﴿٨﴾ نو بیا هر کله چه به سترګو ته تیاره شی۔

وَخَسَفَ الْقَمَرُ ﴿٩﴾ او سپوږمئ به تندر اونیسی۔

وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ﴿١٠﴾ او نمر او سپوږمئ دواړه د تندر په حال راټولے کړے شی۔

يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ اَيْنَ الْمَفَرُّ ﴿١١﴾ هغه وخت به انسان وائی او س زۀ په تیخته چرته تللے شم۔

كَلَّا لَا وَزَرَ ﴿١٢﴾ واورئ! نن د عذاب نه د بچ کیدو هیڅ ځائے نشته۔

اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ ۣ الْمُسْتَقَرُّ ﴿١٣﴾ ولے هغه ورځ به هُم ستا رب سره ځائے وی۔

يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍۣ بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ ﴿١٤﴾ هغه ورځ به انسان ته خبر ورکړے شی د هغه کارونو هُم چه هغه له کول پکار نۀ وُو خو هغۀ اوکړل او د هغه کارونو هُم چه هغۀ له ئے کول پکار وُو ولے هغه او نۀ کړل۔

بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ ﴿١٥﴾ حقیقت دا دے چه انسان خپل نوَس ښه وینی او پوهیګی چه هغه څومره او لو کښې دے۔

وَّلَوْ اَلْقٰى مَعَاذِيْرَهٗ ﴿١٦﴾ هرڅو که هغه په ژبه ډیرې صفائی وړاندې کړي۔

لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴿١٧﴾ (اے نبی!) نۀ خپلے ژبے له حرکت مۀ ورکوه د پاره د دے چه دا قرآن زر نازل شی۔

اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ﴿١٨﴾ د دے جمع کول هُم ځمونږ په ذمه دی او د دے دُنیا ته بیا نول هُم (ځمونږ په ذمه دی)۔

فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ ﴿١٩﴾ بیا هر کله چه مونږ دا لولو نو ځمونږ د لوستو نه پس ئے ته هُم لوله۔

ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ﴿٢٠﴾ او دا ځمونږ فرض دے چه مونږ دا ستا په ژبه خلقو ته ښکاره واوروُو۔

كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ ﴿٢٠﴾ واورئ! تاسو په تادئ مونډونکے نعمت خوښوئ او
وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ ﴿٢١﴾ روستو را تلونکی نعمت ته خیال نهٔ کوئ۔
وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ هغهٔ ورځ به څنے خلق خوشحاله دی۔
اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴿٢٣﴾ دَ خپل خدائے په طرف به ئے نظر لګولے وی۔
وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ﴿٢٤﴾ او څهٔ خلق به هغه ورځ بروس ناست وی۔
تَظُنُّ اَنْ يُّفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿٢٥﴾ وے چه هغوی به خیال کوی چه هغوئ سره به هغه سلوک کیږی چه دَ هغے سره به دَملا تیرمات شی۔
كَلَّا اِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴿٢٦﴾ واورئ! هرکله به چه ساه مرئ ته راشی۔
وَقِيْلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ﴿٢٧﴾ او او به وئیلے شی چه نن څوک شته دے چه په دم دُعا دے ښهٔ کړی۔
وَّظَنَّ اَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴿٢٨﴾ او هر لو به یقین اوکړی چه اوس دَ جدائی وخت راغلے دے۔
وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ﴿٢٩﴾ او دَ ځنکدن وخت به راشی۔
اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ ِالْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾ هغه ورځ به هُم ستا دَ رب په طرف تلل وی۔
فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ﴿٣١﴾ بیا څهٔ اوشول چه داسے سړی نهٔ صدقه ورکړه اونهٔ ئے نمونځ اوکړو۔
وَلٰكِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ﴿٣٢﴾ (بلکه دَ حقو) انکار ئے کولو او (دَ دے نه ئے) مخ واړولو۔
ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰى اَهْلِهٖ يَتَمَطّٰى ﴿٣٣﴾ او دَ دے نه پس دَ لیښنیما تنیا په ځائے دَ خپل کور خلقو په طرف په نخرو لاړو۔
اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿٣٤﴾ (په سړیه) ته هلاک شے۔
ثُمَّ اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿٣٥﴾ مونږ بیا وایو چه ته هلاک شے۔
اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ سُدًى ﴿٣٦﴾ آیا انسان خیال کوی چه دے به بے واکو پریخودے شی۔
اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ يُّمْنٰى ﴿٣٧﴾ آیا هغه یو وخت دَ اولو یوه قطره نهٔ وه چه خپل

مناسب دَ حال ځائے کښے وا چولے شوه۔

ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوّٰى ﴿۳۸﴾

بیا هغه یو انښتونکے بو ټئ جوړه شوه بیا هغه (یعنی خدائے) هغه له یو بل شکل ورکړو او آخرئے هغه کامل کړو۔

فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى ﴿۳۹﴾

او هغه ئے جوړه جوړه پیدا کړل یعنی دَ نر او مادے په شکل۔

أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى أَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ﴿۴۰﴾

ع ۲ / ۱۸ آیا دے (یعنی خدائے) په دے خبره قادر نهٔ دے چه مړی بیا ژوندی کړی۔




سورۃ دهر دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے دوۃ دیرش (۳۲) آیتونه او دوۃ (۲) رکوع دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

هَلْ أَتٰى عَلَى الْإِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْـًٔا مَّذْكُوْرًا ﴿۲﴾

آیا په انسان هغه وخت نهٔ دے راغلے چه هرکله هغه دَ سره هډو حقیقت نهٔ لرلو او دَ هغهٔ کارونه چا نهٔ یادول۔

إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَّبْتَلِيْهِ فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًۢا بَصِيْرًا ﴿۳﴾

مونږ انسان دَ یو نطفے نه پیدا کړے دے چه پکښے مختلف قوتونه را یو ځائے شوی وُو دَ پاره دَ دے چه مونږ دَ هغهٔ آزمینبت اوکړو بیا مونږ هغه اوریدونکے (او) لیدونکے جوړ کړو۔

إِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ إِمَّا شَاكِرًا وَّإِمَّا كَفُوْرًا ﴿۴﴾

مونږ هغهٔ ته دَ هغهٔ دَ حال مناسب لاره اوښودله یعنی که شکر کوی یا نافرمان شی۔

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَا۟ وَأَغْلٰلًا وَّسَعِيْرًا ﴿۵﴾

مونږ کافرانو دَ پاره زنځیرونه او طوق او جهنم تیار کړے دے۔

إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِنْ كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ﴿٥﴾

دَ خدائے نیکان بندیان به داسے کاسے څکي چه ګډ به دَ کافورو خاصیت ګډ شوے وي۔

عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ﴿٦﴾

دا (یعني کافور) به یوه چینه وي چه به ترے نه دَ الله بندیان څکي۔ هغوی به په کوشش دَ زړګے په شلولو هغه (یعني چینه) را اوباسي۔

يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا ﴿٧﴾

هغوی خپلے نذرانے درکوي او دَ هغے ورځے نه ویریګي چه دَ کومے ورځے بدي به تو له دنیا کښے خوره شوي وي۔

وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ﴿٨﴾

او دَ هغهٔ (یعني خدائے) په مینه په مسکین او یتیم او تیدی باندے ډوډئ خوروي۔

إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنْكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا ﴿٩﴾

او وائي چه یَه خلقو! مونږ په تاسو لس دَ الله دَ رضا دَ پاره ډوډئ خوروُو۔ مونږ نهٔ تاسو نه څه جزا غواړو او نهٔ ستاسو مننه (شکر) غواړو۔

إِنَّا نَخَافُ مِنْ رَبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ﴿١٠﴾

مونږ خپل رب نه دَ هغه ورځ ویره کوُو هر کله به چه دَ ویرے نه مخ وران نیولے وي او تندي به ئے ګنځے وي۔

فَوَقَاهُمُ اللَّهُ شَرَّ ذَٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقَّاهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا ﴿١١﴾

بیا به الله هغوی دَ هغه ورځے دَ ضرر نه ساتي او هغوی به تر او تازه او خوشحاله ساتي۔

وَجَزَاهُمْ بِمَا صَبَرُوا جَنَّةً وَحَرِيرًا ﴿١٢﴾

او دَ هغوی په نیکو دَ ټینګ اودریدو له کبله به هغوی ته (دَ اوسیدو دَ پاره) باغونه او (دَ اغوستلو دَ پاره) ریښم درکوي۔

مُتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا ﴿١٣﴾

هغوی به هغه باغ کښے په چپرکټونو اډے وهلی ناست وي۔ نهٔ خو به هغه باغ کښے ډیره ګرمي محسوسوي او نهٔ ډیره یخني۔

وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴿١٤﴾

او دَ هغه باغ سیوري به په هغوی راټیټ وي او دَ هغے میوے به هغوی ته رانږدے کړے شي۔

وَيُطَافُ عَلَيْهِمْ بِآنِيَةٍ مِنْ فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ

او دَ سپینو زرو لوخي او لوښے او داسے کوزے نیولی

قَوَارِيرَا۟ ⑮
چه دَ شیشو به وی هغوی له به بیا بیا راوړی۔

قَوَارِيرَا۟ مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ⑯
دا په ښکاره دَ شیشے په نظر را تلونکی به په اصل کښے دَ سپینو زرو وی۔ چه هغه به دَ خدائے فرښتے په خپله پوره کاریګرئ جوړوی (تردے چه هغه به لکه دَ شیشے پره کیګی)۔

وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ⑰
او په مومنانو به هغه جنتونو کښے په داسے کلاسونو کښے اوبه څکولے شی چه پکښے به سونډ ګډ شوے وی۔

عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا ⑱
(او په هغه جنت) کښے به دَ سلسبیل نوے هُم یوه چینه وی (چه به ترے نه مومنان څکی)۔

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ⑲
هر کله به چه ته هغه خادمان اووینے نو دَ هغوی په نسبت به ګمان کوے چه هغوی خورے ورے ملغلرے دی۔

وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ⑳
او هر کله به چه ته هغوی او وینے دَ هغوی په ځائے به یو دیر لوئے بادشاهت په نظر راځی۔

عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ ۖ وَحُلُّوٓا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا ㉑
دَ هغوی دَ پاسه به دَ ریښمو باریکے شنے جامے وی او دا شان ذر لیفت او هغوی ته به دَ سپینو زرو کړے اچولے شی او دَ هغوی رب به په هغوی پاکوونکے شراب څکوی۔

إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَكَانَ سَعْيُكُم مَّشْكُورًا ㉒
(او ورته به او وئیلے شی چه یه جنتیانو) دا ستاسو دَ پاره بدله ده او ستاسو کوشش ته دَ قدر په نظر کتلی شوی دی۔

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ تَنزِيلًا ㉓
مونږ په تا قرآن برخے برخے نازل کړے دے۔

فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ آثِمًا أَوْ كَفُورًا ㉔
بیا نو دَ خپل رب په حکم قائم اوسه او په انسانانو کښے ګناه ګار او دَ ناشکره خبره مه منه۔

وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ㉕
او سحر ماښام دَ خپل رب ذکر کوه۔

وَمِنَ الَّيۡلِ فَاسۡجُدۡ لَهٗ وَسَبِّحۡهُ لَيۡلًا طَوِيۡلًا ۲۶
او د شپې هُم هغهٔ ته سجده کوه او د شپې تر ډیره وخته د هغهٔ ثنا وايه۔

اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّوۡنَ الۡعَاجِلَةَ وَيَذَرُوۡنَ وَرَآءَهُمۡ يَوۡمًا ثَقِيۡلًا ۲۷
دا خلق د دنیا انعام خوښوی او ځان نه روستو يوه ډیره سخته ورځ پریږدی۔

نَحۡنُ خَلَقۡنٰهُمۡ وَشَدَدۡنَآ اَسۡرَهُمۡ ۚ وَاِذَا شِئۡنَا بَدَّلۡنَآ اَمۡثَالَهُمۡ تَبۡدِيۡلًا ۲۸
هُم مونږ هغوی پیدا کړی دی او د هغوی جوړونه مو مضبوط جوړکړی دی او هرکله به چه مونږ اوغواړو د هغوی غوندے نور مخلوق به پیدا کړو (او) د هغوی په ځائے به ئے اودروُو۔

اِنَّ هٰذِهٖ تَذۡكِرَةٌ ۚ فَمَنۡ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيۡلًا ۲۹
دا یو نصیحت دے بیا نو چه څوک غواړی د خپل رب په طرف رسوُ نکے لار دِ اونیسی۔

وَمَا تَشَآءُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ۳۰
او تاسو د خدائے د رضا نه سوا دا سے غوښتنے نشئ کولے چه الله ډیر علم لرونکے (او) د ډیر حکمت خاوند دے۔

يُّدۡخِلُ مَنۡ يَّشَآءُ فِىۡ رَحۡمَتِهٖ ؕ وَالظّٰلِمِيۡنَ اَعَدَّ لَهُمۡ عَذَابًا اَلِيۡمًا ۳۱
هغه چه څوک خوښوی په خپل رحمت کښے ئے داخلوی او د ظالمانو د پاره خو هغه دردناک عذاب ساتلے دے۔ ع




سورة مرسلات۔ دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے يو پنځوس ۵۱ آیتونه او د ۲ وه رکوع دی۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ۱
(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالۡمُرۡسَلٰتِ عُرۡفًا ۙ ۲
زهٔ د شهادت په طور هغه هستئ وړاندے کوم چه رومبئ خو په مزه روانے کړے شی۔

فَالۡعٰصِفٰتِ عَصۡفًا ۙ ۳
بیا هغه په تیزئ روانے شی۔

وَّالنّٰشِرٰتِ نَشۡرًا ۙ ۴
او زهٔ په دُنیا کښے خوره وُنکی هستئ هُم د شهادت په طور پیش کوم۔

فَالْفٰرِقٰتِ فَرْقًا ﴿۵﴾
او په حق او باطل کښې فرق کوونکې هستئ هُم ـ

فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ﴿۶﴾
او د خدائے کلام اورونکی هستئ هُم ـ

عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ﴿۷﴾
په دے غرض هُم چه په خلقو اتمامِ حجت اوشی او په دے غرض هُم چه خلق هوښیار کړے شی ـ

اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ ﴿۸﴾
تاسو سره چه د کومے خبرے وعده کیږی، هغه به پوره کیږی ـ

فَاِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ ﴿۹﴾
او هرکله به چه ستوری تت شی ـ

وَاِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴿۱۰﴾
او آسمان کښې به چاؤد پیدا شی ـ

وَاِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴿۱۱﴾
او هرکله چه به غرونه والوزولے شی ـ

وَاِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتْ ﴿۱۲﴾
او هرکله چه به ټول رسولان په خپل مقرره وخت راوستلے شی ـ

لِاَيِّ يَوْمٍ اُجِّلَتْ ﴿۱۳﴾
(او خلقو ته به اووئیلے شی) دا خبره کومے ورځے د پاره ایخودے شوے ده؟

لِيَوْمِ الْفَصْلِ ﴿۱۴﴾
(یوه) فیصله کوونکے ورځے د پاره ـ

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ﴿۱۵﴾
او تا ته څهٔ معلومه ده چه فیصله کوونکے ورځ څهٔ ده؟

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۶﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی راځی (دے کښې هډو شک نشته) ـ

اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۷﴾
آیا مونږ ړومبنی قامونه هلاک نهٔ کړل؟

ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۸﴾
بیا آیا مونږ به د هغوی نه روستو راتلونکی قامونه هغوی پسے نهٔ بوزو (آخر دا مختلف سلوک به ولے وی) ـ

كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۹﴾
مونږ مجرمانو سره هُم داسے کار کوو ـ

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۰﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی راځی (دے کښې هډو شک نشته) ـ

اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ﴿۲۱﴾
او مونږ به هغوی ته وائیو چه آیا مونږ تاسو د یو ذلیل قسم اوبو (یعنی نطفے) نه پیدا نهٔ کړئ ـ

فَجَعَلْنٰهُ فِیْ قَرَارٍ مَّكِیْنٍ ﴿۲۱﴾
اوبیا هغه یو داسے ځائے کښے (یعنې دَ مور په رِحم کښے) کیخوده دا دَ هغے په صحی ډول په حفاظت کښے دَ ساتلو قابله وه۔

إِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿۲۲﴾
او چه څومره موده دَ دے نطفه په رحم کښے ساتل مناسب وُو هغه هومره موده مونږه دا په رحم کښے کیخوده۔

فَقَدَرْنَا فَنِعْمَ الْقٰدِرُوْنَ ﴿۲۳﴾
او مونږ پوره اندازه مقرر کړه او مونږ څومره ښه اندازه مقرر کوُونکی یو۔

وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۲۴﴾
هغه ورځ به په انکار کوُونکو تباهی رازی (دے کښے هیڅ شک نشته)۔

اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ كِفَاتًا ﴿۲۵﴾
اَحْیَآءً وَّاَمْوَاتًا ﴿۲۶﴾ وَّجَعَلْنَا فِیْهَا رَوَاسِیَ شٰمِخٰتٍ
وَّاَسْقَیْنٰكُمْ مَّآءً فُرَاتًا ﴿۲۷﴾
آیا مونږ زمکه ژوندو او مړو له راغونډوونکی نۀ ده جوړه کړے او مونږ په دے کښے اوچت غرونه جوړ کړی دی۔ دَ دے په نتیجه کښے په تاسو خوږے اوبۀ څکولے دی۔

وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۲۸﴾
هغه ورځ به په انکار کوُونکو تباهی رازی (دے کښے هیڅ شک نشته)۔

اِنْطَلِقُوْٓا اِلٰى مَا كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۹﴾
مونږ به هغوی ته وایو چه) دَ کوم څیز تاسو انکار کولو دَ هغے په طرف زئ۔

اِنْطَلِقُوْٓا اِلٰى ظِلٍّ ذِیْ ثَلٰثِ شُعَبٍ ﴿۳۰﴾
(یعنې دَ هغے سیورئ په طرف چه دَ هغے درے ارخه دی۔

لَا ظَلِیْلٍ وَّلَا یُغْنِیْ مِنَ اللَّهَبِ ﴿۳۱﴾
نۀ هغه سیورے ورکوی او نۀ دَ تاوُ نه محفوظ ساتی۔

اِنَّهَا تَرْمِیْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ﴿۳۲﴾
بلکه هغه دومره اوچتے شغلے اولی چه دَ قلعے هومره دی۔

كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ﴿۳۳﴾
دومره اوچتے لکه چه هغه دَ لوئے جهازونو دَ ترلو زیړے رسئ معلومیګی۔

وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۳۴﴾
هغه ورځ به په انکار کوُونکو تباهی رازی (دے کښے هیڅ شک نشته)۔

هٰذَا یَوْمُ لَا یَنْطِقُوْنَ ﴿۳۵﴾
دا به هغه ورځ وی (کومه ورځ به چه مجرمان په خپله رضا) خبرے کولے نشی۔

وَلَا یُؤْذَنُ لَهُمْ فَیَعْتَذِرُوْنَ ﴿۳۶﴾
او هغوی ته به دَ خدائے دَ طرف نه دَ دَلیلو اجازه نشی

ورکیدے چه هغوی ته عُذر اوکړے شی۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۳۸﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی رازی رشے کښے هډو شک نشته )۔

هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۚ جَمَعْنٰكُمْ وَالْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۹﴾
دا به د فیصلے ورځ وی چه پکښے به مونږ تاسو نه هُم او رومبنی قامونه هُم جمع کوُو۔

فَاِنْ كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيْدُوْنِ ﴿۴۰﴾
بیا که تاسو سره څه تدبیر شته نو هغه تدبیر هُما خلاف پکار راولئ۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۴۱﴾ ع
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی رازی رشے کښے هډو شک نشته )۔

اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ظِلٰلٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۴۲﴾
هغه ورځ به په تحقیق سره نیکان سیورو او د چینو په ځالونو کښے اوسی۔

وَّفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿۴۳﴾
او د ښیلے خوښے میوُو کښے (به رالګیا) وی (چه د هغوی د خوښے سره سم به هغوی ته حاصلیګی )۔

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۴۴﴾
او هغوی ته به او ویلے شی چه خوندورے میوے خورئ او ښے اوبه اوڅکئ۔ دا به ستاسو د عملو نو جزا وی۔

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۴۵﴾
مونږ محسنانو ته داشان بدله ورکوُو۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۴۶﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی رازی رشے کښے هډو شک نشته )۔

كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا اِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ ﴿۴۷﴾
(مونږ هغوی ته وایو چه) خورئ او د دے دنیا نه لږه غوندے فائده حاصله کړئ ـ تاسو مجرمان یئ۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۴۸﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی رازی ردے کښے هډو شک نشته )۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ ﴿۴۹﴾
په هغه خلقو چا ته چه کله هُم او ویلے شی چه په توحید قائم شئ نو هغوی به توحید نه قائمیګی (بلکه د شرک په طرف واپس کیګی )۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۵۰﴾
هغه ورځ به په انکارکوونکو تباهی رازی ردے کښے هډو شک نشته )۔

فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾ ع
بیا د هغوی اوخوائی چه د دے (قرآن) نه پس به په کوم کتاب ایمان راوړی۔




سورۃ نبا - دا سورۃ مکی دے او بسم الله سره دَ دے یو څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ② دا (خلق) دَ څه (څیز) پخقله یو بل نه (په حیرانتیا) تپوس کوی۔

عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ ③ آیا دَ (لوړتنی یوم الفصل) عظیم (الشان) خبر پخقله۔

الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ ④ چه دَ څه پخقله دا خلق (دَ قرآن دَ بنودلی حقیقت سره) اختلاف لری۔

كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ⑤ بنهٔ یاد لرئ چه اصل حقیقت دَ هغوی دَ عقیده وخلاف دے او لوهٔ ورځ به هغوئ هغه معلوم کړی۔

ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ⑥ بیا مونږ وائو چه خبره دَ هغوئ دَ عقیده وخلاف ده او دا خلق به خامخا په دے پیش خبرئ چه دے سورۃ کښے بیان شوے ده پوهه شی۔

اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا ⑦ (سوچ خو اوکړئ چه) آیا مونږه زمکه فرش نهٔ دے جوړ کړے۔

وَّالْجِبَالَ اَوْتَادًا ⑧ او غرونه مو دَ میخونو په طور نهٔ دی تک وهلی۔

وَّخَلَقْنٰكُمْ اَزْوَاجًا ⑨ او (دا هُم یاد لرئ چه) مونږ تاسو (نول خلق) جوړه (جوړه) پیدا کړی یئ۔

وَّجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ⑩ او مونږ ستاسو خوب دَ پاره دَ آرام جوړ کړے دے۔

وَّجَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا ⑪ او مونږه شپه پرده ساتونکے جوړه کړے ده۔

وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ⑫ او مونږ ورځ دَ ژوند (دَ اظهار) دَ پاره جوړه کړے ده۔

وَّبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ﴿١٢﴾
او مونږ په تاسو اووه (راوچت او) مضبوط (آسمانونه) جوړ کړي دي۔

وَّجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا ﴿١٣﴾
او مونږ یو ځلنده ونکے نمر (هُم) جوړ کړے دے۔

وَّاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ﴿١٤﴾
او مونږ د ګورو وریځونه ډیرے بهیدونکے اوبه (هُم) وروے دي۔

لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا وَّنَبَاتًا ﴿١٥﴾
د پاره د دے چه دے سره مونږ غله او سبزۍ پیدا کړو۔

وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا ﴿١٦﴾
او ګڼ باغونه (هم زرغون کړي دي)۔

اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيْقَاتًا ﴿١٧﴾
په تحقیق سره دا د فیصلے ورځ په یو مقرره وخت (راتلونکے) ده۔

يَّوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ اَفْوَاجًا ﴿١٨﴾
کله به چه بګل کښے پوک وهلے شي۔ بیا به تاسو ډلے ډلے (مونږ له) راځئ۔

وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا ﴿١٩﴾
او آسمان به پرانستے شي تر دے چه هغه به ورونه (ورونه) شي۔

وَّسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ﴿٢٠﴾
او غرونه به (رخپل ځائے نه) روان کړے شي تر دے چه هغه به سراب (رغوندے) شي۔

اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴿٢١﴾
په تحقیق سره جهنم (رهغو خلقو) نه سو کښے دے۔

لِّلطّٰغِيْنَ مَاٰبًا ﴿٢٢﴾
(او) هغه د سرکشانو د پاره د حصاریدو ځائے دے۔

لّٰبِثِيْنَ فِيْهَآ اَحْقَابًا ﴿٢٣﴾
هغوی به هغے کښے په کلونو اوسی۔

لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا بَرْدًا وَّلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾
(حلته به د هغو خلقو دا حال وی) چه نه خو به هغوی دے کښے څه نسیم یخنی (محسوسوی) او نه به د څکلو څه څیز هغوی نه حاصلیږی (چه تنده ئے ماته کړے شی)۔

اِلَّا حَمِيْمًا وَّغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾
هن الله به هغوی له لیشبیدلے اوبه (د هلکه نه تیریدونکے) یخے اوبه ورکوی۔

جَزَآءً وِّفَاقًا ﴿٢٦﴾
(دا شان به هغوی نه د هغو د عملونو) سره سمه بدله (ورکیدے شی)۔

اِنَّهُمْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ حِسَابًا ﴿۲۷﴾
په تحقیق سره هغوئ (دَ ځه قسم) محاسبے ویره (خپلو زړونو کښے) نهٔ لرله۔

وَّكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كِذَّابًا ﴿۲۸﴾
او ځمونږ دَ نښانانو انکار به ئے په سختئ کولو۔

وَكُلَّ شَيْءٍ اَحْصَيْنٰهُ كِتٰبًا ﴿۲۹﴾
او مونږ (خو) هر لو څیز پښهٔ شمیرلے دے۔

فَذُوْقُوْا فَلَنْ نَّزِيْدَكُمْ اِلَّا عَذَابًا ﴿۳۰﴾
بیانو (دَ خپل خپل عمل سره سم) عذاب او څکئ او مونږ تاسوله (پرله پسے) عذاب درکوو۔

اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا ﴿۳۱﴾
په تحقیق سره متقیانو دَپاره کامیابی ده۔

حَدَآئِقَ وَاَعْنَابًا ﴿۳۲﴾
(یعنی) باغونه او انګوران۔

وَّكَوَاعِبَ اَتْرَابًا ﴿۳۳﴾
او همځولے ځوانانے ښځے۔

وَّكَاْسًا دِهَاقًا ﴿۳۴﴾
او ترسُوکو ډکے پیالئ۔

لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا كِذّٰبًا ﴿۳۵﴾
نهٔ خو به هغوئ هغو (یعنی جنتُونو) کښے فضول خبرے اوری او نهٔ به (دَ هغوئ دَ خبرونه) کله څوک مخ اړوی۔

جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ﴿۳۶﴾
هغوی ته به ستا دَرب دَ طرف نه دا سے بدله ورکیدے شی چه مناسب دَحال انعام به وی۔

رَّبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا ﴿۳۷﴾
(ستا دَ هغه رب دَ طرف نه چه) دَ آسمانونو او زمکے او دے دواړو ترمنځه چه څهٔ وی دَ هغو ټولو رب دے (او) بے کچه مهربانه دے. هغوی به دَ هغهٔ وړاندے (بے اجازے) دَ خبرے کولو طاقت نهٔ لری۔

يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ﴿۳۸﴾
(دا به هغه ورځ وی) کومه ورځ به چه روحِ کامل او فرښتے په قطار ولاړے وی (او) هغوئ به خبره نشی کولے سوا دَ هغهٔ چه چا له رحمٰن (خدائے) اجازه ورکړی وی او (دا سے سړے بس په مناسب وخت او) صحی خبره کوی۔

ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ
دا ورځ راتلونکے ده بیا (تاسو کښے) چه څوک

مَاٰبًا۝۳۹ غواړی خپل رب سره دِ رخپل ) ځائے جوړ کړی۔

اِنَّآ اَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِيْبًا ۚ يَّوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ وَيَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا۝۴۰ ع

مونږ تاسو نږدے رزمانه کښے راتلونکی ) عذاب نه ښه هوښیار کړی یئ۔ کومه ورځ به چه انسان هغه څیز اووینی چه دَ هغهٔ لاسولو وړاندے لیږلی دی او کافر به رهغه ورځ ) وائی ، کاش ! زهٔ خاورے وے۔




سورهٔ نازعات ! دا سورهٔ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اوه څلویښت ۴۷ آیتونه او دوه ۲ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۝۱ رشروع کوم ) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه راو ) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًا۝۲ زهٔ هغه وجودونه دَ شهادت په طور وړاندے کوم چه ښهٔ به غور دَ دین علوم راکاږی۔

وَّالنّٰشِطٰتِ نَشْطًا۝۳ او هغه روجودونه ) چه په ښهٔ شان غوټه نړی ریعنی الله سره تعلق مضبوط ساتی )۔

وَّالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا۝۴ او هغه روجودونه ) چه لرے لرے اوزی ریعنی دَ صحابه تهولی چه دَ اسلام دَ تبلیغ دَ پاره ملک په ملک گرزی )۔

فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا۝۵ بیا رمقابله کښے یو بل نه ) ښهٔ وړاندے اوزی۔

فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا۝۶ بیا ردَ دُنیا ) دَ کار ر روانولو ) په تدبیرولو کښے اخته شی۔

يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ۝۷ ردَ دے صفتونو لرونکی قام دَ ظهور به هغه ورځ وی ) کله به چه دَ جنګ رتیاری ) کوونکے ر قام ) دَ جنګ تیاری کوی۔

تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ۝٧
دَ دے (جنګ دَ تيارئ) نه پس به (دا قسم) روستو راتلونکے (زلزله) وخت رازی۔

قُلُوْبٌ يَّوْمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ ۝٨
هغه وخت به دَ ځنو (خلقو) زړونه درزيږي۔

اَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ۝٩
اودَ هغوی نظرونه به دَ ويرے نه ټيټ وی۔ وقف لازم

يَقُوْلُوْنَ ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِى الْحَافِرَةِ ۝١٠
(او) هغوی به وائی آيا مونږ به په خپله لاره په روستو پستنه کولے شو۔

ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ۝١١
آيا (دا بے حال کښے هُم چه) هر کله مونږ وراستهٔ هډوکی شو (دا به وی)؟

قَالُوْا تِلْكَ اِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ۝١٢
هغوی وائی (کچرے دا سے اوشول) نو دا به ډيره دَ نقصان واپسی وی۔ وقف لازم

فَاِنَّمَا هِىَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ ۝١٣
(او دا هُم يادلرئ چه) دا دَ جنګ خبر خو هسے زتل وُو۔

فَاِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ۝١٤
بيانو (دَ دے زټلو نه پس) هغوی به يو دم بيا (دَ جنګ) ميدان ته راشی۔

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ۝١٥
آيا تاته دَ موسٰیؑ خبره (هُم) رسيدلے ده؟ وقف لازم

اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۝١٦
هر کله چه هغهٔ ته دَ هغهٔ رب په مقدس وادئ کښے يعنی طوٰی کښے آواز کړے وه۔

اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ۝١٧
(او فرمائيلی ئے وُو چه) دَ فرعون په طرف ځه ولے چه هغه باغی کيږی۔

فَقُلْ هَلْ لَّكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى ۝١٨
او (هغهٔ ته) او وايه چه (ستا دَ دے خبرے هُم څهٔ) خواهش شته چه ته پاک شے۔

وَاَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى ۝١٩
او (دَ دے په نتيجه کښے) زهٔ تاته ستا دَ رب په طرف لاره اوښائم او ته (دهغهٔ نه) اوويريږے۔

فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى ۝٢٠
بيانو (موسٰیؑ لاړو او هغوی) هغهٔ ته يو لوئے نښان اوښودلو۔

فَكَذَّبَ وَعَصٰى ۝٢١
چه په دے هغهٔ (دَ موسٰیؑ) تکذيب اوکړو او نافرمانی اوکړه۔

او کړه -

ثُمَّ اَدْبَرَ یَسْعٰی ﴿۲۲﴾

دے سره هغهٔ دَ فساد تدبیرونو کولو سره حقوته شاکړه -

فَحَشَرَ فَنَادٰی ﴿۲۳﴾

بیا نو (هغهٔ خپل درباریان) یو ځائے کړل او رملک کښے ئے) ډنډوره (هُم) او وهله -

فَقَالَ اَنَا رَبُّکُمُ الْاَعْلٰی ﴿۲۴﴾

او (خلقوته ئے) او وئیل چه زهٔ ستاسو دَټولو نه لوئے ربّ یم -

فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَکَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰی ﴿۲۵﴾

په دے الله هغه دَ آخرت او دَ دُنیا په عذاب کښے آخته کولو له اونیولو -

اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ یَّخْشٰی ﴿۲۶﴾ ع ۱ / ۴

په تحقیق سره دے (واقعه) کښے هغه دَپاره چه خدائے نه ویریګی ډیر عبرت دے -

ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ بَنٰهَا ﴿۲۷﴾

(سوچ خو اوکړئ) آیا ستاسو (په دوئم ځل) پیدا کول زیات ګران دی یا آسمان (پیدا کول) کوم چه هغهٔ (خدائے) جوړ کړے دے -

رَفَعَ سَمْکَهَا فَسَوّٰىهَا ﴿۲۸﴾

(او) دَ هغے اوچت والئ ئے اوچت کړے دے. بیا هغه بے عیبه جوړ کړے دے -

وَاَغْطَشَ لَیْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا ﴿۲۹﴾

او دَ هغے شپه (خو) ئے تیارهٔ جوړه کړے ده ولے دَ هغے غرمه ئے (پړک) رڼرا کړے ده -

وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِکَ دَحٰىهَا ﴿۳۰﴾

او هغهٔ سره ئے (هُم) په هغهٔ زمانه کښے زمکه هُم غوړولے ده -

اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا ﴿۳۱﴾

بیا (دے نه ئے) دَ هغهٔ اوبهٔ او دَ هغے کیاه او بسکلے ده -

وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا ﴿۳۲﴾

او غرونه هُم هغه دے کښے ښخ کړی دی -

مَتَاعًا لَّکُمْ وَلِاَنْعَامِکُمْ ﴿۳۳﴾

(دا هر څهٔ) ستاسو او ستاسو دَ څارو دَ فائدے دَپاره (هغهٔ کړی دی) -

فَاِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْکُبْرٰی ﴿۳۴﴾

بیا هر کله چه هغه لوئے آفت راشی -

یَوْمَ یَتَذَکَّرُ الْاِنْسَانُ مَا سَعٰی ﴿۳۵﴾

کومه ورځ به چه انسان خپل عمل یادوی -

وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى ۝٣٦
او جهنّم به د هغه د پاره چه دے ته (د عقل په سترګه) ګوری ښکاره کړے شی۔

فَاَمَّا مَنْ طَغٰى ۝٣٧
بیا چا چه سرکشی اوکړه۔

وَاٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۝٣٨
او د دنیا ژوند ئے (د آخرت نه) غوره اوګڼلو۔

فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَاْوٰى ۝٣٩
په تحقیق سره جهنّم د هغهٔ ځائے دے۔

وَاَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى ۝٤٠
او چا چه د خپل رب د شان نه ویره اوکړه او (خپل) نفس ئے د بدلوتی خواهشاتو نه منع کړو۔

فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَاْوٰى ۝٤١
په تحقیق سره جنت د هغهٔ ځائے دے۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ۝٤٢
هغوئ تا نه د هغه وخت په حقله تپوس کوی (چه) هغه به کله وی؟

فِيْمَ اَنْتَ مِنْ ذِكْرٰىهَا ۝٤٣
ستا د هغے (د راتلو) ذکر سره څهٔ تعلّق؟

اِلٰى رَبِّكَ مُنْتَهٰىهَا ۝٤٤
د هغے (د وخت) د انتها (تعین) خو ستا رب سره تعلق لری

اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرُ مَنْ يَّخْشٰىهَا ۝٤٥
ته خو بس هغه چه هغے (آفت) نه ویریګی هوښیاروونکے ئے۔

كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوْٓا اِلَّا عَشِيَّةً اَوْ ضُحٰىهَا ۝٤٦ ع ٢
هغوئ به چه کومه ورځ هغه اووینی (د هغوئ حال به داسے وی چه) لکه چه هغوئ بس یو ماښام یا د هغے سحر (د دنیا کښے) پاتے دی۔




سورة عبس ـ دا سورة مکّی دے او بسم الله سره د دے درے څلویښت [٤٣] آیتونه او یو [١] رکوع ده

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١
(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

عَبَسَ وَتَوَلّٰىٓ ۝٢
(رخه) تندئ ئے ګنجے کړو او مخ ئے وا ړولو؟

اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰى ﴿۲﴾
(لس) په دے خبره چه هغهٔ له (ړوند) نابينا (چه
واقف خلق ئے پيژنی) راغے۔

وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّهٗ يَزَّكّٰىٓ ﴿۳﴾
او راسے رسوله!) کومے خبرے ته (په دے خبرے)
خبروے شوے چه هغه به خامخا پاک شی۔

اَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرٰى ﴿۴﴾
يا (دَعبرت موجبات) چه يادوی نو (دا) يادول به
هغهٔ له سُود منه ورکوی۔

اَمَّا مَنِ اسْتَغْنٰى ﴿۵﴾
آيا دا کيدے شی چه کوم سړے (دَحقونه) بے پروا هی
اوکړی۔

فَاَنْتَ لَهٗ تَصَدّٰى ﴿۶﴾
(دَهغهٔ په طرف) خو ته ښهٔ پام اوکړے - (حال
دا چه دا دَ ټول قرآن خلاف دے)۔

وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى ﴿۷﴾
او ته دا سے کوے هُم څنګه ئے هرکله چه دَهغهٔ
دَهدايت دَ نهٔ موندلو په تاځهٔ ذمه واری نشته۔

وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ يَسْعٰى ﴿۸﴾
څوک چه ستا په طرف په منډه راشی۔

وَهُوَ يَخْشٰى ﴿۹﴾
او هغه رو رسره دَخدا ئے نه هُم) ويرېږی۔

فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿۱۰﴾
نو دَ اعتراض کوونکی دَ قول سره سم) ته هغه ته پام
نهٔ کوے۔

كَلَّآ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿۱۱﴾
(داسے) هيڅکله نهٔ ده (دا ټول الزامات غلط دی)
په تحقيق سره دا (قرآن) خولو نصيحت دے (دے
سره نوره نهٔ ده راکوزه شوے چه خلق مسلمانان
جو ړولو ته مجبور شے۔

فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ﴿۱۲﴾
بيا چه څوک غواړی هغه دِ خپل ذهن کښے کينوی۔

فِىْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿۱۳﴾
دا قرآن (داسے) صحيفو کښے دے (چه) عزت لرونکی،

مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴿۱۴﴾
دَ اوچت شان او پاک دی۔

بِاَيْدِىْ سَفَرَةٍ ﴿۱۵﴾
هغه صحيفے دَ ليکونکو او لوے لوے سفر کوونکو په
لاسونو کښے (دی)۔

كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾

(دَدا سے خلقو په لاسُونو کښے) چه معزز دی او دَاعلیٰ درجے نیکان دی۔

قُتِلَ الْإِنْسَانُ مَآ أَكْفَرَهٗ ﴿١٧﴾

هلاک دِ وی انسان، هغه څومره نا شکره دے۔

مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ ﴿١٨﴾

(هغه خو دِغور اوکړی چه) خدائے هغهٔ څهٔ څیز نه پیدا کړے دے۔

مِنْ نُّطْفَةٍ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ﴿١٩﴾

(هغهٔ ته به معلومه وی چه په تحقیق سره) یو نطفے نه (پیدا شوے دے رومبئ خو) هغه ئے پیدا کړو بیا هغهٔ دَ پاره ئے (دَ ودے لوه) اندازه مقرر کړه۔

ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهٗ ﴿٢٠﴾

بیا (دَ هغهٔ) لاره ئے آسانه جوړه کړه (او هغه ئے) ښه آسانه جوړه کړه۔

ثُمَّ أَمَاتَهٗ فَأَقْبَرَهٗ ﴿٢١﴾

بیا (دَ طبعی عمر نه پس) هغه ئے مړ کړو بیا هغه ئے (موعود) قبر کښے کیخودو۔

ثُمَّ إِذَا شَآءَ أَنْشَرَهٗ ﴿٢٢﴾

بیا هر کله چه اوغواړی هغه به په دوئم ځل اوچتوی۔

كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ أَمَرَهٗ ﴿٢٣﴾

(دا سے) هیڅکله نا (چه څه ناسوګنړئ، وبئ نهٔ چه هغهٔ (یعنی انسان ته) کوم حُکم ورکړے وه، تراوسه هغهٔ هغه پوره نکړو۔

فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ إِلٰى طَعَامِهٖٓ ﴿٢٤﴾

بیا پکار دی چه اِنسان دَخپل خوراک په طرف اوګوری۔

أَنَّا صَبَبْنَا الْمَآءَ صَبًّا ﴿٢٥﴾

(او اودِګوری چه) مونږ دَ ورېځونه ډیرے اوبهٔ وروله دی۔

ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا ﴿٢٦﴾

بیا زمکه مونږهٔ شلولے ده۔

فَأَنْبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ﴿٢٧﴾

بیا نو دَ دے شلولو په نتیجه کښے مونږ دے کښے قسِم قسِم دانے تهوکولے دی۔

وَّعِنَبًا وَّقَضْبًا ﴿٢٨﴾

دا ښان انګوران او سبزئ۔

وَّزَيْتُونًا وَّنَخْلًا ﴿٢٩﴾

او زیتون او کجهورے۔

| | |
|---|---|
| وَّحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴿۳۰﴾ | او دے سره گڼړ باغونه هُم۔ |
| وَّ فَاكِهَةً وَّاَبًّا ﴿۳۱﴾ | او میوے هُم او اوچ وابنهٔ (او ونے غنے هُم) |
| مَّتَاعًا لَّكُمْ وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿۳۲﴾ | (دا تول) ستاسو دَ ځناورو دَ فائدے دَ پاره (پیدا کړے شوی دی)۔ |
| فَاِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ ﴿۳۳﴾ | بیا (دا هُم سوچ اوکړئ چه) هر کله غوږونه شلونکے (مصیبت) راشی۔ |
| يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ ﴿۳۴﴾ | او کومه ورځ به چه انسان خپل رور نه (لرے) تختی۔ |
| وَاُمِّهٖ وَاَبِيْهِ ﴿۳۵﴾ | او (دا شان) خپلے مور او خپل پلار نه۔ |
| وَصَاحِبَتِهٖ وَبَنِيْهِ ﴿۳۶﴾ | او دَ خپلے ښځے او خپلو ځامنو نه (هُم)۔ |
| لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَاْنٌ يُّغْنِيْهِ ﴿۳۷﴾ | هغه ورځ به دَ هر یو سړی حال داسے وی چه هغه به هغه خپل طرف ته انخلولے ساتی۔ |
| وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿۳۸﴾ | دَ ځنو خلقو مخونه به هغه ورځ روښانه وی۔ |
| ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿۳۹﴾ | په خندا خوشحالی۔ |
| وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿۴۰﴾ | او دَ ځنو (خلقو) مخونه به هغهٔ ورځ داسے وی چه داسے به معلومیګی لکه چه په هغوی دُوړه پرېوتے ده۔ |
| تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿۴۱﴾ | او (دَ دے حال سره سره) دَ هغوی په مخونو به یو (داسے) تور والی خور وی (چه به داسے وخت په مخ خوریګی)۔ |
| اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ ﴿۴۲﴾ | ع هُم دا خلق به کافران او بدکار ګرزولے شی۔ |

## سُوْرَةُ التَّكْوِيْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ ثَلٰثُوْنَ اٰيَةً

سورۃ تکویر۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے دیرش آیتونه دی ۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① — شروکوم په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ② — هرکله چه دَ نمر (نور) را اونغاړلے شی۔

وَاِذَا النُّجُوْمُ انْكَدَرَتْ ③ — او هرکله چه ستوری تت شی۔

وَاِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ ④ — او هرکله چه غرونه روان کړے شی۔

وَاِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ⑤ — او هرکله چه دَ لسو میاشتو اوښے خوشے پریخودے شی۔

وَاِذَا الْوُحُوْشُ حُشِرَتْ ⑥ — او هرکله چه وحشیان یو ځائے کړے شی۔

وَاِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ⑦ — او هرکله چه دَ دریابونو (اوبهٔ) او بسلے شی او نور دریابونو یا نهرونو سره) یو ځائے کړے شی۔

وَاِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ ⑧ — او هرکله چه (مختلف) نفوس را یو ځائے کړے شی۔

وَاِذَا الْمَوْءٗدَةُ سُئِلَتْ ⑨ — او هرکله چه دَ ژوندئ ښخه وونکے (جینئ) پخقله تپوس کیګی۔

بِاَيِّ ذَنْۢبٍ قُتِلَتْ ⑩ — (چه آخر) په کومه ګناه هغه وژلے شوے وه۔

وَاِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ⑪ — او هرکله چه کتابونه خواره کړے شی۔

وَاِذَا السَّمَآءُ كُشِطَتْ ⑫ — او هرکله چه دَ آسمان څرمن کوزه کړے شی۔

وَاِذَا الْجَحِيْمُ سُعِّرَتْ ⑬ — او هرکله چه جهنّم غرغنده کړے شی۔

وَاِذَا الْجَنَّةُ اُزْلِفَتْ ⑭ — او هرکله چه جنت نزدے کړے شی۔

عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّآ اَحْضَرَتْ ⑮ — (هغه ورځ به) هر نوس به هغه چه څه هغهٔ حاضر کړی وی، خبر شی۔

فَلَآ اُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ⑯ — بیا داسے نهٔ ده (چه تاسو خیال کوئ) زهٔ دَ شهادت په طور وړاندے کوم، په روانه کښے روستو کیدونکی۔

| | |
|---|---|
| الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ﴿١٦﴾ | رچه ورسره) د لوزے په سیده کښے تلونکی (هُم دی او بیا) کورونو کښے ناست پاتے کیدونکی هُم. |
| وَالَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿١٧﴾ | او شپه ردَ شهاوت په طور وړاندے کوم) هرکله به چه هغه په ختمیدو شی. |
| وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴿١٨﴾ | او سحر هرکله چه هغه ساه اخستل شروکړی. |
| إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾ | په تحقیق سره هغه (قرآن) د لو بزرګ رسُول کلام دے. |
| ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ | (کوم رسُول چه) قوت لرونکے او د عرش د مالک په نزد لویه درجه لرونکے دے. |
| مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ ﴿٢١﴾ | (او) مطاع (هُم) دے (او) ورسره امین هُم دے. |
| وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴿٢٢﴾ | او ستاسو ملګرے هیڅکله مجنون (لیونے) نهٔ دے. |
| وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ﴿٢٣﴾ | او هغهٔ هغه (غیب) په تحقیق سره په ښکاره افق لیدلے دے. |
| وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ ﴿٢٤﴾ | او هغه د غیب د خبرو ښودلو کښے هیڅکله بخیل نهٔ دے. |
| وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ﴿٢٥﴾ | او نهٔ هغه (یعنی په دهٔ نازلیدونکے کلام) د ټلی شوی شیطان رو ټلے) خبره ده. |
| فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ﴿٢٦﴾ | بیا (سره د دے) تاسو کوم ځائے ته زئ. |
| إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ ﴿٢٧﴾ | دا خو لس د ټولو جهانونو د پاره یو نصیحت دے. |
| لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَسْتَقِيمَ ﴿٢٨﴾ | (خاص) تاسو کښے د هغهٔ د پاره چه په سمه لاره تلل غواړی. |
| وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٩﴾ | ع او تاسو دا غوښتلے نشئ وے د خدا ائے د مشیت مطابقت کښے، چه د ټولو جهانونو رب دے. |

سُوْرَةُ الْاِنْفِطَارِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ عِشْرُوْنَ اٰيَةً

سورة انفطار - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دے شل ۲۰ آیتونه دی۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔ |
| اِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ ② | هرکله به چه آسمان اوشلیگی۔ |
| وَاِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ ③ | او هرکله به چه ستوری اورژیگی۔ |
| وَاِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ ④ | او هرکله به چه سمندرونه په چاودو یوځائے کړے شی۔ |
| وَاِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ ⑤ | او هرکله به چه قبرونه په راکنستلو اخوا دیخوا تس نس کړے شی۔ |
| عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَاَخَّرَتْ ⑥ | بیا به هغه دیر رخطا کار) نوس رچه د چا دلته ذکر دے) خبر شی چه څه هغهٔ وړاندے لیږلی دی اوڅهٔ روستوئے پریخودی دی۔ |
| يٰۤاَيُّهَا الْاِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ⑦ | یه انسانه! تهٔ چا د خپل رب پحقله غاوره ر او دهوکه شوے) جوړ کړے ئے۔ |
| الَّذِيْ خَلَقَكَ فَسَوّٰىكَ فَعَدَلَكَ ⑧ | ر د هغه رب پحقله) چا چه تهٔ پیدا کړے بیا تهٔ (یعنی ستا د بنه قوتونه) ئے صحی کړل - بیا تا ته ئے مناسب قوتونه درکړل - |
| فِيْۤ اَيِّ صُوْرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ⑨ | بیا چه کوم شکل هغهٔ خوښ کړو هغے کښے ئے تهٔ واچولے - |
| كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ ⑩ | دا سے هیڅکله نهٔ ده رچه تاسو خیال کوئ) بلکه تاسو خو د جزا سزا نه انکار کوئی۔ |
| وَاِنَّ عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِيْنَ ⑪ | او په تحقیق سره په تاسو رستاسو د خدا ئے د طرف |

نه) نگران مقرر دی۔

كِرَامًا كَاتِبِيْنَ ⑫ رچه) شریفان (او) هره خبره لیکونکی دی۔

يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ ⑬ تا سو چه څهٔ هُم کوئ هغوئ په هغے پوهیگی۔

اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ⑭ په تحقیق سره نیکئ کښے وړاندے وتونکی خلق (تل ترتله) نعمت کښے (اوسی) دی۔

وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ ⑮ او په تحقیق سره بدکاره خلق جهنّم کښے (اوسی) دی۔

يَّصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّيْنِ ⑯ هغوئ به (خاص طور) دے کښے دَ جزا سزا په ورځ دا خلیگی۔

وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَآئِبِيْنَ ⑰ او هغوی به هیڅ شان هُم دَ دے نه نشی پټیدلے۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ⑱ او (دَیه اوریدونکیه!) تا ته چا دَ دے خبرے علم ورکړے دے چه دَ جزا سزا وخت څهٔ دے۔

ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ⑲ بیا رمونږ تا ته وائو چه) تا ته چا علم درکړے دے چه دَ جزا سزا وخت څهٔ دے۔

يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا ۭ وَالْاَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ ⑳ ع (دا وخت به) هغه ورځ (وی) چه هغے کښے هیڅ یو نفس بل نفس ته دَ فائدے رسولو هیڅ اختیار نهٔ لری او ټوله فیصله به هغه ورځ هُم دَ الله په لاس کښے وی۔




سورة مطفّفین۔ دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے اوه دیرش ۳۷ آیتونه دی۔

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ ② په سودا کښے وزن کم ورکوونکو دَ پاره هُم عذاب (عذاب) دے۔

الَّذِيْنَ اِذَا اكْتَالُوْا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُوْنَ ③ (هغوئ دَ پاره) چه په تول سنهٔ پوره اخلی۔

وَإِذَا كَالُوهُمْ أَوْ وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ ۳

اوهرکله چه (څهٔ څیز) نورو له په تول ورکوی نو بیا په وزن کښے کمئ کوی۔

أَلَا يَظُنُّ أُولَٰٓئِكَ أَنَّهُمْ مَّبْعُوثُونَ ۴

آیا دا خلق یقین نهٔ لری چه هغوئ به (ژوندی کړی) اوچتولے شی۔

لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ۵

دَ دے عظیم الشان وخت (دَ فیصلے دَلیدو) دَپاره۔

يَّوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِينَ ۶

کله به چه (ټول) خلق دَ ټولو جهانونو دَ رب (دَ فیصلے دَ اوریدو) دَ پاره اودریگی۔

كَلَّآ إِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٍ ۷

داسے نهٔ ده (چه څنگه دوئ گنړی) دَ بدکارانو (دَ جزا) حکم په تحقیق سره یو داسے کتاب کښے دے۔

وَمَآ أَدْرٰكَ مَا سِجِّينٌ ۸

او تا ته چا ښیلی دی چه سجّین څهٔ دی؟

كِتٰبٌ مَّرْقُومٌ ۹

هغهٔ داسے حکم دے چه (دَ ازل نه) لیکلے شوے دے۔

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۱۰

هغه ورځ به دَ انکار کوونکو دَپاره هُم عذاب (عذاب) وی۔

الَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ ۱۱

دَ هغوی (انکار کوونکو) دَپاره چه دَ جزا سزا دَ ورځے انکار کوی۔

وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖٓ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ۱۲

او دَ هغهٔ انکار نشی کولے ولے هُم هغه چه حد نه وتلے (او) سخت گنا هگار دے۔

إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ أَسٰطِيرُ الْأَوَّلِينَ ۱۳

هرکله چه دَ داسے خلقو وړاندے زمونږ نشانات تلاوت شی نو هغوی وائی چه دا خو دَ پړمینو خلقو نقل کړے خبرے دی۔

كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوبِهِمْ مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۱۴

هیڅکله (داسے) نهٔ ده (څنگه چه هغوئ وائی) بلکه (اصل خبره دا ده چه) دَ هغوی په زړونو هغے څه هغوئ کتلی دی زنګ لګولے دے۔

كَلَّآ إِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ۱۵

بلکه دا او وایه چه هغه ورځ به هغوی دَ خپل رب وړاندے راتلو نه خامخا منع کړے شی۔

ثُمَّ اِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيْمِ ۝۱۷

بیا به هغوی خامخا جهنّم کښے داخلیږی۔

ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ۝۱۸

بیا به دوئ ته اوویلے شی، هُم داخو هغه (انجام) دے چه تاسو به ترے انکار کولو۔

كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ ۝۱۹

ستاسو دَ خیالاتو خلاف دَ ابرارو (نیکانو دَ جزا) حُکم په تحقیق سره علّیین کښے دے۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ ۝۲۰

او تا ته چا ښودلی دی چه علّیون څهٔ دی؟

كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ۝۲۱

هغه لیکلے شوے حُکم دے۔

يَّشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ ۝۲۲

چه هغه به مقربین (خپله خپلو سترګو سره) وینی۔

اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ۝۲۳

په نیکئ کښے وړاندے وتلی خلق به په تحقیق سره دَ نعمت (په مقام) کښے ساتلے شی۔

عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ۝۲۴

په چپرکټونو (ناست به ټول حال) وینی۔

تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيْمِ ۝۲۵

ته (که هغوی اووینے نو) دَ هغوی په مخونو به دَ نعمت تازګی محسوسه کړے۔

يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ ۝۲۶

په هغوی به خالص سر به مهر شراب څکولے شی۔

خِتٰمُهٗ مِسْكٌ ۚ وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنٰفِسُوْنَ ۝۲۷

دَ هغے په آخر کښے به مُشک وی او پکار دی چه غوښتونکے (انسان هُم) دَ داسے څیز غوښتنه اوکړی۔

وَمِزَاجُهٗ مِنْ تَسْنِيْمٍ ۝۲۸

او په دے به دَ تسنیم ګډون دی۔

عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ ۝۲۹

(څموښ مراد دَ هغے) چینے (نه) دے چه ترے به نازولی خلق څکی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا كَانُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَضْحَكُوْنَ ۝۳۰

هغه خلق چه مجرمان شول په تحقیق سره مومنانو پورے به ئے خندا کوله۔

وَاِذَا مَرُّوْا بِهِمْ يَتَغَامَزُوْنَ ۝۳۱

او هر کله به چه هغوی سره تیریدل نو لوبل ته به ئے په سترګو اشارے کولے۔

وَاِذَا انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمُ انْقَلَبُوْا فَكِهِيْنَ ۝۳۲

او هر کله به چه دَ خپل کور خلقو ته واپس کیدل نو (دَ مسلمانانو خلاف) به ئے ډیرے خبرے جوړولے۔

وَاِذَا رَاَوْهُمْ قَالُوْٓا اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّوْنَ ﴿۳۲﴾ | او هر کله به ئے چه هغوی لیدل نو وئیل به ئے چه دا خلق خو د سره بے لارے دی۔
وَمَآ اُرْسِلُوْا عَلَيْهِمْ حٰفِظِيْنَ ﴿۳۳﴾ | او حقه دا ده چه هغوی په هغو د نګران په حیث را لیږلی شوی نهٔ وُو۔
فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ ﴿۳۴﴾ | بیا چه چا ایمان راوړو (هغوی به) د دے (جزا سزا) په ورځ په کافرانو پورے خاندی۔
عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ﴿۳۵﴾ | په چپرکټونو ناست (د هغوی تول حال) به وینی۔
هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۶﴾ ع | (او خپلو کښے به وائی چه) آیا کافرانو ته چه څه به هغوی کول د هغے پوره بدله تر لاسه شوه (یا نا؟)۔




سورة انشقاق - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے شپږ ویشت[۲۶] آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾ | (شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔
اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ ﴿۲﴾ | هر کله به چه آسمان او شلیګی۔
وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴿۳﴾ | او د خپل رب (د خبرے اوریدو) د پاره به غوږ اونیسی او هُم دا (په هغهٔ) فرض دی۔
وَاِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ ﴿۴﴾ | او هر کله به چه زمکه خوره کړے شی۔
وَاَلْقَتْ مَا فِيْهَا وَتَخَلَّتْ ﴿۵﴾ | او څه چه په دے کښے دی هغه به د باندے اوغورزوی او خالی به شی۔
وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴿۶﴾ | او د خپل رب د خبرے د پاره به غوږ اونیسی او هُم دا (په هغے) فرض دی۔
يٰٓاَيُّهَا الْاِنْسَانُ اِنَّكَ كَادِحٌ اِلٰى رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلٰقِيْهِ ﴿۷﴾ | اے انسانه! ته د خپل رب په طرف پوره په زور تلونکے ئے (او) بیا هغه سره لیدونکے ئے۔

فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۞۸
بیا چه دَ چا په ښي لاس کښې دَ هغهٔ اعمال نامه ورکړے شي۔

فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا ۞۹
نو دَ هغهٔ نه به ډیر آسان حساب واخستے شي۔

وَّيَنْقَلِبُ اِلٰٓى اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ۞۱۰
او هغه به دَ خپل اهل په طرف خوشحاله (خوشحاله) واپس شي۔

وَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ وَرَآءَ ظَهْرِهٖ ۞۱۱
او چاله به چه دَ هغهٔ دَ شا دَ ډډے نه اعمال نامه ورکړے شي۔

فَسَوْفَ يَدْعُوْا ثُبُوْرًا ۞۱۲
هغه به زر (دَ خپلے خولے نه خپل) هلاکت رابلي۔

وَّيَصْلٰى سَعِيْرًا ۞۱۳
او دَ غرغنده و په اور کښے به داخليږي۔

اِنَّهٗ كَانَ فِيْٓ اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ۞۱۴
هغه به خپله خپل خانه کښے ښه خوشحاله او سیدو۔

اِنَّهٗ ظَنَّ اَنْ لَّنْ يَّحُوْرَ ۞۱۵
(او) یقین ئے لرلو چه دَ آسانۍ نه پس به کله هُم په هغهٔ نیستي نهٔ رازي۔

بَلٰٓى ۚ اِنَّ رَبَّهٗ كَانَ بِهٖ بَصِيْرًا ۞۱۶
ولے دا ئے خو (خامخا) کیدل وُو ولے چه دَ هغهٔ رب په تحقیق سره هغهٔ ته کتل۔

فَلَآ اُقْسِمُ بِالشَّفَقِ ۞۱۷
او دَ هغوی دَ خیال دَ غلطۍ په ثبوت کښے مونږ شفق وړاندے کوُو۔

وَالَّيْلِ وَمَا وَسَقَ ۞۱۸
او شپه هُم او هغه هُم چه هغه ئے راغونډوي۔

وَالْقَمَرِ اِذَا اتَّسَقَ ۞۱۹
او سپوږمۍ (هُم) هر کله چه هغه دَ دیارلسے شي (دَ شهادت په طور پیش کوُو)۔

لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ ۞۲۰
تاسو به خامخا درجه په درجه دے حالتو لو ته رسئ۔

فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۞۲۱
او په دے کافرانو څهٔ شوي دي چه ایمان نهٔ راوړي۔

وَاِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا يَسْجُدُوْنَ ۞۲۲ السجدة
او هر کله چه دَ هغوی وړاندے قرآن تلاوت شي نو سجده نهٔ کوي۔

بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُكَذِّبُوْنَ ۞۲۳
بلکه کافران په خپل کفر کښے دومره وړاندے شوي دي چه هغوی (دَ قرآن ریښتنئ نه) انکار کول شروع کړي دي۔

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُوْعُوْنَ ﴿۲۳﴾ — او څه چه هغوی (خپلو زړونو کښے پټ کړی دی) الله هغے نه ښهٔ خبر دے۔

فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۲۴﴾ — بیا (دَ هغوی دَ پټو خیالاتو او ښکاره اعمالو له کبله) هغوی ته دَ دردناک عذاب خبر ورکړه۔

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ﴿۲۵﴾ — و۔ هغه (خلق) چاچه ایمان راوړو او هغو مناسب دَحال عمل اوکړو هغوی له یو نهٔ ختمیدونکے (نیک) اجر په لاس راتلونکے دے۔



سُوْرَةُ الْبُرُوْجِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ ثَلٰثٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً

سورة بروج۔ دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے درویشت ۲۳ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾ — (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ﴿۲﴾ — زهٔ دَ برجونو آسمان دَ شهادت په طور وړاندے کوم۔

وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ﴿۳﴾ — او هغه ورځ هم چه دَ هغے وعده ده۔

وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ﴿۴﴾ — او (موعود) ګواه او هغه سړے چه دَ چا پیش خبری په ړومبنو کتابونو کښے راغلے ده۔

قُتِلَ اَصْحٰبُ الْاُخْدُوْدِ ﴿۵﴾ — دَ خندق خلق هلاک شول۔

النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ ﴿۶﴾ — یعنی (خندقونو کښے) اور (لګوونکی) چه په کښے (دیر) خشاک راچوے شوے) وو۔

اِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُوْدٌ ﴿۷﴾ — هرکله چه هغوی په هغه اور (په لښتی وهلی) ناست وو۔

وَّهُمْ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ شُهُوْدٌ ﴿۸﴾ — او هغوی مومنانو سره چه څه (سلوک) کولو دَ هغوی زړونه دَ هغے په حقیقت پوهیدل۔

وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ اِلَّآ اَنْ يُّؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ — او هغوی هغو سره لس دے دَ پاره دښمنی کوله چه

الْحَمِيْدِ ﴿۸﴾

هغوی په غالب (او) دَ ټولو تعریفونو مالک الله ایمان
وَلے راوړو۔

الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ
شَيْءٍ شَهِيْدٌ ؕ ﴿۹﴾

هغه الله چه دَچا په قبضه کښے دَ آسمانونو او زمکے
بادشاهي ده او (دا سوچ نهٔ کوئ) چه الله دَهرڅیز
دَحالاتو نه واقف دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ لَمْ
يَتُوْبُوْا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيْقِ ؕ ﴿۱۰﴾

هغه خلق چاچه مومنان سړی او مومنانے ښځے په
عذاب کښے اخته کړے بیا ئے (دَخپل کارنه) توبه
هُم اونکړه هغوی ته به خامخا دَجهنّم عذاب رسی
او (دے دُنیا کښے هُم) هغوی ته (زړهٔ) سوزُونکے
عذاب رسی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ جَنّٰتٌ
تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيْرُ ﴿۱۱﴾

(او) کوم خلقو چه ایمان راوړو او ورسره ئے دَدے
(ایمان) مناسب دَحال عمل هُم اوکړو هغوی ته به
باغونه حاصلیګی، چه ورلاندے به نهرونه بهیګی
(او) هُم دا لویه کامیابي ده۔

اِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيْدٌ ؕ ﴿۱۲﴾

په تحقیق سره ستا دَ رب نیول ډیر سخت وی۔

اِنَّهٗ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيْدُ ؕ ﴿۱۳﴾

ولے چه هُم هغه دَ دنیا عذاب شروکوی او رکچرے
یو قام مړے نشي نو) بیا بیا عذاب راولی۔

وَهُوَ الْغَفُوْرُ الْوَدُوْدُ ۙ ﴿۱۴﴾

او ورسره هُم) هغه ډیر زیات بخښونکے (او)
بے انتها مینه کوونکے هُم دے۔

ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيْدُ ۙ ﴿۱۵﴾

(هغه) دَعرش مالک (او) دَ اوچت شان خاوند
دے۔

فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ؕ ﴿۱۶﴾

دَکومے خبرے چه اراده اوکړی هغه ئے خامخا
کوونکے دے۔

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْجُنُوْدِ ۙ ﴿۱۷﴾

آیا تا ته (دَصداقت دَ دښمنانو) دَ لښکرو خبر
نهٔ دے رسیدلے۔

فِرْعَوْنَ وَ ثَمُوْدَ ⑲ یعنی دَ فرعون او دَ ثمود دَ لښکرو۔

بَلِ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا فِیْ تَکْذِیْبٍ ⑳ حقیقت خو دا دے چه کافران (دَ سخت انکار (په مرض) کښے (راختنه) دی۔

وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ مُّحِیْطٌ ㉑ په حقیقت کښے الله (هغوی) دَ هغوی دَ شا نه راګیرونکے دے۔

بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِیْدٌ ㉒ (دے نه سوا) دا هُم یو حقیقت دے چه هغه (کلام چه دَ دے خبرو خبر درکوی) یو بزرګ کلام دے او هر ځائے او هره زمانه کښے لوستونکے کلام دے۔

فِیْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ㉓ ع (او ورسره دَ کمال خبره دا ده چه) هغه لوحِ محفوظ کښے دے۔




سورة طارق - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اتلس آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ① (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه دے (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ② زهٔ سحر او دَ سحرستوری دَ شهادت په طور پیش کوم۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الطَّارِقُ ③ او څهٔ څیز تا ته علم درکړے دے چه دَ سحر ستوری څهٔ دی۔

النَّجْمُ الثَّاقِبُ ④ هغه ستورے (هغه دے) چه ډیر ځلیکی۔

اِنْ کُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَیْهَا حَافِظٌ ⑤ (مونږ دعویٰ کوو چه دا قسم) هیڅ یو نفس نشته چه په هغه (دَ خدائے دَ طرف نه) یو نګران مقرر نهٔ دے۔

فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ ۝۵

بیا انسان له کتل پکار دی چه هغه څهٔ څیز نه پیدا شوے دے۔

خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ۝۶

هغه د یو توپ وهونکے اوبو نه پیدا شوے دے۔

يَّخْرُجُ مِنْۢ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَآئِبِ ۝۷

هغه (اوبهٔ یا انسان) د ملا او د سینے د منځ (د هډوکو نه) اوزی۔

اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ ۝۸

هغه (یعنی خدائے) د دے په دوئم ځل واپس کولو په تحقیق سره قادر دے۔

يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِرُ ۝۹

هغه ورځ هر کله به چه پټ رازونه ښکاره کړے شی۔

فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ وَّلَا نَاصِرٍ ۝۱۰

چه د هغے په نتیجه کښے نهٔ خو (د خپل ځان نه د مصیبت د لرے کولو) څه طاقت هغهٔ (انسان) سره پاتے شی او نهٔ به د هغهٔ څوک مددګار وی۔

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ۝۱۱

زهٔ د شهادت په طور هغه ورېځ پیش کوم چه د باران نه ډکه بیا بیا ورېږی۔

وَالْاَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ۝۱۲

او هغه زمکه هم د شهادت په طور پیش کوم چه د باران د نازلیدو نه پس په شلیدو ټوکیږی۔

اِنَّهٗ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ۝۱۳

دا شهادت په دے خبره دے چه هغه (یعنی قرآن) په تحقیق سره قطعی او آخری خبره ده۔

وَّمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ۝۱۴

او هغه څه ربے فائدے او کمزورئ کلام نهٔ دے۔

اِنَّهُمْ يَكِيْدُوْنَ كَيْدًا ۝۱۵

هغه خلق په خامخا (د دے قرآن خلاف) ښے تدبیرونه کوی۔

وَّاَكِيْدُ كَيْدًا ۝۱۶

او زهٔ به (یعنی خدائے به) د هغوی خلاف ښے تدبیرونه کوم او (حق به ښکاره کړے شی)۔

فَمَهِّلِ الْكٰفِرِيْنَ اَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ۝۱۷ ع

بیا (اے رسوله!) کافرانو له مولت ورکړه (او) هغوی له څو ورځے نور مولت ورکړه د پاره د دے چه څومره زور لګول غواړی او د لګوی۔

## سُوْرَةُ الْاَعْلٰى مَكِّيَّةٌ وَّهِىَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ عِشْرُوْنَ اٰيَةً

### سورة اعلیٰ - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره د دے شل ۲۰ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾

(شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى ﴿۲﴾

(اے رسوله!) د خپل بزرګ (او د لوئے شان لرونکی) د رب د نوم پاکی بیانوه۔

الَّذِىْ خَلَقَ فَسَوّٰى ﴿۳﴾

(هغه ذات) چا چه (انسان) پیدا کړو او (هغه ئے) بے عیبه جوړ کړو۔

وَالَّذِىْ قَدَّرَ فَهَدٰى ﴿۴﴾

او چا چه (د هغهٔ د طاقتونو) اندازه اوکړه او (د هغو سره سم ئے) هغهٔ له هدایت ورکړو۔

وَالَّذِىْٓ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ﴿۵﴾

او چا چه د زمکے نه ګیاه او توکوله۔

فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى ﴿۶﴾

بیا ئے هغه توره خزله جوړه کړه۔

سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰٓى ﴿۷﴾

(اے مسلمانه) مونږ به تا ته په (داسے شان) درس درکوو چه د دے په نتیجه کښے به ته نهٔ هیروے۔

اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ وَمَا يَخْفٰى ﴿۸﴾

سوا د دے چه الله ئے درنه هیرول اوغواړی په تحقیق سره هغه د ښکاره نه هُم خبر دے او هغه هُم چه پټ دی۔

وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى ﴿۹﴾

او مونږ به (اے مسلمانه) تا د پاره (د کامیابو او) د آسانو حاصلول آسان کړو۔

فَذَكِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى ﴿۱۰﴾

بیا ته هُم نصیحت کوه، نصیحت کول (تهول عمر دنیا کښے) فائده ورکوی)

سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى ﴿۱۱﴾

څوک چه (خدا ئے نه) ویریږی هغه به خامخا نصیحت بیا مومی۔

وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى ﴿۱۲﴾

او (د دے برخلاف) چه څوک به ډیر بد بخته وی

هغه به دَ دے نه ډېره کوی۔

الَّذِىْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى ﴿۱۲﴾ (هُم هغه) چه په لوئے اور کښے دا خلیدونکے دے۔

ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ﴿۱۳﴾ بیا (دے کښے دَ دا خلیدو نه پس) نهٔ خو به هغه دے کښے مری او نهٔ به ژوندے پاتے کیګی۔

قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ﴿۱۴﴾ چه څوک به پاک اوسیګی نو په تحقیق سره هغه به کامیاب وی۔

وَ ذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ﴿۱۵﴾ په شرط دَ دے (چه پاک جوړ یدو سره) هغه دَ خپل رب ذکر هُم اوکړو او نمونځ ئے کولو۔

بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿۱۶﴾ وے ربّه مخالفو! (تاسو (خلق) خو دُنیاوی ژوند (په آخرت) غوره ګڼړئ۔

وَ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى ﴿۱۷﴾ په حقیقت کښے آخرت ډیر زیات ښه او تل عُمری دے۔

اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿۱۸﴾ په تحقیق سره هُم دا (خبره) په مبلو صحیفو کښے هُم (لیکلے) ده۔

صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَ مُوْسٰى ﴿۱۹﴾ (یعنی) دَ ابراهیم او موسیٰ په صحیفو کښے۔ ع




سورة غاشیه - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے اوه ویشت ۲۷ آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾ (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ ﴿۲﴾ آیا تا ته (په دُنیا) کښے دَ خوریدونکی (مصیبت) هُم خبر رسید لے دے؟

وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ﴿۳﴾ هغه ورځ (کله به چه هغه مصیبت خورشی) (رنګونه) دَ ځنو مخونو به غورزید لی وی۔

عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ﴿۴﴾ (هغوی به) محنت لګیا وی کوی (او) ستړی ستومانه

شوی به وی۔

تَصۡلٰى نَارًا حَامِيَةً ۝٤ روړے د دے محنت نه به هیڅ فائده نهٔ وی او ) هغه جماعت به رپه هرحال ) د غرغنده وبه اور کښے داخلیږی۔

تُسۡقٰى مِنۡ عَيۡنٍ اٰنِيَةٍ ۝٥ او په هغه رتهول جماعت ) به د لیشیدلے چینے نه راو به ) څکولے شی۔

لَيۡسَ لَهُمۡ طَعَامٌ اِلَّا مِنۡ ضَرِيۡعٍ ۝٦ هغوی ته به د اوچ شبرق قسم وښو نه سوا بل خوراک نشی ورکیدے۔

لَّا يُسۡمِنُ وَلَا يُغۡنِىۡ مِنۡ جُوۡعٍ ۝٧ چه نهٔ به هغوی غټهوی او نهٔ به ئے د لوږے رد تکلیف ) نه ساتی۔

وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ۝٨ څهٔ رنور ) مخونه به هغه ورځ خوشحاله خوشحاله وی۔

لِّسَعۡيِهَا رَاضِيَةٌ ۝٩ په خپلو رتیروشوو ) کوشیشونو به ئے تسلی وی۔

فِىۡ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۝١٠ په اوچتو جنتونو کښے به اوسی۔

لَّا تَسۡمَعُ فِيۡهَا لَاغِيَةً ۝١١ هغوی به هغے کښے فضول خبره نهٔ اوری۔

فِيۡهَا عَيۡنٌ جَارِيَةٌ ۝١٢ هغے کښے به یوه روانه چینه وی۔

فِيۡهَا سُرُرٌ مَّرۡفُوۡعَةٌ ۝١٣ (او) هغے (جنت) کښے به اوچت تختونه (هم) ایخودے شوی وی۔

وَّاَكۡوَابٌ مَّوۡضُوۡعَةٌ ۝١٤ اوکټوری به پراته وی۔

وَّنَمَارِقُ مَصۡفُوۡفَةٌ ۝١٥ او د ډیرے تکولو د پاره به وارهٔ بالختونه په قطارونو کښے پراته وی۔

وَّزَرَابِىُّ مَبۡثُوۡثَةٌ ۝١٦ او قالینونه به غوړیدلی وی۔

اَفَلَا يَنۡظُرُوۡنَ اِلَى الۡاِبِلِ كَيۡفَ خُلِقَتۡ ۝١٧ آیا هغوی ورته نهٔ وینی چه هغه څنګه پیدا شوی دی۔

وَاِلَى السَّمَآءِ كَيۡفَ رُفِعَتۡ ۝١٨ او آسمان (نهٔ وینی چه ) څنګه اوچت کړے شوے دے

وَاِلَى الۡجِبَالِ كَيۡفَ نُصِبَتۡ ۝١٩ او غرونه (نه وینئ ) چه څنګه نخښ کړے شوی دی۔

وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴿۲۰﴾ — او زمکه ته نهٔ وینی) چه څنګه اواره کړے شوے ده.
فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنْتَ مُذَكِّرٌ ﴿۲۱﴾ — بیا نصیحت کوه ځکه چه ته خو بس نصیحت کوونکے ئے.
لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ ﴿۲۲﴾ — ته په هغوی (خلقو) داروغه مقرر نهٔ ئے.
إِلَّا مَنْ تَوَلَّى وَكَفَرَ ﴿۲۳﴾ — ولے چه چا شاکړه او انکار ئے اوکړو.
فَيُعَذِّبُهُ اللَّهُ الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ ﴿۲۴﴾ — د دے په نتیجه کښے به الله هغهٔ له د ټولو نه لوئے عذاب ورکوی.
إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ ﴿۲۵﴾ — په تحقیق سره هغوی ته څمونږ په طرف واپس کیدل دی.
ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ ﴿۲۶﴾ — بیا د هغوی نه حساب اخستل په تحقیق سره هُم څمونږ کار دے. ع ۱۴




سورۃ فجر - دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره د دے یو دیرش ۳۱ آیتونه دی.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿۱﴾ — (شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه او بیا بیا رحم کوونکے دے.
وَالْفَجْرِ ﴿۲﴾ — زهٔ د شهادت په طور یو راتلونکے سحر پیش کوم.
وَلَيَالٍ عَشْرٍ ﴿۳﴾ — او لس شپے هُم.
وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ﴿۴﴾ — او د یو جوړئ او یو ونړ.
وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ﴿۵﴾ — او د پورتنو لسو شپو نه پس راتلونکے شپه هرکله چه هغه روانه شی.
هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِذِي حِجْرٍ ﴿۶﴾ — آیا د دے کښے عقلمند د پاره څه قسم (یعنی شهادت) شته دی یا نا؟)
أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ﴿۷﴾ — آیا تا ته معلومه ده چه ستا رب عاد سره څهٔ (سلوک) اوکړو.

اِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ﴿۷﴾
یعنی دَ (عاد) اِرم قام سره چه دَ لویو لویو عمارتونو خاوندان وُو۔

الَّتِیْ لَمْ یُخْلَقْ مِثْلُهَا فِی الْبِلَادِ ﴿۸﴾
هغه خلق چه دَ هغوی په شان بل قام هغو ملکونو کښے هډو پیدا شوے نهٔ وو۔

وَثَمُوْدَ الَّذِیْنَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ﴿۹﴾
او (آیا) دَ ثمود (پحقله هُم تا ته معلومات شته) چه په وادو کښے به ئے (خپل کورونه) په کنستلو جوړول۔

وَفِرْعَوْنَ ذِی الْاَوْتَادِ ﴿۱۰﴾
او دَ فرعون (پحقله هُم تا ته څهٔ معلوم دی) چه دَ غرونو مالک وو۔

الَّذِیْنَ طَغَوْا فِی الْبِلَادِ ﴿۱۱﴾
هغه (غرونه یعنی زورورو خلقو) چا چه په ښارونو کښے فساد پیدا کړے وو۔

فَاَكْثَرُوْا فِیْهَا الْفَسَادَ ﴿۱۲﴾
او په فساد کښے به وړاندے لوړ زیاتیدل۔

فَصَبَّ عَلَیْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ﴿۱۳﴾
دَ دے له کبله ستا رب په هغوی دَ عذاب کوړے اوورولے۔

اِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ ﴿۱۴﴾
په تحقیق سره ستا رب په څوکښے دے۔

فَاَمَّا الْاِنْسَانُ اِذَا مَا ابْتَلٰىهُ رَبُّهٗ فَاَكْرَمَهٗ وَنَعَّمَهٗ فَیَقُوْلُ رَبِّیْ اَكْرَمَنِ ﴿۱۵﴾
بیا (لږ غور اوکړه) دَ انسان حال ته چه هر کله دَ هغهٔ رب هغه آزمیښت کښے اچوی او دَ هغهٔ عزت کوی او په هغهٔ نعمت نازلوی نو هغه وائی چه (زهٔ داسے دَ اوچت شان خاوند یم چه) ځما رب (هُم) ځما عزت اوکړو۔

وَاَمَّآ اِذَا مَا ابْتَلٰىهُ فَقَدَرَ عَلَیْهِ رِزْقَهٗ فَیَقُوْلُ رَبِّیْۤ اَهَانَنِ ﴿۱۶﴾
او هر کله چه (خدائے) هغهٔ آزمیښت کښے اچوی او دَ هغهٔ رزق کموی نو هغه وائی ځما رب (ځے بے ښے بے بدے) ځما بے عزتی اوکړه۔

كَلَّا بَلْ لَّا تُكْرِمُوْنَ الْیَتِیْمَ ﴿۱۷﴾
(خدائے هیڅ بے هیڅه سزا نهٔ ورکوی) دا تصور ستاسو خپل دے چه تاسو دَ یتیم عزت نهٔ کولو۔

| | |
|---|---|
| وَلَا تَحٰٓضُّوْنَ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ۙ﴿١٨﴾ | اونهٔ موپه مسکین دَ دوړی خوړولو یوبل ته وئیل - |
| وَتَاْكُلُوْنَ التُّرَاثَ اَكْلًا لَّمًّا ۙ﴿١٩﴾ | اودَ وراثت مال به موټول رپه عیش کښې) اُوزولو- |
| وَّتُحِبُّوْنَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا ۭ﴿٢٠﴾ | اوتاسومال سره بے کچه مینه کوله - |
| كَلَّآ اِذَا دُكَّتِ الْاَرْضُ دَكًّا دَكًّا ۙ﴿٢١﴾ | واورئ! هرکله به چه زمکه توټې توټې کړے شی- |
| وَّجَاۗءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا ۚ﴿٢٢﴾ | اوستارب په داسے شان کښې راشی چه فرښتې به صف<br>تړلی ولاړے وی- |
| وَجِايْۗءَ يَوْمَىِٕذٍۢ بِجَهَنَّمَ ڏ يَوْمَىِٕذٍ يَّتَذَكَّرُ الْاِنْسَانُ وَاَنّٰى لَهُ الذِّكْرٰى ۭ﴿٢٣﴾ | اوهغه ورځ به جهنّم رنزدے) راوستے شی دَ هغے<br>عذاب په وخت به انسان غواړی چه نصیحت واخلی<br>ولے هغه وخت به دَ نصیحت نه دَ پوره پوره فائدے<br>اوچتولونهٔ وی- |
| يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ قَدَّمْتُ لِحَيَاتِيْ ۚ﴿٢٤﴾ | نوهغه به وائی کاش ماخپل ردے) ژوند دَ پاره<br>څه وړاندے استولے وے- |
| فَيَوْمَىِٕذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهٗٓ اَحَدٌ ۙ﴿٢٥﴾ | بیا هغه ورځ به دَ خدائے دَ عذاب غوندے هغهٔ<br>ته بل څوک عذاب نهٔ ورکوی - |
| وَّلَا يُوْثِقُ وَثَاقَهٗٓ اَحَدٌ ۭ﴿٢٦﴾ | اونهٔ به دَ هغهٔ دَ نیولو غوندے نیول کوی- |
| يٰٓاَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَىِٕنَّةُ ۤۖ﴿٢٧﴾ | اے مطمئن نفسه ! |
| ارْجِعِيْٓ اِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ۚ﴿٢٨﴾ | دَ خپل رب په طرف راواپس شه رپه داسے حال کښې<br>چه ته هغهٔ ) هُم خوښوے او هغهٔ ته هُم خوښ ئے- |
| فَادْخُلِيْ فِيْ عِبٰدِيْ ۙ﴿٢٩﴾ | بیا رستا رب تا ته وائی چه ) راشه ځما رخاصو)<br>بندیانو کښې داخل شه - |
| وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ ۧ﴿٣٠﴾ | ع او رراشه) ځما په جنت کښې هُم داخل شه- |




سورة بلد - دا سورة مكي دے او لبسم الله سره دَ دے يو ويشت ۲۱ آيتونه دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① (شروع كوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے -

لَآ اُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ② واورى! ستا سو خبره غلطه ده زه دا ښار (دَ مكے) ستا دَ رښتينتيا په طور پيش كوم -

وَاَنْتَ حِلٌّۢ بِهٰذَا الْبَلَدِ ③ او (وائم چه اے محمد) ته (يوه ورځ) بيا دے ښار (دَ مكے) ته واپس راتلونكے يې -

وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ ④ او پلار هُم او ځوئے هُم (يعنى ابراهيمؑ او اسمٰعيلؑ دَ شهادت په طور پيش كوم) -

لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْ كَبَدٍ ⑤ په تحقيق سره مونږ انسان محنت ته مجبور كړے دے -

اَيَحْسَبُ اَنْ لَّنْ يَّقْدِرَ عَلَيْهِ اَحَدٌ ⑥ آيا هغه داگمان كوى چه په ده به دَ چا وس نه رسى -

يَقُوْلُ اَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ⑦ هغه وائى چه ما خو په پنډو ونو پنډو مال لگولے دے -

اَيَحْسَبُ اَنْ لَّمْ يَرَهٗٓ اَحَدٌ ⑧ آيا هغه خيال كوى چه دَ ده ته څوك كتونكے نشته دے -

اَلَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ عَيْنَيْنِ ⑨ آيا مونږ دَ ده دَ پاره دوه ستر گے نه دى پيدا كړى؟

وَلِسَانًا وَّشَفَتَيْنِ ⑩ او ژبه هُم او دوه شونډے هُم نه دى پيدا كړى؟

وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ ⑪ بيا مونږ هغهٔ ته (دَ هدايت او دَ گمراهئ) دواړه لارے هُم ښودلى دى -

فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ⑫ (ولے) هغه بيا هُم دَ غر په سُوكه او نهٔ ختو -

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْعَقَبَةُ ⑬ او تا ته چا وښيلے دى چه سُوكه څهٔ (دى او دَ څه څيز نوم) دے؟

فَكُّ رَقَبَةٍ ⑭ (دَ غر په سُوكه ختل دَ غلام) مرئ خلاصول دى -

اَوْ اِطْعٰمٌ فِيْ يَوْمٍ ذِيْ مَسْغَبَةٍ ⑮ يا دَ لوږے په ورځ ډوډئ خوړه ول دى -

يَّتِيْمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ﴿۱۵﴾
په يتيم، چه نزدے وى۔

اَوْ مِسْكِيْنًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴿۱۶﴾
يا په مسكين چه په زمكه پرلوتے وى۔

ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ ﴿۱۷﴾
(يا په سُوكه ختل دا وُو چه دَ دے كاروكونه سوا) چه دے دَهغوى نه وے چه ايمان ئے راوړو راو چا چه) يوبل ته دَ صبر نصيحت اوكړو او يوبل ته ئے دَ رحم نصيحت اوكړو۔

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ﴿۱۸﴾
دا خلق دَ بركت خاوندان دى۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا هُمْ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ﴿۱۹﴾
او چا چه زمونږ دَ آيتونو انكار اوكړو۔

عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ ﴿۲۰﴾ ع
هغه به سپيره وى په هغوى به دَ بندې اور (دَ سزا په طور) نازليګى۔




سورة شمس۔ دا سورة مكى دے او بسم الله سره دَ دے شپاړس آيتونه دى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾
(شروكوم) په نامه دَ الله چه بے حسابه مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔

وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا ﴿۲﴾
زهٔ نمر دَ شهادت په طور پيش كوم او وخت دَ ضحیٰ هركله چه هغه دَ ختو نه پس اوچت شى۔

وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا ﴿۳﴾
او سپوږمئ هركله چه هغه نمر پسے راځى۔

وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا ﴿۴﴾
او ورځ (هُم دَ شهادت په طور پيش كوم) هركله چه هغه (نمر) ښكاره كوى۔

وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰهَا ﴿۵﴾
او شپه هُم (دَ شهادت په طور پيش كوم) هركله چه هغه (يعنى نمر) (نمرا) دَ سترګو نه پناه كوى۔

وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰهَا ﴿۶﴾
او آسمان او دَ هغے جوړول هُم۔

وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا ﴿۷﴾
او زمكه هُم او دَ هغے غوړول هُم (دَ شهادت په

طور پیش کوم )۔

وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰىهَا ﴿۸﴾

او انسانی نفس هُم او دَ هغے بے عیب جوړیدل هُم
( دَ شهادت په طور پیش کوم )۔

فَاَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰىهَا ﴿۹﴾

چه هغهٔ ( الله ) په نفس دَ هغے دَ بدکارئ ( لارے
هُم ) او دَ هغے دَ تقوی ( لارے ) هُم په ښه شان
پرانستے دی۔

قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰىهَا ﴿۱۰﴾

بیا چا چه دا ( یعنی نفس ) پاک کړو هغه خو ( لوړه شه
چه ) خپل مراد اوموندلو۔

وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا ﴿۱۱﴾

او چا چه دا ( خاوره کښے ) ښخ کړو ( لوږه شه چه )
هغه نامراده شو۔

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ ﴿۱۲﴾

ثمود دَ خپلے ډیرے زیاتے سرکشئ له کبله ( دَ زمانے
دَ نبی ) انکار اوکړو۔

اِذِ انْۢبَعَثَ اَشْقٰىهَا ﴿۱۳﴾

هغه وخت چه دَ هغهٔ په قام کښے دَ ټولو نه لوئے
بدبخت دَ هغهٔ ( یعنی دَ زمانے دَ نبی ) مخالفت ته
اودریدو۔

فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ نَاقَةَ اللّٰهِ وَسُقْيٰهَا ﴿۱۴﴾

په دے سبب هغوی ( یعنی دَ ثمود قام ) ته دَ الله
رسُول ( صالحؑ ) اوویل چه دَ الله دَ پاره وقف شوی
اوښے نه ځان ساتئ او دا شان دَ هغے دَ اوبو څکلو
په کار کښے هُم دَ هر قسم سرکشئ نه منع شئ۔

فَكَذَّبُوْهُ فَعَقَرُوْهَا فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُمْ بِذَنْۢبِهِمْ فَسَوّٰىهَا ﴿۱۵﴾

ولے هغوی دَ هغهٔ ( یعنی دَ نبی ) خبره او نهٔ منوده بلکه
دَ هغهٔ انکار ئے اوکړو او هغه ( اوښه ) چه دَ کومے
نه دَ بچ کیدو هغوی ته حُکم شوے وه دَ هغے پښے
ئے پریکړے چه دَ هغے له کبله الله هغوی په خاوره
کښے دَ ګډولو فیصله اوکړه او داسے ئے تبا بیرونه ئے
اوکړل چه هغه شان او هُم شول۔

وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا ⑮ — او هغه به (د دا شان) د دوئ (یعنې د مکې د خلقو د انجام پرواه نه کوی۔ ع ۱۶




سورۃ لیل۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سره د دے دوه ویشت آیتونه دی۔ ۲۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① — (شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى ② — زه شپه د شهادت په طور پیش کوم هرکله چه د هغے تیارۀ خوره شی۔

وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى ③ — او ورځ هُم رزۀ د شهادت په طور پیش کوم) هرکله چه هغه روښانه شی۔

وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰٓى ④ — د نر او مادے پیدا وښت هُم (د شهادت په طور پیش کوم)۔

اِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتّٰى ⑤ — چه په تحقیق سره ستاسو کوششونه مختلف دی۔

فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى ⑥ — بیا چاچه (د خدا ئے په لاره کښے) ورکړه او تقویٰ ئے اوکړه۔

وَصَدَّقَ بِالْحُسْنٰى ⑦ — او د نیکے خبرے تصدیق ئے اوکړو۔

فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْيُسْرٰى ⑧ — هغهٔ ته به مونږ خامخا آسانی ورکوُو۔

وَاَمَّا مَنْۢ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى ⑨ — او دا سے (سړے) چاچه بخل اوکړو او د بے پروا هئ اظهار ئے اوکړو۔

وَكَذَّبَ بِالْحُسْنٰى ⑩ — او د نیکے خبرے نه انکار ئے اوکړو۔

فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى ⑪ — هغه ته به مونږ (سامان د) تکلیف رسوُو۔

وَمَا يُغْنِيْ عَنْهُ مَالُهٗٓ اِذَا تَرَدّٰى ⑫ — او هرکله چه هغه هلاک شی نو د هغهٔ مال به هغهٔ ته هیڅ فائده نهٔ رسوی۔

| | |
|---|---|
| اِنَّ عَلَیۡنَا لَلۡہُدٰی ﴿۱۲﴾ | په تحقيق سره هدايت وركول ځمونږ په ذمه دى- |
| وَ اِنَّ لَنَا لَلۡاٰخِرَۃَ وَ الۡاُوۡلٰی ﴿۱۳﴾ | او دَ هرے خبرے ابتدا او انتها هُم په تحقيق سره ځمونږ په اختيار كښے ده- |
| فَاَنۡذَرۡتُکُمۡ نَارًا تَلَظّٰی ﴿۱۴﴾ | (بيا ياد لرئ چه) ما خو تاسو دَ غرغنده او رنه ويرولى يئ- |
| لَا یَصۡلٰىہَاۤ اِلَّا الۡاَشۡقَی ﴿۱۵﴾ | دے كښے به سوا دَ لوئے بد بخت نه بل څوك نهٔ داخليږى- |
| الَّذِیۡ کَذَّبَ وَ تَوَلّٰی ﴿۱۶﴾ | (دا سے بد بخت) چا چه (دَ حقونه) انكار اوكړو او (دَ رليبنستنئ نه ئے) مخ واړولو- |
| وَ سَیُجَنَّبُہَا الۡاَتۡقَی ﴿۱۷﴾ | او چه څوك به ډير متقى وى هغه به ځامخا دے نه لرے ساتلے شى- |
| الَّذِیۡ یُؤۡتِیۡ مَالَہٗ یَتَزَکّٰی ﴿۱۸﴾ | (هغه متقى) چه خپل مال (دے دَ پاره دَ خدا ئے په لاره كښے) وركوى چه (دے سره) پاكى حاصله كړى- |
| وَ مَا لِاَحَدٍ عِنۡدَہٗ مِنۡ نِّعۡمَۃٍ تُجۡزٰۤی ﴿۱۹﴾ | او دَ چا په هغه څه احسان نهٔ وى- دَ چا بدله ځلاصول چه دَ هغهٔ خيال وى- |
| اِلَّا ابۡتِغَآءَ وَجۡہِ رَبِّہِ الۡاَعۡلٰی ﴿۲۰﴾ | او ولے دَ خپل لوئے شان لرونكى رب رضا حاصلول (دَ هغهٔ مقصود وى)- |
| وَ لَسَوۡفَ یَرۡضٰی ﴿۲۱﴾ | ع۲۲ او هغه خدا ئے به ځامخا هغهٔ نه راضى شى- |



سُوۡرَۃُ الضُّحٰی مَکِّیَّۃٌ وَّہِیَ مَعَ الۡبَسۡمَلَۃِ اِثۡنَتَا عَشۡرَۃَ اٰیَۃً

سورة ضحىٰ - دا سورة مكى دے او بسم الله سره دَ دے دولس ۱۲ آيتونه دى -

| | |
|---|---|
| بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ﴿۱﴾ | (شروكوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے - |
| وَ الضُّحٰی ﴿۲﴾ | زهٔ د ورځ دَ شهادت په طور پيش كوم هر كله چه هغه روښانه شى - |
| وَ الَّیۡلِ اِذَا سَجٰی ﴿۳﴾ | او شپه (دَ شهادت په طور پيش كوم) هر كله چه |

دَ هغے تیارهٔ خلورو اره طرف ته خوره شی۔

مَاوَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰىؕ۝۳ چه نهٔ خو سنا رب ته پریخودے ئے او نهٔ تا نه خفه شوے دے۔

وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰىؕ۝۴ او (اوخوکوره چه) سنا هر روستو راتلونکے وخت دَ رومبنی وخت نه ښهٔ وی۔

وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰىؕ۝۵ او سنا رب به خامخا تا ته (رهغه څه) درکوی چه ته به پرے خوشحاله شے۔

اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا فَاٰوٰى۝۶ آیا دے زُونډ کښے دَ هغهٔ سلوک تا سره غیر معمولی نهٔ دے (او) هغه چه ته یتیم اولیدے نو خپل لاس لاندے ئے (ځائے درنکړو)۔

وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى۝۷ او رهرکله چه) هغهٔ ته (دَ خپل قام په مینه کښے) مست اولیدے نو (دَ هغوی دَ اِصلاح) صحی لاره ئے تا ته اوښودله۔

وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَاَغْنٰىؕ۝۸ او هرکله چه ته ئے تهبرداره اولیدے نو (په خپل فضل ئے) غنی کړے۔

فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْؕ۝۹ بیا (دَ دے احسانانو په نتیجه کښے) ته هُم دَ یتیمانو حوصلے زیاتوه۔

وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْؕ۝۱۰ او سوالگرمهٔ رټه۔

وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ۝۱۱ ع او دَ خپل رب دَ نعمتونو اظهار خامخا کیا اوسه کوه۔

## سُوْرَةُ اَلَمْ نَشْرَحْ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعُ اٰيٰتٍ

سورۃ الم نشرح - دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سرہ دے نهٔ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① — (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ② — آیا مونږ ستا سینه ستا دَ پاره پراخه نهٔ ده۔

وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ ③ — او ستا هغه پیټئ مونږ ستا نه لرے نهٔ کړو۔

الَّذِيْٓ اَنْقَضَ ظَهْرَكَ ④ — دا سے پیټئ چه ستا ملا ئے ماته کړے وه۔

وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ⑤ — او ستا ذکر (شان) هُم مونږ اوچت کړے دے۔

فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ⑥ — بیا (یاد لره چه) دَ دے تکلیف نه پس یوه لویه کامیابی شته دے۔

اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ⑦ — (او) په تحقیق سره دے تکلیف سره یوه دبله هُم لویه کامیابی (شته) ده۔

فَاِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ⑧ — بیا کله (هُم) چه نهٔ او دَ کار ئے نو رخه اُئے سره دَ لیدو دَ پاره) بیا کوشانه شه۔

وَاِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ ⑨ — ع ۱۹ — او دَ خپل رب په لور ورمات شه۔

## سُوْرَةُ التِّيْنِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعُ اٰيٰتٍ

سورۃ التّین - دا سورۃ مکی دے او لبسم اللہ سره دَ دے نهٔ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① — (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ② — زهٔ اِنځیر او زیتون دَ شهادت په طور پیش کوم۔

وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ③ — او دا شان دَ سینین غر۔

وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ﴿۳﴾
او دا دَ امن ښار (یعنی مکه) هُم -

لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ﴿۴﴾
(دا ټول شهادتونه ثابته وی چه) په تحقیق سره مونږ انسان په ډیرموزون حالت کښے پیدا کړے دے -

ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ ﴿۵﴾
بیا مونږ هغه دَ ادنیٰ درجونه (هُم) دَ ډیرے پرلوتے درجے په طرف واپس کړو -

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ﴿۶﴾
سوا دَ هغه خلقو چه ایمان ئے راوړو او چا چه مناسب دَ حال کارونه اوکړل بیا نو هغوی دَ پاره به یو نهٔ ختمیدونکے نیکه بدله وی -

فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ ﴿۷﴾
بیا دَ دے (حقیقت دَ ښکاره کیدو) نه پس کوم څیز تا دَ جزا سزا یحقله انکاری کوی -

اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸﴾
ع آیا (اوس هُم څوک خیال کوے شی) چه الله دَ ټولو حاکمانو نه لوئے حاکم نهٔ دے -

## سُوْرَةُ الْعَلَقِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ عِشْرُوْنَ اٰيَةً

سوره علق - دا سورة مکی دے او بسم الله سره دَ دے شل[۲] آیتونه دی -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے -

اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ﴿۲﴾
دَ خپل رب په نوم لوله چا چه (ټول څیزونه) پیدا کړل -

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ﴿۳﴾
(او چا چه) انسان دَ وینے دَ لوټ نه پیدا کړو -

اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ﴿۴﴾
(بیا مونږ وایو چه قرآن) په لوستنے اوروه وے چه ستا رب ډیر کریم دے -

الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ﴿۵﴾
هغه رب چا چه قلم سره علم ښودلے (دے او بیا به ئے هُم ښائی) -

عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۝٥
هغهٔ انسان ته (هغه څه) ښودلی دی چه هغهٔ ته
رومبیٔ علم نهٔ لرلو۔

كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَيَطْغٰٓى ۝٦
څنګه چه هغوی خیال کوی (داشان) نهٔ دی بلکه په
تحقیق سره انسان دَ حده تګیا دے اوړی۔

اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى ۝٧
دا شان چه هغه خپل ځان (دَ خدائے دَ فضل نه)
لاپرواه ګنړی۔

اِنَّ اِلٰى رَبِّكَ الرُّجْعٰى ۝٨
حقیقت دادے چه هُم ستا دَ رب په طرف واپس
تلل دی۔

اَرَءَيْتَ الَّذِىْ يَنْهٰى ۝٩
(اے اوریدُونکیه!) ته (ما ته) دَ هغهٔ (یعنی
سړی په حال) خبر راکړه چه یو (عبادت کوُونکے)

عَبْدًا اِذَا صَلّٰى ۝١٠
بنده هرکله چه هغه په نمونځ وی (دَ نمونځ
نه) منع کوی۔

اَرَءَيْتَ اِنْ كَانَ عَلَى الْهُدٰٓى ۝١١
(اے اوریدُونکیه!) ته (ما ته) اوخو وایه کچرے
(هغه نمونځ ګذار بنده) په سمه لاروی۔

اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰى ۝١٢
یا دَ تقویٰ حُکم ورکوی۔

اَرَءَيْتَ اِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ۝١٣
او دَ هغهٔ منع کوُونکے دَ هدایت نه انکاری وی (او
دَ هغے نه) مخ اړوی (نو بیا دَ هغهٔ دَ منع کوُونکی به
څهٔ انجام وی)۔

اَلَمْ يَعْلَمْ بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى ۝١٤
آیا هغه (دو مره هُم) نهٔ پوهیګی چه الله دَ هر
څیز نه خبر دے (دے دَ پاره هغه دِ په بړالسنی
غوږ ونلو واوری چه هغه تګیا دے غلطی کوی)۔

كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ ۙ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ۝١٥
څنګه چه هغه غواړی دا شان به نهٔ کیګی - بلکه
کچرے (هغه دَ خپل دے کار نه) منع نشولو مونږ
به هغه دَ تندی دَ ویښتو نه نیولے په زوره
راکاږو۔

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴿۱۶﴾ دَ داسے تندی ویښتهٔ چه دروغژن دے او هغه خطا رهُم دے۔

فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴿۱۷﴾ بیا (کافر له) پکاردی چه هغه خپله د له را اوغواړي۔

سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ ﴿۱۸﴾ مونږ به هُم خپل پولس را اوغواړو۔

كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ﴿۱۹﴾ دَ دښمن دَ خوښے سره سم به سلوک نهٔ کیږي۔ (بیا اے نبي!) ته دَ دے (قسم کافر) اطاعت مهٔ کوه او (لوازمے دَ خپل رب وړاندے) سجده کوه او (دَ دے سجدے په نتیجه کښے خپل رب ته) ډیر نږدے شه۔

## سُوْرَةُ الْقَدْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتُّ اٰيَاتٍ

سورة قدر دا سورة مکی دے او سره دَ بسم الله دَ دے شپږ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۱﴾ (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ ﴿۲﴾ په تحقیق سره مونږ دا قرآن دَ تقدیر په (لوءِ عظیم الشانه) شپه کښے نازل کړے دے۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ﴿۳﴾ او (اے اوریدونکیه!) تا ته څهٔ معلومه چه دا (عظیم الشانه) شپه چه په کښے تقدیرونه راکوزیګی څهٔ شے دے۔

لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ اَلْفِ شَهْرٍ ﴿۴﴾ دا دَ تقدیرونو (عظیم الشانه) شپه خو دَ زرو میاشتو نه ښه ده۔

تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ۚ مِنْ كُلِّ اَمْرٍ ﴿۵﴾ (دهر قسم) فرښتے او (کامل) روح دے (شپه) کښے دَ خپل رب په حُکم تولو (دینی او دنیاوی) احکامو سره نازلیګی۔

سَلٰمٌ ۛ هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ ﴿۶﴾ (بیا دَ فرښتو راکوزیدو نه پس خو) سلامتی (سلامتی وی) ده (او) دا (حال) دَ سحر کیدو پورے (روی) دے۔

سُوْرَةُ الْبَيِّنَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعُ اٰيَاتٍ

سورۃ بیّنه - دا سورۃ مکی دے او سره د بسم الله د دے نهه آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُنْفَكِّيْنَ حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ②

هغه خلق چا چه کفر کړے دے یعنی اهل کتاب او مشرکان (دواړه) کله هُم (د خپل کفر نه منع کیدونکی نهٔ وُو) ترخو پورے چه هغوی ته ښکاره دلیل نهٔ دے راغلے۔

رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ يَتْلُوْا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ③

یعنی د الله (د طرف) نه راتلونکے یو رسول چه (هغوی ته ئے دا سے) پاکیزه صحیفے تلاوت کړے۔

فِيْهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ④

چه په هغو کښے قائم پاتے کیدونکی حُکمونه وے۔

وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ⑤

او (عجیبه خبره دا ده چه) کوم خلقو ته قرآن مجید غوندے مکمل کتاب ورکړے شوے دے هغوی د دے واضح دلیل (یعنی رسول) د راتلو نه پس هُم (په مختلفو ډلو کښے) تقسیم شوی دی۔

وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۙ حُنَفَآءَ وَيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ ⑥

حقیقت دا دے چه هغوی ته هُم دا حُکم ورکړے شوے وه چه هغوی دِ بس هُم د یو خدائے عبادت کوی - او عبادت دِ بس هُم د هغهٔ د پاره خاص کړی (دا سے حال کښے چه) هغوی په خپلو نیکو غوښتنو ټینګ ولاړ وی (بیا بس د دے خبرو حُکم ورکړے شوے وه چه) نمونځ دِ په جمع کوی او زکوٰۃ دِ ورکوی او هُم دا (زټل ترټله په صداقت) قائم پاتے کیدونکے دین دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

په اهل کتابو او مشرکانو کښے به په کُفر پاتے کیدونکی خلق

وَالْمُشْرِكِيْنَ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ اُولٰۗىِٕكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ ۝۶

په خامخا دَ جهنّم په اور کښے (د ا خلیګی) دی (او هغوی به) دے کښے تل تر تله اوسی هُم هغه خلق بدترین خلق دی۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ ۝۷

(دَ دے خلاف) هغه خلق چه په اهل کتابو او مشرکانو کښے ایمان راوړو او هغوی (دَ ایمان سره) مناسب دَ حال عمل هُم اوکړی۔ هُم هغه خلق دَ ټولو نه ښهٔ خلق دی۔

جَزَاۗؤُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۭ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهٗ ۝۸

دَ هغوی بدله به دَ هغوی رب سره قائم پاتے کیدُونکی باغونه وی چه ورلاندے به نهرونه بهیګی او هغوی به دے کښے تل تر تله اوسی الله هغوی نه راضی شو او هغوی دَ هغهٔ (الله) نه راضی شول۔ هُم دا (جزا) دَ هغهٔ دَ شان سره سمه ده چه خپل رب نه ویریګی۔

## سُوْرَةُ الزِّلْزَالِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ تِسْعُ اٰيَاتٍ

سورة زلزال۔ دا سورة مکی دے او سره دَ بسم الله دَ دے نههٔ آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۱

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا ۝۲

هرکله به چه زمکه په پوره شان اوخوزولے شی۔

وَاَخْرَجَتِ الْاَرْضُ اَثْقَالَهَا ۝۳

او زمکه به خپل پټے شئ را بهر کړی۔

وَقَالَ الْاِنْسَانُ مَا لَهَا ۝۴

او انسان به اووائی چه په دے څهٔ چل اوشو۔

يَوْمَىِٕذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا ۝۵

هغهٔ ورځ به هغه هُم ټولے پټے خبرے بیان کړی۔

بِاَنَّ رَبَّكَ اَوْحٰى لَهَا ۝۶

دَ پاره دَ دے چه ستا رب دَ دے (یعنی زمکے) په حق کښے وحی کړے ده۔

يَوْمَئِذٍ يَّصْدُرُ النَّاسُ اَشْتَاتًا ۙ لِّيُرَوْا اَعْمَالَهُمْ ۝٦

هغه ورځ به خلق مختلفو ډلو کښے راغونډیږی چه د خپلو کوشیشونو نتیجه اووینی.

فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ۝٧

بیا چا به چه پوتهٔ غوندے (هُم) نیکی کړی وی هغه به (د نتیجے په طور) هغه اووینی.

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ۝٨ ع

او چا به چه یو پوتهٔ غوندے هُم بدی کړی وی هغه به (د نتیجے په طور) هغه اووینی.




سورۃ عادیات - دا سورۃ مکی دے او سره د بسم الله د دے دولس آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١

(شروع کوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا ۝٢

زهٔ د شهادت په طور هغه جماعتونه وړاندے کوم چه په آسونو سوارهٔ دا سے تیز زغلی چه د هغوی د آسونو د خُلو نه آوازونه وتل شروع شی.

فَالْمُوْرِيٰتِ قَدْحًا ۝٣

ورسره هغه د آسونو سوارلی چه د هغوی د سوارو په وهلو د اور لمبری اوباسی.

فَالْمُغِيْرٰتِ صُبْحًا ۝٤

بیا سحر سحر حمله کوونکی.

فَاَثَرْنَ بِهٖ نَقْعًا ۝٥

چه د هغے په نتیجه کښے هغے (یعنی د سحر وخت) کښے دوړے الوزوی.

فَوَسَطْنَ بِهٖ جَمْعًا ۝٦

او په لښکرو کښے ورننوزی.

اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ ۝٧

په تحقیق سره انسان د خپل رب ډیر ناشکره دے

وَاِنَّهٗ عَلٰى ذٰلِكَ لَشَهِيْدٌ ۝٨

او په تحقیق سره هغه په دے (خپل قول او فعل سره) گواهی لګیا دے ورکوی.

وَاِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ ۝٩

او هغه (سره د دے) په تحقیق سره د مال په مینه

کښې دي ورانده شوي دي۔

اَفَلَا يَعۡلَمُ اِذَا بُعۡثِرَ مَا فِي الۡقُبُوۡرِ ﴿١٠﴾

آيا دا انسان ته معلومه نهٔ ده چه هرکله به هغوی (یعنی خلق) چه قبرونو کښې دی او چتولے شي۔

وَحُصِّلَ مَا فِي الصُّدُوۡرِ ﴿١١﴾

او چه څه په سينو کښې (پټ پراته) دی به اوباسلے شي۔

اِنَّ رَبَّهُمۡ بِهِمۡ يَوۡمَئِذٍ لَّخَبِيۡرٌ ﴿١٢﴾

ع ١ ١٢ ٢٥ هغه ورځ به د هغوی رب په تحقيق سره د هغوی نګرانی کوونکے وی۔




سورة قارعه - دا سورة مکی دے او سره د بسم الله د دے دولس ١٢ آيتونه دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ﴿١﴾

(شروکوم) په نامه د الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوونکے دے۔

اَلۡقَارِعَةُ ﴿٢﴾

(په دنيا) يو سخت مصيبت (را تلونکے دے)۔

مَا الۡقَارِعَةُ ﴿٣﴾

او تا ته څهٔ معلومه ده چه هغه مصيبت څنګه دے۔

وَمَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا الۡقَارِعَةُ ﴿٤﴾

او (بيا مونږ وايو چه اے اوريدونکيه!) تا ته څهٔ معلومه ده چه دا عظيم الشان مصيبت څهٔ څيز دے۔

يَوۡمَ يَكُوۡنُ النَّاسُ كَالۡفَرَاشِ الۡمَبۡثُوۡثِ ﴿٥﴾

(هرکله به چه دا مصيبت راشی) هغه وخت به خلق د خوروورو پتنګانو په شان (حيران ګرزی) وی۔

وَتَكُوۡنُ الۡجِبَالُ كَالۡعِهۡنِ الۡمَنۡفُوۡشِ ﴿٦﴾

او غرونه به د وهلی شوی پشم په شان شي۔

فَاَمَّا مَنۡ ثَقُلَتۡ مَوَازِيۡنُهٗ ﴿٧﴾

هغه وخت به چه د چا (د عملونو) تلے درنے وی۔

فَهُوَ فِيۡ عِيۡشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿٨﴾

هغوی خو به (ډير ښهٔ او) خوښونکی حال کښے وی۔

وَاَمَّا مَنۡ خَفَّتۡ مَوَازِيۡنُهٗ ﴿٩﴾

او چه د چا (د عملونو) تلے به سپکے وی۔

فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ۝٩ دَ هغهٔ ځائے به هاویه (یعنی جهنّم) وی۔

وَمَآ أَدْرٰكَ مَا هِيَهْ ۝١٠ (او راے اوریدُونکیه!) تا ته څهٔ معلومه ده چه دا (هاویه) څهٔ دی۔

نَارٌ حَامِيَةٌ ۝١١ دا یو دَ غرغنډو اور دے۔




سورۃ تکاثر۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے نهه آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١ (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ۝٢ تاسو دَ یو بل نه وړاندے دَ وتوغو ښیتنے غفلت کښے واچولی (او تاسو به هُم دا شان غافل اوسئ)۔

حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ ۝٣ تر دے چه تاسو ادیروته اورسئ۔

كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۝٤ (ښهٔ یاد لرئ چه) تاسو خلق به ډیر زر (دَ قرآن کریم بیان کړی حقیقت نه) خبر شئ۔

ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۝٥ بیا (مونږه وایُو چه ستا سو حال دا شان نهٔ دے څنګه چه تاسو ګنړئ او) ډیر زر به تاسو ته معلومه شی (چه ستاسو ذِنه حالت هُم هغه دے چه قرآن کریم بیان کړے دے)۔

كَلَّا لَوْ تَعْلَمُوْنَ عِلْمَ الْيَقِيْنِ ۝٦ (اصل حقیقت ستاسو دَ خیالاتو سره سم) هیڅکله نهٔ (دے) کاش تاسو دَ یقینی علم په مَدد اصل حقیقت نه خبریدے۔

لَتَرَوُنَّ الْجَحِيْمَ ۝٧ (بیا به تاسو ته معلومه وے) تاسو به خامخا جهنّم (دے دنیا کښے) وینئ۔

ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِيْنِ ۝٨ او دے نه پس به تاسو دَ یقین په سترګو (آخرت

کښې)هُم وينځ۔

ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ ۝٨ ع ۲۷
بیا (دا هُم یاد لرئ چه) تاسو نه به هغه ورځ (دَ هر لوئے نعمت پخقله) تپوس کیږی (چه تاسو په هغے شکر ادا کړے دے یا نا)۔

## سُوْرَةُ الْعَصْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعُ اٰيَاتٍ

سورة عصر۔ دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے څلور آیتونه دی۔

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝١
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

وَالْعَصْرِ ۝٢
زهٔ زمانه (دَ محمدؐ) دَ شهادت په طور پیش کوم۔

اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ ۝٣
(چه) په تحقیق سره (دَ نبیانو مخالف) انسان (تل تر تله) نقصان کښې دے۔

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۙ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ۝٤ ع ۳۸
وے هغه خلق چه (په نبیانو ئے) ایمان (راوړو او بیا) هغوی مناسب دَ حال عمل اوکړو او دَ صداقت په اُصولو قائم پاتے کیدو ئے خپلو کښے یو بل ته وینا اوکړه (او په راتلونکو مشکلاتو ئے دَ صبر نه دَ کار اخستو) یو بل ته هدایت کولو (دا سے خلق کله هُم نقصان کښے نشی پریوتلے)۔

---

# سُوْرَةُ الْهُمَزَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ عَشْرُ اٰيَاتٍ

سورة همزه - دا سورة مكي دے او لبسم الله سره دَ دے لس آيتونه دي۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①
(شروع كوم) په نامه د الله چه ډير زيات مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔

وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةِ ②
دَ هر غيبت كوونكي (او) عيب لټونكي دَ پاره (هُم عذاب) عذاب دے۔

الَّذِيْ جَمَعَ مَالًا وَّعَدَّدَهٗ ③
چه مال جمع كوي او هغه شميري۔

يَحْسَبُ اَنَّ مَالَهٗٓ اَخْلَدَهٗ ④
هغه خيال كوي چه دَ هغهٔ مال به هغه (دَ هغهٔ نوم) باقي ساتي۔

كَلَّا لَيُنْۢبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ ⑤
هيڅكله داسے نهٔ ده (څنګه چه دَ هغه خيال دے بلكه) په تحقيق سره هغه به (سره دَ خپله ماله) حُطمه كښے غورزولے شي۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْحُطَمَةُ ⑥
او (اے اوريدونكيه!) تا ته څهٔ معلومه ده چه دا حُطمه څهٔ څيز دے؟

نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ ⑦
دا (حُطمه) دَ الله بله كړے اور دے۔

الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْاَفْـِٕدَةِ ⑧
چه دَ زړونو دننه پورے به رسي۔

اِنَّهَا عَلَيْهِمْ مُّؤْصَدَةٌ ⑨
بيا به هغه (اور) دَ هر طرف نه بند كړے شي دَ پاره دَ دے چه دَ هغے كرمي هغهٔ ته نوره هُم زياته تكليف ناكه محسوسه شي۔

فِيْ عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ ⑩ ع ۱ / ۲۹
(او هغه به هغه وخت) لويو ستنو سره تړلي شوي وي۔

# سُوْرَةُ الْفِيْلِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتُّ اٰيَاتٍ

سورة فيل - دا سورة مكي دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ ۶ آیتونه دی -

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوُونکے دے - |
| اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ② | (اے محمّد!) آیا تا سو ته معلومه نهٔ ده چه ستا سو رب ها تهیانو (استعمال کوُونکو) خلقو سره څهٔ سلوک اوکړو - |
| اَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ فِيْ تَضْلِيْلٍ ③ | آیا (هغوی دَ چلے نه آگاهو هلاک کولو سره) دَ هغوی منصوبه ختمه نکړه - |
| وَّاَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا اَبَابِيْلَ ④ | او (دے نه پس ئے) دَ هغوی (په لاشونو) سیل په سیل مارغان (را) واستول - |
| تَرْمِيْهِمْ بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ⑤ | (چه) دَ هغوی غوښه به ئے په سختو کا نړو ولیشتله (او شوکوله) - |
| فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّاْكُوْلٍ ⑥ ع | بیا دَ دے په نتیجه کښے هغهٔ هغوی لکه دَ داسے بوُسو کړل چه څناورو خوړلی وی - |

# سُوْرَةُ قُرَيْشٍ مَّكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسُ اٰيَاتٍ

سورة قریش - دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے پینځه ۵ آیتونه دی -

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروع کوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بيا بيا رحم کوُونکے دے - |
| لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ② | (دَ نورو غرضونو نه سوا) دَ قریشو زړونو دَ بلولو دَپاره - |

| | |
|---|---|
| اٖلٰفِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَآءِ وَالصَّيْفِ ۝ | يعنى دَ هغوى زړونه دَ كرمئ او يخنئ سفرونو دَ بلدولو دَ پاره (مونږ ابرهه هلاک كړو). |
| فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ ۝ | بيا هغوى له پكار دى چه هغوى (قريش) دَ دے كور (يعنى دَ كعبے) دَ مالک عبادت اوكړى. |
| الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ وَّ اٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ ۝ ع | چا چه په هغوى (دَ هر قسم) لوږے (په حال) ډوډئ اوخوروله او (دَ هر قسم) ويرے په حال كښے ئے امن وركړو. |



سُوْرَةُ الْمَاعُوْنِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ ثَمَانِيْ اٰيَاتٍ

سورة ماعون۔ دا سورة مكى دے او لبسم الله سره دَ دے اته آيتونه دى۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝ | (شروكوم) په نامه دَ الله چه بےحده مهربانه (او) بيا بيا رحم كوونكے دے۔ |
| اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يُكَذِّبُ بِالدِّيْنِ ۝ | (اے اوريدونكيه!) آيا تا هغه سړے اوپيژندو چه دَ دين تكذيب (انكار) كوى۔ |
| فَذٰلِكَ الَّذِيْ يَدُعُّ الْيَتِيْمَ ۝ | هُم هغه دے چه يتيم بهٔ ئے رټلو۔ |
| وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ۝ | او هغه به په مسكين ډوډئ خوړولو دَ پاره (خلقوته كله هُم) ترغيب نهٔ وركولو۔ |
| فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ ۝ | او هغهٔ نمونځ كذاروَ دَ پاره هُم هلاكت دے۔ |
| الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ ۝ | چه دَ خپلو نمونځونو نه غافل اوسى۔ |
| الَّذِيْنَ هُمْ يُرَآءُوْنَ ۝ | (او) كوم خلق چه هسے دَ ښودنے نه كار آخلى۔ |
| وَيَمْنَعُوْنَ الْمَاعُوْنَ ۝ ع ۳۲ | او هغوى دَ خپل كور دَ معمولى سامان دَ وركولو نه (خپل ځانونه او نور خلق) منع كوى۔ |

## سُوْرَةُ الْكَوْثَرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعُ اٰيَاتٍ

سورۃ کوثر - دا سورۃ مکی دہ او لبسم اللہ سرہ دَ دے څلور آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِنَّآ اَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ ② (اے نبیؐ!) په تحقیق سره مونږ تا ته کوثر درکړے دے

فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ③ بیا نو (دَ دے دَ منلو په طور) ته دَ خپل رب (ډیر ډیر) عبادت کوه او دَ هغهٔ دَ رضا دَ پاره قربانی ورکوه۔

اِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْاَبْتَرُ ④ او یقین لره چه هُم ستا مخالف به دَ نارینه اولاد نه محرومه وی۔ ع ۳۳

## سُوْرَةُ الْكٰفِرُوْنَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سَبْعُ اٰيَاتٍ

سورۃ کافرون - دا سورۃ مکی دہ او لبسم اللہ سرہ دَ دے اووه آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ② (مونږ دَ هغه زمانے کافرانو ته وایو چه) ته (دَ خپلے زمانے کافرانو ته) بیا بیا وایه (چه) واورئ! اے کافرانو!۔

لَآ اَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ ③ زهٔ ستاسو په طریقه عبادت نهٔ کوم۔

وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ④ او نهٔ تاسو زما په طریقه عبادت کوئ۔

وَلَآ اَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدْتُّمْ ⑤ او نهٔ زهٔ (دَ هغوی) عبادت کومه چه دَ چا چه تاسو عبادت (اروان) پئ کوئ۔

وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ۝۵
اونۀ تاسو (دَ هغۀ) عبادت کوئ چه دَ چا زۀ ئې عبادت کوم۔

لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ ۝۶
(دا پاسنئ اعلان نتیجه ده دَ دے چه) ستا سو دین ستاسو دَ پاره (ئې لوه لاره مقرره وی) دے او ځما دین ځما دَ پاره (ئې لوه لاره مقرره وی) دے۔


سُوْرَةُ النَّصْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ اَرْبَعُ اٰيَاتٍ

سورة نصر۔ دا سورة مکی دے او لبسم الله سره دَ دے څلور آیتونه دی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۱
(شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔

اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ۝۲
هرکله به چه دَ الله مدد او کامله غلبه راشی۔

وَرَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا ۝۳
او تۀ به دَ دے خبرے آثار اووینے چه دَ الله په دین کښے په ټولو ټولو خلق داخلیګی۔

فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا ۝۴
هغه وخت تۀ دَ خپل رب دَ تعریف سره (سره) دَ هغۀ پاکی بیانولو کښے اخته اوسه او دَ مسلمانانو په تربیت کښے چه کوم کمئ پاتے شوے دے (په هغے) دَ هغۀ (یعنی خدائے) نه دَ پرده اچولو دُعا کوه۔ په تحقیق سره هغه دَ خپلو بندیانو په طرف رحمت سره بیا بیا راګرزیدونکے دے۔

## سُوْرَةُ اللَّهَبِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتُّ اٰيَاتٍ

سورۃ لهب۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ آیتونه دی۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔ |
| تَبَّتْ يَدَآ اَبِيْ لَهَبٍ وَّتَبَّ ② | دَ شُغلے دَ پلار دواړه لاسونه شل شوی دی او هغه (خپله) هُم شل شوے دے۔ |
| مَآ اَغْنٰى عَنْهُ مَالُهٗ وَمَا كَسَبَ ③ | دَ هغهٔ مال هغهٔ له هیڅ فائده ورنکړه اونهٔ دَهغهٔ کوششونو (څه فائده) ورکړے ده۔ |
| سَيَصْلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ④ | هغه به خامخا اور کښے پریوزی چه به (دَ هغهٔ په شان) شُغلے وهونکے وی۔ |
| وَّامْرَاَتُهٗ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ⑤ | او دَ هغهٔ ښځه هُم چه خشاک، اوچتوی (او) (اُوری به راور کښے پریوزی)۔ |
| فِيْ جِيْدِهَا حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ ⑥ ع | دَ هغهٔ (دَ ښځے) په سټ کښے به دَ کجهورے سخته جوړه شوے رسئ تړلے شی۔ |

## سُوْرَةُ الْاِخْلَاصِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ خَمْسُ اٰيَاتٍ

سورۃ اخلاص۔ دا سورۃ مکی دے او لبسم الله سره دَ دے پنځه آیتونه دی۔

| | |
|---|---|
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ① | (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے۔ |
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ② | (مونږ دَ هرے زمانے مسلمان ته حُکم ورکوو چه) ته نورو خلقو ته لګیا اوسه وایه چه (اصل) خبره دا ده چه الله خپل ذات کښے یو دے۔ |

اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۝۲ الله هغه (ذات) دے چه دَ هغهٔ ټول محتاجه دی (او هغه دَ هیچا محتاجه نهٔ دے).

لَمْ يَلِدْ ۝ وَلَمْ يُولَدْ ۝۳ نهٔ هغه نه څوک پیدا دی او نهٔ هغه چا نه پیدا دے.

وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ۝۵ ع او (دَ هغهٔ په صفاتو کښے) دَ هغهٔ څوک هُم شریک نشته.

سُورَةُ الْفَلَقِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سِتُّ اٰيَاتٍ

سورة فلق - دا سورة مدنی دے او لبسم الله سره دَ دے شپږ آیتونه دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۱ (شروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه (او) بیا بیا رحم کوونکے دے.

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ۝۲ (مونږ دَ هرے زمانے مسلمان ته وایو چه) ته (نورو خلقو ته) لګیا اوسه وایه چه زهٔ دَ مخلوقاتو دَ رب نه (دَ هغهٔ) پناه غوارم.

مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ۝۳ دَ هغه دَ هر مخلوق (دَ ښکاره او پټے) بدئ نه (دَ ربح کیدو دَ پاره).

وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ۝۴ او دَ تیارهٔ کوونکی دَ هر شرارت نه (دَ ربح کیدو دَ پاره) هرکله چه هغه تیارهٔ کوی.

وَمِن شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ ۝۵ او دَ ټولو داسے نفسونو دَ شرارت نه (دَ ربح کیدو دَ پاره) چه (دَ خپلو یوتربله دَ تعلقاتو) په غوټه کښے (دَ تعلق دَ ختمولو په نیت) پوکی وهی.

وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ۝۶ ع او دَ هر حاسد دَ شرارت نه (هُم) هرکله چه هغه په حسد راشی.

## سُوْرَةُ النَّاسِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مَعَ الْبَسْمَلَةِ سَبْعُ اٰيَاتٍ

سورۃ ناس - دا سورۃ مدنی دے او لبسم اللہ سره دَ دے اوۂ آیتونه دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ①

رشروکوم) په نامه دَ الله چه بے حده مهربانه راو) بیا بیا رحم کوُونکے دے۔

قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ②

رمونږ دَ هرے زمانے مسلمان ته وائو چه) ته نورو خلقو ته ئکیا اوسه وایه زه دَ تهولو انسانانو دَ رب نه ردَ هغهٔ) پناه غواړم۔

مَلِكِ النَّاسِ ③

رهغه رب) چه دَ تهولو انسانانو بادشاه رهُم) دے۔

اِلٰهِ النَّاسِ ④

او دَ تهولو انسانانو معبود رهُم) دے۔

مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ ۙ الْخَنَّاسِ ⑤

رزهٔ دَ هغهٔ پناه غواړم) دَ هرلو وسوسه اچوُونکی دَ شرارت نه چه رهرقسم وسوسے اچولو نه پس) روستو کیږی۔

الَّذِيْ يُوَسْوِسُ فِيْ صُدُوْرِ النَّاسِ ⑥

راو) چه دَ انسانانو په زړونو کښے شک شبے پیدا کوی۔

مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ ⑦ ع ١ ٣٩

که هغه رفتنه اچوُونکے) پیښ او سیدُونکی وی او که عام انسانانو نه وی۔